# تسهیلات

## پښتو شرح

# مشکوٰة

تالیف - مولانا شاه فیصل فاضل دارالعلوم اسلامیه چارسده

دویم جلد (۲)

د شلو (۲۰) خصوصیاتو سره چې لس (۱۰) په کښې دا دی

① پیښوري پښتو سره بین القوسین د قندهاري پښتو د ګرانو ټکو اضافه
② د مشکاة د عربي او اردو متداولو ټولو شروحاتو مجموعه
③ په ترجمه کښې بین القوسین د مرقاة المفاتیح داضافي قیوداتو ترجمه
④ دحدیث هرې جملې ته اود هغې ترجمې د آسانتیا دپاره نمبرې ورکول
⑤ په فقهي اختلافي مسئلو کښې مدلل او آسان مباحث
⑥ د اوږدو احادیثو د متن او ترجمې تقسیم
⑦ دهرحدیث د صحاح سته وغیره څخه تخریج
⑧ د حل اللغات په عنوان سره د مرقاة المفاتیح څخه د مشکلو لغات حل
⑨ دقوله په عنوان سره دحدیث د هرې مشکلې جملې تشریح
⑩ دهرباب په اول کښې دهغې د احادیثو خلاصه
⑪ د کتاب په اول کښې د علوم الحدیث مفیده مقدمه

خورنکي
فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور
موبائل ۰۳۱۵-۹۵۹۵۷۱۷

**دکتاب نوم** تسهيلات شرح مشکواة

**شارح** مولانا پروفيسر شاه فيصل
فاضل وفاق المدارس، امدادالعلوم، جامعه اسلاميه چارسده

**معاون مترجم**:: عبدالکريم صديقی

**د ملاويد پتې**

- جديد اسلامي کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- روغانيوال کتب خانه جلال آباد
- رحيمي کتب خانه خوست
- حرم کتب خانه کابل
- دينې کتب خانه تيمرگره
- تاج کتب خانه صوابي
- مکتبه خواجه عبدالله انصاري غزني
- مکتبه دارالاخلاص کابل
- مکتبه رحمانيه قندهار
- مکتبه رحمانيه کوئټه
- الوري کتب خانه قندهار
- نعمت کتب خانه کابل
- مکتبه علميه اکوړه ختک
- حقانيه کتب خانه گرديز
- وطن دوست کتب خانه گرديز
- إقرأ کتب خانه جلال آباد
- مکتبه معروفيه کوئټه
- مکتبه عمريه چمن
- مکتبه عباسيه تيمرگره
- مکتبه امير حمزه قندهار

# اجمالی فہرست

| شمار | مضمون | صفحہ |
|---|---|---|

# د احاديثو د عنواناتو فهرست

# فهرست اختلاف مذاهب

# [۳] كِتَابُ الطَّهَارَةِ

دا كتاب د پاکۍ د مسائلو په بيان کښې دې

## بَابُ فَضِيلَةِ الطَّهَارَةِ

د طهارت فضيلت

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل**

① كون الطهور من أعمال الإيمان: ۱، ۱۱، ۱۵۔

② ذكر فوائد الطهارة من حصول الجنة والمغفرة والحسنات والدرجات: ۲،۳،۴،۵، ۶، ۱۲، ۱۶۔

③ ذكر آثار الوضوء بسبب الطهور يوم القيامة: ۹، ۱۰، ۱۷، ۱۸۔

④ كون الطهور مفتاح الصلاة: ۱۳

⑤ الزجر على من لا يحسن الوضوء: ۱۴۔

**د کتاب لغوی معنی:** کتاب مصدر په معنی د مکتوب،

**د کتاب اصطلاحی تعريف:** په اصطلاح کښې د مسائل مستقله عنوان ته کتاب وئيلې شی لکه چه په در مختار کښې دی.

**د کتاب مصداق:** که مسائل د يو جنس نه وی نو هغه د لفظ کتاب نه شروع کولې شی ځکه چه کتاب مصدر دې او په لغت کښې د دې معنی د جمع کولو راځی. او جنس انواع ته شامل وی په دې وجه دداسې الفاظو استعمال کول کومه چه د جمع معنی لری د جنس مناسب دې.

**د باب مصداق:** که د مسائلو د نوعيت اعتبار اوکړې شی نو په اعتبار د نوع هغه مسائل د باب نه شروع کولې شی ځکه چه د باب معنی په لغت کښې د نوع راځی،

**د فصل مصداق:** که د مسائلو د خپل ماقبل نه د ممتازکيدو اعتبار اوکړې شی نو هغه مسائل په لفظ د فصل سره شروع کولې شی، ځکه چه د فصل معنی په لغت کښې د بيلولو راځی، فقهاء او محدثين په خپلو تصنيفاتو کښې اکثرهم په دې طرز باندې روان وی.(فتح الملهم)

**د مشکاة د ابتدائی کتابونو په مينځ کښې ربط:** ① د کتاب العلم په شروع کښې د علامه عينی رحمه الله نه نقل کړې شوې دی چه په علم او عمل دواړو باندې د ترتب ثواب دپاره د ايمان ضرورت دې په دې وجه کتاب الايمان مقدم کړې شو.

② بيا په قول د علامه ابن العابدين د اعتقاداتو نه پس د امور دين مدار په آداب، عبادات، معاملات او عقوبات باندې دې او د دې تمام دپاره د علم ضرورت دې په دې

وجه د کتاب الایمان نه پس کتاب العلم راوړي دي

③ بیا کتاب الطهارة لره کوم چه د عباداتو نه دي آداب، معاملات، عقوبات باندي مقدم کړو، ځکه چه د انسان د پیدائش مقصد عبادت دي لکه چه د الله پاک ارشاد دي ﴿ وما خلقت الجن والانس الا لیعبدون ﴾ او مونځ د ایمان نه پس په مرتبه کښ په باقی عباداتو باندي مقدم کړو خو طهارة مفتاح الصلاة دي په دي وجه په کتاب الصلاة باندي کتاب الطهارة مقدم کړو. (فتح الملهم، عینی)

**د طهارة لغوی معنی:** طهارة مصدر دي په معنی د نظافت، مصدر چونکه اسم جنس کیدو سره قلیل او کثیر ټولو ته شامل دي په دي وجه مصنف رحمه الله طهارة لره واحد راوړي دي په دي کښ په حیثیت د اسم جنس هر قسم طهارت، اودس، غسل، تیمم، غسل ثوب و بدن وغیره شامل دي،

**د طهارة شرعی تعریف:** په اصطلاح د شرع کښ طهارت بدن، کپړي، مکان حدث، خبث او فضلات اعضاء لره د پاکولو نوم دي. او خبث نجاست حسی او معنوی دواړو ته شامل دي دا په اودس باندي اودس کولو ته هم شامل دي. په دي شرط چه په اودس باندي دپاسه اودس ئي د تقرب (عبادت) په نیت سره کړي وی. ځکه چه هغه اودس کوم چه د تقرب په نیت سره اوکړي شی مطهر الذنوب (ګناهونو لره وینځونکي) وی. (فتح الملهم، التعلیق الصبیح)

**د طهارت دري قسمونه:** د شاه ولی الله رحمه الله په نزد د طهارت دري قسمونه دی

① طهارة من النجاسة. دا بدن، جامه او مکان حدث ته شامل دي.

② طهارة من الاوساخ (د خیرو او فضله جاتو نه پاکیدل) لکه د نامه نه لاندي ویښته صفا کول، نوکونه اخستل، د خیری وغیره نه بدن او جامي پاکول. دا دواړه طهارتونه د انسانی طبیعت په مقتضاء کښ دی چه د هغي نه یو قوم او ملت ته هم اختلاف او انکار نشته.

③ طهارة من الحدث او دا د عباداتو او د نیکئ د اصولو نه دی. بیا د دي طهارت دوه قسمونه دی

**د دریم قسم طهارت دوه قسمونه:** ① طهارة عامه د دي تعلق د ټولو بدن سره دي لکه چه جماع، خروج منی وحیض و نفاس چه کوم طهارت اوکړي شی. دي ته طهارت کبری هم وئیلی شی او د دي مقابل حدث ته حدث اکبر وئیلي شی.

② طهارت خاصه چه د هغي تعلق د بدن د بعض اجزاء سره وی لکه د احد السبیلین نه د منی نه علاوه بول وبراز او د ریح په خروج سره طهارت دي ته طهارت صغری هم وئیلی شی او د دي مقابل حدث ته حدث اصغر وئیلي شی.

**دمانځه دپاره د طهارت باطنی ضرورت:** د مانځه دپاره د طهارت باطنی هم ضرورت دي.

لکه چه د الله پاک ارشاد دي ﴿قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكَّى وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّى﴾ دلته ئې د تزکیه باطن نه پس صلاة راوړلو.

**د طهارت باطنی قسمونه:** دطهارت باطنیه ډیر اقسام دی:

① خپل اندامونه د ګناهونو نه پاکول

② زړه د غلطو عقائدو نه پاکول او خیال لره د غیر الله نه اړولو سره ټول په ټول توجه الی الله ساتل، هم دا وجه ده چه د متوضی دپاره دا دعا ﴿اللهم اجعلنی من التوابین الخ﴾ مشروع ده چه د اوبو په ذریعه د طهارت بدن نه پس په توبې سره طهارت قلب هم راشی،

**د دواړو طهارتونو د حصول نه پس د مانځه قابل جوړیدل:** دواړو طهارتونه چه کله حاصل شی نو هله به بنده د الله پاک مخې ته د اودریدلو او د مناجات کولو لائق وی، لکه چه په التعلیق الصبیح کښې د علامه ابن القیم رحمه الله نه نقل کړې شوې دی،

**دحکم په اعتبار سره داودس درې قسمونه:**

① فرض اودس، کوم چه د فرض جنازې د مانځه او سجده تلاوت دپاره وی.

② واجب اودس کوم چه د کعبې د طواف دپاره وی.

③ مستحب اودس، کوم چه د غیبت او دروغو، خندا او مړی ته د غسل ورکولو نه پس وی. (البحر الرائق)

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۲۸۱] دپاکی اهمیت

۲۸۱ – ()[۱] ۱ عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ «الطُّهُورُ شَطْرُ الْإِيمَانِ، ۳ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ تَمْلَأُ الْمِيزَانَ، ۴ وَسُبْحَانَ اللَّهِ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ تَمْلَآنِ - أَوْ تَمْلَأُ - مَا بَيْنَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ، ۵ وَالصَّلَاةُ نُورٌ، ۶ وَالصَّدَقَةُ بُرْهَانٌ، ۷ وَالصَّبْرُ ضِيَاءٌ، ۸ وَالْقُرْآنُ حُجَّةٌ لَكَ أَوْ عَلَيْكَ، ۹ كُلُّ النَّاسِ يَغْدُو، ۱۰ فَبَائِعٌ نَفْسَهُ فَمُعْتِقُهَا أَوْ مُوبِقُهَا» ) رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابو مالك اشعري رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ پاك اوسيدل نيم ايمان دي ۳ او الحمد لله ويل د اعمالو ترازو (تله) ډكوي ۴ او سبحان الله او الحمد لله يې ډكوي يا وي فرمايل چې هره يوه كلمه ډكوي هغه شي چې د آسمانونو او زمكو په مينځ كې دي ۵ مونځ نور دي ۶ صدقه دليل دي ۷ صبر كول رڼا ده ۸ او قرآن ستاسو د پاره يا په تاسو دليل دي ۹ هرسړي هركله چې صبا كوي ايعني د اوده كيدو نه

---

(۱) اخرجه مسلم کتاب الطهارة باب فضل الوضوء (رقم:۱.(۲۲۳) والنسائی کتاب الزکاة باب وجوب الزکاة(رقم-۲٤۳) و اخرجه احمد فی المسند:-۳٤۲/۵ والترمذی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۵۱۷) والدارمی کتاب الطهارة/باب ما جاء فی الطهور(رقم-۶۷۹)

وروسته راپاسي ⑩ نو خپل ځان په خپل کارونو کې خرڅوي (یعنې لګوي) نو هغه خپل ځان آزادوي یا هلاك کوي. (مسلم)

① وَفِي رِوَايَةٍ ( «لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ تَمْلَآنِ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ» ) ② لَمْ أَجِدْ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ فِي الصَّحِيْحَيْنِ ③ وَلَا فِي كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ وَلَا فِي (الْجَامِعِ) ④. وَلٰكِنْ ذَكَرَهَا الدَّارِمِيُّ بَدَلَ (سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ)

**ترجمه:** ① او په یو روایت کې دي چې لااله الا الله والله اکبر هغه شي ډکوي چې د آسمانونو او زمکو په مینځ کې دي ② (صاحب مشکوٰة فرمایي چې) ما دا روایت نه په بخاري کې موندلې دې او نه په مسلم کې ③ او نه کتاب حمیدي او کتاب جامع الاصول کې ما دا روایت موندلې دې ④ البته دارمي دا روایت په ځاې د سبحان الله والحمد لله ذکر کړې دې (نو د صاحب مصابیح دا روایت په فصل اول کې نقل کول درست نه شو).

**حل اللغات:** ① شَطْرُ: د نصف په معنی کښې دې یعنی نیم، ② تَمْلَأُ: د مضارع واحد مؤنث صیغه ده، ډکوی، ③ بُرْهَانٌ: أي حُجَّةٌ: دلیل، حجت، ④ ضِيَاءٌ: رڼړا ته وائی او نور هم رڼړا ته وائی خو ضیاء د نور نه زیات وی په دې وجه قرآن کښې شمس دپاره ضیاء او قمر دپاره نور استعمال شوې دې. ⑤ يَغْدُو: السَّيْرُ أَوَّلَ النَّهَارِ: د ورځې په شروع کښې تللو ته وائی ددې ضد رَوَاح دې دورځې په آخر کښې تللو ته وائی. ⑥ فَبَائِعٌ: خرڅونکې دې، یعنی خپل ځان خرڅوی یا دَنیك عمل په بدله کښې یادَ بدعمل په بدله کښې، ⑦ فَمُعْتِقُهَا: یعنی نیکی کولوسره دَدوزخ نه خپل ځان خلاصوی. ⑧ مُوبِقُهَا: أَيْ: مُهْلِكُهَا: یعنی دَبدئ په بدله کښې خپل ځان په هلاکت کښې غورزوی

**تسهيلات:**

**قوله:** الطُّهُوْرُ شَطْرُ الْإِيْمَانِ:

**اشکال:** د دین اسلام خو ډیر اعمال دی نو صرف طهارت ته نصف الایمان څنګه اووئیلې شو؟

**داشکال جوابونه:** ① په شریعت کښې اجر او ثواب دوه قسمه وی.

۱: اجر اصلی یعنی بنده د نفس عمل په ذریعه د الله پاک د قواعد او ضوابط مطابق چه د کوم اجر مستحق وی هغه اجر اصلی دې. ۲: اجر مضاعف هغه اجر کوم چه الله پاک خپل بنده ته د قیامت په ورځ صرف په خپل فضل او کرم د نعمتونو اتمام او د کثرت رحم په وجه باندې عنایت فرمائی. وذلك فضل الله يؤتيه من يشاء.

اوس هر عمل اودس، مونځ، روژه، ایمان، وغیره دپاره یو معین اجر اصلی دې، او یو د الله پاک کمال شفقت، وسعت رحمت او د زیاتې مهربانئ په وجه باندې اجر مضاعف دې کوم چه عارضی دې. اوس د اودس اجر مضاعف د عارضی ایمان د اجر اصلی معین نصف کیدې شی. د اودس د اصلی ثواب د ایمان د اصلی ثواب نصف کیدل. هم دغه شان د اودس عارضی ثواب د ایمان د عارضی ثواب نیم کیدل هرګز مراد نه دی څکه چه فرع د اصل برابر نه شی کیدې. یا به دا جواب کولې شی چه ایمان د ماقبل ټولو ګناهونه ساقط

کوی هم دغه شان اودس هم، خو اودس بغیر د ایمان نه صحیح نه دې پس اودس په ایمان باندې د موقوف کیدو د وجې نه معنی شطر الایمان شو.

**په جواب اعتراض:** ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چه دا جواب د شوافع په دې قاعده باندې بناء دې چه ﴿ ان الوضوء عبادة مستقلة تحتاج الی نية وهی لاتصح الامن اهل الايمان﴾ چه اودس یو مستقل عبادت دې کوم چه د نیت محتاج دې او عبادت صرف د اهل ایمان معتبر وی، خو زمونږ په نزد د کافر اودس هم صحیح کیږی ځکه چه زمونږ (د احنافو) په نزد په اودس کښې نیت شرط نه دې.

ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چه اظهر دا ده چه په ایمان صغائر او کبائر دواړو لره ساقطوی او په اودس سره صرف صغائر معاف کیږی.

③ د ایمان نه دلته صلاة مراد دې لکه چه په یو موقع باندې په قرآن کریم کښې د ایمان نه صلاة مراد اخستلې شوې دې ﴿ وماكان الله ليضيع ايمانكم﴾ (او الله پاک داسې نه دې چه ستاسو ایمان ضائع کړی ، پاره ۲ سورة بقره) دلته مفسرینو د ﴿ ايمانكم﴾ تفسیر په ﴿ صلاتكم الى البيت المقدس﴾ کړې دې. او مونځ د څه شرطونو او ارکانو د مجموعې نوم دې، او طهور د مانځه په شرطونو کښې د ډیر قوی شرط کیدو د وجې نه نصف صلاة دې ځکه چه صلاة د ارکان او شرائطو د مجموعې نوم دې.

④ د شطر نه نصف مراد نه دې بلکه مطلقا څه حصه یا جزء مراد دې لکه چه د الله پاک ارشاد دې ﴿فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ (واړوه مخ خپل د مسجد حرام طرف ته پاره ۲ سورة بقره) اوس طهور د ایمان د اجزاء او حصو نه مطلقا یو جزء شو. خو جزء هم جزء حقیقی نه بلکه جزء کمالی دې. او په بعض روایاتو کښې چه کوم د ﴿ شطر الايمان﴾ په ځائې ﴿ نصف الايمان﴾ راغلې دې هلته به هم د نصف نه مراد مطلقا څه حصه او جزء مراد کولې شی.

⑤ حافظ توریشتی رحمه الله فرمائی چه ایمان د طهارة عن الشرک نوم دې، څنګه چه طهور د طهارت عن الاحداث نوم دې د هغې نه یو د باطن د طهارت سره خاص دې یعنی ایمان او دویم د ظاهر طهارت یعنی طهارة عن الاحداث سره خاص دې.په دې اعتبار سره طهور ته نصف الایمان ونیلې شوې دې چې دې کښې د ظاهر طهارت حاصلیږی.

⑥ د امام غزالی رحمه الله نه نقل دی چه دا حدیث طهارة ظاهره او باطنه دواړو ته شامل دې. ځکه چه په ظاهری صفایئ سره قلبی صفائی د اهم امور دین نه ده. بلکه د ټولو امور شرعیه دپاره موقوف علیه ده.

او د طهارت دپاره څلور مراتب دی ۱ احداث او اخباث او د فضلاتو نه تطهیر. ۲: د جرائم او آثام نه د اندامونو تطهیر ۳: د اخلاق ذمیمه نه د قلب تطهیر. ۴: د ماسوی الله نه د قلب تطهیر. بیا د دې مراتبو نه د هر یو دوه دوه قسمونه دی!

یو تخلیه چه د هغې طرف ته په مراتب اربعه کښې په ﴿ لِطهر﴾ سره اشاره کړې شوې ده او یو تحلیه یعنې ډولی کول مقصد دا دې چه د مذکوره امور نه دې اندامونه خالی کړې شی او زړه دې د اخلاق ذمیمه او غیر الله نه خالي کولو سره د الله پاک په محبت او عظمت باندې ډولی کړې شی، هم دغه شان د تخلیه او تحلیه دواړو په مجموعې سره ایمان مکمل کیږی او لفظ طهور کوم چه په حدیث کښې دې هغه مراتب اربعه مذکور ته شاملیدلو سره صرف په تخلیه باندې دې کوم چه نصف ایمان دې. یا د طهارت په اجزاء کښې زیادتی او مبالغې لره د ظاهر کولو دپاره نصف الایمان راوړلې شوې دې په حقیقت کښې نصف کیدل مراد نه دی. (فتح الملهم، التعليق، اشعة اللمعات)

**قوله: وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ تَمْلَأُ الْمِيزَانَ:**

**داعمالو په وزن اشکال:** په حدیث شریف کښې په دې جزء باندې او په ﴿ والوزن يومئذ﴾ باندې دا اشکال کیدې شی چه کلمات د هغه اعراضو نه دی کوم چه معدوم او فناء کیږی، یعنی د منطقیانو په اصطلاح کښې کلمات اعراض مستحیلة البقاء دی. بیا الحمد لله یا سبحان الله لکه چه په حدیث کښې مذکور دی څنګه په میزان عدل کښې قابل وزن شو؟

**داشکال جوابونه:** ① د رسول الله ﷺ مقصود دا دې چه که د دې کلماتو او اعمالو ثواب مجسم فرض کړې شی نو میزان عدل به ډک شی.

② اعمال او اقوال اګرچه د دې عالم په اعتبار سره اعراض دی خو د آخرت په اعتبار سره اجسام او جواهر دی، لکه چه په یو روایت کښې دی چه جبریل علیه السلام ایمان او حکمت لره په یو لوښی کښې کیخودلو سره راوړل حال دا چه د دې عالم په لحاظ سره دا دواړه د اعراضو نه دی.

③ نصوص شرعیه د اعمالو د وزن متعلق ناطق دی په دې وجه بغیر د چون وچرا نه منل پکار دی، د کیفیت وزن په تحقیق کښې نه دی لګیدل پکار د ایمان هم دا تقاضه ده.

زبان تازه کردن باقرار تو ::: نه انگیختن علت ازکار تو

پس امام غزالی رحمه الله فرمائی چه د دې جسد عنصری سره چه ترڅو پورې د نفس تعلق دې تر هغه وخته پورې به ورته د حقائق امور انکشاف نه کیږی. چه کله د مرګ په ذریعه هغه لرې شی نو ټول حقائق یعنی داعمالو دوزن کیفیت به معلوم شی ﴿ فسوف ترى اذا انكشف الغبار﴾

④ د جمهورو علماء کرامو په نزد د صحائف اعمال وزن کول مراد دی، لکه چه قاضی بیضاوی لیکلې دی د ابن حبان وغیره روایت دې ﴿ ان الرجل يوتى به الى الميزان فينشر عليه تسعة وتسعون سجلا * ﴾ (یو سړې به میزان عدل ته راوستلې شی د هغه مخکښې به یو کم سل

* لم أجده بهذا اللفظ نعم رأيت في صحيحه حديثا بهذا المعنى : إن الله سيخلص رجل من أمتي على رؤوس الخلائق يوم القيامة فينشر عليه تسعة وتسعين سجلا

رجسټرې پرانستلې شي يعنى اعمال نامې،

⑤ قاضي بیضاوي رحمه الله د بخاري او مسلم نه يو روايت نقل کړې دې چه د هغې حاصل دا دې چه د اشخاصو وزن به کولې شي، روايت دا دې . ﴿ قَالَ عليه السلام إِنَّهُ لَيَأْتِي الرَّجُلُ الْعَظِيمُ السَّمِينُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا يَزِنُ عِنْدَ اللهِ جَنَاحَ بَعُوضَةٍ ﴾ (رسول الله ﷺ اوفرمائيل د قيامت په ورځ باندې به يو پيړ تازه سړې راوستلې شي چه د هغه وزن به د الله پاک په نزد د ماشي د وزر برابر هم نه وي، خو دا حديث غالبا د مرتبې د سپکوالي طرف ته اشاره کوي. بعينه د هغه سړي په ميزان کښې کيخودلو سره وزن کول مراد نه دي.

⑥ د شيخ ابوطاهر قزويني رحمه الله نه منقول دي چه څنګه په دنيا کښې د حرارت او د برودت د تللو دپاره ترماميټر وي هم دغه شان به په آخرت کښې د اعمالو د وزن دپاره څه آله وي دا د الله پاک د قدرت نه بعيده نه ده. (فتح الملهم، بيضاوي) والله اعلم بالصواب.

**قوله: وَالصَّلَاةُ نُورٌ:**

**د نور په مصداق کښې اقوال:**

① مونځ به د قبر په تيرو کښې د رڼړا کار ورکوي، د قيامت په ورځ باندې به رڼړا جوړيدو سره رهنمائي کوي. لکه چه د الله پاک ارشاد دې ﴿ يسعى نورهم بين ايديهم وبايمانهم ﴾

②څنګه د رڼړا په ذريعه انسان د خطراتو نه محفوظ وي هم دغه شان مونځ يو رڼړا ده چه د هغې په ذريعه انسان د معاصي او منکراتو نه بچ کيږي، د الله پاک ارشاد دې ﴿ ان الصلاة تنهى عن الفحشاء والمنكر ﴾

③ د نور نه هغه امر مراد دې چه د هغې په ذريعه به د قيامت په ورځ مصلي هدايت مومي يا د نور نه هغه داغ مراد دې کوم چه به د هغه په تندي باندې د کثرت سجود د وجې نه پيدا شي. يا مانځه ته په دې وجه نور اوئيلې شو چه هغه د اشراق انوار او د معارف او مکاشفات حق دپاره سبب دې کوم چه مصلي ته د مانځه په ذريعه حاصليږي.

(فتح الملهم، التعليق، الاشعة)

**قوله: وَالصَّدَقَةُ بُرْهَانٌ:**

**د برهان په مصداق کښې اقوال:**

① يعنى کله چه د قيامت په ورځ الله پاک سوال کوي چه مال مو چرته خرچ کړو نو صدقه به د دې خبرې دليل جوړ شي چه هغه د الله پاک په لاره کښې خپل مال خرچ کړو نو صدقه به د دې خبرې دليل جوړ شي چه هغه د الله پاک په لاره کښې خپل مال خرچ کړو،

② په صدقه کونکي باندې د قيامت په ورځ باندې څه خاص علامت وي کوم چه به په صدقه باندې دليل جوړيږي. يا به د مصدق دپاره په صدق ايمان باندې صدقه دليل او

برهان وی. ځکه چه صدقه کول خالص د الله پاک د رضا دپاره وی کوم چه د مصدق د صادق فی الایمان کیدو دلیل دې. منافق صدقه نه کوی ځکه چه هغه په خپل ایمان کښې رشتینې نه وی. (فتح الملهم)

**قوله: وَالصَّبْرُ ضِيَاءٌ:**

**د صبر په مصداق کښې څلور اقوال:** ① امام نووی رحمه الله فرمائی چه د صبر نه مراد هغه صبر دې کوم چه په شریعت کښې غوره وی، یعنی صبر په طاعت باندې، صبر د معصیت نه او صبر په مشکلاتو او مصیبتونو. او په دنیا کښې پیښیدونکې ډیر غمژن کونکی واقعات.

② دلته د صبر نه مرادلذات دنیا،اودمعاصی نه تکالیف شرعیه،په مصیبتونواو ازمیښتونو باندې تحمل او برداشت مراد دې. ځکه چه په دې امورو باندې صبر کولو سره انسان د معاصی په تیرو کښې داخلیږی لهذا په صبر کولو سره به ورته یو رڼا حاصلیږی کومه چه به ئې د ګناهونو په تیارۀ کښې د حق خبرې طرف ته رهنمائی کوی.

③ استاذ ابو علی الدقاق رحمه الله فرمائی چه: صبر دا دې چه د الله پاک د طرف نه څه په تقدیر کښې وی په هغې باندې اعتراض اونکړی. خو اظاهر مصیبت نه په طریقه د شکوی د صبر منافی نه دې. پس د سیدنا ایوب علیه السلام د ﴿ وانی مسنی الضر ﴾ وئیلو باوجود د هغوی په باره کښې الله پاک ارشاد اوفرمائیلو ﴿ انا وجدناه صابرا نعم العبد ﴾

④ د صبر نه مراد دلته صلاة دې ځکه چه صبر ته صلاة او صدقه چه د هغې نه زکاة مراد دې د دې دواړو نه پس ذکر کړې شوې دې په ﴿ واستعینوا بالصبر والصلاة ﴾ کښې هم د صبر نه صوم مراد کړې شوې دې. ځکه چه په صوم کښې خپل نفس لره په طاعاتو باندې ایسارول او د شهوت نه بچ کول مقصود دی

**د ضیاء په تفسیر کښې اقوال:** ① یعنی د قبر په ظلمت کښې صبر د نور او رڼا کار ورکوی، ځکه چه کله مومن طاعات او دنیاوی مصائب او معاصی باندې د ضبط او تحمل نه کار واخلی نوالله پاک د هغې په بدل کښې د هغه په قبرکښې د تیرې په ځائې نور او رڼا پیدا کړی.

② په زړه کښې په ئې نور پیدا کیږی بیا ئې په صبر باندې په طور د اجر د ضیاء ذکر اوفرمائیلو ځکه چه ضیاء د نور نه قوی ده لکه چه علامه زمحشری رحمه الله فرمائیلې دی. ﴿ الاضاءة فرط الانارة ﴾ او ضیاء د نور نه ابلغ هم دې، لکه چه د الله پاک ارشاد دې ﴿ جعل الشمس ضیاء والقمر نورا ﴾ او د صبر دپاره د رڼا قوی او ابلغ درجې ته په طور د اجراء په دې وجه ذکر اوفرمائیلې شو چه په جمله واجبات او ممنوعاتو کښې صبر د صلاة نه هم قوی دې او که د صبر نه صوم مراد وی نو په دې صورت کښې به وئیلې شی چه د صوم تعلق چونکه د ورځې سره دې په دې وجه د ورځې چه کومه رڼا قوی ده هغه ئې په طور د اجر ذکر اوفرمائیلو.

بعض اهل علم وئيلي دی چه د صوم په حالت کښې بنده د الله پاک د صفت عدم حاجت مشابه وی او دا د صلاة د اثر او نتیجې نه قوی نتیجه ده ځکه چه په صلاة سره تذلل او انکساری پیدا کیږی دا د صفات عبدیت نه دې نه د صفات معبود نه، په دې لحاظ سره صوم د صلاة نه افضل دې په دې وجه د دې اجر ضياء دې (فتح الملهم، التعليق)

**قوله:** وَالْقُرْآنُ حُجَّةٌ لَكَ أَوْعَلَيْكَ:

**د قرآن حجت جوړيدو مفهوم:** يعنى كه قرآن اولوستلې شو اودَ دې په تعليماتوباندې عمل اوکړې شو نوداد لوستونکی اودَعمل کونکی دَپاره دلیل اوحجت دې چه هغه مؤمن مسلمان او دَ جنت مستحق دې ګنی هم دغه قرآن به په دغه بدعمله باندې دلیل جوړیږی اودَ هغه خلاف به شکایت کوی نوهغه به ناکام شی.

## [۲۸۲] ګناهونه معاف کونکی اعمال

۲۸۲-()[۲][۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-[۲](«أَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى مَا يَمْحُو اللهُ بِهِ الْخَطَايَا[۳] وَيَرْفَعُ بِهِ الدَّرَجَاتِ؟) قَالُوا: بَلَى يَا رَسُولَ اللهِ! [۵] قَالَ: (إِسْبَاغُ الْوُضُوءِ عَلَى الْمَكَارِهِ[۶] وَكَثْرَةُ الْخُطَى إِلَى الْمَسَاجِدِ،[۷] وَانْتِظَارُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الصَّلَاةِ فَذَلِكُمُ الرِّبَاطُ»)

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ (صحابه مخاطب کړل او ورته ئې) وفرمايل [۲] آيا زه تاسو ته هغه شي ونه ښايم چې د هغه په وجه الله جل جلاله ستاسو ګناهونه لرې کړي [۳] او د هغه په سبب (په جنت کې ستاسو) درجات اوچت کړي [۴] صحابو رضي الله عنهم عرض وکړو هو يا رسول الله ﷺ، [۵] حضور عليه السلام وفرمايل د مشقت په وخت (يعني په ناجوړتيا يا په سخته يخنۍ کې) اودس پوره کول [۶] د مسجد طرف ته (د کور څخه د لرې کيدو په وجه) په کثرت سره قدمونه اخستل [۷] او يو مونځ څخه وروسته د دويم مونځ انتظار کول نو دا رباط دي.

**حل اللغات:** ① يَمْحُواللهُ: ورانوی، لرې کوی الله تعالى، مَحْوُالْخَطَايَاكِنَايَةٌ عَنْ غُفْرَانِهَا: دلته محو کنايه ده د بخشش نه. ② إِسْبَاغُ: أَيْ: إِكْمَالُهُ: کامل طريقې سره اودس کولوته وائي. ③ الْمَكَارِهِ: دا جمع د مَكْرَهٍ ده، په معنى د مشقت او تکليف سره، أَيْ: فِي شِدَّةِ الْبَرْدِ: مکاره مکروه او ناخوښه ته وائی دلته ترې مراد يخنۍ يا بيمارۍ کښې اوبو سره اودس کول دی چه دا په انسان بد لګی. ④ الْخُطَى: د خُطْوَةٍ جمع ده، وَهِيَ مَابَيْنَ الْقَدَمَيْنِ: (د دوه قدمونو په مينځ کښې مقدار ته خطوة وائی). ⑤ الرِّبَاطُ: په اسلامی سرحداتو باندې دَ کفر په مقابله کښې څوکيدارئی ته رباط وائی.

---

[۱] اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب فضل إسباغ الوضوء على المكاره (رقم-٤١ - (٢٥١)) و مالک باب انتظار الصلاة والمشى إليها(رقم-٥٥) واحمد فى المسند:٢٧٧/٢ والترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى إسباغ الوضوء(رقم-٥١) والنسائى كتاب الطهارة/باب الفضل فى ذلک (رقم-١٤٣)

**تسهيلات:**

**قوله: أَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى مَا يَمْحُو:** دلته همزه د استفهام دپاره ده. او د لا كلمه د نفى دپاره ده، تنبيه دپاره نه ده ځكه چې ددې په جواب د بلى كلمه راغلې ده، او كوم چه په نفى باندې دليل دې.

**په اعمال صالحه د ګناهونو په معاف كيدو كښې اقوال:**

① امام الحرمين،امام نووى اونور فقهاء رحمهم الله فرمائى چه په اعمال صالحه صرف صغائرمعاف كيږى.() حافظ ابن عبدالبر رحمه الله هم دا قول اختياركړې دې.() قاضى عياض رحمه الله دا قول اهل سنت طرف ته منسوب كړې دې.()

وجه دا ده.چه د كبائرو دمعاف كيدو دپاره اصل قاعده توبه ده.اګرچه ممكن ده.چه الله تعالى په خپل فضل او كرم سره بغيرد توبې نه ئې معاف كړى.

② دابن المنذر رحمه الله رائې دا ده.چه كيدې شى.صغائراوكبائرټول معاف شى. ()

ابن عبدالبر رحمه الله دخپلو بعضې معاصرينو نه هم دا نقل كړى.اوبيا ئې په هغوى باندې رد كړې دې.فرمائى.((وهذا جهل بين،وموافقة للمرجئة فيما ذهبوا إليه من ذلك وكيف يجوز لذى لب أن يحمل هذه الآثار على عمومها وهو يسمع قول الله تعالى ﴿يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا تُوْبُوْٓا اِلَى اللّٰهِ تَوْبَةً نَّصُوْحًا﴾ وقوله تبارك وتعالى ﴿وَتُوْبُوْا اِلَى اللّٰهِ جَمِيْعًا اَيُّهَ الْمُؤْمِنُوْنَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ﴾ في آي كثيرة من كتابه()

مطلب دا دې.چه داحاديثود عموم په وجه ددې خبرې قائل كيدل چه په دې سره به كبائر معاف شى.ښكاره جهالت دې.اودا دمرجئو مسلك دې.دغه شان دوى فرمائى

.((ولوكانت الطهارة والصلاة وأعمال البر مكفرة للكبائر والمتطهر المصلي غير ذاكر لذنبه الموبق ولا قاصد إليه ولا حضرة في حينه ذلك أنه نادم عليه ولا خطرت خطيئة المحيطة به بباله لما كان لأمر الله عزوجل بالتوبة معنى ولكان كل من توضأ وصلى يشهد له بالجنة بإثر سلامه من الصلاة وإن ارتكب قبلها ماشاء من الموبقات الكبائر وهذا لا يقوله حد ممن له فهم صحيح وقد أجمع المسلمون أن التوبة على المذنب فرض والفروض لا يصح أداء شئ منها إلا بقصد ونية واعتقاد أن لا عودة فأما أن يصلي وهو غير ذاكر لما ارتكب من الكبائر ولا نادم على ذلك فمحال وقد قال رسول الله ﷺ الندم توبة وقال ﷺ الصلوات الخمس والجمعة إلى الجمعة كفارة لما بينهن ما اجتنبت الكبائر))()

---

[1]) أوجزالمسالك(۱۲/۲۹۰) الترغيب في الصلاة في رمضان)_
[2]) التمهيد لما في الموطاء من المعاني والأسانيد (٤٤/٤-٤٩) حديث تاسع لزيدبن أسلم (۱۰۶/۷) حديث رابع لابن شهاب عن أبي سلمة)_
[3]) شرح نووى على صحيح مسلم(۱۲۱/۱) كتاب الطهارة باب فضل الوضوء والصلاة عقبه)_
[4]) أوجزالمسالك(۱۲/۲۹۰)_
[5]) التمهيد(٤٤/٤)_
[6]) التمهيد(٤٤/٤، ٤٥)_

③ بعضي عالمان ﷺ فرمائي.چه په اصل کښې خو صغائرمراد دي.خوکيدې شي.چه دچا صغائر نه وي.يا ډيرې کمې وي.نوممکن ده.چه په کبائروکښې تخفيف اوشي.(¹) خوحقيقت دا دې.چه قاعده جدا څيزدې.اوعدل اواحسان جدا څيزدې.قاعده خو هم دغه ده.چه کله سړې توبه اوباسي.نومعافي کيږي ګني نه کيږي.خودخسرودي مهربانواو د شاهي احساناتو معامله جدا خبره ده.که الله تعالى سبحانه وتعالى دچا په نيکو اعمالو باندې دهغه د کبائرو معافي اوکړي.نوڅوك تپوس کولوالا شته؟ البته دا خبره شته.چه نيک عمل هم نيک عمل وي يعني داسې نيک عمل وي.چه په هغې باندې الله تعالى خوشحاله شي.ګناهونه پرې معاف کيږي.خوپه دې اعتماد باندې داسې هرګز نه دي کول پکار،چه ګناه کوي.يا ګناه کوي.اوتوبه نه اوباسي.دا څومره د بې حيائې خبره ده.چه د رب کريم نافرماني کوي.اوهغه ته دپښيمانتيا څټ نه ښکته کوي!!

**قوله:** إِسْبَاغُ الْوُضُوءِ:

**داسباغ درې درجات:** د اسباغ معنى په لغة کښې د اتمام ده د دې درې درجې دي.

① **اتمام باستيعاب المحل** (د غسل د محل راګيرول په وينځلو سره) يوکرت وينځل داواجب دي.

② تکرار الغسل ثلاثًا دا سنت دې خو امام نووي رحمه الله فرمائي چه په درېو باندې زيادت کول په اتفاق د علماء کرامو مکروه دي، د علامه ابن عابدين نه منقول دي چه په درېو باندې زيادت بدعت، او په فتاوی تاتارخانيه کښې هم داسې دي، په درمختار کښې دي چه که په درېو باندې اضافه د طمانيت قلب دپاره اوکړې شي نو په دې کښې څه حرج نشته، لکه چه د رسول الله ﷺ ارشاد دې (دع ما يريبك الى ما لا يريبك) چه د هغې مطلب دا دې چه چه د کوم عمل په کيدو يا نه کيدو کښې شک پيدا شي هغه دې تر هغه وخته پورې اوکړې شي ترڅو پورې چه شک ختميدلو سره يقين او طمانيت حاصل شي. (فتح الملهم)

③ بله داچه دقيامت په ورځ د نوردزيادت دپاره دحد مقررنه لږزيات وينځل مستحب دي،

**قوله:** عَلَى الْمَكَارِهِ:

**د مکاره درې صورتونه:** د دې درې صورتونه دي:

① چه کوم وخت اوبه نه ملاويږي طلب کول راشي.

② د قيمت نه زياتي اخستل راشي.

③ د يخنۍ يا بدني تکليف په وجه باندې د اوبو استعمال ګران وي. (فتح الملهم. فيض الباري)

¹) اوجز المسالک (۱۲۰/۱)_

**قوله: وَكَثْرَةُ الْخُطَى:**

**د كثرة الخطا په مفهوم كښې دوه اقوال:**

① ددې ځخه مراد مسجدته ډير تلل راتلل دی، مونځ دپاره يا هسې عبادت دپاره يا مسجد سره ئې محبت دې او بار بار تګ راتګ کوی

② چې لرې علاقې ځخه مونځ له راځی نو زيات قدمونه اخلی کوم سره چه په ثواب کښې اضافه کيږی.

**قوله: وَانْتِظَارُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الصَّلَاةِ:**

**د انتظار دوه صورتونه:** ① يعنی باجماعت يا منفردا مونځ لوستلو سره په جمات کښې په خپل ځائې باندې د بل مانځه دپاره انتظار کول.

② د جمات نه مونځ کولو سره اوځی مګر د هغه زړه د بل مانځه د حاضرئ دپاره په مسجد پورې معلق وی. لکه چه په يو روايت کښې راځی چه اووۀ کسان به الله پاک د قيامت په ورځ په خپل سوری کښې واخلی په داسې حال کښې چه بل به هيڅ سورې نه وی، په هغوی کښې يو سړې هغه دې چه د هغه زړه په جمات پورې معلق وی (اګر چه د هغه بدن د جمات نه خارج ولې نه وی).

**قوله: فَذَلِكُمْ:**

**د ..ذا .. اسم اشاره تحقيق:** دلته په دې خبره پوهيدل پکار دی چې ذا اسم اشاره ده. او د کم ضمير د مخاطب په اعتبار سره راځی. که مخاطب مفرد دې نو ذالك راځی ، تثنيه وی نو ذلكما راځی او که جمع وی نو ذالكم راځی.ددې ترجمه داسې کيږی، دا چې کوم کار دې تاسو- يو يا دوؤ يا ټولو ته وايم . فذالكن زليخې وئيلی وو دا چې کوم کار دې تاسو ټولو ښځوته وايم ،نونبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې كهف تهكن يعنی دا عائشه ځنګه ده تاسوته وايم.

**قوله: الرِّبَاطُ:**

**د ثواب په اعتبار سره رباط:** چونکه دې کس خپل ځان او خپل آس هلته پابند کړی دی يعنی تړی ئې دی. په دې وجه دا د رباط اصل مفهوم او مصداق دې. بيا په شريعت کښې ددې ډير زيات ثواب دې ، لهذا هغه ثواب دلته په دې انتظار کښې ناست بنده ته الله تعالی ورکوی. نودا دثواب په اعتبار سره رباط شو. اصل رباط خو په سرحداتو باندې وی.

۲۸۳-(¹)[٥] ١ وَفِي حَدِيثِ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ: ٢ («فَذَلِكُمُ الرِّبَاطُ فَذَلِكُمُ الرِّبَاطُ) رَدَّدَ مَرَّتَيْنِ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.
٣ وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ ثَلَاثًا.

---

(¹) اخرجه مالک کتاب قصر الصلاة فی السفر .باب انتظار الصلاة والمشی إليها(رقم-٥٥) والترمذی كتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فی إسباغ الوضوء(رقم-٥٢)

**ترجمه:** [۱] او د مالك بن انس ﷺ په حديث كې [۲] نو دا رباط دي نو دا رباط دي دوه خله دي (مسلم) [۳] او د ترمذي په روايت كې درې خله دي.

**حل اللغات:** ① الرِّبَاطُ: أي الجِهَادُ: په اسلامی سرحداتو باندې دَ كفر په مقابله كښې څوكيدارئی ته رباط وائی. ② رَدَّدَ: أيْ: كَرَّرَ: تكرار ئې اوكړو، دوباره ئې اوونيل.

**[۲۸۳] په ښه طريقه دا اودس كولو په فايده**

۲۸۳- ()[۳] [۱] وَعَنْ عُثْمَانَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] «مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ [۳] خَرَجَتْ خَطَايَاهُ مِنْ جَسَدِهِ [۴] حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ أَظْفَارِهِ»: مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] عثمان رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چې اودس وكړو او په ښه شان يي وكړو (يعني د هغې د سننو او مستحباتو د رعايت سره) [۳] نو د هغه (صغيره) گناه د هغه د بدن څخه وځي [۴] تردې چې د هغه د نوكونو د لاندې څخه هم گناه وځي. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ:** يعنی په شان ئی اودس اوكړو، په ښه شان اودس څخه مراد دادې چې د فرائضو، سنتو او مستحباتو پور اپورا خيال اوساتلې شی. او په دې كښې د هيڅ قسمه كراهت ارتكاب اونه كړی.

**قوله: خَرَجَتْ خَطَايَاهُ:**

**د خروج په معنی كښې درې اقوال:** ① چونكه خطايا د اجسام د قبيل نه دی په دې وجه امام نووی، ابن العربی نه په شرح د ترمذی كښې نقل فرمائيلې دی چه دلته په خروج د خطايا سره مجازا او استعارة معاف كيدل مراد دی ځكه چه خطايا اعراض او افعال دی او اعراض او افعال د دخول و خروج سره نه شی متصف كيدلې.

② علامه سيوطی رحمه الله فرمائی چه ظاهره دا ده چه خروج د خطايا دې په حقيقت باندې محمول كړې شی ځكه چه په گناهونو سره په ظاهر او باطن كښې سياهی پيدا كيږی چه په هغې باندې ارباب احوال ومكاشفات خبريږی. او ترمذی، نسائی، ابن ماجة او حاكم هم د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت نقل كړې دې چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو: إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا أَخْطَأَ خَطِيئَةً نُكِتَتْ فِي قَلْبِهِ نُكْتَةٌ سَوْدَاءُ (چه كله بنده گناه كوی نو د هغه په زړه باندې يو تور داغ اولگولې شی) او د احمد بن خزيمه په روايت كښې دی «ان الحجر الاسود سَوَّدَتْهُ خَطَايَا الْمُشْرِكِيْنَ» (بيشكه حجر اسود د مشركانو گناهونو تور كړې دې (چه كله به هغوی دا په خپلو لاسونو سره مس كولو) اوس په خروج د خطايا سره د اثر سواد خروج او زوال مراد دې.

[۱] اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب خروج الخطايا مع ماء الوضوء (رقم-۳۳ - (۲۴۵)) واحمد فی المسند: -۱/۶۶

③ شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله فرمائی چه څنګه په عالم کښې اعراض مجسم کیدو سره محفوظ وی، هم دغه شان د الله پاک د قدرت نه هیڅ بعید نه دی چه زمونږ اندامونو او اوبو په ذریعه اعمال محفوظ پاتې شی. څنګه چه دا بعیده نه ده هم دغه شان ګناهونه کوم چه په انسان کښې موجود وی هغه د اندامونو نه په وخت د اودس خارج شی دا هم بعیده نه ده ځکه چه هغه د اول نه په بدن کښې موجود او محفوظ دی.(فتح الملهم ۲۰۹، التعلیق)

**اشکال:** ددې حدیث نه خو معلومیږی چه د اودس په ذریعه د ټول بدن نه ګناهونه ساقطیږی تردې چه د نوکونو د لاندې نه هم او د نورو احادیثو نه معلومیږی چه صرف د اودس په اندامونو سره ګناه ساقط کیږی لکه چه فرمائی ﴿ خرج من وجهه کل خطیئة نظر الیها الخ﴾

**داشکال جواب:** د سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما نه مرفوعا روایت دې چه ﴿ من توضأ وذکر اسم الله علیه کان طهورا لجمیع بدنه ومن توضأ ولم یذکر اسم الله علیه کان طهورا الاعضاء وضوئه * ﴾ دارقطنی او بیهقی دا روایت کړې دې. اګر چه په حدیث کښې بعض راویان متروک دی خو د کثرت طرق د وجې نه دا روایت قوی او قابل استدلال دې. (بذل المجهود)

**قوله:** مِنْ تَحْتِ أَظْفَارِهِ:

**د تحت اظفار نه مقصد:** دا دمبالغې په توګه استعمال شوې دې چې ګناهونه بالکل ختمیږی، تر دې چې د نوکونو د لاندې څخه هم اوزی. دا محاوره داشان ده لکه څنګه چې وائی: ستا تکبر ستا دپوزې څخه اوباسم.

**د خطایا مصداق:** ددې څخه صغیره ګناهونه مراد دی. کبائر د توبې نه بغیر نه معاف کیږی. ځکه چې حدیث پاك کښې د ﴿مالم یؤت کبیرة ﴾قید په صراحت سره موجود دې خو که د اودس په وخت کښې ئې توبه اوکړه نو معاف به شی ، که توبهَ ئې اونه کړه نو صغائر به ټول معاف شی . او کبائر به کمزوری پاتې شی .

**د خطایا د اطلاق وجه:** شریعت نصوص مطلق پرېښودی دی. اود صغائر قید ئې نه دې ذکر کړې ځکه چې دشریعت په نظر کښې د مسلمان شان دادې چې دده په ذمه دې یوه کبیره ګناه بالکل نه وی یا ده کبیره ګناه نه ده کړې. او یا که اوشی نو دې په هغې ډیر خفه وی او توبه اوباسی . لهذا د اودس په وخت کښې صغائر معاف کیږی کبائر نه.

**اشکال:** هرکله چې اودس سره ټول صغائر ګناهونه اووینځلې شی نو بیا مسجد ته په تللو او په نوافلو سره کوم ګناهونه معاف کیږی. حالانکه هلته هم د معافی ذکر دې؟

**د اشکال جواب:** دَصغائرو ارتکاب هر وخت کیدې شی.نونوروعملونو سره به هغه معاف کیږی. یا اودس نهَ پس به په نورو عملونو سره دده درجات اوچتیږی او اودس سره به

---

* اسناده ضعیف.

صغائر معاف کیږی. یا اودس سره څه خاص قسم گناهونه معاف کیږی. او څه نور قسمونه گناهونه به په مونځ سره معاف کیږی.

### [۲۸۵] د ګناهونو په معاف کولو کښې د اودس کردار

۲۸۵-(۳)[۱] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «إِذَا تَوَضَّأَ الْعَبْدُ الْمُسْلِمُ - أَوِ الْمُؤْمِنُ - ۳ فَغَسَلَ وَجْهَهُ خَرَجَ مِنْ وَجْهِهِ كُلُّ خَطِيئَةٍ ۴ نَظَرَ إِلَيْهَا بِعَيْنَيْهِ مَعَ الْمَاءِ أَوْ مَعَ آخِرِ قَطْرِ الْمَاءِ، ۵ فَإِذَا غَسَلَ يَدَيْهِ خَرَجَ مِنْ يَدَيْهِ كُلُّ خَطِيئَةٍ كَانَ بَطَشَتْهَا يَدَاهُ ۶ مَعَ الْمَاءِ أَوْ مَعَ آخِرِ قَطْرِ الْمَاءِ، ۷ فَإِذَا غَسَلَ رِجْلَيْهِ، خَرَجَ كُلُّ خَطِيئَةٍ مَشَتْهَا رِجْلَاهُ مَعَ الْمَاءِ، أَوْ مَعَ آخِرِ قَطْرِ الْمَاءِ، ۸ حَتَّى يَخْرُجَ نَقِيًّا مِنَ الذُّنُوبِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ هرکله چې یو بنده مسلمان یامومن د اودس اراده وکړي ۳ او خپل مخ وینځي نو د هغه ټول ګناهونه د هغه مخ په وینځلو سره ووځي ۴ چې هغه طرف ته یي سترګو کتلي وي په اوبو سره یا د اوبو د آخري قطري سره اوځی (یعني کوم ګناهونه چې یي سترګو سره کړي وي ورژیږي) ۵ بیا چې دواړه لاسونه وینځي نو د لاسونو ټول ګناهونه چې د هغه لاسونو نیولي وو د هغه د لاسونو څخه خارج کیږي ۶ داوبوسره یا د اوبو د آخري قطري سره اوځی (یعني کوم ګناهونه چې لاسونو کړي وي وژړیږي) ۷ بیا چې دواړه پښې وینځي نو ټول ګناهونه چې هغه طرف ته یي پښې تللي وي د اوبو سره یا وي فرمایل د اوبو د آخري قطري سره اوځي ۸ تر دي چې هغه د ګناهونو څخه پاك شي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① بَطَشَتْهَا: أَيْ: أَخَذَتْهَا: چه نیولی وی (لاسونو دده). ② قَطْرِ: څاڅکي، ③ مَشَتْهَا: أَيْ: مَشَتْ بِهَا إِلَى الْخَطِيئَةِ: چه ګناه طرف ته ئې پرې تلل کړې وی. ④ نَقِيًّا: أی طَاهِرًا مِنَ الذُّنُوبِ: پاک صفا شی دګناهونونه.

**تسهیلات:**

**قوله: نَظَرَ إِلَيْهَا بِعَيْنَيْهِ**

**د سترګو په تخصیص کښې دوه وجوهات:** ① علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه غوږونه اوخله دواړه هم په وجه یعني مخ کښې داخل دی مګردَدې ذکرئی دلته اونه کړوحالاتکه دَدې نه هم ګناه کیږی صرف دَ سترګودګناه ذکرئی اوکړو ځکه چه سترګې په بدن کښې دَ زړه دپاره دَټولونه لوئی جاسوس دی او دګناه په ارتکاب کښې دې ته امتیازی مقام حاصل دې. کله چه دَسترګوګناه په اودس سره اوینځلې شوه نو دَ باقی اندامونو مثلاً پوزې غوږونو اوژبې

---

[1] مسلم کتاب الطهارة باب خروج الخطایا مع ماء الوضوء(رقم-۳۲ - (۲۴٤)) اخرجه دارمی کتاب الطهارة باب التسمیة فی الوضوء (رقم-۷۱۸) ومالک کتاب الطهارة باب جامع الوضوء(رقم-۳۱) والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل الطهور(رقم-۲)

ګناه به په طريقه اولى سره خارجيږی.

۲ دَ پوزې او دَ خلې ګناه په مضمضه او استنشاق سره اوځی او دَ غوږونو ګناه په مسح سره خارجيږی په دې وجه دلته صرف دَ ستر ګو د ګناه دَ خروج ذکر دې

**قوله**: أَوْمَعَ آخِرِقَطْرِ الْمَاءِ:

**د کلمه ،،أَوْ،، په حيثيت کښې دوه اقوال:**

۱ يعنى دَاوبو په آخرى څاڅکى سره ګناه ختميږی. دلته اوشك دَ راوی دَپاره هم کيدې شی

۲ او دَ تنويع دَپاره هم اخستلې شی.

**قوله**: حَتّٰى يَخْرُجَ:

**اشكال**: چه دَتولو ګناهونونه پاك شونو بيا مشى الى المسجد او صلوة دَ کوم څيز دَپاره کفاره جوړيږی؟

**د اشكال دوه جوابونه**: ۱ ممکن دى چه مونځ دکبائرو دَ پاره کفاره جوړ شی چه ورسره توبه يو ځائى شى يا مونځ د کبائر کمزورې کولو کار اوکړی يا دَ رفع درجات کار اوکړی.

۲ ممکن ده بعضې قسم صغائر په اودس سره وينځلې شوې وی او بعضې به په مانځه سره اووينځلې شی.

**قوله**: نَقِيًّا:

**د نقياً تر کيب**: داحال واقع دې که دَاودس په شروع کښې ئى بسم الله اووئيله ښه نيت ئى اوکړو نوپوره بدن به ئى پاك شی ګنى دَاودس اندامونه به پاك شی لکه چه په بل حديث کښې راغلى دى

**[۲۸۶] د ګناهونو په معاف کولو کښې د مونځ کردار**

۲۸۶-(۱) [۵] ۱ وَعَنْ عُثْمَانَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۲ «مَا مِنَ امْرِءٍ مُسْلِمٍ تَحْضُرُهُ صَلَاةٌ مَكْتُوبَةٌ ۳ فَيُحْسِنُ وُضُوءَهَا وَخُشُوعَهَا وَرُكُوعَهَا، ۴ إِلَّا كَانَتْ كَفَّارَةً لِمَا قَبْلَهَا مِنَ الذُّنُوبِ ۵ مَا لَمْ يُؤْتِ كَبِيرَةً، ۶ وَذٰلِكَ الدَّهْرَ كُلَّهُ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت عثمان رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ کوم مسلمان چې د فرض مونځ وخت راشی ۳ نو په ښه شان اودس وکړي او په لمانځه کې ښه خشوع او ښه رکوع وکړي ۴ نو (د هغه دا لمونځ) د هغه ګناهونو کفاره شي چې هغه د لمانځه څخه مخکې کړي وو ۵ په شرط د دې چې هغه ګناه کبيره نه وي کړی ۶ او داسې هميشه کيږي (يعني هغه مونځ چې د ګناهونو کفاره وه د څه زماني سره مخصوص نه دي دا فضيلت په هره زمانه کې قايم وي). (مسلم)

(۱) ومسلم كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء والصلاة عقبه (رقم-۷ - (۲۲۸)

**حل اللغات:** ① تَحْضُرُهُ: أَيْ يَأْتِي وَقْتُهَا: یعنی دمونځ وخت راشی ② مَكْتُوبَةٌ: أَيْ: مَفْرُوضَةٌ: فرض مونځ، ③ فَيُحْسِنُ: بِأَنْ يَأْتِيَ بِفَرَائِضِهِ وَسُنَنِهِ: د ښائسته اودس نه مراد ددې فرائض او سنت وغیره دی چه ددې ټولو آدابو لحاظ اوساتی ④ كَفَّارَةً: وَهِيَ مَا يَسْتُرُ الذُّنُوبَ: د کفاره نه مراد گناهونه رژول او ختمول دی. ⑤ كَبِيرَةً: غټه گناه، ⑥ الدَّهْرَ: زمانه

**تسهیلات: قوله: وَخُشُوعَهَا:**

**د خشوع تعریف:** یعنی ظاهری اوباطنی عاجزئی سره مونځ اداکړی، چه اندامونه په آرام وی اوزړه متوجې وی او نظرد سجدې په ځائی باندې ورښکته شوې وی

**قوله: وَرُكُوعَهَا:**

**د رکوع د تخصیص درې وجوهات:** ① دَ رکوع ذکراوشو دَسجدې ذکراونه شو ځکه چه دَ رکوع نه پس سجده راځی نودَ ځان له ذکر ضرورت نه وو

② قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه دَ رکوع په خاص توگه ذکرکول دَدې دَپاره ووچه دا دَ مسلمانانو یوخاص شعاردې.

③ رکوع دَ سجدې نه زیاته گرانه وه په دې وجه ئی په خاص توگه داذکرکړه

**قوله: مَا لَمْ يُؤْتِ كَبِيرَةً:**

**د مالم یؤت مفهوم:** دادَ استثناء په ځائی کښې دې یعنی إلا الكبيرة دکبیره نه علاوه به گناه معاف کیږی ځکه چه دکبائردَمغفرت دَپاره توبه کول ضروری دی.

**په نیکو اعمالو د گناهونو په معافی کښې اقوال:** ① دکبائر او صغائر معامله په الله تعالی باندې پریخودل پکاردی اودَ احادیثو ظاهری الفاظ خپلول پکاردی.

② متقدمین علماء فرمائی چه دا معامله الله تعالی ته حواله ده

③ متاخرینودَ صغائراوکبائرفرق کړې دې ځکه چه په احادیثوکښې دَدې ذکر راغلې دې لهذا صغائرمعاف اوکبیره نه،

④ بعضو تطبیق کړې دې چه دَلغت په اعتبارسره ذنوب اوسیئات کښې فرق کول پکاردی یعنی ځنگه چه په لغت کښې ذنب هغه گناه ته وائی چه دَ عیب سبب وی "الذنوب العیوب" او "الخطایا" هغه گناه ته وائی چه دَصحیح برعکس غلطی وی. "معصیت" نافرمانئی ته وائی او"سیئات" دَ بدئی په معنی کښې دې. نودَټولونه دَاعلی درجې گناه "المعاصی" دی دَدې نه پس په دوئم نمبرباندې "الاثم" دې اودَدې نه پس په دریم نمبر "السیئات" دی بیا په ځلورم نمبر باندې "الخطایا" دی او په پنځم نمبر "الذنوب" دی. نوچه کوم لفظ په احادیثوکښې کوم ځائی راځی دَهغې دَمفهوم په اعتبارسرمعنی مراداخستل پکاردی که دَ صغیره لفظ وی نو

صغیره دي مراد واخستلي شي اوکه لفظ کبیره وي نو کبیره گناه دي مراد واخستلي شي

**قوله:** وَذٰلِكَ الدَّهْرَ كُلَّهُ:

**د مذكور ه جملې مفهوم:** يعنى دَمانځه كفاره كيدل دَيو زمانې سره خاص نه دى اونه يو خاص فرض مونځ سره خاص دى بلكه د دَهرې زمانې دَپاره دى او دَهر فرض مونځ دَپاره دي.

**[۲۸۷] د ګناهونو په معاف کولو کښې د اودس کردار**

۲۸۷—(۱)[٦] ١ وَعَنْهُ، ٢ أَنَّهُ «تَوَضَّأَ فَأَفْرَغَ عَلَى يَدَيْهِ ثَلَاثًا ٣ ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ، ٤ ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا ٥ ثُمَّ غَسَلَ يَدَهُ الْيُمْنَى إِلَى الْمِرْفَقِ ثَلَاثًا، ٦ ثُمَّ غَسَلَ يَدَهُ الْيُسْرَى إِلَى الْمِرْفَقِ ثَلَاثًا، ٧ ثُمَّ مَسَحَ بِرَأْسِهِ ٨ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَهُ الْيُمْنَى ثَلَاثًا ثُمَّ الْيُسْرَى ثَلَاثًا ٩ ثُمَّ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ نَحْوَ وُضُوئِي هٰذَا.

**ترجمه:** ١ او د حضرت عثمان رضی الله عنه په باره کې منقول دي ٢ چې هغه يو ځل اودس وکړو نو اول يي په خپلو لاسونو درې ځله اوبه واچولي ٣ او بيا يي درې ځله خله ووينځله او پوزه يي صفا کړه (يعني په پوزه کې د اوبو اچولو څخه وروسته يي پوزه سونړ کړه) ٤ بيا يي درې ځله مخ ووينځلو ٥ بيا يي درې ځله خپل ښي لاس تر څنګلو پورې ووينځلو (يعني د څنګلو سره) ٦ بيا يي درې ځله ګس لاس تر څنګلو پورې ووينځلو ٧ بيا يي په سر مسح وکړه ٨ بيا يي ښي پښه درې ځله ووينځله بيا يي ګسه خپه درې ځله ووينځله، ٩ بيا حضرت عثمان رضی الله عنه وفرمايل ما حضور صلی الله علیه وسلم په دغسې اودس کولو باندې ليدلي دي څنګه چې اوس ما اودس وکړو

**حل اللغات:** ① فَأَفْرَغَ: أَيْ: صَبَّ الْمَاءَ: اوبه ئې واړولې، ② تَمَضْمَضَ: خُله وينځل، اى تَحْرِيكُ الْمَاءِ فِي الْفَمِ: په خوله کښې اوبه خوزولو، شړپولو ته وائى. ③ اسْتَنْثَرَ: پوزه سونړ كول، هُوَ إِخْرَاجُ الْمَاءِ مِنَ الْأَنْفِ بَعْدَ الِاسْتِنْشَاقِ: پوزه کښې داوبو اچولو نه پس واپس راويستلو ته انتثار وائى. استنشاق پوزه کښې اوبه اچول، وَهُوَ جَذْبُ الْمَاءِ بِالنَّفَسِ إِلَى الْأَقْصَى: په ساه اخستلوسره اوبه رابښکل چه د پوزې زيزمو يعنى ويخ ته اورسى دې ته استنشاق وائى، ④ الْمِرْفَق: څنګل،

١ ثُمَّ قَالَ: (مَنْ تَوَضَّأَ وُضُوئِي هٰذَا، ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ ٢ لَا يُحَدِّثُ نَفْسَهُ فِيهِمَا بِشَيْءٍ، ٣ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ») ٤ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَلَفْظُهُ لِلْبُخَارِيِّ.

**ترجمه:** ١ بيا يي وفرمايل کوم سړي چې زما د دې اودس پشان اودس وکړي [يعني د فرائضو او سننو او مستحباتو او د آدابو رعايت وکړي] بيا دوه رکعاته مونځ وکړي ٢ او په لمانځه کې د خپل زړه سره خبرې ونه کړي [يعني په پوره توجه سره مونځ وکړي] ٣ نو د

(۱) بخارى كتاب الوضوء باب: الوضوء ثلاثا ثلاثا(رقم-۱۵۹) ومسلم كتاب الطهارة . باب صفة الوضوء وكماله(رقم-۳ - (۲۲۶)) واحمد فى المسند:-۱/۶۶ والنسائى كتاب الطهارة/باب بأى اليدين يتمضمض؟باب الوضوء ثلاثا ثلاثا (رقم-۸۵)۲۸۷ - (وعنه) : أي: عن عثمان (أنه توضأ فأفرغ) : من الإفراغ عطف على سبيل البيان على المبين أي: صب الماء (على يديه ثلاثا) : أي: فغسلهما إلى رسغيه (ثم تمضمض) : أي: ردد الماء فى فمه :-(واستنثر) .

هغه ټول مخکني ګناهونه بخښل کیږي ④ (بخاري مسلم، ددې روایت الفاظ دبخاري دي.)

**حل اللغات:** ⑤ لَا يُحَدِّثُ : أَيْ: لَا يُكَلِّمُهَا: خبرې اونه کړي، ددې نه مراد زړه کښې قصداً خیالات راوستل دي. ⑥ مَاتَقَدَّمَ: چه مخکښې ئې کړی وی (یعنی صغیره ګناهونه).

**تسهیلات:**

**قوله:** ثُمَّ مَسَحَ بِرَأْسِهِ:

**دسرپه مسح کښې په عدم تثلیث باندې استدلال:** دې حدیث پاك کښې د اودس د اندامونو درې ځل د وینځلو ذکر راغلې دې خو دمسح ذکر سره دریو ځلو ذکر نه دې راغلې. ددې څخه معلومه شوه چې درې ځل مسح کول او په مسح کښې تثلیث کول څه مسنون حکم نه دې او هم دا د احنافو مسلك دې. ددې تفصیل به روستو راځی. دلاسونو او مخ په وینځلو کښې هیڅ اختلاف نشته دې. خو مضمضه او استنشاق کښې اختلاف دې ، او کوم چه روستو راروان دې.

**قوله:** لَا يُحَدِّثُ نَفْسَهُ:

**د یحدث په تاویل کښې دوه اقوال:** ① که څه خبره د دې دواړو رکعتونو ترمینځه د هغه په زړه کښې راشی او هغه د دې نه اعراض کوی نو هیڅ باک نشته بلکه د کوم فضیلت چه ذکر کړې شوې دې هغه به هغه ته حاصل وی. دا په دې وجه چه الله پاک د دې امت نه هغه خواطر (د زړه وسوسې) معاف کړې دی (الطيبي)

په فتح الباری کښې دی چه لفظ د ﴿ يحدث ﴾د بنده د طرف نه په کسب (په خپل اختیار باندې زړهٔ کښې څه خبره پیدا کولو) باندې دال دې. مطلب دا دې چه په دې شرط چه بنده په خپل اختیار او کسب سره څه خبره په زړه کښې رانولی او کومې وسوسې ئې چه په خپله په زړه کښې پیدا کیږی هغه د معفو عنها په درجه کښې دی.

② یرمادی په شرح العمدة کښې فرمائی چه د ﴿ لا يحدث ﴾ مناسب تاویل دا دې چه داسې خیالات رانولی کوم چه د مانځه سره متعلق نه وی.

**اشکال:** عمر رضي الله عنه په یو موقع باندې اوفرمائیل چه زه په مانځه کښې لښکر تیاروم. دا د لښکر تیارول خو مانځه سره متعلق نه دې؟

**د اشکال دوه جوابونه:** ① امام ترمذی رحمه الله په کتاب الصلاة کښې د ﴿ ای بشيء من الدنيا ﴾لفظ راوړې دې چه د هغې مطلب دا دې چه د دنیوی امورو متعلق څه خیال رانولی، د امور آخرت متعلق او په آیت کریمه کښې په تدبر او تفکر سره هیڅ باک نشته. او د سیدنا عمر رضي الله عنه د لښکر تیارول هم د اخروی امورو سره متعلق دی.

② علامه ابن تیمیه رحمه الله فرمائی چه سیدنا عمر رضي الله عنه د امیر المومنین کیدو د وجې نه امیر

الجهاد هم وو نو د بعض وجوه په بناء هغوى د هغه مونځ كونكى په شان شو كوم چه د دشمن په مقابله كښې صلاة خوف لولى چه په هغه باندې حسب الامكان د دوه واجباتو د آدائيګۍ حكم وى يو صلاة، دويم جهاد، او دا بديهى خبره ده چه د امن په حالت كښې چه كوم طمانيت قلب وى هغه د جهاد په حالت كښې نه شى كيدې اوس كه د جهاد د امورو د وجې نه په مانځه كښې څه نقص پيدا شى نو هغه به د كمال ايمان او كمال صلاة دپاره قادح نه وى. هم دا وجه ده چه په صلاة الخوف كښې په مقدار ركعات كښې تخفيف كړې شوې دې خو په دې تخفيف سره كوم چه د كميت تخفيف دې د مانځه په كمال كښې هيڅ نقص نه راځى. هم دغه شان تخفيف كيفى يعنى د حضور قلبى په نقص سره به هم څه حرج نه راځى. بله دا چه د خلقو په احوالو كښې هم تفاوت دې، كه د چا ايمان قوى وى نو هغه به په امور ضروريه كښې د تدبر او تفكر باوجود حاضر القلب فى الصلاة پاتې كيدې شى او بيا د عمر رضي الله عنه متعلق به څه وائې ؟ (فتح الملهم، التعليق الصبيح)

**[۲۸۸] په ښه طريقه سره اودس او دوه ركعته مونځ كولو سره د جنت وجوب**

۲۸۸ —(۱)[٤] ۱ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۲ ((مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَتَوَضَّأُ، فَيُحْسِنُ وُضُوءَهُ، ۳ ثُمَّ يَقُومُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ، ٤ مُقْبِلًا عَلَيْهِمَا بِقَلْبِهِ وَوَجْهِهِ، إِلَّا وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ)). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ عقبه بن عامر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ كوم مسلمان چې اودس اوكړى او په ښه شان اودس وكړي ۳ بيا ودريږي دوه ركعاته مونځ وكړي ٤ په زړه او مخ سره متوجه كيدو سره [يعني ظاهر او باطن سره متوجه كيدو سره] نو د هغه د پاره جنت واجبيږي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① رَكْعَتَيْنِ: دَدوو ركعتونه مراد تحية الوضوء اوتحية المسجد دى. ② مُقْبِلًا: د اسم فاعل صيغه ده د باب افعال نه، چه مخ كړې ئې وى، يعنى متوجه وى.

**د راوي مختصر تعارف:**

د حديث د راوى نوم حضرت عقبه بن عمرو انصارى رضي الله عنه وو كنيت ئې ابومسعود وو په عقبه ثانيه كښې ئې اسلام قبول كړې وو په جنګ بدر كښې ئې شركت كړې دې هم دا خبره امام بخارى رحمه الله وغيره محدثينو نقل كړې ده بعضو وئيلى دى چه دې په مقام بدر كښې وو. د دې وجې په بدرى باندې مشهور شوې وو.

د نبى كريم ﷺ په زمانه كښې اود دغه شان د خلافة ثلاثه په دور كښې هم په مدينه كښې اوسيدلو. د حضرت على رضي الله عنه په زمانه كښې دوى كوفې ته منتقل شو. كله چه حضرت على رضي الله عنه د جنګ صفين دپاره روانيدلو نو دې ئې په كوفه كښې خپل نائب پريخودې وو

---

(۱) اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب الذكر المستحب عقب الوضوء (رقم-۱۷ – (۲۳٤)) واحمد فى المسند:- ٤/۱۵۳

**وفات:** په ۴۰ هجرى كښې وفات شوې وو بعضې حضراتو دامير معاويه رضي الله عنه په زمانه كښې د دوى وفات خودلې دې خو اول قول اصح دې.

**مرويات:** د دوى نه ۱۰۲ احاديث نقل دى.

**تسهيلات: قوله:** إِلَّا وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ:

**د وجوب جنت وضاحت:** يعنى دَدې دوو ركعتو خاصيت دادې چه جنت به واجب شى ليكن په آخرت كښې فيصله په معجون مركب باندې كيږى. نوصرف دې ركعتونوته به نه شى كتلې بلكه نور حسنات اوسيئات ملاوولوسره به په حد اوسط اوستلې شى اوبيابه فيصله كيږى. بهرحال دَځه دنياوى خيال نه پاكيدوسره دوه ركعته كول هم څه آسان كارنه دې. إلامن رزقه الله.

**[۲۸۹] اودس كونكي او د جنت اته دروازي خلاصيدل**

۲۸۹ـ()[۸] ۱ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ ـ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ـ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ ۲ ((مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ يَتَوَضَّأُ ۳ فَيُبْلِغُ ـ أَوْ فَيُسْبِغُ ـ الْوُضُوءَ، ثُمَّ يَقُولُ: ۴ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ ـ ۵ وَفِي رِوَايَةٍ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، ۶ إِلَّا فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ الثَّمَانِيَةُ يَدْخُلُ مِنْ أَيِّهَا شَاءَ)). ۷ هٰكَذَا رَوَاهُ مُسْلِمٌ فِي صَحِيحِهِ، وَالْحُمَيْدِيُّ فِي أَفْرَادِ مُسْلِمٍ. وَكَذَا ابْنُ الْأَثِيرِ فِي جَامِعِ الْأُصُولِ،

**ترجمه:** ۱ عمر بن خطاب رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ په تاسو كې چې كوم سړي اودس وكړو او هغه (د ښكلا) انتها ته ورسوي ۳ يا حضور ﷺ دا الفاظ وفرمايل او پوره اودس وكړي بيا اووائي ۴ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، (زه د دې خبري شاهدي اداكوم چې د يو الله جل جلاله څخه ماسوا بل څوك د عبادت لائق نشته او محمد ﷺ د هغه بنده او رسول دي) ۵ او په يوه روايت كې دي چې داسې اووائي أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، زه د دې خبري شاهدي اداكوم چې د يو الله جل جلاله څخه ماسوا بل څوك د عبادت لايق نشته هغه يو دي هيڅوك د هغه شريك نشته او د دې خبري شاهدي ادا كوم چې محمد ﷺ د الله جل جلاله بنده او د هغه رسول دي، ۶ نو د هغه د پاره د جنت اته دروازي خلاصي شي په كومه دروازه چې د هغه زړه غواړي په جنت كې دي داخل شي، ۷ هم دغه شان ددې روايت كړې دې مسلم په خپل صحيح كښې او حميدى په افرادو د مسلم كښې او دغه شان ابن الاثير په جامع الاصول كښې

(۱) اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب الذكر المستحب عقب الوضوء(رقم- (۲۳٤)) ابوداود كتاب الطهارة . باب ما يقول الرجل إذا توضأ (رقم-۱۶۹) والترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما يقال بعد الوضوء (رقم-۵۵) والنسائى كتاب الطهارة/باب الفضل فى ذلك(رقم-۱٤۸) ابن ماجه كتاب الطهارة وسننها/باب ما يقال بعد الوضوء(رقم-٤۷۰)باب ما يقال بعد الوضوء(رقم-٤۷۰)

١ وَذَكَرَ الشَّيْخُ مُحْيِي الدِّينِ النَّوَوِيُّ فِي آخِرِ حَدِيثِ مُسْلِمٍ عَلَى مَا رَوَيْنَاهُ ٢ وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ: «اللّٰهُمَّ اجْعَلْنِي مِنَ التَّوَّابِينَ وَاجْعَلْنِي مِنَ الْمُتَطَهِّرِينَ». ٣ وَالْحَدِيثُ الَّذِي رَوَاهُ مُحْيِي السُّنَّةِ فِي الصِّحَاحِ: («مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ») إِلَى آخِرِهِ ٤ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ فِي (جَامِعِهِ) بِعَيْنِهِ إِلَّا كَلِمَةَ (أَشْهَدُ) قَبْلَ (أَنَّ مُحَمَّدًا).

**ترجمه:** ١ او امام نووي رحمه الله د مسلم د حديث په آخر کې چې هغه مونږ روايت کړي دي دا ذکر کړي دی ٢ چې ترمذي (په شهادتين باندې د دې دعا) دا الفاظ زيات ليکلي دي اللّٰهُمَّ اجْعَلْنِي مِنَ التَّوَّابِينَ وَاجْعَلْنِي مِنَ الْمُتَطَهِّرِينَ (اي الله ما د توبه کونکو څخه جوړ کړې او پاکي کونکو کې مې شامل کړې) يعني د مسلم روايت څنګه چې مونږ ذکر کړي دي هغه روايت امام نووي رحمه الله د مسلم په شرح کې نقل کړي دي او د هغې په آخر کې ئې وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ الخ عبارت زيات کړي دي ٣ او هغه حديث چې امام محي السنة په صحاح کې روايت کړي دي يعنی مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوْءَ الخ (چا چې اودس وکړو او ښه اودس يې وکړو تر آخره پورې) ٤ دا امام ترمذي رحمه الله په خپل جامع کې بعينه داسې نقل کړي دي مګر د أَنَّ مُحَمَّداً څخه مخکې د أَشْهَدُ ذکر يې نه دي کړي.

**حل اللغات:** ① فَيُبْلِغُ: دا د إِبْلَاغ نه دې، د رسولو په معنی کښې دې، ددې نه په صحيح طريقه هر اندام ته اوبه رسول مراد دی. ② فَيُسْبِغُ: د إِسْبَاغ نه دې، أَيْ: إِكْمَالُهُ: کامل طريقې سره اودس کولو ته وائی ③ التَّوَّابِينَ: دادَ اوب نه دې ددې معنی رجوع کول اوْ توبه کولوده يعنی دَالله تعالی طرف ته رجوع کول او توبه کول. ④ الْمُتَطَهِّرِينَ: أَيْ مِنَ الْأَخْلَاقِ الذَّمِيمَةِ: ځان پاک ساتونکی خلق (چه ځان پاک ساتی د رذيله اخلاقو نه او د نورو ګناهونونه).

**تسهيلات:** **قوله:** اللّٰهُمَّ اجْعَلْنِي:

**په مختلفو دعاګانو کښې تطبيق:** په دې حديث پاك کښې د اودس دوران کښې رواياتو کښې مختلفې دعا ګانې او مختلف الفاظ راغلی دی په کوم څخه چه په ظاهره د تضاد او اضطراب خيال پيدا کيږی ليکن حقيقت دادې چې صاحب د مشکوة مختلفو رواياتو څخه مختلف الفاظ راغونډ کړی دی او اشاره ئې کړې ده چې کوم کس ددې دعاګانو څخه څه ونيل غواړی نوهغه ونيلی شی ځينو رواياتو کښې تقديم او تاخير سره ددې دعاګانو ذکر دې ځينو کښې د شهادتينو ذکر راغلې دې. ځينو کښې نشته دې. مطلب دا شو چې کوم کس کومه دعا اووائی نو سنت به ادا شی.

آخر کښې صاحب مشکوة په صاحب مصابيح باندې اعتراض کړې دې چې هغه کوم روايت په صحاح کښې ذکر کړې دې هغه دلته نشته دې ، بلکه په دې الفاظو سره دا حديث پاك ترمذی ذکر کړې دې.

**قوله:** فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ الثَّمَانِيَةُ:

**په اووه دروازو د داخليدو نه مقصد:** په يودروازه به داخليږی خو داسې جنتيانو د تعظيم

او اکرام د پاره به اته دروازې بیرته کیږی کومې څخه چې دوئ غواړی نو داخلیدې شی .

**[۲۹۰] د مخولو په روښانه کیدو کښې د اودس کردار**

۲۹۰-()[۹] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] (( «إِنَّ أُمَّتِي يُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنْ آثَارِ الْوُضُوءِ. [۳] فَمَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يُطِيلَ غُرَّتَهُ فَلْيَفْعَلْ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضی الله عنه راوي دي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل [۲] د قیامت په ورځ به زما امت په داسې حال کې بللي شی چې د اودس په سبب به د هغوئ مخونه روښانه وي او اندامونه به يې ځلیږي [۳] نو په تاسو کې چې کوم سړې غواړي چې هغه د خپل مخ رڼا زیاته کړي نو هغه ته پکار دي چې هغه داسې وکړي (يعني اودس دي په ښه طریقې سره وکړي) (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① يُدْعَوْنَ: أَيْ: يُنَادَوْنَ: رابللي به شی (په نوم اخستلو سره). ② غُرًّا: دا د أَغَرّ جمع ده، وَهُوَ الْأَبْيَضُ الْوَجْهِ: سپین مخ والا ته وائی. غرة اصل کښې هغه سپین داغ ته وائی کوم چې د آس په تندی باندې وی، بیا دَ هر روښانه او مشهور څیز دَپاره استعمال شوې دې. ③ مُحَجَّلِينَ: دا د تَحْجِيل نه ماخوذ دې، وَهُوَ الدَّوَابِّ الَّتِي قَوَائِمُهَا بِيضٌ: هغه څاروې چه خپې ئې سپینې وی دا اصل کښې په اسونو کښې وی او دا ډیر ښائسته وی. ④ آثَار: د اثر جمع ده، نښه، علامت. ⑤ يُطِيلَ: أَيْ: بِإِيصَالِ الْمَاءِ إِلَى أَكْثَرِ مِنْ مَحَلِّ الْفَرْضِ: اوږد والی نه مراد هر اندام د فرض مقدار نه زیات حد پورې وینځل دی.

**تسهیلات:** **قوله: مُحَجَّلِينَ:**

**اودس د امت محمدی خصوصیت:** ځینو ددې حدیث څخه استدلال کړې دې چې اودس صرف ددې امت د خصوصیاتو نه دې ځکه چې دا به د قیامت په ورځ ددوئ پیژندګلو وی خو علامه ابن حجر رحمه الله فرمائی چې دا خبره صحیح نه ده ځکه چې اودس په وړاندینی قومونو کښې هم وو البته دا روښانه غره او بیاض الأقدام او حجل په دومره لوې کچ ددې امت خاصه ده

**قوله:** فَمَنِ اسْتَطَاعَ: دا جمله د حضرت ابوهریره رضی الله عنه دطرفه مدرج ده. او هغوئ به په دې باندې پخپله عمل کولو

**د اطالت غره مفهوم:** اطالت غره څخه مراد دادی چې اندام د هغې د مقرر حد څخه زیات اووینځلې شی. لکه لاسونه تر اوږو پورې اووینځلې شی او پښې تر ځنګونونو پورې اووینځلې شی دلته د اطالت غره څخه مراد درې ځلو څخه دَ زیاتو اوبو استعمال نه دې ځکه چې دا سراف دې کوم چه جائز نه دې.

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الوضو / باب فضل الوضو ولغرالمحجلون... رقم الحدیث ۱۳۶ ومسلم فی کتاب الطهارة/ باب استحباب اطالت الغره رقم الحدیث ۶۰۳

**[۲۹۱] د اودس اندامونو ته کالي اچولي کیدل**

۲۹۱-()[۱۰] ۱ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ ((تَبْلُغُ الْحِلْيَةُ مِنَ الْمُؤْمِنِ حَيْثُ يَبْلُغُ الْوَضُوءُ)). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ په جنت کې مومن ته به زیور ترهغه پورې رسي تر کوم ځاي پورې چې د اودس اوبه رسیږي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① تَبْلُغُ: دمضارع واحد مؤنث صیغه ده، رسیږی به. ② الْحِلْيَةُ: أَي: الْبَيَاضُ: حلیه کالی ته وائی خو دلته تري غره (سپينوالي) مراد دي.

**تسهیلات: قوله:** الْحِلْيَةُ:

**د حلیه مفهوم:** مطلب دا شوچه مسلمان څومره زیات دَ اودس اندامونه دَ مقرري اندازي نه وړاندي وینځی هغه حصه به ښائسته او روښانه وی.

## الْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۹۲] اودس د مؤمن د حفاظت سبب**

۲۹۲-()[۱۱] ۱ عَنْ ثَوْبَانَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ (اسْتَقِيمُوا وَلَنْ تُحْصُوا ۳ وَاعْلَمُوا أَنَّ خَيْرَ أَعْمَالِكُمُ الصَّلَاةُ، ۴ وَلَا يُحَافِظُ عَلَى الْوُضُوءِ إِلَّا مُؤْمِنٌ) رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ثوبان رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ نیغ اوسیږئ او د نیغ اوسیدو پوره طاقت به هیڅ کله ونه لرئ ۳ او پوه شئ چې ستاسو په اعمالو کې بهترین شي مونځ دي ۴ او د اودس حفاظت نه کوي مګر مومن. (مالك، احمد، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات:** ① اسْتَقِيمُوا: أَي اتِّبَاعُ الْحَقِّ وَالْقِيَامُ بِالْعَدْلِ: یعنی دَ افراط اوتفریط نه پاك دَ اعتدال په لار نیغ اومستقیم اوسیږئ او په اعمال صالحه باندي قائم اودائم اوسیږئ ② وَلَنْ تُحْصُوا: أَيْ: لَنْ تُطِيقُوا أَنْ تَسْتَقِيمُوا حَقَّ الْاِسْتِقَامَةِ: یعنی د نیغ اوسیدو پوره طاقت به هیڅ کله ونه لرئ ③ وَلَا يُحَافِظُ: أَيْ لَا يُوَاظِبُ: دلته د حفاظت نه مراد مواظبت یعنی همیشوالي دي.

(۱) اخرجه مسلم کتاب الطهارة باب تبلغ الحلیة حیث یبلغ الوضوء (رقم-۴۰ - (۲۵۰) واحمد فی المسند:-۳۷۱/۲ والنسائی باب کتاب الطهارة/ الفضل فی ذلک(رقم-۱۴۹)

(۲) اخرجه مالک کتاب الطهارة باب جامع الوضوء(رقم-۳۶) وابن ما جه کتاب الطهارة وسننها باب المحافظة علی الوضوء(رقم-۲۷۷) واحمد فی المسند:۲۸۲/۵ والدارمی کتاب الطهارة/باب ما جاء فی الطهور (رقم۶۸۱)باب اختلاف الفقهاء (رقم-۶۵۵)

**د راوي مختصر تعارف:**

د حدیث د راوی نوم حضرت ثوبان (رضی الله عنه) کنیت ابوعبدالله وو. د یمن د مشهور خاندان حمیر سره ئې تعلق وو. دې غلام وو. نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل که ته خپل خاندان ته لاړشه او که غواړې زمونږ سره ئې ستاس شمار به په اهل بیتو کښې کیږی نو دوی اهل بیت سره شمار کیدو ته په خپل خاندان باندې ترجیح ورکړه (۱)

**د نبی کریم ﷺ سره محبت:** د نبی کریم ﷺ سره به همیشه دپاره اورسیدلو او د دوی خدمت به ورته د ځان نه زیات خوښ وو. په یوه موقع نبی کریم ﷺ فرمائیلی وو کله هم چاته لاس مه نیسئ ددې نه پس که د سورلئ نه به چابک پریوتلو نودهغې د راوچتولودپاره به ئې هم چاته نه وئیل(۲)

**د نبی کریم ﷺ خدمت:** د نبی کریم نه ئې ښه استفاده کړې ده د دې وجې حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چه دوی ډیر احادیث یاد کړی وو. اود دې اشاعت ئې هم کړې دې.

**تسهیلات: قوله:** اسْتَقِيمُوا:

**د استقامت په عظمت کښې اقوال:**

① استقامت سره متعلق حضورپاك ﷺ فرمائیلی دی "شیبتنی هود وأخواتها"

② حضرت عمر رضی الله عنه فرمائیلی دی استقامت دې ته وائی چه "لایروغون روغان الثعالب" یعنی دَ لومبړې په شان تیرپونه نه وهی بلکه په حق باندې کلك شی.

③ حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه وغیره فرائض اعمال باندې کلك اوسیدو ته استقامت فرمائیلې دې

④ امام غزالی رحمه الله دې ته دَپل صراط نوم ورکړې دې هم دغه وجه ده چه صوفیاء کرام وائی "الاستقامة خیر فوق من الف کرامة"

**قوله:** "وَلَنْ تُحْصُوا"

**د عدم احصاء مطلب:** چونکه داکار ډیر مشکل وو په دې وجه حضورپاك اوفرمائیل. "ولن تحصوا" یعنی داکارستاسودَپاره ډیرگران دې که چرې تاسو دااونه کړې شو نودومره خو اوکړئ چه دوام علی الوضوء کوئ ځکه چه دادَمؤمن نښه ده او محافظت علی الصلوة دَپاره معاون دې.

**دحدیث دویم مطلب:** په دین باندې بغیردَ کمی زیاتی نه تگ کوئی اومکمل حقوق اداکوئی. دَاخلاقو استقامت وی اوکه دَعقائدوعبادات استقامت وی مگردامشکل دې محنت به کول پکار دی.

---

(۱) اسدالغابة (٢٤١٤)- (٢) مسند احمد(٢٧٧١٥)- (٣) الترمذی فی الزهد باب ما جاء فی طول العمرللمؤمن رقم: ٢٢٥١،وکذا احمد،فی مسند الشامیین رقم: ١٧١٢٠) (٤)وفی مسند مکیین حدیث عبید بن خالد سلمی رقم ٥٤٩٤)

[۲۴۳] اودس دپاسه اودس کولو باندې لس نیکۍ ملاویدل

۲۴۳-( )[۱۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] ( «مَنْ تَوَضَّأَ عَلَى طُهْرٍ [۳] كُتِبَ لَهُ عَشْرُ حَسَنَاتٍ» ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او ابن عمر رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې په اودس دپاسه بل اودس وکړي [۳] نو د هغه د پاره لس نيکۍ ليکل کيږي. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① طُهْر: پاکوالي، ددې نه مراد اودس دې. ② حَسَنَات: دحسنة جمع ده، نيکو ته وائي.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ تَوَضَّأَ عَلَى طُهْرٍ:

**په وضوء على الوضوء باندې د لس چنده ثواب ملاويدو شرط:** دا د وضوء على الوضوء مسئله ده په دې د لس چنده ثواب وعده شوې ده. خو په دې کښې دا شرط دی

① چې اول اودس څخه څه عبادت اوکړی ②يا يو دنياوی کار اوکړی او فاصله پيداکړی چې هغې سره حد فاصل پيدا شی. ③ او مجلس هم تبديل شی ، اوکه داسې نه وی نو يو مجلس کښې د اودس کولو نه پس څه نيك كار كولو نه بغير اودس كول د اسراف په زمره کښې راځی. او دې ته صاحب فتح القدير مکروه وئيلی دی.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

[۲۴۴] اوس د مونځ کنجي

۲۴۴-( )[۱۳] [۱] عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] (مِفْتَاحُ الْجَنَّةِ الصَّلَاةُ [۳] وَمِفْتَاحُ الصَّلَاةِ الطُّهُورُ) رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د جنت کيلي (چابي) مونځ دي [۳] او د مونځ کيلي (چابي) اودس دي. (احمد)

**حل اللغات:** ① مِفْتَاحُ: ددې جمع مفاتيح راځی، چابۍ ته وائی، ② الطُّهُورُ: چه فتحې سره شی نو معنی ئې ده د اودس اوبه، اوچه ضمې سره شی نو معنی ئې ده پاکوالي.

(۱) اخرجه ترمذی والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب الوضوء لکل صلاة (رقم-۵۹) وابوداود کتاب الطهارة ،باب الرجل يجدد الوضوء من غير حدث (رقم-۶۲) وابن ماجه کتاب الطهارة وسننها/باب الوضوء على الطهارة(رقم-۵۱۲)

(۲) اخرجه احمد فی المسند:-۳/۳٤٠

**تسهيلات:**

**قوله:** مِفْتَاحُ الصَّلَاةِ الطُّهُورُ:

**د مفتاح الجنة سره د صلاة تشبيه:** داتشبه ده چه صلوة اومونځ دَ يوخزانې په شان دى او اودس دَدې دَپاره دَ كجنۍ په شان دې اودغه شان جنت يوه خزانه ده اومونځ دَهغې كنجي ده. اوقاعده ده چه دبنده خزانه بغيردَ كنجئ نه نه شى كولاويدې. لهذا مونځ بغيردَ اودس نه ممكن نه دې اودَ جنت داخله بغيردَ مونځ نه ممكن نه ده.

**[۲۹۵] اودس كښې كمې كول ما نځه كښې د خطا كيدو سبب**

۲۹۵–(۱)[۱۳] ١ وَعَنْ شَبِيبِ بْنِ أَبِي رَوْحٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- «عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ٢ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَّى صَلَاةَ الصُّبْحِ فَقَرَأَ الرُّومَ ٣ فَالْتَبَسَ عَلَيْهِ، فَلَمَّا صَلَّى، قَالَ: ٤ مَا بَالُ أَقْوَامٍ يُصَلُّونَ مَعَنَا لَا يُحْسِنُونَ الطُّهُورَ؟! ٥ وَإِنَّمَا يُلَبِّسُ عَلَيْنَا الْقُرْآنَ أُولَئِكَ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت شبيب بن ابي روح د حضور ﷺ په اصحابو ﷡ كې يو صحابي څخه روايت كوي ٢ چې رسول ﷺ يو ځل د سحر مونځ وكړو او په هغې كښې يې سورة روم اووئيلو ٣ حضور ﷺ ته اشتباه وشوه كوم وخت چې يې مونځ وكړو نو وي فرمايل ٤ خلقو له څه شويدي چې زمونږ سره مونځ كوي او په ښه شان اودس نه كوي ٥ او په دې وجه دا خلق په مونږ باندې په قرآن كې اشتباه راولي. (نسائي)

**حل اللغات:** ① فَالْتَبَسَ: يَعْنِي قِرَاءَتَهُ اشْتَبَهَتْ: قراءت كښې پرې اشتباه راغله يعنى شك ئې شو. ② مَا بَالُ: أَيْ: مَا حَالُ: څه حال دې، څه شوى دى. ③ لَا يُحْسِنُونَ: أَيْ: لَا يَأْتُونَ بِوَاجِبَاتِهِ وَسُنَنِهِ: د اودس ښائست والى نه مراد دهغې واجبات او سنت وغيره آدابو لحاظ ساتل دى. ④ يُلَبِّسُ: أَيْ: يَخْلِطُهُ وَيُغَلِّطُهُ: خلط او اشتباه راولى، ګډ وډ كوى.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا بَالُ أَقْوَامٍ يُصَلُّونَ مَعَنَا لَا يُحْسِنُونَ الطُّهُورَ؟

**دمقتدى اثر په امام:** دې حديث مبارك كښې دې طرفته اشاره ده چې د يو عمل كوم آداب او سنن وى هغه دغه عمل لره كامل ګرځوى. او دا دبركت سبب جوړيږى. ددې بركت اثر نه صرف د يو عامل ذات پورې محدود وى بلكه ددې اثر په نوروخلقو باندې هم پريوزى. لكه څنګه چې يو كس كښې څه كوتاهي يا قصور وى او دا د عالم د خپل ذات نه علاوه نورو دپاره هم ضرر وى. ددې نه دا معلومه شوه چې هركله په سنتو او آدابو باندې عمل نه كيږى نو بيا به د فتوحاتو دروازې بنديږى.

---

(۱) اخرجه نسائى كتاب الافتتاح/باب القراءة فى الصبح بالروم (رقم-۹۴۷) واحمد فى المسند:-۳۶۳/۵

**د مجلس اثر:** حقیقت کښې دا حدیث مبارك د هغه خلقو دپاره یو عبرت دې کوم چې دبصیرت سترګې نه لري کوم چې ددې خبرې قائل نه دی چې صحبت کښې څنې تاثیر هم وی او ددې نه دغه خلق منکر هم وی. نو دداسې خلقو دپاره د عبرت مقام دې سرورکائنات ﷺ ته اګر چې یوه مرتبه حاصله وه او قرآن چې دالله تعالی د تقرب ذریعه ده، هم په دې وجه د یو ادنی امتی اثر په دوئ ﷺ باندې اوشو چې هغه نه د اودس په آدابو یا سنتو کښې څه کوتاهی یا قصور شوې وو. او ددې په وجه نبی کریم ﷺ قرآت کښې په متشابه کښې غلط شو. نو دداسې خلقو به څه حشر وی چې شپه ورځ د فسق وفجور په صحبتونو کښې ناست وی.

نو معلومه شوه چې خیر په دې کښې دې چې د فاسقانو اوفاجرانو صحبت ترك کول پکار دی او د علماء کرامو، صوفیاء کرامو او نیك بندګانو په صحبت کښې ناسته پکار ده او دې سره به په هغوئ کښې دصحبت اثرات زیات شی. او دا مجالس د دین اودنیا د خیر خیګړې ضامن دې.

**د روایت راوی:** د روایت په شروع کښې راوی د هغه صحابی نوم نه دې ذکر کړې کوم نه چې دا حدیث پاك نقل شوې دې. خو میرك شاه رحمة الله علیه لیکلی دی چې هغه صحابی حضرت ابوذر غفاری ﷺ دې.

## [۲۹] دایمان په کاملیت کښې دپاکۍ کردار

۲۹–(۱)[۱۵] [۱] وَعَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ قَالَ: [۲] عَدَّهُنَّ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي يَدِي -أَوْفِي يَدِهِ [۳] قَالَ: ( «التَّسْبِيحُ نِصْفُ الْمِيزَانِ، [۴] وَالْحَمْدُ للهِ يَمْلَؤُهُ، [۵] وَالتَّكْبِيرُ يَمْلَأُ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، [۶] وَالصَّوْمُ نِصْفُ الصَّبْرِ، [۷] وَالطُّهُورُ نِصْفُ الْإِيمَانِ» ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.

**ترجمه:** [۱] او د قبیله بني سُلیم یو سړي راوي دي هغه وائی [۲] چې رسول الله ﷺ زما په لاس باندې یا په خپل لاس باندې شمیر کړل [۳] وي فرمایل سُبْحَانَ الله ویل (یعنې د دې ثواب) نیم ترازو (تله) ډکوي [۴] او اَلْحَمْدُ لله (د سُبْحَان الله سره ویل) یا (فقط اَلْحَمْدُ لِله) ویل پوره ترازو ډکوي [۵] او الله اکبر هغه شي ډکوي چې د آسمان او زمکې په مینځ کې دي [۶] او روژه نیم صبر دي [۷] و پاك اوسیدل نیم ایمان دي، (ترمذي دا حدیث روایت کړي دي او ویلي یي دي چې دا حدیث حسن دي.)

**حل اللغات:** ① عَدَّ: شمیر ئې اوکړو، اوئې شمیرل، ② التَّسْبِيحُ: سبحان الله ونیل، ددې نه مراد یا نفس سبحان الله ونیل مراد دی چه دا به مجسم شی یا ددې ثواب مراد دې ③ الْمِيزَانِ: تله د میزان.

(۱) اخرجه ترمذی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۵۱۹) واحمد فی المسند:-۳۶۳/۵

**تسهیلات:**

**قوله:** التَّسْبِيحُ نِصْفُ الْمِيزَانِ:

**په تسبيح باندې د نصف الميزان د اطلاق وجه:** ځکه چه تسبيح دَ صفات سلبيه نه دَ تنزيه اوپاکۍ نوم دې او صفات سلبيه دَ صفات ثبوتيه په مقابله کښې نصف دی. او الحمد لله دَ صفات ثبوتيه نه دې لهذا دَ دواړو په جمع کيدو سره تله ډکيږي.

**قوله:** وَالصَّوْمُ نِصْفُ الصَّبْرِ:

**په صوم باندې د نصف الصبر د اطلاق وجه:** په روژې سره دشهوت فرج او دَ شهوت بطن تولو مرغوباتو نه احتراز راځي ليکن صبر دَ دريو اجزاؤ دَ مجموعې نوم دې. يعنی صبرعلی الطاعة صبرعلی المصيبة اوصبرعن المعصية. لهذا په صوم کښې دا ټول اجزاء نه وی بلکه دوه غټ اجزاء يعنی صبرعن شهوة البطن اوصبرعن شهوة الفرج وی. نو په دې وجه صوم ته نصف صبر اووئيلې شو.

**[۲۸۶] په اودس سره د اندامونو څخه د ګناهونو خارجيدل**

۲۸۶-()[۱۶] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ الصُّنَابِحِيِّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ( [۲] «إِذَا تَوَضَّأَ الْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ فَتَمَضْمَضَ، [۳] خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ فِيهِ. [۴] وَإِذَا اسْتَنْثَرَ، خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ أَنْفِهِ [۵] وَإِذَا غَسَلَ وَجْهَهُ، خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ وَجْهِهِ، [۶] حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ أَشْفَارِ عَيْنَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله صنابحي ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هرکله چې مومن بنده د اودس اراده کوي او خُله وينځي [۳] نو ګناه د هغه دخُلې څخه خارجيږي [۴] او کله چې پوزه صفا کوي (سونګوي) نو ګناه د هغه د پوزې څخه خارجيږي [۵] او کله چې خپل مخ وينځي نو ګناه د هغه د مخ څخه خارجيږي [۶] تر دې چې د هغه د سترګو د بڼو د لاندې څخه هم ګناه وځي

[۱] فَإِذَا غَسَلَ يَدَيْهِ، خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ يَدَيْهِ [۲] حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ أَظْفَارِ يَدَيْهِ. [۳] فَإِذَا مَسَحَ بِرَأْسِهِ، خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ رَأْسِهِ حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ أُذُنَيْهِ. [۴] فَإِذَا غَسَلَ رِجْلَيْهِ، خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ رِجْلَيْهِ، [۵] حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ أَظْفَارِ رِجْلَيْهِ [۶] ثُمَّ كَانَ مَشْيُهُ إِلَى الْمَسْجِدِ وَصَلَاتُهُ نَافِلَةً لَهُ») رَوَاهُ مَالِكٌ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او هرکله چې خپل دواړه لاسونه وينځي نو ګناه د هغه د دواړو لاسونو څخه خارجيږي [۲] تر دې چې د هغه د دواړو لاسونو د نوکونو د لاندې څخه هم ګناه خارجيږي [۳] او هر کله چې د خپل سر مسح کوي نو ګناه د هغه د سر څخه خارجيږي تر دې چې د هغه د

[۱] اخرجه مالک کتاب الطهارة باب جامع الوضوء (رقم-۳۰) ابن ماجه کتاب الطهارة وسننها باب لا يقبل الله صلاة بغير طهور (رقم-۲۷۲) واحمد فی المسند:-۴/۳۴۹ والنسائی کتاب الطهارة/باب مسح الأذنين مع الرأس وما يستدل به علی أنهما من الرأس (رقم-۱۰۳)

دوارو غوږونو څخه هم ګناه وځي ④ او هرکله چې خپلې دواړې پښې وينځي نو ګناه د هغه د دواړو پښو څخه وځي ⑤ تر دې چې د پښو د نوکونو لاندې څخه هم وځي ⑥ او بيا د مسجد طرف ته تلل او د هغه مونځ د هغه دپاره په اعمالوکې زيات والي وي. (مالك نسائي)

**حل اللغات:** ① فَتَمَضْمَضَ: أَيْ: غَسَلَ فَمَهُ: يعنی خُله ئې اووينځله. اصل کښې مضمضه (تَحْرِيكُ الْمَاءِ فِي الْفَمِ) خوله کښې اوبه شربولو ته وائی، ددې نه مراد د خلې په وينځلوکښې مبالغه کول دی. ② اسْتَنْثَرَ: هُوَ إِخْرَاجُ الْمَاءِ مِنَ الْأَنْفِ بَعْدَ الِاسْتِنْشَاقِ: پوزه کښې داوبو اچولو نه پس واپس راويستلو ته انتشار وائی. ③ أَشْفَارِ: أَيْ: أَهْدَابِهَا: د سترګو د بڼو نه.

**تسهيلات:**

**قوله: حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ أُذُنَيْهِ:**

**د سر په مسح کښې د غوږونو تابعيت:** دَ سر په مسح کولو سره چه کومه ګناه خارج شوه دَ هغې لاز غوږاوخودلې شوه. معلومه شوه چه دواړه غوږونه دَسر په مسح کښې تابع دی. لهذا دَدې دپاره دَنوو اوبو راخستو ضرورت نشته. وړاندې دا مسئله راروانه ده.

**[۲۹۸] د قيامت په ورځ د امت محمدی پيژندګلو**

۲۹۸—( )[۱۷] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ② أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «أَتَى الْمَقْبَرَةَ ③ فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ ④ وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللَّهُ بِكُمْ لَاحِقُونَ، ⑤ وَدِدْتُ أَنَّا قَدْ رَأَيْنَا إِخْوَانَنَا) ⑥ قَالُوا: أَوَلَسْنَا إِخْوَانَكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ ⑦ قَالَ: (أَنْتُمْ أَصْحَابِي، ⑧ وَإِخْوَانُنَا الَّذِينَ لَمْ يَأْتُوا بَعْدُ ⑨ فَقَالُوا: كَيْفَ تَعْرِفُ مَنْ لَمْ يَأْتِ بَعْدُ مِنْ أُمَّتِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي ② چې يو وخت رسول الله ﷺ جنت البقيع مقبرې ته د دعـايې مغفـرت د پـاره تـشريف راوړو (دلتـه رارسيدو سره) ③ حضور ﷺ وفرمايـل اې د مومنانو جماعتـه پـه تاسـو دې سلامتي وي (يعنـي اهـل قبـورو تـه يـې سـلام اووئيلـو او وې فرمايل) ④ مونږ هم انشاء الله ستاسو سره يو ځاې کيدونکي يو ⑤ او زه د دې خبرې ارزولرم چې مونږ خپل وړونه ليدلي وې ⑥ صحابه رضي الله عنهم عرض وکړو يا رسول الله آيا مونږ ستاسو وروڼه نه يو ⑦ حضور ﷺ وفرمايل تاسو خما صحابه يئ ⑧ او زما وروڼه هغه دي چې اوس لا دنيا ته نه دي راغلي ⑨ صحابه رضي الله عنهم عرض وکړو يا رسول الله ستاسو په امت کې چې کوم خلق لانه دي راغلي هغه به تاسو په قيامت کې څنګه پيژنې؟

**حل اللغات:** ① الْمَقْبَرَةَ: قبرستان، ددې نه مراد جنت البقيع د مدينې مشهور قبرستان دی. ② دَارَ قَوْمٍ: دار منصوب دې د نداء په وجه، او دار نه مراد جماعت او اهل جماعت دی، د کور

---

(۱) اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب استحباب إطالة الغرة والتحجيل في الوضوء (رقم-۳۹ - (۲٤۹) واحمد في المسند:-۲/۳۰ والنسائي كتاب الطهارة/حلية الوضوء (رقم-۱۵۰)

په معنی کښې هم راځي یعنی اې د مومنانو ډلې ③ لَاحِقُونَ: یوځای کېدونکی یو. ④ وَدِدْتُ: أَيْ تَمَنَّيْتُ وَأَحْبَبْتُ: زه خواهش لرم، خوښوم،

[۱] فَقَالَ: (أَرَأَيْتَ لَوْ أَنَّ رَجُلًا لَهُ خَيْلٌ غُرٌّ مُحَجَّلَةٌ، [۲] بَيْنَ ظَهْرَيْ خَيْلٍ دُهْمٍ بُهْمٍ، [۳] أَلَا يَعْرِفُ خَيْلَهُ؟) [۴] قَالُوا: بَلَى، يَا رَسُولَ اللهِ [۵] قَالَ: (فَإِنَّهُمْ يَأْتُونَ غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنَ الْوُضُوءِ، [۶] وَأَنَا فَرَطُهُمْ عَلَى الْحَوْضِ»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ وفرمایل ما ته دا اوایئ که د سړي سره د سپین تندي او سپین لاس پښو والا اسونه وي [۲] او هغه د ډیرو تور آسونو سره یو ځای شوي وي [۳] نو آیا هغه به خپل آسونه پیژني؟ [۴] صحابه وکرامو ﷺ عرض وکړو هو یا رسول الله ﷺ اد دې امتیازي اوصافو په بناء به یې! یقینا پیژني [۵] حضور ﷺ وفرمایل هغوی به د قیامت په ورځ د اودس اثر د وجې سپین تندی او سپین لاسو پښو سره راځي (نو په دې علامت سره به زه هغوی پیژنم) [۶] او زه به په حوض کوثر باندې د هغوئ څخه مخکې ولاړ یم. (مسلم)

**حل اللغات:** ⑤ خَيْلٌ: اسونه، ⑥ غُرٌّ: دا د أَغَرّ جمع ده، وَهُوَ الْأَبْيَضُ الْوَجْهِ: سپین مخ والا ته وائی. غرة اصل کښې هغه سپین داغ ته وائی کوم چې د آس په تندی باندې وی، بیا دَ هر روښانه او مشهور څیز دپاره استعمال شوې دې. ⑦ مُحَجَّلِينَ: دا د تَحْجِيل نه ماخوذ دې، وَهُوَ الدَّوَابُّ الَّتِي قَوَائِمُهَا بِيضٌ: هغه څاروې چه خپې ئې سپینې وی دا اصل کښې په اسونو کښې وی او دا ډیر ښائسته وی ⑧ ظَهْرَيْ: مینځ، ⑨ دُهْمٍ بُهْمٍ: أَيْ: سُودٍ: تک تور، یا داسې رنګ والا اسونه چه بل رنګ پکښې نه وی ⑩ فَرَطُهُمْ: أَيْ: مُتَقَدِّمُهُمْ: مخکښې نه به ولاړ یم، فرط هغه کس ته وائی چه د قافلې نه مخکښې لاړشی اود راتلونکې قافلې دپاره د اوبو وغیره انتظامات اوکړی

**تسهیلات:**

**قوله:** السَّلَامُ عَلَيْكُمْ:

**د مړو سلام اوریدل:** قبرستان کښې مړوباندې سلام کول ثابت دی اومسنون طریقه ده مړی سلام اوری په دې باندې نور څیزونه قیاس کول قیاس مع الفارق دې. دَ سماع موتٰی مطلق انکارکول تفریط دې او بالکل دَ هرې خبرې هروخت دَ اوریدلوعقیده لرل افراط دې. اعتدال دادې چه دکومو نصوصونه سماع ثابت ده هلته سماع ده اوچرته چه نشته نوهلته نشته دَ سماع نصوص هم خلاف عقل دی. کوم چه په خپل مورد کښې بند دی په دې باندې نور اشیاء نه شی قیاس کولې.

**قوله:** وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللهُ

**اشکال:** دلته دا اشکال کیدې شی چې دا خو یقینی خبره ده چې مونږ ټول به مړو او په عالم برزخ کښې به د مړو سره یوځائې کیږو نوبیا دلته د ,,الا[illegible]" کلمې راوړلوڅخه مطلب دې.څکه چې دا خو د استثناء دپاره ده.یعنی که دالله تعالی خوښه شی حالانکه الله تعالی خو دا قانون مقرر کړې دې چې ,,كل نفس ذائقة الموت،" یعنی هرساه لرونکې به مری.

**داشكال جوابونه:** امام نووي رحمه الله دعلماء كرامو نه ددې ډير جوابونه نقل كړي دي!

① اظهر دا دې چه دا استثناء د شک دپاره نه ده، پس استثناء كله په امر غير واجب كښې هم وى لكه د الله پاک ارشاد ﴿ لتدخلن المسجد الحرام ان شاء الله ﴾ حال دا چه الله پاک د شک نه برى دې. احمد بن يحيى رحمه الله فرمائي چه په دې آيت كريمه كښې استثناء د تاديب دپاره ده چه خلق په خپل كلام او خبرو كښې د دې د استعمالولو ادب زده كړي او رسول الله ﷺ چه كوم ﴿ ان شاء الله بكم لاحقون ﴾ فرمائيلي دې دا په طور د تبرک دې نه په طور د شک.

② ان شاء الله د متكلم (رسول الله ﷺ) عادت دې چه په كلام كښې حسن پيدا شي.

③ دا قبرستان كوم ته چه هغوى تشريف اوړلې وو په مدينه منوره كښې دې، چونكه رسول الله ﷺ ته په مدينه طيبه كښې د خپل وفات يقين نه وو او څنګه به وو چه دا د علوم غيبيه نه دې په دې وجه رسول الله ﷺ ﴿ ان شاء الله ﴾ اوفرمائيلو.

④ حرف د ان د ﴿ اذا ﴾ په معنى كښې دې كوم چه د يقين دپاره مستعمل دې.

⑤ چونكه د رسول الله ﷺ سره په دې وخت كښې بعض منافقين هم وو په دې وجه د هغوى په لحاظ رسول الله ﷺ ﴿ ان شاء الله ﴾ اوفرمائيلو. (فتح الملهم)

**د راتلونكو خلقو د تمنا وجه:** علامه طيبي رحمه الله فرمائي چه د اصحاب قبور سره د راتلونكو خلقو د ليدلو خواهش په حقيقت كښې د تصور سابقين په وخت د تصور لاحقين د وجې نه پيدا شو. يا د رسول الله ﷺ عالم ارواح لره منكشف كړې شو.

**قوله:** قَالُوا: أَوَلَسْنَا إِخْوَانَكَ

**د اخوان په مصداق كښې اقوال:** ① علامه باجي رحمه الله فرمائي چه دلته د صحابه كرامو رضي الله عنهم نه د اخوت نفى نه ده كړې شوې څكه چه د يو بل دپاره د اهل ايمان اخوت د قرآن كريم نه ثابت دې. ﴿ انما المؤمنون اخوة ﴾ بلكه صحابيت كوم چه د اخوة نه هم يو زائد مرتبه ده هغه ئې ذكر كړه، د قاضي عياض د قول نه هم د دې تائيد كيږي.

② امام نووي رحمه الله او قاضي عياض رحمه الله فرمائيلي دي چه اخوت او صحبت دواړه اوصاف د صحابه كرامو رضي الله عنهم دپاره ثابت دي او كوم خلق چه د رسول الله ﷺ د نبوت د زمانې پورې دنيا ته نه دي راغلي د هغوى دپاره صرف اخوت ثابت دې.

**قوله:** أَنْتُمْ أَصْحَابِي:

يعنى تاسوخو زمونږ دَ رونړو كيدوسره سره ملګرې هم ئي اوروستو راتلونكى صرف رونړه دى دَملګرى كيدووصف په هغوى كښې نشته دې په دې وجه ئى "اخواننا" وئيلو "دهم بهم" يعنى تك تور.

[۳۳] دامت محمدی په پيژندګلو کښې د اودس کردار

۳۳—()[۱۸] [۱] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «أَنَا أَوَّلُ مَنْ يُؤْذَنُ لَهُ بِالسُّجُودِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [۳] وَأَنَا أَوَّلُ مَنْ يُؤْذَنُ لَهُ أَنْ يَرْفَعَ رَأْسَهُ، [۴] فَأَنْظُرُ إِلَى مَا بَيْنَ يَدَيَّ فَأَعْرِفُ أُمَّتِي مِنْ بَيْنِ الْأُمَمِ، [۵] وَمِنْ خَلْفِي مِثْلُ ذَلِكَ، وَعَنْ يَمِينِي مِثْلُ ذَلِكَ، وَعَنْ شِمَالِي مِثْلُ ذَلِكَ

**ترجمه:** [۱] ابودرداء رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د قيامت په ورځ به په هغه خلقو کې د ټولو څخه مخکښې سرې زه يم چاته چې به د سجدې کولو اجازت ورکول شي [۳] او بيا به په هغه خلقو کې د ټولو څخه مخکښې سړې زه يم چاته چې به د سجدې څخه د سر پورته کولو اجازت ورکول شي [۴] نو زه به د هغه شي طرف ته ګورم چې زما مخې ته به وي (يعني د مخلوق مجمع) او زه به د امتونو په مينځ کې خپل امت پيژنم [۵] بيا به زه وروسته طرف ته داسې او خپل ښي او ګس طرف ته هم داسې ګورم [يعني څلور واړو طرفونو ته به د خلقو رش (ګڼه ګونه) وينم او په هغوئ کې به خپل امت پيژنم]

[۱] فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ تَعْرِفُ أُمَّتَكَ مِنْ بَيْنِ الْأُمَمِ [۲] فِيمَا بَيْنَ نُوحٍ إِلَى أُمَّتِكَ؟ [۳] قَالَ: هُمْ غُرٌّ مُحَجَّلُونَ مِنْ أَثَرِ الْوُضُوءِ، [۴] لَيْسَ أَحَدٌ كَذَلِكَ غَيْرَهُمْ، [۵] وَأَعْرِفُهُمْ أَنَّهُمْ يُؤْتَوْنَ كُتُبَهُمْ بِأَيْمَانِهِمْ، [۶] وَأَعْرِفُهُمْ تَسْعَى بَيْنَ أَيْدِيهِمْ ذُرِّيَّتُهُمْ»). رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] يو صحابي عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ پدې ټولو امتونو کې به ته خپل امت څنګه پيژنې؟ [۲] چې د نوح عليه السلام دامت څخه به ستاتر امته پورې وی [۳] حضور ﷺ وفرمايل زما امت به د اودس د اثر د وجې سپين تندي او سپين لاس او پښې وي [۴] د دې امت څخه به ماسوا بل هيڅ امت داسې (امتيازي وصف سره) نه وي او زه به خپل امت داسې هم پيژنم چې زما د امت خلقو ته به د هغوئ اعمالنامې په ښي لاس کې ورکول شي [۶] او په دې وجه به يې هم شناخت کوم چه د هغوئ (کم کلنې) اولاد به د هغوئ په مخکې ځغلي. (احمد)

**حل اللغات:** ① تَسْعَى: منډې به وهی، ② ذُرِّيَّتُهُمْ: اولاد دهغوی، واړه بچې.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَأَعْرِفُهُمْ أَنَّهُمْ يُؤْتَوْنَ كُتُبَهُمْ بِأَيْمَانِهِمْ:

**اشکال:** په آخرت کښې خومره کامياب مسلمانان اومؤمنان وی ټولوته به عمل نامه په ښی لاس ورکولې شی نوبيادَدې امت دَ مؤمنانوڅه خصوصيت پاتې شو؟

**داشکال جواب:** سره دَدې چه دَ نورو امتونو کسانوته به هم عمل نامه په ښی لاس ورکولې شی مګر دې امت ته به په يوخاص شان اواعزازسره ورکولې شی هم دلته بيان شوې دې.

[1] واحمد فی المسند:- ۱۹۹/۵

**قوله: تَسْعَى بَيْنَ أَيْدِيهِمْ ذُرِّيَّتُهُمْ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① دَهغوی مخې ته به لوبې کوی اومنډې په وهی داد فراخنې خوشحالئی او د نه ویریدو طرف ته اشاره ده کیدې شی چه دَنوروامتونوخلق دَخوشحالئ په دې کیفیت کښې نه وی.

② یعنی دَهغوی اولاد به دَهغوی نه رومبې وړاندې وړاندې جنت طرف ته منډې وهی

# [۶/۱] بَابُ مَا يُوجِبُ الْوُضُوءَ

**داباب دهغه څیزونوپه بیان کښې دې چې اودس واجبوی**

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية وعشرون حديثاً مشتملة على مسئلتين ،**

**المسئلة الأولى:** ذكر موجبات الوضوء وأسبابه وهي ثمانية۔

① الصلوة: ۱، ۲، ۱۳۔
② خروج المذى: ۳، ۱۱۔
③ أكل ما مسته النار: ۴، ۵۔
④ خروج الريح: ۶، ۱۰، ۱۳۔
⑤ النوم: ۱۴، ۱۵، ۱۶،
⑥ مس الذكر: ۱۷۔
⑦ مس المرأة : ۲۵، ۲۶، ۲۷۔
⑧ خروج الدم السائل من الجسد: ۲۸۔

**المسئلة الثانية: ذكر الأشياء الغير الموجبة للوضوء:** ۷، ۸، ۹، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۲، ۲۱، ۲۳، ۲۴

## الْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۳۰۰] د مانځه دپاره د اودس فرضیت**

۳۰۰-(۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ مَنْ أَحْدَثَ حَتَّى يَتَوَضَّأَ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضی الله عنه راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د بې اودسه مونځ نه قبلیږي ترڅو پورې چې اودس ونه کړي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① لَا تُقْبَلُ: ددې یو مطلب او معنی لا تصح ده ، دویم مطلب او معنی ئې ( لايترتب عليه الثواب) ده دلته اوله معنی مراد ده ، یعنی اودس نه بغیر مونځ نه صحیح کیږی. ② أَحْدَثَ: أي: صَارَ

[۱] اخرجه البخاری فی صحیحه رقم الحدیث ۱۳۵ ومسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۲/ ۲۲۵ وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۶۰ والترمذی فی السنن رقم الحدیث ۷۶ واحمد فی المسند ۲/ ۳۰۳

ذَاحَدَثَ: چه بې اودسه شي. (دې نه يا خو حدث قبل الصلاة مراد دې يا حدث في اثناء الصلاة.)

**تسهيلات: قوله:** لَاتُقْبَلُ صَلَاةٌ:

**د قبول دوه معانی:** قبول په دوه معنو کښې مستعمل دې

① يو قبول اصابت ② اوبل قبول اجابت

**د قبول اصابت مطلب:** دقبول اصابت مطلب دې ((كون الشئ مستجمعاً لجميع الشرائط والاركان)) په دې معنی دا د صحت مترادف دې. او د دې نتيجه په دنياوی اعتبارسره فراغ الذمه ده.

**د قبول اجابت مطلب:** اود قبول اجابت مطلب دادې. د ((وقوع الشئ في حيز مرضاة الرب سبحانه وتعالى)) يعنی دالله تعالى درضا دپاره ديوځيز واقع کيدل. ددې نتيجه د آخرت ثواب دې.

**د قبول اصابت مثال:** په قرآن کريم او حديث کښې لفظ دقبول په دواړو معنو کښې استعمال شوې دې. مثلاً معروف حديث ((لايقبل الله صلوة حائض الابخمار))[1] يعنی د بالغې ښځې مونځ بغير د پړونی څخه جائز نه دې. کښې قبول اصابت مراد دې.

**د قبول اجابت مثال:** دويم په ((من شرب الخمر لم تقبل له صلوة اربعين صباحًا))[2] دې کښې قبول اجابت مرادې دې.

**کومه معنی حقيقی ده؟:** دې کښې اختلاف دې چه لفظ دقبول حقيقی معنی څه ده. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه لفظ قبول د اجابت په معنی کښې حقيقت دې اوداصابت په معنی کښې مجازدې خو علامه عثمانی رحمه الله په ' فتح الملهم ' کښې دا د اصابت په معنی کښې حقيقت اوداجابت په معنی کښې مجازګرځولې دې.

**په حديث الباب کښې مراده معنی:** بياقابل دغور خبره داده. چه دې حديث کښې دقبول کومه معنی مراد ده.

① **توقف:** علامه تقی الدين رحمه الله ابن دقيق العيد رحمه الله فرمائی چه د په حقيقت کښې په دواړو معنو کښې مشترك دې. اوديومعنی هم هيڅ قرينه نشته. د دې وجې مونږه له ددې حديث په تشريح کښې توقف کول پکار دی.

② **قبول اصابت:** خود جمهورو په نزد دلته قبول اصابت مراد دی. دې صورت کښې علامه عثمانی رحمه الله په قول خو هيڅ اشکال نشته. ځکه چه ددوئ په نيز هم دا د دې لفظ حقيقی معنی ده. البته د حافظ ابن حجر رحمه الله په قول اشکال کيدې شی. چه معنی حقيقی پريخودې شوې ده. اوهغه قرينه دا ده. چه د ټول امت په دې خبره اجماع ده. چه مونځ بغير د طهارت څخه صحيح اومعتبرنه دې

[1] ) ابوداود ۱۱\۹٤ کتاب الصلوة باب المراة تصلی بغير خمار

[2] ) ترمذی ۱۲\۱۶ ابواب الاشربه باب ماجاء في شارب الخمر . اوکماقال صلى الله عليه وسلم)

③ **قبول اجابت:** خو د امام ترمذی رحمه الله دصنیع څخه داسې معلومیږی چه دلته دقبول نه مراد قبول اجابت اخلی ځکه چه ترکومې د قبول اصابت تعلق دې . نو ددوئ د دې په طهارت باندې د موقوف کیدو دپاره یو جدا باب په نوم د باب مفتاح الصلوة الطهور قائم کړې دې . ظاهره ده . چه دلته اصابت صلوة مراد دې . اوس که په حدیث دباب کښې هم ددوئ په نزد قبول اصابت مراد شی . نوده به دا مکرر ابواب نه قائمول . په هرحال دجمهورو په نز دقبول اصابت مراد دې .

**د مانځه دپاره د طهارت شرطیت:** دا نکره تحت النفی ده .د دې وجې د عموم فائده ورکوی . حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه دا جمله د ((مامن اجل فی الدار)) په قوت کښې ده . ددې مطلب دادې چه یو مونځ هم چه هر قسم وی بغیر د طهارت څخه نه صحیح کیږی.د دې وجې دا حدیث د جمهورو او د حنفیانو دلیل دې . امام مالك رحمه الله نه یو روایت داهم دې . چه دې دطهارت څخه بغیرهم دسقوط ذمه قائل دې البته مونځ واجب الاعادة پاتې شو خو حقیقت کښې ددوئ داقول طهارت حقیقت په باره کښې دې نه دطهارت حکمیه په باره کښې دینه معلومه شوله چه دمانځه دپاره طهارت حکمیه په اجماع دامت شرط دې په هر صورت داحدیث ددوئ خلاف حجت دې .

البته دجنازې د مونځ اوسجدة تلاوت په باره کښې اختلاف دې .

① د جمهورو مذهب دا دې چې د جنازې د مونځ اوسجده تلاوت دپاره طهارت شرط دې.

② دامام ابن جریر طبری رحمه الله اودعامر شعبی او ابن علیه مسلك دا دې چه د جنازې مونځ بغیرد اودس څخه صحیح دې . دغه شان د سجده تلاوت باره کښې دامام بخاری رحمه الله مسلك دابن جریر طبری رحمه الله عامر شعبی اوابن علیه سره مطابق دې.

**امام بخاری ته د جنازې دپاره دعدم طهارت د قول نسبت:** دا مسلك امام بخاری رحمه الله ته هم منسوب دې . خو دا نسبت صحیح نه دې . په حقیقت کښې خلقو ته دا مغالطه د دې خبرې څخه شوې ده.چه امام بخاری رحمه الله د مونځ د جنازې په باره کښې یوځائې لیکلې دی چه ((انما هودعاء کسائرالادعیة)) دې څخه خلقو ته داغلط فهمی اوشوه چه د نورو دعاګانو په شان مونځ د جنازې هم بې اودسه کیدې شی . حال دا دې چه دامام بخاری رحمه الله دا منشاء نه وه بلکه دمانځه د جنازې حقیقت ښودل ئې مقصود وو

**د جمهورو دلیل:** حدیث د باب دجمهورو دلیل دې . ځکه چه سجده تلاوت هم یوقسم مونځ دې چه دهغې دلیل دادې . چه قرآن حکیم کښې دسجود په وئیلوسره پوره مونځ مراد اخستې شوې دې مثلا ((ومن اللیل فاسجدله وسبحه لیلاً طویلاً)) اود شپې په څه حصه کښې د هغه الله دپاره سجده کوه.(یعنی مونځ کوه) او اوږده شپه د هغه تسبیح وایه.

**د عدم شرطیت طهارت دلیل:** ددوی استدلال په صحیح بخاری کښې دحضرت ابن عمر

ﷺ يو اثر دې چه تعليقًا روايت شوې دې چه هغې كښې دا الفاظ دي «سجد على غير وضوء»
**جواب:** خو ددې جواب دا دې چه دبخارى داصيلى په نسخه كښې د «سجد على غير وضوء» په خائې «سجد على وضوء» راغلى دې چه د جمهورو په مسلك صريح دليل دې.
**په وخت د ضرورت د جنازې دپاره تيمم:** زمونږ حنفيانو په كتابونو كښې دى كه جنازه حاضره شوه اوجماعت تيار دې.سړى ويريږى كه اودس كوى نو د جنازې مونځ په تړې فوت شى.نو دپاره تيمم جائز دې.
**د طهور لغوى معنى:** بضم الطاء مصدر دې . اوبفتح الطاء اله ده دلته بضم الطاء راغلى دې . دې وجه نه معنى به د طهارت وى چه طهارت حقيقى اوحكمي دواړوته شامل دې
**د فاقد الطهورين مصداق:** ددې حديث لاندې شارحين يوه دا فقهى مسئله ذكر كوى. يعنى د فاقد الطهورين. يعنى چه چا سره نه اوبه وى اونه داسې څيز وى چې په هغې باندې تيمم كيږى. نو هغه به څه كوى؟ دا صورت په زمانه قديم كښې خوشاذو نادر وو .نو نن صبا ډير پيښيږى.مثلاً يو سړې په هوائى جهاز كښې دې.
په جهاز كښې نه اوبه وى اونه هغه څه چې تيمم پرې روا كيږى.
① دامام ابوحنيفه رحمه الله مسلك دادې . چه داسړې دې مونځ نه كوى . بلكه روستو دې قضاء اوكړى .
② دامام احمد رحمه الله مسلك دا دې چه دغه وخت دې مونځ اوكړى او بيا پرې قضاء واجب نه ده .
③ دامام مالك رحمه الله مسلك دا دې چه داسې سړې څخه مونځ ساقط دې.نه په دغه وخت كښې مونځ كول ضرورى دى اونه به روستوقضاء راوړى .
④ دامام شافعى رحمه الله نه دې باره كښې څلوراقوال مروى دى .يو د امام ابو حنيفه رحمه الله مطابق اودويم د امام احمد رحمه الله مطابق اوداعلامه مزنى اختيار كړې دې . دريم قول دادې چه «يصلى استحبابا ويقضى وجوبا» په هغه وخت كښې دې د مستحب په حيثيت مونځ اوكړى.او بيا به يې روسته قضاء راوړل واجب وى. اوڅلورم قول دادې چه «يصلى ويقضى وهوالاصح من اقواله» يعنى په هغه وخت كښې به هم مونځ كول فرض وى.او روسته به د هغې قضاء راوړل هم ضرورى وى.اودا د وى په اقوالو كښې اصح قول دې.
⑤ امام ابويوسف رحمه الله اوامام احمد رحمه الله دافرمائى چه فاقد الطهورين خوبه دغه وخت صرف تشبه بالمصلين اوكړى يعنى دمونځ شكل به جوړ كړى . قراءت به نه كوى اوروستوپرې قضاء لازم ده . د امام ابوحنيفه رحمه الله څخه هم دې قول ته رجوع ثابته ده .
**مفتى به قول:** اوداحنافو په نيز په دې فتوى ده. او دا قول فقهى اعتبار سره زيات مرجح

دې داځکه چه شریعت کښې ددې متعدد نظیرونه شته چه کله یو سړې د عبارت په حقیقت قادر نه وی نو هغه ته د تشبیه حکم شوې دې .
① مثلا یو ماشوم د رمضان په میاشت کښې بالغ شی یاکافر مسلمان شی یاحائضه پاکه شی . نو دوئ ته د باقی ورځ د امساك حکم دې چه کوم تشبیه بالصائمین دې
② دارنگه چه د چا حج فاسد شی نو هغه ته حکم دې چه د دې باقی مناسك حج د نورو حاجیانو په شان اوکړی . چه تشبه بالحجاج ده .
**استدلال:** نو په به قیاس کولې شی اوفاقد الطهورین ته به د تشبه بالمصلین حکم ورکولې شی . او دا حکم د شریعت د قواعدو عین مطابق دې . او حدیث باب هم د احنافو تائید کوی . ځکه چه حدیث په رنړا کښې هر قسم مونځ بغیر د طهارته صحیح نه دې اودې اطلاق کښې د فاقد الطهورین مونځ هم داخل دې .
ددې حدیث لاندې دویمه فقهی مسئله چه بیانیږی هغه ، ،مسئله البناء ' ده .
① د احنافو په نیز که د مونځ په دوران کښې یومونځگذار ته حدث لاحق شی نوده لره جائز دی چه لاړشی اودس اوکړی . او واپس راشی او پخپله سابقه افعالو بناء اوکړی .
② د شافعیه وغیره په نیز دا صورت جائز نه دې
**د شوافعو دلیل:** حافظ ابن حجر رحمه الله د شافعیانو ترجمانی کوی او ددې حدیث څخه د احنافو خلاف استدلال کوی چه څومره وخت طهارت نه بغیر تیرشی دا به صلوة بغیر طهور وی . چه حدیث باب په بناء صحیح نه دې
**جواب:** ددې جواب دا دې چه اودس دپاره تلل دمانځه جزء نه دې هم دغه وجه ده چه بناء کوونکې به مونځ د هغه ځائې نه شروع کوی چه کوم ځائې څخه حدث لاحق شوې وو . که تلل راتلل د مانځه جزء وې . نو چه امام دې وخت کښې څومره مونځ کړې دې . د هغې د واپس کولو ضرورت به نه وو .
**اشکال:** په دې اشکال کیږی چه ذهاب وایاب چه دمانځه جزء نه شو نو دا عمل کثیر دې . اوپه عمل کثیر خومونځ فاسدیږی .دارنگه چه دا مونځ نه دې . نودې کښې د کلام اجازت ولې نشته؟
**جواب:** ددې جواب دا دې چه دې عمل کثیر سره دمونځ نه فاسدیدل اوپه دې دوران کښې دکلام ممنوع کیدل دواړه خلاف قیاس دی.اودا دواړه ددې راروان حدیث څخه ثابت دی.
**د حنفیانو دلیل:** دحضرت عائشه رضي الله عنها نه مرفوعًا او دارقطنی د حضرت ابوسعید خدری رضي الله عنه اودعبدالله بن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړې دې . یعنی «قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من اصابه قیئ اورعاف اوقلس اومذی فلینصرف فلیتوضأ ثم لیبن علی صلوته وهوفی ذلك لایتکلم» رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی.کوم مونځگذار ته چې د مانځه په دوران کښې قئ ورغلل،یا یې

په پوزه وینه راغله او کړو یا ترې مزی لاړه نو واپس دې شی او دس دې او کړی او په خپل مونځ دې بناء او کړی خو دې به په دې دوران کښې خبرې نه کوی.(۱)
په دې حدیث اعتراض کیږی چه د دې حدیث ټول طرق ضعیف دی.
① د ابن ماجه روایت د اسماعیل بن عیاش عن ابن جریج حجاز طریق سره راغلې دې او د اسماعیل بن عیاش روایت که د غیر شامین څخه وی. هغه مقبول نه وی. او ابن جریر حجازی دې شامی نه دې
② او د عبدالرزاق په روایت کښې یو راوی سلیمان بن ارقم دې هغه متروك دې
③ د سنن دار قطنی د ابوسعید خدرې په روایت کښې ابوبکر الداهری ضعیف دې
④ او د ابن عباس په روایت کښې عمر بن رباح ضعیف دې. د دې وجې دا حدیث قابل استدلال نه دې. د دې اعتراض درې جوانه دی.
① دا حدیث په متعدد طرقو سره مروې دې او چه ضعیف حدیث په متعدد طرقو سره مروی وی نو هغه حسن لغیره کیږی او په هغې باندې استدلال صحیح وی.
② د دې حدیث طرق موصوله اګر چه ضعیف دی. خو مصنف عبدالرزاق سنن دارقطنی او د ابن ابی حاتم په علل الحدیث کښې هم دا حدیث د ابن ابی ملیکه څخه مرسلاً نقل کړې دې. او دا طریق سنداً هم صحیح دې. (۲) لکه ابن حاتم په په علل کښې دارقطنی کښې په سنن کښې هم دې طریق مرسل لره صحیح ګرځولې دې. (۳) دې نه علاوه د امام بیهقی رحمه الله دا حدیث ابن جریج عن ابیه په طرق سره مرسلاً روایت کړې دې (۴)
او دا ئې صحیح ګرځولې دې او مرسل حدیث نه صرف زمونږ بلکه د جمهورو محدثینو په نزد استدلال صحیح دې.
③ د متعدد صحابه کرامو څخه د حدیث دا مضمون موقوفا ثابت دې کوم چې لاندې مونږ ذکر کوو.
① **د علی رضي الله عنه اثر**: دارقطنی د حضرت علی قول نقل کوی. او فرمائی ((**حدثنا یزید بن الحسن بن یزید البزاز نا محمد بن اسماعیل الحسانی نا وکیع نا علی بن صالح و اسرائیل عن ابی اسحق عن عاصم عن علی رضي الله عنه قال اذا وجد احدکم فی بطنه رزأ او قیئا او رعافا فلینصرف فلیتوضأ ثم لیبن علی صلوته مالم یتکلم**)) (۵)

---

(۱) لفظه للابن ماجه ۸۵\ کتاب الصلوة باب ماجاء فی البناء علی الصلوة)
(۲) رواه الدارقطنی أیضا عن ابن جریج عن ابیه مرسلا وقال أصحاب ابن جریح الحفاظ عنه یروونه عن ابن جریح عن أبیه مرسلا ۱\۱۵٤) _
(۳) علل الحدیث لابن ابی حاتم ۱\۳۱ مطبوعة بغداد سنه ۱۳٤۳هه ) _
(٤) رواه البیهقی ۲\۲۵۶ ) _
(۵) دارقطنی کتاب الطهارت باب فی الوضوء من الخارج من البدن کالرعاف والقیء والحجامة ونحوه)

امام دارقطنی او ددوئ محشی علامه عظیم ابادی په دې سکوت کړې دې . او دار روایت بیهقی هم په دري طرقو سره ذکر کړې دې . اوددې په راوی عامر بن ضمره باندې ئې کلام کړې دې . خو حافظ ماردینی رحمه الله په الجوهر النقی کښې لیکلي دی .(۱) چه هم دا روایت په مصنف ابن ابی شیبه کښې په داسې سند سره راغلې دې. چه هغه علی شرط الصحیح دې.

② **د ابن عمر رضی الله عنهما اثر:** دغه شان په بیهقی (۲) کښې دحضرت ابن عمر اثر مروی دې . ((نأفعاً حدثهم ان عبدالله بن عمر كان اذا رعف انصرف فتوضأ ثم رجع فبنى على ما صلى ولم يتكلم)) امام بیهقی رحمه الله ددې دنقل کولو نه پس فرمائی : (( هذا عن ابن عمر صحيح))

③ **د سلمان فارسی رضی الله عنه اثر:** دغه شان امام بیهقی رحمه الله دحضرت سلمان فارسی رضی الله عنه . او دابن عباس نه هم داسې اثار نقل کړې دي دا آثار اګر چه موقوف دی . خو چه مسئله غیر مدرك بالقیاس بلکه خلاف قیاس ده . د دې وجې داټول آثار د مرفوعه په حکم کښې دی. اوددې په رڼړا کښې بره مذکورحدیث مرفوع ته هم صحیح وئیلې شی .

**[۳۰۱] بغیر د طهارته مونځ نه قبلیدل**

۳۰۱- ( ) [۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] ((لَا تُقْبَلُ صَلَاةٌ بِغَيْرِ طُهُورٍ [۳] وَلَا صَدَقَةٌ مِنْ غُلُولٍ)). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عمر رضی الله عنهما راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲] بغیر د طهارت څخه مونځ نه کیږي [۳] او د حرام مال خیرات نه قبلیږي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① غُلُولٍ: أَيْ: مَالٌ حَرَامٌ: اصل کښې غلول خیانت فی الغنیمت ته وائی خو دلته ترې حرام مال مراد دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَلَا صَدَقَةٌ مِنْ غُلُولٍ:

**د صدقې لغوی معنی:** صدقه هغه څیز ته وائی کوم چې ته په فقیرانو او غریبانانو باندې خرج کړې.دغه شان کومه چې ته د الله په لار کښې ورکړې.

**د صدقې اصطلاحی تعریف:** امام راغب فرمائی چې صدقه هغه ده کومه چې یو انسان د ثواب په نیت د خپل مال نه خرج کړی.لکه زکاة خو په اصل کښې صدقه هغه څیز ته وائی

(۱) الجوهر النقی فی الرد علی البیهقی)-

(۲) سنن بیهقی ابواب الصلوة باب من قال یبنی من سبقه الحدث علی ما مضی من صلوته.

(۳) اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب وجوب الطهارة للصلاة(رقم-۲ -(۲۲٤) وابن ماجه كتاب الطهارة وسننها باب لا يقبل الله صلاة بغير طهور (رقم-۲۷۲) واحمد فی المسند:-۳۹/۲ وابود اود كتاب الطهارة ، باب فرض الوضوء (رقم-۵۹) والترمذی كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء لا تقبل صلاة بغير طهور(رقم-۱ ۱) والنسائی كتاب الطهارة /باب فرض الوضوء(رقم-۱۳۹)

چې د زړه د خوشحالۍ نه ورکړې شي.

**د غلول لغوي معنی:** غلول دباب دنصر نه مصدر دې .د په لغت کښې د اوښانو غلا ته وائي.

**د غلول اصطلاحي معنی:** د فقهاؤ په نيز د مال غنيمت څخه غلا کولو ته وائي.بياد دې په مفهوم کښې وسعت راغلو.او اوس مطلقاً په هرامانت کښې خيانت ته غلول وائي . بعضې حنفي فقهاء وائي . چه دې حديث کښې د غلول څخه مراد هره هغه ګټه ده . چه په ناجائز طريقه حاصل شوې وي

**د حديث مطلب:** د حديث مطلب دا دې چه د ناجائز ګټې څخه صدقه نه قبليږي که دلته د قبول څخه قبول اصابت مراد شي نو دا حديث به په دې صورت محمول وي چه کله د ناجائز آمدني مالك معلوم وي . ځکه چه داسې صورت کښې صدقه بالکل صحيح نه ده . بلکه اصل مالك ته واپس کول واجب دي اوکه د قبول څخه قبول اجابت مراد شي نو دې کښې به هغه صورت داخل وي . چه کله مالك معلوم نه وي د حنيانو په نزد په داسې باندې صدقه کول واجب دي خو د صدقه کولو په وخت کښې به دثواب نيت نه ساتي . بلکه د فراغ الذمه نيت کول پکار دي .

**د ناجائزه ګټې صدقه کول:** دناجائز آمدنۍ چه د هغې مالك معلوم نه وي دا صدقه کول واجب دي دا دامام ابوحنيفه رحمه الله مسلك دې .

**دليل:** په سنن دارقطني کښې روايت دې چه دامام ابوحنيفه رحمه الله نه تپوس اوشو چه تادا حکم دکوم خائې څخه مستنبط کړوچې د حرام مال صدقه کول واجب دي؟ نو امام صاحب اوفرمائيل چه (من حديث عاصم بن كليب)چې دا حکم ما د عاصم بن کليب رحمه الله د روايت څخه مستنبط کړې دې.

**دعاصم بن کليب روايت:** دعاصم بن کليب حديث امام ابوداؤد په خپل سنن کښې روايت کړې دې [1] چه يوې ښځې نبی کريم ﷺ ته دعوت ورکړو . دوی ﷺ غوښه اوچته کړه وې.وې فرمائيل چه داسې معلوميږي چه چيلۍ دمالك د اجازت څخه بغير حاصل شوې دې تحقيق کولو باندې ښځې اووئيل چه ما د چيلۍ اخستو دپاره سړې ليږلې وو . خو چيلې ورته ملاو نشو . ما د ګاونړي څخه چيلۍ اخستل اوغوښتل نو هغه هم موجود نه وو د ده داجازت څخه بغير دا چيلۍ ماته راوليږلـه .دوئ چه دا واوريدل نوارشاد ئې اوفرمائيل((اطعمه الاسارى)) دا قيديانو باندې اوخروئ .

**استدلال:** د دې څخه معلومه شوه چه ملك خبيثه واجب التصدق دې. البته دثواب نيت په کښې نه دې کول پکار بلکه د ذمې د فراغت نيت به ساتي .

**د علامه ابن قيم رحمه الله قول:** علامه ابن قيم رحمه الله فرمائي چه دالله تعالى د رحمت څخه د

---

[1] ابوداود ،كتاب البيوع باب فى اجتناب الشبهات) _

ثواب اميد هم اوساتي نو څه پرواه نشته

**تطبيق:** زمونږ مشائخ فرمائي چه حقيقت کښې دثواب دوه حيثيتونه دی . يو خود صدقه ثواب اوبل د اطاعت باری ثواب دلته به دصدقه ثواب خونه ملاويږی خو دده داطاعت ثواب به ضرورملاوېږی . چه ده دالله تعالی حکم اومنلو اوپه خپله ئې د استعمالولو په ځائې نوروته ورکړو دا د علماؤپه اقوالو کښې بهترين تطبيق دې .

**[۳۰۲]په مذی وتلو سره د اودس ماتيدل**

۳۰۲–(١) [٣] [١]«وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] كُنْتُ رَجُلًا مَذَّاءً، [٣] فَكُنْتُ أَسْتَحْيِي أَنْ أَسْأَلَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِمَكَانِ ابْنَتِهِ [۴] فَأَمَرْتُ الْمِقْدَادَ، فَسَأَلَهُ، [۵] فَقَالَ: يَغْسِلُ ذَكَرَهُ وَيَتَوَضَّأُ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت علي کرم الله وجهه فرمايي [٢] چه ما به ته مذي زياته راتله [٣] د حضور ﷺ لور (بي بي فاطمه رضی الله عنها) زما په نکاح کې وه ځکه ماته د حضور ﷺ څخه د دې حکم په پوښتلو کې شرم راتلو (چې آيا په دې سره غسل واجبيږي که اودس) [۴] ځکه ما دا مسئله د حضور ﷺ څخهٔ دريافت کولو د پاره حضرت مقداد رضی الله عنه مامور کړو هغه د حضور ﷺ څخه پوښتنه وکړه (چې يو داسې سړي دې په دې باره کې څه حکم دي) [۵] حضور ﷺ وفرمايل چه مذي وتلو باندې يوازې دمتيازو ځاي وينځي او اودس دې وکړي. (بخاري او مسلم)

**حل اللغات:** ① مَذَّاءً: أَيْ كَثِيرَ الْمَذْيِ: يعنی زياته مذی به راتله. وَهُوَ مَاءٌ رَقِيقٌ أَصْفَرُ يَخْرُجُ عِنْدَ الشَّهْوَةِ الضَّعِيفَةِ: مذی زيړ بخنې د اوبو په شان يو ټينګه ماده ده چه دَ ملاعبت دَ ښځې او محبوب دَ وجې نه يا د تذکر جماع په وخت کښې دَ شهوت دَ شوق دَ وجې نه خارجيږی. ② أَسْتَحْيِي : حيا مې کوله يعنی شرم راتلو (چه د مذی دحکم تپوس اوکړم)، ③ لِمَكَانِ ابْنَتِهِ: أَيْ: فَاطِمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا لِكَوْنِهَا تَحْتَهُ: ځکه چه دنبی ﷺ لور بی بی فاطمه رضی الله عنها د حضرت علی رضی الله عنه په نکاح کښې وه.

**تسهيلات:**

**قوله: كُنْتُ رَجُلًا مَذَّاءً:** دَ مذی په خارجيدو سره صرف اودس ماتيږی په دې وجه اودس واجب اوغسل واجب نه دې. په دې کښې خو دَ ټولو اتفاق دې

**دانسانی رطوباتو درې قسمونه:** دانسان بدن نه چې کوم رطوبتونه خارجيږی هغه په درې قسمه دی.

① منی :هغه غليظه ماده چې د بچی د پيدائش سبب جوړيږی. دې سره غسل واجبيږی. هرکله چې بدن څخه په شهوت سره اوځی.

(١) اخرجه بخاری کتاب الوضوء باب من استحيا فأمر غيره بالسؤال(رقم-١٣٢) مسلم کتاب الحيض باب المذی(رقم-١٧ - (٣٠٣)) واحمد فی المسند:- ٨٠/١

۲ مذی:دا هغه سپینې اوبه دی کومې چې د ملاعبت مع الزوجه په وخت خارجیږی. دې سره غسل نه واجبیږی. بلکه اودس واجبیږی. په منی او مذی کښې دا فرق دې چې منی شهوت ختموی او مذی شهوت زیاتوی.

۳ ودی: دا هغه سپینې اوبه دی کومې چې متیازو څخه پس د ټینګ څاڅکی په صورت خارجیږی. دې سره هم اودس واجب کیږی. او غسل نه واجبیږی.

**د اودس په وخت کښې د محل د وینځلو په مقدار کښې مذاهب:**

اختلاف په دې کښې دې چه دَ اودس په وخت څومره اندازې سره اندام مخصوصه وینځل پکاردی؟

۱ دَ امام احمد بن حنبل رحمه الله په نیزپوره اندام مخصوصه وینځل دی.

۲ امام مالك ذکر مع الانثیین وینځل ضروری ګرځوی.

۳ دَ جمهورو په نیزد موضع النجاسة په اندازې سره وینځل ضروری دی

**د اول فریق دلیل:** دوی د هغه روایت نه استدلال کړې دې په کوم کښې چه [واغسل ذکرك] الفاظ راغلی دی اودَ ذکر اطلاق په پوره باندې کیږی.

**د دویم فریق دلیل:** دوی دَ ابوداؤد شریف دَ هغه روایت نه استدلال کړې دې په کوم کښې چه دَ مذاکیر او انثیین ذکردې چه په جلد اول کښې ذکردې.

**د دریم فریق دلیل:** اصل قاعده او قانون د نجاست دَ ختمولوده نوچه ترکومې پورې نجاست دې هغه ځائی پورې وینځل واجب دی.

**داول او دویم فریق د دلیل جواب:** که دنجاست د ختمولو نه دَ زیاتی ذکر راغلې دې یا دَ انثیین ذکر راغلې دې نوهغه علاجاً او تبریداً دې چه زیاتې اوبه اچولو سره یخوالې راځی په کوم سره چه دَمذی ماده راوتل بندیږی دا حکم دَ مسئلې په توګه نه دې بلکه دَعلاج په توګه دې. یا دا حکم استحبابی دې وجوبی نه دې.

**قوله:** لِمَكَانِ ابْنَتِهِ:

**د نبی علیه السلام نه د نه تپوس کولو وجه:** یعنی فاطمه رضی الله عنها زما په نکاح کښې وه اوس دَ حضورپاك په وړاندې دَ مذی، منی او ودی غوندې پټو خبرو ذکرکولو نه حیاء مانع وه. دَدې حدیث دَدې جملې نه یو لطیف اخلاقی تعلیم ملاویږی چه څوم له دَ سخر په وړاندې دَ شهوت سره متعلق خبرې چیړل مناسب نه دی.

**قوله:** فَأَمَرْتُ الْمِقْدَادَ: یعنی ما حضرت مقداد رضی الله عنه ته عرض اوکړو چه دا مسئله تاسو معلومه کړنې.

**په روایاتو کښې تعارض:** په دې حدیث او نورو احادیثو کښې تعارض دې څکه چه په یو

روایت کښې دی چه حضرت علی رضي الله عنه د حضرت مقداد رضي الله عنه ته د سوال کولو او مسئلې معلومولو دپاره اووئیل مګر په یو بل روایت کښې دی چه د حضرت عمار رضي الله عنه په ذریعه ئې د مسئلې تپوس اوکړو. په دریم روایت کښې دی چه حضرت علی رضي الله عنه پخپله د مسئلې تپوس اوکړو لکه څنګه چه د فصل ثانی حدیث نمبر(۳۱) کښې راځی.

**د تعارض دفع کولو دوه طریقې:** ① حضرت علی رضي الله عنه په مجلس کښې خبره اوکړه نوحضرت مقداد رضي الله عنه هم تپوس اوکړو او په مجلس کښې ناست حضرت عمار رضي الله عنه هم تپوس اوکړو نو روایتونه دوه شو اوحضرت علی رضي الله عنه په شروع کښې په وجه د حیاء بالواسطه تپوس اوکړو بیا د تسلئی حاصلولو دپاره ئې بغیرد واسطې تپوس اوکړو.

② روستو حضرت علی رضي الله عنه سوچ اوکړو چه په دینی مسائلو کښې که چرې حیاء مانع شوه نود ډیرو زیاتو مسئلو نقصان به اوشی په دې وجه ئې روستو پخپله تپوس اوکړو ځکه چه [إن الله لا يستحي من الحق] حکم دې.

**[۳۰۳] د اور پخ شوی څیز په خوراک د اودس نه ماتیدل**

٣٠٣-(¹) [۴] ① (وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ② («تَوَضَّئُوا مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ») (رَوَاهُ مُسْلِمٌ). ③ قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ الْأَجَلُّ مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ ④ هَذَا مَنْسُوخٌ بِحَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي ② چې کوم شي چې اور پوخ کړي وي د هغه دخوړلو څخه وروسته اودس کوئ. (مسلم) ③ امام محي السنة رحمه الله فرمايي ④ دا حکم د ابن عباس رضي الله عنه په هغه حديث سره منسوخ دي

**حل اللغات:** ① مَسَّتِ النَّارُ: وَهُوَ الَّذِي أَثَّرَتْ فِيهِ النَّارُ: هرهغه څيز چه په اور پخ شوې وی.

٣٠٤-(²) قَالَ: ① «إِنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَكَلَ كَتِفَ شَاةٍ ② ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① چې حضور ﷺ د بزي (چیلۍ) د لاس غوښه وخوړله ② بیا یي مونځ وکړو او اودس یي ونه کړلو. (بخاري او مسلم)

**حل اللغات:** ① كَتِف: اوګه ② شَاة: چیلۍ، بزه،

(¹) اخرجه مسلم كتاب الحيض باب الوضوء مما مست النار(رقم-(٣٥٢)) و اخرجه احمد فى المسند:-٢/٢٦٥ والترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب الوضوء مما غيرت النار(رقم-٧٩) والنسائى كتاب الطهارة/باب الوضوء مما غيرت النار (رقم-١٧٥)

(²) اخرجه بخارى كتاب الوضوء،باب من لم يتوضأ من لحم الشاة والسويق وأكل أبو بكر، وعمر، وعثمان، رضى الله عنهم، «فلم يتوضئوا(رقم-٢٠٧) ومسلم كتاب الحيض باب نسخ الوضوء مما مست النار(رقم-٩١ - (٣٥٤)) و ابوداود باب فى ترك الوضوء مما مست النار(رقم-١٩٠)باب فى ترك الوضوء مما مست النار(رقم-١٩٠) واحمد المسند:-١/٢٦٧

**تسهيلات:**

**قوله: تَوَضَّئُوا مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ:** کوم څیز چې په اور پوخ شوې د هغې په خوړلو سره اودس ماتیږي که نه ؟ دې باره کښې د صحابه کرامو په زمانه کښې معمولي شان اختلاف وو.

**د مما مست النار په خوراک سره نقض وضوء کښې مذاهب:**

① په ممامست النارسره د اودس په باره کښې د ابن عمر، ابو موسی اشعری ،ابوطلحه ،عائشه ،زید بن ثابت او ابوهریره په نیز اودس ماتیږي. خوعلامه نووي فرمائی چه اوس په دې خبره باندې اجماع مقرر شوې ده. چه((وضوء ممامست النار))واجب نه دې.

② دجمهورو په نیز د ((ممامست النار))په خوراك سره اودس نه ماتیږي.

**د نقض دلائل:** کوم حضرات چې د نقض وضوء مما مست النار قائل دی د هغوی دلیل حدیث الباب دې. کوم چې ابوهریره رضی الله عنه بیان کړې دې.دغه شان د دوی دپاره هغه احادیث هم مستدلات کومو ته چې امام ترمذی رحمه الله په ((وفی الباب))سره اشاره کړې ده.اومونږ لاندې په حاشیه کښې نقل کړی دی.

**جوابونه:** د جمهورو د طرفه د حدیث الباب او ددې پشان نورو احادیثو درې مختلف جوابونه ورکړې شوی دی.

① د ((وضوءمما مست النار)) حکم منسوخ شوې دې.او ددې دلیل ابوداود کښې د حضرت جابر رضی الله عنه روایت دې ((قال کان اخر الامرین من رسول الله صلی الله علیه وسلم ترك الوضوء مما غیرت النار)). ()

② د اودس حکم استحباب باندې محمول دې په وجوب باندې نه دې.ددې دلیل دادې چه حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه اودس هم ثابت دې او ترک وضوء هم او دا داستحباب شان دې.

③ په دې باب کښې وضوء څخه وضوء اصطلاحی مراد نه دې. بلکه وضوء لغوی ده. یعنی لاس ، مخ وینځل ، ددې دلیل د حضرت عکراش بن ذویب رضی الله عنه روایت دې.چه په هغې کښې هغوئ د یوې ښځې واقعه بیانوی او فرمائی چه ((ثم اتینا بماء فغسل رسول الله صلی الله علیه وسلم یدیه ومسح بیدیه ومسح ببلل وجهه وذراعیه وراسه وقال یاعکراش هذا الوضوء مما غیرت النار))()

هم داشان مسندبزار عبدالرحمن بن غنم اشعری رضی الله عنه فرمائی چه((قلت لمعاذ بن جبل هل کنتم تتوضون مما غیرت

---

[1] ابوداؤد باب ترک الوضوء مما غیرت النار(۱۱\۲۸)-

[2] جامع ترمذی المجلد الثانی کتاب الاطعمة باب ماجاء فی التسمیة علی الطعام)-

النار قال نعم اذا اکل احدنا طعاما مما غیرت النار، فغسل یدیه وفاه فکنا نعد هذا وضوء)) (١)

③ امام بیهقی رحمه الله فرمائیلی دی (٢) چی په وضوء مما مست النار په احادیثو کښې تعارض دې او د تعارض په وخت کښې رجوع عمل د صحابؤ ته کولې شی.او صحابه کرامو به د مما مست النار څخه اودس نه کولو په بخاری کښې روایت دې ((اکل ابوبکر وعمر وعثمان لحما فلم یتوضؤا)) (٣)

شیخ الاسلام محمد تقی مدظله العالی په درس ترمذی کښې فرمائی محدثینو او فقهاء کرامو دا درې توجیهات بیان کړی دی، په مجموعه روایاتو باندې د غور کولو څخه پس چې کومه خبره د احقر په پوهه کښې راځی هغه داده چه دا واړه توجیهات په یو وخت درست اوصحیح دی ،یعنی د وضو مما مست النارڅخه اودس لغوی مراد دې اودا عمل مستحب وو واجب نه وو. یا اودس څخه به شرعی اودس واخستې شی نو بیا ددې استحباب هم منسوخ کړې شو.بیا ئې د دې هریو مراد اخستلو دپاره څه شواهد هم ذکر کړی دی.خوزمونږ د مدعی دپاره دومره تفصیل زما په خیال کافی دې د دې وجې هغه شواهد نه ذکر کوم چې مفتی صاحب ذکر کړی دی.

**د عدم نقض دلائل:**

① ((عن جابر رضی الله عنه قال خرج رسول الله ﷺ وانا معه ودخل علی امراة)) الحدیث د دې حدیث په آخر کښې دی چې نبی کریم ﷺ غوښه اوخوړله اوبغیر داودس کولو څخه ئې د مازیګر مونځ اوکړو

② د سوید بن نعمان رضی الله عنه روایت دې چې رسول الله ﷺ ستوان اوخوړل اوبیا ئې د مازیګر مونځ اوکړو او دس ئې اونکړو (٤) د دې څخه علاوه نور هم ګڼ روایات په عدم نقض باندې دلیل دی.

**[٣٠٥] د اوښانو غوښې خوړلو نه پس د اودس عدم وجوب**

٣٠٥-(٥) [٥] ١ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، ٢ «أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَتَوَضَّأُ مِنْ لُحُومِ الْغَنَمِ؟ ٣ قَالَ (إِنْ شِئْتَ فَتَوَضَّأْ، وَإِنْ شِئْتَ فَلَا تَوَضَّأْ) ٤ قَالَ: أَنَتَوَضَّأُ مِنْ لُحُومِ الْإِبِلِ؟ ٥ قَالَ: (نَعَمْ! فَتَوَضَّأْ مِنْ لُحُومِ الْإِبِلِ) ٦ قَالَ: أُصَلِّي فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ؟ قَالَ: (نَعَمْ) ٧ قَالَ: أُصَلِّي فِي مَبَارِكِ الْإِبِلِ؟ قَالَ (لَا)» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ او حضرت جابر بن سمره رضی الله عنه وایي یوسړي د حضور ﷺ څخه پوښتنه وکړه آیا

---

(١) کشف الاستارعن زوائد البزارص١٥١/١ ج/١ رقم ٢٩١).

(٢) سنن کبری للبیهقی باب ترک الوضوء مما غیرت النار(١\١٥٥)-

(٣) صحیح بخاری باب من لم یتوضا من لحم الشاة (١\٣٤)-

(٤) صحیح بخاری باب من مضمض من السویق ولم یتوضا (١\٣٤)-

(٥) اخرجه مسلم کتاب الحیض باب الوضوء من لحوم الابل (رقم-٩٧ - (٣٦٠)) ،واحمد فی المسند:٨۶/٥

مونږ د بزي (چیلی) غوښه خوړلو څخه وروسته اودس وکړم؟ ③ حضور ﷺ وفرمایل که ستا زړه غواړي نو اودس اوکړه که یي نه غواړي نو مه یي کوه ④ بیا هغه سړي پوښتنه وکړه آیا د اوښ غوښه خوړلو څخه وروسته اودس وکړم؟ ⑤ حضور ﷺ ورته وفرمایل هو د اوښ غوښه خوړلو څخه وروسته اودس اوکړه ⑥ بیا هغه سړي پوښتنه وکړه آیا د بزو د اوسیدو په ځاي کې مونځ کوم؟ حضور ﷺ ورته وفرمایل: هو، ⑦ بیا یي پوښتنه اوکړه آیا د اوښانو تړلو په ځاي کې مونځ کوم؟ حضور ﷺ ورته وفرمایل نه. (مسلم)

**حل اللغات:** ① لُحُومِ الْغَنَمِ: أَيْ: مِنْ أَكْلِهَا: دچیلۍ یا د اوښانو د غوښې نه مراد دهغې خوړل دی چه ددې دخوړلو نه پس د اودس څه حکم دی؟ ② مَرَابِض: دا د مَرْبِض جمع ده، وَهُوَمَوْضِعُ رُبُوضِ الْغَنَمِ: د ګډو او چیلو د واسیدلو ځاي ته وائی، غوجل، کنډاو. ③ مَبَارِك: د مَبْرَك جمع ده. د اوښانود اوسیدو ځاي، غوجل، باړ.

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنَتَوَضَّأُ مِنْ لُحُومِ الْإِبِلِ؟: دَاوښ غوښه خوړلونه پس اودس واجبیږی که نه؟ په دې مسئله کښې دَ فقهاء کرامو اختلاف دې.

**داوښ غوښې خوړلو نه پس د اودس په وجوب کښې مذاهب:**

① دامام احمد بن حنبل رحمه الله په نیز دَاوښ دَغوښې دَاستعمال نه پس اودس کول واجب دي. هغوی فرمائی چه دَمامست النار حکم عام وواودَ لحوم ابل حکم خاص دې. دَدې دَ مامست النار سره هیڅ تعلق نشته دواړو کښې فرق دې. لهذا دَاوښ غوښه خوړلونه پس اودس واجب دې دَمامست النار والاحدیث منسوخ کیدوسره به دَ لحوم ابل والاحدیث نه منسوخ کیږی. دَاسحاق بن راهویه رحمه الله هم دغه مسلك دې.[المرقات:۲/۴۲].

② دَجمهوروقول دې چه دَاوښ غوښه خوړلوسره اودس کول واجب نه دی.

**داول فریق دلیل:** حدیث الباب د دوی مستدل دې ځکه چې په دې کښې سائل ته نبی علیه السلام فرمائیلی دی چې د اوښ د غوښې خوړلونه پس اودس کوه.

**داول فریق د دلیل دوه جوابونه:** ① دا حکم په شروع کښې ووبیا مامست النار احادیث منسوخ کیدوسره داهم منسوخ شوځکه چه په دغه عموم کښې داهم داخل دې هیڅ فرق نشته دې.

② دلته اودس استحبابی مراد دې وجوبی نه دې. استحبابی اودس ځکه چه دَاوښ په غوښه کښې سخت دسومت، خراب بوئی او غوړوالې وی. په دې وجه اودس کول مستحب اوګرځولې شی.

**قوله: فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ؟:**

**د ګډو په غوجل کښې د مونځ حکم:** يعنې دَ چيلو په کنډاؤ کښې که چرته صفاځائى وى نوپه هغې کښې مونځ کول جائزدى که نه؟ حضورپاك اوفرمائيل جائزدې اودَ اوښانو په کنډاؤ کښې جائزنه دي.

**د اوښانو اوګډو په غوجل کښې فرق:** ① د اوښانواو ګډو د غوجل په حکم کښې دا فرق دې چه چيلئ يومسکين ځناوردې دې سره نيزدې په مونځ کولوکښې دَتشويش هيڅ خبره نشته

② ګرې په تيته متيازې کوى نودَ ځاځکوپريوتلوويره هم نه وى بياهغه په کانړيزه زمکه کښې اوسيږى هلته متيازې په زمکه کښې جذب کيدوسره خوريږى نه دَ دې برعکس اوښ يو متوحش ځناوردې دې سره نيزدې مونځ کولوکښې به تشويش وى

③ هغه لکه دَ آسمان دَاوچتوالى نه متيازې کوى په کوم سره چه دَ ځاځکو پريوتلوخطره وى. دغه شان هغه په نرمه زمکه باندې اوسيږى نومتيازې جذب کيدو سره خوريږى.

④ متيازې زياتې هم وى. لهذا دَاوښانو په غوجل کښې دَ مونځ کولونه منع کړې شوې ده اوهسې هم په عربو کښې دَ اوښانو کنډاؤ په ناپاکه ځائى کښې وو خلقو به پخپله هم هلته متيازې کولې.

**[۳۰۶] صرف د هوا وتلو شک پيدا کيدو باندې د اودس نه ماتيدل**

> ۳۰۶-() [۶] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②(«إِذَا وَجَدَ أَحَدُكُمْ فِي بَطْنِهِ شَيْئًا، ③فَأَشْكَلَ عَلَيْهِ أَخَرَجَ مِنْهُ شَيْءٌ أَمْ لَا. ④فَلَا يَخْرُجَنَّ مِنَ الْمَسْجِدِ حَتَّى يَسْمَعَ صَوْتًا أَوْ يَجِدَ رِيحًا»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابوهريره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② هرکله چې په تاسو کې خوك په خيټه کې دننه څه محسوس کړى (يعني ګړګړ) ③ او په هغه دا خبره مشتبه وي چې څه شي خارج شو که نه ④ نو تر هغه وخته پورې دي اودس د پاره د مسجد څخه بهر نه وځي ترڅو پورې چې آواز وانه وري يا بوي محسوس نه کړى (مسلم)

**حل اللغات:** ① بَطْنِهِ شَيْئًا: أَيْ كَالْقَرْقَرَةِ: ددې نه مراد په خيټه کښې د قُرقر. غرغُر آواز دې چه هوا په خيټه کښې تاؤ راتاؤ شى ② فَأَشْكَلَ: أَيِ الْتَبَسَ: شک شبهه ئې پيدا شى (چه هوا خارج شوه که څه چل اوشو) ③ صَوْتًا: أَيْ: صَوْتَ رِيحٍ يَخْرُجُ مِنْهُ: د آواز نه مراد باد وتل دى.

**تسهيلات:**

**قوله: حَتَّى يَسْمَعَ صَوْتًا أَوْ يَجِدَ رِيحًا:**

---

[۱] اخرجه مسلم كتاب الحيض باب الدليل على أن من تيقن الطهارة، ثم شک فى الحدث فله أن يصلى بطهارته تلک (رقم-۹۹ - (۳۶۲) وابوداود باب إذا شک فى الحدث (رقم-۱۷۷) واحمد فى المسند: ۲/۴۱۴

**په خروج ريح سره په نقض وضوء کښې د آواز اوريدو او بوئي محسوسولو عدم شرطيت:**
دا دوه څيزونه دَ نمونې او تمثيل په توګه ذکرکړې شوي دي په دې دوو کښې څه حصر نه دي، دغه شان په دې کښې هم حصر نشته چه دآواز اوريدل شرط دي يا بد بوئي راتلل شرط دي بلکه اصل مقصد يقين حاصليدل دي ځکه چه ترکومې يقين نه وي راغلې چه واقعي هوا خارج شوې ده ترهغه وخته پورې دَ شك په بنياد فيصله نه دي کول پکار نواصل څيزيقين راتلل دي ګنې که څوك کونړ وي نو آواز به نه اوري ياد چا قوت شامه خرابه ده په بوئي به نه پوهيږي نو ولې اودس به ني نه ماتيږي؟ خلاصه داچه په يقين راتلوسره به داودس دَماتيدوحکم لګولې شي بعضې غيرمقلدين په دې کښې نقصان کوي نوهغوی دَهوا خارجيدو نه پس هم دَ بدبوئي او دَ آواز انتظارکوي.

**[۳۰۷] دپيو څکلو نه پس د خُلې کنګالول**

۳۰۷–(۱) [۷] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ۲ «إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - شَرِبَ لَبَنًا فَمَضْمَضَ، ۳ وَقَالَ: (إِنَّ لَهُ دَسَمًا)» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او عبد الله بن عباس رضي الله عنهما راوي دي ۲ چې يو ځل رسول ﷺ شيدې (پې) وڅښلې او د هغه څخه وروسته يې خُله وينځله ۳ او وې فرمايل په شيدو کې غوړوالي وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① فَمَضْمَضَ: أَيْ: غَسَلَ فَمَهُ: خُله ني اووينځله ② دَسَمًا: أَيْ زُهُومَةٌ: غوړوالي،

**تسهيلات:** **قوله:** إِنَّ لَهُ دَسَمًا:

**مانځه کښې د شروع کولو نه وړاندې د خُلې نه د خوراک اجزاء لرې کول:** ددې حديث څخه معلوم شو چې هر هغه څيز چه خله کښې انخلی نو ددې د ازاله دَ مونځ څخه وړاندې ضروري ده.ګنې د مونځ په حالت کښې به مونځ ګزار ددې خوند محسوسوی څه حصه به خيټې ته لاړه شي نو دده شمير به هغه خلقو کښې اوشي کوم چې په مونځ کښې خوراك کوي او دا ناجائز دی. په دې وجه علماؤ ددې احتمال دَسومت دَ پاره په خله کښې اوبه اچول مستحب ګرزولي دی. يقيني اجزاؤ د ازالې دپاره خوخله کښې اوبه اچول ضروري دي،

**د حديث د باب سره مناسبت:** د دې حديث د دې باب سره مناسبت دا دې چې خله کښې اوبه اچول د اودس د اعمالو څخه يو عمل دې ځکه چې خله کښې اوبه اچول داودس دَ مکملاتو او مستحماتو څخه دی ، په دې اعتبار سره دا حديث پاك په نواقض وضوء کښې ذکر کړې شوې دې

(۱) اخرجه البخاري كتاب الوضوء باب: هل يمضمض من اللبن؟ (رقم-۲۱۱) ومسلم كتاب الحيض باب النضمضة من شرب اللبن (رقم-۹۵ - (۳۵۸))

## [۳۰۸] په يو اودس پنځه مونځونه كول

۳۰۸ -(۱) [۸] ① وَعَنْ بُرَيْدَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- ②«أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- صَلَّى الصَّلَوَاتِ يَوْمَ الْفَتْحِ بِوُضُوءٍ وَاحِدٍ، وَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ③ فَقَالَ لَهُ عُمَرُ: لَقَدْ صَنَعْتَ الْيَوْمَ شَيْئًا لَمْ تَكُنْ تَصْنَعُهُ! ④ فَقَالَ: (عَمْدًا صَنَعْتُهُ يَا عُمَرُ») رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت بريده ﷛ فرمايي چه د مكې د فتح په ورځ حضور ﷺ په يو اودس سره څو لمونځونه وكړل .يعني په يو اودس سره يې پنځه لمونځونه وكړل او په موزو يې مسح وكړله ② په دې ليدو سره حضرت عمر ﷛ حضور ﷺ ته اوويل چې نن تا هغه شي وكړو چې مخكې دې هيڅ كله نه دې كړې ③ حضور ﷺ ورته وفرمايل اې عمر ﷛ ما داسې قصداً كړې دي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① الصَّلَوَاتِ: د صلوة جمع دہ، ډير مونځونه (په دغه ورځ ئې پنځه مونځونه په يو اودس سره كړو وو، ② يَوْمَ الْفَتْحِ: أَيْ: يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ: يعني د فتح مكې په ورځ. ③ خُفَّيْهِ: دخف تثنيه ده. موزو ته وائي ④ عَمْدًا: قصدا (چه تاسوته معلومه شي چه په يو اودس باندې ډير مونځونه اداكول مكروه نه دي).

**د راوي مختصر تعارف:**

نوم بريده ابوعبدالله كنيت دَ پلار نوم ئې مصيب بن عبدالله وو.كله چه رسول الله ﷺ مدينې منورې ته اورسيدو نودې دَ حضور ﷺ په خدمت كښې حاضر شو تو رسول الله ﷺ هغه ته دَ اسلام دعوت وركړو نوهغه زر مسلمان شو اوده سره دَ بنواسلم ۸۰ كسان مالداران دَ اسلام په حلقه كښې داخل شو (۲)

په صلح حديبيه او بيعت رضوان كښې شامل وو. (۳) دَمكې دَ فتح په ورځ دې ورسره وو. (۴) تقريباً په ۱۶ غزوات كښې شريك شوې وو(۵) آخر لښكر كوم چه رسول الله ﷺ دَحضرت اسامه په مشرئې كښې جوړكړو په هغې كښې هم دې شريك وو (۶) دَ هغه په رګ رګ كښې دَ جهاد جذبه منډې وهلې فرمائيل به ئې دَ ژوند مزه دَآسونو په زغلولوكښې ده. (۷)

**وفات:** دَ يزيد په دورحكومت كښې ۶۳ھ كښې وفات شو.

**مرويات:** دَ هغوی نه دَ روايتو شمير ۱۶۴ دې، په يوحديث كښې بخاری اومسلم دواړه شريك دی او په باقی دوو كښې بخاری او ۱۱ مسلم شريف كښې منفرد دی.(۸)

**تسهيلات:** **قوله:** يَوْمَ الْفَتْحِ:

**د لمعت په حاصليدو نقل كول:** دې نه مراد فتح مكه ده اودَ شكرانې په توګه صلوة فتح اته ركعته كولې شی كوم چه حضورپاك كله كړی دی.

---

(۱) اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب جواز الصلوات كلها بوضوء واحد(رقم-۸۶ - (۲۷۷))

**د عمر رضی الله عنه د سوال کولو دوه وجوهات:**

① حضورپاك دَ هرمانځه دَپاره نوې اودس کولو اودې خل نی څو مونځونه په یواودس باندې اوکړل.

② حضورپاك په موزوباندې مسح اوکړه نودَحضرت عمر ﷺ دَ سوال په جواب کښې حضور پاك اوفرمائیل ماقصداً داسې اوکړل چه دَامت دَپاره یوقانون جوړشی اودَ دین په امورو کښې وسعت راشی.

**دهرمانځه دپاره په اودس کولو کښې مذاهب:**

① دَ داؤدظاهری وېناده چه ضروری اوواجب دی په دوی باندې مذکوره حدیث حجت دې

② دَ جمهورو په نیز دَ هرمونځ دَپاره نوې اودس کول مستحب دی. که اول اودس وی او یو کس نوې اودس کول غواړی نوده ته به دَ مستحب ثواب ملاوېږی

**[۳۰۹] د نبي علیه السلام د خوراک نه پس خُله کنګالول**

۳۰۹-() [۹] [۱] وَعَنْ سُوَيْدِ بْنِ النُّعْمَانِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- [۲] «أَنَّهُ خَرَجَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَامَ خَيْبَرَ [۳] حَتَّى إِذَا كَانُوا بِالصَّهْبَاءِ -وَهِيَ مِنْ أَدْنَى خَيْبَرَ- صَلَّى الْعَصْرَ، [۴] ثُمَّ دَعَا بِالْأَزْوَادِ، فَلَمْ يُؤْتَ إِلَّا بِالسَّوِيقِ، [۵] فَأَمَرَ بِهِ فَثُرِّيَ، فَأَكَلَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَكَلْنَا، [۶] ثُمَّ قَامَ إِلَى الْمَغْرِبِ، فَمَضْمَضَ وَمَضْمَضْنَا، ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ»، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

**ترجمه:** [۱] او سوید بن نعمان ﷺ راوي دي [۲] چې دي د رسول الله ﷺ سره د خیبر د فتح په کال په سفر لاړو [۳] کوم وخت چې مقام صهبا ته ورسیدل چې خیبر ته نزدې دي نو د مازیګر مونځ یې وکړو [۴] بیا حضور ﷺ توښه (د لارې توښه) وغوښتله نو د ستوان څخه علاوه بل څه نه وو کوم چې حاضر کړې شو [۵] او د حضور ﷺ په حکم سره هغه میده کړې شو بیا حضور ﷺ او مونږ هغه وخوړل [۶] بیا د مابنام لمانځه د پاره ودریدلو حضور ﷺ خله وینځله او مونږ هم وینځله او اودس مو ونه کړلو. (بخاري)

**حل اللغات:** ① عَامَ خَيْبَرَ: أَيْ: عَامَ غَزْوَةِ خَيْبَرَ: یعنی د غزوه خیبر په کال باندې. ② الصَّهْبَاءِ: وَهِيَ مِنْ أَدْنَى خَيْبَرَ: د خیبر نه راپه ښکته هغې ته نزدې یو ځای دې. ③- الْأَزْوَادِ: د زاد جمع ده، د سفر د لارې توښې (دخوراک څکاک) څیزونه. ④ السَّوِيقِ: وَهُوَ مَا يُجْرَشُ مِنَ الشَّعِيرِ وَالْحِنْطَةِ وَغَيْرِهِمَا: اوربشې غنم وغیره چه پاخه کړې شی او میده کړې شی هغې ته سویق وائی یعنی ستوان. ⑤ فَثُرِّيَ: أَيْ: بُلَّ: اصل کښې ثرۍ هغه شږې ته وائی کومه چه په خوړکښې د پورتنۍ ښکاره شږې لاندې وی، خو دلته دا مراد دی چه ثرید تری جوړ کړې شو یعنی لامده کړې شو چه خوړلو ته آسان شی. ⑥ فَمَضْمَضَ: أَيْ: غَسَلَ فَمَهُ: خُله ئې اووینځله

[۱] اخرجه بخاری کتاب الوضوء باب:باب من مضمض من السویق ولم یتوضأ (رقم-۲۰۹)

**تسهیلات:**

**قوله:** حَتّٰی إِذَا كَانُوا بِالصَّهْبَاءِ:

**د صهباء تعارف:** دا خیبر سره نزدې د يو ځائې نوم دې. سويق ستوانو ته وائی ، يو څيز مثلاً دغنمو يا اوربشو يا دَ جوارو دانې اول وريتوي بيا دا ميده کړی ، دې ته ستو وائی فثري ، دا د تثرية څخه دې ، ثړی لمدې خاورې ته وائی دلته ستو په اوبو کښې لوندول مراد دی، چې ددې خوراك آسان شی

# الْفَصْلُ الثَّانِي

**[۳۰] په باد وتلو سره د اودس ماتيدل**

۳۰-(۱)[۱۰] ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَا وُضُوءَ إِلَّا مِنْ صَوْتٍ أَوْ رِيحٍ» رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② اودس کول آواز يا بوي سره واجبيږي. (احمد ، ترمذي)

**حل اللغات:** ① صَوْتٍ: دلته د صوت نه مراد د خيتې نه د باد وتل دی په آواز سره، ② رِيحٍ: ددې نه مراد د باد وتلو بوئی دې کوم چه دخيتې نه خارج شی.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا وُضُوءَ إِلَّا مِنْ صَوْتٍ أَوْ رِيحٍ:

داحصر اضافي دې يعنی په جمات کښې دننه خو هم دغه حدث کيدې شی چه هوا دَ آواز سره يا بغير دَ آواز نه خارج شی. يا دا حصر دَ يوسوال کونکی په جواب کښې راغلې دې يعنی ما الحدث في المسجد يا ابا هريرة قال لا وضوء الا من صوت أو ريح.

**[۳۱] د مذي په وتلو د اودس ماتيدل**

۳۱-(۲)[۱۱] ① وَعَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «سَأَلْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنِ الْمَذْيِ، ③ فَقَالَ: (مِنَ الْمَذْيِ الْوُضُوءُ، وَمِنَ الْمَنِيِّ الْغُسْلُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت علي کرم الله وجهه فرمائی ② ما اد حضرت مقداد رضي الله عنه په واسطه سره) د حضور ﷺ څخه د مذي په بارهٔ کې معلومات وکړو ③ نو حضور ﷺ وفرمايل په

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/بباب لا وضوء إلا من حدث (رقم - ۵۱۵) والترمذي في السنن رقم الحديث ۷۴ واحمد في المسند ۲/ ۴۷۱

(۲) اخرجه الترمذي كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في المني والمذي (رقم- ۱۱۴) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب الوضوء من المذي (رقم - ۵۰۴)

مذي وتلو سره اودس لازميږي او په مني وتلو سره غسل واجبيږي. (ترمذی)

**حل اللغات:** ① الْمَذْيُ: وَهُوَ مَاءٌ رَقِيقٌ أَصْفَرُ يَخْرُجُ عِنْدَ الشَّهْوَةِ الضَّعِيفَةِ: مذی زیړ بخني د اوبو په شان يو نرمه ماده ده چه د ملاعبت د ښځې يا د جماع د تصور په وخت کښې د شهوت د شوق د وجې نه خارجیږی. ② الْمَنِيُّ: منی هغه سپينې اوبه دی کومې چې ټينګې وی او د هغې په وتلو سره په بدن کښې سستی پيدا کيږی

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دې حديث وضاحت وړاندې تير شوې دې.

## [۳۳] د مونځ کنجی

۳۳-()[۱۲] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② (( مِفْتَاحُ الصَّلَاةِ الطُّهُورُ ③ وَتَحْرِيمُهَا التَّكْبِيرُ ④ وَتَحْلِيلُهَا التَّسْلِيمُ ))، رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت علي کرم الله وجهه فرمائی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د مونځ کيلي (چابي) اودس دې ③ د مونځ تحريم تکبير (يعني الله اکبر ويل) دې ④ او د مونځ تحليل سلام ګرځول دې. (ابوداؤد، ترمذي، دارمي).

**حل اللغات:** ① تَحْرِيمُهَا: محرمات د مونځ، او دې ته تحريم ځکه اووئيلې شو چه دې سره په مونځ کښې خوراک څښاک او کلام وغيره د مونځ څخه بهر ټول جائز څيزونه حرام شی ② تَحْلِيلُهَا: جَعْلُ الشَّيْءِ الْمُحَرَّمِ حَلَالًا: چه حرام څيز ورسره حلال شی هغې ته تحليل وائی. دې ته تحليل ځکه اووئيلې شو چه دې سره هغه ټول کارونه حلال شی کوم چه په مونځ کښې ده باندې حرام شوی وو لکه اکل، شرب، کلام الناس وغيره

**تسهيلات:**

**قوله:** وَتَحْرِيمُهَا التَّكْبِيرُ:

خبر باندې الف لام داخل کړې شوې دې مسند لره په مسند اليه کښې محصور کړې شوې دې. ددې حديث پاك دري اجزاء دی. اول جزء ﴿ مفتاح الصلوة الطهور ﴾ کښې هيڅ اختلاف نشته دې . نورو اجزاؤ کښې دفقهاء کرامو اختلاف ملاحظه کړئی

**په تکبير سره د دخول في الصلاة فرضيت:** په دې کښې اختلاف دې چې دخولِ صلوة دپاره چه کوم تکبير تحريمه دی آيا دا صرف دالله اکبر لفظ سره خاص دې. يا نورو الفاظ سره هم دخول فی الصلوة جائز دی. البته تکبير تحريمه د ټولو په نزد فرض ده ، صرف نيت سره دخول نه صحيح کيږی. اګر چې ابن شهاب رحمه الله صرف نيت سره هم دخول فی الصلوة جائز

[1] اخرجه ابوداودكتاب الطهارة ، باب فرض الوضوء (رقم-۶۱) والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب ما جاء أن مفتاح الصلاة الطهور (رقم- ۳)

کړی مګر د جمهورو په دې کښې هیڅ اختلاف نشته دې. اختلاف صرف د الفاظو په تخصیص کښې دې

**د دخول في الصلاة دپاره د الفاظو په تعیین کښې مذاهب:**

① د امام مالك رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نیز دخول فی الصلوة دپاره صرف د الله اکبر لفظ خاص دې ددې څخه علاوه بل لفظ جائز نه دې، مذکوره حدیث پاك کښې حصر دې.

② د امام شافعی رحمه الله په نیز صرف دوه لفظونه الله اکبر او الله الاکبر سره جائز دی ، ددې څخه علاوه جائز نه دی ، هغوئ فرمائی چې دَ الله الاکبر معرف باللام کیدو سره نور حصر رازی. نو دا هم جائز دی ځکه چې کبریائی کښې اضافه ده.

③ د امام ابویوسف رحمه الله په نزد الله اکبر ، الله الاکبر او الله کبیر ، او الله الکبیر دا څلور لفظونه جائز دی. ددې څخه علاوه جائز نه دی. هغوئ فرمائی چې الله اکبرد صفت مشبه صیغه ده، او ددې معنی داده چې الله ډیر لوی دې دا اسم تفضیل نه دې نو دا صیغه د کبریائی دپاره راغلې ده کومه چې دکبیر په معنی کښې ده. هر کله چې الله کبیر جائز شو نو ددې پشان نور الفاظ هم جائز شو ، کوم چې په ډیره کبریائی باندې دال دی

④ د امام ابوحنیفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نزد هرهغه لفظ کوم چې کبریائی لره مستلزم وی هغه جائز دې دې سره د تکبیر تحریمه فرض پورا کیږی ، خو خاص طور لفظ الله اکبر ونیل واجب دی ، لهذا کوم لفظ چې مشعر دَ تعظیم وی هغه جائز دی لکه الله أعظم ، یا الله عظیم وغیره الفاظ.

**نوټ:** د دلائلو په جوابونو کښې مونږ صرف د اول فریق د دلائلو جوابونه ورکوو.د باقی مذاهبو د دلائلو جوابونه ځکه نه ورکوو.چې هغوی داول فریق سره په دغه دلائلو کښې شریک دی.نو چې د اول فریق د دلائلو جوابونه اوشو.نو د نورو مذاهبو د دلائلو جوابونه ورسره هم اوشو

**داول فریق اول دلیل:** ① د امام مالك رحمه الله اوامام احمد رحمه الله یو دلیل خو پورتنې حدیث دې کوم کښې چې حصر دې چې تکبیر تحریمه دپاره صرف الله اکبر خاص دی ،

**د اول فریق د اول دلیل جواب:** په ﴿ وتحريمها التكبير ﴾ کښې د حصرچې کومه قاعده بیان شوې ده دا قاعده اکثریه ده ، قاعده کلیه نه ده . او علامه تفتازانی رحمه الله هم دا ذکر کړی دی، نوزید العالم کښې دا حصر نه دې چې په دنیا کښې صرف زید عالم دې. بلکه دا کله کله د اهتمام شان دپاره او کامل فرد دپاره بیانو دَ پاره هم راځی.

**داول فریق دویم دلیل:** ② د دوی بل مستدل دلیل ﴿ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ﴾ دې .په دې کښې د تکبیر حکم دې.اوتکبیر الله اکبر ته وائی

**داول فریق د دویم دلیل جواب:** ﴿ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ﴾ خو د احنافو دلیل دې ځکه چه په دې کښې د تعظیم حکم ورکړې شویدې دې چې تاسو لوئې بیان کړئ . په دې کښې د الله اکبر خصوصیت نشته دې

**داول فریق دریم دلیل:** ③ نبی کریم ﷺ ټول عمر په الله اکبر باندې مداومت کړې دې بل لفظ ئې نه دې ادا کړې

**داول فریق د دویم دلیل جواب:** مداومت سره وجوب ثابتیږی او د الله اکبر د تخصیص د وجوب خو مونږ هم قائل یو. تاسو دې ته فرض وائې حالانکه دفرض د ثبوت دپاره د قطعی الثبوت او قطعی الدلالة نص ضرورت وی

**د احکامو په اعتبار سره د دلائلو څلور قسمونه:** ځکه چې د احکامو په اعتبار سره دلائل هم څلور قسمه دی.

① قطعی الثبوت قطعی الدلالة ، ددې ځنه فرض ثابتیږی .

② قطعی الثبوت ظنی الدلالة،

③ ظنی الثبوت قطعی الدلالة دې دواړو دلائلو سره واجب ثابتیږی.

④ ظنی الثبوت ظنی الدلالة دې سره سنن مؤکده او مستحبات ثابتیږی.

ددې تفصیل داشان دې چې شارع که مداومت کړې دې مګر کله کله ئې ترك هم کړې دې نو دا سنت مؤکده دی او کله ئې اوکړل او کله ئې او نه کړل نو دا مستحب دی. او که په یو ځل ئی کړې دې نو دا مباح دی،بیان دَجواز دپاره کله کله دمکروه تنزیهی ارتکاب هم کیږی خلاصه دا چه مذکوره حدیث خبر واحد دې په دې سره فرض نه ثابتیږی دا تفصیل دَ هغه دلائلو او نصوصو په جانب اثبات کښې شو او په جانبِ نفی او عدم کښې په اول قسم سره حرام ثابتیږی اودویم اودریم قسم سره مکروه تحریمی ثابتیږی او په څلورم قسم سره مکروه تنزیهی وغیره ثابتیږی.

**د دویم فریق دلیل:** د شوافع حضراتو دلائل هم دا دی کوم چې د مالکیؤ او حنابلؤ دی، او په الله الاکبر هم د کبریائی اضافه ده نو دا هم جائز دی.

**د دریم فریق دلیل:** امام ابو یوسف رحمه الله هم د مالکیؤ او حنابلؤ په دلیل ځنه دنورو صیغو نفی کړې ده مګر اکبر د کبیر په معنی کښې دې، لهذا څلور صیغې به جائز وی ځکه چې کبیر جائز دې نو الکبیر او الاکبر هم جائز شو، ځکه چې دا په معنی کښې یو شان دی.

**د دریم فریق د دلیل جواب:** امام ابویوسف رحمه الله ته جواب دادې چه څنګه تاسو دَ الله اکبر په لفظ کښې تعمیم لفظی کولوسره څلور الفاظ جائز ګرځولی دی هغه شان تاسو تعمیم معنوی کولو سره هر هغه لفظ جائز اوګرځوئی کوم چه مشعر تعظیم وی. تعمیم لفظی مو چه اوکړو نومعنوی هم اوکړئی

**د څلورم فریق دلیل:** د امام ابو حنیفه رحمه الله اول دلیل ﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى﴾ دې چې دا تکبیر تحریمه دپاره دې او د اسم ربه په لفظ کښې عموم دې ، نو کوم لفظ سره چې د رب تعظیم وی هغه به جائز وی. او دې سره به فرض پورا کیږی.

**د تکبیرتحریمه په حکم کښې مذاهب:**

دلته ددې آیت څخه یوه بله مسئله پیدا کیږی

① او هغه دا چې د احنافو په نیز تکبیرتحریمه د صلوة رکن نه دې بلکه شرط دې ،

② د نورو ائمو په نیز خو تحریمه رکن د صلوة دې. شرط په خپل مشروط باندې مقدم وی او رکن داخل صلوة وی.

دلته آیت ﴿فَصَلّٰى﴾ کښې فا د تعقیب مع الوصل دپاره راغلې ده نو ﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ﴾ بیل څیز دې او ﴿فَصَلّٰى﴾ ددې څخه وروستو بیل څیز دې. نو تحریمه رکن نه شو بلکه خارج الصلوة دَشرط په درجه کښې شو.

**قوله:** وَتَحْلِيلُهَا التَّسْلِيمُ:

**د خروج من الصلاة په الفاظو کښې مذاهب:**

① ددریوارو امامانو او دَ جمهورو په نیزصرف په لفظ دَ سلام سره مونځ گذار دَ مونځ نه خارجیدې شی گنی مونځ نه کیږی. دَهغوی دلیل هم دغه حدیث او دا الفاظ دی.

② دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز خاص لفظ سلام سره دَ مانځه نه وتل واجب دی او صنع مصلی سره عمداً دَ مانځه نه وتل فرض دی که هغه هر یو لفظ وی یا هریو عمل وی اودا وتل په حقیقت کښې دَ بل مونځ تیارې او کولودَ وجې نه فرض کیږی مثلاً چا دَ مابنام مونځ دومره اوږد کړو چه دَ ماسخوتن وخت راغلو نو اوس وتل فرض دی دې دپاره چه دَ ماسخوتن مونځ اوکړی

**داول فریق دلیل:** زیربحث حدیث د دوی مستدل دې.څکه چې په دې کښې د تحلیل دپاره صرف د سلام ذکر دې د بل څه ذکر نشته.

**داول فریق د دلیل جواب:** دَ تکبیر تحریمه په بحث کښې چه دَ کومو جوابونو ذکرکړې شوې دې هغه جوابونه دلته هم چلیدې شی. بهرحال په سلام باندې د همیشه والي دَ وجې نه مونږ هم لفظ دَ سلام ته واجب وایو دَ فرض قاعده جدا ده.

**د دویم فریق دلائل:** ① دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه دَ هغه حدیث د دوی مستدل دې په کوم کښې چه حضورپاك هغوی ته اوفرمائیل [فان شئت ان تقوم فقم] (رواه ابوداؤد).

② اعرابی ته دَ تعلیم په وخت حضورپاك دَ فرض سلام ذکر اونه کړو.

۳۳-()[۱]وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْهُ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ.

**ترجمه:** [۱] او ابن ماجه دا حدیث د حضرت علي رضي الله عنه او ابي سعید څخه روایت کړي دي.

**[۳۳] د پُسکي (بغیر آوازه باد وتلو) د اودس ماتیدل**

۳۳-()[۱۳][۱]وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ طَلْقٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲]( «إِذَا فَسَا أَحَدُكُمْ فَلْيَتَوَضَّأْ [۳]وَلَا تَأْتُوا النِّسَاءَ فِي أَعْجَازِهِنَّ» ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او علي بن طلق رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] هرکله چې په تاسو کې څوك حدث وکړي (یعني بغیر د آواز څخه هوا خښي خارجه شي) نو هغه ته اودس کول پکار دي[۳] او تاسو د ښځو سره خلاف فطرت د هغوئ مقعد (یعني د لویو بولو په ځاي کې) جماع مه کوئ. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① فَسَا: أَيْ: خَرَجَ الرِّيحُ الَّتِي لَا صَوْتَ لَهُ مِنْ أَسْفَلِ الْإِنْسَانِ: د انسان د خیټې نه چه بغیر د آواز نه کومه هوا خارج شی هغې ته وائی. ② لَا تَأْتُوا النِّسَاءَ: أَيْ: لَا تُجَامِعُوهُنَّ: یعنی جماع ورسره مه کوئ. ③ أَعْجَازِهِنَّ: دا د عجز جمع ده، أَيْ: أَدْبَارِهِنَّ: دښځو شا طرف کوم چه د ولادت قابل نه دي، یعنی مقعد.

**تسهیلات:**

**قوله: إِذَا فَسَا أَحَدُكُمْ:**

**د هوا په خارجیدو د نقض وضوء دوه وجوهات:** ① یعنی کله چې یقینی طور هوا خارج شی نو بیا اودس کوئی ځکه چې ممکن دی چې دې هوا سره دننه ذرات خارج شوی وی ② داخپله ګندګی ده کومې سره چې اودس ماتیږی.

**د قبل او ذکر څخه په خروج ریح د اودس نه ماتیدل:** که قبل او ذکر نه هوا خارج شی نو دې سره اودس نه ماتیږی مګر دا چې ښځه مفضاة وی بیا نه معلومیږی چې آیا دا هوا د قبل څخه راغلی ده که دبر څخه نو اودس به ماتیږی.

**قوله: وَلَا تَأْتُوا النِّسَاءَ فِي أَعْجَازِهِنَّ:**

**د اعلام بازی ذکر کولو د باب سره مناسبت:** ددې مسئلې دلته د ذکر کولو مناسبت دا دی چې کله د هوا خارجیدو سره د دبر ذکر راغلو نو نبی کریم ﷺ ددې مناسبت څخه ددې مهمې مسئلې باندې هم تنبیه اوفرمائیله

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها باب مفتاح الصلاة الطهور(رقم-۲۷۵)
(۲) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب من يحدث في الصلاة (رقم- ۲۰۵) والترمذي كتاب الرضاع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية إتيان النساء في أدبارهن (رقم-۱۱۶۶)

## [۳۱۵] په خوب د اودس ماتيدل

۳۱۵ – () [۱۴] [۱] وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «إِنَّمَا الْعَيْنَانِ وِكَاءُ السَّهِ [۳] فَإِذَا نَامَتِ الْعَيْنُ اسْتَطْلَقَ الْوِكَاءُ» رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او معاويه بن ابي سفيان رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] سترګي د سرين (کوناټو) سربند دي [۳] نو چه سترګي اودۀ شی نو سربند خلاص شي، (څکه خوب ته ناقض وضو ويل کيږی) (دارمي)

**حل اللغات:** ① الْعَيْنَانِ: أَيِ: الْيَقَظَةُ: عينان د عين تثنيه ده ددې نه مراد غړيدلي او بيداري سترګي دی، ② وِكَاءُ: مَا يُشَدُّ بِهِ الْكِيسُ: هغه تسمي ته وائی په کوم سره چه دَ تهيلئ، بوجئ خُله تړلې شی. ③ السَّهِ: أَيِ: حَلْقَةُ الدُّبُرِ: دُبر يعنی مقعد ته وائی، ④ اسْتَطْلَقَ: أَيِ: انْحَلَّ: خلاص شی (مزې يا خوله د بوجئ).

**تسهيلات:**

**قوله: وِكَاءُ السَّهِ:**

وائی چه "السه" په اصل کښې "سته" ووتاء حذف کړې شوه نو "سه" پاتې شو دَدې دليل "استاه" دې چه هلته تاء موجود ده. بهرحال

**مشکيزې سره د انسان د تشبيه وجه:** "وکاء" سربند او دَ تهيلئی مزی ته وائی. دلته دَ انسان تشبيه يو مشکيزې سره ورکړې شوې ده دَ کوم مزې چه دَانسان سترګې دی. کله چه سترګې کولاوُوی نومشکيزه بنده وی اوکله چه سترګې کولاوُشی نولکه چه غوټه کولاوُشوه او مشکيزه غيرمحفوظ شوه. اودَ سرين مزې کولاويدوسره دَ هوا خارجيدو قوی احتمال پيداکيږی سره دَدې چه خوب پخپله ناقض وضوء نه دې خو په خوب سره استرخاء مفاصل راځی اندامونه سست شی او استرخاء مفاصل موجب خروج هوا دې دَ هوا پته خونه لګی لهذا شريعت خوب دَ هوا خارجيدو قائمقام اوګرځولو اوس که هوا خارج شی اوکه نه صرف خوب دَ اودس ماتيدو نښه اوعلامت جوړشو

### په خوب سره د اودس ماتيدو کښې مذاهب:

د اودس من النوم په باره کښې اختلاف دې دې مسئله کښې علامه نووی رحمه الله اته ۸ او علامه عينی رحمه الله لس ۱۰ اقوال نقل کړې دی. خو حقيقت کښې ددې اقوالوخلاصه درې اقوال دی.

① مطلقًا ناقض دې که قليل وی اوکه کثيردا قول د حضرت حسن بصری رحمه الله ، امام زهری رحمه الله اود امام اوزاعی څخه منقول دې.

(۱) اخرجه الدارمی کتاب الطهارة/باب الوضوء من النوم(رقم-۷۴۹)

② نوم مطلقًا غيرناقض دې.دا مسلك د حضرت ابن عمر رضي الله عنه ، حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه ، حضرت ابومجلز، حضرت حميد اعرج اوحضرت شعبه څخه منقول دې.

③ نوم غالب ناقض دې.اونوم غيرغالب غيرناقض.دا مسلك د ائمه اربعه اود جمهورو دې.په حقيقت كښې ددې دريم قول د قائلينو په دې خبره اتفاق دې چه نوم بنفسه ناقض نه بلكه د مظنه خروج ريح د وجې ناقض دې اومظنه خروج الريح د معمولي خوب څخه نه راپيدا كيږي.د دې وجې دا مسلك مختارشو چه نوم غيرغالب ناقض نه دې البته نوم غالب چه هغې سره انسان بې خبره شي او استرخاء د مفاصلو متحقق شي ناقض وضوء دې خوهركله چې په حالت د نوم كښې د خروج ريح علم نشى كيدې.نو استرخاء مفاصل شرعًا د خروج ريح قائم مقام شو.لكه چه حديث الباب كښې چې د ((اذا اضطجع استرخت مفاصله)) د دې الفاظوڅخه هم دامعلوميږي چه د حكم مداريه استرخاء د مفاصلو دې.د دې وجې كه استرخت مفاصل سره هم د عدم خروج ريح يقين وى.نوبيابه هم ناقض وضوء وى.لكه څنګه چې سفرقائم مقام د مشقت شو او د قصرمدار په دې كيښودې شو.

**مطلقًا د نقض دليل:** دحضرت على رضي الله عنه څخه روايت دې چې ((العين وكاء السه فمن نام فليتوضا)) يعني سترګې د مقعد د تړلوتار دې.نوڅوك چې اوده شي نو اودس دې اوكړي.

په دې كښې صراحت دې چې مطلق خوب ناقض د اودس دې.[1]

**جوابونه:** دا روايت په دريو وجوه سره ضعيف دې.

① دا روايت منقطع دې په دې كښې عبدالرحمن بن عائذ د على رضي الله عنه څخه روايت كوى.حال دا چې د ده ملاقات د حضرت على رضي الله عنه سره ثابت نه دې.

② په دې كښې دوه راويان بقيعه او وضين دواړه ضعيفان دى.

③ دا حديث د صحيح حديث سره معارض دې.هغه حديث دا دې ((كان اصحاب النبى صلى الله عليه وسلم ينامون ثم يقومون ويصلون ولا يتوضؤون)) نودا قابل استدلال پاتې نشو.[2]

**مطلقًا د عدم نقض دليل:** د دې مذهب د خاوندانو دليل په دې باب كښې دويم روايت دې چې ((كان اصحاب النبى صلى الله عليه وسلم ينامون ثم يقومون ويصلون ولا يتوضؤون)) [3] د دې څخه صراحت سره معلومه شوه چې صحابه كرام به اودهٔ كيدل اوبيا به ئې مونځ كولو او اودس به ئې نه كولو.كه په خوب سره اودس ماتيدل نو دوى به ولې بغير اودسه مونځ كولو.

**جواب:** ① د دې روايت د صحيح سند څخه معلومه ده چې صحابهٔ كرامو به د ماخوستن

---

[1] ) ابوداؤد باب الوضوء من النوم )-
[2] ) الترمذي باب الوضوء من النوم )-
[3] ) الترمذي باب الوضوء من النوم )-

د مانځه انتظار کولو ((حتی تخفق رؤسهم))() تردې چې د هغوی سرونو به جوته اووهله یعنی ښکته طرف ته به مائیله شو. د داسې قسم روایاتو څخه معلومیږی چې دلته د خوب څخه مراد د ملاستې خوب مراد نه دې بلکه په ناسته به اوده کیدل او په ناسته کښې چې مقعد په زمکه پورې وی.په اتفاق سره اودس نه ماتیږی.

**اشکال:** په دې باندې دا اعتراض کیږی چې چې حافظ ابن حجر په ((التلخیص الحبیر)) ()کښې ګنړ روایات نقل کړی دی په کومو کښې چې دی ((فیضعون جنوبهم)) یعنی هغوی به خپلې ډډې لګولې.نو دغه روایت په ناسته باندې حمل کول ټیك نه دی.

**جوابونه:** ① که ګنړ روایاتو ته نظر اوکړې شی نو په مسند ابویعلی او مسند بزار (۳) کښې د دې تصریح ده چې ((فمنهم من یتوضأ ومن من لایتوضأ)) چې په دوی کښې به چا اودس کولو او چا به په کښې اودس نه کولو یعنی څوك چې به ستونې ستغ اوده وو هغوی به اودس کولو.اوچې کوم به په ناسته اوده شوی وو یا به ئې لږ غوندې خوب اوکړو نو هغوی به اودس کولو اوهغوی به اودس هم نه کولو.

② خوب په نفس ناقض نه دې بلکه دا سبب المسبب دې.هغه داسې چې خوب د استرخاء مفاصل سبب دې.او استرخاء د مفاصل سبب د خروج ریح دې.اواسترخاء په ډوب خوب کښې خوښکاره کیږی په معمولی خوب کښې نه متحقق کیږی.

**دنوم غالب د نقض اوغیر غالب دعدم نقض دلائل:** ① د دې مذهب قائلینو چې کله دواړه قسمه روایاتو ته اوکتل چې د بعضې څخه نقض بالنوم معلومیږی اود بعضې څخه عدم نقض بالنوم معلومیږی.نو دوی دا نتیجه راوویستله چې نوم غیرغالب ناقض د اودس نه دې.اونوم غالب ناقض د اودس دې.په بل عبارت سره داسې اووایه چې نوم قلیل غیر ناقض او نوم کثیر ناقض دې.اودا د څلورو امامانو مذهب دې.

**د قلیل او کثیر په تعریف کښې مذاهب:**

بیا د نوم قلیل او نوم کثیر په تعریف کښې امامان د اجتهاد څخه کار اخلی.① امام شافعی د مقعد تمکین علی الارض د قلیل او کثیر دپاره حد مقرر کوی.یعنی که تمکین علی الارض باقی وی نو نوم قلیل دې اوکه

② احناف هئیت صلاة د قلیل او کثیر دپاره حد مقرر کوی.چونکه د مانځه په حالت کښې استرخاء د مفاصل نه وی نو نواودس پرې نه ماتیږی.اوپه خوب مضطجعاً اومستلقیاً کښې استرخاء د مفاصل وی نو ځکه پرې اودس ماتیږی.

---

(۱) ابوداؤد (۲۰۱۱)-

(۲) باب الاحداث، رقم الحدیث ۱۶۱ (ص.۳۳۵)-

(۳) مسند ابوعلی وبزار بحواله مجمع الزوائد باب فی الوضوء من النوم (۵۶۲۱۱)-

**داحنافو په استرخاء مفاصل معيار گرځولو باندې دليل:** د احنافو استدلال په روايت الباب باندې دې په دې کښې نبی کریم ﷺ ابن عباس رضي الله عنه ته فرمائيلی دی ((ان الوضوء لا يجب الا علی من نام مضطجعاً فانه اذا اضطجع استرخت مفاصله)) د دې حديث څخه معلومه شوه چې په خو مضجعاً باندې اودس ماتيږي.اوسبب د نقض استرخاء د مفاصل ده.نوهرهغه خوب چې په هغې کښې استرخاء د مفاصل وی په هغې به اودس ماتيږي.

**په روايت الباب باندې اعتراضات:** په دې روايت باندې شپږ اعتراضات شوی دی په کومو کښې چې دوه امام ترمذی رحمه الله کړی دی اودرې امام ابوداؤد رحمه الله کړی دی.

**اولنې اعتراض:** امام ترمذی رحمه الله فرمائي چې دا روايت سعيد بن ابی عروبه د قتده څخه نقل کړې دې خو((ولم يرفعه))يعنی قتاده د ابن عباس رضي الله عنه څخه موقوفا ذکر کړې دې.

**داولنی اعتراض جواب:** د دوی اعتراض صحيح نه دې.ځکه چې نقل کله په طور د روايت وی اوکه په طور د فتوی وی.نوپه کوم ځائې کښې نقل په طور د رويت وی هغوی ئې مرفوع ذکر کوی.او په ځائې کښې چې ئې په طور د فتوی ذکر کوی نوهلته ئې موقوف ذکر کوی.اود دې گڼ مثالونه موجود دی.دلته هم داسې ده چې د سعيد روايت د دې وجې موقوف دې چې هغه د فتوی په طور دې.اواو د ابوخالد مرفوع ځکه دې چې دا په طور د روايت دې.

**دويم اعتراض:** په دې سند کښې بعضې محدثينوابوخالد ضعيف گرځولې دې.د دې وجې دا حديث ضعيف شو؟

**د دويم اعتراض جواب:** که بعضې محدثينو دې ضعيف گرځولې وی خو نورو ډيرو د جرح اوتعديل امامانو په مختلفو الفاظو کښې د دوی توثيق کړې دې.يحی به معين چې د جرح او تعديل متشدد امام دې فرمائی ((لا بأس به)) ابوحاتم فرمائی ((صدوق)) امام احمد رحمه الله فرمائی ((لابأس به))امام حاکم فرمائی امامان د دوی د حفظ گواهی ورکوی. نواب صديق حسن خان فرمائی ابوخالد د ثقاتو څخه دې.امام شوکانی هم د دوی روايت تسليم کړې دې.نيتجه دا شوه چې دومره امامانو په مختلفو الفاظو سره د د وی توثيق کړې دې.نودا ثقه دې اود ثقه زيادت مقبول وی.

**دريم اعتراض:** امام ترمذی رحمه الله فرمائی چې سعيدبن ابی عروبه د قتاده او ابن عباس په مينځ کښې د ابوالعاليه واسطه نه ده ذکر کړې نودا روايت منقطع شو.

**د دريم اعتراض جواب:** سعيد بن ابی عروبه واسطه نه ده ذکرکړې خود دې مطلب دا نه دې چې د دې روايت ټول طرق ضعيف دی ځکه چې د ابوخالد په طريق کښې ابوالعاليه دې.

**څلورم اعتراض:** ابوداؤد رحمه الله اعتراض کړې دې چې دا روايت د ابوقتا ده مختلفو شاگردانو نقل کړې دې خو په هغوی کښې د دې اضافه نه ده کړې ((فانه اذا اضطجع استرخت

مفأصله)) دا صرف د ابوخالد زیادت دې.نودا روایت منکر شو.اومنکر ضعیف وی.
**د څلورم اعتراض جواب:** دې روایت ته منکر وئیل صحیح نه دی ځکه چې په منکر کښې دوه خبرې وی د راوی ضعف اود ثقاتو ځخه مخالفت اودلته دواړه خبرې مفقود دی. ابوخالد ضعیف هم نه دې کمامراومخالفت هم نه کوی ځکه چې د قتاده نور شاګردان د دې زیادت ځخه ساکت دی او دې ذاکر دې.اوپه ذکر او سکوت کښې ځخه مخالفت نشته .نو دې ته منکر وئیل صحیح نشو.
**پنځم اعتراض:** ابوداؤد فرمائی چې د نبی کریمﷺ په صحیح حدیث کښې کوم چې حضرت عائشې ﷞ نقل کړې دې فرمائی ((تنام عيناي ولاينام قلبي)) دلته په حدیث الباب کښې ئې ((استرخت مفاصله)) ذکر کړې دې. که چرته د ((استرخت مفاصله)) زیادت صحیح وې نو پکار دا ده چې د عائشې ﷞ د روایت پشان ئې ((تنام عيناي ولاينام قلبي)) ئې ذکر کړې وې.
**د پنځم اعتراض دوه جوابونه:**
① د ((فانه اذا نام استرخت مفاصله)) جمله نبی کریمﷺ د قانون کلی په طور سره ذکر کړې ده.ځکه چې د ((تنام عيناي ولاينام قلبي)) حکم صرف د نبی کریمﷺ پورې خاص دې.دامت دپاره عام حکم نه دې.دامت فائده په دې کښې ده ((استرخت مفاصله))
② ((لاينام قلبي)) د عدم نقض دلیل نه دې بلکه مطلب دا دې چې د زړه د بیدارئ په وجه ما ته د خروج ریح وغیره علم کیږی نو ((لاتنام عيناي)) د نقض وضوء دلیل نه شو.بلکه د نبی کریمﷺ دلته د علت بیانول مقصود دی.
**شپږم اعتراض:** امام ابوداؤد ﷫ دا اعتراض کړې دې چې د قتاده د ابوالعالیه ځخه صرف څلور روایات منقول دی ① يونس بن متى ② حديث ابن عمر في الصلاة ③ القضاة ثلاثة ④ حدثني رجال مرضيون منهم عمر ﷜ اوحدیث الباب د دغه روایاتو ځخه نه دې.
**د شپږم اعتراض جواب:** د قتاده د ابوالعالیه ځخه صرف د څلورو روایاتو دعوی صحیح نه ده بلکه د ابوالعالیه ځخه د قتاده نور روایات هم منقول دی په جامع ترمذی کښې ((قال حدثني ابي عن قتادة ان ابي العالية الخ)) [1] بیا امام ترمذی ﷫ فرمائی ((هذا حديث حسن صحيح)) دا پنځم روایت شو شپږم رُوایت په مسلم کښې دې ((قتادة عن ابي العالية)) [2] او روایت الباب به اووم شی .نوپه څلورو کښې حصر صحیح نه دې.

[1] ) جامع الترمذی کتاب الدعوات باب ما يقول عند الكرب )-
[2] ) صحیح مسلم باب الاسراء برسول الله ﷺ )-

### [۳۱۶] خوب موجب اودس

۳۱۶ـ(١) [١٥] ۱ وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ «وِكَاءُ السَّهِ الْعَيْنَانِ، ۳ فَمَنْ نَامَ فَلْيَتَوَضَّأْ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. ۴ وَقَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ: هَذَا فِي غَيْرِ الْقَاعِدِ لِمَا صَحَّ:

**ترجمه:** ۱ او حضرت علي كرم الله وجهه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ د كوناتو سربند سترګي دي ۳ نو كوم سړي چې اوده شي هغه ته پكار دي چې اودس وكړي، (ابوداؤد) ۴ او امام محي السنة رحمه الله فرمايي چه دا حكم د هغه سړي د پاره دي چې ناست نه وي (بلكه په پروتي سره اوده شوي وي)

۳۱۷ـ(٢) [١] ۱ عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲ «كَانَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَنْتَظِرُونَ الْعِشَاءَ ۳ حَتَّى تَخْفِقَ رُءُوسُهُمْ، ثُمَّ يُصَلُّونَ وَلَا يَتَوَضَّئُونَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ، ۴ إِلَّا أَنَّهُ ذَكَرَ فِيهِ: يَنَامُونَ بَدَلَ: «يَنْتَظِرُونَ الْعِشَاءَ حَتَّى تَخْفِقَ رُءُوسُهُمْ».

**ترجمه:** ۱ ځكه چې د حضرت انس رضي الله عنه ځخه په صحيح طور ثابت دي چه هغه وفرمايل ۲ د حضور ﷺ اصحاب به د ماسخوتن د لمانځه په ناستي انتظار كولو ۳ تر دي چې د خوب په سبب به د هغوئ سرونه ښكته شو په دي حالت كې به هغوئ ودريدل او مونځ به اوكړو اودس به يي نه كولو. (ابوداؤد، ترمذي) ۴ خو ترمذي په خپل روايت كښې د يَنْتَظِرُونَ الْعِشَاءَ حَتَّى تَخْفِقَ رُؤُسُهُمْ په ځاي لفظ د يَنَامُونَ ذكر كړي دي.

**حل اللغات:** ① الْعِشَاءَ: أَيْ: صَلَاتَهَا: يعنى د ماسخوتن مونځ، ② تَخْفِقَ: أَيْ: تَتَحَرَّكَ وَتَضْطَرِبَ: خوزيدل راخوزيدل به (يعنى سرونو به ئې دخوب په وجه جوتې وهلې)

### [۳۱۸] ستونې ستغ خوب كولو سره د اودس ماتيدل

۳۱۸ـ(٣) [١٦] ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «إِنَّ الْوُضُوءَ عَلَى مَنْ نَامَ مُضْطَجِعًا، ۳ فَإِنَّهُ إِذَا اضْطَجَعَ اسْتَرْخَتْ مَفَاصِلُهُ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ اودس په هغه سړي لازميږي چې په پروتي سره اوده شي ۳ ځكه چې كوم وخت سړي اوده شي نو د هغه د بدن جوړونه سست شي (بيا د هوا خاريجيدو خطره وي . (ترمذي ابوداؤد)

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب فى الوضوء من النوم (رقم- ۲۰۳) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب الوضوء من النوم (رقم- ۴۷۸)

(۲) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب فى الوضوء من النوم (رقم- ۲۰۰) والترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب الوضوء من النوم (رقم-۷۸

(۳) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب فى الوضوء من النوم (رقم- ۲۰۳) والترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب الوضوء من النوم (رقم-۷۷)

**حل اللغات:** ① مُضْطَجِعًا: چه ملاست وی، ② اسْتَرْخَتْ: أَيْ: فَتَرَتْ وَضَعُفَتْ: سست او کمزوری شي. ③ مَفَاصِلُهُ: جمع د مفصل ده، وَهُوَ رُءُوسُ الْعِظَامِ: دهډوکو سرونو او جوړونو ته وائي.

**تسهيلات:**

**قوله:** الْوُضُوءَ عَلَى مَنْ نَامَ مُضْطَجِعًا

**په روايتونو کښې تعارض:** ددې حديث پاك ماقبل حديث سره تعارض راځي . ځکه چې ماقبل کښې مطلقا نوم لره ناقص وضوء اوګرځولې شو،او دې ځاني کښې اضطجاع والا مونځ لره ناقص وضوء ګرځولې کيږي؟

**د تعارض جواب:** اولنې حديث مبارك د عام مخصوص منه البعض د قبيل څخه دې.

**اعتراض:** ددې حديث مبارك نه حصر معلوميږي؟

**د اعتراض جواب:** دا حصر د معلول العلة د قبيل څخه دې ، يعنی چې په کوم خوب کښې علت اوموندلې شو نو هغه به ناقص وضو وی.

**دحديث ضعف:** حضرت ميرك شاه فرمائيلی دی چې دا حديث منكر دې ځکه چې ددې په راويانو کښې يو راوی يزيدالانی هم دې کوم چې کثير الخطاء او فاحش الوهم او د ثقه مخالف دې .

**[۲۸] په مس د ذکر د اودس ماتيدل**

| |
|---|
| ۲۸—() [۱۷] ① وَعَنْ بُسْرَةَ بنت صفوان بن نوفل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② ((«إِذَا مَسَّ أَحَدُكُمْ ذَكَرَهُ، فَلْيَتَوَضَّأْ» ) رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ. |

**ترجمه:** ① او بي بي بسره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا راوي ده چې رسول ﷺ وفرمايل ② په تاسو کې چې کوم سړي خپل ذکر (خاص عضو) ته لاس وروړي نو هغه ته پکار دي چې اودس وکړي. (مالك، احمد ، ابوداؤد ، ترمذي، نسائي، ابن ماجه، دارمي )

**حل اللغات:** ① مَسَّ: چه لاس وروړی، لاس اولګوی، ② ذَكَرَهُ: د سړی شرمګاه.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا مَسَّ أَحَدُكُمْ ذَكَرَهُ:

د مس ذکر په مسئله کښې د فقهاء کرامو اختلاف دې چې آيا دې سره اودس ماتيږی که نه؟ دفقهاؤ اومحدثينوپه مينځ کښې دامسئله معرکة الاراء ده چه مس الذکرموجب وضوء دې.اوکه نه ؟

(۱) اخرجه مالک کتاب الطهارة ، باب الوضوء من مس الفرج (رقم - ۵۸) والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب الوضوء من مس الذکر (رقم - ۸۲) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب الوضوء من مس الذکر (رقم - ۴۷۹)

**په مس الذكر د اودس په نقض كښې مذاهب:**

① د دريو وارو ائمه كرامو په نيز مس ذكر ناقض وضوء دى. البته ددوئ په مينځ كښې ددې په كيفياتو كښې اختلاف دې. د شوافعو په نيز چې دا مس ذكر بلا حائل وى او بباطن كف وى. د امام مالك رحمه الله په نيز د **بشهوة** قيد ملحوظ دې البته دَ امام احمد رحمه الله په نيز هيڅ قيد نشته دې. د مس ذكر مطلب داشو چې عضو تناسل ته لاس وروړلو نو دې سره اودس ماتيږى. دجمهورو په نيز د مس فرج مسئله د ښځې دپاره دمس ذكر پشان ده او دې سره دښځې هم اودس ماتيږى.

② ائمه احناف فرمائى چې دخروج نجاست نه بغير اودس نه واجبيږى

**داول فريق دلائل:** دوى د حضرت بسره رضى الله عنها په روايت استدلال كوى كوم كښې چې د مس ذكر نه پس د اودس كولو حكم دې. **اذامس احدكم ذكره فليتوضأ**

**د دويم فريق دليل:** د دوى مستدل د حضرت طلق بن على رضي الله عنه روايت دې. **((قال وهل هو الا بضعة منه))** ائمه جمهور او ائمه احناف دواړه د يو بل په دلائلو باندې اعتراض كوى.

**د اول فريق په دليل اعتراض:** عروه رضي الله عنه دا حديث نيغ په نيغه د بسره رضي الله عنها څخه نه دې اوريدلې. بلكه د عروه او بسره په مينځ كښې مروا ن بن الحكم راوى دې يا د مروان څوك شرطى يعنى پوليس په مينځ كښې واسطه ده او دې مجهول دې. كه مروان په مينځ كښې دې نوحكومت ته د راتلو نه پس هغه ددې قابل نه دې چې د هغه نه روايت واخستې شى. او كه شرطى په مينځ كښې دې نو هغه د مجهول الحال كيدو نه علاوه بدحال هم دې لهذا دا روايت ناقابل استدلال دې.

**د دويم فريق په دليل اعتراض:** جمهورو د طلق بن على رضي الله عنه په روايت باندې اعتراض كړې دې چې دا منسوخ دې ځكه چې د بسره روايت د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه هم نقل شوې دې. اوحضرت ابوهريره رضي الله عنه په اوومه هجرئى كښې مسلمان شوې وو او طلق بن على رضي الله عنه دَ اسلام قبلولو نه پس په اوله هجرئى كښې ملاقات كړې وو. او ددې نه پس مدينې منورې ته نه وو راغلې. نودمتأخر الاسلام راوى روايت د متقدم الاسلام راوى دروايت دپاره ناسخ جوړيږى. لهذا دَ طلق روايت منسوخ او د ابوهريره رضي الله عنه روايت ناسخ دې.

**د دواړو رواياتو صحت:** خو صحيح خبره داده چې دواړه حديثونه صحيح دى ، ابن حجر رحمه الله فرمائى چې دا دواړه حديثونه دَ حسن څخه دَ كمې درجې نه دى . د بسره رضي الله عنها روايت په څلوارو وجوهو سره منقول دې نو كوم كوم ته به ضعيف وائې. او دَ طلق بن على رحمه الله حديث ته څه واضح دليل نه بغير منسوخ وئيل صحيح نه دى. ځكه چې ممكن ده چې د طلق بن على ملاقات دوباره شوې وى. صرف تقدم اسلام دَ راوى د تقدم روايت دليل نشى جوړيدلې. د نسخ دې ضابطې لره كه يو خپله كړئى نو د بسره رضي الله عنها روايت به پخپله منسوخ

شی ځکه چې بسره ﷺ مکه کښې اسلام قبول کړې وو او طلق بن علی ﷺ څو کاله پس په اوله هجری کښې په مدینه منوره کښې اسلام قبول کړې وو.لهذا د تقدم او تأخر خبرې به څه حیثیت نه وی.بلکه دا به ثابتول وی چې د اولې هجرۍ څخه وروستو د طلق بن علی ملاقات نه وو شوې حالانکه طلق ﷺ په نهمه هجری سنة الوفود کښې نبی کریم ﷺ سره ملاقات کړې وو.اودا طبقات ابن سعد صریحًا ذکر کړی دی، دې تقریر څخه د محی السنة خبره هم ختمه شوه چې د طلق روایت منسوخ شوې دې. ددې پورته تقریر څخه معلومه شوه چې دواړه احادیثه صحیح دی نو اوس فیصله به د ترجیحاتو په بنیاد باندې کیږی ،

**د طلق بن علی ﷺ د روایت وجوه ترجیح:**

① قیاس ددې موافق دې. ځکه چې کله احادیثو کښې تعارض راشی نو قیاس ته رجوع کیږی. او قیاس وائی چې کله پورې دَ سبلین څخه د نجاست خروج نه وی شوې نو اودس نه واجبیږی. او دلته د سبلین څخه څه خارج شوی نه دی.

② د بسره روایت محتمل دې ځکه کیدیشی چې مس ذکر دمتیازو کولو کنایه وی او عربی کښې داسې اطلاق کیږی.

③ د طلق بن علی ﷺ روایت کښې علت ذکر شوې دې. یعنی ﴿هل هوالابضعة منه﴾ .

④ ترجیح بلکه تطبیق داشان دې چې دبسره په روایت کښې چه د وضوء ذکر راغلې دې هغه استحبابی اودس دې او ددې څخه احناف انکار نه کوی او د طلق بن علی ﷺ په روایت کښې چه د عدم وضوء ذکر راغلې دې هغه قاعده او ضابطه ده.

⑤ د طلق بن علی ﷺ روایت او هغې د علت په تائید کښې صحابه کرام څخه ډیر آثار وارد شوی دی

**د طلق بن علی په تائید کښې آثار:** ① حضرت علی ﷺ فرمائی ﴿ماأبالی مسته أوطرف أنفی﴾

② حضرت ابن عباس دیو سائل په جواب کښې فرمائی ﴿أن کنت تستنجسه فاقطعه﴾

③ حضرت ابن مسعود ﷺ یو کس ته په جواب کښې فرمائی: ﴿الا قطعته ؟﴾ یعنی هرکله چې دا نجس دې او لاس لګولو سره اودس ماتیږی نو دا پرې کوی ولې نه؟

④ حضرت علی ﷺ څخه روایت کښې هم منقول دی ﴿ماأبالی أنفی مسست أوأذنی أوذکری﴾

⑤ حضرت ابن مسعود ﷺ داشان فرمائی ﴿وماأبالی ذکری مسست فی الصلوة أوأذنی أوأنفی﴾ بهر حال ددې تحقیق څخه د تیر شوی حدیث او د راتلونکی حدیث تشریح اوشوه

**دوه الزامی جوابونه:** ① د بسره ﷺ په روایت باندې خو تاسو نیغ په نیغه عمل نه دې کړې ځکه چې په تاسو کښې ځینې د بباطن کف قید لګوی. او ځینې د بشهوة قید لګوی. نو تاسو کله په دې حدیث باندې عمل اوکړو؟

④ ذکر په لاس مس کول که د اودس د ماتیدو باعث دی نو بیا هم دا ذکر د مونځ په دوران کښې دَ عورت غلیظه یا پتون سره لګی، دې سره ولې اودس نه ماتیږی؟

**[۳۲۰] په مس د ذکر داوس نه ماتیدل**

۳۲۰—() [۱۸] ①وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ②«سُئِلَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-عَنْ مَسِّ الرَّجُلِ ذَكَرَهُ بَعْدَ مَا يَتَوَضَّأُ. ③قَالَ: (وَهَلْ هُوَ إِلَّا بَضْعَةٌ مِنْهُ؟)». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ نَحْوَهُ. ④وَقَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ هَذَا مَنْسُوخٌ; لِأَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ أَسْلَمَ بَعْدَ قُدُومِ طَلْقٍ.

**ترجمه:** ① او طلق بن علي رضي الله عنه فرمايي ② چه يو خل رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه چه د اودس څخه وروسته كه يو سړي خپل ذكر مسه كړي (نو څه حكم دي؟) ③ وي فرمايل هغه هم د سړي د غوښې يو ټكره ده، ابوداؤد، ترمذي، نسائي، او ابن ماجه رحمه الله هم دغسې روايت كړي دي ④ امام محي السنة رحمه الله فرمايي چه دا حديث منسوخ دي ځكه چې ابوهريره رضي الله عنه د طلق بن علي رضي الله عنه د راتلو څخه وروسته اسلام راوړي دي.

**حل اللغات:** ① مَسِّ: چه لاس وروړی، لاس اولګوی، ② ذَكَرَهُ: د سړی شرمګاه. ③ بَضْعَةٌ: أَيْ: قِطْعَةُ لَحْمٍ: د غوښې يوه حصه او ټكړه، ④ قُدُومِ: واپس راتلو ته وائی.

**د راوي مختصر تعارف:**

نوم طلق دَ پلار نوم علی کنیت ابوعلی حنفی یمامی،

هغه ته طلق بن ثمامه هم وائی دَ مسلمانیدودَ پاره دَ یمامه دَ ډلې سره راغلې وو.

**مرويات:** دَ هغه نه څوارلس روايات نقل دی اوبعضې وائی په دې څوارلسوکښې يوروايت هم په بخاری اومسلم کښې نشته.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَهَلْ هُوَ إِلَّا بَضْعَةٌ مِنْهُ

**د مذكوره جملې مطلب:** د نبی کریم ﷺ دجواب مطلب دادې چې څنګه لاس، پښه، غوږ او پوزه وغيره د بدن دغوښې ټكړې دی، همداشان ذكر هم د بدن د غوښې يوه ټكړه ده. او كله چې ددې نورو ټكړو او حصو په نيولو اودس نه ماتيږی نو بيا د ذكر په مسح كولو سره اودس ولې ماتيږی؟ لهذا ددې نه معلومه شوه چې مسح ذكر ناقض د اودس نه دې.

**قوله:** وَقَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ هَذَا مَنْسُوخٌ

**د امام محی الدين د قول مطلب:** د امام محی السنة رحمة الله عليه قول په اصل كښې د شوافع ترجمانی كوی. ددې مطلب دادې چې حضرت ابوهريره رضي الله عنه د طلق بن علی رضي الله عنه څخه

[1] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب الرخصة فی ذلک (رقم- ۱۸۲) والترمذی كتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ باب ترک الوضوء من القبلة (رقم-۸۵

د یر روستو ایمان قبول کړی دي ځکه چې حضرت طلق د هجرت څخه پس کله چې د مسجد نبوی تعمیر شروع وو نو د نبی کریم ﷺ خد مت کښې حاضر شوي وو، اوحضرت ابوهریره ؓ په اوومه هجری کښې دغزوهٔ خیبر په موقع اسلام کښې داخل شوي دي. ځکه د حضرت طلق بن علی ؓ دحضرت نبی کریم ﷺ څخه دا حدیث اوریدل اول شوي وی او د حضرت ابوهریره اوریدل به ؓ روستووی. لهذا د حضرت طلق بن علی ؓ حدیث منسوخ او د حضرت ابوهریره ؓ حدیث ناسخ شو. مظاهر حق (۱/ ۲۴۹)

## [۳۲] دذکر په مس کولو د اودس ماتیدل

| |
|---|
| ۳۲۱–()[۱] وَقَدْ رَوَى أَبُو هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «إِذَا أَفْضَى أَحَدُكُمْ بِيَدِهِ إِلَى ذَكَرِهِ [۳] لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا شَيْءٌ فَلْيَتَوَضَّأْ» رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ وَالدَّارَقُطْنِيُّ. |

**ترجمه:** [۱] او د ابوهریره ؓ څخه د رسول ﷺ دا حدیث منقول دي [۲] چه هر کله چې په تاسو کې د چا لاس ذکر ته ورسي [۳] او د لاس او د ذکر په مینځ کې څه شي حایل نه وي نو هغه ته پکار دي چې اودس وکړي (شافعي دار قطني رحمه الله)

**حل اللغات:** ① أَفْضَى: أَيْ: أَوْصَلَ: اورسیږی

| |
|---|
| ۳۲۲–()[۱] وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ بُسْرَةَ، [۲] إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ: لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا شَيْءٌ. |

**ترجمه:** [۱] او نسایي د بي بي بسره ؓ څخه دا روایت نقل کړي دي چې په هغې کښې د لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا شَيْءٌ الفاظ مذکور نه دي.

## [۳۳] په مچه اخستلو (ښځې ښکلولو) سره د اودس نه ماتیدل

| |
|---|
| ۳۲۳–()[۱۹] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُقَبِّلُ بَعْضَ أَزْوَاجِهِ [۳] ثُمَّ يُصَلِّي وَلَا يَتَوَضَّأُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. |

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ؓ فرمايي [۲] رسول ﷺ به خپلو بعضو بيبيانو څخه مچي (ښکلول) اخسته [۳] او اودس کولو بغیر (په اولني اودس سره) به يي مونځ کولو. (ابوداؤد، ترمذي، نسائي)

| |
|---|
| [۱] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: لَا يَصِحُّ عِنْدَ أَصْحَابِنَا بِحَالٍ إِسْنَادُ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ، وَأَيْضًا إِسْنَادُ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنْهَا. [۲] وَقَالَ أَبُو دَاوُدَ: هَذَا مُرْسَلٌ، وَإِبْرَاهِيمُ التَّيْمِيُّ لَمْ يَسْمَعْ عَنْ عَائِشَةَ. |

**ترجمه:** [۱] ترمذي ويلي دي چه زمونږ د علماؤ په نيز په هيڅ حال کښې د عروه سند د

[1] اخرجه الدار قطني في السنن باب ما روى في لمس القبل والدبر
[2] اخرجه النسائي في باب ترک الوضوء من ذلک
[3] اخرجه ابوداود کتاب الطهارة/ باب الوضوء من القبلة (رقم- ۱۷۹) والترمذي کتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب ترک الوضوء من القبلة (رقم-۸۶)

حضرت عائشې څخه او د ابراهیم تیمي سند هم د بي بي عائشې رضي الله عنها نه صحیح نه دی[۲]
او ابوداؤد ویلي دي چې دا حدیث مرسل دي ځکه چې ابراهیم تیمي د بي بي عائشې رضي الله عنها
څخه نه دي اوریدلي

**حل اللغات:** ①-یُقَبِّلُ : مچی به ئې اخستله، ښکلوله به ئې

**تسهیلات:**

**قوله: یُقَبِّلُ بَعْضَ أَزْوَاجِهِ:**

**په مس د امراة سره په نقض وضوء کښې د فقهاؤ مذاهب:**

دا مسئله هم اهمو اختلافی مسائلو کښې ده په مس د امراه اودس ماتیږی که نه؟

① احناف مس امراة ته مطلقًا غیرناقض وائی. مګر دا چې مباشرت فاحشه وی.(یعنی چې دواړه بربنډ وی او ملاقات اوکړی ځکه چې عام طور په داسې حالت کښې مذی اوځی نو دا مباشرت فاحشه قائم مقام د خروج مذیٰ اوګرځولي شو.لکه څنګه چې په نوم کښې استرخاء د مفاصلو راځی اوپه استرخاء د مفاصلو سره خروج د ریح راځی نو ځکه نوم قائم مقام د خروج ریح اوګرځولي شو او د نقض وضوء حکم پرې شوي دي.)او ابن قدامه رحمه الله فرمائیلی دی چې د یو روایت مطابق دا د امام احمد مذهب هم دي

②دامام شافعی رحمه الله مفتی به قول په دې سلسله کښې دادې چه مس مراة مطلقًا ناقض ده که صغیره وی.اوکه کبیره که مس کونکې محرم وی اوکه غیرمحرم که په بشهوت سره وی اوکه بغیرشهوت تردي چه بعضې شوافع لیکی چه ((حتی اذالطمها او داوی جرحها انتقض وضوءه)) البته د شوافعو په نیز صرف یو شرط دې. چه دامس بلاحائل وی او ابن قدامه رحمه الله فرمائیلی دی چې د یو روایت مطابق دا د امام احمد مذهب هم دي

③ دامام مالک رحمه الله په نیز په درې شرطونو موجب وضوء دې.یو داچه کبیره وی ،دویم اجنبیه وی یعنی محرمه نه وی دریم دا چې مس په شهوت سره وی. او ابن قدامه رحمه الله فرمائیلی دی چې د یو روایت مطابق دا د امام احمد مذهب هم دي

**د نقض وضو دلائل:** په دې مسئله کښې هیڅ حدیث نشته بلکه دنقض د قائلینو استدلال په قرآنی آیت باندې ﴿اولمستم النساء﴾ دې.د امام کسائی وغیره په روایت کښې ((لمستم النساء))راغلی دی.او د لمس اطلاق په لاس لګولو باندې کیږی او د دې دلیل دا دې چې ابن مسعود اوابن عمر څخه هم دا تفسیرمنقول دې.اوعمر رضي الله عنه هم دې طرف ته مائل دې.

**جواب:** د حنفیانو دطرفه د دې استدلال څخه جواب دا دې چې ابن عباس رضي الله عنه د دې آیت په تفسیر کښې فرمائی چې دلته د.لمس څخه مراد جماع ده.د ابن عباس رضي الله عنه څخه علاوه

علی، آبی بن کعب، مجاهد، طاؤس، حسن بصری امام شعبی، سعیدبن جبیر، او قتاده هم د دې تفسیر قائلین دی.

**اعتراض:** احنافو په اکثرو مسئلو کښې د ابن مسعود رضی الله عنه په قول عمل کوی نو په دې مسئله کښې ولې ابن مسعود رضی الله عنه پریخود اود ابن عباس په قول عمل کوی.

**جواب:** دا د تفسیر باب دې او په تفسیر کښې د ابن عباس رضی الله عنه رائې د ابن مسعود رضی الله عنه څخه اوچته ده خکه چې ابن عباس رضی الله عنه ته نبی کریم ﷺ دعا کړې وه چې ((اللهم علمه التأويل)) نو د دې وجې احناف د تفسیر په باب کښې د ابن عباس قول اختیاروی.

**په آیت کښې د لمس څخه مراد جماع کیدو باندې قرائن:** د لاندینی قرائنو په بناء په آیت کښې د لمس څخه جماع مراد ده لمس بالید مراد نه دې.

① د ((أَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ)) د جماع څخه کنایه ده. ددې دلیل دا دې چه دې آیت کښې اصل مقصود د تیمم بیان دې. اودابنودل مقصود دی چه تیمم دحدث اصغراوحدث اکبر دواړو څخه جائز دې. په ((أَوْ جَآءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ الْغَآئِطِ)) سره د حدث اصغربیان اوشو اود حدث اکبردپاره ((أَوْ لٰمَسْتُمُ)) کنائی الفاظ استعمال شوی دی که ((أَوْ لٰمَسْتُمُ)) هم په حدث اصغرمحمول شي. نو دا آیت به د حدث اکبر د بیان څخه خالي شي.

② أَوْ لٰمَسْتُمُ باب دمفاعله دې. داپه مشارکت دلالت کوی اومشارکت په جماع اوپه مباشرت فاحشه کښې کیدې شي. په صرف لمس یعنی لاس اوړل یا قبله کښې نه وی.

③ ترکومې چه د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه اوابن عمر رضی الله عنه وغیره د اثاروڅخه د استدلال تعلق دې. نو اول خو د دوئ سندونه قوی نه دی. دویم دا چې دا آثار د صریح صحیح احادیثو معارض دی. نوپه دې وجه قابل د استدلال نه دی

⑤ د ټولوڅخه اهمه خبره دا ده که د ملامسه یا د لمس څخه مراد مس بالید وی. نو د حضرت نبی کریم ﷺ په حیاة طیبه کښې څه یو واقعه خوداسې ملاویدل پکار وو چه هغې کښې دوئ د مس امراة په بناء وضوء کړې وې یا د دې ئې حکم ورکړې وی. حال دا دې چه د احادیثو په پوره ذخیره کښې داسې یو روایت هم نه ملاویږی.

**دعدم وجوب وضوء دلائل:** په دې مسئله کښې د حنفیانو دلائل ډیر مضبوط دی هم دا وجه ده چې ډیرو اهل حدیثو په دې مسئله کښې د احنافو ملګرتیا کړې ده. صاحب د تحفة الاحوذی چې د احنافو په تردید کښې څه کوتاهی نه کوی. هغوی هم په دې مسئله کښې د احنافو مسلك اختیار کړې دې. دلائل ئې لاندې دی.

① په صحیحینو کښې د حضرت عائشه رضی الله عنها روایت دې چه زه دتهجدو په وخت دحضرت نبی کریم ﷺ وړاندې اوده وومه کله چې به دوی سجده کوله نو په لاس باندې د

اخوا کولو دپاره حرکت راکړو نو مابه خپلې پښې راغونډې کړې.ددې په باره کښې دحافظ ابن حجر رحمه الله داوئیل چه مس په حائل سره وه..نوځکه پرې اودس نه ماتیدل. دا تکلف محض دې

② سنن نسائی کښې هم د حضرت عائشه رضي الله عنها حدیث دې ((عن عائشه رضي الله عنها قالت ان كان رسول الله ﷺ ليصلي واني لمعترضة بين يديه اعتراض الجنازة حتى اذا اراد ان يوتر مسني برجله))([1])

③ حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دې ((عن عائشه رضي الله عنها قالت فقدت رسول الله ﷺ ليلة من الفراش فالتمسته فوقعت يدى على بطن قدمه وهو في المسجدوهما منصوبتان وهويقول اللهم انى اعوذ برضاك من سخطك))([2])

④ دحضرت ابومسعودانصاری رضي الله عنه روایت روایت دې.((ان اقبل الى الصلوة فاستقبلته امرأته فأكب عليها فتناولها فاتى النبى ﷺ فذكر ذلك له فلم ينهه))

**اعتراض:** ددې سند کښې لیث بن ابی سلیم دې چه مدلس دې؟

**جواب:** د نورو احادیثو په وجود کښې داخبره قطعاً مُضرنه ده. ([3])

⑤ د حضرت ام سلمه رضي الله عنها روایت دې.((قالت كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يقبل ثم يخرج الى الصلوة ولا يحدث وضوءً)) ([4])

**اعتراض:** ددې سندکښې یو راوی یزیدبن سنان الرهاوی چه امام احمد رحمه الله ، یحیی بن معین رحمه الله او ابن المدینی رحمه الله ورته ضعیف وئیلې دې؟

**جواب:** امام بخاری رحمه الله ، ابوحاتم او مروان بن معاویه دده توثیق کړې دې.په هرحال دې کثیرروایاتو په وجود کښې داحنافو مسلك ارجح دې.

⑥ دحضرت عائشه رضي الله عنها حدیث الباب((ان النبى ﷺ قبل بعض نساءه ثم خرج الى الصلوة ولم يتوضأ))

**[۲۲۳] د اور پوخ شوې څیز په خوړلو سره د اودس نه ماتیدل**

۲۲۳-([5])[۲۰] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: [۲] «أَكَلَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَتِفًا [۳] ثُمَّ مَسَحَ يَدَهُ بِمِسْحٍ كَانَ تَحْتَهُ، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او ابن عباس رضي الله عنه فرمایي [۲] چه رسول ﷺ د بزې (چیلۍ) د اوږې غوښه وخوړله [۳] بیا خپل لاس یې په ټاټ سره وچ کړو چې لاندې ځنې غوړیدلې وو بیا ودریدلو مونځ یې

---

[1] ) نسائی ۳۸\۱ ترک الوضوء من مس الرجل امراته من غیرشهوة)
[2] ) صحیح مسلم باب مایقال فی الرکوع والسجود ۱۹۲\۱)
[3] ) مجمع الزوائد ۲۴۷\۱ ((باب فیمن قبل أولامس)) ناقلا عن معجم طبرانی الاوسط
[4] ) معجم طبرانی الاوسط)-
[5] اخرجه ابوداود کتاب الطهارة/ باب فی ترک الوضوء مما مست النار(رقم-۱۸۹) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب الرخصة فی ذلک (رقم-۴۸۸) (رقم-۴۸۸)

وكړلو. (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① كَتِفًا: اوږي ته وائي. ② مِسْحٍ: أَيْ: كِسَاءٍ: ټاټ، پيړ څادر.

**تسهيلات:**

**قوله:** ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى

**د احنافو د مذهب تائيد:** دې حديث هم د احنافو د مسلك تائيد كړې دې چې په اور سره پوخ شوى څيز خوړلو باندې اودس نه ماتيږي . او ددې حديث مبارك څخه دا هم معلومه شوه كه د خوراك كولو څخه پس په لاسونو يا مخ باندې غوړوالى پاتې شي نو د هغې وينځل ضروري نه دي . مظاهر حق (۱/ ۲۵۱)

**[۳۲۵] په اور پخ شوى څيز د خوراك نه پس اودس نه كول**

٣٢٥—(١)[٢١] ① وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، أَنَّهَا قَالَتْ: ② «قَرَّبْتُ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جَنْبًا مَشْوِيًّا فَأَكَلَ مِنْهُ، ③ ثُمَّ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① او بي بي ام سلمه رضي الله عنها فرمايي ② چه ما نبي كريم ﷺ ته د بزې (چيلۍ) د سره كړې (وريته كړې) غوښې يوه حصه يوړه ③ حضور ﷺ د هغې څخه خوراك وكړو بيا د لمانځه د پاره ودريدلو او اودس يې ونه كړلو. (احمد)

**حل اللغات:** ① قَرَّبْتُ: نزدې مې كړه يعنى ورته مې پيش كړه، ② جَنْبًا: أَيْ: ضِلَعًا: د ډډې هډوكې يعنى د پختيو غوښه، ③ مَشْوِيًّا: وريته كړې، سره كړې غوښه.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۲۶] د وريته شوې چيلۍ د خوراك نه پس اودس نه كول**

٣٢٦—(٢)[٢٢] ① عَنْ أَبِي رَافِعٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «أَشْهَدُ لَقَدْ كُنْتُ أَشْوِي لِرَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَطْنَ الشَّاةِ، ③ ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت ابو رافع رضي الله عنه فرمايي ② چه زه په دې خبره قسم خورم چې ما به د حضور ﷺ د پاره د بزې (چيلۍ) د خيټې يعنى د خيټې دننه څيزونه (مَثَلًا زړه اينه وغيره) سره كول (پخول) [حضور ﷺ به د هغې څخه خوراك كولو] ③ بيا به د لمانځه د پاره ودريدلو او اودس به يې نه كولو. (مسلم)

**حل اللغات:** ① أَشْهَدُ: أَيْ: أُقْسِمُ بِاللّٰهِ: زه قسم كوم، ② أَشْوِي: وريت كول به مې، سره كول به مې، ③ بَطْنَ الشَّاةِ: دخيټې دننه څيزونه مراد دي يعنى زړه، اينه وغيره.

(۱) اخرجه الترمذى كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى أكل الشواء (رقم- ۱۸۲۹)
(۲) اخرجه مسلم كتاب الحيض باب نسخ الوضوء مما مست النار(رقم) ۹۴ - (۳۵۷)

[۳۲۷] د کټوۍ پخ شوې غوښې خوړلو نه پس اودس نه کول

۳۲۷-(١) [٢٣] ①وَعَنْهُ، قَالَ: ②«أُهْدِيَتْ لَهُ شَاةٌ فَجَعَلَهَا فِي الْقِدْرِ، ③فَدَخَلَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: (مَا هٰذَا يَا أَبَا رَافِعٍ؟) ④فَقَالَ: شَاةٌ أُهْدِيَتْ لَنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ! فَطَبَخْتُهَا فِي الْقِدْرِ. ⑤قَالَ: (نَاوِلْنِي الذِّرَاعَ يَا أَبَا رَافِعٍ!) ⑥فَنَاوَلْتُهُ الذِّرَاعَ. ثُمَّ قَالَ: (نَاوِلْنِي الذِّرَاعَ الْآخَرَ) ⑦فَنَاوَلْتُهُ الذِّرَاعَ الْآخَرَ. ثُمَّ قَالَ (نَاوِلْنِي الذِّرَاعَ الْآخَرَ)

**ترجمه:** ① او ابو رافع ﷺ راوي دي ② چې يوه ورځ ماته د تحفې په طور بزه راوليږل شوه نو ما د هغې غوښه د پخولو دپاره په کټوۍ کې واچوله③ (په دې کې) حضور ﷺ تشريف راوړو وې فرمايل ابو رافع دا څه دي؟④ ما عرض وکړو يا رسول الله ﷺ د بزې (چيلۍ) غوښه ده چې ما ته د هديې په طور راغلې ده ما په کټوۍ کې پخ کړيده⑤ حضور ﷺ وفرمايل ابو رافع يو لاس ماته هم را کړه⑥ نو ما يو لاس د حضور ﷺ په خدمت کې پيش کړو بيا حضور ﷺ وفرمايل يو بل لاس را کړه⑦ ما دويم لاس هم پيش کړو بيا حضور ﷺ وفرمايل يو لاس بل را کړه

①فَقَالَ لَهُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! إِنَّمَا لِلشَّاةِ ذِرَاعَانِ. ②فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: أَمَا إِنَّكَ لَوْ سَكَتَّ لَنَاوَلْتَنِي ذِرَاعًا فَذِرَاعًا مَا سَكَتَّ، ③ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَتَمَضْمَضَ فَاهُ، وَغَسَلَ أَطْرَافَ أَصَابِعِهِ، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى، ④ثُمَّ عَادَ إِلَيْهِمْ، فَوَجَدَ عِنْدَهُمْ لَحْمًا بَارِدًا، فَأَكَلَ، ⑤ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَصَلَّى وَلَمْ يَمَسَّ مَاءً». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① هغه عرض وکړو يا رسول الله ﷺ د بزې (چيلۍ) خو دوه لاسونه وي (او هغه دواړه مې ستا په خدمت کې پيش کړل اوس بل لاس خو نشته)② حضور ﷺ ماته وفرمايل اې ابو رافع! که ته چپ پاتې شوې وې نو ماته به دې لاس نه پس بل لاس راکولو ترڅو پورې چې ته چپ وې③ بيا حضور ﷺ اوبه وغوښتلې او خله يې وينځله بيا د ګوتو بندونه يې ووينځل او ودريدلو او مونځ يې وکړو④ بيا ابو رافع ته ورغلو او د هغه سره يې يخه غوښه وليده نو حضور ﷺ هغه وخوړله⑤ د هغه څخه وروسته مسجد ته يې تشريف يوړو او (د شکرانې) مونځ يې وکړو او اوبه يې مسه هم نه کړې يعنې نه يې اودس وکړو او نه يې خُله وينځله. (احمد)

**حل اللغات:** ① أُهْدِيَتْ: هديه کښې راکړې شوې دی، ② الْقِدْرِ: کټوۍ، ③ فَطَبَخْتُهَا: پخ کړې مې ده، ④ نَاوِلْنِي: ماته راکړه، ⑤ الذِّرَاعَ: وهو مِنْ طَرَفِ الْمِرْفَقِ إِلَى طَرَفِ الْإِصْبَعِ: د څنګل نه تر ګوتو پورې هډوکې ته ذراع وائې يعنې د لاس غوښه (د څارو او څناورو مخکينو دواړو خپو ته ذراع وائې). ⑥ سَكَتَّ: چپ پاتې شوې وې، خاموشی دې اختيار کړې وې، ⑦ لَمْ يَمَسَّ: لاس ئې يونړلو، يعنی لاسونه ئې اونه وينځل.

(۱) اخرجه احمد في المسند ۶/۳۹۲

**تسهیلات:**

**قوله: ذِرَاعًا فَذِرَاعًا:**

**د معجزې د ظهور امکان:** يعنی زما په غوښتنه که تاسو چپ پاتې شوې ونی نوپه معجزاتی توګه به دَ الله تعالی دَ طرف نه دَ ډيرو ذراعِ انتظام کیدلو مګر چه کله تاسو دَ ظاهری اسبابو تصریح اوتشریح شروع کړه نودَغیب دپردې کرشمه موقوف شوه.

**قوله: وَلَمْ يَمَسَّ مَاءً:**

**د پخ شوی څيز په خوراک د عدم وضوء دليل:**

يعنی حضورپاك په دغه صورت کښې اوبوته لاس هم اونه لګولو ځکه چه دلته حضورپاك يخه غوښه اوخوړله په کوم سره چه په لاس پورې هيڅ هم نه وو لګيدلې نونه ئی لاس اووينځلواونه ئی اودس اوکړو داتول احاديث دَ جمهورودلائل دی چه په اورپورې لګيدلې څيز خوړلو څکلوسره اودس نه ماتيږی.

۳۲۸-(¹) [۱] وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ أَبِي عُبَيْدٍ [۲] إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ (ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ) إِلَى آخِرِهِ.

**ترجمه:** [۱] او دا حديث دارمي هم روايت کړي دي [۲] خو ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ څخه تر آخره پورې يې نه دي ذکر کړي.

**[۳۲۹] د پاکو څيزونو په خوراک داودس نه ماتيدل**

۳۲۹-(²) [۲۴] [۱] وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «كُنْتُ أَنَا وَأُبَيٌّ وَأَبُو طَلْحَةَ جُلُوسًا فَأَكَلْنَا لَحْمًا وَخُبْزًا، [۳] ثُمَّ دَعَوْتُ بِوَضُوءٍ، فَقَالَا: لِمَ تَتَوَضَّأُ؟ [۴] فَقُلْتُ: لِهَذَا الطَّعَامِ الَّذِي أَكَلْنَا. فَقَالَا: أَتَتَوَضَّأُ مِنَ الطَّيِّبَاتِ؟ [۵] لَمْ يَتَوَضَّأْ مِنْهُ مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِنْكَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] انس بن مالك رضي الله عنه فرمايي [۲] چه زه اوابي بن کعب رضي الله عنه او ابو طلحه رضي الله عنه ناست وو مونږ غوښه او ډوډۍ وخوړه [۳] (د خوراك څخه فارغيدو نه پس) ما د اودس د پاره اوبه وغوښتلې ابي ابن کعب رضي الله عنه او ابو طلحه رضي الله عنه اوويل ته اودس ولې کوې؟ [۴] ما ورته اوويل د دې طعام په وجه چې مونږ اوس خوړلي دي نو هغه دواړو اوويل آيا پاك څيزونه خوړلو سره اودس کوې [۵] په دې څيزونوخوړلوسره هغه چا اودس نه دي کړي چې ستاڅخه ښه دي (يعني حضور صلی الله علیه وسلم.(احمد)

**حل اللغات:** ① خُبْزًا: روټۍ، ② دَعَوْتُ: أَيْ: طَلَبْتُ: اومې غوښتلې، ③ بِوَضُوءٍ: أَيْ: مَاءَ الْوُضُوءِ: د اودس اوبه مراد دی.

(¹) اخرجه الدارمی باب ما أكرم به النبی صلى الله عليه وسلم فی بركة طعامه (رقم-٤٥)

(²) اخرجه احمد فی المسند ٣٠/٤

**[۳۳۰] د ښځي په مسه کولو او مچه کولو داودس نه ماتيدل**

۳۳۰-() [۲۵] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، كَانَ يَقُولُ: ② قُبْلَةُ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ وَجَسُّهَا بِيَدِهِ مِنَ الْمُلَامَسَةِ. ③ وَمَنْ قَبَّلَ امْرَأَتَهُ أَوْ جَسَّهَا بِيَدِهِ، فَعَلَيْهِ الْوُضُوءُ. رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالشَّافِعِيُّ.

**ترجمه:** ① د ابن عمر رضي الله عنهما په باره کې روايت دي چه هغه به ويل ② چه د سړي د خپلي ښځي ښځه مچي (ښه) اخستل او هغه په خپل لاس سره مسه کول دا هم ملامست دي ③ او کوم سړي چې دخپلي ښځي ښځه مچي (ښه) واخسته يا هغه يي په لاس سره مسه کړه نو په هغه اودس واجب دي. (مالك رحمه الله وشافعي رحمه الله)

**حل اللغات:** ① قُبْلَةُ: ښکلول، مچی کول، ② وَجَسُّهَا: أَيْ: مَسُّهَا: لاس ورته اوړل.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَمَنْ قَبَّلَ امْرَأَتَهُ أَوْ جَسَّهَا بِيَدِهِ، فَعَلَيْهِ الْوُضُوءُ

**نوټ:** د دې مسئله تفصيل وړاندې حديث نمبر (۳۲۳) کښې تيرشوې دې.

**په مس د امراة سره په نقض وضوء کښې مذاهب:-**

① دامام شافعي رحمه الله مفتی به قول په دې سلسله کښې دادې چه مس مراة مطلقًا ناقض ده که صغيره وي. اوکه کبيره که مس کونکې محرم وي اوکه غيرمحرم که په بشهوت سره وي اوکه بغيرشهوت تردې چه بعضې شوافع ليکی چه ((حتی اذالطمها او داوی جرحها انتقض وضوءه)) البته د شوافعو په نيز صرف يو شرط دې. چه دامس بلاحائل وی او ابن قدامه m فرمائيلی دی چې د يو روايت مطابق دا د امام احمد مذهب هم دې

② دامام مالك رحمه الله په نيز په درې شرطونو موجب وضوء دې. يو داچه کبيره وی ،دويم اجنبيه وی يعنی محرمه نه وی دريم دا چې مس په شهوت سره وی. او ابن قدامه m فرمائيلی دی چې د يو روايت مطابق دا د امام احمد مذهب هم دې

③ احناف مس امراة ته مطلقًا غيرناقض وائی. مګر دا چې مباشرت فاحشه وی. (يعنی چې دواړه برېنډ وی او ملاقات اوکړی ځکه چې عام طور په داسې حالت کښې مذی اوځی نو دا مباشرت فاحشه قائم مقام د خروج مذئ اوګرځولې شو. لکه څنګه چې په نوم کښې استرخاء د مفاصلو راځی اوپه استرخاء د مفاصلو سره خروج د ريح راځی نو ځکه نوم قائم مقام د خروج ريح اوګرځولې شو او د نقض وضوء حکم پرې شوې دې.) او ابن قدامه رحمه الله فرمائيلی دی چې د يو روايت مطابق دا د امام احمد مذهب هم دې

**داول او دويم فريق دليل:** قرآنی آيت ((أَوْ لَمَسْتُمُ النِّسَاءَ)) د دوی مستدل دې. د امام کسائی وغيره په روايت کښې ((أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ)) راغلی دی. او د لمس اطلاق په لاس لګولو باندې کيږی

[1] اخرجه مالک فی الموطا کتاب الطهارة . باب الوضوء من قبلة الرجل امرأته (رقم-۶۴)

او د دې دلیل دا دې چې ابن مسعود او ابن عمر څخه هم دا تفسیر منقول دې.او عمر رضی الله عنه هم دې طرف ته مائل دې.

**داول اودویم فریق د دلیل جواب:**–د حنفیانو دطرفه د دې استدلال څخه جواب دا دې چې ابن عباس h د دې آیت په تفسیر کښې فرمائی چې دلته د لمس څخه مراد جماع ده.د ابن عباس رضی الله عنه څخه علاوه علي ،آبی بن کعب، مجاهد ، طاؤس ،حسن بصری امام شعبی ،سعیدبن جبیر، او قتاده هم د دې تفسیر قائلین دی.

**په جواب اعتراض:**– احنافوپه اکثرو مسئلو کښې د ابن مسعود رضی الله عنه په قول عمل کوی نو په دې مسئله کښې ولې ابن مسعود رضی الله عنه پریخود اود ابن عباس په قول عمل کوی.

**د اعتراض جواب:**–دا د تفسیر باب دې او په تفسیر کښې د ابن عباس رضی الله عنه رائې د ابن مسعود رضی الله عنه څخه او چته ده ځکه چې ابن عباس رضی الله عنه ته نبی کریم ﷺ دعا کړې وه چې ((اللهم علمه التاویل)) نو د دې وجې احناف د تفسیر په باب کښې د ابن عباس قول اختیاروی.

**د لمس څخه جماع مراد کیدو باندې قرائن:**– د لاندینی قرائنو په بناء په آیت کښې د لمس څخه جماع مراد ده لمس بالید مراد نه دې.

① د((اَوْلٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ)) د جماع څخه کنایه ده. ددې دلیل دا دې.چه دې آیت کښې اصل مقصود د تیمم بیان دې.اودابنودل مقصود دی.چه تیمم دحدث اصغراوحدث اکبر دواړو څخه جائز دې. په ((اَوْجَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ)) سره د حدث اصغربیان اوشو اود حدث اکبردپاره ((اَوْلٰمَسْتُمُ)) کنائی الفاظ استعمال شوی دی که ((اَوْلٰمَسْتُمُ)) هم په حدث اصغرمحمول شی.نو دا آیت به د حدث اکبر د بیان څخه خالی شی.

② اَوْلٰمَسْتُمُ باب دمفاعله دې. داپه مشارکت دلالت کوی اومشارکت په جماع اوپه مباشرت فاحشه کښې کیدې شی.په صرف لمس یعنی لاس اوړل یا قبله کښې نه وی.

③ ترکومې چه د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه اوابن عمر رضی الله عنه وغیره د اثاروڅخه د استدلال تعلق دې.نو اول خو د دوئ سندونه قوی نه دی.دویم دا چې دا آثار د صریح صحیح احادیثو معارض دی.نوپه دې وجه قابل د استدلال نه دی

⑤ د ټولوڅخه اهمه خبره دا ده که د ملامسه یا د لمس څخه مراد مس بالید وی.نو د حضرت نبی کریم ﷺ په حیاة طیبه کښې څه یو واقعه خوداسې ملاویدل پکار وو چه هغې کښې دوئ د مس امراة په بناء وضوء کړې وې یا د دې ئې حکم ورکړې وی.حال دا دې چه د احادیثو په پوره ذخیره کښې داسې یو روایت هم نه ملاویږی.

**د دریم فریق دلائل:** په دې مسئله کښې د حنفیانو دلائل ډیر مضبوط دی هم دا وجه ده چې ډیرو اهل حدیثو په دې مسئله کښې د احنافو ملګرتیا کړې ده.صاحب د تحفة الاحوذی چې د احنافو په تردید کښې څه کوتاهی نه کوی.هغوی هم په دې مسئله کښې د احنافو مسلك اختیار کړې دې.دلائل ئې لاندې دی.

① په صحيحينو کښې د حضرت عائشه ﷝ روايت دې چه زه د تهجد و په وخت د حضرت نبي کريم ﷺ وړاندې اوده وومه کله چې به دوی سجده کوله نو په لاس باندې د اخوا کولو د پاره حرکت راکړو نو ما به خپلې پښې راټولولې کړې. ددې په باره کښې د حافظ ابن حجر ﷫ داونيل چه مس په حائل سره وه..نو ځکه پرې اودس نه ماتيدل. دا تکلف محض دې

② سنن نسائي کښې هم د حضرت عائشه ﷝ حديث دې ((عن عائشه ﷝ قالت ان كان رسول الله ﷺ ليصلى وانى لمعترضة بين يديه اعتراض الجنازة حتى اذااراد ان يوترمسنى برجله)) (¹)

③ حضرت عائشه ﷝ نه روايت دې ((عن عائشه ﷝ قالت فقدت رسول الله ﷺ ليلة من الفراش فالتمسته فوقعت يدى على بطن قدمه وهوفى المسجدوهما منصوبتان وهويقول اللهم انى اعوذ برضاك من سخطك)) (²)

④ دحضرت ابومسعودانصارى ﷜ روايت روايت دې.((ان القبل الى الصلوة فاستقبلته امراته فاكب عليها فتناولهافاتى النبى ﷺ فذكرذلك له فلم ينهه))

**اعتراض:-** ددې سندې کښې ليث بن ابى سليم دې چه مدلس دې

**جواب:-** د نورو احاديثوپه وجود کښې داخبره قطعامضرنه ده. (³)

⑤ د حضرت ام سلمه ﷝ روايت دې.((قالت كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يقبل ثم يخرج الى الصلوة ولا يحدث وضوءً)) (⁴)

**په مذکوره دليل اعتراض:-** ددې سند کښې يو راوى يزيدبن سنان الرهاوى چه امام احمد ﷫، يحيى بن معين ﷫ او ابن المدينى ﷫ ورته ضعيف ونيلې دې

**د اعتراض جواب:-** امام بخارى ﷫، ابوحاتم او مروان بن معاويه دده توثيق کړې دې.په هرحال دې کثيررواياتو په وجود کښې داحنافو مسلك ارجح دې.

⑥ دحضرت عائشه ﷝ حديث الباب ((ان النبى ﷺ قبل بعض نساء خرج الى الصلوة ولم يتوضاء))

**[۳۳۱] د خپلې ښځې په ښکلولو د اودس ماتيدل**

۳۳۱-(⁵)[۲۶] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: كَانَ يَقُولُ: [۲] مِنْ قُبْلَةِ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ الْوُضُوءُ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** [۱] ابن مسعود ﷜ به فرمايل [۲] چه په سړي د خپلې ښځې مچې (ښکل) اخستو سره اودس لازميږي. (مالك ﷫)

¹) نسائى ۳۸\۱ ترك الوضوء من مس الرجل امراته من غيرشهوة
²) صحيح مسلم باب مايقال فى الركوع والسجود ۱۹۲\۱
³) مجمع الزوائد ۲٤۷\۱ ((باب فيمن قبل اولامس)) دناقلاً عن معجم طبرانى الاوسط
⁴) معجم طبرانى الاوسط-
⁽⁵⁾ اخرجه مالک فى الموطا كتاب الطهارة، باب الوضوء من قبلة الرجل امرأته (رقم-۶۵)

[۳۳۲] ښځلول د لمس په حکم کښې

۳۳۲-(۱) [۲۷] ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا. أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ- رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ۲ إِنَّ الْقُبْلَةَ مِنَ اللَّمْسِ، فَتَوَضَّئُوا مِنْهَا.

**ترجمه:** ۱ ابن عمر رضي الله عنهما راوي دي حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه وفرمایل ۲ چې مچي (ښکل) اخستل په لمس کښې داخل دي (چې په قرآن کښې مذکور دي) نو مچي (ښکل) اخستو ځنې وروسته اودس کوئ.

**تسهیلات:**

**قوله: فَتَوَضَّئُوا:**

**په تقبيل امرأة باندې د نقض الوضوء دليل:** داروایت اودې نه وړاندې دَحضرت ابن مسعود رضي الله عنه روایت اوهغې نه وړاندې دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما روایت نه معلومیږی چه ښځې سره لاس لګولو باندې اودس لازم دې. شوافع دا دَدلیل په توګه اخستې دې.

**د احنافو جواب:** احناف فرمائی چه اول خودا روایتونه موقوف دی او اقوال صحابه دی چه دَ مرفوع احادیثو مقابله نه شی کولې. بل داکه چرې داقوی اودَاستدلال قابل اومنلې شی نوممکن ده چه مرفوع احادیث دَدې دپاره ناسخ وی. دَابن عباس رضي الله عنهما په مرفوع حدیث کښې دی چه حضور پاک ﷺ فرمائیلی دی "لیس فی القبلة وضوء" (۲) تفصیل وړاندې تیرشوې دې.

[۳۳۳] د هر قسم وینو بهیدو سره د اودس ماتیدل

۳۳۳-(۳) [۲۸] ۱ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ- رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۲ «الْوُضُوءُ مِنْ كُلِّ دَمٍ سَائِلٍ». ۳ رَوَاهُمَا الدَّارَقُطْنِيُّ، وَقَالَ: عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ وَلَا رَآهُ، وَيَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ، وَيَزِيدُ بْنُ مُحَمَّدٍ مَجْهُولَانِ.

**ترجمه:** ۱ عمر ابن عبد العزيز رحمه الله د تمیم داري ځنې روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ چه په هره بهیدونکي وینې سره اودس لازمیږي، ۳ دواړه روایتونه دار قطني نقل کړي دي او ویلي یي دي چې عمر ابن عبد العزيز رحمه الله نه خو د تمیم داري رضي الله عنه ځنې اوریدلي دي او نه یي هغه لیدلي دي او د دې روایت دوه راویان یزید ابن خالد او یزید ابن محمد مجهول دي.

**حل اللغات:** ① سَائِلٍ: د اسم فاعل صیغه ده، بهیدونکي.

(۱) اخرجه الدارقطنی

(۲) کذا فی مسند ابی حنیفه رحمه الله

(۳) اخرجه الدارقطنی

**تسهيلات:**

**قوله:** اَلْوُضُوءُ مِنْ كُلِّ دَمٍ سَائِلٍ:

**په خروج من غير السبلين باندې د اودس په ماتيدوکښې مذاهب:**

① د امام مالک رحمه الله مسلک دادې چې صرف د هغه نجاست خروج ناقض وضوء دې کوم چې په خپله هم معتاد وی اودده مخرج هم معتاد وی.لکه بول غائط .د دې وجې قی او رعاف د دوئ په نيز ناقض وضوء نه دی.ځکه چه ددې مخرج معتاد نه دې.اوکه سبيلين څخه بول براز ، منی .مذی ، ودی او ريح څخه علاوه بل څه څيز خارج شی لکه چنجې وغيره نو هغه هم ددوی په نيز ناقض نه دی.ځکه چه مخرج خو معتاد دې خوخارج معتاد نه دې البته دم استحاضه اګرچه خارج غيرمعتاد دې.خو د امام مالک رحمه الله په نيز دې سره اګرچه قياسًا وضوء نه ماتيږی.خودامرتعبدی په بناء دې ته وضوء ناقض وائی.

② د امام شافعی رحمه الله په نيز مخرج معتادکيدل خو ضروری دی.خود خارج معتادکيدل ضروری نه دی.د دې وجې که په سبيلين غيرمعتاديعنی د بول اوغائط (غټ بول) څخه علاوه څه بل څيزخارج شی.نوداده په نيز ناقض دې.د دې وجې په غيرسبيلين سره ديونجاست خروج باندې نه د شوافعو اونه د مالکيانو په نيز اودس ماتيږی.

③ په قې اورعاف باندې دوضوء مسئله په يواصولی اختلاف متفرع ده.هغه داچه د احنافو په نيز چه يو نجاست دجسم دکومې حصې څخه هم خارج شی نودا ناقض وضوء دې که دا خروج د نجاست عادی وی اوکه د بيمارئ د وجې وی.اوهم دامسلک دحنابلوُ اوامام اسحاق رحمه الله دې.

**داول او دويم فريق اول دليل:** ① دامام مالک رحمه الله او دامام شافعی رحمه الله استدلال دحضرت جابر رضی الله عنه په روايت څخه دې.کوم چې امام بخاری رحمه الله تعليقاروايت کړې دې [۱] ((**ويذكرعن** جابران النبی ﷺ كان فی غزوة ذات الرقاع فرمی رجل ــــ بسهم فنزفه الدم فركع وسجد ومضى فی صلاته)) د دې واقعې تفصيل امام ابوداؤد په مسند روايت سره کړې دې.[۲]

**استدلال:** ګورئ دا صحابی په غشې لګيدلې وو حضرت عبادبن بشر رضی الله عنه وو. وينې ترې تللې خو بيا هم مونځ ئې جاری ساتل که چرته په وينه باندې اودس ماتيدل نو دوی به ولې مونځ جاری ساتل؟ هرکله چې مونځ ئې جاری اوساتل نو معلومه شوه چې په وينه باندې اودس نه ماتيږی.

**د اول دليل درې جوابونه:** ① ددې جواب داورکړې شوې دې.چه دې واقعه کښې

[۱] صحيح بخاری شريف كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء الامن المخرجين القبل والدبر) ـ
[۲] سنن ابی داود باب الوضوء من الدم) ـ

دحضرت نبی کریم ﷺ تقریرثابت نه دې اوبغیر د دوئ د تقریر څخه د نورو احادیثو په مقابله کښې د صحابی فعل حجت نشی کیدې.

② **الزامی جواب:** که چرته د دې حدیث څخه په عدم نقض وضوء استدلال کیدې شی.نو بیادې څخه د وینې د طهارت هم استدلال صحیح کیدل پکاردی.ځکه چه د ابوداؤد د تصریح مطابق ده ته درې غشی لګیدلي وو.نو دا ممکن نه ده چه دده جامې به په وینونه وې ګنده شوې.

**د الزامی جواب څخه د شوافعو جواب:** د بعضې شوافعو دا وئیل هسې تکلف محض دي چه وینې دداری په شکل وتې وه.اونیغه په زمکه لګیدلي وه.اوپه جامونه وه لګیدلې.

**دجواب تغلیط:** د دې تاویل تردید په ابوداؤد کښې د ((فلمارأى المهاجر مابالانصارى من الدماء)) الفاظونه هم کیږی. چې مهاجر صحابی په انصاری صحابی باندې وینې لیدلې وې. په هرحال ((ماهوجوابكم عن نجاسة الدم فهوجوابنا عن انتقاض الوضوء))

③ **تحقیقی جواب:** دا جواب خوالزامی وو.ددې تحقیقی جواب دادې چه حضرت عباد ﷺ د مونځ اود تلاوت په لذت کښې دومره مشغول وو. یا خودوئ ته د وینې وتلو هډو پته اونه لګیدله یاکه لیګیدلې هم وی.نو د خوند او لذت د غلبې په وجه ئې مونځ نه شو ماتولو. دادغلبه حال اوداستغراق کیفیت وو. د کوم څخه چې فقهی مسئله نشی مستنبط کیدې

**د تحقیقی جواب تائید:** ددې تائید د ابوداؤد په الفاظو سره کیږی.((قال ان كنت فى سورة اقرؤها فلم احب ان اقطعها)) د دې څخه علاوه چې په انتقاض وضوء کوم دلائل پورته بیان شوی دی. دا د قاعده کلیه حیثیت لری.کوم چې په دې واقعه جزئیه نشی قربانیدې.

**داول او دویم فریق دویم دلیل:** شوافع دویم استدلال دصحابؤ اودتابعینو دبعض اثارونه کوی.لکه چه امام بخاری ﷫ دحسن بصری ﷫ ، ابن ابی اوفی ﷫ ابن عمر ﷺ او دطاؤس ﷫ وغیره اثار تعلیقاً ذکرکړې دی.

**د دویم دلیل درې جوابونه:** ① ددې جواب دادې چه د صحابؤ اود تابعینو اثار دواړو جانبینو ته دی.ګورئ نه چې په مصنف ابن ابی شیبه [1] کښې دواړه قسمه آثارجمع شوی دی.د کوم څخه چې معلومیږی چې د حضرت ابوهریره ﷺ ، حضرت ابن عمر ﷺ ، حضرت حسن بصری ﷫ او مجاهدوغیره دانتقاض وضوء قائل وو.دې وجې صرف د یوطرف داثارو څخه استدلال نشی کیدې

② دغه شان په عدم انتقاض وضوء باندې دال اثارو کښې ډیرو کښې داتاویل کیدې

[1]) مصنف ابن ابی شیبه باب إذا سال الدم أوقطر أوبرز فيه الوضوء) _

شی.چه داپه حالت د عذر محمول دي
④ لویه خبره داده.چه دصحابوْ اودتابعینو آثاراحادیث مرفوعه صحیحوْ مقابله نه شی کولې چه کوم داحنافو مستدل دي.

**داول او دویم فریق دریم دلیل:** دشوافعو یواستدلال بخاري شریف کښې د حضرت حسن بصری رحمه الله قول دي چه ((مازال المسلمون یصلون فی جراحاتهم)) ([1])

**د دریم دلیل جواب:** جواب دادي چه دلته دحضرت حسن بصری رحمه الله مراد هغه زخم دي.چه دکوم څخه چې وینه نه بهیږي.چه دهغې دلیل دادې چه مصنف ابن ابی شیبه کښې صحیح سند سره د حضرت حسن بصری رحمه الله نه مروی دي ((انه کان لایری الوضوء من الدم الاماکان سائلا)) ([2])والله اعلم وعلمه اتم واحکم

**د دریم فریق اول دلیل:**

① دحضرت ابودرداء رضی الله عنه حدیث الباب ((ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قاء فتوضاء فلقیت ثوبان فی مسجد دمشق فذکرت ذلك له فقال صدق ان صببت له وضوء)) امام ترمذی رحمه الله ددې روایت چه کوم طرق نقل کړې دې هغه د حسین المعلم څخه مروی دې اوصحیح دې اوبعضې نورو طرقو کښې اضطرابات شته دې.خوداطریق بلاشبه قابل استدلال دې په دې وجه امام ترمذی رحمه الله فرمائی.((وقدجود حسین المعلم هذا الحدیث وحدیث حسین اصح شیء فی هذا الباب))

**اول اشکال:** امام ترمذی رحمه الله د دې حدیث په سند باندې دا اعتراض کړې دې چې په دې کښې معمر یوه دا غلطی کې دې چې امام اوزاعی ئې په کښې ساقط کړې دې دویمه غلطی ئې دا کړې ده چې خالد بن معدان ئې ذکر کړې دې حالانکه هغه معدان بن ابی طلحه دې.

**داول اشکال جواب:** دا اعتراضات په هغه ځائې کښې قابل اعتراض وی کله چې یو روایت په یو سند سره نقل شوې وې اوکه په متعددو سندونو سره نقل شوې وې اوپه یو کښې راوی غلطی اوکړی نو په نورو سندونو باندې څه فرق نه پریوځی بلکه هغه دا روایت به هم په هغې باندې حمل کولې شی او دلته هم دا حدیث په متعدد سندونو سره نقل شوې دې په نورو کښې داغلطی نشته.

**دویم اشکال:** شوافع په دې حدیث دا اعتراض کړې دی.قاء فتوضاء کښې " ف" دسببت دپاره نه ده.بلکه دمطلق تعقیب دپاره ده.اودامکن ده.چه دوئ دڅه بل حدث په بناء اودس کړی وی.

**د دویم اشکال جواب:** د دې جواب دادې چه داتاوئیل خلاف ظاهردې دقی نه فوراً وضوء

[1] الصحیح البخاری باب من لم یرالوضوء إلامن المخرجین القبل والدبر) ـ
[2] باب اذا سال الدم أوقطرأوبرزففیه الوضوء) ـ

ذکرکول دلالت کوی چه راوی قی د اودس اوسبب گرځول غواړی نو ددې احتمال ناشی من غیردلیل اعتبارنشته.

**دریم اشکال:** شوافعو په حدیث الباب دویم اعتراض داکړې دې.چې اصل کښې داحدیث قاء فافطر وو. یو راوی ته وهم اوشو اوده قاء فتوضاء روایت کړو ددې دلیل دادې چه مستدرك کښې هم دحسین المعلم په روایت د حضرت ابوالدرداء اود حضرت ثوبان دا حدیث په دې الفاظوراوړې دې.((ان النبی صلی الله علیه وسلم قاء فافطر فلقیت ثوبان فی مسجد دمشق فذکرت ذلك له فقال صدق انا صببت له وضوء)) ([1])

**د دریم اشکال دوه جوابونه:** ① چې کله د سند صحیح کیدل ثابت شو.نو دینه پس د وهم بدگمانی کول صحیح نه دی.واقعه داده.چه دواړه روایتونه په خپل خپل ځائې صحیح دی.قاء فافطر هم اوقاء فتوضاء هم ځکه چې مسند احمد په روایت کښې د افطر او اودس دواړو ذکر دې ((عن ابی الدرداء رضی الله عنه قال استقاء رسول الله ﷺ فافطر فاتی بماء فتوضاء)) ([2])

② که صرف د" فافطر" والاروایت واخستې شی.نو بیاهم زمونږ استدلال په دې حدیث کښې دحضرت ثوبان رضی الله عنه په دې جمله د((انا صببت له وضوء)) سره پوره کیږی.چې نبی کریم د قی نه پس اودس کړې دې.

**د دریم فریق دویم دلیل:** صاحب هدایه داحنافو دلیل کښې یو قولی حدیث نقل کړې دې.((الوضوء من کل دم سائل)) علامه جمال دین زیلعی رحمه الله ([3]) لیکی چه دا حدیث د حضرت تمیم داری رضی الله عنه څخه مروی دې اود د دوی د روایت تخریج امام دارقطنی رحمه الله کړې او داد((یزید بن خالد عن یزید بن محمد عن عمر بن عبدالعزیز عن تمیم الداری)) په طریق سره مروی دې.

**اشکال:** د تمیمی داری دا طریق په قول دامام دارقطنی رحمه الله ضعیف دې.یوخو د دې وجې چې یزید بن خالداویزیدبن محمد دواړه مجهول دی.دویم د دې وجې چې د عمربن عبدالعزیز رحمه الله سماع د حضرت تمیم داری نه نشته

دغه شان دا حدیث دحضرت زیدثابت رضی الله عنه سره هم مروی دې د دې تخریج ابن عدی په الکامل کښې کړې دې.دغه شان ددې روایت په سندباندې بعض حضرات دا اعتراض کوی.چه دې کښې یو راوی احمدبن الفرج دې چه ده ته ضعیف وئیلې شوې دې.

[1] ) مستدرک حاکم باب الافطار من القئ (۴۲۶/۱)-
[2] ) مسنداحمد ۶/ ۴۴۹)
[3] ) نصب الرایة ۱/ ۱۲۱) _

**جواب:** ددې جواب ظاهردې چه حافظ ابن عدی دده په باره کښې فیصله لیکلې ده.چه احمدبن الفرج اگرچه ضعیف دې خوده به همیشه لیکل اوروایت به ئې کولو دې وجه نه دې محدثینوقابل استدلال گرځولې دې.او څوحضراتو دده توثیق هم کړې دې.ددې وجې دده حدیث قابل استدلال دې اوکم نه کم حسن ضروردې بیاددې روایت په تحسین دحضرت تمیم داری روایت ته هم تقویت حاصلیږی.

**د دریم فریق دریم دلیل:** ابن ماجه کښې د حضرت عائشه رضي الله عنها مرفوع روایت دې.((**قالت قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من اصابه قئ اورعاف اوقلس اومذی فلینصرف فلیتوضأ ثم لیبن علی صلوته وهوفی ذلك لایتکلم.**([1]) ددې حدیث په سند مفصل کلام ((**باب ماجاء صلوة بغیرطهور**)) کښې تیرشوې دې ((**فلیراجع**))

**د دریم فریق څلورم دلیل:** تقریبًا د صحاح په ټولوکتابونو کښې دحضرت فاطمة بنت ابی حبیش واقعه مذکوره ده.((**عن عائشه رضي الله عنها قالت جاءت فاطمة بنت ابی حبیش الی النبی صلی الله علیه وسلم فقالت یارسول الله صلی الله علیه وسلم انی امرأة استحاض فلااطهرافادع الصلوة ؟ قال لا انما ذلك عرق ولیست بالحیضة فاذااقبلت الحیضة فدعی الصلوة واذاادبرت فاغسلی عنك الدم وصلی**))ددې حدیث دابومعاویه په طریق کښې دا الفاظ هم شته ((**توضیء لکل صلوة حتی یجیء ذلك الوقت**([2]) دې کښې د وضوء دحکم علت دابیان شوې دې.((**انماذلك عرق**)) یعنی دادرګ څخه بهیدونکې وینه ده.دې څخه معلومه شوه چې خروج دم ناقض وضوء دې.

**اشکال:** دا حدیث اګرچې صحیح دې خو دا د حنفیانو دپاره صریح دلیل نشی جوړیدې څکه چې په دې کښې د قئ یا رعاف ذکر نشته باقی د اسحاضه په وینه د اودس ماتیدل خو د شوافعو په نیز هم منلې شوې دی.

**جواب:** د احنافو دپاره طریقه د استدلال دا ده چې دلته نبی کریم صلی الله علیه وسلم محل معتاد او غیر معتاد د نقض وضوء دپاره مدار نه دې ګرځولې بس صرف د وینې وتل ئې مدار ګرځولې دې نو د احنافو استدلال صحیح شو چې د رعاف وینه اګرچې محل معتاد نه دې خو وینه ضرور ده.اود وینې په خروج سره اودس ماتیږی نو د رعاف په وتلو سره به هم ماتیږی..

---

[1] ) ابن ماجة کتاب الصلوة باب ما جا ء فی البناء علی الصلوة )

[2] ) رواه الترمذی فی باب المستحاضة)-

# [۲/۷] بَابُ آدَابِ الْخَلَاءِ

## بیت الخلاء ته د تللو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه تسعة وثلاثون حديثاً مشتملة على ثمانى عشرة مسئله.**

① ذكر الاستقبال والاستدبار نهياً وجوازاً: ۱، ۲، ۱۳، ۳۵، ۳۷،

② النهى عن استعمال اليمين في الاستنجاء : ۲، ۶، ۱۳، ۱۴، ۳۵.

③ عدد الأحجار المسنون: ۲، ۷، ۱۳، ۱۸، ۳۵.

④ النهى عن الاستنجاء بالرجيع والعظم : ۲، ۱۳، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۳۵، ۳۹.

⑤ الذكر قبل الوضوء وبعده: ۳، ۲۳، ۲۴، ۲۵، ۳۸.

⑥ وجوب التحفظ من البول: ۴.

⑦ النهي عن التخلى في بعض المواضع: ۵، ۲۱.

⑧ استعمال الماء بعد الخلاء أحيانا: ۸، ۲۶، ۳۳، ۳۴.

⑨ نزع الخاتم المكتبو عليه اسم الله تعالى عند دخول الخلاء: ۹.

⑩ سنية الإبعاد للخلاء ۱۰،

⑪ طلب المكان اللين والظرف للبول: ۱۱، ۲۸

⑫ عدم رفع الثوب قبل الدنو الى الأرض عند الخلاء: ۱۲

⑬ وجوب الاستتار عند الخلاء : ۱۸، ۲۲، ۳۶

⑭ النهى عن البول في الحجر : ۲۰

⑮ النهى عن البول فى المغتسل : ۱۹.

⑯ النهي عن التحدث عند الخلاء : ۲۲

⑰ النهى عن البول قائماً : ۱۹، ۳۰.

⑱ نضح الفرج بعد الوضوء : ۲۷، ۳۱، ۳۲.

**د ادب اطلاقات:** آداب د ادب جمع ده :

① په شرعی توګه باندې دَدې اطلاق په مستحب باندې هم کیږی.

② هرځیزته دَهغې جائز او مناسب مقام ورکولو باندې هم کیږی.

**د ادب شرعی تعریف:** ملاعلی قاری رحمه الله دَ ادب تعریف داسې کړې دې: "الاداب استعمال مايحمد قولاً اوفعلاً" یعنی ادب دَهغه ځیزونو استعمال ته وائی دکوم استعمال چه بنه ګڼړلې

شی که دَهغې تعلق افعالو سره وی اوکه اقوالو سره وی. په دې باب کښې دَهغه څیزونوتذکره کړې شوې ده چه دَاستنجاء په حوالې سره مکره اوممنوع دی اودَهغه څیزونوذکرهم کړې شوې دې چه په استنجاء کښې مستحب، محمود اومطلوب دی.

**قوله:** الْخَلَاءَ

**د خلاء لغوی معنی:** د خاء په فتحې او د مد سره د قضاء حاجت ځائې ته وائی، دې ته خلاء په دې وجه وائی چه د قضاء حاجت نه علاوه هغه ځائې خالی وی. خلاء په اصل کښې خالی ځائې ته وائی مجازا ددې استعمال دبیت الخلاء دپاره شروع شو. (العینی ج ۱ ص ۱۹۶)

**د بیت الخلاء آداب:** شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله فرمائی چه دبیت الخلاء ډیرآداب دی.

① استقبال قبله او استدبار قبله نه کول،

② په ښه طریقې سره طهارت حاصلول، پس په لوټو یا د درې کاڼړو نه په کمو باندې د استنجاء کولو نه ممانعت راغلې دې.

③ داسې ځائې کښې دقضاء حاجت کولونه ځان ساتل کوم چه د خلقو دپاره د تکلیف باعث وی، مثلا د سوری والاد اونو د لاندې چه د هغې نه خلق په گرمۍ کښې سورې حاصلوی، په لارو او اوبو وغیره کښې ځکه چه دا ځایونه چه چرته په بول وبراز سره خپل ځان ته نقصان رسیږی. لکه په سوړو وغیره کښې ځکه چه دا ځایونه د مارانو وغیره استوگنه وی.

④ د ښه عادتونو اختیارول لکه ستر لره په ښی لاس باندې د مسح کولو نه احتراز کول.

⑤ په داسې ځائې باندې د قضاء حاجت کول چرته چه نورو ته ریح یا بد بوئی نه محسوسیږی یا د چرته نه چه ستر په نظر نه راځی.

⑥ خپل بدن او کپړې د نجاست نه بچ کول.

⑦ د وسوې ازاله کول، لکه چه د رسول الله ﷺ ارشاد دې: «فلا یبولن احدکم فی مستحمه فان عامة الوسواس منه (حجة الله البالغة)

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**(؟) ابواب نمبرات جاری [۳۳۳] د قضاء حاجت په وخت قبلې ته د مخ کولو او شا کولو ممانعت**

۳۳۳—( )[۱] عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-[۲] «إِذَا أَتَيْتُمُ الْغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ، وَلَا تَسْتَدْبِرُوهَا، [۳] وَلَكِنْ شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[۴] قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ، رَحِمَهُ اللّٰهُ: هَذَا الْحَدِيثُ فِي الصَّحْرَاءِ، وَأَمَّا فِي الْبُنْيَانِ فَلَا بَأْسَ لِمَا رُوِيَ

[۱] اخرجه بخاری کتاب الصلوة باب قبلة أهل المدينة وأهل الشام والمشرق(رقم-۳۹٤) ومسلم کتاب الطهارة باب الاستطابة (رقم-۵۹ - (۲٦٤))

**ترجمه:** [۱] ابو ایوب انصاري رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] چه هرکله چې تاسو بیت الخلاء ته ځئ نو د قبلې طرف ته مخ مه کوئ[۳] بلکه شرق او غرب ته مخ او شا ساتئ، بخاري مسلم،[۴] امام محي السنة رحمه الله فرمايي چه دا د ځنګل حکم دي په آبادي کې په داسې کولو کې څه حرج نشته څکه چې نقل دي .

**حل اللغات:** ① الْغَائِطَ : فِي الْأَصْلِ الْمُطْمَئِنُّ مِنَ الْأَرْضِ: اصل کښې ژورې زمکې ته وائی خو د قضاء حاجت ځائ دپاره استعمالیږی، بیا ددې استعمال د انسان د قضاء حاجت نه د فارغيدو دپاره هم اوشو يعنى چه ذکر دحال وی او مراد ترې محل وی. ② فَلَا تَسْتَقْبِلُوا: مخامخ مه کينئ (په وخت دقضاء حاجت کښې)، ③ لَا تَسْتَدْبِرُوهَا: شاکړی مه کينئ (په وخت دقضاء حاجت کښې). ④ شَرِّقُوا أَوْغَرِّبُوا: أَيْ: تَوَجَّهُوا إِلَى جِهَةِ الشَّرْقِ أَوِ الْغَرْبِ: یا مشرق طرف ته مخ کوئ یا مغرب طرف ته (په وخت دقضاء حاجت کښې).

**تسهیلات:** د دې حدیث شرح راروانه ده.

## [۳۳۵] د قضاء حاجت په وخت قبلې ته د شا کولو جواز

۳۳۵-() [۱۰] [۱]عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ:[۲] «ارْتَقَيْتُ فَوْقَ بَيْتِ حَفْصَةَ لِبَعْضِ حَاجَتِي، [۳]فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقْضِي حَاجَتَهُ مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ مُسْتَقْبِلَ الشَّامِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] عبد الله بن عمر رضي الله عنه فرمايي[۲] چه زه د خپل څه ضرورت د پاره د بي بي حفصې رضي الله عنها مکان ته وختم[۳] نو ما حضور ﷺ په بام (چت) په قضايي حاجت باندې وليدلو چې د قبلې طرف ته يې شا او د شام طرف ته يې مخ کړي وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① ارْتَقَيْتُ : أَيْ: صَعِدْتُ: اوختم، ② مُسْتَدْبِرَ : شاکړې ناست وو (په وخت دقضاء حاجت کښې). ③ مُسْتَقْبِلَ : مخ ئې ګرځولي وو، مخ کړي ئې وو، ④ الشَّامِ: أَيْ: بَيْتَ الْمَقْدِسِ: شام هغه ملک دې چرته چه بيت المقدس دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** يَقْضِي حَاجَتَهُ مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ مُسْتَقْبِلَ الشَّامِ: د غټ اودس ماتی او متیازو کولو په وخت کښې استقبال قبله او استدبار قبله کولو کښې د فقهاء کرامو اختلاف دې. مشهور او غیر مشهور مسالك ټول اته دی.

### د اودس ماتی په وخت کښې په استقبال او استدبار إلى القبلة کښې مذاهب:

① **مطلقاً عدم جواز:** استقبال اواستدبار دواړه على الطلاق ناجائز دی. که صحراء کښې وی. اوکه آبادئ کښې دا مسلك د ابوهريره رضي الله عنه ،حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ،حضرت ابو

[۱] اخرجه البخاری کتاب الوضوء باب التبرز فی البیوت(رقم-۱٤۸) ومسلم کتاب الطهارة باب الاستطابة (رقم-٦٢ - (٢٦٦)

ایوب انصاری رضی الله عنه، حضرت مجاهد رحمه الله، ابراهیم نخعی رحمه الله، امام اوزاعی رحمه الله، سفیان ثوری رحمه الله، امام بوحنیفه رحمه الله، امام، محمدابن حزم رحمه الله، ظاهری او دابن قیم رحمه الله دي. او دامام احمد رحمه الله نه هم یو روایت داسې دې او داحنافو په نزد فتوی هم په دې ده.

② **مطلقا جواز:** استقبال او استدبار دواړه مطلقاً جائز دی.که صحرا کښې وی اوکه آبادی دا مسلك د حضرت عائشه رضی الله عنها، عروه بن الزبیر رضی الله عنه، او دامام مالك رحمه الله داستاذ ربیعه الرآی او د داؤد ظاهری څخه منقول دې.

③ **په ابادئ کښې جواز او صحراء کښې عدم جواز:** صحراء کښې استقبال او استدبار دواړو ناجائز او آبادی کښې دواړه جائز دا مسلك د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما، حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما، عامرشعبی رضی الله عنه، امام مالك رحمه الله، امام شافعی رحمه الله، او داسحاق بن راهویه رحمه الله دې. او دامام احمد رحمه الله یو روایت هم ددې مطابق دې.

④ **استدبار مطلقا جائز او استقبال مطلقا ناجائز:** استقبال په هرصورت ناجائز او استدبار په هرصورت جائز دا د امام احمد رحمه الله څخه یو روایت دې.بعضې اهل ظاهر ددې قائل دی. اود امام ابوحنیفه رحمه الله یو روایت هم ددې مطابق دې ([1])

⑤ **استقبال مطلقا ناجائز او استدبارابادئ کښې جائز اوصحراء کښې ناجائز:** استقبال په هرصورت ناجائز او استدبار په آبادئ کښې جائز او صحراء کښې ناجائز دا مسلك دامام ابویوسف رحمه الله دې او دامام اعظم رحمه الله یوروایت ددې مطابق دې.

⑥ **کعبې اوبیت المقدس ته مطلقا عدم جواز:** استقبال اواستدبارکعبې اوبیت المقدس ته مطلقًا ناجائزدې دا قول دمحمدبن سیرین رحمه الله دې او د یوروایت مطابق ابراهیم نخعی هم ددې قائل دې.

⑦ **صرف د اهل مدینې دپاره مطلقا عدم جواز:** استقبال او استدبار دواړو ممانعت داهل مدینه سره مخصوص دې غیراهل مدینه دپاره دواړه جائزدی. داد حافظ ابوعوانه قول دې.

⑧ **استقبال او استدبار مطلقا مکروه تنزیهی:** استقبال استدبار مطلقًا مکروه تنزیهی دې دا د امام ابوحنیفه رحمه الله یو روایت دې چه صاحب ((النهرالفائق شرح کنزالدقائق)) نقل کړې دې. حضرت شاه ولی الله صاحب رحمه الله په مصفی اومسوی اومشهور حنفی عالم علامه نیموی رحمه الله په آثارالسنن کښې دا اختیار کړې دې.([2])

**د اختلاف بنیاد:** دا اختلاف په اصل کښې د روایاتو په اختلاف بناء دې.دې باب کښې مختلف روایات دی.

[1]) کمافی البذل عن العینی رحمه الله ۱۱/٤) ـ
[2]) آثارالسنن باب اداب الخلاء

① **دابوایوب انصاری رضی الله عنه روایت:** اولنۍ روایت د حضرت ابوایوب انصاری رضی الله عنه حدیث باب دې ((اذا اتیتم الغائط فلا تستقبلوا القبلة بغائط ولا بول ولا تستدبروها)) دا حدیث په اتفاق سره ،،اصح مافی الباب،، دې.

**استدلال:** ددې حدیث په عموم باندې حنفیانو رحمهم الله اوټولوعالمانو د عدم جواز مطلقا دپاره استدلال کړې دې. ځکه چه دې کښې حکم عام دې. د بنیان اود صحراء هیڅ تفریق په کښې نشته.

**د جواز د قائلینو دلائل:**

روایت د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه دې چه امام ترمذی رحمه الله روایت کړې دې ((قال رقيت يومًا على بيت حفصة رضي الله عنها فرأيت النبي ﷺ على حاجته مستقبل الشام مستدبر الكعبة))[1]

**ترجمه:** [۱] حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمائی چې زه د خپلې حضرت حفصې رضی الله عنها په کوټه باندې وراوختم.نو ما نبی کریم ﷺ په قضاء حاجت باندې اولیدل چې شام طرف ته یې مخ کړې وو.او کعبې ته یې شا کړې وه.

**استدلال:** په دې باندې دویم مذهب والاعلی الاطلاق په جواز استدلال کوی.دریم مذهب والاعلی الطلاق په جواز استدلال کوی. دریم.مذهب والاترې صرف په بنیان کښې په جواز استدلال کوی او څلورم مذهب والا ترې د استد بار په مطلقا جواز باندې استدلال کوی. پنځم مذهب والاترې په آبادئ کښې د استدبار په جواز استدلال کوی. اواتم مذهب والا ترې د استدبار په کراهت تنزیهی باندې استدلال کوی.

**جوابونه:** دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه د روایت تعلق دې نودا روایت اګرچه د حضرت ابوایوب رضی الله عنه نه کم مرتبې والا دې خو بیا هم صحیح دې.خودداې په تشریح کښې څو احتمالات دی

① **اول جواب دا جزئ واقعه ده:** ځکه چه دایو واقعه جزئیه ده.د دې دپاره عموم نشته. نودا عامه قاعده نشی جوړیدې

② **دویم جواب په ښکاره الفاظو کښې د جواز تعلیم ولې نه وو؟:** د سوچ خبره ده.که په دې عمل د نبی کریم ﷺ منشاء د استدبار اجازت ورکول وو.نو دیو خفیه عمل په ذریعه د تعلیم ورکولو په ځاې به ئې په واضح الفاظو کښې د ټول اُمت وړاندې دا حکم بیان کړې وو.لکه چه د ابوایوب رضی الله عنه په روایت کښې عام حکم شوې دې.دې څخه معلومیږی چه دې سره حضرت ابو ایوب رضی الله عنه روایت خلاف څه تشریعی حکم لګول صحیح نه دی.

③ **دریم جواب د ابن عمر رضی الله عنه لیدل تحقیقی نه وو:** دغه شان په دې موقع ظاهره ده.چه ابن عمریه قصداً دوئ نه وې لیدلې.بلکه اتفاقًا به پرې نظر پرویوتې وی.اودې کښې دغلطئ

[1]) کتاب الطهارة باب ماجاء من الرخصة في ذلک)

امکان زیات دی.

**اول احتمال:** رومبی احتمال خودادی چه نبی کریمﷺ په اصل کښې مستدبرقبله نه وو.خودحضرت ابن عمر رضي الله عنه په لیدو په تقاضا دحیاء دوئ خپل هیئت بدل کړی وو. او ددې تبدیلئ دوجه استد بار متحقق شوې دی.

**دویم احتمال:** دویم احتمال دادې چه دوئ پوره طریقې سره مستدبرنه وو.بلکه دکعبه څخه لږ منحرف وو.او حضرت ابن عمر رضي الله عنه دلرې څخه ددې معمولی انحراف ادراك اونه کړې شو دددې تفصیل دا دې چه دې مسئله کښې داستقبال او استدبار مفهوم د مانځه داستقبال قبله څخه مختلف دې.فقهاؤ لیکلې دی.چه مانځه کښې عین قبله ته استقبال ضروری نه دې بلکه د جهت قبله استقبال کافی دې لکه علامه شامی چې لیکلی دی.که په مانځه کښې پنځه څلویښت درجې د ښې طرف ته یا پنځه څلویښت درجې گس طرف ته انحراف اوشی نوبیا هم مونځ کیږی.ددې په خلاف په مسئله الباب کښې د عین استقبال او استدبار مراد دې د وجې که دقبلې څخه معمولی انحراف هم اوشی نو کراهت ختمیږی.تردې چه فقهاؤ لیکلی دی. چه که یوسړې وجهًا مستقبل او فرجًا منحرف وی نو بیا کراهت نه پاتې کیږی اوس دا ممکن ده. چه د حضرت نبی کریمﷺ انحراف دمعمولی قسم وی. ابن عمر رضي الله عنه د مونځ په استقبال باندې قیاس کړې وی.اودا خیال ئې کړې وی. چه دلته هم د استقبال او استدبار مفهوم هم هغه دې.

**دریم احتمال:** دریم احتمال دا هم دې چه داد نبی کریمﷺ خصوصیت وی.ددې تائید د دې خبرې څخه هم کیږی چه دعلماءِ دیوجماعت په نیزچې دوئ کښې علامه شامی رحمه الله اوابن حجر رحمه الله هم داخل دې.چه د نبی کریمﷺ فضلات پاك وو.د دې وجې بعیده نه ده چه دوئ ددې حکم نه مستثنی وی.

④ **څلورم جواب د صحراء او بنیان عدم فرق:** دلته دا خبرهم قابل غور ده. چه د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په روایت کښې د بنیان اود صحراء هیڅ تفریق نه معلومیږی.د دې وجه دې څخه د شوافعو او مالکیانو استدلال پوره نه دې.

**د حضرت ابن عمر رضي الله عنه دویم روایت:** دحضرت ابن عمر رضي الله عنه عمل راوړی.((عن مروان الاصفر قال رایت ابن عمر رضي الله عنه اناخ راحلته مستقبل القبلة ثم جلس یبول الیها فقلت یا ابا عبدالرحمن الیس قد نهی عن هذا قال بلی انما نهی عن ذلك فی الفضاء فاذا کان بینك وبین القبلة شی یسترك فلا بأس)) ([1])

**استدلال:** دا روایت په جواز في البنیان کښې استقبال الی القبله باندې صریح دلیل دې.

**جوابونه:** داحنافو طرف ددې روایت مختلف جوابونه ورکړې شوې دی.

**د حسن بن ذکوان په وجه د حدیث ضعف:** علامه سهارنپوری "بذل المجهود" کښې ددې دا

[1] ) ابوداود ، کتاب الطهارة باب کراهیه استقبال القبلة عند قضاء الحاجة )

جواب ورکړې دې. چه دا روایت ضعیف دې ځکه ددې مدار په حسن بن ذکوان دې او دې یحیی بن معین ، امام نسائی ، ابن عدی،او امام احمد رحمه الله ضعیف ګرځولې دې
خودا جواب تسلي بخش نه دې ځکه چه حسن بن ذکوان یو مختلف فیه راوی دې. دده په باره کښې د جرح او تعدیل د امامانو اراء مختلف دی. او ددوئ توثیق هم شوې دې.

**د مذکوره روایت په قابل استدلال کیدو کښې اقوال:**

① حافظ ذهبی رحمه الله په میزان الاعتدال کښې ددوئ په باره کښې مختلف اقوال نقل کړې دی. او روستو ئې دا فیصله کړې ده. چه ((انه صالح الحدیث وارجو انه لاباس به)) حافظ ذهبی رحمه الله د نقدر جال په معامله کښې کامل مهارت لری.د دې وجې ددوی فیصله قابل قبول منل پکار دی.

② حافظ ابن حجر رحمه الله دا حدیث په ،،التلخیص الحبیر،،کښې حسن ګرځولې دی.او ابوداؤدپرې سکوت کړې دې. او امام دارقطنی رحمه الله په سنن دارقطنی کښې دا صحیح ګرځولې دې. اوفرمائیلی یې دی ((هذاصحیح کلهم ثقات))

③ ابن الجارود په المنتقی کښې ددې تخریج کړې دې. او دده باره کښې داخبره معروفه ده. چه دې صرف احادیث صحیح روایت کوی.

④ په احنافو کښې علامه نیموی رحمه الله په آثارالسنن\۳۳ کښې دا حدیث حسن ګرځولې دې.اود داسې احادیثوځخه احناف په کثرت استدلال کوی ددې وجې ددې درجې روایت مطلقا ناقابل استدلال ګرځول مشکل دی.

① صحیح جواب دادې چه دادحضرت ابن عمر رضی الله عنه خپل عمل اواجتهاددې.په احادیث مرفوعه کښې د دې تفریق هیڅ بنیاد مروی نه دې

② دغه شان د صحابی اجتهاد حجت نه دې خاص طور چه کله دده په خلاف د نورو صحابو آثار موجود وی.

③ ددې ځخه علاوه دحضرت ابن عمر رضی الله عنه دااجتهادپه فقهی اعتبارسهرمرجوح معلومیږی ځکه چه د استقبال قبله ممانعت په دې خبرې مرقوف دې.چه متخلی او دکعبه په مینځ کښې څه حائل موجود نه وی. نودا قسم استقبال خو صرف په حرم شریف کښې په ناسته کیدې شی.په بل ځائې کښې نه. ځکه چه څه ناڅه عمارت وغیره په مینځ کښې راځی.دې وجې ددې تقاضاء دا ده. چه صحراء وغیره کښې دې هم استقبال جائز شی اواستقبال او استدبار دې مکروه نه وی.او دا خبره پخپله د شوافعو د مسلك خلاف ده.

**د دې ځخه د امام شافعی رحمه الله جواب:** امام شافعی رحمه الله ددې جواب کښې دا فرمائی چه ددې حکم علت احترام کعبه نه ده بلکه احترام مصلین دې.

**۵ جواب عدم صحت:** خودا خبره هم صحیح نه ده. اودا علت محل نظردې.

① ځکه چه تول احاديثو ممانعت کښې لفظ دقبله دې چه دې ځخه ظاهرېږي چه دا حکم د احترام قبله په بنياد ورکړې کيږي
② دويم که د احترام مصلين اعتبار اوشي نوبيا بوسمت کښې هم د قضاء حاجت اجازت نه دي ورکول پکار ځکه چه په هرسمت کښې د مصلين د وجود امکان شته
③ دې ځخه علاوه که دا حکم صحيح اومنلې شي نو بيا هم د امام شافعي رحمه الله په مسلك ددې علت تطبيق نه کيږي ځکه چه آبادئ کښې دمصلينو وجود د صحراء په نسبت زيات محتمل دې نو آبادئ کښې دې هم استقبال قبله او استدبار جائز نه شي
د حضرت جابر رضي الله عنه ځخه روايت دې چه ترمذی او ابوداؤد کښې ذکر دې ((قال نهى نبي الله ان نستقبل القبلة ببول فرأيته قبل ان يقبض بعام يستقبلها)) [1] دې ځخه على الاطلاق جواز معلوميږي که بنيان وي اوکه صحراء وي.
**د ابان بن صالح په وجه د حديث ضعف:** ددې جواب هم بعضې حضراتو دا ورکړې دې چه ددې سند کښې دوه رراويان متکلم فيه دي يو" ابان بن صالح . حافظ ابن عبدالبر په "التمهيد" کښې ،،ابان بن صالح،،لره ضعيف ګرځولې دې او بل ابن حزم په ،،المحلی،، کښې ابان بن صالح مجروح ګرځولې دې.
**د ابان بن صالح د ضعف د قول عدم صحت:** خومحققين فرمائي چه په ابان جرح ددې دواړو حضراتو غفلت دې. دوئ ځخه مخکښې چا په ده جرح نه ده کړې. ((کمافي بذل المجهود))
**د محمد بن اسحاق په وجه د حديث ضعف:** د دې روايت په رواتو کښې يو راوی محمد بن اسحاق دې اودا هم متکلم فيه راوی دې. امام مالك رحمه الله خود ده باره کښې فرمائي ((لئن اقمت فيما بين الحجر والباب بيت الله لقلت انه دجال کذاب)) او د ده د ضعف په وجه دا روايت ضعيف دې قابل استدلال نه پاتې کيږي خو امام ابن همام صاحب دفتح القدير د امام مالك رحمه الله د خپل قول ځخه رجوع ذکر کړې ده.[2]
**د محمدبن اسحاق روايت ناقابل استدلال ګرځول قابل نظر دې:** ترکومې چه د محمدابن اسحاق تعلق دې په خپله احنافو دداسې ډيرو روايتونوځخه استدلال کړې دې چه د محمد بن اسحاق ځخه مروی دی شعبه دده باره کښې فرمائي ((اميرالمؤمنين في الحديث))
**د محمد بن اسحاق رحمه الله په باره کښې انصافي خبره:** بعضې حضراتو ددوئ په باره کښې فيصله کړې ده. چه دده کوم روايت د "حدثنا" په صيغه وي. هغه مقبول او چه کوم په عن سره مروی دی يعنی معنعن وي هغه مقبول نه دې خودده باره کښې معتدله فيصله

---

[1] ) لفظه لابي داود کتاب الطهارة باب الرخصة فيه
[2] ) تشريحات ترمذی

حضرت شاه صاحب رحمه الله کړې دې.هغه داده چه دده په حافظه کښې څه کمزورتیا وه.د عدالت په اعتبارسره قابل اعتماد دې.دې په رواة حسان کښې.دې. البته دې دتدلیس عادې دی. د دې وجې دده عنعنه مشکوکه ده.

**اشکال:** هرکله چې د دوی عنعنه مقبوله نه ده.نو بیا خو د حضرت جابر رضي الله عنه دا روایت په طریقې د ،،عنعنه ،، د محمدبن اسحق څخه مروی دې..نو قابل استدلال پاتې نشو.

**جواب:** خودارقطني رحمه الله کښې هم دا روایت د تحدیث په صیغه راغلې دې. ([1]) هم دغه وجه ده چه امام ترمذی رحمه الله د "علل کبیر" څخه نقل کړی دی.چه ((سألت محمدبن اسماعیل عن هذا الحدیث فقال صحیح)) حافظ ابن حجر رحمه الله هم په ((تلخیص الخبیر)) کښې په تفصیل سره ددې حدیث تخریج کړې دې او دائې قابل استدلال ثابت کړې دې. ([2])

**نتیجه د بحث:** د سند په اعتبار سره هم دا حدیث بالکیه ردکول صحیح نه دی.خو بیا هم په رواة باندې دکلام کیدو په بناء په سند کښې یوه درجه ضعف راغلو او د ناسخ دپاره دا ضروری ده چه دې دقوت په اعتبارد منسوخ سره برابر یا ده څخه زیات وی.اود حضرت ابوایوب رضي الله عنه حدیث دده په مقابله کښې ډیرقوی دې.دې وجې دا د ده دپاره ناسخ تشی کیدې.دې څخه علاوه دلته هم هغه احتمالات موجود دی کوم چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په روایتونوکښې بیان شوې دی.

**دحضرت عائشې رضي الله عنها دلیل:** د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه منقول دی چه ((ذکر عند رسول الله ﷺ قوم یکرهون ان یستقبلوا بفروجهم القبلة فقال اراهم قد فعلوها استقبلوا بمقعدتی القبلة)) ([3])

دې حدیث څخه د استدباراواستقبال په مطلقًا جواز باندې استدلال کولې شي

**جواب:** ددې جواب دا ورکړې شوې دې. چه ددې په سند او متن دواړو کښې کلام دې. حافظ ذهبی رحمه الله دا سنداً منکر ګرځولې دې. د دې څو وجوه دی.

① **د سند اضطراب:** یوروایت کښې سند دا دې ((عن خالد الحذاء عن عراك بن مالك عن عائشه رضي الله عنها)) دویم سند داسې دې.((عن خالد الحذاء عن رجل عن عراك عن عائشه رضي الله عنها)) دریم سند دا دې ((عن خالد الحذاء عن خالدبن ابی الصلت عن عراك عن عائشه رضي الله عنها))

**د اضطراب څخه جواب:** خوحقیقت دادې چه دا درې واړه اعتراضونه صحیح نه دی.ترکومې چه د اضطراب تعلق دې. دا محدثینو داسې رفع کړې دې.چه پورتنۍ درې

[1]) سنن دارقطنی ۱\۵۸)

[2]) قال الحافظ فی التلخیص الحدیث اخرجه احمد وابوداود والترمذی وابن ماجه وابن الجارود وابن خزیمه و ابن حبان والحاکم وزادابن حبان ویستدبرها .. وصححه البخاری فیما نقله عن الترمذی وحسنه هو والبزارو صححه ایضا ابن السکن .. والتعلیق المغنی . ۱\۵۹) _

[3]) ابن ماجه کتاب الطهارة باب الرخصة فی ذلک فی الکنیف واباحته دون الصحاری)

طريقې ئې صحيح اوباقي ئې غلطې گرځولې دي.

② **د ابو الصلت جهالت:** ابن حزم خالدبن ابى الصلت مجهول گرځولې دې.

**د جهالت د اعتراض ځځه جواب:** د خالد بن ابى الصلت د جهالت خبره چې ده.نو ډيرو محدثينو د ابن حزم ددې خيال ترديد کړې دې چه دې مجهول دې اود ابن حزم په باره کښې دا مشهوره ده. چه دې په راويانو باندې د جهالت حکم لگولوکښې ډيره جلتې کوى. تردې چه ده ابن ماجه او امام ترمذی رحمه الله هم مجهول گرځولى دى. د دې وجې د ده د تجهيل اعتبار نشته

③ **د عراک عدم سماع:** دعراك بن مالك سماع د حضرت عائشه رضي الله عنها ځځه ثابته نه ده. امام بخاری رحمه الله د دې تصريح کړې ده.

**جواب:** اگرچه امام بخاری رحمه الله تصريح کړې ده. چه د عراك سماع د حضرت عائشه رضي الله عنها ځځه ثاتبه نه ده. ځکه چه عراک بن مالک د حضرت عائشه رضى الله عنها هم عصر وو. او امام بخاری رحمه الله ددوئ د سماع نفى د خپلو اصولو مطابق کړې ده.خودامام مسلم رحمه الله په اصولو د حضرت عائشه رضي الله عنها ځځه د دوئ روايت صحيح دې.لکه چه امام مسلم رحمه الله په خپل صحيح کښې په دې طريق سره متعدد روايات ذکرکړې دى. د دې وجې مذکوره اعتراضات صحيح نه شو.البته داخبره ده چه د خالدبن الصلت سماع دعراك ځځه نشته.

④ **د حديث موقوف کيدل:** دغه شان ډيرو محدثينودا حديث موقوف على عائشه رضي الله عنها گرځولې دې لکه ابن ابى حاتم د جعفر بن ابى ربيعه عن عراك عن عائشه په طريق سره دا حديث مؤقوفًا نقل کړې دې.اودا خبره ثابته ده. چه د عراك په شاگردانوکښې جعفر بن ربيعه دټولوځځه زيات قابل اعتماد دې.د دې وجې به د هغوى روايت ته ترجيح وى.

**خلاصه د سند د بحث:** خلاصه دا چه دا روايت يا خو منقطع دې يا موقوف دې. ظاهره ده چه دې دواړو صورتونو کښې دا حديث د حضرت ابوايوب رضي الله عنه د متصل صحيح مرفوع روايت مقابله نشى کولې.

دا کلام خو د حديث په سند وو.

① **د عائشې رضي الله عنها د حديث نسخ:** که په متن غور اوشى. نو ددې سياق صفا ښائى. چه داحديث د حضرت ابوايوب رضي الله عنه دحديث ځځه مقدم دې ځکه چه دې حديث کښې دا منقول دى. چه کله حضرت محمد صلى الله عليه وسلم ته ذکر اوشو. چه صحابه کرام استقبال بالفرج الى القبله مکروه گنړى. نو دوئ په دې تعجب اظهار اوکړو. که د ممانعت حکم د دې ځځه وړاندې وې.نود اظهار تعجب څه معنى نشته. د دې وجه دا حديث منسوخ کيدې شى ناسخ نه.

② **د حديث مصداق:** بعض حضراتود حضرت عائشه رضي الله عنها د حديث دا جواب کړې دې. چه

دې حدیث کښې د قضاء حاجت دوخت څه بیان نشته بلکه دعامومجلسونو بیان دې.او د ((استقبلوبمقعدتی القبلة)) کښې د مقعدڅخه مراد د نبی کریمﷺ دعام مجلس مقعد وی. نه چې د قضاء حاجت مقعد. ددې تشریح دا ده. چه د حضرت ابو ایوب انصاری رضی الله عنه دحدیث څخه پس صحابه کرامو رضی الله عنهم په خپلو عامو مجالسو کښې هم د استقبال قبله اود استد بار قبله نه پرهیز شروع کړو. ددې غلوڅخه د بچ کیدو دپاره د خپل عام مجلس مخ ئې قبلې طرف ته د کولو حکم اوکړو. چه صحابه کرامو رضی الله عنهم ته ددې خبرې علم اوشی. چه د استقبال اواستدبار ممانعت صرف د قضاء حاجت د وخت سره خاص دی.د عامو مجلسونو حکم دانه دې.

**د جواب عدم صحت:** خودا جواب صحیح نه دې.

① څکه چه د مصنف ابن ابی شیبه رحمه الله یو روایت کښې په دې حدیث کښې صفاء د بیت الخلاء مخ اړولو ذکر دې. اگر چه دې روایت کښې یو راوی مجهول دې. خو په هرحال دا روایت په قیاسی تاویلاتو مقدم دې.

② د دې څخه علاوه د دارقطنی د روایت څخه هم په دې جواب اشکال کیږی چه امام دارقطنی دیحیی بن مطر په طریق سره ذکر کړې دې. او په هغې کښې د غائط او بول تصریح ده. ددې الفاظ دادی. ((سمع رسول الله ﷺ بقوم یکرهون ان یستقبلوا القبلة بغائط اوبول الخ)) (١) دې وجې د دې حدیث ړومبې جواب صحیح دې.

**د حضرت معقل رضی الله عنه روایت:** د حضرت معقل بن ابی معقل الاسدی روایت دې چې ((نهانا رسول الله ﷺ ان نستقبل القبلتین ببول اوغائط)) دې څخه محمدبن سرین اود یوروایت مطابق ابراهیم نخعی رحمه الله هم په دې خبره استدلال کوی.چه دکعبې څخه علاوه بیت المقدس ته هم استقبال او استدبار مکروه دې.

**جوابونه:** ① د جمهورو د اړخه ددې جواب کښې د اوئیلې شوې دی. چه د قبلتینوڅخه مراد دواړه قبلې علی سبیل البدلیت دی نه چې علی سبیل الجمعیت یعنی د دواړو استقبال او استدبار په یو وخت کله هم ناجائز شوې نه دې چه کله بیت المقدس قبله وه. نو هغې ته استدبار او استقبال ممنوع وو. اوچه کله کعبه شریفه قبله شوه. نو د دې د استقبال ممانعت اوشو.د راوی په قبلتینو سره تعبیر کړې دې. ددې دلیل دادې چه قبلتین د تثنیه صیغه ده اوپه یو وخت دوه قبلې کله هم نه دی.نو ضرور دلته به قبلتین علی سبیل البدلیت مراد وی.

② دویم جواب دا دې چه دا حدیث خاص د اهل مدینه دپاره وو څکه چه هلته بیت

١) دارقطنی ١١\٥٩ کتاب الطهارة باب استقبال القبلة فی الخلاء)-

المقدس ته استدبار دکعبه استقبال لره او د بيت المقدس سره استقبال د کعبه استدبار لره مستلزم دې ځکه چه هلته کعبه په جنوب کښې ده.اوبيت المقدس په شمال کښې.نوکه مدينه کښې د بيت المقدس د استقبال اواستدبار اجازت اوشی نو پخپله دکعبې استقبال لازم راځي چه کوم ځائې دا صورت نه وی هلته به صرف دکعبه استقبال او استدبار مکروه وی. ځکه چه د ممانعت اصل مقصود هم دا دې.

**د استقبال او استدبار د مسئلې خلاصه د بحث:** په هرحال د حضرت ابوايوب انصاری رضی الله عنه روايت د ذکر شوو ټولو رواياتو په مقابله کښې ډيرزيات صحيح هم دې او صريح اومعلوم السبب هم.ددې په مقابله کښې ټول مخالف روايتونه د دې ځخه په سند کښې کمزوری دی اومتون ئې محتمل د تاويلاتو دی.

**د احنافو وجوه ترجيح:** احناف په مذکوره ټولو رواياتوکښې د حضرت ابوايوب انصاری رضی الله عنه روايت ته ترجيح ورکوی او دا د خپل مذهب بنياد ګرځوی او باقی ټولو روايتونو کښې تاويل کوی اوهم په دې روايت ئې محمول کوی د حضرت ابوايوب انصاری رضی الله عنه د روايت وجوه ترجيح لاندې ليکلی شوی دی.

① دا حديث په اتفاق دمحدثينو ،،اصح مافی الباب،، دې.د سند په اعتبارسره د جواز په رواياتو کښې يو روايت هم د ابوايوب رضی الله عنه سند مقابله نه شی کولې.

② د حضرت ابوايوب انصاری رضی الله عنه روايت د يوقانون کلی حيثيت لری ددې په مقابله کښې نور ټول روايات واقعات جزئيه دی.د احنافو اصول دی چه دوی په روايات متعارضو کښې هميشه هغه روايت اختياروی. چه په کوم کښې ضابط کليه بيان شوی وی. په داسې مواقع باندې احناف په واقعاتو جزئيو کښې تاويل کوی.

③ د حضرت ابوايوب انصاری رضی الله عنه روايت قولی دې او مخالف روايات فعلی دی. اودا قاعده ده چه د تعارض په وخت په اتفاق سره قولی احاديثوته ترجيح وی.

④ د حضرت ابوايوب انصاری رضی الله عنه روايت محرم دې او د دې مخالف روايتونه مبيح دی.اودا هم قاعده ده. چه د تعارض په وخت محرم ته به په مبيح ترجيح وی.

⑤ د حضرت ابوايوب انصاری رضی الله عنه روايت واضح اومعلوم السبب دې نور روايات غير واضح او غير معلوم السبب دی ځکه چه هغې کښې ډيراحتمالات دی لکه چې تير شو.

⑥ دحضرت ابوايوب انصاری رضی الله عنه حديث اوفق بالقرآن دې ځکه چه دقرآن کريم څوآيتونه دتعظيم د شعائرالله په اهميت دال دی. لکه ارشاد باری تعالی دې ﴿ذَٰلِكَ وَمَن يُعَظِّمْ شَعَائِرَ اللَّهِ فَإِنَّهَا مِن تَقْوَى الْقُلُوبِ﴾ بيا خاص دکعبه تعظيم خو يومتفق عليه مسئله ده.

⑦ د ابوایوب انصاری رضي الله عنه حدیث موید بالاحادیث الکثیره دې لکه ترمذی کښې (۱) د حضرت سلمان فارسی روایت ابوداؤد (۲) او ابن ماجه کښې (۳) د حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت ددې تائید کړی دې. دا دواړه روایتونه سندا صحیح دی. دې څخه علاوه د حضرت ابوعوانه او حضرت سهل بن حُنیف او حضرت سهل بن سعد څخه هم داسې روایات مروی دی کوم چه په مجمع الزوائد وغیره کښې کتلې شی (۴)

د دوی اسانید اګرچه متکلم فیه دی. خو ددوئ په موید کیدو کښې هیڅ شبه نشته دا رنګه مختلف کتب احادیث کښې نور هم داسې احادیث مروی دی. چه په تائید کښې راوړلې شی.

⑧ د حضرت ابوایوب رضي الله عنه حدیث مؤید بالقیاس هم دې څکه چه صحیح ابن خزیمه او صحیح ابن حبان کښې روایت صحیح مرفوعه دې. ((من تفل تجاه القبلة جاء یوم القیامة وتفله بين عینیه)) (۵) نو چه کله دتوکلو ممانعت دې نو دقضاء حاجت په وخت داستقبال قبله ممانعت به په طریق اولی وی.

**قوله**: وَلَكِنْ شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا:

**د مذکوره خطاب مخاطبین**: دا حکم دَ اهل مدینه او دبیت الله په جنوب او شمال کښې داوسیدونکو سره خاص دې څکه چه دَ هغه ځائی نه بیت الله دَ جنوب طرف ته واقع دې او د مشرق او مغرب طرف ته بیت الله نه وی په خلاف زمونږ دَ ملکونو کوم چه مشرق کښې واقع دی داحکم دَدې ځائی دَپاره نه دې څکه چه دلته په مغرب کښې بیت الله واقع دې. او چه کوم ممالك چه دَ بیت الله په شمال او جنوب کښې واقع دی داحدیث هغوی ته هم شامل دې. په شریعت کښې بعضې احکامات دَبعضې خلقو سره خاص راغلی دی داحکم هم ددې قسم نه دې. داستقبال او استدبار داحکم دَ راجح قول مطابق د بیت الله سره خاص دې دَ بیت المقدس حکم داسې نه دې.

**[۳۳٦] د استنجاء په وخت قبلې ته د مخ کولو ممانعت**

۳۳٦ - (۶) [۲] وَعَنْ سَلْمَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «نَهَانَا - يَعْنِي رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ لِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ، [۳] أَوْ نَسْتَنْجِيَ بِالْيَمِينِ، أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِأَقَلَّ مِنْ ثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ، [۴] أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِرَجِيعٍ

(۱) الترمذی کتاب الطهارة باب الاستنجاء بالحجارة ۱۲) _
(۲) ابوداؤد کتاب الطهارة باب کراهیة استقبال القبلة عند قضاء الحاجة) _
(۳) ابن ماجة کتاب الطهارة باب الاستنجاء بالحجارة والنهی عن الروث والرمة) _
(۴) مجمع الزوائد کتاب الطهارة باب استقبال القبلة عند الحاجة) _
(۵) معارف السنن ۹۵۱۱ بحواله صحیح بن خزیمه وصحیح ابن حبان))
(۶) اخرجه مسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۵۷/ ۲۶۲ وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۷ والترمذی فی السنن رقم الحدیث ۱۶

أَوْ بِعَظْمٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** [١] او حضرت سلمان رضي الله عنه فرمايي [٢] چه رسول ﷺ مونږ د دې څخه منع کړي يو چې مونږ د لويو يا وړو بولو په وخت د قبلي طرف ته مخ کړو [٣] او د دې څخه چې مونږ په ښي لاس سره استنجاء اوکړو او د دې څخه چې مونږ د دريو لوټو څخه په کم سره استنجاء وکړو [٤] او د دې څخه چې مونږ په سوټو يا هډوکو سره استنجاء وکړو. (مسلم)

**حل اللغات:** ① غَائِط: فِي الْأَصْلِ الْمُطْمَئِنُّ مِنَ الْأَرْضِ: اصل کښې ژورې زمکې ته وائي خو د قضاء حاجت ځائ دپاره استعماليږي، بيا ددې استعمال د د انسان د قضاء حاجت نه د فارغيدو دپاره هم اوشو يعنې چه ذکر دحال وي او مراد ترې محل وي ② بَوْل: متيازې، ③ نَسْتَنْجِيَ: أَيْ قَطْعُ النَّجَاسَةِ: پليتی لرې کولو ته استنجاء وائي. ④ رَجِيع: وَالْمُرَادُ الرَّوْثُ: دې نه مراد سوټې او خاشنړه وغيره دی "رجيع" دَ فعيل په وزن باندې دَ اسم مفعول "مرجوع" په معنی کښې دې، او رجيع په معنی د واپس کيدو سره ده، ځکه چه دا هم پاکی گندگی طرف ته واپس راولی.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ:

**د مذکوره جملې وضاحت:** په دې حديث کښې دَدريو اهمو خبروطرف ته اشاره کړې شوې ده اوپه دريواړو کښې دَ جداجدا حقوقوذکردې دَدې نه په وړاندې جمله کښې دَاستقبال قبله مسئله ده دَدې تفصيل دې نه وړاندې تيرشو دې. په هغه جمله کښې دَحق الله بيان راغلو.

**قوله:** أَوْ نَسْتَنْجِيَ بِالْيَمِينِ: يعنی مونږ حضورپاك دَ دې نه منع کړو چه مونږ په ښی لاس باندې استنجاء اوکړو. په دې جمله کښې دَحق العبددَبيان ذکرراغلو او په دې کښې دَدويمې اهم مسئلې طرف ته اشاره ده چه ښې لاس په استنجاء کښې مه استعمالوئی. دَاهل ظواهر اوبعضې شوافع په نيزدَ ښی لاس استنجاء کولوسره به طهارت نه حاصليږی خودَ جمهورامت مسلك دادې چه دا ممانعت دَ ښی لاس دَ شرافت دَ وجې نه دې گنی اصل مقصودخو صفائی حاصلول دی اوهغه په ښی اوگس دواړو لاسونوسره حاصليږی. شريعت ښې لاس دَ خوکارونودَپاره اوگس لاس دَ ناخوښه اومکروه کارونو دَپاره مقررکړې دې. نواستنجاء هم مکروه کاردې په گس لاس سره کول پکاردی دې دَپاره چه خوراك کولووخت کښې انسان ته کرکه رانشی چه اوس نی دا لاس په گندگئی ککړکړې وو او اوس نی دَ نورئی سره په خله کښې داخلوی. بهرحال اصل صفائی په هريولاس سره حاصليږی ښې لاس دَ استنجاء نه بچ کول دَدې دَ شرافت دَ وجې نه دې.

**قوله:** أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِأَقَلَّ مِنْ ثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ: په دې جمله کښې دَحق النفس بيان راغلو او په دې کښې دَدريمې اهمې مسئلې طرف ته اشاره اوکړې شوه دکوم عنوان چه استنجاء

بالاحجار دې په دې کښې دَفقهاء کرامو اختلاف دې.

**په استنجاء کښې د احجارو مسنون عدد کښې مذاهب:**

په دې مسئله کښې دفقهاء اختلاف دې چه د استنجاء دپاره د لوټو څه عدد مسنون شته او که نه ؟

① د امام شافعي رحمه الله ، امام احمد رحمه الله او ابوثور او د اهل ظاهرو په نیز استنجاء کښې انقاء او تثلیث احجار دواړه واجب دی

② دامام ابوحنیفه رحمه الله او د امام مالك رحمه الله په نیز صرف انقاء واجب ده . او تثلیث مسنون دې او ایتار مستحب دې.

**د امام شافعي رحمه الله دلیل:** امام شافعي رحمه الله دتثلیث په وجوب باندې دحدیث الباب څخه استدلال کوی . ځکه چه دې کښې ددریو کاڼونه دکم ممانعت راغلې دې

دتثلیث ذکر په احادیثو کښې ځکه راغې چه عمومًا دې عدد سره انقاء کیږی.نو د دې وجې دکم عدد څخه ممانعت اوشوځو که انقاء د دې څخه په کم عدد حاصله شی نوهم جائز دې.

① **د حنفیانو اول مستدل د ابوهریره رضي الله عنه روایت:** حضرت ابوهریره رضي الله عنه مرفوع حدیث دې ((من استجمر فلیوتر من فعل فقد احسن ومن لا فلا حرج))[1] یعنی چوك چې (په استنجاء کښې) واړه کاڼړی استعمال کړی نو ناتکئ دې استعمالوی چا چې داسې اوکړو.نو ښه ئې اوکړو او چا چې اونکړو نو څه باك نشته. په دې کښې تصریح ده چې چه ایتار مستحب دې واجب نه دې.

**د ابوهریره رضي الله عنه په روایت اول اعتراض:** امام بیهقي رحمه الله په دې اعتراض کړې دې . چه دینه دایتار استحباب ثابتیږی نه د تثلیث؟

**جواب:** ددې جواب دادې چه ایتار عام دې او تثلیث خاص او دعام نفی د خاص نفی لره مستلزم وی .

**د حنفیانو د جواب څخه جواب:** امام بیهقي رحمه الله ددې دویم جواب دا ورکړې دې چه دې حدیث کښې د ایتار څخه مراد مافوق الثلث ایتار دې . او د دې دلیل دا دې چه د دې حدیث په آخر کښې په بعضې روایاتو کښې دا اضافه ده . ((فأن الله وتر یحب الوتر اما تری السموات سبعًا والارضین سبعًا)) د دې حدیث څخه ثابتیږی چې په ذکرشوی حدیث کښې د ایتار په پریخودو کښې څه باك نشته.ځکه چې د وتر د لفظ صراحت راغلې دې.

[1] اخرجه ابوداود وغیره ، معارف السنن ۱۱۵/۱ بالاستنجاء بالحجارة ۱۲) _

**د بیهقی د جواب څخه دوه جوابونه:**

① **اول جواب:** ددې جواب دا دې چه دا حدیث امام حاکم رحمه الله هم په مستدرك کښې نقل کړې دې . (۱) ددې ترلاندې حافظ ذهبی رحمه الله لیکی ((منکروالحارث لیس بعمدة)) چې دا منکر دې اوحارث څه قابل اعتماد راوی نه دې.نودا حدیث ضعیف شو.قابل استدلال پاتې نشو.

② **دویم جواب:** دویم جواب حافظ زیلعی رحمه الله په نصب الرایه کښې ورکړې دې .(۲) که د دې حدیث څخه استدلال صحیح وی نو هم د اووه آسمانونو د ذکر څخه دا نه لازمیږی . چه روستو دکوم ایتار ذکر راغلې دې . دې څخه مراد مافوق الثلث دې ځکه چه که داسې وې نو بیا به دامنې چه په اووکانړو مسنون او مستحب دې.ځکه چې هلته د اووه آسمانونو ذکر دې. حال دا دې چه د دې څوك هم قائل نه دی .

**د ابوهریره رضی الله عنه په روایت دویم اعتراض:** د ابوهریره رضی الله عنه په روایت دویم اعتراض دا شوې دې . چه دا حدیث علامه ابن حزم وغیره ضعیف ګرځولې دې ځکه چه داد حصین الحبرانی الحمیری څخه منقول دې . او دې مجهول دې حافظ ابن حجر رحمه الله په تقریب کښې لیکلې دی . چه " ((مجهول من السادسة)) او حافظ ذهبی رحمه الله په " میزان" کښې لیکی ((لایعرف من التابعین))

**د دویم اعتراض څخه جواب:** ددې جواب دا دې چه مذکوره حدیث یقینًا قابل استدلال دې.ځکه چې نورو محدثینو د دې تصحیح کړې ده.

① ابوداوٗد دا روایت کړې دې . او سکوت ئې پرې کړې دې .اود ابوداؤد سکوت دلیل د صحت دې.

② ابن حبان صحیح ګرځولې دې او په خپل صحیح کښې ئې تخریج کړې دې (۳)

③ پخپله حافظ ذهبی رحمه الله په " تلخیص المستدرك کتاب الاشربة" کښې دا حدیث صحیح ګرځولې دې.

④ پخپله حافظ ابن حجر رحمه الله فتح الباری ۲۰۲۱۱ کښې دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه د حدیث ترلاندې ((ومن لافلاحرج)) زیاتې "احسن الاسناد" ګرځولې دې

**دجهالت عدم مضر کیدل:** نوکه د حصین حبرانی جهالت مضروې نو دې حضراتو دا حدیث څنګه صحیح ګرځولې شو. نو یا خو د حصین جهالت قابل تحمل دې یا د دې متابعات موجود دی او په هرصورت د حدیث څخه استدلال صحیح دې .

(۱) مستدرک ۵۸۱ کتاب الطهارة من استجمر فلیوتر)
(۲) نصب الرایه ۲۱۸۱۱)
(۳) موارد الظمان ۶۲)

② **د حنفیانو دویم مستدل د عائشې ﷺ روایت:** ابوداوٗد ، ابن ماجه او دارقطني وغیره کښې د حضرت عائشه ﷺ نه مرفوعاً روایت دې ((قالت ان رسول الله ﷺ قال اذا ذهب احدکم الی الغائط فلیذهب معه بثلثة احجار یستطیب بهن فانها تجزء عنه)) کله چې په تاسو کښې څوك غټ اودس ماتی دپاره لاړ شي نو څان سره دې درې کانړي اوړي چې په دې باندې پاکې حاصل کړي.نو دا د ده دپاره جائز دی.(۱)

**استدلال:** په دې روایت کښې د ((فانها تجزء عنه)) جمله دا ښائي چه مقصود اصلي انقاء ده . او څه عدد مخصوص بالذات نه دې .نو چه کوم ځائې دتثلیث حکم دې هلته منشاء دا ده . چه دا عدد انقاء دپاره کافي دې.

③ **د حنفیانو دریم مستدل د ابو ایوب ﷺ روایت:** په معجم طبراني کښې د حضرت ابوایوب انصاري ﷺ نه مرفوعاً ددې معنی یوبل حدیث منقول دې ((اذا تغوط احدکم فلیمسح بثلثة احجار فان ذلك کافیه)) علامه هیثمي ﷺ په مجمع الزوائد کښې دا روایت نقل کوی(۲) اولیکی . ((رجاله موثقون الا ان ابا شعیب صاحب ابی ایوب لم ار فیه تعدیلا ولا جرحا))

④ **د حنفیانو څلورم مستدل د عبدالله بن مسعود ﷺ روایت:** د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ روایت په راروان باب کښې راځي .((قال خرج النبی ﷺ لحاجة فقال التمس لی ثلاثة احجار قال فاتیته بحجرین وروثة فاخذ الحجرین والقی الروثة وقال انها رکس))

**استدلال:** امام طحاوي ﷺ د حنفیانو د مسلك دپاره هم د دې روایت نه استدلال کړې دې یعنی که درې ضروري وې نو بیا به دوی یو بل کانړې ضرور غوښتې وو .

**دعبدالله بن مسعود ﷺ په روایت روښې اعتراض:** امام بیهقي ﷺ فرمائي چه هم دا حدیث په مسند احمد ، بیهقي ، دارقطني کښې د عن معمر عن ابی اسحاق عن علقمه عن عبدالله په طریقه راغلې دې.او د معمر په دې طریق کښې د «فانها رکس» نه پس د نبی کریم ﷺ دا ارشاد مبارك هم شته . ((ائتنی بحجر)) (۳) یعنی ماته بل کانړې راوړه چه دینه معلومیږي چه دوی ﷺ په دوه کانړو اکتفا نه وه کړې .

**د بیهقي ﷺ د اعتراض نه اول جواب:** علامه عیني ﷺ په عمدة القاري ، ، او حافظ زیلعي ﷺ په "نصب الرایه" کښې ددې په جواب کښې فرمائي : چه دا زیاتې چه کوم سند سره منقول دې هغه قابل اعتماد نه دې . ځکه چه د ابو اسحاق سماع د علقمه نه ثابته نه ده . حافظ زیلعي ﷺ فرمائي چه پخپله امام بیهقي ﷺ په دې مقام خو په دې روایت

(۱) لفظه لابی داود ۶۱۱ کتاب الطهارة باب الاستنجاء بالاحجار. هذا اسناد صحیح)
(۲) مجمع الزوائد ۲۱۱۱۱ کتاب الطهارة باب الاستجمار بالحجر)
(۳) دارقطني ۵۵۱۱ . کتاب الطهارة باب الاستنجاء . ۱۲۰) _

هيڅ کلام نه دې کړې دې خو کتاب الديات باب الديه اخماس کښې صراحة ليکلي چه ابو اسحاق د علقمه څخه څه نه دی اوريدلي او دا خبره پخپله د ابواسحاق د اقرار او اعتراف څخه ثابت ده . د دې وجې دا حديث منقطع دې او قابل استدلال نه دې .[1]

**د ابو اسحاق د عدم سماع څخه اول جواب:** حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباري کښې د دې يو جواب خو دا ورکړې دې چه کرابيسي تصريح کړې ده . چه ابواسحاق دا حديث د علقمه څخه اوريدلي دې .[2]

**د سماع د ثبوت عدم صحت:** خو ظاهره ده . چه د کرابيسي قول د ابواسحاق دخپل قول سره معارضه نشي کولي . په دې وجه د حافظ صاحب رحمه الله جواب صحيح نه دې.

**د ابواسحاق د عدم سماع څخه دويم جواب:** دويم جواب حافظ صاحب دا ورکړې دې . که سماع نه وي نو بيا هم دا حديث مرسل دې او مرسل د حنفيانو په نيز حجت دې . يعنى حنفيان په قرون ثلاثه کښې انقطاع موجب ضعف نه ګڼري .

**د حافظ ابن حجر رحمه الله د دويم جواب عدم صحت:** مفتى محمد تقى عثمانى مد ظله العالى فرمائى چې د حافظ ابن حجر رحمه الله دا جواب د دوی د جلالت قدر سره مناسب نه دې . ځکه چه مرسل د حنفيانو په نيز على الاطلاق حجت نه دې بلکه د دې حجت دپاره څو شرطونه دی.

**د صحت ارسال دپاره شرطونه:** هغه شرطونه دا دی

① اول شرط دا دې چه کوم راوی ارسال کړې وی . هغه د ثقه څخه روايت کوی د ضعيف څخه روايت نه اخلي.

② دويم شرط دا دې چه په صيغه د جزم روايت اوکړی.په ، ،عن، ، وغيره سره ئې روايت نه وی کړې.

**په مذکوره روايت کښې د شرط ثانى فقدان:** اوپه دې روايت کښې ابواسحاق د "عن" صيغه استعمال کړې ده.اودا د جزم صيغه نه ده .

**د معمر په طريق باندې د حنفيانو اعتراض:** د امام بيهقى رحمه الله د مذکوره اعتراض چې د معمر په طريق کښې دا زيادت راغلي دی چې نبى کريم ﷺ اوفرمائيل ماته يو بل کاڼړې راوړه .نو د دې روايت څخه ثابته شوه چې نبى کريم ﷺ دريم کاڼړې راوړې دې . ) يو مضبوط جواب دا هم دې چه د معمر د دې روايت په سند کښې شديد اضطراب دې . چه د دې تشريح په راتلونکي باب کښې راروانه ده . د دې اضطراب د رفع کولو دپاره امام ترمذی رحمه الله طريق د اسرئيل راجح ګرخولي دې . او امام بخاری رحمه الله د زبير طريق او پخپله

---

[1] ) نصب الراية ۲۱۷/۱.
[2] ) فتح الباري ۲۰۷/۱

حافظ ابن حجر رحمه الله هدى السارى كښې په اتم فصل كښې دا تصريح كړې ده .(۱) چه ددې حديث صرف دوه طريق صحيح دى . باقى يو طريق هم صحيح نه دې .او د معمر په طريق كښې د "التلى بحجر" زياتى منقول ده خو دا روايت د دې دواړو يعنى د اسرائيل او زبير د طريق څخه بغير دې نتيجه دا شوه چه په خپله امام بيهقى رحمه الله د اعتراف څخه دا خبره ثابته شوه چه د "التلى بحجر" والا طريق صحيح نه دى . اوكه دا طريق صحيح هم اوګرخولې شى . نو اصل د اضطراب رفع كولو څه ضرورت نشته خلاصه دا چه د معمر په طريق كښې د «التلى بحجر» زياتې منقول ده . هغه فنى نقطه نظر سره قابل استدلال نه ده.

**د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د روايت څخه دويم جواب:** د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د روايت څخه يو جواب دا هم شوې دې.

كه د "التلى بحجر" زياتى والا روايت ثابت نه شى نو هم په حديث الباب كښې دا احتمال شته . چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم دغوشيانو دغورزولو څخه پس پخپله څه كانړې راغستې وى يا د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه ئې غوښتې وى .ځكه چه عدم ذكر د يو څيز د هغې په عدم باندې دلالت نه كوى.يو څيز به موجود وى.خو د هغې ذكر به نه وى شوې.نوهركله چې دا احتمال شته نو قاعده دا ده «اذجاء الاحتمال بطل الاستدلال» كله چې احتمال راشى نو استدلال باطل شى.

**د دې جواب موزونيت:** دااعتراض بلاشبه وزنى دى لكه ډيرو علماء حنفيانو دا اعتراض تسليم كړې دې. حضرت شيخ الهند رحمه الله په ،،العرف الشذى،، كښې فرمايى . چه دې حديث څخه د حنفيانو استدلال نه تماميږى. دې څخه علاوه صاحب د هدايه هم كيدې شى د دې وجې په دې مسئله كښې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت په دليل كښې نه دې نقل كړې. بلكه د «من استجمر فليوتر» حديث څخه ئې استدلال كړې دې .

**د دويم جواب څخه جواب:** البته بعضې حضراتو ددې اعتراض جواب وركولو كوشش كړې دې . چه دې كښې بهتر جواب دا دې چه «السكوت فى معرض البيان يقوم مقام النفى» چې په كوم ځائې كښې د بيان ضرورت وى نو هلته سكوت كول په مقام د نفى كښې قائميږى. دلته دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه منشاء آداب استنجاء بيانول دى . نو كه نبى كريم صلى الله عليه وسلم دريم كانړې راغوښتې وې نو ددې تذكره به ئې ضرور كولو . دارنګه سياق د حديث دا تقاضا كوى چه دا ځائې داسې وو . چه هلته كانړى نه ملاويدل .د دې وجې حضرت عبدالله رضي الله عنه د سوتې يوه ټكره را اوچتوله . په داسې مقام باندې كه دوئ د دريم كانړى دغوښتو اهتمام كړې وې نو ابن مسعود رضي الله عنه به ضرور د دې تذكره كوله .

(۱) هدى السارى مقدمة فتح البارى ۱۰۸۱۲)

**قوله: يرجيع:** په سوتیوسره استنجاء ځکه ناجائز ده چه دا موجب تلویث دی اوډ پیریانو خوراك هم دي.

**قوله: بعظم:** هډوکی ته عظم وائی په هډوکی استنجاء جائزنه ده یاخوپه دې وجه چه غوړوالي او د غوښې بوټئی ورسره لګیدلي هډوکی باندې صفائی نه شی حاصلیدې اوکه اوچ او زوړ هډوکې وی نو دملاست د وجې نه یعنی زیږیدو د وجې نه صفائی نه شی حاصلیدې اویا د نوکدار هډوکی د وجې نه د زخم لګیدو خطره ده خو په حدیث شریف کښې د ممانعت وجه داخودلې شوې ده چه دا د جناتو خوراك دې اوهم دغه ډیر واضح دی په استنجاء کښې استعمالیدونکې څیزونو اود نه استعمالیدونکو څیزونو دپاره قاعده او ضابطه په دې عربی عبارت کښې ده "کل هيء طاهر قالع للنجاسة غير محترم" وړاندې د دې تفصیل کښې راتلونکې دې

**[۳۳۷] بیت الخلا ته د داخلیدو دعا**

۳۳۷-(١) [۳] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ يَقُولُ: [۳] اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه فرمایي [۲] چې رسول الله ﷺ به کله د اودس ماتي خاني ته داخل شو (یعنې د داخلیدو اراده به یې وکړه) نو دا دعا به یې ویله [۳] اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ، اي الله جل جلاله زه ستا څخه د خبیث او خبائث یعني نر او ماده جناتو څخه پناه غواړم. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① الْخَلَاءَ: بیت الخلاء، د اودس ماتی ځای ② الْخُبُثِ: د خبیث جمع ده، وَهُوَ الْمُؤْذِي مِنَ الْجِنِّ وَالشَّيَاطِينِ: ضرری جنات او شیطانانو ته وائی کوم چه مذکر وی ③ الْخَبَائِثِ: دخبیثة جمع ده، ضرری جنات او شیطانانو ته وائی کوم چه مؤنث وی.

**تسهیلات:**

**قوله: إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ:**

**د بیت الخلاء د دخول څخه وړاندې دعا کول:**

یعنی کله چې یو کس بیت الخلاء ته د تللو اراده اوکړی نو دا دعا دې اووائی. او کسه پښه دې اول دننه کیږدی. اوکه په صحرا کښې وی نو کشفِ ثیاب څخه وړاندې دې دا دعا اووائی. البته ذکر قلبی هر ځائې جائز دې.

---

(١) اخرجه البخاری فی صحیحه رقم الحدیث ۱۴۲ ومسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۱۲۲/ ۳۷۵ وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۴ والترمذی فی السنن رقم الحدیث ۵ والنسائی فی السنن رقم الحدیث ۱۹

**قوله:** الْخُبْثِ وَالْخَبَائِثِ:

**د شیطانانو په ګنده ځایونو کښې جمع کیدل،** د دوارو لفظونو ترجمه داده: (اي ذکورهم واناثهم) جنات طبعًا غلیظ ځایونه خوښوی او هم په د اسې ځایونو کښې راجمع کیږی. په دې وجه په داسې ځایونو کښې ددوئ څخه د بچ کیدو دپاره د دعا لوستلو تعلیم ورکړې شوې دې.

### [۳۳۸] د قبر د عذاب سبب

۳۳۸ –()[۴] وعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ۞ «مَرَّ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِقَبْرَيْنِ، فَقَالَ: «إِنَّهُمَا لَيُعَذَّبَانِ، ۞ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِي كَبِيرٍ، أَمَّا أَحَدُهُمَا فَكَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنَ الْبَوْلِ–

**ترجمه:** ۞ او ابن عباس رضی الله عنهما راوي دي چه یو ځل حضور ﷺ په دوو قبرونو باندې تیر شو (د هغوئ په لیدو سره) یې وفرمایل په دي قبرونو والو باندې عذاب نازلیږي ۞ او عذاب هم په څه لوي شي نه نازلیږي (چي د هغه څخه بچ کیدل مشکل وي) په هغوئ کې خو به یو د متیازو څخه ځان نه ساتلو،

۞ وَفِي رِوَايَةٍ: «الْمُسْلِمُ لَا يَسْتَنْزِهُ مِنَ الْبَوْلِ ۞ وَأَمَّا الْآخَرُ فَكَانَ يَمْشِي بِالنَّمِيمَةِ - ۞ ثُمَّ أَخَذَ جَرِيدَةً رَطْبَةً، فَشَقَّهَا بِنِصْفَيْنِ

**ترجمه:** ۞ او د مسلم د یو روایت الفاظ دا دي چې د متیازو څخه یي احتیاط نه کولو ۞ او دویم چغل خور وو، ۞ بیا حضور ﷺ د خورما یوه لونده (شنه) ځانګه واخسته او هغه یي په مینځ دوه حصي کړه

**حل اللغات:** ① كَبِيرٍ: لوئي (مشقت او تکلیف والاعمل کوم نه چه ځان ساتل انسان ته مشکل وي).
② لَا يَسْتَتِرُ: ځان به ئې نه پټولو (یعنی د متیازو نه د بچ کیدو خیال به ئې نه ساتلو).

۞ ثُمَّ غَرَزَ فِي كُلِّ قَبْرٍ وَاحِدَةً. ۞ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! لِمَ صَنَعْتَ هَذَا؟ ۞ فَقَالَ: «لَعَلَّهُ أَنْ يُخَفَّفَ عَنْهُمَا مَا لَمْ يَيْبَسَا» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞ او په دواړو قبرونو یي یوه یوه حصه ښخه کړه ۞ په دي لیدو سره صحابو رضی الله عنهم پوښتنه وکړه یا رسول الله ﷺ تا داسې ولې وکړل؟ ۞ حضور ﷺ وفرمایل شاید په دي عمل سره د هغوئ په عذاب کې (تر هغه وخته پورې) څه تخفیف وشي ترڅو پورې چې دا ځانګې وچې نه شي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ③ يَمْشِي: د تللو نه مراد یوبل ته بدې ردې خبرې اوړل راوړل دی چه دوه کسان خپل

(۱) اخرجه البخاری کتاب الوضوء باب امتشاط المرأة عند غسلها من المحیض(رقم-۳۱۶) ومسلم کتاب الطهارة باب الدلیل علی نجاسة البول ووجوب الاستبراء منه (رقم-۱۱۱ - (۲۹۲)والدارمی کتاب الطهارة/باب الاتقاء من البول (رقم-۷۶۶)

مینځ کښې وران شی. ③ النَّمِيمَةِ: وهونَقْلُ كَلَامِ الْغَيْرِ لِقَصْدِ الإِضْرَارِ: چغل خوری کول چه د یو کس خبرې بل ته د خفګان پیدا کولو دپاره رسوی. ⑤ جَرِيدَةً: أَيْ غُصْنًا: څانګه، لخته (دا د کجورې شنه لخته وه). ⑥ رَطْبَةً: لمده یعنی شنه، ⑦ فَشَقَّهَا: ماته نې کړه، ټکړې نې کړه، ⑧ غَرَزَ: ښخه نې کړه، ⑨ يُخَفَّفُ: سپک شی یعنی کم شی (عذاب)، ⑩ مَالَمْ يَيْبَسَا: چه ترڅو پورې نه وی اوچ شوی دا دواړه لختې.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَرَّ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِقَبْرَيْنِ:

**د واقعه په وحدت او تعدد کښې اقوال:** ① دا واقعه د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما او د حضرت جابر رضی الله عنه دواړو څخه مروی ده. د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په بعضې طرق کښې ددې خبرې تصریح ده. چه دا دواړه قبرونه په بقیع کښې وو. ٦

② او حضرت جابر رضی الله عنه د روایت په بعضې طرق کښې دا تصریح ده.چه دا واقعه په سفر کښې راپیښه شوه

جابر رضی الله عنه فرمائی چې نبی کریم ﷺ د قضاء حاجت دپاره تشریف یوړلو نو او ما ورسره اوبه یوړلې خود قضاء حاجت دپاره ورته څه مناسب ځائې پیدا نشو.نو نبی کریم ﷺ دوو وونو ته اشاره اوکړې هغوی راټیټې شوې او نبی کریم ﷺ د هغې په پرده کښې قضاء حاجت اوکړو.د قضاء حاجت څخه پس نبی کریم سوچ اوکړو او سر ئې اوړقولو او وې فرمائیل د دې وونو څخه ځانګې راکټ کړه اوبه دې قبر ئې اولګوه ما ئې د حکم تعمیل اوکړو.کله چې ترې ما د دې عمل کولو تپوس اوکړو نو وې فرمائیل چې دوی ته عذاب ملاویدل.

**تطبیق:** علامه عینی رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله ددې تعارض رفع کولو کښې فرمائی چه دادواړه واقعات جُدا جُدا دی.

**د صاحب قبرین په اسلام او کفر کښې اقوال:**

① ابوموسی مدینی رحمه الله په دې باندې جذم کړې دې چې دا دواړه کافران وو.

② محققین شارحین لکه حافظ ابن حجر، علامه عینی وغیرهما فرمائی چې دا دواړه قبرونه د مسلمانانو وو.

**د اول قول دلائل:** ① دحضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دې چې د بنی نجار قبیلې په دوو قبرونو باندې تیر شو کوم چې په جاهلیت کښې مړه شوی وو.نو د هغوی عذاب ئې واوریدل چې د بول څخه د ځان نه ساتلو او د چغلو کولو په وجه ورته ملاویدل.

**جواب:** دا حدیث ضعیف دې ځکه چې په دې کښې ابن لهیعه دې.اوهغه ضعیف راوی دې.ابوموسی مدینی هم د دې اقرار کړې دې.

② که چرته دا د مسلمانانو قبرونه وې نو نبی کریم ﷺ به د محدود وخت دپاره د هغوی د عذاب لرې کولو دپاره شفاعت نه کولو بلکه د همیشه دپاره ئې به ئې د رفع عذاب شفاعت

کړي وو.

**جواب:** د ((لعله يخفف عنهما مالم ييبسا)) څخه رفع د عذاب مراد ده.څکه چې دلته داسې قرائن موجود دی. کومې چې ددې خبرې څخه انکاری دی چې دغه قبرونه دې د کافرانو وې.

**د دویم قول دلائل:**

① په ابن ماجه کښې د ابن عباس ﷺ په روایت کښې دی ((بقبرين جديدين)) د جدیدین څخه معلومیږی چې دا قبرونه نوی وو نو د مسلمانانو وو.د کافرانو نه وو (۱)

② په یو روایت کښې دی چې ((مربالبقيع فقال من دفنتم اليوم ههنا)) اودا معلومه ده چې په جنت البقیع کښې ټول مسلمانان وو کافران نه وو.(۲)

**د څانګې په وحدت اوتعدد کښې اقوال؟:**

① په یو روایت کښې دی چې نبی کریم ﷺ په قبرونو باندې دوه څانګې ښخې کړې

② په بعضې روایاتو کښې دی چې نبی کریم ﷺ دوه څانګې ښخې کړې.(۳)

**تطبیق:** د دواړه قسمه روایاتو په مینځ کښې تطبیق دا دې چې نبی کریم ﷺ یوه څانګه راماته کړه او بیا ئې هغه په مینځ دوه کړه نو یوه ټوټه ئې په یوقبر ښخه کړه او بله په بل قبر چا چې نبی کریم په اول حالت کښې لیدلې دې نو هغه د یوې څانګې ذکر کړې دې او چا چې په د ښخولو په وخت کښې لیدلې دې نو هغه د دوو څانګې ذکر کړې دې.

**قوله:** وَمَا يُعَذَّبَانِ فِي كَبِيرٍ:

**اشکال:** دلته دحدیث د اول او آخر په مینځ کښې تعارض معلومیږی څکه چې په اول کښې دی ((انهما ليعذبان)) اووروستې فرمائی ((وما يعذبان)) نو په اول کښې اثبات د عذاب دې .اوعذاب عام طور د کبیره په ارتکاب سره ملاویږی اوپه آخر کښې نفی دعذاب ده.چې دوی ته د کبیره په وجه عذاب نه ملاویږی .او د دې تعارض د بخاری په روایت کښې زیات واضح دې.څکه چې هلته دی ((بلى وانه لكبير))

**جوابونه:** ① نبی کریم ﷺ اول اوفرمائیل چې دا عذاب ورته په لویه ګناه کښې نه ملاویږی.خو چې څنګه نبی کریم ﷺ د دې څخه فارغ شو نو وحی راغله چې دوی ته عذاب په کبیره کښې ملاویږی.نو وې فرمائیل ((بلى وانه لكبير)) (۴)

② د ،،انه،، ضمیر عذاب ته راجح دې چې دا عذاب سخت دې.ګناه ته نه دې راجع.

(۱) صحيح مسلم (۴۱۸/۲)-
(۲) احمد (۲۶۶/۵) والطبرانى فى الكبير رقم (۷۸۶۹)-
(۳) معارف السنن (۲۶۲/۱)-
(۴) ۳۵.۳۴/۱ كتاب الوضوء باب من الكبائر ان لايستترمن بوله)_

③ ابن العربي رحمه الله فرمائيلي دي چې اولنې كبير په معنى د اكبر دې او دويم كبير په خپله معنى باندې دې. يعني د كفر په وجه ورته عذاب نه ملاويږي كومه چې گناه اكبره ده. بلكه كه كبيره گناه كښې ورته عذاب ملاويږي. اوهغه دا چې د بولو څخه د ځان نه ساتلو په وجه عذاب ملاويدل دي. اود چغلئ خوړلو په وجه عذاب ملاويدل.

④ وما يعذبان في كبير في ظنهما وانه في نفسه لكبير يعني د هغوى په گمان كښې دغه لوئې گناهونه نه وو خو د الله په نيز هغه لوئې گناهونه وو.

⑤ وما يعذبان في كبير عند الناس وانه لكبير عند الله يعني دغه گناهونه د خلقو په نظر كښې لوئې نه دي خو د الله تعالى په نظر كښې لوئې گناهونه دي.

⑥ دا څه داسې د مشقت گناه نه وه چې د هغې څخه ځان ساتل ډير گران وو. يعني بچ كيدل ترې آسان وو. خو انجام او نتيجه ئې سخته وه.

**قوله:** وَأَمَّا هَذَا فَكَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنْ بَوْلِهِ

**د الفاظو اختلاف:** دلته رواياتو كښې مختلف الفاظ راغلي دي. ((لايستبرء لايستنزه» لايستبرء لايستنثر، اولايتقي)) د ټولويوه معنى ده. چه دې سړي به ځان د متيازو د څاڅكوڅخه نه ساتلو

**د عدم ستر قول اود هغې تضعيف:** د «لايستتر» معنى بعضې عالمانو دا هم بيان كړې ده. چه دمتيازو وخت كښې به ئې ستر دعورت نه كولو خو بهتره دا ده چه دا لفظ په نوروطرقومحمول شي او د عدم التحرز معنى واخستې شي. ددې تائيد د هغه حديث څخه هم كيږي. په كوم كښې كښې چې ارشاد دې ((استنزهوامن البول فان عامة عذاب القبرمنه))

**د عذاب قبر څلور اسباب:** د قبر دعذاب څلور اسباب دي. په كومو كښې چې دوه په دې حديث كښې مذكور دي او دوه نور دي.

① چغلي كول ② د بول څخه ځان نه ساتل

③ په كثرت سره د شرابو څكل ④ د دنيا سره زيات محبت ساتل

**د دې گناهونو د عذاب قبر سره مناسبت:**

علامه ابن نجيم رحمه الله [۱] ددې دا نكته بيان كړې ده. چه طهارت عن البول عباداتو او طاعاتو ته ړومبې قدم دې بل اړخ ته قبر دعالم آخرت ړومبې منزل دې د قيامت منازلو كښې په ړومبى منزل يعني قبركښې به د طهارت په ترك عذاب وي. ددې تائيدد معجم طبراني ديومرفوع روايت نه هم كيږي. ((اتقوا البول فانه اول ما يحاسب به العبد في القبر)) [۲]

[۱] ) البحرالرائق ۱۱۴۱۱

[۲] ) رواه الطبراني باسناد حسن معارف السنن ۲۱۳۱۱)-

**قوله:** وَأَمَّا هٰذَا فَكَانَ يَمْشِي بِالنَّمِيمَةِ "

**د نميمه تعريف:** نميمه وائی ((نقل كلام الغير للاضرار والافساد)) يعنی د بل چا خبره د ضرر او د فساد دپاره بل چاته نقل كول.اوكه د يو خبره بل ته د اضرار او فساد دپاره نشی نقل كولې بلكه د اصلاح دپاره وی نو هغه نميمه نه ده.لكه څنګه چې د اصلاح بين الناس په موقع د يو خبره بل ته منتقل كولې شی.خو د اصلاح په نيت نودا نميمه نه ده بلكه عين ثواب دې.

**قوله:** ثُمَّ أَخَذَ جَرِيدَةً رَطْبَةً:

**قبر باندې د لجورو ځانګې ښخول:** په بخاری كښې راغلی دی ((ثم دعا بجريدة فكسرها كسرتين فوضع على كل قبر منهما كسرة))(١)اوبيا نبی كريم ﷺ دا هم اوفرمائيل ((لعله يخفف عنهما مالم ييبسا)) يعنی تركومې پورې چې دا دواړه ځانګې اوچې شوې نه وی نو اميد لرم چې الله تعالی به د دې دواړو څخه عذاب كښې تخفيف اوكړی.

**د ځانګو د اوچيدو پورې د تخفيف عذاب مقيد كولو وجه:** نبی كريم ﷺ چې دا اوفرمائيل ترڅو پورې چې دا ځانګې اوچې شوې نه وی نو كيدې شی د دوی څخه عذاب كښې تخفيف اوشی. عالمانو د دې وجه دا بيان كړې ده چې لوند څيز كښې حيات او ژوند وی او د الله تعالی تسبيح بيانوی.نو د دغه تسبيح په وجه الله تعالی د مرده څخه عذاب كښې تخفيف كوی.

**قبرستان كښې د تلاوت جواز:** د دې څخه دا مسئله هم معلومه شوه چې د قبر سره څوك تلاوت كوی نو په هغې سره به مرده ته فائده رسی كه هغه په عذاب كښې اخته وی نو هغې ترې رفع كولې شی يا په كښې تخفيف كولې شی.څكه چې هركله د يوې ځانګې د تسبيح په وجه په عذاب كښې تخفيف راځی نو د انسان په تلاوت سره خو په عذاب كښې تخفيف په طريق اولی سره راتلې شی.

**په قبر باندې د ځانګو لږولو په حكم كښې اقوال:** ① د عالمانو يوه ډله د دې قائله ده چې په قبر باندې ځانګې لګول د نبی كريم ﷺ خصوصيت دې د بل چا دپاره دا جائز نه ده.
② د امام بخاری رحمه الله وغيره په نيز په قبر باندې د ځانګې لګول جائز دی چې تخفيف د عذاب پرې اوشی. علامه شامی رحمه الله هم د دې د جواز تصريح كړې ده حافظ عسقلانی رحمه الله شيخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله وغيره هم د دې سره متفق دی.د مولانا خليل احمد سهارنپوری رحمه الله ميلان هم د جواز طرف دې.(٢)

**داول قول دليل:** علامه ابن بطال او علامه مازری د دې وجه دا بيان كړې ده چې نبی

---

[1] ) الصحيح البخاری كتاب الوضوء باب من الكبائر ان لا يستتر من بوله )-
[2] ) نصر الباری شرح صحيح بخاری (١١\١٤٤)-

کریم ﷺ ته د وحی په ذریعه دا علم ورکړې شوې وو چې په دوی باندې عذاب قبر دې او وسره دا هم خودلې شوی وو چې د څانګو په لګولو سره به د دوی په عذاب کښې تخفيف اوکړی شی.خو بل چاته دا علم نشی کیدې چې صاحب قبر معذب دې او نه ورته د تخفيف عذاب علم کیدې شی.

**د دویم قول دلائل:** ① امام بخاری رحمه الله په مستقل باب کښې ذکر کړې دې او په هغې کښې ئې د مرور علی قبرین حدیث ذکر کړې دې.(١)

② په بخاری کښې د بریده بن خصیف رضی الله عنه وصیت هم د دې حضراتو دلیل دې ځکه چې هغوی دا وصیت کړې وو.چې زما په قبر به د څانګې ښخې کړې شی.

**د مفتی شفیع رحمه الله فیصله:** حضرت مولانامحمدشفیع صاحب قدس سره په دې باب کښې قول فیصل دا بیان کړې دې.چه د حدیث څخه ثابتیدونکې څیزیه هم په هغه حدساتلې شی چې په کوم حد ثابت دې حدیث کښې یوځل یادوه ځله ښاخ لګول ثابت دې دې څخه معلومیږی چه احیاناً داسې کول جائز دی. ((وعليه يحمل قول الشيخ سها رنپوری رحمه الله)) خودا چرته هم ثابت نه دی.چه د حدیث الباب څخه علاوه نبی کریم ﷺ د بل سړی په قبر داسې کړې وی.دغه شان د حضرت بریده رضی الله عنه څخه علاوه دبل صحابی څخه داسې منقول نه دی.چه دوی په قبرباندې ښاخونه لګول خپل معمول جوړکړې وی.تردې چه د حضرت ابن عباس رضی الله عنه اود جابر رضی الله عنه څخه هم چه کوم ددې حدیث راویان دی.(٢) دا منقول نه ده.چه دوئ دتخفيف عذاب دپاره دا طریقه اختیارکړې وی.دې څخه داخبره په واضح طور ثابتیږی چه دا عمل اګرچه جائزدې.خو د سنت جاریه اوعادت مستقله جوړولو څیزنه دې.((فالحق ان يعطى كل شيئ حقه ولا يجاوز عن حده وهو الفقه في الدين والله علم بالصواب))

**په قبرونو باندې د ګولونواچولو عدم جواز:** په څانګو باندې د ګولونو قیاس کول او په قبرونو باندې د ګولو کیخودل تیك نه دی.ځکه چې نبی کریم د دې مسئلې د حدیث الباب سره څه تعلق نشته .ددې د بطلان دپاره دا دلیل کافی دې چې عوام الناس د اولیاء کرامو په قبرونو باندې ګولونه ایږدی.حالانکه د تخفيف عذاب خو ګناهګارانو ته زیات ضرورت دې.

### [۳۳۹] د دوؤ لعنتی څیزونو نه د ځان ساتلو حکم

٣٣٩-(٣) [٥] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] «اتَّقُوا اللَّاعِنَيْنِ» [٣] قَالُوا: وَمَا اللَّاعِنَانِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ [٤] قَالَ: الَّذِي يَتَخَلَّى فِي طَرِيقِ النَّاسِ [٥] أَوْ فِي ظِلِّهِمْ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

(١) ((باب الجريد على القبر))

(٢) يعنى الحديث المذكور فى الباب لاحديث بريده

(٣) اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب النهى عن التخلي فى الطرق، والظلال (رقم-٦٨ - (٢٦٩)

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] تاسو د دې دوو څیزونو څخه ځان ساتي چې د لعنت سبب دي [۳] صحابه رضی الله عنهم عرض وکړو یارسول الله ﷺ هغه څیزونه څه دي؟ [۴] حضور ﷺ وفرمایل یو خو دا دي چې یوسړي د خلقو په لار کې غټې اودس ماتې وکړي [۵] اویا دا چې یو سړي د خلقو د سایې په ځاي کې غټې اودس ماتې وکړي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① اللَّاعِنَيْنِ: أَيْ: لِلَّذِينَ هُمَا سَبَبَا اللَّعْنَةِ: یعنی هغه دوه څیزونه کوم چه د لعنت دپاره سبب او ذریعه دی. ② يَتَخَلَّى: أَيْ: يَتَغَوَّطُ وَيَبُولُ: چه ډک اودس ماتې اوکړی او پلیت ئې کړی. ③ فِي ظِلِّهِمْ: أَيْ: فِي مُسْتَظَلِّهِمْ: دخلقو سوری ته د کیناستلو ځای، کوم سوری ته چه خلق د نمر نه بچ کیدو دپاره یا د ګپ شپ دپاره کینی.

**تسهیلات:**

**قوله: اتَّقُوا اللَّاعِنَيْنِ:**

**افعالو ته د لعنت نسبت کولو وجه:** یعنی هغه دوه کارونه چه دلعنت دپاره سبب اوذریعه جوړیږی لکه چه دا دواړه کارونه پخپله لعنت کونکی جوړیږی په دې اعتبارسره حامل او باعث ته دفاعل درجه ورکړې شوه ګنی په اصل کښې لعنت کونکی خوهغه خلق دی چه تکلیف اوچتولوسره کنځلې او لعنت کولو کښې لګیاشی نودا "اسنادالی غیرماهوله" جوړ شو. صاحب ازهار لیکلی دی چه لاعن په وزن د فاعل د ملعون په وزن د مفعول په معنی کښې دې.

**قوله: فِي طَرِيقِ النَّاسِ:**

**د لارې څخه مراد:** دې نه مرادعامه لارده په کوم چه خلق تیریږی اوځی راځی پرې که په ځنګل کښې یوه لار وی هغه مرادنه ده بل دې نه هغه لارمراد ده چه عام وی د چا په مملوک لارکښې بغیرد اجازت نه قضاء حاجت حرام دې.

**قوله: أَوْفِي ظِلِّهِمْ:**

**د سوری والاونې لاندې بول کولو ممانعت:** دلته أود تنویع دپاره دې اوظل د مستظل په معنی کښې دې یعنی د سوری والا ونې لاندې چرته چه خلق په سوری کښې کینی قضاءحاجت کول دلعنت سبب دې. یعنی که څوك دغه سړی ته کنځلې کوی یا په هغه لعنت کوی نوداسړې ددې مستحق دې.

**په مذکوره حکم کښې تعمیم:** د سوری والا ونې نه علاوه دمیوه دارې ونې هم دغه حکم دې. بل دې نه هغه مقامات هم مراددی چرته چه خلق د نمرنه ګرموالې حاصلولو دپاره یخننی کښې کینی. یاد عام مجلس لګولودپاره کینی بل د اوبو تالاب یا پارك وغیره

دعاموخلقو ځايونه ټول مراد دی. بعضې علماؤ ليکلی دی په دې کښې هغه بيت الخلاء هم راځی په کوم کښې چه فلش سستم نه وی او اودس ماتې په کښې پروت وی په کوم سره چه نوروته تکليف رسی. اوکه مجبوری وی نو بيابه په دې کښې تخفيف د مجبورئی د وجې نه وی.

**[۳۳۰] په ښی لاس د استنجاء کولو کراهت**

۳۳۰-()[۶] وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] ((إِذَا شَرِبَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَتَنَفَّسْ فِي الْإِنَاءِ [۳] وَإِذَا أَتَى الْخَلَاءَ، فَلَا يَمَسَّ ذَكَرَهُ بِيَمِينِهِ [۴] وَلَا يَتَمَسَّحْ بِيَمِينِهِ)) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابو قتاده رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هرکله چې په تاسو کې څوك اوبه څکي نو د اوبو څکلو په لوښي کې دې ساه نه اخلي [۳] او هرکله چې اودس ماتي ته ځي نو په ښي لاس سره دې عضو مخصوص (ذکر) نه مسه کوي [۴] او نه دې په ښي لاس سره استنجاء کړي. (بخاري و مسلم)

**حل اللغات:** ① فَلَا يَتَنَفَّسْ: أي لَا يُخْرِجْ نَفَسَهُ: يعنی ساه دې نه اخلی، ② الْإِنَاءِ: لوښي، ③ الْخَلَاءَ: بيت الخلاء، د اودس ماتی ځای: ④ فَلَا يَمَسَّ: لاس دې نه اوړی، ⑤ لَا يَتَمَسَّحْ: أَيْ: لَا يَسْتَنْجِي: استنجاء دې نه کوی يعنی پليتی دې نه لرې کوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلَا يَتَنَفَّسْ فِي الْإِنَاءِ:

**په لوښی کښې د ساه اخستلو ممانعت:** دې حديث پاك کښې دوه آدابه بيانيږی اول دا چې کله يو کس اوبه څکی نو هغه ته پکار دی چې د اوبو څکلو دوران کښې په هغه لوښی کښې ساه نه اخلی کوم کښې چې دې اوبه څکی. که دې ساه اخستل غواړی نو لوښی دې د خلې نه جدا کړی او بيا دې ساه واخلی چې خلې يا پوزې نه څه څيز اوبه پريونځي

**قوله:** فَلَا يَمَسَّ ذَكَرَهُ بِيَمِينِهِ:

**په ښې لاس د ذکر مس کولو ممانعت:** دويم څيز دا بيانيږی چې کله يو کس لوې اودس ماتی دپاره لاړشی نو هغه ته پکار دی چې نه په خپل ښی لاس خپل اندام مخصوصه مسح کړی او نه دې په ښی لاس استنجا کوی. ځکه چې په ښی لاس سره خوراك وغيره کيږی. او دا څيز د پاکوالی او صفائی خلاف دې چې کوم لاس سره خوراك وغيره اوکړی او بيا هم هغه لاس سره داسې اندامونوته لاس وراوړی چې هغې سره هغه ګنده کيږی. مظاهر (۱/ ۲۵۸)

[۱] اخرجه البخاری کتاب الوضوء باب النهی عن الاستنجاء باليمين(رقم-۱۵۳) ومسلم کتاب الطهارة باب النهی عن الاستنجاء باليمين(رقم-۶۳ - (۲۶۷)

[۳۳] په استنجاء کښې د ناتکي لوټو استعمالولو حکم

۳۳۱-()[۷] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۲ («مَنْ تَوَضَّأَ فَلْيَسْتَنْثِرْ ۳ وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ») مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ كوم سړي چې اودس كوي هغه ته پكار دي چې هغه پوزه هم سونړ كړي ۳ او كوم سړي (چې د اودس ماتي څخه وروسته په لوټي سره) استنجاء كوي هغه ته پكار دي چې طاق لوټي واخلي (يعني دري يا پنځه يا اووه). (بخاري و مسلم)

**حل اللغات:** ① فَلْيَسْتَنْثِرْ: پوزه دې سونړ كړي يعني پوزه كښې ني چه كومې اوبه اچولې دی هغه دې اوباسی. يا دا مطلب چه: فَلْيُخْرِجِ الْمُخَاطَ مِنْ أَقْصَى الْأَنْفِ: د پوزې نه دې كړينګ، قنړي وغيره سونړ كړي چه صفا شي. ② اسْتَجْمَرَ: دا د حجر نه دې په كاڼړي سره استنجاء كول يعني خان پاكول مراد دی. ③ فَلْيُوتِرْ: أَيْ: ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا أَوْ سَبْعًا: طاقت عدد دې استعمال كړي يعني درې، پنځه وغيره.

**تسهيلات: قوله:** مَنْ تَوَضَّأَ فَلْيَسْتَنْثِرْ

**د استنثار په تعريف كښې اقوال:**

① استنشار پوزه كښې دننه اوبه راښكلو ته وائی چې پوزه ښه صفا شي.

② ددې نه مراد د پوزې نه ګرينګ وغيره راويستل دی.

**د استنثار حكم:** دا د امر صيغه وجوب دپاره نه ده بلكه استحباب دپاره ده خكه چې د نبی كريم ﷺ په وړاندې عدم استنشار شوې وو.خو هغوی پرې انكار نه دې كړې

**د استنثار حكمت:** بعضې حضراتو وئيلی دی چې شيطان د شپې په خوب كښې په خيشوم كښې وی په دې وجه د پوزې صفا كولو حكم وركړې شوې دې.

**قوله:** وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ

**په استنجاء كښې د درې لوټو د استعمالو حكم:** يعنی كله چې يو كس استنجا كوی نو طاق عدد كښې دې لوټې استعمال كړی كه هغه درې وی اوكه پنځه دلته د ايتار حكم هم وجوب دپاره نه دې بلكه استحباب دپاره دې.

**اشكال:** استنجاء اول كيږی او دې نه روستو په پوزه كښې اوبه اچولې كيږی. خو دې ځائې كښې ددې الټه دی چې اول په پوزه كښې اوبه واچه بيا لاړ شه استنجاوكړه.

**د اشكال جواب:** دا دواړه جملې جدا جدا دی مطلب دادې چې كله اودس كوئی نو پوزه كښې په ښه طريقه اوبه اچوئی، او كله چې استنجاء كوئی نو لوټې طاق استعمالوئی.

[۱] اخرجه البخاری كتاب الوضوء باب الاستنثار فی الوضوء(رقم-۱۶۱) ومسلم كتاب الطهارة اب الإيتار فی الاستنثار والاستجمار(۲۲ - (۲۳۷) والدارمی كتاب الطهارة /باب فی الاستنشاق والاستجمار(رقم-۷۳۰)

[۳۴۲] په اوبو سره استنجاء کول

۳۴۲-(¹) [۸] ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَدْخُلُ الْخَلَاءَ، ③ فَأَحْمِلُ أَنَا وَغُلَامٌ إِدَاوَةً مِنْ مَاءٍ، وَعَنَزَةً يَسْتَنْجِي بِالْمَاءِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضی الله عنه فرمايي ② چې رسول الله ﷺ به اودس ماتې ته تشريف وړلو ③ نو زه او يوهلك (بلال رضی الله عنه يا ابن مسعود رضی الله عنه) به د اوبو ډَك لوټه او وړه نيزه اخسته حضور ﷺ (به په لوټو سره د صفايي ځخه وروسته) په اوبو سره استنجاء كوله. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① الْخَلَاءَ: أي الْمُتَوَضَّأُ لِخُلُوِّ الْإِنْسَانِ فِيهِ: د اودس ماتې ځاى چرته چه انسان خپله تقاضا او حاجت پوره كوى، خو دلته ددې نه مراد فضاء او صحرا ده. ② إِدَاوَةً: أَيْ: مَطْهَرَةً وَهِيَ ظَرْفٌ مِنْ جِلْدٍ يُتَوَضَّأُ مِنْهُ: د اوبو لوښې كوم سره چه اودس چاراندام كولې شى دا به د څرمنې نه جوړ وو، يعنى لوټه، كوزه وغيره. ③ عَنَزَةً: نيغه چوكه چه په يو سركښې به ئې سوكه وه، د امسا نه به اوږده وه او د نيزې نه به وړه وه. د ضرورت دپاره به د مونځ په دوران كښې د سترې په طور اېښودلې كيده.

**تسهيلات:**

**قوله:** غلام: ددې ځخه مراد حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دې.

**قوله:** يَسْتَنْجِي بِالْمَاءِ:

**په استنجاء كښې درې صورتونه:**

① ددې حديث پاك ځخه معلومه شوه چې نبى كريم ﷺ كله اوبه استعمال كړى دى

② كله ئى صرف لوټه استعمال كړې ده

③ كله ئى دواړه هم استعمال كړى دى. دلته د اوبو وضاحت دې، باقى ټول جائز دى. البته جمع بين الماء والحجر افضل دى. بيا د اوبو استعمال افضل دې. او آخر كښې صرف لوټۀ ده. كوم خلق چې صرف په اوبو باندې استنجاء كول ناجائز ګنړى هغوئ په غلطئ دى.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

[۳۴۳] بيت الخلاء ته د داخليدو په وخت ګوتمه ويستل

۳۴۳-(²) [۹] ① عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ نَزَعَ

---

(¹) اخرجه البخارى كتاب الوضوء باب الاستنجاء بالماء (رقم-۱۵۰) ومسلم كتاب الطهارة باب الاستنجاء بالماء من التبرز (رقم-۷۰ - (۲۷۱)

(²) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة . باب الخاتم يكون فيه ذكر الله تعالى يدخل به الخلاء (رقم ۱۹) والترمذى كتاب اللباس عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى لبس الخاتم فى اليمين (رقم- ۱۷۴۶) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها باب ذكر الله عز وجل على الخلاء، والخاتم فى الخلاء (رقم- ۳۰۳)

خَاتَمَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالتِّرْمِذِيُّ، [۳] وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. [۴] وَقَالَ أَبُو دَاوُدَ: هٰذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ وَفِي رِوَايَتِهِ وَضَعَ بَدَلَ نَزَعَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضی الله عنه فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به بيت الخلاء ته تشريف وړلو نو خپله ګوتکي به يې وبنکله، ابوداؤد، نسائي، ترمذي، [۳] اوترمذي وايي دا حديث حسن صحيح غريب دي [۴] او ابوداؤد وايي دا حديث منکر دي او د هغه په روايت کښې د لفظ نَزَعَ په ځاي لفظ وَضَعَ دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ نَزَعَ خَاتَمَهُ.

**د نبي عليه السلام د ګوتمي نقش:** دَ حضورپاك په ګوتمه کښي [محمد رسول الله] عبارت په داسې انداز سره ليکلې شوې وو چه پورته کرښه کښې لفظ الله وو بيا لفظ رسول وو اودَ ټولونه لاندې لفظ محمد وو. په دې وجه به حضورپاك دا دَ قضاء حاجت په وخت کښې کوزوله. دې نه معلومه شوه چه هرڅيز په کوم چه آيت ليکلې شوی وی يا دَ يو رسول يا فرښتې نوم وی يا قرآن يا دَ الله تعالى دَ نومونونه يو نوم وی دغه بيت الخلاء ته اوړل مکروه دی. اوکه دَ تعويذ په شکل کښې يو څيز پټ وی نودَ هغې حکم جدا دې.

**قوله:** وَقَالَ أَبُو دَاوُدَ: هٰذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ.

ابوداؤد دې حديث ته منکر وئيلی دی مګر علماء وائی چه دا حديث دَ دليل دَپاره صحيح دې.

**قوله:** وَفِي رِوَايَتِهِ وَضَعَ بَدَلَ نَزَعَ.

بعضې روايت کښې [وضع خاتمه] الفاظ راغلی دی په دې کښې څه فرق نشته دې.

**[۳۴۳] د قضاء حاجت دپاره په صحرا کښې لرې تلل**

۳۴۳—(١) [١٠] [١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَرَادَ الْبَرَازَ انْطَلَقَ [۳] حَتَّى لَا يَرَاهُ أَحَدٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر رضی الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ چې به د اودس ماتي د پاره (په ځنګل کې) د تلو اراده وکړه [۲] نو دومره لرې به يې تشريف وي وړلو چې چابه نه ليدلو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْبَرَازَ: أَيْ: لِقَضَاءِ الْحَاجَةِ: قضاء حاجت کولو دپاره فضاء، صحراء ته تللو نه کنايه ده. ② انْطَلَقَ: أَيْ: ذَهَبَ: تلو به.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا أَرَادَ الْبَرَازَ انْطَلَقَ حَتَّى لَا يَرَاهُ أَحَدٌ.

---

(١) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة /باب التخلى عند قضاء الحاجة (رقم ٢) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب التباعد للبراز فى الفضاء (رقم- ٣٣٥)

**د غټ اودس ماتي كنائي الفاظ:** دا دَ قضاء حاجت نه كنايه ده دَغټ اودس ماتي لفظ چونكه ناخوښه دې لهذا په هره ژبه كښې خلق دا دَ كنايه په توګه استعمالوی بلكه دَ قضاء حاجت دَ وجې نه دَدغه ځائی نوم هم دكراهت په وجه بدليږی مثلاً اول دَدې نوم ټټئی وو هغه مكروه شو نوبيت الخلاء شو بيا طهارت خانه شو بيا سنډاس شو بياباتهروم شو اوس واش روم روان دې.

براز دَباء په كسره سره لوستل بعضو غلط ګرځولي دې چه دادَ جنګ كولوپه معنی كښې دې مګر هغه هم صحيح دې اوفتحه زيات بهترده دَ قضاء حاجت دَپاره لرې تلل دَحضورپاك دَ حياء اوكريمانه اخلاقو حصه وه او په كوركښې بيت الخلاء نه وه.

**[۳۳۵] دمتيازو كولو دپاره د نرمې زمكې انتخاب**

۳۳۵—() [۱۱] ①وَعَنْ أَبِي مُوسَى -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ②«كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ذَاتَ يَوْمٍ فَأَرَادَ أَنْ يَبُولَ، ③فَأَتَى دَمِثًا فِي أَصْلِ جِدَارٍ فَبَالَ. ثم قَالَ: ④(إِذَا أَرَادَ أَحَدُكُمْ أَنْ يَبُولَ، فَلْيَرْتَدْ لِبَوْلِهِ») رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① ابو موسی رضی الله عنه فرمايي② چه يوه ورځ زه رسول الله ﷺ سره ملګري وم حضور ﷺ د ورو بولو كولو اراده وكړه③ نو د يو ديوال په بيخ كې (يعني هغې ته نزدې) نرمې زمكې ته ورسيدو او متيازې يې وكړې بيا د بولو د فارغيدو ځخه وروسته حضور ﷺ وفرمايل ④هر كله چې په تاسو كې څوك د ورو بولو اراده وكړي نو هغه ته پكار دي چې د ورو بولو د پاره نرمه زمكه تلاش كړي (چې ځاځكي وربانديې ونه لګيږي) (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ①ذَاتَ يَوْمٍ: په دې كښې ذات لفظ زايد دې مطلب يوم يعنی ورځ مراد ده، يا دا كنايه ده د خاص وخت نه، أَيْ: كُنْتُ يَوْمًا أَوْسَاعَةَ يَوْمٍ: يعني يوه ورځ يا د ورځې يو خاص وخت.② دَمِثًا: أَيْ مَكَانًا لَيِّنًا سَهْلًا: نرمې او پستې زمكې ته وائی، ③ أَصْلِ: أَيْ: قَرِيبٌ مِنْهُ: د ديوال ويخ يعنی ديوال سره نزدې، ④ جِدَارٍ: ديوال، ⑤ فَلْيَرْتَدْ: أَيْ فَلْيَطْلُبْ: تلاش كوی دې.

**تسهيلات: قوله: فَلْيَرْتَدْ:**

**د قضاء حاجت دپاره د نرم ځائي ټټولو وجه:** نرم ځائی لټول په دې وجه ووچه په بدن باندې ځاځكی پرينوځی يادَ لوړې نه متيازې ځپو طرف ته رانه شي. په دې وجه به حضورپاك په همساسره سخته زمكه راګروله چه نرمه شي بيابه ئی متيازې كولې.

**اشكال:** دَ بل چا ديوال سره متيازې كول جائز نه دی دې سره دَ بنياد جرړه اوبيخ خرابيږی حضور پاك ځنګه كولې؟

---

(1) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة، باب الرجل يتبوأ لبوله (رقم-۳)

**داشکال جواب:** داعام خائی وو ټولو خلقوبه دلته متيازې کولې ياکيدې شی چه دَ ديوال نه داخائی په فاصله باندې وو يادا جواب دې چه حضورپاك دَ فاصلې نه متيازې کولې.

**[۳۳٦] داستنجاء په وخت زمکې ته په شکته کيدو پرتوگ پورته کول**

۳۳٦-() [۱۲] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا أَرَادَ الْحَاجَةَ [۳] لَمْ يَرْفَعْ ثَوْبَهُ حَتَّى يَدْنُوَ مِنَ الْأَرْضِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] انس رضي الله عنه فرمايي [۲] چې رسول صلى الله عليه وسلم چې به د استنجاء اراده وکړه [۳] نو ترڅو پورې چې (د ناستې دپاره) به زمکې ته نژدې نه شو نو جامه به يې نه پورته کوله. (ترمذي، ابوداؤد، دارمي)

**حل اللغات:** ① الْحَاجَةَ: أَيْ: قَضَاءَ الْحَاجَةِ: د حاجت نه مراد قضاء حاجت دې. ② يَدْنُوَ: أَيْ: يَقْرُبَ: چه نژدې شی (زمکې ته).

**[۳۳۷] د قضاء حاجت په باره کښې د نبی علیه السلام تعلیمات**

۳۳۷-() [۱۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] «إِنَّمَا أَنَا لَكُمْ مِثْلُ الْوَالِدِ لِوَلَدِهِ، [۳] أُعَلِّمُكُمْ: إِذَا أَتَيْتُمُ الْغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ، وَلَا تَسْتَدْبِرُوهَا» [٤] وَأَمَرَ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ. وَنَهَى عَنِ الرَّوْثِ وَالرِّمَّةِ. [٥] وَنَهَى أَنْ يَسْتَطِيبَ الرَّجُلُ بِيَمِينِهِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] (د تعليم اونصيحت په سلسله کي) زه ستاسو د پاره داسې يم څنګه چې پلار د خوي د پاره وي [۳] نو زه درته ښايم چې کله تاسو اودس ماتي د پاره ځئ نو د قبلې طرف ته مه مخ کوئ او مه شاکوئ [٤] (د دي څخه وروسته) حضور صلى الله عليه وسلم (د اودس ماتي څخه وروسته) په دريو لوټو سره د استنجاء کولو حکم وفرمايلو او ګوبر (يعني په ټول نجاستونو) او هډوکو سره د استنجاء کولو څخه يې منع وفرمايله [٥] او حضور صلى الله عليه وسلم د دي څخه هم منع وفرمايله چې هيڅوك دي په ښي لاس سره استنجاء نه کوي. (ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات:** ① الرَّوْثِ: أَيِ السِّرْجِينِ: سوتې، خاشنړه وغيره (ټول نجاسات مراد دی). ② الرِّمَّةِ: د رميم جمع ده، أَيِ الْعِظَامُ الْبَالِيَةُ: زړو هډوکو ته وائی خو دلته ترې مراد ټول هډوکی دی ③ أَنْ يَسْتَطِيبَ: أَيْ يَسْتَنْجِيَ: پاکی حاصلول يعنی استنجاء کول

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة/باب کیف التکشف عند الحاجة (١٤) والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی الاستتار عند الحاجة (١٤)

(۲) اخرجه ابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب الاستنجاء بالحجارة، والنهی عن الروث والرمة (رقم- ۳۱۳) وابوداود کتاب الطهارة ، باب کراهیة استقبال القبلة عند قضاء الحاجة (رقم- ۸) والنسائی کتاب الطهارة/باب النهی عن الاستطابة بالروث (رقم- ٤٠)

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّمَا أَنَا لَكُمْ مِثْلُ الْوَالِدِ لِوَلَدِهِ

**د پلار څخه د تشبیه ورکولو وجه:** دا تشبیه ئې په دې وجه اوفرمائیله چې ددین په تپوس کولو کښې ځوك ویره محسوس نه کړي او څه حیاء او نه کړي. بیباکه زما نه تپوسونه کوی اوخپل ضرورتونه پورا کوی. د نبی کریم ﷺ د هیبت او عظمت دومره زیات وو چې صحابه کرامو کښې دنبی کریم ﷺ څخه د مسئلې دتپوس کولو جرات نه وو. خیرالتوضیح (۱/ ۳۴۴)

**[۳۲۸] د اودس او خوراك دپاره د ښی لاس استعمالول**

۳۲۸-(۱)[۱۴] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② «كَانَتْ يَدُ رَسُولِ اللّٰهِ- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْيُمْنَى لِطُهُورِهِ وَطَعَامِهِ ③ وَكَانَتْ يَدُهُ الْيُسْرَى لِخَلَائِهِ وَمَا كَانَ مِنْ أَذًى». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي ② چه د رسول ﷺ ښي لاس به د اودس کولو او طعام خوړلو د پاره وو ③ او ګس لاس د استنجا او د هر مکروه کار د استعمال د پاره وو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① لِخَلَائِهِ: أَيْ: لِأَجْلِ الِاسْتِنْجَاءِ فِي الْخَلَاءِ: ددې نه په بیت الخلاء کښې استنجاء کول مراد دی. ② أَذًى: أَيْ: مَا تَسْتَكْرِهُهُ النَّفْسُ الزَّكِيَّةُ: په طبیعت چه کوم څیزونه بد لګی هغه مراد دی لکه خراشکې، ګرینګ، پلیتی پاکول وغیره.

**تسهیلات:**

**قوله:** الْيُمْنَى لِطُهُورِهِ:

**ښې لاس د ښه کارونه دپاره:** اسلام یوجامع مذهب دې اودا کامل مکمل بلکه اکمل دَ ژوندیوه ضابطه ده. په دې کښې دَ ژوند دَهرې شعبې دَهرقسم مسائلوحل موجوددې. هم په دې سلسله کښې په ډیرواحادیثو کښې خودلی شوی دی چه دَ انسان دَښی اوګس لاس جداجدا فرائض دی. چنانچه حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائی دَ حضورپاك ښې لاس دَ خوراك څښاك اودَهرښه اومبارك کاردَپاره وو او ګس لاس ئی دَاستنجاء او هرهغه کاردَپاره ووچه ښه به نه شوګڼړلې.

**اسلامی احکام د انسانی فطرت مطابق:** شریعت مطهره انسانی طبیعت سره مماثلت کړې دې ځکه چه طبعًا انسان په خوراك او اودس ماتی کښې فرق کول غواړی اوپوانسانی طبیعت دانه غواړی چه اوس ئی کوم لاس په اودس ماتی کښې ککړ کړې وو هم اوس هغه په خله کښې ورکولوسره دَخوراك خوند تباه کړی. په دې وجه ګس لاس ته دَ ناخوښئی دَ وجې نه دَ شیطان لاس وئیلې شوې دې یعنی دَ شیطان په خوښ کړې شووکارونوکښې دا

---

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة، باب کراهیة مس الذکر بالیمین فی الاستبراء (رقم- ۳۳)

لاس استعمالیږی. اوس متیازې اودس ماتې دَ پوزې صفائی اویوګنده څیز اوچتولوکښې په ګس لاس استعمالولې شی او ښې لاس دَ نورو خوکارونودپاره دې دې دَپاره چه دَهریواندام دَپاره جداجدا تقسیم کار وی. اوس چه دکوموخلقوطبیعت شیطانی شوې دې هغوی ګس لاس خوښوی او په خوراك څښاك او اودس ماتې کښې ئې یوشان استعمالوی. هغوی په ګنده اوښه کارونوکښې دَ ښې اوګس فرق نه کوی. شریعت دَانسانی شرافت دیرخیال ساتلې دې دَ رحمان ټول نظام دَ طهارت دې او رحمان هم دَدې حکم ورکوی اودَ شیطان ټول نظام دَ نجاست دې اوهغه خبیث هم دَدې حکم ورکوی

**[۳۳۹] د قضاء حاجت تلو دپاره درې کاڼرې یالوټې ځان سره وړل**

**۳۳۹—(١) [٥١] [١] وَعَنْهَا. قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] ( «إِذَا ذَهَبَ أَحَدُكُمْ إِلَى الْغَائِطِ فَلْيَذْهَبْ مَعَهُ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ [٣] يَسْتَطِيبُ بِهِنَّ فَإِنَّهَا تُجْزِءُ عَنْهُ» ) رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.**

**ترجمه:** [١] بي بي عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [٢] هرکله چې په تاسو کې څوك د اودس ماتي د پاره ځي نو هغه ته پکار دي چې د ځان سره درې کاڼي (یا لوټې) واخلي [٣] دابه کافي شي (یعني د اوبوضرورت نه پاتې کیږي) (احمد ابوداؤد نسائي دارمي)

**حل اللغات:** ① يَسْتَطِيبُ: أَيْ يَسْتَنْجِي: پاکی به حاصلوی یعنی استنجاء به کوی.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَلْيَذْهَبْ مَعَهُ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ

**په احجارو کښې د تثلیث په حکم کښې اختلاف:** زمونږ په نزد تثلیث د احجار سنت دې. حالانکه د نورو حضراتو په نزد واجب دې.

**قوله:** فَإِنَّهَا تُجْزِءُ عَنْهُ

**د عنه په ضمیر کښې دوه احتمالات:**

① دعنه په مرجع که اوبه وی ددې تقدیری عبارت داشان دې ، ای من الماء ، اګر چې ما قبل کښې د اوبو ذکر نشته دې ، لیکن مفهوم د کلام په پوهه کښې راځی. خلاصه دا که اوبه وی نو استنجا به کوؤ ، او که اوبه نه وی نو زمونږ دپاره ثلاثه احجار کافی دی.

② دعنه مرجع که مستنجی وی او عن بمعنی لام وی ،نومطلب به داشی چې د استنجاء کوونکی مقصد چې حصول طهارت دې هغه به پورا شی .

**قوله:** فلیذهب:

**د امر په محمل کښې اختلاف:** ① ددې امر د احنافو په نزد استحباب دپاره دې.

(١) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة ، باب الاستنجاء بالحجارة (رقم- ٤٠) والدارمی کتاب الطهارة/باب الاستطابة (رقم- ٦٩٧)

④ د شوافع په نزد دا امر د وجوب دپاره دې ، يا دا معلول بالعلة دې ، يعنې هغه اجزاء چې استنجاء دپاره کافي شي .

**[۳۵۰] په هډوکو او خاشنړو د استنجاء کولو ممانعت**

۳۵۰-() [۱۶] ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②«لَا تَسْتَنْجُوا بِالرَّوْثِ وَلَا بِالْعِظَامِ، ③فَإِنَّهَا زَادُ إِخْوَانِكُمْ مِنَ الْجِنِّ» ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ: ( «زَادُ إِخْوَانِكُمْ مِنَ الْجِنِّ»).

**ترجمه:** ① ابن مسعود ﷛ روايت کوي چې رسول ﷺ وفرمايل② تاسو خلق په ګوبرو (خاشنړو) او هډوکو سره استنجاء مه کوئ③ خکه چې (هډو کي ستاسو د ورونو جناتو غذا ده، ترمذي نسائي خو نسائي زَادُ إِخْوَانِكُمْ مِنَ الْجِنِّ الفاظ نه دي ذکر کړي.

**حل اللغات:** ① الرَّوْثِ: أي السِّرْجِينِ: روث د اسونو خاشنړو ته وائي (خو تول نجاسات مراد دي). ② الْعِظَامِ: هډوکي، ③ زَادُ: توښه، د خوراک څکاک څيزونه. ④ بعرة د ګډوبيزو او اوښانو پچو ته وئيلې کيږي. ⑤ سرقين د غوا ميښې فضلاتو ته وئيلې کيږي.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَسْتَنْجُوا بِالرَّوْثِ وَلَا بِالْعِظَامِ:

**په خاشنړو د استنجاء ممانعت وجه:** د آسونو فضلاتو (خاشنړو) سره د استجاء کولو څخه د ممانعت يوه وجه خو په حديث پاك راغلې ده چې دا ستاسو د رونړو جناتو خوراك دې. په دې کښې دا وضاحت هم راغلې دې چه خاشنړو کښې دننه چې کومې دانې وی هم هغه جنات خوري.

**اشکال:** خينو احاديثو کښې راغلی دی چې سوټه د جناتو د څناورو خوراك او وانبه دی. نو دلته جناتو طرفته نسبت دادنی ملابست په وجه شوې دې ، دلته دا شبه کيدې شي چې کله دَ جناتو او دَ انسانانو شريعت يو دې نو بيا جناتو دپاره سوټه څنګه جائز شو کوم چه دا حرام څيز دې

**داشکال دوه جوابونه:** ① دا په خينو رواياتو کښې راغلی دی چې کله دوئ سوټه پورته کړی نو دا ددوئ دپاره په کهجوره کښې بدل شی .

④ هم په يو شريعت کښې د مختلفو اصنافو خلقو په حق کښې حکم بدليږي. لکه څنګه چې دسړودپاره د ريښمو کپړې حرامې دی. اودَ ښځو دپاره جائزدی. نو داشان جناتو دپاره سوټه جائز ده اودَ انسانانو دپاره حرامه ده (قاله شيخ الهند محمود الحسن رحمه الله)

(۱) اخرجه الترمذي كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب كراهية ما يستنجى به (رقم -۱۸) والنسائي كتاب الطهارة /باب النهي عن الاستطابة بالعظم(رقم-۳۹)

**قوله: فَإِنَّهَا:**

**د ضمير په مرجع باندې اشکال:** ددې ضمير په مرجع کښې کلام دې چې دا ضمير مفرد ولې دې حالانکه سابق دوه څيزونه دی؟

**داشکال درې جوابونه:** ① ضمير عظام طرفته راجع دې او عظام اګر چې جمع دې ليکن د طعام په معنی کښې دې. نو ضمير راجع کول صحيح دی.

② دَ هر يو په اعتبار سره ضمير راجع کړې شوې دې يعنی د هر يو مذکور حکم دادې.

③ مرقات کښې چې ملا علی قاری رحمه الله کومه نسخه نقل کړې ده په هغې کښې د انها ضمير مؤنث دې. [الکاشف]

**قوله: وَلَا بِالْعِظَامِ:**

**په هډو کښې د استنجاء کولو د ممانعت وجوهات:** هډوکی سره د استنجاء کولو نه دَ ممانعت وجوهات او شرح ددې باب په دويم حديث کښې تير شوی دی.

**هډوکی د جناتو خوراک کيدو کښې احتمالات:** ① د خينو رواياتو څخه معلوميږی چې جناتو دپاره په دې هډوکو باندې نوې غوښه پيدا کيږی. او هغه دوئ خوری

② په خينو رواياتو کښې صرف دبوئی کولوذکر دې

**د کوئيلې خوراک کيدو مطلب:** خينو رواياتو کښې د کوئلې هم ممانعت راغلې دې. لکه څنګه چې دمشکاة حديث نمبر(۳۷۵)کښې دی. په هغې کښې کوئلې ته د جناتو رزق وئيلې شوې دې. نو ددې مطلب داشو چې ددې نه فائده پورته کوی لکه دا په اخلی پخلی کښې ، اور بلولو کښې او رنړا کولو کښې استعمالوی. نو رزقًا بمعنی انتفاعًا دې، جناتو هم څه عجيبه مخلوق دې.

**په مايستنجی به کښې قاعده:** هرهغه څيز چې جامد وی پاک وی نجاست لرې کولې شی ضرر نه رسوی او محترم نه وی اود بل چا حق ورپورې متعلق نه وی استنجاء پې جائز ده. (کذا فی شرح نقايه لملا علي قاری رحمه الله جلد: ۱ ص. ۴۹)

**[۳۵۱] په هډوکی استنجاء کولو سره د نبی عليه السلام د امتی نه بيزاره کيدل**

۳۵۱–()[۱۷] ① وَعَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «يَا رُوَيْفِعُ! لَعَلَّ الْحَيَاةَ سَتَطُولُ بِكَ بَعْدِي، ③ فَأَخْبِرِ النَّاسَ أَنَّ مَنْ عَقَدَ لِحْيَتَهُ، ④ أَوْ تَقَلَّدَ وَتَرًا، ⑤ أَوِ اسْتَنْجَى بِرَجِيعِ دَابَّةٍ، أَوْ عَظْمٍ، ⑥ فَإِنَّ مُحَمَّدًا مِنْهُ بَرِيءٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت رويفع ابن ثابت رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل ② اي

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة ، باب ما ينهی عنه أن يستنجی به (رقم- ۳۶) والنسائی کتاب الزينة/باب عقد اللحية (رقم-۵۰۶۷)

رويفع شايد زما څخه وروسته ستا ژوند دراز (اوږد) وي[٣] نو ته خلق خبردار کړه چې چا په خپله ږيره کې غوټه ولګوله[٢] يا په غاړه کې يې تار واچولو[۵] يا د حيوان نجاست (خاشنړه او پچو وغيره) او هډوکي سره يې استنجاء وکړه[٦] نو محمد ﷺ د هغه څخه بيزاره دي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① سَتَطُولُ: أي سَتَمْتَدُّ: اوږد به شي، دراز به شي. ② عَقَدَ لِحْيَتَهُ: ږيره کښې غوټې اچول ③ تَقَلَّدَ: غاړه کښې څه څيز رازوړندولو ته وائي. ④ وَتَرًا: أي: خَيْطًا: تار په کوم کښې چه تعويذ يا ګنګرو وغيره وي. ⑤ رَجِيع: وَالْمُرَادُ الرَّوْثُ: دې نه مراد سوتې او خاشنړه وغيره دي "رجيع" دَ فعيل په وزن باندې دَ اسم مفعول "مرجوع" په معنى کښې دې، او رجيع په معنى د واپس کيدو سره دہ، ځکه چه دا هم پاکی ګندګئ طرف ته واپس راولی. ⑥ بَرِيءٌ: ويزاره، بې تعلقه.

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ عَقَدَ لِحْيَتَهُ:**

**د عقد لحيه په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① په جاهليت کښې دکافرانوعادت ووچه کوم سړي به واده کولو هغه به په ږيره کښې يوه غوټه لګوله. په دويم واده باندې به ئې دويمه غوټه لګوله دَدې نه منع کړې شو چه دادَ جاهليت يوبيهوده رسم دې اوهغوی سره مشابهت دې.
② په جاهليت کښې به خلقو ږيره راغونډه کړه دَ زنې لاندې به ئې تاؤکړې ساتله دَدې نه منع کړې شوځکه چه په ږيره کښې سنت طريقه دَدې کولاؤ پريخودل دی. نن صبادَ مسلمانانو اوسيکانو په ږيرو کښې هم دغه فرق دې او په دې تناظرکښې دَدې حکم يو عالمي حيثيت جوړيږی او دَ مسلمانانو تعارف په مسنون ږيرې سره کيږی.

**قوله: أَوْتَقَلَّدَ وَتَرًا:**

**د وتر په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دَدې يومطلب دادې چه په جاهليت کښې به خلقودَ بدنظر اومصيبت نه ځان بچ کولودَپاره په غاړه کښې تارونه اومزی اچول اوتعويزونه او غوټې به ئې جوړولې دَاسونواو ماشومانو په غاړو کښې به ئې زوړندولې دَدې نه منع کړې شو ځکه چه په دې کښې
دَعقيدې دَ ضعف اوشرك قوی امکان وو اواهل شرك سره مشابهت هم وو.
② دَ وتر نه دَ ليندو هغه مزی مراد دی کوم چه به دَتسمونه جوړ وو اوهغه به ئې دَ اسونو په غاړوکښې دَ آفاتو لرې کولودَپاره اچول په دې کښې خالص شرك وو نو ځکه منع کړې شو.

**قوله: فَإِنَّ مُحَمَّدًا مِنْهُ بَرِيءٌ:**

**د برائت مفهوم:** يعنی دَهغه سړی نبی اکرم ﷺ او شريعت سره هيڅ واسطه نشته بلکه دَهغوی نه ويزاردی که چرې هغوی داجائزاوحلال ګنړی نوکافرشوګنی صرف په دې يوعمل

کښې دَ رسول الله ﷺ نه ویزاره دی دَ پوره اسلام ویزاری مراد نه ده

**[۳۵۲] په بعضې کارونو کښې د کولو او نه کولو اختیار**

۳۵۲-()[۱۸][۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] ((مَنِ اكْتَحَلَ فَلْيُوتِرْ مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ، وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ، [۳] وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ، مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ، وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ، [۴] وَمَنْ أَكَلَ فَمَا تَخَلَّلَ، فَلْيَلْفِظْ، [۵] وَمَا لَاكَ بِلِسَانِهِ فَلْيَبْتَلِعْ، مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ، وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ،

**ترجمه:** [۱] او ابوهریره ؓ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې رانجه لګوي نو هغه ته پکار دي چې طاق سلایاني ولګوي چا چې داسې وکړل (یعنې طاق سلایاني یي ولګولې) ښه یي وکړل او چا چې داسې ونه کړل نو څه ګناه نشته [۳] او کوم سړي چې استنجاء وکړي نو هغه ته پکار دي چې طاق لوټي استعمال کړي (یعنې دري یا پنځه یا اووه) چا چې داسې وکړل ښه یي وکړل او چا چه داسې ونه کړل نو هم څه حرج نشته. [۴] او کوم سړي چې څه وخوري او کوم شي په غاښ صفا کولو (تومبلو) کې راووځي نو پکار دي چې هغه وغورځوي [۵] او کوم شي چې په ژبې سره راوکاږي نو پکار دي چې هغه تیر کړي چا چې داسې وکړل ښه یي وکړل او چا چې داسې ونه کړل نو څه ګناه نشته

[۱] وَمَنْ أَتَى الْغَائِطَ فَلْيَسْتَتِرْ [۲] فَإِنْ لَمْ يَجِدْ إِلَّا أَنْ يَجْمَعَ كَثِيبًا مِنْ رَمْلٍ فَلْيَسْتَدْبِرْهُ، [۳] فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَلْعَبُ بِمَقَاعِدِ بَنِي آدَمَ، [۴] مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ، وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ)) رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او کوم سړي چې د اودس ماتي د پاره لاړ شی نو هغه ته پکار دي چې پرده وکړي [۲] که څه شي د پردي پیدا نه کې نو کم نه کم شګه (ریګ) جمع کولو سره د هغه ډیرې دي خپل وروسته کړي [۳] ځکه چې شیطان د بني آدم د اودس ماتي اندامونو سره لوبې کوي [۴] چا چې داسې وکړل نو ښه یي وکړل او چا چې داسې ونه کړل نو څه ګناه نشته. (ابوداؤد ابن ماجه دارمي)

**حل اللغات:** ① اكْتَحَلَ: رانجه نې اولګول ② فَلْيُوتِرْ: أَيْ ثَلَاثًا: طاق لګول، دلته د طاق لګولو نه مراد درې خله لګول دی. ③ فَلَا حَرَجَ: أَيْ لَا إِثْمَ: هیڅ باک او ګناه نشته. ④ اسْتَجْمَرَ: أَيْ: اسْتَنْجَى بِحَجَرٍ: چه استنجاء اوکړي په کاڼري، لوټې سره، ⑤ فَقَدْ أَحْسَنَ: أَيْ: فَعَلَ فِعْلًا حَسَنًا: ښه کارئې اوکړو (ثواب به ورته ملاؤ شي) ⑥ تَخَلَّلَ: په ګوته یا ډکې وغیره سره د غاښ نه دخوراک څه څیز راوښکل مراد دی. ⑦ فَلْيَلْفِظْ: أَيْ: فَلْيَرْمِ وَلْيَطْرَحْ: اودې غورځوی ⑧ لَاكَ: أَيْ: مَا أَخْرَجَهُ بِلِسَانِهِ: کوم څه خوراک چه په ژبه راؤباسي، ⑨ فَلْيَبْتَلِعْ: نو تیردې کړي یعنی اودې خوری ⑩ فَلْيَسْتَتِرْ: نو پرده دې اوکړي یعنی ځان دې پټ کړي. ⑪ كَثِيبًا: أَيْ: كَوْمَةً: توپ، ډهیرې، دَ شګو ډیرې او غونډئی مراد ده دې دَپاره چه پرده

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة . باب الاستتار فى الخلاء (رقم- ۳۵) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب الارتياد للغائط والبول (رقم- ۳۳۷)والدارمى كتاب الطهارة/باب فى التستر عند الحاجة (رقم-۶۸۹)

اوشی. ⑫ رَمْل: شره، ⑬ یَلْعَبُ: لوبې کوی، ⑭ مَقَاعِد: د مقعد جمع ده، د کیناستو ځای ته وائی، دلته ترې دبر یعنی شاته شرمګاه مراد دې.

**تسهیلات:**

**قوله: مَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ:**

**د استنجمار درې معانی:** ① استجمار دَرمی جمرات دپاره هم راځی
② په انګیټهئی کښې دَعود اچولو او دَخوشبوکولوپه معنی کښې هم راځی
③ استجمار دَ استنجاء بالحجر په معنی کښې دې دلته ترې هم دا معنی مراد ده.

**قوله: "لَاكَ"**

**په خُله کښې د پاتی پوتی دوه صورتونه:**

① دغابنونو نه راویستلې شوې څیز دې نه خوری ځکه چه داپوتې دَغابنونو په بدبوئی کښې ککړ کیدوسره په زور بهر راویستلې شوې دې. خو خوراک ئې نه دې پکار
② چې کوم پوتې په ژبه خوزولوسره راوباسی هغه دې خوری ځکه چې هغه پاک وی.اود پاک څیز په خوراک کښې څه قباحت نشته.

**قوله: يَلْعَبُ:**

**د یلعب څخه مراد:** یعنی شیطان دَ اودس ماتی کونکی په زړه کښې وسوسه اچوی چه ګوره شاته هغه راغلو دې راغلو او دَ نورو په زړه کښې وسوسه اچوی چه ګوره داځنګه برینډ ناست دې.

**[۳۵۳] په غسل خانه کښې د متیازو کولو ممانعت**

۳۵۳—(¹) [۱۹] ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② «لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي مُسْتَحَمِّهِ، ③ ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ، أَوْ يَتَوَضَّأُ فِيهِ، ④ فَإِنَّ عَامَّةَ الْوَسْوَاسِ مِنْهُ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ، ⑤ إِلَّا أَنَّهُمَا لَمْ يَذْكُرَا ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ أَوْ يَتَوَضَّأُ فِيهِ.

**ترجمه:** ① عبد الله بن مغفل رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② هیڅوک دې په خپله غسل خانه کې متیازي نه کوي ③ چې په هغه کې بیا لمبیږي یا اودس کوي (یعني دا د عقل څخه خلاف ده چې د لمبیدو په ځاي کې متیازي وکړي او بیا هلته لمبږي یا اودس کوي) ④ ځکه چې په دي سره اکثره وسوسي پیدا کیږي. (ابوداؤد ترمذي نسائي) ⑤ ترمذي او نسائي ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ او يَتَوَضَّأُ فِيهِ الفاظ نه دي ذکر کړي.

**حل اللغات:** ① مُسْتَحَمِّهِ: اَلَّذِي يُغْتَسَلُ فِيهِ: مُستحم دا د حَمِیم نه دي، ګرمو اوبو ته وائی، خو مراد ترې

(¹) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة، باب فی البول فی المستحم (رقم- ۲۷) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب کراهیة البول فی المغتسل (رقم -۳۰٤)

غسل خانه ده. ③ عَامَّةَ الْوَسْوَاسِ: أَيْ: أَكْثَرَ وَسْوَاسِ الطَّهَارَةِ: يعنى په اودس او غسل وغيره كښې اكثر وسوسې (په دې وجه پيدا كيږى).

**دراوي مختصر تعارف:**

نوم عبدالله ابوسعيد كنيت.په ۶هجرى كښې مسلمان شوې اوپه كومه غزوه كښې چه ئې شركت كړې وو هغه غزوه حديبيه ده.(۳) په بيعت رضوان كښې هم شريك وو.(۴) خيبر، فتح مكه غزوه تبوك په دې ټولو غزواتوكښې شركت كړې وو او بهادرى ئې خودلې وه. دَ رسول الله ﷺ په ژوندكښې خو په مدينه منوره كښې اوسيدو خوچه كله بصره آباده شوه نو دَ تعليم او تربيت دَ پاره حضرت عمر ﷛ بصرې ته اوليگلو اوترآخرى عمر پورې هم هلته پاتې وو.(۵) دَ بدعاتو نه به ئې ترحده پورې كركه كوله.دَ هغه خوئ په يوه موقع داسې اووئيل چه ما دَخپل پلارنه زيات بدعات بد گڼرونكې بل څوك نه دې ليدلې.(۶)

**وفات:** په ۵۹ يا ۶۰ هجرى كښې هم په بصره كښې په مرض الموت كښې اخته شو نو په آخرى وخت كښې ئې يو څو وصيتونه اوفرمائيل:

① دَ غسل په اوبوكښې كافور ملاوول.

② كفن دَ دوو څادرو او يوقميص نه زيات نه وى.

③ په غسل وركولوكښې صرف صحابه كرام ﷡ دې وى.

④ جنازې پسې شاته اُور مه بلوئ.

⑤ ابن زيات دَ بصرې گورنر دې په جنازه كښې شركت نه كوى.

⑥ دَهغوى دا وصيت هم وو چه جنازه دې ابوبرزه اسلمى ﷛ اوكړى نودَ وفات نه پس په دې ټولو وصيتونو باندې عمل اوكړې شو اوهم په بصره كښې خښ كړې شو(۷)

**مرويات:** دَ هغوى نه ۴۳ احاديث دَ احاديثو په كتابونوكښې ملاويږى.په څلوروكښې بخارى اومسلم دواړه متفق دى.په يوكښې امام بخارى او يوكښې امام مسلم منفرد دى.(۸)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَإِنَّ عَامَّةَ الْوَسْوَاسِ مِنْهُ:

**د عامة لفظ نحوى تحقيق:** عامة د يو څيز لوې حصې يا پورا څيز ته وائى. نحاة دا لفظ د حال په طور استعمالوى. او اضافت سره ددې استعمال نه منى. ليكن صاحب د شريعت افصح العرب ﷺ دا استعمال كړې دې . نو بيا نحاة لره دخبرو كولو گنجائش نشته دې.علامه تفتازانى ﷫ دَ شرح مقاصد په خطبه كښې ليكلى دى چه حضرت عمر فاروق هم دا اضافت سره استعمال كړى دى.

**قوله: الْوَسْوَاسِ مِنْهُ:**

**د وسواس په مصداق کښې څلور اقوال:** ① قلبی وسوسه او حدیث النفس ته وئیلې کیږی.

② د یوقسم جنون دې کوم ته چې مالیخولیا وئیلې کیږی.

③ د دې څه مراد نسیان او هیره ده

④ حضرت شاه انور شاه کاشمیری رحمه الله ددې ترجمه دجناتو چیرچاړ سره کړې ده.

**په مستحم کښې اودس کولو په حکم کښې مذاهب:**

① د ابن سیرین په نیز غسل خانه کښې مطلقًا متیازې کول جائز دی.

② او د څینې علماء کرامو په نیز مطلقًا مکروه دی.

③ دجمهورو په نیز په دې کښې تفصیل دې. که په غسل خانه کښې منفذ وی چې اوبه زر اوځی او زمکه پخه وی نو په دې کښې متیازې کول جائز دی. او که زمکه نرمه ا و کچه ده او متیازې وتلو دپاره لاره منفذ نشته نو په دې کښې متیازې کول مکروه تحریمی دی. څکه چې په بدن څاڅکی پریوزی.

**محاکمه:** محاکمه او فیصله کن خبره داده چې په کوم صورت کښې د څاڅکو پریوتلو اندیښنه وی نو هلته متیازې کول مکروه تحریمی او کوم ځائې کښې چې اندیښنه نه وی نو هلته مکروه تنزیهی دی. څکه چې حدیث پاك کښې د څه تفصیل نه بغیر ممانعت راغلې دې. نو څه نه څه کراهت څخه خارج نه دی. څکه چې دا موجب د نسیان دې. او دې ته تاثیر بالخاصه وئیلې کیږی چې ددې عمل اثر دادې ، اوس چې کله سبب ظاهر وی لکه چې د اوور اثر سیزل دی ، نو دې سبب طرفته نسبت کول جائز دی. او که سبب خفی وی نو دې طرفته نسبت کول جائز نه دی ، بلکه د شرك خطره ده.

**په غسل خانه کښې متیازو کولو ته د شرک وئیلو توجیه:** ((ربنا الله لا شریك له)) دا جمله په مشکوة شریف کښې نشته دې. بلکه ترمذی شریف کښې ده. او دا ابن سیرین رحمه الله ددې روایت آوْریدونه پس ارشاد فرمائیلې ده ، مطلب دادې چې په غسل خانه کښې متیازې کول د وسوسې حقیقي سبب ګرزول شرك دې. او زمونږ رب سره هیڅوك شریك نشته دې. اوس په دې کلام کښې صورةً دَ حدیث څخه معارضه ده. مګر په حقیقت کښې معارضه نه ده. څکه چې دا هډو جائز نه ده. بلکه صحابه کرامو او تابعینو صورةً معارضه هم نه ده برداشت کړې. اوداسې کس سره ئې بائیکاټ کړې دې.

**دامام ابن سیرین د قول په توجیه کښې دوه اقوال:**

① امام ابن سیرین رحمه الله ته شاید حدیث نه وو رسیدلې. په دې وجه ئې داسې اوفرمائیل،

② د دوی د قول مطلب دادې چې که ( بول فی المغتسل ) لره مؤثره حقیقی اوګنړلې شی نو دا

شرك دي. او الله تعالى د شرك څخه پاك دي.

**قوله**: ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ

**کلمه د ثم دپاره د استبعاد**: دې حدیث پاك کښې دا ثم استبعادیه ده چې عجیبه خبره ده اول په دې کښې متیازې کوی. او بیا په دې کښې اودس هم کوی او غسل هم په کښې کوی. لکه څنګه چې آیت ﴿ ثُمَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ ﴾ کښې ثم د استبعاد او تعجب په مقام کښې استعمال شوې ده.

**[۳۵۳] په سورو کښې د متیازو کولو ممانعت**

۳۵۳—()[۲۰] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَرْجِسَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] «لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي جُحْرٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: [۱] عبد الله بن سرجس رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په تاسو کې دې هیڅوك په یو سروي کې متیازې نه کوي. (ابوداؤد، نسائي)

**حل اللغات**: ① جُحْرٍ: الخَرْقُ فِي الجِدَارِ وَالأَرْضِ: په دیوال یا زمکه کښې چه کومه سوره وی هغې ته وائی.

**د راوي مختصر تعارف**:

نوم عبدالله دَپلار نوم سرجس دې. قبیله مزنی سره ئی تعلق وو. هغه ته مخزومی هم وائی دبصرې اوسیدونکې وو. زیات تردَهغوی احادیث هم په بصره کښې موندلې شی.

**مرویات**: دَهغه نه ۱۷ روایتونه نقل دی. دَ دې نه درې په مسلم شریف کښې دی. دَ نورو معلوماتو دپارهٔ اوګورئی

① تلقیح لابن جوزی ② تقریب لابن حجر ③ ابن حزم فی سیرته وغیره

**تسهیلات**:

**قوله**: فِي جُحْرٍ: په سوره کښې دَمتیازوکولو ممانعت څکه دې چه هلته ډیر خطرات دی مثلاً مار لړم وغیره دَ سورې نه راوځی تك هم ورکولې شی بل په دې سورو کښې اکثردَ پیریانو کورونه وی بیاهغه په تکلیف ورکولوباندې راځی لکه چه حضرت سعدبن عباده رضی الله عنه نه هم دغه شان واقعه کښې پیریانو په غشی ویشتلې او شهید کړې ئی وو او بیا په غائبانه توګه اووئیلې شو.

نحن قتلنا سید الخزرج سعد بن عبادة      رميناه بسهم فلم نخطئ فؤاده

یعنی مونږ دَ قبیله خزرج سردار سعدبن عباده قتل کړو مونږ هغه په داسې غشی اوویشتلو چه نیغ دَهغه په زړه کښې ورخښ شو.

[۱] اخرجه ابوداود کتاب الطهارة ، باب النهی عن البول فی الجحر(رقم - ۲۹) والنسائی کتاب الطهارة/باب کراهیة البول فی الجحر(رقم-۳٤)

**[۳۵۵] د درې لعنتي ځيزونو څخه د ځان ساتلو حکم**

۳۵۵-() [۲۱] ۱ وَعَنْ مُعَاذٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ («اتَّقُوا الْمَلَاعِنَ الثَّلَاثَةَ ۳ الْبَرَازَ فِي الْمَوَارِدِ، ۴ وَقَارِعَةِ الطَّرِيْقِ، وَالظِّلِّ» "رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ حضرت معاذ رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ تاسو د دريو ځيزونو څخه ځان وساتئ چې د لعنت سبب دي. ۳ ① په ګودرونو باندې استنجاء (يعني متيازې يا غټ اودس ماتي كولو څخه) ۴ ② د لارې په مينځ كې ③ او په سايه (سورې) كې د متيازو او اودس ماتي كولو څخه. (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① الْمَلَاعِنَ: أَيْ: مَجَالِبَ اللَّعْنِ: كوم ځيزونه چه د لعنت سبب جوړيږي يعنی خلق به پرې لعنت وائی. ② الْبَرَازَ: أَيْ: التَّغَوُّطَ وَالْبَوْلَ: وړوكې يا غټ اودس ماتي كول. ③ الْمَوَارِدِ: د اوبو كوم ځاى ته چه خلق ځى راځى يعنى ګودر يا چينه، ④ قَارِعَةِ الطَّرِيْقِ: أَيْ: وَسَطِهِ: د لارې مينځ.

**[۳۵۶] د قضاء حاجت په درميان كښې د دووه كسانو په خبرو كولو د الله تعالى غصه كيدل**

۳۵۶-() [۲۲] ۱ وَعَنْ أَبِي سَعِيْدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ («لَا يَخْرُجِ الرَّجُلَانِ يَضْرِبَانِ الْغَائِطَ ۳ كَاشِفَيْنِ عَنْ عَوْرَتِهِمَا يَتَحَدَّثَانِ، ۴ فَإِنَّ اللّٰهَ يَمْقُتُ عَلَى ذٰلِكَ») رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُوْدَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ ابوسعيد خدري رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ يو ځاى دي دوه سړي د اودس ماتي د پاره داسې نه كيني ۳ چې دواړو خپل شرمګاوي خلاصي كړي وي او په خپل مينځ كې خبري كوي ۴ ځكه چې په دي سره الله جل جلاله غضب ناكه كيږي. (احمد ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① لَا يَخْرُجِ: نه دې اوځی يعنی په صحرا كښې دې اودس ماتی دپاره نه كينی، ② يَضْرِبَانِ: ضرب فی الارض أي ذهب: د تللو په معنی كښې دې، هر كله چې دې سره الغائط راغلو نو دا د يفعلان په معنی شو. أَيْ: يَفْعَلَانِ: يعنی اودس ماتی ته يو ځاى كيناستل مراد دی. ③ الْغَائِطَ: ډک اودس ماتې كول، ④ كَاشِفَيْنِ: چه ښكاره كړې وی، بربنډ وی، ⑤ عَوْرَتِهِمَا: پټ د پردې ځايونه يعنی شرمګاهونه، ⑥ يَتَحَدَّثَانِ: خپل مينځ كښې ئې خبرې كولې. ⑦ يَمْقُتُ: أَيْ: يَغْضَبُ: غصه كيږی.

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة ، باب المواضع التى نهى النبى صلى الله عليه وسلم عن البول فيها (رقم- ۲۶) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها /باب النهى عن الخلاء على قارعة الطريق (رقم- ۳۲۸)

(۲) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة ، باب كراهية الكلام عند الحاجة (رقم- ۱۵) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها /باب النهى عن الاجتماع على الخلاء، والحديث عنده (رقم- ۳۴۲)

**تسهيلات:**

**قوله: يَضْرِبَانِ الْغَائِطَ:** خيني علماء كرامو يضربان د تللو په معنى كښې اخلى. ليكن الغائط ئې للغائط منصوب بنزع الخافض منلې دې.نو معنى دا شوه چې دواړه يو ځائې اودس ماتې دپاره لاړل او شرمګاهونه ئې ښكاريدل او كيناستل.

**قوله: يَتَحَدَّثَانِ:** دا دالله تعالى د غضب موجب دى. په دې په څه زمانه كښې سړى هم اخته وو. ليكن نن سبا خو په كلو كښې ښځې هم يو ځائې كينى او خبرې كوى. او يو بل نه شرم نه كوى. دا ډيره د بې حيايئ خبره ده. او دالله تعالى غضب ته دعوت وركوى.

**[۳٥٤] بيت الخلاء ته د داخليدو دعا**

٣٥٤-()[٢٣] ①وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②«إِنَّ هَذِهِ الْحُشُوشَ مُحْتَضَرَةٌ،③ فَإِذَا أَتَى أَحَدُكُمُ الْخَلَاءَ، فَلْيَقُلْ:④ أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت زيد بن ارقم ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② بيت الخلاوي د شيطانانو او د جناتو د حاضريدو ځايونه دي③ په تاسو كې چې څوك كله بيت الخلاء ته ځي نو هغه ته پكار دي چې دا دعا كوي.④ أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ، يعنى زه د خبيث نر او ماده جناتو څخه د الله جل جلاله پناه غواړم. (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① الْحُشُوشَ: د حَشّ جمع ده، وَهُوَ الْكَنِيفُ: اصل كښې حَش د كجورو اونو يعنى باغ ته وائى چه خلقوبه پكښې اودس ماتې كولو، بيا بيت الخلاء دپاره استعمال كړې شو. ② مُحْتَضَرَةٌ: أَيْ: بِحَضْرَةِ الْجِنِّ وَالشَّيَاطِينِ: يعنى ګنده ځايونه دى، جنات او شياطين ورته راځى او انسانانو ته ضرر او تكليف رسوى، ③ الْخُبُثِ: د خبيث جمع ده، وَهُوَ الْمُؤْذِي مِنَ الْجِنِّ وَالشَّيَاطِينِ: ضررى جنات او شيطانانو ته وائى كوم چه مذكر وى. ④ الْخَبَائِثِ: دخبيثة جمع ده، ضررى جنات او شيطانانو ته وائى كوم چه مؤنث وى.

**د راوي مختصر تعارف:**

زيدنوم ابوعمر كنيت قبيله خزرج سره ئې تعلق وو. پلار ئې په وړوكوالى كښې وفات شوې وو نودَهغه خپلوان تره حضرت عبدالله بن رواحه ﷺ دَهغه پالنه اوكړه اوهم دا دَ حضرت زيد ﷺ په اسلام كښې داخليدو ذريعه جوړه شوه. دَماشوموالى په وجه ئې په غزواتو كښې شركت اونه كړې شو دَ ټولونه اول غزوه خندق وه چه په كښې شركت اوكړو دې پخپله وائى چه ما په ۱۷ غزواتوكښې شركت كړې دې. دَ رسول الله ﷺ په دربار

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة ، باب ما يقول الرجل إذا دخل الخلاء (رقم- ۶) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها باب الفطرة (رقم-۲۹٤)

کښې مقرب وو. کله چه به هغه بیمارشو نو حضورﷺ به دَ هغه تپوس له تشریف اوړلو. یوځل ئی په سترګه دردوو رسول الله ﷺ دَ تپوس دپاره تشریف یوړو دَ صحت پوښتنې کولو نه پس ئی تپوس اوکړو که دا بیماری دې باقی پاتې کیده نو څه به دې کول؟ عرض ئی اوکړوصبر به مې کولواوڈ اجر امیدوار به ووم. وئی فرمائیل که داسې دې کړې وې نو دَالله تعالی په وړاندې به بې ګناه شوې وې. (مسنداحمد)

**وفات:** ۶۸ھ کښې کوفه کښې وفات شو داڈ مختار بن ابی عبیدثقفی دور وو.

**مرویات:** دَ هغه نه دَ روایاتوشمیر ۹۰ دې. دَ نورو معلوماتودپاره اوګورئی ①طبقات ابن سعد ۱۰/۶ ②مسنداحمد ۳۶۷/۴ ③اصابه ④اسدالغابة وغیره.

[۳۵۸]بیت الله ته داخلیدو نه وړاندې بسم الله وئیل

۳۵۸—(۱)[۲۴] [۱]وَعَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲]«سَتْرُ مَا بَيْنَ أَعْيُنِ الْجِنِّ وَعَوْرَاتِ بَنِي آدَمَ إِذَا دَخَلَ أَحَدُهُمُ الْخَلَاءَ [۳] أَنْ يَقُولَ بِسْمِ اللّٰهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَإِسْنَادُهُ لَيْسَ بِقَوِيٍّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت علي کرم الله وجهه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] هرکله چې یوسړي په پاخانه کې داخلیږي نو د جن (شیطان) د سترګو او د انسان د عورت په مینځ کې پرده دا ده [۳] چې بِسْمِ الله اووائي، دا حدیث ترمذي روایت کړي او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دي او د دې سند قوي نه دي.

**حل اللغات:** ①سَتْرٌ: وَهُوَ الْحِجَابُ: پرده، ②عَوْرَاتٍ: د عورة جمع ده، هغه ځایونه چه دهغې په ښکاره کولو انسان ته شرم ورځي یعنی شرمګاهونه.

[۳۵۹]بیت الخلاء څخه دوتلو نه پس غفرانک وئیل

۳۵۹—(۲)[۲۵] [۱]وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲]«كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ قَالَ: غُفْرَانَكَ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها فرمایي[۲] چې رسول ﷺ چې به د اودس ماتي ځائ څخه را وتلو نو فرمایل به یې غُفْرَانَكَ یعنی اې الله جل جلاله زه ستا د بخښش غوښتونکې یم. (ترمذي، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات:** ①غُفْرَانَكَ: دا مفعول به دې د فعل مقدر دپاره یعنی: أي أَسْأَلُكَ غُفْرَانَكَ: زه ستانه معافی غوارم اې الله.

(۱) اخرجه الترمذی کتاب السفر/باب ما ذکر من التسمیة عند دخول الخلاء (رقم- ۶۰۶) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها باب ما یقول الرجل إذا دخل الخلاء (رقم- ۲۹۸)

(۲) اخرجه الترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما یقول إذا خرج من الخلاء (رقم-۷) وابوداود کتاب الطهارة ، باب ما یقول الرجل إذا خرج من الخلاء (رقم- ۳۰) والدرامی کتاب الطهارة/باب ما یقول إذا خرج من الخلاء(رقم-۷۰۷)

**تسهیلات:**

**قوله: غُفْرَانَكَ:** صاحب د کافیه وائی چې په داسې مقاماتو کښې د فعل حذف کول واجبیږي

**سوال:** د دې عمل نه پس داستغفار ضرورت ولې راپیښ شو آیا دې بیت الخلاء ته لاړو او هلته ئې څه ګناه اوکړه؟

**دوه جوابونه:** ① دخوراك کولو نه پس هضمیدو اودس ماتې په ښه طریقه کیدلو سره انسان ته ډیر راحت ملاویږي، نو په دې ډیر شکر پکار دی. په دې لوئې شکر کښې د کوتاهۍ په وجه استغفار کوی چې که د کوتاهۍ څه اثر پاتې شوی وی چې هغه ختم شي. یا بیت الخلاء کښې قلبي ذکر جاري وو ، په هغې کښې که غیراختیاري طور سره څه بې ادبي شوې وی نو په هغې استغفار کوی.

② تر کومې پورې انسان په بیت الخلاء کښې وی نو هغه د شیطان په ګوانډ کښې وی او دنته د ذکر کولو نه محرومه وی. نو پدې کوتاهۍ باندې استغفار کوی.

**[۳٦۰] د قضاء حاجت نه پس اوبو سره استنجاء کول**

۳٦۰—(۱)[۲٦] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: ②«كَانَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-إِذَا أَتَى الْخَلَاءَ أَتَيْتُهُ بِمَاءٍ فِي تَوْرٍ أَوْ رَكْوَةٍ، ③ فَاسْتَنْجَى، ثُمَّ مَسَحَ يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ، ④ ثُمَّ أَتَيْتُهُ بِإِنَاءٍ آخَرَ، فَتَوَضَّأَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى الدَّارِمِيُّ وَالنَّسَائِيُّ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** ① ابوهریره ﷛ فرمایي ② چې رسول ﷺ چې به اودس ماتي ته تلو نو ما به ورته په لوښي یا د څرمني په ورکوټي لوښي کې اوبه راوړلې ③ حضور ﷺ به په هغې سره استنجاء کوله بیا به یې لاس په زمکه مږلو ④ بیا د دې څخه وروسته به ما (د اوبو) بل لوښي راوړو او حضور ﷺ به اودس کولو. (دارمي، نسائي)

**حل اللغات:** ① تَوْرٌ: إِنَاءٌ مِنْ صُفْرٍ أَوْ حِجَارَةٍ: دَ پیتلو یا د کاڼړي لوښي او لوټې ته وائي ② رَكْوَةٌ: إِنَاءٌ صَغِيرٌ مِنْ جِلْدٍ: د څرمنې نه جوړشوې وړوکي لوخي ته وائي، کومې ته چه چهاګل وائي ③ مَسَحَ: اوئې مږلو (لاس خپل).

**تسهیلات:**

**قوله: فِي تَوْرٍ:** "أو" دا لفظ دَ راوي دَ شك په بنیاددې چه دَاوبو هغه لوښې دَ پیتلو وو که دکاڼړي یا هغه دَ څرمن نه جوړشوې وو کوم ته چه چهاګل وائي دلته او دَتنویع دَپاره هم اخستې شي چه هغه لوښې دکوم یوقسم وو

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة . باب الرجل یدلک یده بالأرض إذا استنجی (رقم- ٤٥) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب من دلک یده بالأرض بعد الاستنجاء (رقم-۳٥۸) والنسائی کتاب الطهارة/باب دلک الید بالأرض بعد الاستنجاء(رقم-٥۱) والدرامی کتاب الطهارة/باب فیمن یمسح یده بالتراب بعد الاستنجاء(رقم-۷۰٥)

**قوله: ثُمَّ مَسَحَ:** يعنى دَ بدبوئى لرې كولودپاره به داستنجاء نه پس رسول الله ﷺ په زمكه باندې لاس راښكلو. داد امت دتعليم دپاره ووګنى دحضورپاك په قضاء حاجت كښې بدبوئى نه وه.

**قوله: بِإِنَاءٍ آخَرَ:** علماؤليكلى دى چه كه استنجاء او چاراندام دپاره جدا جدا دوه لوښى وى نو دابهتر اومستحب دى دلته هم دې طرف ته اشاره ده. يادا چه په رومبى لوښى كښې هم دومره اوبه وې په كوم سره چه به صرف استنجاء كيدلې شوه په دې وجه به د چاراندام دپاره نوې لوښې راوړلې شو.

**[۳۶] د اودس نه پس په شرمګاه باندې اوبه چړكاؤ كول**

۳۳۔() [۲۷] ① وَعَنِ الْحَكَمِ بْنِ سُفْيَانَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا بَالَ تَوَضَّأَ وَنَضَحَ فَرْجَهُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت حكم بن سفيان رضي الله عنه راوي دي ② چي رسول الله ﷺ به متيازي وكړلي نو اودس به يې كولو او په خپل عورت باندې به يې څاڅكي كول. (ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** ① نَضَحَ: أَيْ رَشَّ: اوئې شيندلې، چړكاؤ ئې كړې اوبه، ② فَرْجَهُ: په خپل عورت باندې (يا په لنګ باندې).

**تسهيلات:**

**قوله: وَنَضَحَ فَرْجَهُ:** ددې رومبې اوواضح مطلب دادې چه كله اودس اوكړئى نومخامخ د پرتوګ خختګ دې په دې باندې د اوبوچړكاؤ اوكړه چه دمتيازود څاڅكى وسوسه نه راځى اوبه مزه مزه سرې شكى اووسواسى جوګړنه شى. نوچه كله دده شك راځى چه دا لوندوالې دمتيازود څاڅكى دې نوهغه به وائى چه دا خو چڼركى دى كوم چه ماأوس اچولى دى. دا انتضاح داودس نه فارغيدونه پس دى په راتلونكواحاديثوكښې هم ددې ذكر دې. د صوفياؤ په نيزددې نوم "بل السراويل" دې په دې عمل سره وسوسه ختميږى. بعضې په نضح سره په شرمګاه باندې د چڼركاؤ كولو مطلب اخذكړې دې، دې دپاره چه په دې سره د متيازو څاڅكى بندشى. بهرحال كوموخلقوته چه په يقينى توګه د څاڅكى راتلو بيمارى ده هغه دې داسې نه كوى بلكه د څاڅكى د بنديدو د يقين پورې دې انتظار اوكړى.

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة . باب الرجل يدلك يده بالأرض إذا استنجى (رقم- ۱۶۶) وابن ماجة كتاب باب ما جاء في الوتر بركعة (رقم) ۴۶۱ والنسائي كتاب الطهارة/باب النضح (رقم-۱۳۴)

## [٣٣] د شپې په لوښي کښې د متيازو کولو جواز

٣٣٣—() [٢٨] ① وَعَنْ أُمَيْمَةَ بِنْتِ رُقَيْقَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ②«كَانَ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَدَحٌ مِنْ عَيْدَانٍ تَحْتَ سَرِيرِهِ ③ يَبُولُ فِيهِ بِاللَّيْلِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت اميمه بنت رقيقه ﷞ فرمايي ② چه د رسول ﷺ د لرگي يوه پيالي (کاسه) وه چې د حضور ﷺ د کټ لاندي به پرته وه ③ حضور ﷺ به د شپې (د يخني وغيره په بنا ياد تکليف او پريشاني په وجه به يي) په هغه کې متيازې کولي. (ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** ① قَدَحٌ: د لرگي غټه پيالۍ، کاسه، ② عَيْدَانٍ: دا د عود جمع ده، وَهُوَ الْخَشَبُ: لرگی ته وائي، ③ سَرِير: کټ.

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنْ عَيْدَانٍ: دا لفظ صاحب ازهار دَ عودنه اخستې دې يعنی دا پياله دَ يو لرگی نه جوړه شوې وه. علامه ميرک ﷫ هم دغه وئيلی دی چه عيدان دَ عودجمع ده اودَعودنه مراد لرگې دې. علامه طيبی ﷫ فرمائی چه دَ لرگی دَمختلفو اجزاؤ دَ وجې نه دَجمع کلمه راوړلې شوې ده. په دې ټولو صورتونوکښې به عيدان دَعين په کسرې سره وی. ملاعلی قاری ﷫ فرمائی چه محققينوکومه خبره ليکلې ده هم دغه صحيح ده اوهغه داچه عيدان دَعين په فتح سره دې کسره سره نه دې. چنانچه صاحب قاموس ليکلی دی عيدان په فتح سره دکهجورې اوږدې ونې ته وائی دَدې مفرد عيدانه دې اوهم دَدې دَلرگی نه هغه پياله جوړه کړې شوې وه.

**قوله:** تَحْتَ سَرِيرِهِ: دَدې قسم احاديثو باندې بعضې خلق شک کوی يائی عجيبه گنړې حالانکه هغوی له داسوچ پکاردې چه دَحضورپاک پوره دنيا دښمنه وه دَحضورپاک ته دَ شپې په راوتلو کښې څومره خطره وه په دې وجه که حضورپاک دَمتيازو کولوانتظام په خپل کورکښې دننه اوکړو نو په دې کښې څه حيرانتياده. آيا نن صبا خلق په څومره اوچتو کمروکښې باتهروم نه جوړه وی؟ چرته چه متيازې نه بلکه غټ اودس ماتې کوی. بل دَ شپې په وتلوکښې دَ يخنئی څومره تکليف وو اودَ مارلړم دَ ټک ورکولو ويره څومره يقينی وو اوکيدې شی چه دا معامله دَبيمارئی دَ وخت وی نوبياخو څه خبره نشته. بهرحال دَدې وجوهاتودَ وجې نه به دَ حضورپاک دَ کټ لاندې لوښې کيخودلې شو اوسحربه دامتيازې غورزولې شوې صاحب مظاهرحق ليکلی دی چه چا په غلطئی سره دامتيازې يوخل

(١) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة . باب فى الرجل يبول بالليل فى الإناء ثم يضعه عنده (رقم- ٢٤) والنسائى كتاب الطهارة . باب البول فى الإناء (رقم- ٣٢)

ځکلې وې نودَهغه دَ بدن دَ خوشبوئی راتلله. دَ سېږ په لفظ نه ثابته شوه چه په کتې کښې اوده کیدل جائزدی حضورپاك کتې استعمال کړې دې اګرچه دا کله کله شوی دی.

**[۳۳] په ولاړه د متیازو کولو ممانعت**

۳۳ـ()[۲۹] [۱]وَعَنْ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲]«رَآنِي النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَنَا أَبُولُ قَائِمًا، فَقَالَ: [۳](يَا عُمَرُ! لَا تَبُلْ قَائِمًا) فَمَا بُلْتُ قَائِمًا بَعْدُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. [۴](قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى: قَدْ صَحَّ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمر فاروق رضی الله عنه فرمايي[۲] چه حضور ﷺ يوه ورځ زه په ولاړه متيازو كولو باندې وليدم نو وي وفرمايل[۳] اي عمر رضی الله عنه! په ولاړه متيازې مه كوه، د هغه ځخه وروسته ما هيڅ كله په ولاړه متيازې ونه كړلې، ابن ماجه ترمذي،[۴] امام محي السنة رحمه الله فرمايي د حضرت حذيفه رضی الله عنه ځخه منقول دي چې حضور ﷺ د يوقوم ډيران (انبار) ته ورغلې او هلته يې په ولاړه متيازې وكړلې، بخاري او مسلم، ويل كيږي چې دحضور ﷺ دا فعل په ولاړه متيازې كول د ځه عذر په بناء وو.

**قوله: يَا عُمَرُ! لَا تَبُلْ قَائِمًا:**

**دعمر رضى الله عنه په ولاړه د متيازو كولووجه:** عربو به په ناسته متيازې نه كولې. او دې ته به ئې د ښځو عمل وئيلو. او د سړو اوچتوالې او شامت به ئې په دې كښې ګنړلو چې هغوئ دې په ولاړه متيازې كوى. هم ددې اصولو لاندې حضرت عمر فاروق رضى الله عنه په ولاړه متيازې كولې. حضور اكرم صلى الله عليه وسلم چې دې اوليدو نو منع ئې كړو. حضرت عمر فاروق رضی الله عنه فرمائي چې بيا ټول عمر ما هيڅكله هم په ولاړه متيازې اونه كړې.

**په ولاړه د متيازو كولو په كراهت كښې مذاهب:**

په متفقه طور سره په ولاړه متيازې كول مكروه دى خو مكروه په نوعيت كښې اختلاف دې.

① د ځينې علماء كرامو په نيز مكروه تحريمى

② د ځينو په نزد مكروه تنزيهى دى. ضابطه او قاعده داده أو كه چرته دنبى اكرم ﷺ ځخه په ولاړه دمتيازو كولو ذكر راغلې دى نو هغه به په عذر حمل كيږى امام احمد رحمه الله ځخه دَ جواز يو قول نقل دې، پورته چې كومه مسئله بيان شوه دا د جمهورو مسلك دې ، حضرت شاه انورشاه كاشميرى رحمه الله فرمائي چې په ولاړه متيازې كول اوس د كافرانو شعار دې لهذا دا حرام دى ، مزيد تفصيل دې پسې حديث مبارك كښې اوګورئى .

[۱] اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ۱۰/ ۱۷ وابن ماجة فى السنن رقم الحديث ۳۰۵

### [۳۴۳] په ولاړه د بولو کولو ثبوت

۳۶۴-()[۰] ⓵عَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ⓶«أَتَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سُبَاطَةَ قَوْمٍ، فَبَالَ قَائِمًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. قِيلَ: كَانَ ذَلِكَ لِعُذْرٍ.

**ترجمه:** ⓵ د حضرت حذيفه رضى الله عنه څخه روايت دې فرمائى ⓶ چې نبى عليه السلام د څه خلقو ډيران ته تشريف يوړلو نو په ولاړه ئې متيآزي اوكړې.

**حل اللغات:** ①سُبَاطَةُ: هِيَ الْمَزْبَلَةُ وَالْكُنَاسَةُ: ډيران، د خزلې او ګند غورځولو ځائې.

**نوټ:** ددې حديث وضاحت دې څخه وړاندې حديث نمبر ۳۶۳ کښې تيرشوې دې.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۳۶۵] د نبى عليه السلام هميشه دپاره په ناسته متيازې كول

۳۶۵-()[۳۰] ⓵عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ⓶«مَنْ حَدَّثَكُمْ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَبُولُ قَائِمًا فَلَا تُصَدِّقُوهُ ⓷مَا كَانَ يَبُولُ إِلَّا قَاعِدًا». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ⓵ بي بي عائشه صديقه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي ⓶ كوم سړي چې دا حديث بيان كړي چې حضور ﷺ په ولاړې متيازې كولي نو هغه رښتيا مه ګڼئ ⓷ حضور ﷺ به په ناسته متيازې كولي. (احمد، ترمذي، نسائي)

**تسهيلات:**

**قوله: فَلَا تُصَدِّقُوهُ:**

**په حديثونو كښې تعارض:** په دې روايت كښې او د حضرت حذيفه رضی الله عنه د سباطة قوم والا روايت كښې په ظاهره تعارض دې. په هغې كښې د حضرت نبى كريم ﷺ څخه په ولاړه د متيازو كولو عمل منقول دې. او د لته حضرت عائشه صديقه رضى الله عنها بالكل ددې نفى كوى؟

**د تعارض درې جوابونه:**

①حضرت عائشې رضى الله عنها د عادت متعلق فرمائيلى دى او د حضرت حذيفه رضی الله عنه

(۱) اخرجه البخارى كتاب الوضوء/باب البول قائما وقاعدا(رقم-٢٢٤) ومسلم كتاب الطهارة باب المسح على الخفين (رقم-٧٣ - (٢٧٣) وابوداود كتاب الطهارة ، باب البول قائما(رقم- ٢٣) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فى البول قائما (رقم- ٣٠٥) والترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الرخصة فى ذلك (رقم- ١٣) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب فى البول قاعدا (رقم-٣٠٧) والنسائى كتاب الطهارة/باب الرخصة فى ترك ذلك (رقم-١٨)

(۲) اخرجه الترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب النهى عن البول قائما (رقم- ١٢) والنسائى كتاب الطهارة/باب البول فى البيت جالسا (رقم-٢٩) واحمد فى المسند ٦/ ١٩٢

روایت د یو نادرې واقعې متعلق دې. او نادر د معدوم په حکم کښې وی
② حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها د خپلو معلوماتو او د کور د عادتونو او اعمالو متعلق فرمائیلی دی. نو هغه خو پخپل ځائې صحیح دی. او دحضرت حذیفه ﷺ دَ حدیث پاك تعلق د بهرنی ماحول سره دې. هغه پخپل ځائې صحیح دې.
③ د حضرت حذیفه ﷺ روایت په استثنائی صورت باندې محمول دې او حضرت عائشه رضی الله عنها قاعده او کلیه بیان کړې ده ، نو په دې کښې هیڅ تعارض نشته دې

**د نبی علیه السلام په ولاړه متیازو کولو کښې اقوال:**

① نبی علیه السلام په ولاړه متیازې د بیان جواز دپاره کړې وو اګر چې کراهت تنزیهی وی ځکه چې د امت د سهولت دپاره کله کله نبی کریم ﷺ کراهت تنزیهی والاکار کړې دې چې هسې نه خلق ئې حرام او نه ګنړی نو نبی کریم ﷺ دپاره کراهت هم نه وو.
② د نبی کریم ﷺ په ځنګون کښې تکلیف وو نو په ناسته متیازې کول ورته مشکل وو ،
③ د ناستې ځائې نه وو نو مجبوری وه، ځینو وئیلی دی چې دَ نبی کریم ﷺ په ملا مبارکه کښې تکلیف وو ، او ددې درد علاج په ولاړه متیازو کولو کښې وو. [الکاشف: ۵۸]

**[۳۶۶] د اودس په باره کښې د حضرت جبریل هدایت**

۳۶۶—(١) [٣] ①وَعَنْ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②(«أَنَّ جِبْرِيلَ أَتَاهُ فِي أَوَّلِ مَا أُوحِيَ إِلَيْهِ، ③فَعَلَّمَهُ الْوُضُوءَ وَالصَّلَاةَ، ④فَلَمَّا فَرَغَ مِنَ الْوُضُوءِ، ⑤أَخَذَ غُرْفَةً مِنَ الْمَاءِ ⑥فَنَضَحَ بِهَا فَرْجَهُ») رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** ① او زید بن حارثه ﷺ د حضور ﷺ ځخه روایت کوی ② چې جبرایل ﷺ د ټولو ځخه د مخکښې وحي په موقع حضور ﷺ ته تشریف راوړو نو حضور ﷺ ته یې اودس کول وښودل بیا یي ورته مونځ کول وښودل ④ بیا چې د اودس ځخه فارغه شو ⑤ نو یو لپه اوبه یې واخستې ⑥ او هغه یې په خپل عورت باندې (په کپړو) وشیندلې. احمد دارقطني.

**حل اللغات:** ① غُرْفَةً: لپه، چونګ، ② فَنَضَحَ: أَيْ وَرَشَّ: اونې شیندلې، چړکاؤ ئې کړې اوبه، ③ فَرْجَهُ: په خپل عورت باندې (یا په لنګ باندې).

**د راوي مختصر تعارف:**

د راوی نوم اسامه کنیت ابومحمد لقب حب رسول ا لله د پلار نوم ئې زید وو.د مور نوم ئې برکه و.د بعثت نه اووه کاله وړاندې په مکه کښې پیدا شوې وو.د دوی پلار د نبی کریم ﷺ متبنی (په ځوئی توب نیولې) وو.د دوی د مور تربیت هم نبی کریم ﷺ په ماشوموالی کښې کړې وو.د دې وجې هغه هم د نبی کریم ﷺ ډیره خوښه وه.

(۱) اخرجه ابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/بباب ما جاء في النضح بعد الوضوء (رقم- ۴۶۲) واحمد في المسند ۴/ ۱۶۱

د مکې په فتح کښې اسامه شریک وو.او د نبی کریم ﷺ سره سور وو.د حضرت بلال،عثمان بن طلحه رضي الله عنه سره حضرت اسامه هم خانه کعبې ته داخل شوی وو.(۲)

نبی کریم ﷺ د یوې نه زیاتې سریې د حضرت اسامه په امارت کښې لیګلې وې په دې کښې اهم سریه هغه وه په کومه کښې چه اکابر صحابه کرام رضي الله عنهم هم وو.او دا د نبی کریم ﷺ د ژوند آخری سریه وه.

د نبی کریم ﷺ د وفات نه پس حضرت عمر رضي الله عنه خو به هم حضرت اسامه سره ډیره مینه کوله اود خپل خوئي عبدالله وظیفه ئې دوه نیم زره او د حضرت اسامه وظیفه ئې درې زره مقرر کړې وه او فرمائیل ئې چه نبی کریم ﷺ دې ستا نه زیات خوښول ځکه ما دده وظیفه پنځه سوه درهم زیاته مقرر کړې ده (۳)

دحضرت امیرمعاویه رضي الله عنه او حضرت علی رضي الله عنه په جنګ کښې دوی بیخی یو طرف ته وو.د چا طرفداری ئې نه وه کړې (۱)

علماء فرمائی چه د حضرت اسامه چه په دربار رسالت کښې کوم مقام وو.هغه بغیر داستثناء نه د بل صحابی نه وو.په یوه موقع باندې فرمائی چه اسامه زما د ټولو خلقو نه زیات خوښ دې (۲)

یوځل حضرت اسامه په درشل باندې راپریوتلو او مخ ئې زخمی شو.نبی کریم ﷺ حضرت عائشې رضي الله عنها ته اوفرمائیل د ده وینه پاکه کړې هغه لږه کرکه غوندې اوکړه نو نبی کریم ﷺ په خپله ورپاسیدل هغه ئې پاکه کړه او خپلې لیاړې ئې پرې اولګولې (۳)

**وفات:** د حضرت امیر معاویه رضي الله عنه د امارت په آخری زمانه کښې په ۵۴ هجری کښې په مدینه کښې وفات شوې وو.(۴) په دغه وخت کښې د دوی عمر شپېته کاله وو.

**مرویات:** د دوی نه ۱۲۸ روایات منقول دی په کومو کښې ۱۵ په بخاری اومسلم دواړو کښې دی او ددې نه علاوه په دوو دوؤ کښې بخاری او مسلم منفرد دی.

**[۳٦۷]پر شرمګاه باندې دوسوسو د دفع کولو د پاره اوبه شیندل**

۳٦۷-(۱) [۳۲] ⑴وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⑵«جَاءَنِي جِبْرِيلُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ! إِذَا تَوَضَّأْتَ فَانْتَضِحْ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ⑶وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَسَمِعْتُ مُحَمَّدًا-يَعْنِي الْبُخَارِيَّ-يَقُولُ:⑸الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْهَاشِمِيُّ الرَّاوِي مُنْكَرُ الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** ⑴ او ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل⑵ ماته جبرایل علیه السلام راغې هغه اوویل اې محمد ﷺ ⑶ کوم وخت چې ته اودس وکړې نو لږ شان اوبه په عورت

(۱) اصابه (۲۹۱۱)- (۲)مستدرک (۵۹٦۱۳)- (۳) طبقات ابن سعد (۴۳۱۴)- (۴) استیعاب (۲۹۱۱)-

(۲) اخرجه الترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی النضح بعد الوضوء (رقم- ۵۰) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/بباب ما جاء فی النضح بعد الوضوء (رقم- ۴٦۳)

باندي د وسوسو د دفع كولو د پاره) اوشيندى (اوپاشى) ترمذي،۴ او امام ترمذي فرمايي دا حديث منكر دي او ما د محمد رحمه الله (امام بخاري رحمه الله) څخه دا اوريدلي دي ۵ چې د دې حديث راوي حسن بن علي هاشمي منكر الحديث دي

**حل اللغات:** ① فَانْتَضِحْ: أَيْ فَرُشَّ الْمَاءَ عَلَى الْفَرْجِ أَوِ السِّرْوَالِ: يعنى په عورت يا لنګ باندې معمولي شان اوبه چړكاؤ كوه.

**[۳۶۸] د هر وخت متيازو نه كولو څخه روسته د اودس كولو عدم وجوب**

۳۶۸ ــ (١) [۳۳] ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ۲ «بَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَامَ عُمَرُ خَلْفَهُ بِكُوزٍ مِنْ مَاءٍ ۳ فَقَالَ: مَا هٰذَا يَا عُمَرُ؟ فَقَالَ: مَاءٌ تَتَوَضَّأُ بِهِ. ۴ قَالَ: (مَا أُمِرْتُ كُلَّمَا بُلْتُ أَنْ أَتَوَضَّأَ وَلَوْ فَعَلْتُ لَكَانَتْ سُنَّةً») رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چه (يو خل) حضور ﷺ متيازي وكړلي حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د اوبو لوټه اخستو سره وروسته ودريدلو ۳ حضور ﷺ ځني پوښتنه وكړه اي عمره رضي الله عنه دا څه دي؟ هغه عرض وكړو يا رسول الله ﷺ ستا د اودس د پاره اوبه دي ۴ حضور ﷺ وفرمايل ماته دا حكم نه دي شوې چې كله هم متيازي وكړم نو اودس دې هم وكړم كه زه داسې اوكړم نو دا زما فعل به سنت اوګرځي. (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① كُوز: لوټه، كوزه.

**[۳۶۹] په اوبو باندې د استنجاء كولو فضيلت**

۳۶۹ ــ (٢) [۳۴] ۱ وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ وَجَابِرٍ وَأَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، ۲ «أَنَّ هٰذِهِ الْآيَةَ لَمَّا نَزَلَتْ ﴿فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ﴾ [التوبة: ۱۰۸] ۳ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ! إِنَّ اللّٰهَ قَدْ أَثْنَى عَلَيْكُمْ فِي الطُّهُورِ فَمَا طُهُورُكُمْ؟ ۴ قَالُوا: نَتَوَضَّأُ لِلصَّلَاةِ، وَنَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ وَنَسْتَنْجِي بِالْمَاءِ. ۵ قَالَ: فَهُوَ ذَاكَ فَعَلَيْكُمُوهُ») رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او ابو ايوب رضي الله عنه جابر رضي الله عنه او انس رضي الله عنه راويان دي ۲ چه كوم وخت دا آيت نازل شو فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ (يعنى په مسجد قبا كې داسې سړي (انصار) دي چې دا خبره خوښوي چې ښه پاكي حاصله كړي او الله جل جلاله ښه پاكي حاصلونكي خوښوي) ۳ نو رسول ﷺ وفرمايل اي د انصارو جماعته! الله جل جلاله د پاكي په معامله كې ستاسو تعريف كړي دي ستاسو پاكي څه ؟ ده ۴ هغوئ عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ مونږ د مونځ د پاره اودس كوو او جنابت (ناپاكي) څخه غسل كوو (څنګه چې نور

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة . باب الاستبراء (رقم - ۴۲) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب من بال ولم يمس ماء (رقم-۳۲۷)

(۲) اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب الاستنجاء بالماء (رقم - ۳۵۵)

مسلمانان کوي) او (د لوټو څخه وروسته) په اوبو سره استنجاء کوو[۵] حضور ﷺ وفرمايل وو (هغه پاکي هم دا ده) نو دا لازم ونيسي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① يَتَطَهَّرُوا: أي المُبَالَغَةُ فِي الطَّهَارَةِ: ښه پاکي حاصلوي. ② مَعْشَرَ: ډله، جماعت. ③ أَثْنَى: تعريف ئې کړې دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** نَتَوَضَّأُ لِلصَّلَاةِ، وَنَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ وَنَسْتَنْجِي بِالْمَاءِ:

**په اوبو سره د استنجاء کولو فضيلت:** دَدې حديث نه معلوميږي چه استنجاء بالماء افضل ده دَاستنجاء ټول درې صورتونه دی

① چه صرف لوټې اوکانړې استعمالولوسره استنجاء اوکړې شی

② صرف اوبه استعمالولوسره استنجاء اوکړې شی

③ لوټې او اوبه دواړه استعمالولوسره استنجاء اوکړې شی دَ فقهاؤ په نيز دادريواړه صورتونه جائزدی.

اګرچه بعضې مالکيه او سعيدبن المسيب رحمه الله په اوبوسره صفائی ته ناجائزوئيلی دی مګر دَ جمهور فقهاؤ په نيزجائز او افضل ده ځکه چه په قرآن اوحديث کښې دَدې تصريح موجودده اودَ حضورپاك نه په دې باندې هميشه والې ثابت دې اوس دَ فقهاء کراماو جمهورامت په نيزاوبه اولوټې دواړه يوځائی کولو سره دَ استنجاء صورت دَ ټولو نه غوره دې. او دَډيرواحاديثونه دا جمع ثابت ده. په تعددطرق سره په حديث کښې قوت راځی. اودَ فقهاؤ په تعامل سره هم حديث قوی کيږی دې نه پس په اوبوسره استنجاء افضل ده او بياصرف دَ کانړی لوټو درجه ده

**[۳۷۰]د قضاء حاجت باره کښې د نبی عليه السلام بعضې آداب**

۳۷۰–() [۳۵] [۱]وَعَنْ سَلْمَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲]«قَالَ بَعْضُ الْمُشْرِكِينَ، وَهُوَ يَسْتَهْزِءُ: [۳]إِنِّي لَأَرَى صَاحِبَكُمْ يُعَلِّمُكُمْ حَتَّى الْخِرَاءَةَ. [۴]قُلْتُ: (أَجَلْ أَمَرَنَا أَنْ لَا نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ، [۵]وَلَا نَسْتَنْجِيَ بِأَيْمَانِنَا[۶]وَلَا نَكْتَفِيَ بِدُونِ ثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ[۷]لَيْسَ فِيهَا رَجِيعٌ وَلَا عَظْمٌ») رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَأَحْمَدُ وَاللَّفْظُ لَهُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت سلمان رضي الله عنه فرمايي[۲] چه په مشرکانو کې يوسړي د مسخرو په طور دا اوويل[۳] چې زه ستاسو سردار (يعني رسول ﷺ) وينم چې هغه تاسو ته هرشي ښايي تردې چې اودس ماتی لپاره د ناستې صورت هم،[۴] ما ورته اوويل هو حضور ﷺ مونږ ته حکم کړي دي چې د استنجاء (په وخت) دې مونږ مخ په قبله نه کينو[۵] په خپل ښي لاس سره دې استنجاء نه پاکوو،[۶] د دريو کانړو (لوټو) څخه په کم دې کفايت ونه وکړو[۷] او نه

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب الاستنجاء بالحجارة. والنهي عن الروث والرمة (رقم - ۳۱۶)

دې په هغې کښې خاشنړه (سوتې) او نه هډوکي وي. (مسلم احمد)

**حل اللغات:** ① الْخِرَاءَةَ: اسْمٌ لِهَيْئَةِ الْحَدَثِ: دَاودس ماتی دَ پاره دَ کیناستوکیفیت ته وائی، ② أَجَلْ: أَيْ: نَعَمْ: آو، ③ بِأَيْمَانِنَا: د يمين جمع ده، ښی لاس، ④ لَانَكْتَفِيَ: مونږ کافی نه ګنړو. ⑤ رَجِيعٌ: أَيْ رَوْثٌ: سوتې، خاشنړه وغيره.

**تسهيلات:**

**قوله: الْخِرَاءَةَ.:**

**دخراء لغوی تحقيق:** دَ خاء په کسره او په راء مدسره او په نفس اودس ماتی باندې دَدې اطلاق دَتاء دَحذف په وخت کیږی يعنی الخِراء والخراء. ليکن اکثر راويانوخاء مفتوح او راء بغيردَ مدنه لوستلې ده يعنی خرا. په اصل کښې دا لفظ دَمرغوګندګنی دَپاره استعماليږی مګر دلته دَ قضاء حاجت دَپاره استعمال شوې دې. دَدې لفظ نه وړاندې مضاف محذوف دې يعنی أدب الخراءة مطلب داشوچه تاسو ته نبی ﷺ دَ اودس ماتی ادب ښائی دَ وړو وړو څيزونوتعليم درکوی اودَ بديهی څيزونو بغيردَ ضرورت تعليم درکوی. دَدغه مشرك دَ طرف نه دا کلام دَخندا او دَ مسخرو وو چه دَ اودس ماتی طريقه درته ښائی تاسونه خوئی ماشومان جوړکړی دی.

**قوله: قُلْتُ: أَجَلْ:**

**اشکال:** دې مشرك په دين پورې خنداکولوسره اعتراض اوکړو اوحضرت سلمان ﷺ "اجل" وئيلوسره دا تسليم کړه آيادا جائزوه؟

**داشکال جواب:** حضرت سلمان ﷺ دَ اسلوبِ حکيم په توګه جواب ورکړې دې کوم ته چه علم معانی والا مماشات مع الخصم او ارخاء العنان وائی دې دَپاره چه هغه دَجواب اوريدودَپاره پوره متوجه اوتيارشی لکه چه سلمان فارسی ﷺ اووئيل اې څناوره واوره دا تعليمات آسمانی دی کوم چه مدرك بالعقل نه دی دا بديهات نه دی تاسو بې وقوفان يئې دا دَ عقل په دائره کښې دَ راوستلو کوشش کوئی ګورئی مونږ ته نبی حکم راکړې دې چه مونږ دَقبلې طرف ته دَ قضاء حاجت په وخت مخ نه کړو. دا حق الله دې بياحکم دې چه په ښی لاس سره استنجاء مه کوئی دا حق النفس دې اوبيائی حکم راکړو چه په هډوکو اوسوتو سره استنجاء مه کوئی داحق الاخوان دې نو په دې تعليم کښې حق الله، حق النفس او حق العباد دريواړه راغلل کوم چه مکمل شريعت دې دې پورې خنداکول حماقت دې.

## [۳۷۱] د متیازو څخه ځان ساتلو کښې احتیاط کول

۳۷۱–(۱) [۳۶] ۱ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ حَسَنَةَ قَالَ: ۲ «خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۳ وَفِي يَدِهِ الدَّرَقَةُ ۴ فَوَضَعَهَا ثُمَّ جَلَسَ، فَبَالَ إِلَيْهَا ۵ فَقَالَ بَعْضُهُمْ: انْظُرُوا إِلَيْهِ يَبُولُ كَمَا تَبُولُ الْمَرْأَةُ،

**ترجمه:** ۱ عبد الرحمٰن ابن حسنه ﷺ فرمایي ۲ چه یوه ورځ رسول الله ﷺ د کور څخه وتلو سره مونږ ته تشریف راوړو ۳ هغه وخت د حضور ﷺ په مبارك لاس کې ډال وو ۴ هغه یې خپل مخې ته په زمکه کیښودلو. بیا د هغې مخې ته په ناستې سره یې متیازې وکړلې ۵ په دې لیدو سره یو مشرك اوویل ده ته وګورئ داسې متیازې کوي څنګه چې ښځه متیازې کوي

**حل اللغات:** ① الدَّرَقَةُ: أَيِ التُّرْسُ مِنْ جُلُودٍ لَيْسَ فِيهِ خَشَبٌ وَلَا عَصَبٌ: دا هغه ډهال ته وائی چه خالص د څرمن نه جوړوی په کوم کښې چه اوسپنه لرګی وغیره نه وی.

۱ فَسَمِعَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: (وَيْحَكَ! ۲ أَمَا عَلِمْتَ مَا أَصَابَ صَاحِبَ بَنِي إِسْرَائِيلَ ۳ كَانُوا إِذَا أَصَابَهُمُ الْبَوْلُ قَرَضُوهُ بِالْمَقَارِيضِ ۴ فَنَهَاهُمْ فَعُذِّبَ فِي قَبْرِهِ») رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ

**ترجمه:** ۱ دا خبره حضور ﷺ واوریده نو وې فرمایل په تا افسوس دې ۲ آیا ته هغه څه پیژنې چې د بنې اسرائیلو ملګرې ته رسیدلې وو (یعنې عذاب) ۳ بنې اسرائیلو چې به متیازې کولې او د هغوئ جسم یا کپړو ته به متیازې لګیدې نو هغه به یې په قینچې سره پریکولې ۴ نو بنې اسرائیلو څخه یو سړي (د دې حکم منلو څخه) خلق منع کړل نو هغه د قبر په عذاب کې مبتلا شو. (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** ② وَيْحَكَ: وَيْحٌ كَلِمَةٌ تُقَالُ لِمَنْ تَرْحَمُ وَتَرْفُقُ بِهِ اهـ: وَيْحٌ کلمه دَ بد دعا دَپاره ده خو دا هغه چا دپاره استعمالولې شی چاسره چه د مهربانئ او نرمئ معامله کول وی. ③ أَصَابَ: رسیدلی وو (یعنی عذاب). ④ قَرَضُوهُ: أَيْ قَطَعُوهُ: پریکول به ئې هغه ځائ (پلیتی). ⑤ الْمَقَارِيضِ: د مِقْرَاضِ جمع ده، وَهُوَ آلَةُ الْقَطْعِ: د پریکولو یوه آله ده، یعنی قینچی.

**تسهیلات:**

### دحدیث د بعضې جملو وضاحت:

① بَعْضُهُمْ: دې نه یاځوك مشرك مراددې یاځوك منافق وو دادویم واضح دې

② كَمَا تَبُولُ الْمَرْأَةُ: ښځه په ناسته متیازې کوی ځکه چه هغه په ولاړه متیازې نه شی کولې. په عربوکښې به سړو په ولاړه متیازې کولې اودابه ئې دَ سړو ننیه ګڼړله

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة. باب الاستبراء من البول (رقم-۲۲) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب التشدید فی البول (رقم-۳٤٦)

**قوله: قَرَضُوهُ بِالْمَقَارِيضِ:**

**د بني اسرائيلو سخت احكام:** دَ بني اسرائيلو په سختو اوګرانو احكاماتوكښې يوحكم دا وو چه كه چرې بدن سره نجاست اولګى نودبدن دغه حصه به څيرلې اوپرې كولې شوه اوكه كپړه به پليته شوه نوهغه به ئې هم پرې كوله په هغه زمانه كښې يوسړى ددغه حكم نه انكاراوكړو اوخلق ئې هم منع كړل نودا سړې دَدې بې احتياطئى دَ وجې نه په قبركښې په عذاب كړې شو ځكه چه هغه دَمتيازونه نه بچ كيدو.

**د مناسبت وجه:** دلته دَنبى كريم ﷺ دَمتيازو كولوپه وخت په كيناستوباندې دَ اعتراض كونكى او دَ بني اسرائيلو په سړى كښې څه مناسبت دې چه حضورپاك دَ هغه سړى مثال وركړو؟ نواصل خبره داشوه چه ګورئى دَ بني اسرائيلو يوسړى دَهغوى دَ شريعت دَيومعروف او ښه كاردَ بندولوكوشش اوكړو نودَهغه انجام څومره خراب شو چه په عذاب كښې راګيرشو. دغه شان ته هم دَ يونيك كارنه دَ بندولوكوشش كوې نوتاته به هم عذابِ قبراوشي ځكه چه بې احتياطى به كوې متيازې به درپورې لګى نوعذاب به دركولې شى

٣٤٢-()[١]وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْهُ عَنْ أَبِي مُوسَى.

**ترجمه:** [١] او نسايي دا حديث دعبد الرحمن څخه او هغه د ابو موسى څخه روايت كړي دي.

[٣٤٣]په آبادى كښې د متيازو كولو په وخت كښې قبلې ته د مخ كولو جواز

٣٤٣-()[٣٧][١]وَعَنْ مَرْوَانَ الْأَصْفَرِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢]«رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ أَنَاخَ رَاحِلَتَهُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ، [٣]ثُمَّ جَلَسَ يَبُولُ إِلَيْهَا فَقُلْتُ: [٤]يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ! أَلَيْسَ قَدْ نُهِيَ عَنْ هَذَا؟ [٥]قَالَ: بَلْ إِنَّمَا نُهِيَ عَنْ ذَلِكَ فِي الْفَضَاءِ. [٦]فَإِذَا كَانَ بَيْنَكَ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ شَيْءٌ يَسْتُرُكَ، فَلَا بَأْسَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت مروان اصفر فرمايي[٢] ما (يووار) ابن عمر رضي الله عنه وليدلو چې خپل اوښ يي مخ په قبله كينولو[٣] بيا هغه كيناستلو او د اوښ طرف ته يي متيازي وكړلي ما (په دي ليدو سره) عرض وكړو اي ابو عبد الرحمن (دا د ابن عمر رضي الله عنه كنيت دي)[٤] آيا د داسې د قبلې طرف ته مخ كولو سره متيازي كولو څخه منع نه ده فرمايل شوې ؟[٥] وي فرمايل نه بلكه په ځنګل كې دي څخه منع فرمايل شويده [٦] ليكن كله چې ستا او د قبلې په مينځ كې څه شي حائل وي نو بيا څه حرج نشته (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① أَنَاخَ: اوښ ئې كينولو، دا لفظ د اوښ كينولو دپاره استعماليږى ② رَاحِلَتَهُ: سورلى (اوښ)، ③ الْفَضَاءِ: أي: الصَّحْرَاءِ: صحراء، هوار خالي ځرته چه ووني وغيره نه وى

[1] اخرجه النسائي كتاب الطهارة/البول إلى السترة يستتر بها (رقم-٣٠)

[2] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة ، باب كراهية استقبال القبلة عند قضاء الحاجة (رقم- ١١)

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِذَا كَانَ بَيْنَكَ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ شَيْءٌ يَسْتُرُكَ، فَلَا بَأْسَ:**
دا د يو صحابي خپله رائې او د هغه عمل دې د مرفوع احاديثو دا روايت مقابله نه شي کولې تفصيل تير شوې دې.

**[۳۷۴] د بيت الخلاء څخه د وتلو دعا**

۳۷۴-(۱) [۳۸] ① وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ قَالَ: ③ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنِّي الْأَذَى وَعَافَانِي» رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي ② چه نبي کريم ﷺ چې به د بيت الخلاء څخه وتلو نو د وتلو په وخت به دا دعا کوله: ③ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ أَذْهَبَ عَنِّي الْأَذٰى وَعَافَانِيْ (ټول تعريفونه الله جل جلاله لره ښايي چې زما څخه يې تکليف ورکونکې شې (يعني پاخانه) لرې کړو او ماته يې عافيت وبخښو. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① أَذْهَبَ: بوتلې تلو، لرې ئې کړو. ② الْأَذٰى: تکليف. ③ عَافَانِي: عافيت ئې را کړو ماته.

**[۳۷۵] په بعضې څيزونو سره د استنجاء کولو کراهت**

۳۷۵-(۲) [۳۹] ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «لَمَّا قَدِمَ وَفْدُ الْجِنِّ عَلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالُوا: ③ يَا رَسُولَ اللهِ انْهَ أُمَّتَكَ أَنْ يَسْتَنْجُوا بِعَظْمٍ أَوْ رَوْثَةٍ أَوْ حُمَمَةٍ، ④ فَإِنَّ اللهَ جَعَلَ لَنَا فِيهَا رِزْقًا. فَنَهَانَا رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ ذَلِكَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي ② کوم وخت چې د جناتو جماعت د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو نو هغوئ عرض وکړو ③ يا رسول الله ﷺ تاسو خپل امت منع کړئ چې هغوي په خاشنړه، هډوکي او سکرو سره استنجاء ونه کړي ④ ځکه چې الله جل جلاله په دي څيزونو کې زمونږ رزق پيدا کړي دي نو حضور ﷺ مونږ د دې څيزونو د استعمال څخه منع کړو. ابوداؤد

**حل اللغات:** ① قَدِمَ: راغي، حاضرشو ② وَفْدُ: جماعت، عزتمنده جرګه. ③ حُمَمَةٍ: أي: الْفَحْمُ: سکاره، يا کوم لرګي وغيره چه او سوزولې شي.

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها باب ما يقول إذا خرج من الخلاء (رقم-۳۰۱)
(۲) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة، كتاب الطهارة، باب ما ينهى عنه أن يستنجى به (رقم- ۳۹)

# [۳/۸] بَابُ السِّوَاكِ

## دَ مسواک بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه أربعة عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① تاكيد امر السواك: ۱، ۴، ۶، ۱۰، ۱۱، ۱۴.

② مواضع استعمال السواك: ۱، ۲، ۳، ۷، ۱۴.

③ فوائدالسواك: ۵، ۱۳.

④ جواز استعمال سواك الغيرباذنه: ۸.

⑤ دفع السواك أولاً إلى الكبير: ۹، ۱۲.

**د مسواک لغوی تحقیق:** "مايدلك به الأسنان" عرب وائی ساك فاه یسوکه کله چه دَدې مفعول به مذکوروی نوساك فاه وائی اوکله چه مفعول به مذکورنه وی نو استاك وائی سواك دکتاب په شان دې دکوم جمع چه هم سُوُكٌ دَ كُتُبٌ په شان راځی اودَمسواك جمع مساويك هم راځی

**د مسواک فضیلت:** په احادیثوکښې د مسواك ډیر فضیلت راغلے دې په مسند احمدکښې روایت دې. «أنه عليه الصلاة والسلام قال: صلاة بسواك أفضل من سبعين صلاة بغير سواك.» مسواك سره یو مونځ د بې مسواکه مونځ نه یو په اویا درجې زیات ثواب لری

**د مسواک د استعمال مواقع:** په لټون اوتتبع سره په پنځو ځایونوکښې د مسواك استحباب ثابت دې.(۱)چه غاښونه زیړوی.(۲) دخولې بوئې خراب وی.(۳)چه د خوب نه رابیدارشی (۴) چه اقامت اوشی.(۵) د اودس په وخت.

**د مسواک صفتونه:** پکار ده.(۱) چه مسواك نرم وی. (۲) او د ګوتې په اندازه غټ وی.(۳) یو لویشت اوږد وی. (۴) نیغ وی. (۵) چه غوټې په کښې کمې وی (۶)دتربئې ونې وی.چه بلغم ختموی. (۷) سینه صفا کونکې وی. (۸) او خوراك زر هضم کوی.

**د مسواک استعمالولو طریقه:** د مسواك کولو طریقه دا ده.چه مسواك به په پلنوالی هم کوی.او په اوږدوالی هم.اوکه په یو اکتفا کول غواړی.نو صرف په اوږدو دے اوکړی.دا خبره یاد ساتئ چه د غاښونو پلنوالې د خولې اوږدوالے دې.(شرح نقایه)

**د مسواک مسنونیت:** فرمائی چه مسواك کول سنت دی.دلیل دا دې.چه نبی علیه السلام د مسواك په استعمال باندې همیشوالے کړې دے .البته کله کله ئې پریخے دې.اوکه مسواك نه وی.نود نبی لاس په ګوته دے غاښونه اومګی.ځکه چه دا هم د نبی علیه السلام نه ثابت دی.

**د مسواک دعدم وجوب دلیل:** او مواظبت مع الترك د سنتیت دلیل دي.او بغیر دترك نه مواظبت دلیل د وجوب دي.او په ترك د مسواك باندې دلیل دا دے .چه نبی علیه السلام د یوکلي خلقوته د اودس اود مونځ تعلیم ورکړې وو.خوپه هغې کښې د مسواك استعمال منقول نه دي.که دمسواك استعمال واجب وے . نو نبی علیه السلام به ورته خامخا تعلیم ورکړې وو.(عنایه)

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۳۷۶] د هر مانځه د پاره د مسواك استعمال

۳۷۶–()[۱] ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②"«لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي لَأَمَرْتُهُمْ بِتَأْخِيرِ الْعِشَاءِ، ③وَبِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ②که ما په خپل امت باندې دا خبره ګرانه نه ګڼلای نو مسلمانانو ته به مې دا حکم ورکړي وو چې د ماسخوتن مونځ په تاخیر سره کوي③ او د هرلمانځه د پاره مسواك وهي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① أَشُقَّ : أَيْ ثَقُلَ: که مشقت پرې نه جوړیدو، ګرانه ورته نه وي، ② الْعِشَاءِ: د ماسخوتن مونځ.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ:

**اشکال:** لولا دانتفاء ثاني دپاره راځي بسبب د وجود اول. حالانکه وجود اول یعنی مشقت متحقق شوې دې؟

**د اشکال جواب:** ددې جواب دادې چې لولا سره به د خشیة عبارت محذوف منلې کیږي. بل دې ځانې کښې

**دویم اشکال:** دویم اشکال دادې چې انتفاء ثاني متحقق شوې نه ده ځکه چې د مسواك حکم ختم شوې نه دې بلکه په مسنون طریقې سره موجود دې او د ماسختن د تاخیر حکم هم برقرار دې؟

**داشکال جواب:** ددې جواب دادې چې أمرتهم کښې دفرضیت او وجوبی طور سره دحکم نفی شوې ده او هغه نفی موجود ده مسواك کول نه فرض دی اونه واجب ترجمه دا شوه چې که چرې ماته ددې ویره نه وې چې امت به په مشقت کښې پریوزی نو ما به دَ مسواك

[1] اخرجه البخاری کتاب الجمعة باب السواک یوم الجمعة (رقم-۸۸۷) ومسلم کتاب الطهارة باب السواک (رقم-۴۲ - (۲۵۲) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها باب السواک (رقم- ۲۸۷) والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله علیه وسلم /باب ما جاء فی السواک (رقم- ۲۲)

حکم د فرض يا وجوبی طور سره ورکړي وي. ليکن چونکه د امت د مشقت فکر دې نو په دې وجه مې د مسواك د وجوب حکم ورنکړو. بلکه د مسنون طريقې حکم مې ورکړو. دا شان کلام په ماسختن کښې د تاخير هم دې.

**قوله: عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ:**

## د مسواك په حكم كښې مذاهب: -

① دامام اسحاق بن راهويه او داؤد ظاهری څخه يو قول دا منقول دې چې د مسواك استعمال واجب دې.

② دمسواك په شرعی حيثيت کښې لږ اختلاف دې.علامه نووی رحمه الله دمسواك په مسنونيت باندې دامت اجماع رانقل کړې ده. اود امام اسحاق رحمه الله او داؤد ظاهری **څخه يو قول د مسنونيت منقول دې.**

**د اول فريق دليل:** - دحضرت رافع بن حديج او عبدالله بن عمروبن حلحله روايت دې.((السواك واجب وغسل الجمعة واجب على كل مسلم ، () رواه ابونعيم فى كتاب السواك وذكره السيوطى فى الجامع الصغير

**د اول فريق د دليل دوه جوابونه:** - ①حافظ ابن حجر رحمه الله په " التلخيص الجبير" کښې ددې حديث دنقل کولو نه پس فرمائی ((اسناده واه )) **چې د دې حديث سند کمزورې دې** نو دينه استدلال صحيح نه دې.

② علامه نووی رحمه الله ليکی چه امام اسحاق ته دوجوب دقول نسبت صحيح نه دې بلکه صحيح داده چه دې هم دجمهورو په شان دمسواک د مسنونيت قائل دې اوس صرف داؤد ظاهری پاتې کيږی ددوئ باره کښې هم مشهوره داده چه دې دسنيت قائل دې اوکه بالفرض ددوی د وجوب قائل هم وی بياهم دده اختلاف اجماع لره مضر نه دې.

**اشکال:** - **په منية المصلی کښې مسواک په آدابو کښې شمار کړې دې.او ته وائې چې د حنفيانو په نيز سنت دې.**

**د اشکال جواب:** - **په شرح د منية المصلی کښې د دې دا توجيه کړې ده چې د ادب نه مراد طريقه مشروعه ده او دا سنتو ته هم شامله ده.**

## د مسواك د استعمال په زمان كښې مذاهب: -

بيا په جمهورو کښې دا اختلاف دې چه مسواك سنت صلوة دې.اوکه سنت وضُوء

① امام شافعی رحمه الله داسنت صلوة ګرځوی.ظاهريونه هم داسې منقول دی.

② خنفيان ديته سنت وضوء وائی.

**فائده د اختلاف:** - ثمره داختلاف داسې را اوخی که يوسړی اودس او مسواك نې اوکړل او بومونځ نې اوکړو.او بياهم په دغه اودس باندې دويم مونځ کول غواړی نو دامام شافعی رحمه الله په نزد به ده ته مسواك کول مسنون وی او دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد چونکه داسنت د اودس دې.

د دې وجې دوباره مسواك ته ضرورت نشته.

**فائده:-** ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی. امام شافعی رحمه الله ((عندکل صلوة)) اصل گرخولې دې اود تطبیق کوشش نې کړې دې یعنی دې دمونځ او د اودس دواړو په وخت مسواك مسنون گرخوی احناف ((مع کل وضوء)) اصل گرخوی او ((عندکل صلوة)) کښې تاویل کوی چه دلته مضاف محذوف دې ((عند وضوء کل صلوة)) او په دې باندې عقلی دلائل هم شاهد دی.[1]

**د اول فریق دلیل:-** امام شافعی رحمه الله دحدیث دې نه استدلال کوی.((لولاان اشق علی اُمتی لامرتهم بالسواك عندكل صلوة))

**د اول فریق د دلیل جواب:-** حنیفان ددې جواب کښې وائی چه دلته یو مضاف محذوف دې یعنی ((عندوضوءکل صلوة)) په دې باندې نقلی دلائل دا دی.ځکه چې د دې دلیل دادې چه هم د دې روایت په بعضې طرقو کښې د ((عند کل وضوء)) الفاظ راغلی دی.نودغه روایات یو طرف ته د ((عند کل صلاة)) د روایاتو نه جواب هم شو او بل طرف ته د حنفیانو دلائل هم شول.

**د دویم فریق دلائل:** ① دحضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه هم دا روایت په مستدرك حاکم کښې په دې الفاظو مروی دې.[2] ((لولاان اشق علی امتی لامرتهم بالسواك مع الوضوء عندكل صلوة)) [3] علامه نیموی رحمه الله فرمائی.اسناده صحیح. [4] هم دا روایت حافظ ابن حجر رحمه الله په تلخیص کښې ذکر کړې او په دې نې سکوت کړې دې نودوی په نزد دا حدیث قابل استدلال دې

② امام احمد نقل کړی دی. ((عن ابی هریره رضی الله عنه قال رسول الله ﷺ لولا اشق علی امتی لامرتهم عندکل صلوة بوضوء ومع کل وضوء بسواک)) () مجمع الزوائد. ۲۲۱\۱باب السواک) ـ

③ په معجم طبرانی کښې دحضرت علی رضی الله عنه نه دا الفاظ مرفوعاً منقول دی.((لولاان اشق علی امتی لامرتهم بالسواك مع کل وضوء))

علامه نورالدین هیثمی مجمع الزوائد ۲۲۱\۱ باب فی السواک کښې ددې حدیث نقل کولونه پس لیکی ((رواه الطبرانی فی الاوسط وفیه ابن اسحاق وهو ثقه مدلس وقدصرح بالتحدیث واسناده حسن))

④ دینه علاوه دسنن نسائی دمسنداحمدد مستدرك حاکم دصحیح ابن خزیمه او دصحیح ابن حبان په هغه روایاتو سره دحنفیانو رحمه الله استدلال دې چه هغې کښې د ((عندکل صلوة)) په ځائې ((عندکل وضوء، یامع کل وضوء)) الفاظ راغلي دی.

⑤ او عقلی دلائل دا دی یودا چه صلوة والاروایتونوکښې هرځائې د "عند" لفظ راغلې دې چه په مقارنت حقیقة دلالت نه کوی بلکه که دمسواك اوصلوة په مینځ کښې څه فصل وی نو بیاهم

---

[1] )آثارالسنن باب السواک ۱۲۱,۲۹))

[2] )ویویده ما رواه احمدبن عن ابی هریره رضی الله عنه قال رسول الله ﷺ لولاان اشق علی امتی لامرتهم عندکل صلوة بوضوء ومع کل وضوء بسواک ۱۲ مجمع الزوائد. ۲۲۱\۱باب السواک) ـ

[3] )۱\۱۴۶ کتاب الطهارة فضيلة السواک) ـ

[4] )آثارالسنن باب السواک ۱۲۱,۲۹))

د ((وعندکل صلوة)) اطلاق پرې کیږي.ددې په خلاف په وضوء والا روایتونو کښې په بعضوکښې لفظ د "مع" راغلې دې چه په مقارنت حقیقةً باندې دلالت کوي.

⑨ مسواك دپاکئ حاصلولویوه طریقه ده.یعنی ددې تعلق دطهارت سره دې لکه د نسائی دابن حبان او مسنداحمدپه روایت کښې دحضرت عائشه په سند سره دا الفاظ مروی دی ((السواك مطهرة للفم ومرضاة للرب)) (¹)

⑥ دمسواك مقصد هم تنظیف الاسنان دې چه د باب طهارت ځنې دې د دې وجې ظاهره دا ده چه مسواك سنت وضوء اوګرځولې شي.

⑧ که دعین مانځه په وخت مسواك مسنون شي.نوکه دعابښونو نه د وینې راوتلوهم ویره وي.چه د حنیفویانو په نیزناقص وضوء ده خود شافعیؒ په نزد به هم ناخوښه وي.ځکه چه د نجاست خروج خو ددویٔ په نزد هم ښه نه دې.

⑨ د روایتونونه داخبره چرته هم نه ثابتیږي چه نبی کریمﷺ مانځه ته داودریدو په وخت مسواك وهلې وي ددې وجوه په بناء دمسواك صحیح ځائې وضوء معلومیږي.

**وجه د ترجیح:-** دا خو د حنفیانو دلائل وو.اوس یوه توجیه د ترجیح هم ذکر کولی شي. په کوم ځائې کښې چې د صلاة لفظ راغلی دې نو هلته د عند لفظ راغلې دې .او چرته چې د وضء لفظ راغلې دې نو هلته د مع لفظ هم راغلې دې .((مع)) په مقارنت دلالت کوی او((عند)) په مقارنت دلالت نه کوی.نوچا چې د وضوء په وخت کښې مسواک استعمال کړلو.نودا د عندصلاة منافی نه دې خوکه د صلاة دپاره ئې استعمال کړونو دا نشی وئیلې چې ده د اودس دپاره مسواک اوکړو.

**د شاه انور شاه رحمه الله بهترینه فیصله:-** د احنافواودشوافعؒ دا اختلاف دډیرې زمانې داسې په کتابونو کښې راروان دې خو حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه دا صرف نزاع لفظې ده که یوسړې په زوره اوداسه باندې مونځ کوی. نو دحنیفوؒ په نزد ده لره مسواك کول مسنون دی.ځکه چه شیخ ابن همام په فتح القدیرکښې لیکی چه په پنځه مواقعو کښې مسواك کول مستحب دی.په دې پنځه مواقع کښې دوی قیام الی الصلوة هم ذکر کړې دې ((والاستحبات والسنیة کلاهمامتقاربان لایخالف بینهماویکفی لرفع الخلاف هذا القدر)) دینه معلومیږی چه دواړوکښې په حقیقت کښې څه اختلاف نشته

**د برش استعمال د مسواک ځائې نیسی که نه؟** دلته یو بحث دادې چه موجوده زمانه کښې کوم برش رائج دې نوپه دې سره سنت ادا کیږی.اوکه نه ؟ ددې محققانه جواب دادې چه دلته دوه څیزونه جداجدا دی یو سنت السواك.

دویم المسواك المسنون ترکوم چه د سنت السواك تعلق دې فقهاء لیکی چه دا د مسواك مسنون په عدم موجودګئ کښې په جامه منجن یادګوتې په مږلو هم اداء کیږی .اګر چه د استعمال المسواك المسنون سنت نه ادا کیږی دا حکم دیو حدیث څخه ماخوذ دې.

¹ )نسائی ۵۱۱۱۱ کتاب الطهارة الترغیب فی السواک) _

**دلیله:**- امام دارقطنی رحمه الله بیهقی او ابن عدی دحضرت انس رضی الله عنه نه دامرفوع حدیث نقل کړي دي
((تجزی من الاصابع )) ([1])
حافظ ابن حجر رحمه الله په دې سند څه کلام کړې دې.خوورسره ئې د حافظ ضیاء مقدسی دا قول هم نقل کړي دي.((لا اری بسنده بأسا)) ([2])
نوپه منجن یا په برش په شرط ددې چه ددې ریشې پاکې وی.دې سره سنت اداکیږی البته چه دکوم برش په ریشوکښې دخنزیر ریشه وی دهغې استعمال حرام دې.خو د استعمال المسواك المسنون فضیلت صرف د زیتون پیلواو دنیم کیکر په مسواك حاصلیږی د منجن یابرش په استعمال سره دا فضیلت نه حاصلیږی دینه علاوه دغابنونو او داورو دپاره چه څومره مفید مسنون مسواك دې دومره بل څیز نه دې.

**[۳۷۷] کورته د داخلیدو نه پس د مسواک استعمال**

۳۷۷-(۳) [۲] ① وَعَنْ شُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «سَأَلْتُ عَائِشَةَ بِأَيِّ شَيْءٍ كَانَ يَبْدَأُ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا دَخَلَ بَيْتَهُ؟ ③ قَالَتْ: بِالسِّوَاكِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① شریح ابن هانئ راوي دي ② چې ما د بي بي عائشي رضی الله عنها څخه پوښتنه وکړه چې حضور صلی الله علیه وسلم چې به خپل کورته تشریف راوړو نو ترټولو مخکې به یې څه کول ؟ ③ هغې وفرمایل د ټولو څخه مخکې به یې مسواك وهلو. (مسلم)

**حل اللغات:** ① يَبْدَأُ: شروع به ئې کوله.

**د راوي مختصر تعارف:**

نوم شریح کنیت ابوالمقدام، اصلا خویمنی دې ولې په کوفه کښې اوسیدو. دَامیر المؤمنین حضرت علی رضی الله عنه په دوستانوکښې وو. دې اکثرد خپل پلار نه روایت نقل کوی دَ رضی الله عنه او حضرت بلال رضی الله عنه نه هم روایت نقل کوی. یحیی بن معین رحمه الله وغیره ده ته ثقه وئیلی دی.
**وفات:** دَ ابوحاتم سجستانی په قول هغه ۷۸ھ کښې قتل کړې شوې وو. (تقریب) دَ هغوی نه دَهغه خوئ ابوالمقدام، شعبی او حکم بن عقبه رحمهم الله روایت نقل کوی.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَا دَخَلَ بَيْتَهُ؟:

**کورته د داخلیدو په وخت کښې د مسواک استعمال:** یعنی کورته په راتلوباندې دټولونه ړومبې کاربه مسواك وو دائی امت ته تعلیم ورکړو چه په کورکښې داخلیدونه پس خپلې

---

[1]) بیهقی ۱\۴۰ باب الاستیاك بالاصابع)-
[2]) تلخیص باب السواك ۱\۷۰)-
[3]) مسلم کتاب الطهارة باب السواک (رقم-(۲۵۳) وابوداود کتاب الطهارة . باب فی الرجل یستاک بسواک غیره (رقم-۵۱) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها باب السواک (رقم- ۲۹۰) والنسائی کتاب الطهارة/باب السواک فی کل حین(رقم-۸)

بی بی سره دَ بنکلولوغیره موقع راتلې شی که دَخلې نه نی بدبوئی څی نوداد نفرت سبب جوړیدې شی اونفرت دَبنځې خاوند په مینځ کښې دَ جداوالی ذریعه جوړیدې شی. په دې وجه کورته دَراتلو په وخت بنه مسواک کول پکاردی چه دَخلې نه دَبدبوئې راوتلو امکان باقی پاتې نه شی

**[۳۷۸] دتهجد د مانځه دپاره د مسواک استعمال**

۳۷۸-() [۳] [١] وَعَنْ حُذَيْفَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] «كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا قَامَ لِلتَّهَجُّدِ مِنَ اللَّيْلِ [٣] يَشُوصُ فَاهُ بِالسِّوَاكِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حذيفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي [٢] چې رسول ﷺ چې به د شپې د تهجد د لمانځه د پاره پاسيدو [٣] نو خپله خله به يې په مسواک سره مږله او وينځله به يې. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① يَشُوصُ: أَيْ: يُدَلِّكُ أَسْنَانَهُ: مږل به ني غابنونه (چه پاک شي).

**[۳۷۹] دلسو څیزونو په فطرت کښې شاملیدل**

۳۷۹-() [۴] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] «عَشْرٌ مِنَ الْفِطْرَةِ: [٣] قَصُّ الشَّارِبِ، [٤] وَإِعْفَاءُ اللِّحْيَةِ، وَالسِّوَاكُ، [٥] وَاسْتِنْشَاقُ الْمَاءِ، [٦] وَقَصُّ الْأَظْفَارِ، [٧] وَغَسْلُ الْبَرَاجِمِ، [٨] وَنَتْفُ الْإِبِطِ، [٩] وَحَلْقُ الْعَانَةِ، [١٠] وَانْتِقَاصُ الْمَاءِ) - يَعْنِي الِاسْتِنْجَاءَ - [١١] قَالَ الرَّاوِي: وَنَسِيتُ الْعَاشِرَ إِلَّا أَنْ تَكُونَ الْمَضْمَضَةُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] بي بي عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] لس څيزونه د فطرت څخه دي يعنې د دين خبري دي [٣] ① بريتونه واړه کول [۴] ② ږيره اوږدول ③ مسواک وهل [۵] ④ په پوزه کې اوبه اچول [٦] ⑤ نوکونه پريکول [٧] ⑥ د ګوتو وغيره بندونه وينځل [٨] ⑦ د ترخ ويښتان صفا کول [٩] (٨) د نامه لاندې ويښتان خريل [١٠] ⑨ اوبه کمول يعني په اوبو سره استنجاء کول [١١] ⑩ د راوي يعنې مصعب يا د زکريا بيان دي چې لسم شي زما څخه هېر شو ممکنه ده چې هغه خله وينځل وي. (مسلم)

[١] وَفِي رِوَايَةٍ «الْخِتَانُ» بَدَلَ «إِعْفَاءُ اللِّحْيَةِ» [٢] لَمْ أَجِدْ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ [ص: ۱۲۲] فِي «الصَّحِيحَيْنِ» وَلَا فِي كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ [٣] وَلٰكِنْ ذَكَرَهَا صَاحِبُ «الْجَامِعِ» [٤] وَكَذَا الْخَطَّابِيُّ فِي «مَعَالِمِ السُّنَنِ»:

---

(۱) اخرجه بخاری کتاب الوضوء باب السواک (رقم-۲۴۵) ومسلم کتاب الطهارة باب السواک (رقم-۴۵ - (۲۵۴) والنسائی کتاب الطهارة . باب السواک إذا قام من اللیل (رقم- ۲) وابوداود کتاب الطهارة . باب السواک لمن قام من اللیل (رقم-۵۵) وابن ما جة کتاب الطهارة وسننها باب السواک (رقم- ۲۸۶) وابوداود کتاب الطهارة . باب السواک لمن قام من اللیل (رقم-۵۵)

(۲) اخرجه مسلم تاب الطهارة باب خصال الفطرة (رقم-۵۶ - (۲۶۱) وابوداود کتاب الطهارة . باب السواک من الفطرة (رقم- ۵۳) والنسائی کتاب الزینة / من السنن الفطرة (رقم- ۵۰۴۰) والترمذی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی تقلیم الأظفار (رقم - ۲۷۵۷)

**ترجمه:** [۱] او په يو روايت کې دويم شي د ږيرې اوږدولو په ځاى ختنه (سنتول) دي [۲] او صاحب مشکوٰة فرمايي ما دا روايت نه په صحيحين يعنى په بخاري مسلم کې پيدا کړي دي او نه په کتاب حميدي کې چې د صحيحين جامع دي [۳] البته دا روايت صاحب د جامع الاصول په خپل کتاب کې ذکر کړي دي [۵] د غسې خطابي په معالم السنن کې

**حل اللغات:** ① الْفِطْرَةِ: انسانى طبيعت اوخلقت، ② قَصُّ: أى إحْفَاؤهُ: کټ کول، کمول (چه شونډې ښکاره شى)، ③ الشَّارِبِ: بريت، ④ إِعْفَاءُ: أَيْ تَوْفِيرُهَا: اوږدول د ږيرې، ⑤ اسْتِنْشَاقُ: وَهُوَ جَذْبُ الْمَاءِ بِالنَّفَسِ إِلَى الْأَقْصَى: په ساه اخستلوسره اوبه راښکل چه د پوزې زيزمو يعنى ويخ ته اورسى دې ته استنشاق وائى، ⑥ الْبَرَاجِمِ: مَفَاصِلُ الْأَصَابِعِ: دا دَ برجمة جمع ده دَ ګوتوپه پيوندونوکښې چه کومې کربښې دى هغې ته وائى. ⑦ نَتْفُ: أَيْ: قَلْعُ: د بيخه ويستل، ⑧ الْإِبِطِ: أَيْ: شَعْرِهِ: د ترخ ويخته، ⑨ حَلْقُ: خريل، ⑩ الْعَانَةِ: د نامه (ناف) نه لاندې ويخته. ⑪ انْتِقَاصُ الْمَاءِ يَعْنِي الْاِسْتِنْجَاءَ: يعنى په اوبو سره استنجا کول.

**تسهيلات:**

**قوله: الْفِطْرَةِ:**

**د فطرت په معنى کښې درې اقوال:** ① انسانى فطرت، خلقت او طبيعت دې.
② سنن الدين دې. دَدې لفظ يوه معنى د دين طريقې دى.
③ سنن الانبياء دې. يعنى دَهغوى په خلقت کښې داخل وو نوزمونږ په خلقت کښې هم داخل دې. يعنى دالس خصلتونه انسانى طبيعت او فطرت دې. داځيزونه انسانى هيئت باقى ساتى ګنى دَ انسان هيئت به غيرفطرى شى.

**قوله: قَصُّ الشَّارِبِ:**

**د بريتانو کټ کولو طريقه:** تولوالفاظودَحديث نه دَ بريتو کټ کولو کمولوطرف ته اشاره ملاويږى دَ خرولو ارشاد نه ملاويږى سره دَدې چه فتاوىٰ عالمګيرى دې ته جائزوئيلى دى. بريت بالکل صفاکول اصل سنت دې دَ شونډو برابرويښته اخستل هم جائزطريقه ده.

**قوله: وَإِعْفَاءُ اللِّحْيَةِ:**

**د ږيرې پريښودو وضاحت:** دادَ باب افعال نه اعفاء دَمعاف کولوپه معنى کښې دې يعنى معاف کولوسره دى ښه پريږدى او کټ کولو او خرولوسره دې نه چيړى. دَ ږيرې دَ اوږدولو څه حدنشته آوکه مخ نى وړوکې وى او دَ صلحاؤ په نيزمخ بدې لګى نو ږيره دومره کمول جائز دى چه بدې نه ښکارى. ليکن دَ يوموټى نه کمول جائزنه دى. دَ يوموټى پورې کمول دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه ثابت دى ګنى په احاديثوکښې دَ اوږدولوحکم دې. ملاعلى قارى رحمه الله په مرقات کښې ليکى چه ږيره کمول دَعجميانو عمل دې او نن صبا دَ ډيرو زياتو مشرکانو فرنګيانو يهودو هندوانو اوملحدانو خلقو شعار جوړ شوې دې اودَ طائفه

قلندریه دا شعار جوړشوې دې دَ کوم چه دین سره هیڅ واسطه نشته.

**دږیرې حکم:** اودَ ښځوکه چرته ږیره راغله نودَهغې خرول مستحب دی. ږیره ساتل واجب دی دې ته دَ سنت ونیلو مطلب دادې چه په سنت طریقه سره ثابته ده . رسول الله ﷺ او هرنبی اوهرصحابی ږیره ساتلوباندې همیشه والې کړې دې کوم چه دَ وجوب دلیل دې.

**قوله:** وَقَصُّ الْأَظْفَارِ:

**دنوکانو کټ کولو مستحب طریقه:** یعنی نوکونه پرې کول یوفطری عمل دې کوم خلق چه نوکونه اوږده وی دادَ غیرفطری اوغیرانسانی فعل مرتکب دی. نوکونه پرې کول په هره طریقه جائزدی لیکن بهترطریقه داسې ده چه دَ ښی لاس دَ مسواکې ګوتې نه شروع کړی دکچې ګوتې پورې دې پرې کړی اوبیادې غټه ګوته دې پرې کړی دَ ګس لاس دَ کچې نه شروع کولوسره دَ غټې ګوتې پورې پرې کړی. بعضو وئیلی دی چه دَښی لاس غټه ګوته پرېږدی اودَ ګس لاس دَ مسواکې ګوتې نه دې شروع کړی دَغټې ګوتې پورې دې پرې کړی او په آخره کښې دې دَ ښی لاس په غټه ګوته باندې ختم کړی. او په خپوکښې دَ ښې خپې دَ کچې ګوتې نه واخله دَ ګسې خپې دآخرې پورې دې پرې کړی داعام اورائج طریقه ده.

**قوله:** وَغَسْلُ الْبَرَاجِمِ:

**د براجم په حکم کښې نور ځیزونه:** دا حکم هرهغه ځائی ته عام دې چرته چه خیرې جمع کیږی. مثلاً دَ غوږ نه چاپیره اودَدې دننه حصه، پوزه او په دې کښې دننه چه کوم خیری جمع کیږی یا دَ بدن باقی حصوکښې چرته چه خیرې جمع کیږی ټول په دې کښې داخل دی.

**قوله:** وَنَتْفُ الْإِبِطِ:

**د ترخ څه دویختو لرې کولو طریقه:** سنن الانبیاء دې. یعنی دَهغوی په خلقت کښې داخل وو نوزمونږ په خلقت کښې هم داخل دې. نتف" دَ راویستلو په معنی کښې دې لهذا دالفظ ښائی چه دَ ترخ ویښته په چاړه سره نه دی صفاکول پکار ځکه چه په دې سره ویښته ګنړیږی اوخنګلی کیږی اوبیابدبوئی پیداکیږی. په ګوتوسره دَ شروع نه چه دَدې عادت جوړکړې شی بیادا ویښته په آسانئی سره راویستې شی

**قوله:** وَحَلْقُ الْعَانَةِ:

**د نامه نه لاندې ویښتولرې کولو طریقه:** یعنی دَنامه نه لاندې ویښته خرول ابن ملك (چه یوفقیه دې) فرمائی چه دَنامه نه لاندې ویښتوکښې خرول سنت دی په بل څه طریقه سره صفاکولوکښې به سنت نه اداکیږی بعضو بال صفا او په نوره سره صفاکولوته هم جائز ویلی دی مګر په قینچی سره پرې کول جائزنه دی. دَ سړودَپاره په اوسپنه باندې خرول دَ قوت باه سبب دی اودَ ښځودَپاره دَنامه نه لاندې ویښته په ګوتو راویستل بهتر دی په دې

سره دَهغوی شهوت کنټرول کیږی خوهغوی بال صفا اونوره هم استعمالولې شی مګر دَهغوی دَپاره خرول خلاف سنت دی

**د ترخ وینبته وغیره لرې کولو دپاره مسنون موده:** دَ مسلم شریف روایت کښې دی چه حضورپاك دَ صحابه کرامودَپاره دَ بریت صفا کولو نوکونه پرې کولو دَ ترخ وینبته صفاکولو اودَ نامه نه لاندې وینبته صفا کولودَپاره دَ زیات نه زیات څلویښت ورځې وخت مقررکړې وو نودَپوره امت دَپاره هم دغه تعلیم دې علماؤ داترتیب خودلې دې چه هره هفته دې صفائی حاصلوی ګنی پنځلس ورځوکښې دې حاصله کړی ګنی په څلویښت ورځو کښې دې حاصل کړی دې نه زیات وخت لګول مکروه تحریمی دی.

**په لسو څیزونو کښې د ابراهیم علیه السلام امتحان اخستل:** بعضې روایاتو کښې راغلی دی چه دا لس څیزونه هغه وودکوم په ذریعه چه الله تعالی دَحضرت ابراهیم علیه السلام امتحان اخستې وو دکوم طرف ته چه په دې آیت کښې اشاره ده ﴿ وَاِذِ ابْتَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ رَبُّهٗ بِكَلِمٰتٍ فَاَتَمَّهُنَّ ﴾ نودادَحضرت ابراهیم علیه السلام سنت وو اودَ ټولو أنبیاء کرامو سنت وو اودَ امتونو دَ فطرت حصه جوړه شوه.

| |
|---|
| ۳۸۰—( )[ ۰ ] [۱] وَعَنْ أَبِي دَاوُدَ، بِرِوَايَةِ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ. |

**ترجمه:** [۱] د ابو داود په حوالې سره دعماربن یاسردروایت څخه نقل کړي دي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۳۸۱] مسواك او د الله تعالى رضا

| |
|---|
| ۳۸۱—( )[۵] [۱] عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «السِّوَاكُ مَطْهَرَةٌ لِلْفَمِ [۳] مَرْضَاةٌ لِلرَّبِّ» " رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ وَأَحْمَدُ وَالدَّارِمِيُّ وَالنَّسَائِيُّ، وَرَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي صَحِيحِهِ بِلَا إِسْنَادٍ. |

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها روایت کوي چې رسول ﷺ وفرمایل [۲] مسواك وهل د خلې د پاکي سبب دي [۳] د پروردګار د رضا باعث دي. (شافعي، احمد دارمي نسائي) او امام بخاري رحمه الله دا حدیث په خپل صحیح جامع بخاري کې بغیر د سند څخه نقل کړي دي.

**حل اللغات:** ① مَطْهَرَةٌ: مصدر میمی دې په معنی د اسم فاعل سره، أَيْ: مُطَهِّرٌ لِلْفَمِ: خُله پاکونکې، ② مَرْضَاةٌ: مصدر میمی دې په معنی د اسم فاعل سره، أَيْ مُحَصِّلٌ لِرِضَا اللّٰهِ تَعَالَىٰ: د الله تعالی د رضا حاصلونکې.

---

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة . باب السواک من الفطرة (رقم- ٥٤) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها باب الفطرة (رقم-٢٩٤)

(۲) اخرجه النسائی کتاب الطهارة . باب الترغیب فی السواک (رقم- ٥) والدارمی کتاب الطهارة/باب السواک مطهرة للفم (رقم-٧١١)

[۳۸۲] د څلورو څيزونو د سنة الانبياء ښځه کيدل

۳۸۲ - (۱) [۶] ① وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② «أَرْبَعٌ مِنْ سُنَنِ الْمُرْسَلِينَ: ③ الْحَيَاءُ - وَيُرْوَى الْخِتَانُ - ④ وَالتَّعَطُّرُ، وَالسِّوَاكُ، وَالنِّكَاحُ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① ابو ایوب رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② څلور څيزونه د رسولانو د طريقي ښځه دي ③ ① حياء کول (په يوروايت کې) ختنه کول روايت دي [يعني په دې روايت کې خو اَلْحَيَاءُ لفظ دي او په بعضې روايتونو کې د دې په ځاي اَلْخِتَانُ لفظ راغلي دي] ④ ② خوشبو لګول ③ مسواک وهل ④ نکاح کول. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① سُنَنِ: جمع د سنة ده، طريقه، ② اَلْمُرْسَلِينَ: د اسم مفعول صيغه ده، رالیږلی شوی يعنې انبياء کرام. ③ اَلْحَيَاءُ: حياء، شرم کول (هغه کارونه چه دهغې په کولو باندې انسان شرميږی او په معاشره يا په شرع کښې بد ګنړلې کيږی). ④ اَلْخِتَانُ: سنت کول ⑤ اَلتَّعَطُّرُ: أَيِ التَّطَيُّبُ بِالطِّيبِ: خوشبو لګول.

[۳۸۳] د خوب ښځه وروسته د مسواک استعمال

۳۸۳ - (۲) [۷] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَا يَرْقُدُ مِنْ لَيْلٍ وَلَا نَهَارٍ فَيَسْتَيْقِظُ، ③ إِلَّا يَتَسَوَّكُ قَبْلَ أَنْ يَتَوَضَّأَ» . رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه رضی الله عنها فرمايي ② حضور ﷺ چې به کله د شپې او ورځې دخوب ښځه وروسته پاڅيدلو ③ نو اودس کولو ښځه مخکې به يې مسواک وهلو. (احمد، ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① لَا يَرْقُدُ: أَيْ: لَا يَنَامُ: نه به اوده کيدو

[۳۸۴] د مسواک وينځل

۳۸۴ - (۳) [۸] ① وَعَنْهَا قَالَتْ: ② «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَسْتَاكُ، فَيُعْطِينِي السِّوَاكَ لِأَغْسِلَهُ ③ فَأَبْدَأُ بِهِ فَأَسْتَاكُ، ثُمَّ أَغْسِلُهُ وَأَدْفَعُهُ إِلَيْهِ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه صديقه رضی الله عنها فرمايي ② چې رسول الله ﷺ به مسواک وهلو بيا به يې ماته راکولو چې زه هغه ووينځم ③ نو ما به د حضور ﷺ ښځه مسواک اخستو سره اول به مې په هغې سره ښځله مسواک کولو بيا به مې ووينځلو او حضور ﷺ ته به مې ورکولو (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① فَأَبْدَأُ: اول به ما استعمالولو، ② أَدْفَعُهُ: ورکولو به مې نبی عليه السلام ته.

(۱) اخرجه الترمذی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل التزویج، والحث علیه (رقم-۱۰۸۰)

(۲) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة . باب السواک لمن قام من اللیل (رقم-۵۷)

(۳) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة . . باب غسل السواک (رقم-۵۲)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۸۵] په دوو کسانو کښې مسواک مشر ته ورکول**

۳۸۵ - (۱) [۹] ① عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② «أَرَانِي فِي الْمَنَامِ أَتَسَوَّكُ بِسِوَاكٍ، ③ فَجَاءَنِي رَجُلَانِ أَحَدُهُمَا أَكْبَرُ مِنَ الْآخَرِ، ④ فَنَاوَلْتُ السِّوَاكَ الْأَصْغَرَ مِنْهُمَا، ⑤ فَقِيلَ لِي: كَبِّرْ، فَدَفَعْتُهُ إِلَى الْأَكْبَرِ مِنْهُمَا» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابن عمر رضي الله عنهما راوي دي چې يوه ورځ رسول الله ﷺ وفرمايل ② چه ما خپل ځان په خوب کې وليدلو چې زه مسواک وهم ③ (په دي دوران کي) دوه سړي ماته راغلل په هغوئ کې يو سړي د بل څخه لوي وو ④ ما په هغوئ کې هغه کشر ته د مسواک ورکولو اراده وکړه ⑤ خو ماته اوويل شو چې مشر ته مسواک ورکړه نو ما په هغوئ کې مشر ته مسواک ورکړلو. (بخاري او مسلم)

**حل اللغات:** ① كَبِّرْ: أَيْ: قَدِّمِ الْكَبِيرَ فِي السِّنِّ: يعني مخکښې هغه کس ته ورکوه چه هغه په عمر کښې زيات وي.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَرَانِي:

**د پيغمبر د خوب حکم:** يعني ماخپل ځان په خوب کښې اوليدو. دانبياؤ عليهم السلام خوب هم وحي وي. نو کوم عمل چې هغوئ په خوب کښې اوکړو هغه د امت دپاره شريعت جوړيږي.

**مسواک مشر ته ورکول:** نوګويا چه مسواک د اعزاز او اکرام يو سبب دې. نو نبي عليه السلام مشر له دا اکرام ورکړو. ددې حديث پاك نه پس راتلونکي د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها حديث نمبر (۳۸۸) کښې داشان يوه قصه په بيدارۍ کښې راتلل مذکور دی او هغې کښې نبي کريم ﷺ ته دوحي په ذريعه حکم اوشو چې مسواک دې مشر کس ته ورکړه.

**د مسواک فضيلت:** دې حديث پاك نه پس په ډيرو احاديثو کښې د مسواک ډير زيات ترغيب ورکړې شوې دې. حديث نمبر (۳۸۶) کښې «لَقَدْ خَشِيتُ أَنْ أُحْفِيَ مُقَدَّمَ فِيَّ» الفاظ راغلي دي، احفاء پټ اړولو ته وائي. نبي کريم ﷺ فرمائي چې جبرائيل امين عليه السلام په مسواک باندې دومره زور ورکړو چې په مسواک مسواک کولوماسره ويره پيدا شوه چې په خله کښې مخکښې حصې نه پټ وانړوم، في، په فم کښې يولغت دې، په شدسره خلې ته وائي.

---

(۱) اخرجه البخاری کتاب الوضوء باب دفع السواک إلی الأکبر (رقم-۲۴۶) ومسلم کتاب الرؤيا باب رؤيا النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۱۹ - (۲۲۷۱)

**[۳۸۶] د جبریل علیه السلام بار بار د مسواک حکم کول**

۳۸۶—() [۱۰] ①وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②" «مَا جَاءَنِي جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَطُّ إِلَّا أَمَرَنِي بِالسِّوَاكِ ③لَقَدْ خَشِيتُ أَنْ أُحْفِيَ مُقَدَّمَ فِيَّ» . رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① ابي امامه رضی الله عنه وايي چه رسول ﷺ وفرمايل② چې کله به هم جبرائيل عليه السلام ماته راتلو نو ماته به يې د مسواك كولو حكم كولو③ (تر دې چې) زما سره دا خوف شو (چې د مسواك زياتي سره) زه چرته د خپلي خلي مخكي حصه ونه خيرم. (احمد)

**حل اللغات:** ① قَطُّ: كله هم ② خَشِيتُ: أي خِفْتُ: زه ويريدم. ③ أُحْفِيَ: أي اَسْتَأْصِلَ: دا د احفاء نه دي، د بيخه ختمولو ته وائي. ④ مُقَدَّمَ فِيَّ: أي لِثَتِي: د خُلي مخكنبي حصه يعنی اوري.

**[۳۸۷] د نبي عليه السلام خپل امت ته د مسواک تاکید**

۳۸۷—() [۱۱] ①وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②" «لَقَدْ أَكْثَرْتُ عَلَيْكُمْ فِي السِّوَاكِ» " رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضی الله عنه فرمايي چه رسول ﷺ وفرمايل② ما تاسو ته د مسواك په شان كې ډير څه بيان كړيدي. (بخاري)

**[۳۸۸] د مسواک په ورکړه کښې مشر ته ترجيح ورکول**

۳۸۸—() [۱۲] ①وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ②«كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَسْتَنُّ وَعِنْدَهُ رَجُلَانِ، ③أَحَدُهُمَا أَكْبَرُ مِنَ الْآخَرِ، ④فَأُوحِيَ إِلَيْهِ فِي فَضْلِ السِّوَاكِ أَنْ كَبِّرْ، ⑤أَعْطِ السِّوَاكَ أَكْبَرَهُمَا» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① عائشه صديقه رضی الله عنها فرمايي② چې رسول ﷺ مسواك وهلو او دوه سړي ورسره وو③ چې په هغوي كښې يو د بل څخه مشر وو④ نو د مسواك په فضيلت كې حضور ﷺ ته دا وحي وشوه چې لوي (مشر) مقدم اوساته⑤ او په هغه دواړو كې مشر ته مسواك وركړه. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① يَسْتَنُّ: أي: يَسْتَاكُ: مسواک ئې وهلو. ② كَبِّرْ: أي: قَدِّمِ الْكَبِيرَ فِي السِّنِّ: يعنی مخكښي هغه كس ته وركوه چه هغه په عمر كښې زيات وي.

---

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها باب السواک (رقم- ۲۸۹)

(۲) اخرجه البخارى كتاب الجمعة باب السواک يوم الجمعة (رقم-۸۸۸) والنسائی كتاب الطهارة ، باب الترغيب فی السواک (رقم- ۶)والدارمی كتاب الطهارة /باب فی السواک (رقم-۷۰۸)۳۸۷ - (وعن أنس قال: قال رسول الله - صلى الله عليه وسلم -:

(۳) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة ، باب فی الرجل يستاک بسواک غيره (رقم- ۵۰)

**[۳۸۹] د مسواک مونځ بغير مسواک مونځ څخه يو په اويا درجې زيات ثواب لرل**

۳۸۹–(۱)[۱۳] ۱وَعَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲«تَفْضُلُ الصَّلَاةُ الَّتِي يُسْتَاكُ لَهَا ۳عَلَى الصَّلَاةِ الَّتِي لَا يُسْتَاكُ لَهَا سَبْعِينَ ضِعْفًا». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي عائشه رضي الله عنها راويه ده چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ هغه مونځ چې د هغه د پاره مسواك ووهل شي (يعني د اودس په وخت كي) ۳ په هغه مونځ چې د هغه د پاره مسواك نه وي وهل شوي اويا ۷۰ درجې فضيلت لري. (بيهقي)

**حل اللغات:** ① تَفْضُلُ: أَيْ: تَزِيدُ فِي الْفَضِيلَةِ: يعنی په فضيلت اوثواب كښې زياتيږی. ② ضِعْفًا: أَيْ مِثْلَ الْعَدَدِ الْمَذْكُورِ: يعنی د مذكوره شمير دوچند ته ضعف وائی (په كسرې سره).

**[۳۸۹] هر مانځه ته د فرض په حيث د مسواك د استعمال حكم وركولو اراده كول**

۳۸۹–(۲)[۱۴] ۱وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: «لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي ۳لَأَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ ۴وَلَأَخَّرْتُ صَلَاةَ الْعِشَاءِ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ.

**ترجمه:** ۱ ابوسلمه دزيد بن خالد الجهني رضي الله عنه څخه روايت كوي ۲ چې ما د رسول ﷺ څخه اوريدلي دي چه كه ما دخپل امت د پاره دا گران نه گڼلاي ۳ نو هغوی ته به مې د هر لمانځه د پاره د مسواك وهلو حكم وركړي وو (يعني دا اعلان به مې كړي وو چې د هر لمانځه په وخت مسواك وهل واجب دي) ۴ او ما د ماسخوتن په لمانځه كې تر دريمې حصې د شپې پورې تاخير كولو.

۱قَالَ: فَكَانَ زَيْدُ بْنُ خَالِدٍ يَشْهَدُ الصَّلَوَاتِ فِي الْمَسْجِدِ ۲وَسِوَاكُهُ عَلَى أُذُنِهِ مَوْضِعَ الْقَلَمِ مِنْ أُذُنِ الْكَاتِبِ ۳ لَا يَقُومُ إِلَى الصَّلَاةِ إِلَّا اسْتَنَّ، ثُمَّ رَدَّهُ إِلَى مَوْضِعِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، ۴وَأَبُو دَاوُدَ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ: «وَلَأَخَّرْتُ صَلَاةَ الْعِشَاءِ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ». ۵(وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** ۱ د راوي بيان دي چې د دي څخه وروسته زيد بن خالد رضي الله عنه به چې كله د لمانځه د پاره راتلو ۲ نو مسواك به يي په غوږ كې ايښي وو څنګه چې كاتب په غوږ كې قلم ايږدي ۳ هغه چې به كله مونځ ته ودريدلو نو سمدستي مسواك به يي وهلو او بيابه يي په غوږ كي ايښودو. ابوداؤد ترمذي، ۴ ابوداؤد لَأَخَّرْتُ صَلَاةَ الْعِشَاءِ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ الفاظ نه دي ذكر كړي ۵ او ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن صحيح دي

**حل اللغات:** ① أَشُقَّ: أَيْ ثَقُلَ: كه مشقت پري نه جوړيدو، گرانه ورته نه وي.

---

(۱) اخرجه احمد فى المسند ۶/۲۷۲ والبيهقى فى شعب الايمان

(۲) اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ۲۳ وابوداود كتاب الطهارة، باب السواک (رقم-۴۷)

# [۴/۹] بَابُ سُنَنِ الْوُضُوءِ

## داودس د سنتو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه خمسة وثلاثون حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① سنن الوضوء: ۱، ۲، ۷، ۸، ۹، ۱۰ ،۱۱، ۱۲، ۱۳،۱۴ ،۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰ ، ۳۴، ۳۵ .

② التثليث في الوضوء: ۳، ۴، ۵، ۲۳،۲۸، ۲۹، ۳۰ .

③ الزجر لمن لا يراعي حقوق الوضوء: ۶، ۱۰، ۲۴، ۲۵، ۳۴.

④ التنشيف بعد الوضوء: ۲۶، ۲۷.

⑤ الوضوء لكل صلوة :۳۱، ۳۲.

**د سنت څخه مراد:** علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دلته دَ سنن الوضوء په عنوان سره صرف داودس سنت مراد نه دی بلکه دلته دَ حضورپاك اقوال افعال اوتقریرات ټول مراددی. اوکه هغه سنت وی که فرض وی، لکه څنګه چه دَ فرض اوواجب باره کښې هم کله کله راځی چه په سنت کښې داسې راغلی دی حالانکه هلته صرف سنت مراد نه وی بلکه په سنت طریقې سره ثابت دَ شریعت حکم مراد وی لهذا په دې باب کښې به سنت فرائض او آداب او استحباب ټول بیانیږی. [ الکاشف ۲/۷۱]

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۳۹] دخوب څخه پس بغیر وینځلو په لوښې کښې د لاس داخلولو کراهت**

۳۹-(۱)[۱] ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ نَوْمِهِ ③فَلَا يَغْمِسْ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ حَتَّى يَغْسِلَهَا، ④فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① دَ حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دې فرمائی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائی. ② کله چې تاسو کښې څوك دَ خوب نه پاسی (نوهغه له پکار دی چې) ③ خپل لاس

---

(۱) اخرجه البخاری كتاب الوضوء باب الاستجمار وترا(رقم-۱۶۲) ومسلم كتاب الطهارة باب كراهة غمس المتوضئ وغيره يده المشكوك في نجاستها في الإناء قبل غسلها ثلاثا(رقم-۸۷ - (۲۷۸) وابوداود كتاب الطهارة ، باب في الرجل يدخل يده في الإناء قبل أن يغسلها (رقم- ۱۰۵) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب: الرجل يستيقظ من منامه، هل يدخل يده في الإناء قبل أن يغسلها (رقم-۳۹۳) ومالک في الموطا كتاب الطهارة باب وضوء النائم إذا قام إلى الصلاة(رقم- ۹) والنسائي كتاب الطهارة ،تأويل قوله عز وجل: {إذا قمتم إلى الصلاة فاغسلوا وجوهكم وأيديكم إلى المرافق} [المائدة: ۶](رقم- ۱)

دَ اوبو لوښی کښې نه وهی ترکومې پورې چه هغه دَ مړوندونو پورې درې ځل او نه وینځی[۳] دا ځکه چه ده ته نه ده معلومه چه ټوله شپه دَ ده لاس کوم کوم ځائی پاتې دې. (متفق علیه)

**حل اللغات:** ① فَلَايَغْمِسْ: نه دې وهی، نه دې داخلوی (لاس)، ② لَايَدْرِي: أَيْ: لَايَعْلَمُ: پته ورته نشته، نه دې خبر، ③ بَاتَتْ: شپه تیره کړې ده.

**تسهیلات:**

**قوله: فَلَايَغْمِسْ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ:**

**د خوب څخه پس په لوښی کښې د لاس داخلولو ممانعت:** دلته دَاودس دَ آدابونه یوادب دا خودلې شوې دې چه کله اوده شئی اوراپاسئی نودَ اوبوپه لوښی کښې دَ لاس وهلونه وړاندې درې ځل لاسونه وینځئی بغیردَ وینځلو نه په کښې لاس مه وهئی. اوس دا لاس وینځل واجب دی یا سنت دی په دې کښې داتفصیل دې چه که په لاس باندې دَ ګندګئی لګیدویقین یا غالب ګمان وی نوبیالاس وینځل واجب دی اوکه صرف شك اواحتمال وی نو لاسونه ویځل مسنون یا مستحب دی.

**په لوښی کښې د دلاس داخلولو څخه وړاندې دلاس په وینځلو کښې مذاهب:**

دې کښې اختلاف دې چه دغسل الیدین دا حکم دکومې درجې دې

① امام اسحاق رحمه الله او داوٗد رحمه الله ظاهری دا د وجوب دپاره ګرځوی او علامه ابن قدامه په المغنی کښې دامام احمد رحمه الله داقول نقل کړې دې.چه ددوئ په نزد داحکم وجوبی دې.

② خوامام شافعي رحمه الله دې حکم ته علي الاطلاق مسنون وائی

③ امام مالك رحمه الله علي الاطلاق مستحب

④ دحنفیانو په نزد دې مسئله کښې تفصیل دې. کوم چه علامه ابن نجم په البحرالرائق کښې بیان کړې دې.که په لاسونود نجاست لګیدو یقین وی نو غسل الیدین فرض دې. اوکه ظن غالب وی نو واجب اوکه شك وی نو مسنون او که شك نهَ وی نو مستحب دې.

**داختلاف مدار:** په اصل کښې جمهورو دلته د نجاست وهم د حکم علت ګرځولې دې.د دې وجه د حکم مدارپه دې دې.او ددې وجه ددوئ په نزد دشپې او د ورځې څه تفصیل شته اونه داحکم دوجوب دپاره دې.ځکه چه وهم سره وجوب نه ثابتیږی ددې په خلاف امام احمد رحمه الله دعلت مستنبط کولوپه ځائې دحدیث د ترمذی په ظاهری الفاظوعمل کوی.ددې وجه دوئ دشپې اودورځې تفصیل اوکړو.اوحکم ئې دوجوب دپاره ګرځولې دې

**په اوبو کښې د لاس داخلو څخه پس د دغه اوبو په حکم کښې مذاهب:**

دلته یوه مسئله داده.که یو سړې په دې حکم عمل اونه کړی او دبیدارېدونه پس لاسونه

دوینځلونه بغیر په لوښي کښې ورننه باسی نو ددې څه حکم دې ؟

① دحضرت حسن بصری رحمه الله نه منقول دې چه دلوښې اوبه به مطلقًا نجس شی.

② دامام احمد رحمه الله په نزدکه اوبه کثیروی نونجس به نه وی اوکه قلیل وی نونجس به وی.

③ دامام شافعی رحمه الله په نزد اوبه خوبه نجس نه وی.خومکروه به وی.

④ دامام مالك رحمه الله په نزد به اوبه بلاکراهت پاکې وی

⑤ د حنفیانو په نزد هم هغه تفصیل دې.چه کوم ماقبل بیان شو.

**د خوب څخه پس د لاس د وینځلو په حکمت کښې دوه اقوال:**

① علامه نووی رحمه الله دامام شافعی رحمه الله اود نوروفقهاؤ نه نقل کړی دی.چه دغسل الیدین نه پس استیقاظ من منامه د حکم پس منظر دا دې چه اهل عربوبه عمومًا لنګ اغوستو اوملك ګرم وو خوله به ډیره وه اوعام د استنجاء بالحجارة رواج وو نو .دغه زمانه کښې زیات احتمال وو.چه د اوده سړی لاس څه مقام نجس ته اورسیږی ګنده شی.د دې وجه دا حکم اوشو د دې تقاضا دا ده چه کوم سړی استنجاء بالماء کړې وی.یاپرتوګ ئې اغوستې وی نو ده دپاره داحکم نه دې.

② خوعلامه ابوالولیدباجی مالکی رحمه الله فرمائی.چه دې معامله کښې داهل عراقوقول ډیر ښه دې چه په اصل کښې دا حکم دطهارت په ځائې دنظافت سره تعلق لری.یعنی که دلاس د نجس کیدو احتمال نه وی. نو بیا هم د اوده کیدونه پس لاس وینځلونه بغیر لوښې ته ننویستل د نظافت خلاف دی.اوشریعت کښې دطهارت سره نظافت هم مطلوب دې.ددې وجه دا حکم صرف د دغه زمانې سره مخصوص نه وو.بلکه ټولو انسانانو ،ټولو زمانو اوټولوعلاقو دپاره دا حکم عام دې.

**[۳۹۲] د خوب څخه وروسته درې واره پوزه سونړول**

۳۹۲-(۱)[۲] ①وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ نَوْمِهِ ③فَلْيَسْتَنْثِرْ ثَلَاثًا ④فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَبِيتُ فِي خَيْشُومِهِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ".

**ترجمه:** ① دَ حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دې فرمائی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائی:② کله چې تاسو کښې څوك دَ خوب نه پاسي [او دَ اودس اراده اوکړی]③ نو درې ځل دې (پوزه کښې اوبه واچوی) پوزه دې صفا کړی ④ ځکه چه دَ ده دَ پوزې په سپیږمو باندې شیطان شپه تیروی. (بخاری و مسلم)

**حل اللغات:** ① فَلْيَسْتَنْثِرْ: پوزه دې سونړ کړی یعنی پوزه کښې ئې چه کومې اوبه اچولې دی هغه دې اوباسی، ② يَبِيتُ: شپه تيروی، ③ خَيْشُومِهِ: أی أَقْصَى أَنْفِهِ: په پوزه کښې دننه حصه.

(۱) اخرجه البخاری بدء الخلق باب صفة إبليس وجنوده(رقم: ۳۲۹۵) ومسلم كتاب الطهارة باب الإيتار في الاستنثار والاستجمار(۲۲ - (۲۳۸) والنسائيكتاب الطهارة ، باب الأمر بالاستنثار عند الاستيقاظ من النوم (رقم- ۹۰)

## [۲۹۲] د نبي علیه السلام د اودس طریقه

۲۹۲-(۱) [۰] [۱] «وَقِيلَ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ: [۲] كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَتَوَضَّأُ؟ [۳] فَدَعَا بِوَضُوءٍ [۴] فَأَفْرَغَ عَلَى يَدَيْهِ فَغَسَلَ يَدَيْهِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ، [۵] ثُمَّ مَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثًا [۶] ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ يَدَيْهِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ،

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عبد الله بن زید بن عاصم ﷺ څخه پوښتنه وشوه [۲] چې رسول ﷺ به څنګه اودس کولو [۳] (په دې اورېدو سره) حضرت عبد الله ﷺ د اودس اوبه راوغوښتې (کوم وخت چې اوبه راوړل شوې) [۴] نو هغه په دواړو لاسونو باندې اوبه واچولې او هغه يې تر مړوندونو پورې دوه دوه ځله وينځل [۵] بیا یې خله وینځله او اوبه اچولو سره یې پوزه صفا کړه درې ځله [۶] بیا خپل مخ یې درې ځله ومینځلو بیا خپل دواړه لاسونه یې دوه دوه ځله تر څنګلو پورې ومینځل

**حل اللغات:** ① فَدَعَا: أَيْ طَلَبَهُ: راؤ ئې غوښتلې، ② وَضُوءٍ: اى مَا يُتَوَضَّأُ بِهِ: د اودس اوبه مراد دی ③ فَأَفْرَغَ: أَيْ: صَبَّ الْمَاءَ: راوانې ړولې اوبه، ④ الْمِرْفَقَيْنِ: د مرفق تثنيه ده، څنګل ته وائی،

[۱] ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ بِيَدَيْهِ، فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ، [۲] بَدَأَ بِمُقَدَّمِ رَأْسِهِ، ثُمَّ ذَهَبَ بِهِمَا إِلَى قَفَاهُ، [۳] ثُمَّ رَدَّهُمَا حَتَّى رَجَعَ إِلَى الْمَكَانِ الَّذِي بَدَأَ مِنْهُ، [۴] ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالنَّسَائِيُّ. وَلِأَبِي دَاوُدَ نَحْوَهُ ذَكَرَهُ صَاحِبُ الْجَامِعِ.

**ترجمه:** [۱] بیا دواړو لاسونو سره یې د سر مسح وکړله (داسې چې) دواړه لاسونه یې د مخې طرف څخه شاته بوتلل او شا طرف څخه یې مخې ته راوستل [۲] یعنی هغه د خپل سر د مخکې جانب څخه شروع وکړه او دواړه لاسونه یې تر څټ پورې بوتلل [۳] بیا هغه ګرځولو سره هغه ځای ته یې واپس راوستل د کوم ځای څخه یې چې شروع کړي وو [۴] او بیا دواړه پښې یې ومینځلې، (مالك، نسائي، ابوداود)

**حل اللغات:** ⑤ قَفَاهُ: دهغه څټ.

## [۲۹۳] د نبی علیه السلام اودس نقل کول

۲۹۳-(۲) [۰] [۱] وَفِي الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ: «قِيلَ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ: [۲] تَوَضَّأْ لَنَا وُضُوءَ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۳] فَدَعَا بِإِنَاءٍ، فَأَكْفَأَ مِنْهُ عَلَى يَدَيْهِ فَغَسَلَهُمَا ثَلَاثًا، [۴] " ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ فَاسْتَخْرَجَهَا فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفٍّ وَاحِدَةٍ. فَفَعَلَ ذَلِكَ ثَلَاثًا [۵] ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ فَاسْتَخْرَجَهَا، فَغَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا [۶] ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ

---

(۱) اخرجه البخاری کتاب الوضوء باب مسح الرأس کله (رقم-۱۸۵) ومسلم کتاب الطهارة باب فی وضوء النبی صلی الله علیه وسلم (ررقم-۱۸ - (۲۳۵) وابوداود کتاب الطهارة . باب صفة وضوء النبی صلی الله علیه وسلم (رقم- ۱۱۸) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/بباب ما جاء فی مسح الرأس (رقم- ٤٣٤) ومالک کتاب الطهارة باب العمل فی الوضوء (رقم- ۱) والنسائی کتاب الطهارة/باب صفة مسح الرأس(رقم-۹۸)باب صفة مسح الرأس (رقم- ۹۸)

(۲) اخرجه البخاری کتاب الوضوء باب مسح الرأس کله (رقم-۱۸۵) ومسلم کتاب الطهارة باب فی وضوء النبی صلی الله علیه وسلم (ررقم-۱۸ - (۲۳۵) وابوداود کتاب الطهارة . باب صفة وضوء النبی صلی الله علیه وسلم (رقم- ۱۱۸)

فَاسْتَخْرَجَهَا، فَغَسَلَ يَدَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ، ۷ ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ فَاسْتَخْرَجَهَا، فَمَسَحَ بِرَأْسِهِ، ۸ فَأَقْبَلَ بِيَدَيْهِ وَأَدْبَرَ ۹ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ، ۱۰ ثُمَّ قَالَ: هٰكَذَا كَانَ وُضُوءُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»

**ترجمه:** ۱ او په بخاري او مسلم کې دا روایت داسې دي چې حضرت عبد الله بن زید بن عاصم ﷛ته اوویل شو ۲ چې څنګه به رسول الله ﷺ اودس کولو هغسې ته زموږ په مخکې اودس اوکړه ۳ نو عبد الله بن زید ﷛ د اوبو لوښي راوغوښتي او لوښي چې راوړل شو نو هغه یې را کوږ کړ او د هغه څخه یې خپلو دواړو لاسونو باندې اوبه واچولي هغه یې درې خله ومینځل ۴ بیا یې لاس په لوښي کې دننه کړو او د هغې څخه یې اوبه راوښکلي بیا هغه په یوه لپه خله وینځله او په پوزه کې یې اوبه واچولي دیوه ورغوی څخه دغسې هغه درې ځله وکړل ۵ بیا هغه خپل لاس په لوښي کې اچولو سره راوښکلو اومخ یې درې ځله وینځلو ۶ بیا هغه خپل لاس په لوښي کې اچولو سره راوایستلو اودواړه لاسونه یې ترڅنګلو پورې دوه دوه ځل وینځل ۷ بیا هغه خپل لاس په لوښي کې اچولو سره راوښکلو او د سر مسح یې (داسې) وکړله ۸ چې خپل دواړه لاسونه یې د مخکې څخه د وروسته طرف ته کش کړه بیا د وروسته څخه یې د مخکې طرف ته راوستل ۹ بیا یې خپلې دواړې پښې تر بجلکو (ګیټو) پورې ومینځلې ۱۰ بیا یې وفرمایل د حضور ﷺ دغسې اودس وو.

۱ وَفِي رِوَايَةٍ: «فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ، ۲ بَدَأَ بِمُقَدَّمِ رَأْسِهِ، ثُمَّ ذَهَبَ بِهِمَا إِلَى قَفَاهُ، ۳ ثُمَّ رَدَّهُمَا حَتَّى رَجَعَ إِلَى الْمَكَانِ الَّذِي بَدَأَ مِنْهُ، ۴ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ». ۵ وَفِي رِوَايَةٍ: «فَمَضْمَضَ ۶ وَاسْتَنْشَقَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثًا بِثَلَاثِ غَرَفَاتٍ مِنْ مَاءٍ». ۷ وَفِي رِوَايَةٍ أُخْرَى: «فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفَّةٍ وَاحِدَةٍ، فَفَعَلَ ذٰلِكَ ثَلَاثًا». ۸ وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ: «فَمَسَحَ رَأْسَهُ ۹ فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ مَرَّةً وَاحِدَةً، ۱۰ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ. ۱۱ وَفِي أُخْرَى لَهُ: فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ مِنْ غَرْفَةٍ وَاحِدَةٍ».

**ترجمه:** ۱ او د بخاري او مسلم په یو روایت کې داسې دي چې (د مسح د پاره یې) خپل دواړه لاسونه د مخکې څخه وروسته طرف ته بوتلل بیا د وروسته څخه د مخکې طرف ته یې راوستل ۲ یعنی د خپل سر د مخکني حصې څخه یې مسح شروع کړه او لاسونه یې ترڅټ پورې بوتلل ۳ بیا د څټ د طرف څخه یې هلته راوستل د کوم ځای څخه چې مسح شروع کړې وه ۴ بیا یې خپلې پښې ومینځلې، ۵ د صحیحینو په یو بل روایت کې داسې دي چې خله یې وینځله ۶ اویو لپه سره یې په پوزه کې اوبه واچولي دغسې یې درې ځله وکړل، ۷ اوپه بل روایت کې داسې دی چې په خله او پوزه کې یې دیوه ورغوی څخه اوبه واچولی اوداکاریې درې ځله وکړی ۸ اود بخاري دیو روایت الفاظ دا دي او د سر مسح یې وکړه (داسې چې) ۹ خپل دواړه لاسونه یې د مخکې څخه وروسته طرف ته بوتلل او د وروسته څخه یې مخکې طرف ته راوستل او داسې یې یو ځل وکړل ۱۰ بیا دواړه پښې یې

تر بجلکو پورې ومینځلي، [۱۱] د بخاري د یو بل روایت الفاظ دا دي نو خله یې وینځله او پوزه یې صرف په یوه لپه درې خله سونږ (صفا) کړه.

**حل اللغات:** ① فَأَكْفَأَ: ای أَمَالَ: راتونې کړو، راوانې ړولو، ② كَفّ: ای غُرْفَة: لپه، چونګ، ③ الْكَعْبَيْنِ: د کعب تثنیه ده، د خپو ګیټې.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثًا: یعنی درې ځل دې په پوزه کښې اوبه وا چوی او سونږ دې کړی، دې ته استنشاق هم وائی. په مضمضه او استنشاق کښې د فقهاء کرامو اختلاف دې.

**قوله:** " إِذَا تَوَضَّأْتَ فَانْتَثِرْ "

**د استنثار معنی:** استنثار د ((نثرة)) څخه ماخوذ دې د پوزې پورتنۍ حصه، انتشار حرکت ورکولو ته وائی.او استنثار د ساه په ذریعه اوبو راویستلو ته وائی که په دې کښې د لاس مدد وی او که نه وی البته د امام مالك رحمه الله څخه یو روایت دې چې د لاس دمدد څخه بغیر استنثار کول صحیح نه دی ځکه چې په دې کښې تشبه بالحیوانات ده نو د ګس لاس څخه مدد اخستل پکار دی.()

**قوله:** وَإِذَا اسْتَجْمَرْتَ

**د استجمار معنی:** د استجمار اطلاق په درې څیزونو باندې کیږی.

① استنجاء بالحجارة یعنی په کاڼړی استنجاء کول.

② استجمار من المجمرة یعنی د انګیټۍ څخه سکروټکه اخستل.

③ د جمر ویشتل دلته اولنۍ معنی راجح ده.

**د مضمضه او استنشاق په حکم کښې مذاهب:**

① **د دواړو وجوب:** اول مسلك دابن ابی لیلی رحمه الله ، عبدالله بن مبارك رحمه الله ، امام احمد رحمه الله او دامام اسحاق رحمه الله دې.هغه دا چه مضمضه او استنشاق دواړه په اودس اوغسل دواړو کښې واجب دی.

**دلائل:** ①د قائلین بال.وجوب دلیل حدیث باب په دې کښې داستنشار سره صیغه د امر راغلې ده.دې څخه دمضمضه وجوب هم ثابتیږی.لعدم القائل بالفصل

② دغه شان د مضمضه په وجوب باندې استدلال د یوبل روایت څخه هم دې.چه ابوداوُد کښې د لقیط بن صبره نه مروی دې.((اذاء توضأت فمضمض)) یعنی کله چې اودس کوې نو مضمضه کوه. په دې کښې د مضمضه امر دې امر دپاره د وجوب وی.

[۱] ) فتح الباری (۱|۳۰۵)۔

**دویم مذهب په اودس او غسل کښې د دواړو سنتیت:** دویم مسلك دامام مالك رحمه الله او دامام شافعی رحمه الله دې چه مضمضه او استنشاق دواړه په اودس او غسل دواړوکښې سنت دی.

**دلائل:** ① ددوی مستدل دحضرت عائشې رضی الله عنها داحدیث دې ((عشر من الفطرة)) ([1])یعنی لس څیزونه د انبیاء فطرتی دی یعنی د هغوی سنت دی بالخصوص د حضرت ابراهیم علیه السلام اوپه هغې کښې مضمضه اواستنشاق هم شمار شوې دی.دغه شان دحضرت عمار بن یاسر روایت دې((قال ان رسول الله قال ان من الفطرة المضمضة والاستنشاق الحدیث)) حدیث دې.
②دغه شان ابوداؤد کښې روایت دې.چه نبی کریمﷺ یوصحابی ته اوفرمائیل ((توضأ کما امرك الله)) اوقرآن کریم کښې الله تعالی د مضمضه او استنشاق حکم چرته هم نه دې کړې د څخه معلومه شوه چه دا واجب نه دی.شوافع او مالکیان په حدیث باب کښې صیغه د امر په استحباب حمل کوی

**دریم مذهب په اودس او غسل کښې د دواړو فرضیت:** دریم مسلك ابن العربی رحمه الله دا هم ذکر کړې دې چې د ابوثور رحمه الله په نیز مضمضه په اودس او غسل دواړو کښې فرض ده.

**دلائل:** ① د نبی کریم ﷺ ارشاد دې ((اذا توضأ احدکم فلیجعل فی انفه ماء ثم لیستنثر)) ([2]) یعنی کله چې په تاسو کښې څوك اودس کوی نو په پوزه کښې دې اوبه واچوی اوبیا دې د پوزې څخه اوبه راؤباسی.دلته د ((لیجعل))د امر صیغه ده او امر دپاره د فرضیت او وجوب وی
② د نبی کریم ارشاد دې ((اذا استیقظ احدکم من منامه فلیستنثر ثلاث مرات فان الشیطان یبیت علی خیاشمه وفی روایة خیشومه)) ([3]) یعنی نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی کله چې په تاسو کښې څوك دخپل خوب څخه رابیدار شی نو په پوزه کښې دې درې ځله اوبه واچوی ځکه چې شیطان دده په پوزه کښې شپه تیروی.
③ دریم دلیل د لقیط بن صبره حدیث دې کوم چې وړاندې د «وفی الباب»په حاشیه کښې تیر شوې دې.

**د فرضیت او وجوب د دلائلو څخه جوابونه:** د وجوب دلائل په دوه قسمه دی یو دا چې نبی کریم حکم کړې دې دویم دا چې نبی کریم ﷺ په دې دواړو باندې مواظبت او همیشوالې کړې دې،د اول څخه جواب دا دې چې په هر ځائې کښې اامر د وجوب دپاره نه وی بلکه کله د اباحت دپاره وی لکه (ق)(( وذا حللتم فاصطادوا)) اوکله چې استحباب دپاره وی لکه

---

[1] )کمافی روایة عائشه رضی الله عنها فی ابی داود ۸۱۱ باب السواک من الفطرة)_
[2] ) الصحیح البخاری (۱|۲۸)-باب الاستجمار وترا صحیح مسلم (۱|۱۲٤) باب فی الایتار والاستجمار)-
[3] ) صحیح بخاری ومسلم

((فكاتبوهم ان علمتم فيهم خيرا)) (ق) لنډا دا چې امر په یوویشتو معانیو راځی لکه څنګه په اجمل الحواشي کښې په تفصیل سره موجود دی نو دلته هم امر د وجوب دپاره نه دې بلکه د استحباب اور نستیت داپره دې.باقی دوه خبره چې نبی کریم ﷺ په دې دواړو باندې مواظبت کړې دې نو مونږ د دې منکر یو څکه چې ترك ثابت دې.کله په حدیث هغه کس کښې چې په مانځه کښې قصر کړې وو نو نبی کریم ورته اوفرمائیل ((توضأکم امرك الله فاغسل وجهك ويديك الحديث)) په دې حدیث کښې د مضمضه او استنشاق ذکر نشته معلومه شوه چې دا دواړو وجب نه دی که داسې وه نو خامخا به ئې په دې حدیث کښې ذکر کړې وو.()

**څلورم مذهب په اودس کښې د دواړو مسنونیت اوپه غسل کښې وجوب:** څلورم مسلك د حنفیانو او دسفیان ثوری رحمه الله وغیره دې د دوی په نیزد مضمضه اواستنشاق په اودس کښې سنت اوغسل کښې واجب دې د اودس په باب کښې دحنفیانو دلیل هم هغه دې.کوم چې د امام شافعی رحمه الله دې.دغه شان د حنفیانو په مسلك باندې نور مضبوط دلائل هم شته.

**د حنفیانو دلائل:**

① **اختلاف الحکم باعتبار الظاهر والباطن:** په اودس اوغسل کښې د فرق وجه دا ده چې په قرآن پاك کښې د اوس په باره کښې ((فاغسلوا وجوهکم)) راغلی دې او د غسل په باره کښې ((وان کنتم جنبا فاطهروا)) راغلی دی او د خولې او پوزې دوه حیثیتونه دی یو د خارج حیثیت او دویم د داخل حیثیت د داخل حیثیت دلیل دا دې چې که په پوزه کښې قنډ وی یا په خوله کښې بلغم وی او هغه تیر شی نوپه دې باندې روژه نه ماتیږی.دغه شان چې خوله بنده وی او مخامخ څوك ګوری نو د پوزې او خولې دننه حصه نه ښکاری د دې دواړو څخه معلومه شوه چې د پوزې او خولې د داخل په حکم کښې دی.او د خارج حیثیت دلیل دا دې چې که په خوله کښې اوبه واچولې شی نو روزه نه ماتیږی یا په پوزه مخامخ طرف ته کړې شی نو په مواجهت سره په نظر راځی د دې دواړو خبرو څخه معلومیږی چې خوله او پوزه دخارج په حکم کښې دی.نو په په غسل کښې چونکه مبالغه زیاته وه نود دې وجې دا مونږ په خارج په حکم کښې داخل کړل او واجب مو ورته اووئیل او په اودس کښې چونکه مبالغه نشته نو ددې وجې مودا دواړه دخارج په حکم کښې داخل کړل.اوسنت مو ورته اووئیل.

② **اختلاف د حکم په اعتبار د کیف اوکم:** دغسل په باب کښې حضرت ګنګوهی رحمه الله د ﴿وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ باندې استدلال کړې دې.په دې کښې دمبالغه صیغه استعمال شوې ده.ددې مطلب دې.چه د غسل طهارت دې د اودس د طهارت څخه زیات وی.

[1] ) جامع الترمذی(۱|۴۰)-

اوس دا زیاتې به یاد کیف په اعتبار سره وی یابه د کم په اعتبار سره وی. د کیف په اعتبار سره زیاتې په شریعت کښې نشته نوخامخاد به دا مبالغه کم کښې وی
بیا دکم زیاتې په دوه قسمه دې یودا چه په تعداد د غسل کښې اضافه اوشي.او دویم دا چه اعضاء مغسولۍ کښې اضافه اوشي.دغسل د تعداد اضافې ته هم لارنشته.ځکه چه حدیث کښې دی.((من زاد علی هذا فقد تعدی وظلم)) نو زیاتې به په اعضاء مغسولۍ کښې وی بیاددې هم دوه صورتونه دی یو دا چه دکومو اعضاء غسل په وضوء کښې بالکل نشته. داپه غسل کښې اووینځلې شي.لکه سینه اوخیټه وغیره.او دویم داچه دکومو اعضاؤ غسل په اودس کښې مسنون دې هغه په غسل کښې واجب اوګرځوې.لکه مضمضه او استنشاق ددې قسم د مبالغې تقاضاداده.چه مضمضه اواستنشاق په غسل کښې واجب شي.

③ **مرسل ابن سیرین** رحمه الله: امام دارقطنی رحمه الله (¹)د محمدبن سرین رحمه الله دارروایت نقل دی.((قال امر رسول الله صلی الله علیه وسلم بالاستنشاق من الجنابة ثلاثا)) ددې سند صحیح دې لکه چه امام دارقطنی رحمه الله هم تسلیم کړې دې.اومرسل زمونږ په نیز حجت دې اوبالخصوص د محمدبن سیرین رحمه الله مراسیل خوقوی ترمراسیل دی.لکه علامه ابن تیمیه رحمه الله چه په منهاج السنة کښې لیکی ((ومحمد بن سیرین رحمه الله من اورع الناس فی منطقه ومراسیله من اصح المراسیل)) دغه شان د محمدبن سیرین رحمه الله مراسیل شوافع هم قبلوی(²) دې حدیث کښې من الجنابة قید واضح طور سره دا ښائی چه د مضمضه او استنشاق حکم د جنابت په حالت کښې وو.دې د اودس د حکم څخه اعلې دې اوچه کله داخبره متفق علیه ده.چه وضوء کښې مضمضه اواستنشاق کم ازکم سنت دی.نو غسل کښې به دې ته واجب وئیلې شي.

④امام دارقطنی رحمه الله په خپل سنن کښې(³) دابوحنیفه رحمه الله عن ابن راشدعن عائشه بنت عجرو په طریق سره نقل کړی دی.چه دحضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه تپوس اوشو چه دجنب څخه مضمضه او استنشاق هیرشو نو دده څه حکم دې نو ابن عباس رضی الله عنه جواب ورکړو. ((یمضمض ویستنشق ویعید الصلوة)) د حضرت ابن عباس رضی الله عنه دا فتوی دحنفیانو په مسلك صریح دلیل دې.

**د دارقطنی اعتراض**:امام دارقطنی رحمه الله په دې دا اعتراض کړې دې.چه ((عائشة بنت عجرو لاتقوم بها الحجة))

**جواب**: خودامام دارقطنی رحمه الله دا اعتراض د احنافو رحمهم الله دپاره مُضر نه دې ځکه چه دحضرت عائشه بنت عجروپه باره کښې دا اختلاف دې.چه داصحابیه وه.اوکه نه ؟

¹) سنن دارقطنی ۱۱۵۱۱ باب ماروی فی المضمضه والاستنشاق فی غسل الجنابة
²) ((کما صرح به النووی فی مقدمه شرح المهذب)-
³) باب ماروی فی المضمضة والاستنشاق فی غسل الجنابة (۱۶۱۱۱)-

((کمانقله الذهبی فی میزان () الاعتدال والحافظ فی لسان المیزان)) (۲) که داصحابیه اومنلې شی نو بیا خو هیڅ اشکال نشته ((لان الصحابة کلهم عدول)) اوکه تابعیه شی نو بیا هم ددې د ثقه کیدواوقابل اعتماد کیدو دپاره داخبره کافی ده چه امام ابوحنیفه رحمه الله صرف دې څخه روایت نه دې کړې.بلکه دې مسئله کښې نې ددوئ په روایت د خپل مسلك بنیاد ایښې دې امام دارقطنی رحمه الله امام شافعی رحمه الله.حافظ ذهبی رحمه الله یاحافظ ابن حجر رحمه الله ددې په باره کښې زیات نه زیات داوئیلې شی.چه ددې حال معلوم نه دې.خوامام ابوحنیفه رحمه الله براه راست دعائشه بنت عجروڅخه سماع کړې ده.د دې وجې چې دوی څومره ددې څخه واقف کیدې شی.بل څوك ترې نشی واقف کیدې نو که د نورو حضراتویه نیز دا مجهوله وی نو دا د امام ابوحنیفه رحمه الله خلاف نه دې.دې څخه علاوه علامه عثمانی رحمه الله په اعلاء السنن کښې فرمائی.چه حافظ ذهبی رحمه الله په تجرید ۳۰۲۱۱ کښې لیکلې دی.چه دامام ابوحنیفه رحمه الله څخه علاوه دعائشه بنت عجرد څخه حجاج بن ارطاة هم روایت کوی.اوقاعده داده چه دکوم کس څخه دوه کسان روایت کوی.نو دده جهالت مرتفع کیږی دارنګه یحي بن معین عائشه بنت عجرد لره معروف ګرځولې ده لکه چې فرمائی.((لهاصحبة)) ددې وجوهاتو په بناء دا دلیل څه محل داعتراض نه دې.

⑤ اصحاب سنن دحضرت علی رضی الله عنه معروف حدیث روایت کړې دې.((تحت کل شعرة جنابة فاغسلوا الشعرواتقوا البشرة)) (۳) اوپه پوزه کښې هم ویخته وی د دې وجې دا هم واجب الغسل وی او چه کله استنشاق واجب شی.نو مضمضه هم ((واجب لعدم القائل بالفصل))

⑥ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په غسل کښې په مضمضه او استنشاق مواظبت من غیرترك کړې دې. اودا دلیل د وجوب دې

**اعتراض په مواظبت:** که په دې دا اعتراض اوشی چه داسې مواظبت خو په وضوء کښې هم ثابت دې.

**جواب:** نوددې جواب دا دې.چه دا مواظبت په اخبار آحادو ثابت دې نوکه دې مواظبت سره مضمضه اواستنشاق په وضوء کښې واجب اوګرځولې شی.نو دابه زیادت شی په کتاب الله باندې په اخبار احادسره څکه چه دوضوء اعضاء مغسوله خپله کتاب الله متعین کړې دی.په خلاف دغسل چه دې کښې دواړه واجب ګرځولوسره په کتاب الله هیڅ زیادت نه راځی.څکه چه کتاب الله کښې دغسل مفصل طریقه نشته.بلکه صرف د

---

(۱) قال الذهبی قلت روی عنها ابوحنیفة رحمة الله علیه و روی عثمان بن ابی راشدعنهاویقال لها صحبة ولم یثبت ذلك میزان الاعتدال) _

(۲) راجع ۲۲۷\۱۱ فانه ذکرمنشاء الغلط فی القول لصحابیتها) _

(۳) کمافی الترمذی مرفوعا تحت باب ماجاء ان تحت کل شعرة جنابة ) _

(فاطهروا) حکم شوي دي.او ددې لفظ څخه دوجوب تائید کیږي.د دې وجې دا اخبارآحاد به ددې تفسیر شي.نه دې لره ناسخ اونه به دې زیاتي.

**د اودس په طریقه کښې د سر دمسحې حکم:** دحضرت عبدالله بن زیدبن عاصم رضی الله عنه نه تپوس اوکړې شو چه رسول الله ﷺ به څنګه اودس فرمائیلو (دې اوریدوسره) حضرت عبدالله رضی الله عنه د اودس اوبه راؤغوښتې (کله چه اوبه راغلې نو) هغوی په دواړو لاسونو باندې (اوبه) واچولې اوهغه ئې (د مړوندونوپورې) دوه ځل اووينځل بیا یې خله کښې اوبه واچولې او بیائی پوزه سونړکړه درې درې ځل اوبیائی خپل مخ درې ځل اووينځلو بیائی خپل دواړه لاسونه تر څنګلوپورې دوه ځل اووينځل بیائی په دواړه لاسه د سر مسح اوکړه (داسې چه) دواړه لاسونه ئې دمخې نه شاته بوتلل اودشانه ئې مخې ته راؤړل یعنی هغه دخپل سر د وړاندې طرف نه شروع اوکړه اودواړه لاسونه ئې د سټ د قوتی پورې یوړل بیائی هغه (راتاؤ کړل) هم هغه ځائی ته ئې واپس راوړل دکوم ځائی نه چه ئې شروع کړې وه. بیائی دواړه خپې اووينځلې. (مالك نسائی ابوداؤد)

**په بخاری اومسلم کښې روایة الباب:** اوپه بخاری اومسلم شریف کښې دا روایت داسې دې چه حضرت عبدالله بن زیدبن عاصم رضی الله عنه ته اووئیلې شو چه څنګه به حضورپاك اودس کولوهغه شان ته زمونږ په وړاندې اودس اوکړه. حضرت عبدالله بن زید رضی الله عنه (داوبو لوښې راؤغوښتلو (کله چه داوبولوښې راغلونو) هغه ئې ټیټ کړو په خپلو لاسونوباندې ئې اوبه واچولې درې ځل ئې اووينځل. بیائی لاس په لوښی کښې داخل کړو دهغې نه ئې اوبه راویستې بیا ئې (هم په هغې) یوچونګ سره خله اووينځله اوپه پوزه کښې ئې اوبه واچولې دغه شان هغه درې درې ځل اوکړه. بیا هغه خپل لاس په لوښی کښې داخل کړو اوبه ئې راؤویستې اودرې ځل ئې مخ اووينځلو. بیا هغه خپل لاس لوښی کښې داخل کړو اوبه ئې راویستلې اود سرمسح ئې (داسې) اوکړه چه خپل دواړه لاسونه ئې د مخې نه شاته بوتلل اوبیائی د شانه مخې ته راوړل اوبیائی دواړه خپې دګیټوپورې اووينځلې بیائی اوفرمائیل د رسول الله ﷺ دغه اودس وو.

**د صحیحینو بل روایت:** اود بخاری اومسلم په یوروایت کښې داسې دی (دمسح دپاره) ئې خپل لاسونه د وړاندې نه روستویوړل اوبیا ئې د شانه مخې ته راوړل یعنی دخپل سر د وړاندې حصې نه ئې (مسح) شروع کړه او(لاسونه) ئې د سټ دقوتی پورې یوړل اوبیائی ددغه ځائی نه هغه ځائی ته راوړل دکوم ځائی نه چه ئې (مسح) شروع کړې وه اوبیائی خپلې خپې اووينځلې. د صحیحین په یوبل روایت کښې دی چه خله کښې ئې اوبه واچولې پوزه کښې ئې اوبه واچولې اوپوزه ئې درې ځل سونړکړه په دریوچونګونوسره. د یوبل روایت الفاظ داسې دی پس خله کښې ئې اوبه واچولې اوپه پوزه کښې ئې اوبه واچولې

دغه شان ئې درې ځل اوکړه دَ بخاري دَ روايت الفاظ دادي چه دَ سرمسح ئې اوکړه (داسې چه) خپل دواړه لاسونه ئې دَ مخې نه شاته يوړل اودَ شانه ئې مخې ته راوړل اودائې يوځل اوکړه بيائې دواړه خپې دَ ګيټوپورې اووينځلې. هم دَ بخاري دَ يوروايت الفاظ دادي پس خله کښې ئې اوبه واچولې پوزه ئې سونړکړه درې ځل صرف په يوچونګ سره.

**قوله:** فَمَسَحَ بِرَأْسِهِ:

**د سرد مسحې فرضيت:** دَ سردَ مسح حکم دَ قرآن کريم نه ثابت دې دَدې په فرضيت کښې دَچا اختلاف نشته البته په مقدارکښې اختلاف شته چه څومره حصه فرض ده. په دې کښې دَ څلورو واړو ائمه حضراتو اختلاف داسې دې.

**د مسح په مقدار کښې مذاهب:**

د مسح په مقدار مفروضه کښې د امامانو اختلاف دې.بعضې علمانو د لسو څخه زيات اقوال نقل کړې دي.خو مشهور مذاهب درې دي.

① استيعاب جميع الراس فرض دې دا د امام مالك اوامام احمد مذهب دې.دامام احمدرحمه الله څخه نور اقوال هم نقل دي.

② مسح داقل الراس فرض ده اګرکه يو ويخته يا دوه يا درې ويخته وي دا دامام شافعي رحمه الله مسلك دې.البته په مرقات کښې دي چې د امام شافعي رحمه الله مشهور مذهب دا دې چې په درې کوتو باندې په نوي اوبه سره کول فرض ده

③ د څلورمې حصې مسح فرض ده. دا دامام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې.البته بيا د حنفيانو رحمهم الله په نيز ربع الراس او مقدار ناصيه يو څيز دې صرف په تعبير کښې فرق دې او د بعضو په نيز لکه امام ابن الهمام رحمه الله وغيره په نيز دا دواړه مختلف مقدارونه دي

**د ټول سر د مسحې د فرضيت دلائل:**

**اول دليل:** دالله تعالى قول ((وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ)) په دې کښې باء زائده ده .تقدير به داسې وي((وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ)) نو د پوره سر مسح فرض ده.

**جوابونه:** ① باء ته زائده وئيل خلاف الاصل دې او د سخت ضرورت څه بغير په قرآن پاك کښې د زيادت قول صحي نه دې او دلته ضرورت نشته چې باء ته زائده اووايوځکه چې باء د الصاق دپاره هم کيدې شي

② مسح فعل متعدی دې دا په استيعاب محل باندې دال نه دې که باء زائده وي او که غير زائده وي

**دويم دليل:** لکه څنګه چې په مسح :بنې د((وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ)) حکم دې.دغه شان په تيمم کښې هم د (( وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ)) حکم دې.نو لکه څنګه په تيمم کښې استيعاب فرض دې

دغه شان په مسح د راس كښې هم استيعاب فرض دې.حاصل دا دې چې هغوی د سر مسح په مسح دتيمم باندې قياس كړې ده.

**جوابونه:** ① دا قياس مع الفارق دې ځكه چې اودس اصل دې او تيمم فرع ده او قياس الاصلي على الفرع باطل دې.

② په تيمم كښې استيعاب د وجه او يدين د دې آيت په وجه ثابت نه دې چې دا د مسح د راس دپاره مقيس عليه شي بلكه په تيمم كښې استيعاب په احاديث كثيره سره ثابت دې.د دې په مقابله كښې د تيمم په باب كښې داسې څه حديث نشته چې هغه په مسح د بعض وجه باندې دلالت كوی په خلاف د مسح راس ځكه چې داسې دلائل شته چې د هغې څخه مسح په بعض الراس معلوميږی.

**دريم دليل:** دوی مسح د راس په عضاء مغسوله باندې قياس كوی.لكه څنګه چې په اعضاء مغسوله كښې استيعاب فرض دې.دغه شان به په مسح د راس كښې هم استيعاب فرض وی.

**جواب:** امام طحاوی وغيره جواب وركړې دې چې په مغسول او ممسوح كښې نسبت مفقود دې نو دا قياس مع الفارق شو.البته په مسح د راس او مسح خف كښې مجانست شته او مسح خف كښې په بعضې باندې په اتفاق سره اكفتاء كولې شی نو دغه شان به په مسح د راس كښې هم په بعضې باندې اكتفاء كول جائز وی.(١)

**څلورم دليل:** داقبال او ادبار احاديث د استيعاب په فرضيت باندې دلالت كوی.كوم چې وفي الباب لاندې په حاشيه كښې تيرشوی دی.

**جوابونه:** ①علامه عينیؒ فرمائيلي دی څنګه چې د استيعاب احاديث دی دغه شان د اكتفاء بمسح بعض الراس هم ثابت دی **كحديث مسلم عن ابی مغيرة الخ** (٢)نو چې د داسې قسم احاديثو څخه د استيعاب جمع الراس د قائلينو څه جواب وی هغه زمونږ جواب دې د احاديثو د استيعاب جميع ا لراس.

② صرف په عمل بالاستيعاب سره فرضيت نه ثابتيږی. او د مسنونيت مونږ هم قائل يو.

**د اقل ما يصدق عليه اسم المسح د فرضيت دلائل:** د دې مذهب د قائلينو سره نه مرفوع حديث فعلي يا قولی شته اونه څه اثر د صحابیؓ البته دوی څه ضعيف دلائل ذكر كوی.

**اول دليل:** په ،،برؤسكم،، كښې د تبعيض دپاره ده.نو د بعضې سر مسح كافی ده ((**ولو شعرة اوشعرتين اوثلاث شعرات**))

**جوابونه:** ① د باء تبعيض ذكر نه امام سيبويه كړې دې او نه دنحواامامانو،نو دعربو په

(١) الطحاوی باب فرض المسح على الراس (١|٢٨)-
(٢) اخرجه مسلم باب المسح لی الخفين (١|١٣٤)-

کلام کښې دا ثابته نه ده.

② که مونږ دا اومنو چې باء دپاره د تبعیض ده نومسح د بعضې سر به فرض وی اودا بعضې مجمل دې د دې بیان په احادیثو کښې شته اوپه هغې کښې د مقدار الناصیه ذکر دې.دغه شان په څه مرفوع حدث کښې مسح اقل من الناصیه ثابته نه ده.

**دویم دلیل:** آیت دمسح مطلق دې نه ې مجمل ځکه چې د مسح معنی معلومه ده و محل یعنی راس هم معلوم دې او آله د مسح یعنی لاس هم معلوم دې.نو بیا اجمال د کومې راغې؟او مطلق د فرد واحد په موجود کیدو سره موجود یږی.نو په شعر واحد به مسح کول هم کافی وی.

**جواب:** دا مجمل دې مطلق نه دې.((کماسیاتی بیانه فی حدیث الناصیة))

**د مقدار الناصیه د فرضیت دلائل:**

**اول دلیل:** عن مغیرة وفیه «ومسح الناصیة» الحدیث معلومه شوه چې د ټول سرمسح فرض نه ده.دغه شان په شوافع باندُ هم رد اوشو.ځکه که اقل من الناصیه جائز وه نو په یو روایت کښې خو به د هغې ذکر وو.

**دویم دلیل:** ([1]عن انس وفیه ومسح مقدم راسه ولم ینقض العمامة)) یعنی د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دې چې نبی کریم ﷺ د سر په مخکښې حصه باندې مسح اوکړه او پټکې ئې اونه سپړده.

**دریم دلیل:** عن عثمان بن عفان رضي الله عنه وفیه ثم مسح مقدم راسه بیده مرة واحدة الی ان قال فمن السائلون عن وضوء رسول الله ﷺ فهذا وضوءه))([2])

**څلورم دلیل:** عن بلال مرفوعا وفیه مسح علی الخفین وناصیته الحدیث([3])

**پنځم دلیل:** ((وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ)) مجمل دې او حدیث دناصیه د دې دپاره بیان دې.مجمل په دې طریقه دې چې ((مسحت بالحائط)) څخه مسح د بعض حائط مراد ده او په وامسحوا بوجوهکم کښې مسح د کل مدخول باء مراد ده نو کله مدخول د باء بعضې مراد وی.ی اوك کله کل مراد وی.اوس دلته اجمال دې په مقدار د راس کښې چې بعضې راس مراد دې که کل راس مراد دې نو د دې اجمال تفصیل او وضاحت حدیث دناصیه اوکړو.

**د مسح علی الراس په تثلیث کښې مذاهب:**

① دملاعلی قاری دقول مطابق دامام ابوحنیفه رحمه الله ،امام مالك رحمه الله ، امام احمد رحمه الله ، امام اسحاق رحمه الله ، سفیان ثوری رحمه الله او دجمهورو مسلك دادې . چه مسح راس دې صرف یو ځل

[1] ) اخرجه مسلم باب المسح علی الخفین (۱|۱۳٤ وسکت علیه)-

[2] ) مسند سعید بن منصور من طریق ابی مالک الدمشقی قال حدثت عن عثمان الخ وایضا بمثل هذه الروایة رواه ابوداؤد (۱|۱۶)-

[3] ) اخرجه البیهقی فی سنن الکبری باب إیجاب المسح بالراس وإن کان متعمما وقال البیهقی هذا اسناد حسن (۱|۶۲)-

او کړې شي.

② خو امام شافعي رحمه الله داعضاء مغسوله په شان په مسح کښې هم د تثلیث سنیت قائل دې. اګرچه امام ترمذي رحمه الله دامام شافعي رحمه الله قول هم دجمهورو سره نقل کړې دې. خو کتب شافعیه کښې مسلك مختار هم دتثلیث دې کیدې شي چه یو قول غیر مشهورئې دجمهورو مطابق هم وي او امام ترمذي رحمه الله هم دانقل کړې وي. بعضې حضراتو امام مالك او امام احمد رحمه الله هم د امام شافعي رحمه الله سره شمار کړې دي.

په هرصورت حدیث دباب احنافو رحمهم الله دلیل دې. دې ځنه علاوه نور هم ډیراحادیث په مسح مرة دلالت کوي امام ترمذي رحمه الله فرمائي ((وقدروي من غيروجه عن النبي صلى الله عليه وسلم انه مسح برأسه مرة))

**د تثلیث دلیل:** دامام شافعي رحمه الله استدلال دحضرت عثمان رضي الله عنه په یوروایت دې په هغې کښې دوئ دنبي کریم صلى الله عليه وسلم د اودس حکایت کوي او فرمائي. ((مسح راسه ثلاثاً)) ([1])

**جواب:** البته دجمهورو دطرفه ددې جواب دا دې چه دا حدیث شاذ دې ځکه چه ددې یو حدیث ځنه علاوه د حضرت عثمان رضي الله عنه ټول روایات صرف دیوځل په مسح دلالت کوي لکه چه په امام ابوداوٗد دثلاثا په حدیث په دې الفاظو سره رد کړې دې. ((احاديث عثمان الصحاح كلها تدل على مسح الرأس انه مرة فانهم ذكروا الوضوء ثلثا وقالوا فيها ومسح رأسه ولم يذكروا عدداً كما ذكروا في غيره)) اوکه بالفرض دحضرت عثمان رضي الله عنه دثلاثا روایت صحیح تسلیم کړې شي. نو بیا هم داپه بیان د جواز محمول کیدې شي. لکه احنافو کښې هم بعضې محققینو تثلیث ته جائز وائي. اګرچه بعضې حضراتو مکروه او بدعت ګرځوی او ددې وجه صاحب دهدایه دا بیان کړې ده. چه که درې ځله په ماء جدید سره مسح اوشي نو دا به مسح نه وي بلکه غسل به شي. دې ځنه واضحه ده چه که داسې تثلیث اوشي چه حد غسل ته اونه رسي نو داسې تثلیث به د احنافو په نیز جائز وي. بلکه دامام اعظم رحمه الله یو روایت چه دحسن بن زیاد ځنه مروي دې. هغه دتثلیث په استحباب دلالت کوي. خو صاحب دهدایه دارد کړې دې.

**د ربیع د روایت ځنه جواب:** ترکومې چه تیرشوي باب کښې دحضرت ربیع روایت تعلق دې چه هغې کښې د ((مسح براسه مرتين)) الفاظ دي. داغالبًا داقبال او دادبار په دوه حرکتومحمول دې چه حقیقت کښې مسح مرتین نه ده. بلکه د استیعاب راس یوه طریقه ده. لکه مستدرك حاکم، صحیح ابن خزیمه او صحیح ابن حبان کښې کومه طریقه چه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ځنه مروي ده هغه ځنه هم ددې تائید کیږي. لکه روایت کښې دي چه ړومبې ددواړه لاسونو درې ګوتوسره په وسط راس کښې ادباراوکړو. بیائې باقي دوه

---

[1] ابوداود کتاب الطهارة باب صفته وضوء النبي صلى الله عليه وسلم)

دوه گوتو سره جانبینو کښې اقبال اوکړو .

**د مسح مرة دلائل:** ① د مسح مرة دلیل حدیث الباب دې.په دې کښې په صراحت سره موجود دی چې نبی کریم ﷺ یوځل په سر باندې مسح اوکړه.

② دمسح مرة تائید د قیاس څخه هم کیږی هغه داسې چه مسح علی الخفین او مسح علی الجبیرة هم مرة کیږی . ددې تقاضاده . چه مسح الراس هم مرة وی.

**قوله: فَأَقْبَلَ بِيَدَيْهِ وَأَدْبَرَ:** دَدې جملې لفظی ترجمه داشان ده چه دَ سر دَ شاته طرف نه ئی وړاندې طرف ته مسح کولو کښې لاس راوړو اوبیا ئی دَ وړاندې طرف نه شاته لاس یوړو.

**د مقدم او مؤخر په اعتبار سره په مسح کښې مذاهب:**

① په هرحال ددې حدیث مطابق د جمهورو مسلك دادې.چه دمسح راس ابتداء دمخ نه کول مسنون دی.

② حضرت وکیع بن الجراح دروستونه ابتداء مسنون وائی.

③ ددې دواړو مسلکونو په مینځ مینځ کښې یودریم مسلك د حضرت حسن بن صالح دې د دوئ په نیز د وسط راءس څخه دَ مسح ابتداء مسنون ده.

**د مؤخر الراس څخه د ابتداء دلیل:** ① ددوئ دلیل راتلونکې باب کښې دحضرت ربیع بنت معوذ رضی الله عنها روایت دې په هغې کښې تصریح ده.چه ((بداء بمؤخر راسه ثم بمقدمه))

**د وسط الراس څخه د ابتداء دلیل:** ① ددوئ استدلال ابوداؤد کښې هم دحضرت ربیع بنت معوذ رضی الله عنها یوبل روایت دې چه هغې کښې ((مسح الراس کله من قرن الشعر)) الفاظ دی.([1])

**د ربیع بنت معوذ رضی الله عنها د روایتونو څخه جوابونه:** ① دجمهورو دطرفه ددې روایتونو په جواب کښې ونیلې شوی دی.چه د حضرت ربیع روایاتونه په دې باب کښې مضطرب دی لکه مسند احمد کښې دوئ څخه د مسح مختلف کیفیات منقول دی.دې باره کښې بعضې حضرات خودا وائی.چه اصل کښې دا تعارض د راویانو د وهم د وجې پیدا شوې دی.اوخبره داسې وه .چه د اقبال او د ادبار په تفسیر کښې راویانوته غلط فهمی راغله.د دې وجې هریود خپل فهم مطابق تغبیر نقل کړو.خوحضرت گنگوهی رحمه الله دا جواب ناخوښه کړې دې.

② حضرت گنگوهی رحمه الله چه په حقیقت کښې حضرت نبی کریم ﷺ دحضرت ربیع وړاندې دجواز دپاره په مختلف کیفیاتو سره مسح کړې وه.اوترکومې چه دجواز تعلق دې.نو جمهورهم دټولو دجواز قائل دی اختلاف صرف په افضلیت کښې دې او په دې لحاظ سره د عبدالله بن زید روایت راجح دې کوم چې د جمهورو رحمهم الله د مسلک ښکاره دلیل کیدو

[1] )باب صفة وضوء النبی صلی الله علیه وسلم) _

سره سره د امام ترمذی د تصریح مطابق اصح ما في الباب هم دې حال دا چه د حضرت ربیع حدیث د دې په مقابله کښې مرجوح دې د دې وجه غالباً دا ده چه په دې کښې عبدالله بن محمد بن عقیل نومې راوی متکلم فیه دې

**دغټې د مسحې په حکم کښې اقوال:**

① په احنافو کښې بعضې حضرات دې ته سنت او بعضې مستحب وائی.

② قاضی خان لیکلی دی چه دَ غټې مسح نه سنت ده او نه مستحب

③ بعضو دې ته سنت وئیلی دی او کله چه دَ فقهاؤ په اقوال کښې اختلاف پیداشو نو اوس دَ نه کولو نه مسح کول بهترشو. (قاضی خان ج۱ص۱۷)

④ علامه نووی رحمه الله وغیره دې ته بدعت وئیلې دې علامه ابن تیمیه او ابن قیم لیکلی دی چه په دې باره کښې څه حدیث صحیح ثابت نه دې لیکن دَاحنافو بعضې علماء او دَ شوافع هم ډیرزیات علماء دَ غټې مسح ته سنت یا مستحب وائی.

⑤ نواب صدیق حسن خان صاحب غیرمقلد "بدورالاهله ص۲۸" کښې لیکلی دی چه دَمسح رقبه حدیث ته غیرصحیح وئیل صحیح نه دی ځکه چه دَ مسح رقبه روایات تعددطرق دَ وجې نه دَ استدلال قابل دی. دَ احنافو په کتابونوکښې دالیکلی دی چه دَ حلقوم (مرۍ) مسح بدعت دې او دَ غټې مسح جائزده

**قوله: مِنْ كَفَّةٍ وَاحِدَةٍ**

**د مضمضې او استنشاق په افضله طریقه کښې مذاهب:**

په مضمضه او استنشاق کښې پنځه طریقې منقول دی هره یوه طریقه جائزه خو اختلاف په افضلیت دې کښې دې.

① شوافع څلورمه طریقه خوښه کړې ده جائزتولې دی.

② احنافو پنځمې طریقې ته افضل او راجح وئیلی دی.

**دضمضې او استنشاق پنځه طریقې:**

① اول طریقه دا چه یوچونګ اوبه په لاس کښې واخلی او په یوځل خله او پوزه کښې درې ځل اوبه واچولې شی یعنی هم دَ یوچونګ څه اوبه خله کښې او څه پوزه کښې درې ځل واچولې شی.

② دویمه طریقه داچه هم په یو چونګ اوبوسره اول په خله کښې دَدې څه حصه درې ځل واچولې شی اوبیا باقی حصه درې ځل په پوزه کښې واچولې شی.

③ دریمه طریقه دا ده چه یوچونګ سره درې ځل مضمضه اوکړې شی بیا په دویم چونګ سره درې ځل استنشاق اوکړې شی.

④ څلورمه طریقه کومه چه په شوافع کښې خوښه کړې شوې ده هغه داده چه په یوچونګ

سره اول مضمضه او استنشاق اوکړې شي بیا دویم چونګ سره مضمضه اواستنشاق اوکړي اوبیا دریم چونګ واخلي اومضمضه اواستنشاق اوکړي.

⑤ پنخمه طریقه داده چه جداجدا په دریوچونګونوسره مضمضه اوکړي اوبیا جداجدا درې چونګه واخلي او استنشاق اوکړي لکه چه په شپږو چونګونوسره دواړه کارونه اوشي دا طریقه دَاحنافو خوښه کړې شوې ده.

**داول فریق دلیل:** زیربحث حدیث کښې "من کف واحدة" الفاظو څخه دوی استدلال کړې دې چه په دې کښې په غرفات کښې دَ وصل بیان دې نو څلورمه طریقه دَدې بهترین مصداق دې.

**داول فریق د دلیل دوه جوابونه:** ① په یو چونګ سره مضمضه اواستنشاق دَجوازدَبیان دَپاره دي نوجائزئی مونږ هم منو اودَ شوافع په نیزفصل هم جائزدې

② دې حدیث څخه مراد دا دې چه مضمضه اواستنشاق کښې ئی یولاس استعمال کړو دَ یولاس په چونګ سره کار اوچلوئی دَ مخ په شان دواړه لاسونه مه استعمالوئی.

**د دویم فریق دلیل:** دَعبدالله بن زید ؓ روایت دې. "قال رأیت النبی ﷺ مضمض واستنشق من کف واحد فعل ذلك ثلاثا" (رواه الترمذی) بل طرف ته په ابوداؤد کښې هم دا الفاظ دی صحابی فرمائی "فرأیته یفصل بین المضمضة والاستنشاق" (ص۱۹)

② په زیرنظرحدیث الباب کښې هم دَ ثلاث غرفات الفاظ موجوددی کوم چه دَ احنافو واضح دلیل دې.

③ دَ قیاس تقاضاهم دغه ده څکه چه دَ اودس دَ ټولو اندامونودَپاره جدا جدا اوبه اخستلوسره درې څل استعمالولې شی نودَ خلې او دَ پوزې هم دغه شان حکم پکاردی.

**[۲۹۵] دبیان جواز دپاره هر اندام یو یو څل وینځل**

۲۹۵ـ(۱)[۳] ⑴ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ⑵ «تَوَضَّأَ رَسُولُ اللّٰهِ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ مَرَّةً مَرَّةً ⑶ لَمْ يَزِدْ عَلَى هٰذَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ⑴ د ابن عباس ؓ څخه روایت دې ⑵ چه رسول الله ﷺ اودس اوکړو ټول اندامونه یې یو یو څل ووینځل ⑶ په دې یې زیادت ونه کړو. (بخاري)

(۱) اخرجه البخاری کتاب الوضوء باب الوضوء مرة مرة (رقم-۱۵۷) وابوداود کتاب الطهارة . باب الوضوء مرة مرة (رقم - ۱۳۸) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فی الوضوء مرة مرة (رقم- ۴۱۱) والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الوضوء مرة مرة (رقم - ۴۲) والنسائی کتاب الطهارة/باب الوضوء مرة مرة (رقم-۸۰) والدارمی کتاب الطهارة/باب الوضوء مرة مرة (رقم-۷۲۴)

**تسهيلات: قوله:** لَمْ يَزِدْ عَلَى هَذَا:

**هر اندام يو ځل وينځل:** تولو نه بهتر او افضل اودس هغه دې کوم کښې چې درې ځل اوبه هر اندام دپاره استعمال کړې شي. که اوبه کمې وي يا د بدن حالت يا مکان او مقام يا د بيان جواز دحالت تقاضا ددې نه دَ کم وي، نو بيا دوه دوه ځل اوبه استعمالول جائز دي. اوکه حالات څه داسې قسمه وي چې ديو ځل نه د زياتو ګنجائش نشته دې نو يو ځل هم کافي دی. ا ودس صحيح کيږي. راتلونکو احاديثو کښې هم دا مسئله بيان شوې ده.

**[۳۹۳] دبيان جواز دپاره هر اندام دوه ځله وينځل**

۳۹۳–(١)[۴] ① وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ② «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① اودَ حضرت عبدالله بن زيد رضي الله عنه نه روايت دې ② چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دوه دوه ځل اودس اوکړو (يعنی دَ اودس اندامونه ئی دوه دوه ځل اووينځل) (بخاری)

**د راوي مختصر تعارف:**

نوم عبدالله کنيت ابومحمد، دَ قبيله خزرج سره ئی تعلق لرلو. دَپلارنوم زيداودَمورنوم ئی ام عماره وو. دَهجرت نه پس مسلمانه شوې. دَبدرنه علاوه په ټولو غزاګانو کښې شريك شو. هم ده مسيلمة الكذاب په توره سره قتل کړې وو. وحشی په غشی باندې وهلې وو.(٢)

: ۶۳هـ کښې شهيدشو. هغه وخت دَدوی عمر ۷۵ کال وو. دَهغه دوه نور نومونه په کتابونو کښې ملاويږی. ①خلاد ② علي.

**مرويات:** دَ هغه نه يوڅو روايتونه نقل دی. دَ هغه نه روايت نقل کونکوکښې عباد بن تميم. سعيدبن مسيب، يحيی بن عماره، واسع بن حيان، عبادة بن حبيب وغيره دی. دَنورو حالاتودپاره اوګورئی ①اسدالغابة ۱۶۸/۳ )②بخاری شريف۵۹۹/۲ ③مسند احمد ۳۸/۴، ۴۰، ۱وغيره.

**[۳۹۷] هر اندام درې درې واره وينځل**

۳۹۷–(٣)[۵] ① وَعَنْ عُثْمَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «أَنَّهُ تَوَضَّأَ بِالْمَقَاعِدِ، ② فَقَالَ: أَلَا أُرِيكُمْ وُضُوءَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ؟ ③ فَتَوَضَّأَ ثَلَاثًا ثَلَاثًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

(١) اخرجه البخاري بخاری كتاب الوضوء باب الوضوء مرة مرة (رقم-۱۵۸) وابوداود كتاب الطهارة . باب الوضوء مرتين(رقم- ۱۳۶)والترمذيكتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ب باب ما جاء في الوضوء مرتين مرتين (رقم- ۴۳)

(٢) اسدالغابه ۱۶۸/۳).(۲) البخاري في الأشربة باب شرب اللبن بالماء وباب الكرع في الحوض)

(٣) اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب فضل الوضوء والصلاة عقبه (رقم-۷ - (۹ -۲۳۰)

**ترجمه:** [۱] او دَ حضرت عثمان رضی الله عنه باره کښې روایت دې چه هغوی په مقام مقاعد کښې اودس اوکړو [۲] او وني وئيل چه آيا تاسو ته دَ رسول الله ﷺ اودس اونه ښايم؟ [۳] چنانچه هغوی درې درې ځل اودس اوکړو (یعنی هغوی دَ اودس اندامونه درې درې ځل وينځلو سره اوخودل چه حضورپاک به داسې اودس کولو) (مسلم)

**حل اللغات:** ① أَلَا أُرِيكُمْ: آيا اونه ښائم تاسو ته.

**تسهيلات:** **قوله:** بِالْمَقَاعِدِ:

مسجد نبوی نه بهر خبرو اترو او ناستې دپاره يو ځائې وو ، دهغې نوم مقاعد وو. داحضرت عمرفاروق رضی الله عنه جوړ کړې وو چې خلق په مسجد کښې خبرې اونه کړې.

**[۳۹۸] د پښو وينځلو د فرضيت دليل**

۳۹۸ـ ()[۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: [۲] "«رَجَعْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ مِنْ مَكَّةَ إِلَى الْمَدِيْنَةِ [۳] حَتّٰى إِذَا كُنَّا بِمَاءٍ بِالطَّرِيْقِ [۴] تَعَجَّلَ قَوْمٌ عِنْدَ الْعَصْرِ فَتَوَضَّئُوْا وَهُمْ عُجَّالٌ [۵] فَانْتَهَيْنَا إِلَيْهِمْ وَأَعْقَابُهُمْ تَلُوْحُ لَمْ يَمَسَّهَا الْمَاءُ [۶] فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ: "وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ، أَسْبِغُوا الْوُضُوْءَ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او دَ حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه نه روايت دې [۲] چه مونږ د رسول الله ﷺ سره دَ مکې نه مديني منورې ته واپس راؤګرځيدو [۳] تردې چه کوم وخت مونږ اوبوته راؤرسيدو کوم چه په لار کښې وو [۴] نوځه خلقو دَ ماز پیګرد مونځ دپاره اودس کولو کښې تادی اوکړه اوهغه خلق ډير تادی کونکی وو. [۵] نوچه کله مونږ هغه خلقو ته اورسيدو نو چه اوموکتل نو دَ هغوی پوندې پرقيدلې (یعنی اوچې پاتې شوې وې ځکه چه) هغې ته اوبه نه وې رسيدلې. [۶] (دغه اوچو پوندو ته په کتلوسره) حضورپاک اوفرمائيل ويل (خرابی) ده دَ پوندو دپاره د اور نه، اودس پوره کوئی. (مسلم)

**حل اللغات:** ① عُجَّالٌ : د عَاجِل جمع ده، جلتی کونکی، تادی کونکی ② فَانْتَهَيْنَا: أَيْ: وَصَلْنَا: اورسيدو مونږ، ③ تَلُوْحُ: أَيْ: تَظْهَرُ يُبُوْسَتُهَا: اوچ والې دخپو نې صفا ښکاريدو، ④ وَيْلٌ: أَي الْهَلَاكُ: هلاکت، اوعذاب، ⑤ أَعْقَابٌ: أَيْ: لِأَصْحَابِهَا: اعقاب پوندو ته وائی، دلته ترې مراد د اصحاب الاعقاب يعنی انسان مراد دې. ⑥ أَسْبِغُوا: أَيْ: أَتِمُّوْهُ: يعنی اودس کامل طريقې سره کوئ.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ:

---

[۱] اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب وجوب غسل الرجلين بكمالهما(رقم-۲۶ - (۲۴۱) وابوداود كتاب الطهارة ، باب فى إسباغ الوضوء (رقم- ۹۷) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب غسل العراقيب (رقم- ۴۵۰) والنسائى كتاب الطهارة/باب إيجاب غسل الرجلين (رقم-۱۱۱)

**د رجلینو په غسل کښې مذاهب:**

① شیعه امامیه او روافضو وائی چه وظیفهٔ رجلین صرف مسح ده غسل نه دې. بعضو دا مسلك ابن جریر طبری رحمه الله طرف ته منسوب کړې دې لیکن ابن جریر طبری دوه دی یوسنی دې یوشیعه دلته سنی مرادنه دې اوکه چرې ابن جریر سنی هم وی نودَهغه کلام په دې مسئله کښې صریح نه دې صرف په کلام کښې وهم دې. په دې مسئله کښې دَ پوره امت مخالفت کړې دې اوونیلی ئی دی

② ټول اهل سنت ټول صحابه کرام تابعین او ټول فقهاء اوصلحاء اوعلماء سلفًا وخلفًا په دې باندې متفق دی چه وظیفهٔ رجلین په اودس کښې غَسل دی اودَعدم تخفف په حالت کښې په خپه باندې مسح کول بالکل جائزنه دی.

**د اول فریق اول دلیل:**

① آیت الوضوء ﴿ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾ کښې دَجروالا قراءت نه استدلال کړې دې چه دَجر په صورت کښې دا په "رؤسکم" باندې عطف دې یعنی په سرباندې هم مسح کوئی او په خپوباندې هم مسح کوئی. شیعه وئیلی دی چه "أرجلکم" کښې دَ نصب والا قراءت بنزع الخافض دې یعنی "أرجلکم" دَ نصب په صورت په حقیقت کښې "بأرجلکم" وو دَ باء اخوا کولو دَوجې نه نصب راغلو.

**د اول فریق دویم دلیل:** ② دَ ابن عباس رضي الله عنهما قول دې دکوم الفاظ چه کم وزیات داسې دی "لایدل کلام الله إلا بالمسح وأبی الناس الا الغسل" بعضو دا الفاظ نقل کړی دی "أمرالله بالمسح وأبی الناس الاالغسل"

**د اول فریق دویم دلیل:** ③ دغه شان شیعه دَحضرت علی رضي الله عنه نه څه اقوال هم نقل کوی.

**د دویم فریق دلائل:** ① دَاودس آیت د دوی مستدل دې لیکن هغوی ﴿ وَأَرْجُلَكُمْ﴾ کښې دَ نصب والا قراءت اخلی کوم چه ﴿ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ﴾ باندې عطف دې او په وینځلو باندې واضح دلیل دې.

② زیربحث حدیث د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دَخپې پونده اوچه پاتې کیدو باندې سخت وعیدراغلې دې نو معلومه شوه چه دَ خپو وظیفه په مکمل توګه وینځل دی.

③ دَحضرت عمروبن عبسه رضي الله عنه یورروایت د دوی مستدل دې چه په حقیقت کښې دَ آیت الوضوء تفسیردې. حضرت عمروبن عبسه رضي الله عنه فرمائی چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه مې دَاودس باره کښې پوښتنه اوکړه نوحضورپاك دَجواب په ضمن کښې اوفرمائیل "ثم یغسل قدمیه الی الکعبین کما أمرالله تعالی" (رواه ابن خزیمه وابوعوانه) دَدې روایت نه په واضحه توګه معلومه شوه چه دَالله تعالی حکم ﴿ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾ نه غسل او وینځل مراددی

④ دویم فریق دَدې نه هم استدلال کړې دې. چه دَحضورپاك نه په پوره ژوند کښې کله هم په برېنډو خپوباندې مسح ثابت نه ده نه صحابه کرامو داسې کړی دی بلکه دټولو عمل غسل وو لکه چه داسې اجماع ده په کوم کښې چه اختلاف نه شی کیدې.

**داول فریق د اول دلیل اول جواب:** په آیت کښې چه کوم دَجرقراءت راغلې دې دا جرجوار دې یعنی دَ یوې کلمه په ګاونډ دَ کیدودَ وجې کله کله دَهغې اعراب دویمې کلمې ته ورکولې شی نو په آیت کښې برؤسکم کښې جروو نو وأرجلکم هم دَ دې ګاونډ دَوجې مجرور اولوستلې شو دادَ لفظونو په اعتبار سره دَ مسح سره دې لیکن دَ معنی په اعتبارسره دا مغسول سره دې

**دجر جوار شواهد:** ① په کلام دَعربوکښې دَ جرجوار اعتبارشته. چنانچه عبدالرسول لیکی:

گاہے میشود مجرور از بہر جوار          ہم ازیں جائز دعامہ جر ارجل شد روا

یعنی کله کله یواسم دَ جرجواردَ وجې نه مجرور کیږی په دې وجه دَعام علماؤ په نیزوارجلکم کښې جر راغلې دې. جرجواردَ قرآن عظیم نه هم ثابت دې لکه ﴿ عَذَابُ يَوْمٍ أَلِيمٍ ﴾ الیم دَ عذاب صفت دې چه مرفوع کیدل پکاروو مګر دَ یوم دَګاونډدَ وجې نه مجرورشوې دې.

② اولکه ﴿ عَذَابَ يَوْمٍ مُّحِيطٍ ﴾ چه محیط دَ جرجواردَوجې نه مجروردې. بل "جُحْرُ ضَبٍّ خَرِبٍ" "مَاءُ شَنٍّ بَارِدٍ" دغه شان په حدیث کښې "مَنْ مَلَكَ ذَارَحِمٍ مُحْرَمٍ" دلته محرم دَ جرجواردَ وجې نه مجروردې.

③ دَ عربو او دَ عربیت مشهورشاعر امرأالقیس وائی:

كأن ثبيرًا في عرانين وبله          كبير أناس في بجاد مزمل

دلته مزمل دکبیراناس صفت دې دامرفوع کیدل پکاروومګر دَ بجاد دَ ګاونډدَ وجې نه مجرور شوې دې. **اعتراض:** عبدالرسول چه مشهور نحوی دې هغه دلته اعتراض کړې دې چه جرجوار په سلسلهٔ معطوفات کښې ممنوع دې او دلته په آیت کښې وارجلکم معطوف دې.

**د اعتراض جواب:** صاحب روح المعانی دَدې جواب ورکړې دې چه دَ عبدالرسول دا وینا غلطه ده ځکه چه دَعربو په محاوره کښې دَدې څو مثالونه موجود دی. پخپله په قرآن کریم کښې (وحورعین) په سلسله دَ معطوفات کښې جرجوار سره راغلې دې پوره کلام داسې دې [ولحم طیر مما یشتهون وحورعین] (سورة واقعه آیت: ۲۲). دلته دَ کسائی، حمزه او عاصم په قرأت کښې په حورعین کښې حور مجرور دې، دجر جوار په وجه مجرور دې اودَدې ګاونډی دَ لحم کلمه ده چه دَ مخکښې نه مجرور راروانه ده. په باقی قرأتونو کښې دا مرفوع دې.

**د اول فریق د اول دلیل دویم جواب:** دَعبدالرسول دَدې اشکال دَ وجې نه ابن حاجب رحمه الله یوه بله لار اختیار کړې ده هغوی لیکلی دی "وارجلکم" په اصل کښې دَ فعل محذوف دَ وجې نه منصوب دې اصل عبارت داسې دې "وامسحوا برؤسکم واغسلوا ارجلکم". هغه فرمائی چه دا دَ قبیل علفتها تبنا وماء باردا نه دې چه دَ موجوده عامل نه علاوه اصل عامل محذوف دې ځکه چه موجوده عامل سره معنی صحیح نه پاتې کیږی یعنی ما په اوښه باندې ګیا او یخې اوبه اوخوړلې حالانکه اوبه څکلې شی خوړلې نه شی لهذا دَ معنی صحیح کښې کولو دَپاره به مناسب فعل محذوف منلې کیږی او هغه سقیتها ماء باردا دې یعنی سقیتها ماء باردا

**د اول فریق د اول دلیل دریم جواب:** جمهورامت دریم جواب داورکړې دې چه دَ نصب په صورت کښې "واغسلوا" فعل مقدردې اودَ جر په صورت کښې به داسې وینا کولې کیږی چه قرآن دَ حالت تخفف صورت بیان کړې دې یعنی که موزه ئې اچولې وی نوبیامسح کافی ده لیکن "الی الکعبین" چه کوم تحدید کړې دې دَهغې په رڼاکښې دا جواب کمزورې دې ځکه چه په مسح کښې کعبین پورې هیڅ قیدنشته اوقرآن مقیددې معلومه شوه چه دمسح صورت نشته.

**د اول فریق د دویم دلیل جواب:** دَ اهل جرح وتعدیل او دَ محدثینووینا ده چه دا روایت دَ ځان نه جوړشوې دې کوم چه شیعه ګانوجوړکړې دې دکوم چه هیڅ اعتبارنشته یادَ صحیح احادیثو په مقابله کښې داهیڅ هم نه دی.

**د اول فریق د دریم دلیل جواب:** دَحضرت علی رضی الله عنه طرف ته منسوب روایات هم دَ ثبوت درجې ته نه رسیږی یا هغه په حالت تخفف یعنی دَموزې اچولوحالت باندې محمول دی یادَ وضوء علی الوضوء په صورت کښې دی.

**مجموعی جواب:** شیخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې په حواله دَ طحاوی دَ خپو مسح او غسل متعلق لیکی چه په آیت کښې نصب اوجردواړه قراءتونه دی اومستندهم دی اوپه دواړو کښې تعارض دې. کله چه داقسم تعارض وی نودَ دواړو حکم ساقط کولوسره دَحدیث طرف ته رجوع کیږی اواحادیث مشهوره کثیره هم دَ غسل رجلین حکم ورکړې دې لهذا غسل متعین دې مسح ناجائزده. امام طحاوی رحمه الله فرمائیلی دی که دَ مسح حکم دَ محدودزمانې دَپاره ووهم نوهغه بیا منسوخ شوې دې. علماؤ لیکلی دی چه غسل رجلین الله تعالی مسح سره کیخودلو چه دَ خپو وینځلو په وخت په اوبوکښې دَاسراف نه دَ بچ کیدلواحساس ورکړې شی ځکه چه خلق په خپو باندې زیاتې اوبه اچوی. [اشعة المعات: ۱/۲۳۶]

بهرحال دَ احادیث صحیحه صریحه دومره لویه ذخیره موجود ده بیادَ نبی کریم او صحابه کرامو دائمی اجماعی عمل موجوددې اوبیا تابعینو فقهاء کرامو اودَ امت محمدیه دا

متفقه موقف موجود دي دَدې باوجود شیعه روافض په خپوباندې په مسح کولوباندې کلك شوی دی. دادَهغوی لویه ګمراهی ده او په دې سره دَهغوی هغه مونځونه هم بیکاره شو چه هغه خلق ئی کله ناکله کوی.

**قوله:** وَيْلٌ: داکلمه دَهلاکت دَ بددعاء دَپاره راځی. بعضو وئیلی دی چه په دوزخ کښې دَ یوخاص وادئی نوم دې.

**قوله:** لِلْأَعْقَابِ:

**د پوندو د خاص کولو دوه وجوهات:** ① دادَعقب جمع ده پوندې ته وائی دلته ئی پونده دَامر واقعه دَ وجې نه خاص کړې ده چه پوندې اوچې پاتې شوې وې

② یا په دې وجه چه پوندې په عام توګه باندې اوچې پاتې کیږی. دَدې الف لام دَ استغراق عرفی دَپاره دې یعنی دَ ټولې دنیادَ پوندو دَپاره بددعاء نه ده بلکه چه کومې پوندې اوچې پاتې شوې وې دَهغوی دَپاره بددعاء ده.

**دمضاف حذف:** دلته مضاف محذوف دې یعنی دَ اوچوپوندودَمالك دَپاره ویل او سختی اومشقت اوهلاکت دې.

**[۳۹۹] په سر د مسحې کول**

۳۹۹–()[۷] ① وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «إِنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَوَضَّأَ فَمَسَحَ بِنَاصِيَتِهِ وَعَلَى الْعِمَامَةِ وَعَلَى الْخُفَّيْنِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او مغیر بن شعبه رضی الله عنه فرمایي ② چه رسول ﷺ اودس وکړو نو د خپل تندي د ویښتانو دپاسه او په لنګوټه باندې او په موزو باندې ئي مسح وکړه. (مسلم)

**حل اللغات:** ① نَاصِيَتِهِ: تندي، خو دلته د ناصیه نه مراد قدر الناصیه دې یعنی د تندی دمقدار برابر ئې په سر مسح اوکړه، (کوم ته چه احناف د سر د څلورمې حصې مسح وائی). ② الْعِمَامَةِ: پټکي، پګړئ، ③ الْخُفَّيْنِ: د خُف تثنیه ده، موزې ته وائی.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَعَلَى الْعِمَامَةِ: په دې روایت کښې مسح علی الناصیة سره مسح علی العمامة ذکرهم راغلې دې په دې وجه دَفقهاء کرامو په مینځ کښې دَ مسح علی العمامة په مسئله کښې اختلاف راغلو.

**په مسح علی العمامة کښې مذاهب:**

① دامام احمد رحمه الله، امام اوزاعی رحمه الله، امام اسحاق او وکیع بن الجراح مذهب دادې.

---

(۱) اخرجه مسلم کتاب الطهارة باب المسح علی الناصیة والعمامة(رقم-۸۳ - (۲٤۷) والنسائی کتاب الطهارة/باب المسح علی العمامة مع الناصیة باب المسح علی العمامة مع الناصیة (رقم- ۱۰۷)

چه په مسح على العمامه اکتفاء جائز ده.

② دامام شافعي رحمه الله په نزد په مسح على العمامه خواکتفاء صحيح نه ده . خو په سربانديې په مقدارفرض مسح کولو نه پس سنت استيعاب په عمامه اداکيدې شي .
قاضي ابوبکربن العربي رحمه الله داقول امام ابوحنيفه رحمه الله ته هم منسوب کړې دې . خوشاه صاحب رحمه الله فرمائيلي دي چې د ډيرتلاش باوجود دا روايت ماته معلوم نشو.

③ داحنافو اودمالکيوْ په نزد سنت استيعاب هم په مسح على العمامه نه اداء کيږي .

**په قائلينوه جواز کښې هرې ولې:** ① مسح على العمامه مطلقاً جائزه ده برابره ده که عمامه ئې په طهارة تړلې وي اوکه بغيرطهارة که مضبوطه ئې تړلې وي اوکه غيرمضبوطه.د دوی استدلال په ذکرشوې څلوراحاديثودې په کوم کښې چې څه قيد نشته.

② امام احمددا شرطونه لګوی چې مضبوطه ئې تړلې وی اوتحت الحنك يې تړلې وی اود عمامه پلونه هم وی.که په دې کښې يو شرط هم نه وی نو بيا د د دې پرانستل آسان دی په دې به مسح نشی کولې.

③ ابوثور رحمه الله مسح على العمامه دپاره طهارة شرط ګرځولي چې عمامه به يې داودس په حالت کښې تړلې وی.دغه شان د ابوثور په نيز د مسح على العمامه هم لکه د مسح على الخفين دپاره توقيت دې.

**د جواز المسح على العمامة دلائل:** ① يوروايت حديث الباب کښې دې کوم چې د ابن مغيره څخه روايت دې.

② دحضرت بلال رضي الله عنه روايت دې.چه امام ترمذی رحمه الله هم ددې باب په آخرکښې تخريج کړې دې . ((عن بلال رضي الله عنه ان النبي صلى الله عليه وسلم مسح على الخفين والخمار))

③ د حضرت ثوبان درروايت څخه روايت دې **((قالت بعث رسول الله ﷺ سرية فأصابهم البرد فلما قدموا على رسول الله ﷺ امرهم ان يمسحوا على العصائب العمائم، والتساخين، جمع تسخان بمعنى الخف))**
[ابوداؤد باب المسح على العمامه]-

④ د حضرت عمروبن اميه ضمری څخه روايت دې . دينه دمسح على العمامه ثبوت ملاويږی ([1]) . دا مذکوره څلور واړه حديثونه سنداً صحيح دې .

**دعدم جوازدلائل:** ① قرآني آيت ((وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ)) دې طريقه د استدلال دا ده چې د مسح على العمامه احاديث اخباراحاد دی . په دې سره په کتاب الله زياتې ممکن نه دې
**اشکال:** ثبوت د مسح على الخفين هم اخبار آحاد دی.نوبيا په هغې باندې څنګه په کتاب الله باندې زيادت کولې شی.؟

[1]) الصحيح البخاری باب المسح على الخفين) _

**جواب**: په خلاف دمسح علی الخفین چه اول خو پخپله دقرآن کریم دقراة د جرځخه دیته اشاره کیږی . دویم ددې احادیث معنی متواتر دی . د دې وجې دې سره په کتاب الله زیاتې ممکن دې .

**دجوازمسح علی العمامة ه دلائلو ځخه جواب**: ترکومې چه دحدیث دباب اودمسح علی عمامه دنورو احادیثو تعلق دې . دجمهورو دطرف نه ددې جوابونه حافظ ابن عبدالبردا ورکړی دی.

**ه سند په اعتبار سره ضعف**: چې د مسح علی العمامة څلور روایات دی.① عمروبن امیه ② ثوبان ③ مغیره بن شعبه ④ بلال .دا ټول روایات ضعیف دی.اود بخاری د روایت په باره کښې یې فرمائیلی دی چې مونږ ((الاجوبة من المسائل المستغربه من البخاری)) کښې دا ناقابل حجت ثابت کړې دې.

**دمتن په اعتبارسره ضعف**: دا خو د دې روایاتو په سند بآندې کلام وو.د دې په متن باندې هم کلام شوې دې.

① په بعضې روایاتو کښې ((مسح علی الخفین والعمامة))راغلی دی.
② په بعضې کښې د عمامه سره د ناصیه هم ذکر دې.
③ په بعضې کښې د طرف العمامة ذکر دې
④ په بعضې کښې د وضع الید علی العمامه ذکر دې.

② **تسلیمی جواب**: که ددې صحت تسیلیم کړې شی نو بیا جواب دا دې چې چې په دې کښې د ناصیه ذکر هم شته او د ناصیه زیادت د ثقاتو دې اود ثقاتو زیادت معتبر وی نو په ناصیه باندې مسح ثابته شوه صرف په عمامه بآندې ثابته نشوه بلکه ورسره په ناصیه هم ثابته شوه.اوهرکله چې مفروض مسح ده نوبیا په عمامه باندې مسح کول څنګه صحیح کیدې شی.

③ په عمامه باندې مسح کول به ئې د عذر په وجه کړې وی د زکام یا د پټی په وجه به ئې په عمامه باندې مسح کړې وی د دې تائید د بلال رضی الله عنه د روایت ځخه هم کیږی چې نبی کریم ﷺ په خمار باندې مسح اوکړه اود خمار ځخه مراد د ښځو پړونی نه دې بلکه ددې ځخه مراد د زخم پټئ ده.یا هغه کپړه کومه چې د تیل لګولو نه پس په عمامه یا ټوپئ باندې د تیلو ځخه د حفاظت په غرض په سر بآندې کیخودې شی.

④ دمسح علی العمامه روایات احتمال د تاویل لری اودحافظ زیلعی رحمه الله دقول مطابق چه په کومو روایتونو کښې دمسح علی العمامة ذکردې . هغه مختصردی .اصل کښې ((مسح علی ناصیته وعمامته)) وو چه ددې مختصرشکل صرف علی عمامته جوړشو. لکه په بعضې

روایاتو کښې د «على ناصيته» تصریح شته دې.پخپله امام ترمذی رحمه الله فرمائی ((وذكر محمد بن البشار في هذا الحديث في موضع اخر انه مسح على ناصيته وعمامته))

دحضرت بلال رضي الله عنه په روایت کښې هم په بعضې طرق کښې دناصیه ذکر راغلې دې . دارنګه دحضرت جابر رضي الله عنه دراتلونکې حدیث نه هم ددې تائید کیږی .چې دې کښې عمار بن یاسر رضي الله عنه فرمائی چه ماته ددې ټولو روایاتو په بناء داخبره صحیح معلومیږی . چه دوی کله هم په خالی عمامه مسح نه ده کړې . د دې وجې اوس به دمسح على العمامه ټولو روایاتو دامحمل وی . چه حضرت نبی کریم ﷺ د سر مقدارمفروض مسح اوکړه . او دینه پس ئې په عمامه لاس راښکو اوداعمل دبیان دجواز دپاره وو .

⑤ حضرت نبی کریم ﷺ دمسح راس نه پس عمامه صحیح کړه.او راوی د نبی کریم ﷺ دا عمل مسح على العمامه اوګڼړله خوداجواب کمزوری دې . ځکه چه دادثقه راویانو په فهم باندې دبدګمانۍ حیثیت لری اودمسح على العمامه روایات دمتعدد صحابه کرامو څخه مروی دی اوددې ټولو په باره کښې داخیال سوء ظن دې .

⑥ دا واقعه د وضوء على الوضوء ده.اوپه وضوء على الوضوء کښې توسع وی.اعضاء مغسولۀ ته هم پوره اوبه رسول ضروری نه وی.نوپه ممسوحه کښې به په طریق اولی ضروری نه وی.

⑦امام محمد(۱)په یوبلې طریقې سره دمسح على العمامه روایاتو جواب ورکړې دې .هغه لیکی ((بلغنا ان المسح على العمامة كان فترك)) مولاناعبدالحی لکهنوی رحمه الله لیکی چه دامام محمد رحمه الله بلاغات مسندې دی. که داخبره صحیح وی . نو خبره بالکل صفاکیږی . اودمسح على العمامه داحادیثو بهترین جواب جوړیږی چه مسح على العمامه منسوخ شوې ده . داد مسح على العمامه دبحث لب لباب وو . په دې موضوع دټولو نه مفصل اوشافی بحث په اعلاء السنن (۱/۸۱تا۳۷)- کښې شوې دې .

**[۳۰۰] په اودس کښې د ښي طرف څخه شروع کول**

۳۰۰-(۲) [۸] ①وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ②«كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُحِبُّ التَّيَمُّنَ مَا اسْتَطَاعَ فِي شَأْنِهِ كُلِّهِ: ③فِي طُهُورِهِ وَتَرَجُّلِهِ وَتَنَعُّلِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

او د حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی② چه رسول الله ﷺ به ترخپله وسه پورې خپل ټول کارونه په ښي لاس باندې شروع کول خوښول③ (مثلاً) په خپل طهارت کولو کښې، خپله ګمنزه کولو کښې اوخپلې څپلئ اچولو کښې. (بخاری و مسلم)

(۱) موطاء امام محمد باب المسح على العمامة والخمار ۱۲) _

(۲) اخرجه بخاری کتاب الصلوة باب التيمن فی دخول المسجد وغیره (رقم -)، اخرجه مسلم کتاب الطهارة باب التيمن فی الطهور وغیره (رقم-۶۷ - (۲۶۸)

**حل اللغات:** ① التَّيَمُّنَ: دا د يُمن نه دې، په لغت کښې برکت ته وائي او ددې ضد الشّوم راځي، او تَيَمُّنَ وائي: الإِبْتِدَاءُ فِي الْأَفْعَالِ بِالْيَدِ الْيُمْنَى: په کارونو کښې د ښي اړخ نه شروع کول (مثلا په اندامونو کښې ښې لاس، ښې خپه وغيره مخکښې کول). ② شَأْنِهِ: أَيْ: فِي أَمْرِهِ: يعنى په خپلو کارونو کښې، ③ تَرَجُّلِهِ:: أي امْتِشَاطِهِ الشَّعْرَ: ويښته ګومنځ کولو کښې، ④ تَنَعُّلِهِ: أَيْ: لُبْسِ نَعْلِهِ: پيزار، پنړې په خپو کولو کښې (دغسې په موزو، جامو وغيره اغوستلو کښې).

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۰۱] د خپل ښي طرف څخه شروع کول

۳۰۱—(۱)[۹] ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِذَا لَبِسْتُمْ وَإِذَا تَوَضَّأْتُمْ ③ فَابْدَءُوا بِأَيَامِنِكُمْ»" رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

اود حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو ② کله چه تاسو (لباس وغيره) اغوندئي يا اودس کوئ ③ نو د خپل ښي طرفنه شروع کوئي. (احمد و ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① أَيَامِنِكُمْ: وَهُوَ بِمَعْنَى الْيَمِينِ: دا په معنى د يمين سره دې ښي اړخ ته وائي.

## [۳۰۲] په اودس کښې د بسم الله نه وئيلو حکم

۳۰۲—(۲)[۱۰] ① وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«لَا وُضُوءَ لِمَنْ لَمْ يَذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

اود حضرت سعيدبن زيد رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو ② کوم سړی چه د (اودس په وخت) د الله تعالى نوم وانخستلو د هغه اودس اونه شو (ترمذی، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① لَا وُضُوءَ: أَيْ: كَامِلًا: يعنى کامل اودس ئې اونه اوشو.

۳۰۳—(۳)[۰] ① وَرَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

او احمد او ابو داؤد داحديث د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه

۳۰۴—(۴)[۰] ① وَالدَّارِمِيُّ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، ② وَزَادُوا فِي أَوَّلِهِ: «لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَا وُضُوءَ لَهُ»".

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة باب فى وقت صلاة الظهر (رقم-۴۰۱) باب فى الانتعال (رقم - ۴۱۴۱)
(۲) اخرجه الترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى التسمية عند الوضوء (رقم- ۲۵) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فى التسمية فى الوضوء (رقم-۳۹۸)
(۳) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة ، باب فى التسمية على الوضوء (رقم-۱۰۱) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فى التسمية فى الوضوء (رقم-۳۹۹)
(۴) اخرجه الدارمى كتاب الطهارة/باب التسمية فى الوضوء (رقم-۷۱۸)

او دارمی دَ ابن ابو سعید خدری رضی الله عنه نه اوهغوی دَ خپل پلار نه روایت کړې دې. ۲ بله دا چه دغه خلقو دَ خپل روایت په شروع کښې دا الفاظ زیاتی ذکرکړی دی چه دَ هغه سړی مونځ نه کیږی چا چه اودس اونه کړو.

**د راوي مختصر تعارف:**

نوم سعید، ابوالاعور کنیت دَ پلار نوم زید اودَمور نوم فاطمه بنت لعجه وو.

**اسلام قبلول:** دَ حق په لټون کښې یو یهودی عالم له اورسیدو هغه اووئیل که چرې ته دَ الله تعالی په غضب کښې راتلل غواړې نوزمونږ مذهب حاضر دې. هغه وئیل چه ته دَ دین حنیف اتباع اوکړه. دغه شان یو بل یهودی عالم ورته اووئیل دې نه پس هغه سره دَ خپلې ښځې دَ اسلام په دائره کښې داخل شو. دَ هغه ښځه دَ حضرت عمر رضی الله عنه حقیقی خوروه دَ کومې نوم چه فاطمه رضی الله عنها وو.

دَ غزوه بدر نه بغیر په ټولو غزواتوکښې بهادری خودلې وه. حضرت سعید رضی الله عنه په دنیاوی سازوسامان او عزت سره مستغنی وو صرف په مقام عقیق (مدینې په نواح کښې) جائیداد باندې وخت تیرولو. په آخره کښې حضرت عثمان غنی رضی الله عنه په عراق کښې هغه ته یوجاګیر ورکړې وو اودې په عشره مبشره کښې شامل دې کومو ته چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په دنیاکښې دَ جنت زیرې اورولې وو. او دَ جاهلیت په زمانه کښې چه به چا خپله لور ژوندئی خښول غوښتل نودَ هغې په بچ کولو کښې به ئی امداد کولو او چه کله به یوظالم پلار دَ خپلې لور په حلق کښې چاړه ورتاوهله نو په خپل کفالت کښې به ئی اخستله اودَ څوانیدو نه پس به ئی دَ هغې پلارته وئیل که زړه دې غواړی نو واخله یا ئی ماسره پریږده.

**وفات:** مدینې سره نیزدې مقام عقیق کښې دَ جمعې په ورځ چه عمر ئی تقریبًا اویا کاله وو دَ دې دنیانه لاړو. حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه ورته غسل ورکړو حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه جنازه اوکړه او مدینې ته راوړلې شو او خښ کړې شو.

**مرویات:** دَهغه نه ۴۸ روایتونه نقل دی په دوو احادیثوکښې بخاری اومسلم متفق دی په یوکښې امام بخاری رحمه الله منفرد دې باقی دَ احادیثو په نورو کتابونوکښې دَهغوی احادیث موجود دی.

**تسهیلات:**

**قوله: لَاوُضُوءَلَهُ:** په دې باندې ټول امت متفق دې چې د اودس په شروع کښې بسم الله وئیل مستحب دی. او یوخوښ فعل دې، اګرچې دبسم الله په قانونی حیثیت کښې اختلاف دې.

**داوس په اوس کښې د تسمیه په حکم کښې مذاهب:**

وضوء کښې د تسمیه څه حیثیت دې ؟ په دې باره کښې دفقهاؤ لږ اختلاف دې.

① احناف ﷭ شافعيه مالکيه اوحنابله د څلور واړو نه يو روايت دسنيت دې او يود استحباب حنفيانو کښې صاحب هدايه داستحباب روايت ته ترجيح ورکړې ده. او د شافعيوْ او دمالکيه په نزد اصح داده چه تسميه في الوضوء سنت ده دحنابلوْ په دوه روايتو نوکښې استحباب روايت تهٔ علامه ابن قدامه چه دفقه حنبلی مستندترين راوی دې ترجيح ورکړې ده.

② امام اسحاق بن راهويه او بعضې اهل ظاهر وائی چه وضوء کښې تسميه واجب ده.ددوی په نزدکه ده قصداً تسميه پريښودله نود وضوء اعاده واجب ده.البته که نسيانًاپاتې شوه نومعاف ده.

**د دوی دليل:** د دوی دليل حديث الباب دې.په دې کښې نفی عليه السلام ښکاره فرمائيلی دی چې چا تسميه اونه وئيله نو د هغه اودس نه کيږی.

**د دې دليل جوابونه:**

① **د حديث ضعف:** دتسميه وجوب په يوقوی روايت سره هم ثابت نه دې اوحديث دباب دخپلوټولواسانيدو سره ضعيف دې لکه چه دامام احمد رحمه الله قول پخپله امام ترمذی رحمه الله نقل کړې دې.چه ((لااعلم في هذاالباب حديث له اسنادجيد)) ددې وجه داده چه اول خو د حديث باب مدار په رباح بن عبدالرحمن دې اوحافظ ابن حجر رحمه الله مجهول ګرخولې دې.(۱) دارنګه حافظ رحمه الله دامام ابوزرعه او ابوحاتم قول هم نقل کړې دې.چه دوی هم رباح ته مجهول وئيلې دې.

**اشکال:** په دې اشکال کيدې شی.چه امام ابن حبان په کتاب الثقات کښې درباح ذکر کړې دې.

**د اشکال جواب:** خو ددې جواب دا دې چه علامه سيوطی رحمه الله په تدريب الراوی کښې تصريح کړې ده.(۲) چه د امام ابن حبان اصطلاح د جمهورو محدثينونه جدا ده.او هغه دا که يو سړی نه څوك ثقه روايت کوی.نودوې دده د جهالت سره دې ثقه ګرخوی .ددې وجه د يو راوی د ابن حبان په کتاب الثقات کښې د ذکرکيدو څخه دا نه لازميږی.چه دا راوی به په نفس الامرکښې هم ثقه وی.

حديث باب کښې دويم ضعف په دې بناء دې چه دې کښې ابوثقال المری راغلې دې او علامه هيثمی رحمه الله په مجمع الزوائد"(۳) کښې ليکی چه ((قال البخاري في حديثه نظر))

ددې تفصيل څخه دامعلومه شوه چې داحديث ضعيف دې اوضعيف سره وجوب نه ثابتيږی.

---

(۱) التلخيص الحبير ۱۱/ ۸٤
(۲) تدريب الراوی نوع (۱) الکلام علی صحيح ابن حبان (۵۳۱) _
(۳) مجمع الزوائد اوآخرباب فرض الوضوء ۱۱/ ۲۲۸) _

② **د اودس په روایاتو کښې د تسمیه عدم ذکر :** ډیرو صحابه کرام رضی الله عنهم د نبی کریم ﷺ وضوء په پوره تفصیل سره بیان کړې دې.دې کښې چرته هم دتسمیه ذکرنه ملاویږی.که تسمیه واجب وې نو دې احادیثوکښې به ددې ذکر ضرور وو.

③ **د تسمیه څخه نیت مراد اخستل :** ابن عربی رحمه الله په عارضة الاحوذی کښې او ابوداؤد په خپل سنن کښې د ربیعة الرائي قول نقل کړې دې چې دلته د تسمیه نه مراد نیت دې.اوچې د حدیث په الفاظو غور اوکړې شی هم دا ترې معلومیږی. څکه چې ((لمن لم يذكر اسم الله)) فرمائیلی دی ((لمن لا يسم الله)) ئې نه دی فرمائیلی مطلب دا دې چې څوك یاد نکړی د الله تعالی نوم او یادول د زړه کار دې کوم ته چې نیت وئیلی شی.

ابن عربی فرمائی چې ذکر مقابل د نسیان دې.او په نسیان او ذ کر کښې تقابل تضاد دې.او د تقابل تضاد قاعده دا ده چې د دواړو متضادینو محل یو وی.اود نسیان محل قلب دې نو د ذکر محل چې د نسیان مقابل دې هغه به هم قلب وی.او په قلب کښې نیت وی نو په حدیث کښې به د ذکر څخه مراد نیت وی.تسمیه به نه وی.

④ جمهور په حدیث باب کښې نفی په نفی کمال حمل کوی نه په نفی دجواز((كما في قوله عليه السلام لا صلوة لجار المسجد الا في المسجد)) (۱) د جمات سره چې د چا کور نزدې وی د هغه مونځ په کور کښې نه کیږی.یعنی کامل مونځ ئې نه کیږی.اوکه وې کړل نو مونځ صحیح دې. دغه شان په حدیث الباب کښې هم تاویل کولې شی.

**اشکال:** دلته دا اعتراض کیدې شی چې کلمه د ،،لا،، په نفی د جنس کښې حقیقت دې.اوپه نفی د کمال کښې مجاز دې.اواصل په الفاظو کښې دا دې چې په حقیقی معنی کښې استعمالیږی نه چې په مجازی معنی کښې اوچې ترکومې پورې حقیقی معنی متعذره نه وی نو مجاز ته صیرورت نشی کولې.یا د مجازی معنی اخستو باندې څه قرینې موجوده وی.

**د اشکال جواب :** آو دلته بعضې قرائن موجود دی کوم چې په دې دلالت کوی چې دلته ،،لا،، د نفی کمال دپاره ده.

**د نفی الکمال قرائن :**

① **تسمیه د ټول بدن د طهارت سبب:** دارقطنی رحمه الله بیهقی کښې دحضرت ابوهریره رضی الله عنه وغیره نه مرفوعًا روایت کړې دې. چه ((من توضأ فذكر اسم الله على وضوئه كان طهورًا لجسده قال ومن توضأ ولم يذكر اسم الله عليه كان طهورًا لاعضائه)) (۲)

---

(۱) (دارقطنی ۱\کتاب الصلوة باب الحث لجار المسجد على الصلوة فيه الامن عذر ۴۲۰\۱)

(۲) دارقطنی۱\ ۷۴، ۷۵ باب التسمية على الوضوء وسنن كبرى بيهقى ۴۴\۱ باب التسمية على الوضوء)) راجع لحقيق هذا الحديث حاشية الكوكب الدرى ۲۴\۱ والتلخيص للحافظ ۷۶\۱ سنن الوضوء) _

② د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی.((قال رسول الله ﷺ من توضأ وذکر اسم الله تطهر جسده کله ومن توضأ ولم یذکر اسم الله لم یطهر الا موضع الوضوء)) (۱) دینه معلومه شو.چه بغیر د تسمیه هم وضوء معتبر دی

**استدلال:** دلته په حدیث کښې د دې صراحت دې چې د الله نوم وانخلی نو صرف د اودس اندامونه ئې پاك شو.یعنی اودس ئې اوشو

**الاشکال:** په دې اعتراض کیږی.چه داحدیث ضعیف دې ځکه چه دحضرت ابوهریره رضی الله عنه په دې حدیث کښې مرداس بن محمد دخپل پلار نه روایت کوی او دادواړه ضعیف دی او دا روایت بیهقی او دارقطنی دابن عمرنه هم روایت کړې دې.دې کښې ابوبکرالداهری متروك دې او دده په باره کښې وئیلې شوی دی.چه دې د خپل ځان ځخه حدیثونه جوړوی.بیهقی او دارقطنی دارروایت د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه ځخه هم روایت کړې دی.دې کښې یحیی بن هاشم سمسارمتروك دې او هم دا حدیث دعبدالملك بن حبیب عن اسمعیل بن عیاش عن ابان په طریق سره مرسلاً مروی دې خودا یوضعیف ترین مرسل دې اومصنف ابن ابی شیبه ۳\۱۱ کښې هم دا الفاظ د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه نه مرفوعاً مروی دی.خودې کښې لیث بن ابی سلیم اوحسن بن عماره متکلم فیه دی .د دې وجه نه دارروایت ضعیف دې.

**د اشکال جواب:** خوددې جواب دادې چه ځنګه حدیث باب ضعیف سره دتعدد طرق په بناء قبول کړې شو داسې دا حدیث هم د تعدد طرق په وجه د حسن لغیره په مرتبه شو.

③ **دحمد عدم وجوب:** علامه نیموی رحمه الله دحضرت ابوهریره رضی الله عنه ځخه مرفوع حدیث روایت کړې دې. ((قال قال رسول الله ﷺ یا اباهریرة رضی الله عنه اذا توضأت فقل بسم الله والحمد لله فإن حفظتك لا تبرح تکتب لك الحسنات حتی تحدث من ذلك الوضوء)) (۲) علامه هیثمی ددې حدیث ذکر کولو نه پس فرمائی. ((اسناده حسن)) دا حدیث په استحباب کښې صریح دې ځکه چه دې کښې د الحمدلله وئیلوهم حکم ورکړې شوې دې.چه ددې د وجوب څوك هم قائل نه دی.(۳)

④ **د باقی اذکارو عدم وجوب:** علامه عثمانی په خپل مسلك ددې حدیث مرفوع نه استدلال کړې دې (۴) چه علامه علی المتقی رحمه الله په کنز العمال (۵) آداب الوضوء کښې د امام مستغفری رحمه الله دکتاب الدعوات په حواله نقل کړې دې

(۱) بیهقی ۱\۴۵
(۲) اثارالسنن للنیموی ص.۳۰ ناقلا عن معجم الصغیر للطبرانی)-
(۳) مجمع الزوائد ۱\۲۲۰ باب التسمیة عندالوضوء)-
(۴) اعلاء السنن ۱\۴۴)-
(۵) کنز العمال ۱\۷۲)_

عن البراء مرفوعًا مامن عبد يقول حين يتوضاء بسم الله ثم يقول لكل عضو اشهد ان لا اله الا الله وحده لاشريك له واشهد ان محمدًا عبده ورسوله ثم يقول حين يفرغ اللهم اجعلني من التوابين واجعلني من المتطهرين الافتحت له ثمانية ابواب الجنة يدخل من ايهاشاء فان قام من فوره ذلك فصلى ركعتين يقرأ فيهما ويعلم مايقول من صلوته كيوم ولدته امه ثم يقال له استأنف العمل)) مستغفری رحمه الله دي حديث ته حسن غريب وئيلې دی.دې حديث کښې ئې تسميه سره دنورو انکار مسنونه سره موجب فضيلت ګرځولې دې.دا نور اذکار په اتفاق واجب نه دی.د دې وجې تسميه هم واجب نه ده.بلکه مستحب او مسنون ده.

⑤ **په خبر واحد وجوب عدم ثبوت:** د حنفيانو داصولُ مطابق د تسميه په عدم وجوب يواصولی دليل دا دې چه د تسميه ثبوت په اخبار احادو سره شوې دې.اوددې په ذريعه په کتاب الله زيادت نشی کيدې.

⑥ **نفی د ثمر:** حضرت مدنی رحمه الله فرمائيلی دی چې د ابوحنيفه رحمه الله نه د حديث يوه بهترينه توجيه منقول ده هغه دا چې يو وضوء ده کوم چې د وضاءت څخه ماخوذ دې.اويو طهور دې کوم چې د طهارت نه ماخوذ دې.د مانځه دپاره طهارت شرط دې وضاءت شرط نه دې.لکه څنګه چې نبی کريم ﷺ ((لاتقبل صلاة بغير طهور)) فرمائيلی دی ((بغير وضوء)) ئې نه دی فرمائيلی.د طهارت معنی ازاله الحدث ده کوم چې د مانځه شرط دې او وضوء په معنی د وضاءت دې يعنی د اندامونو پرقيدل کوم چې شرط نه دې.څکه چې د ا د آخرت د امور څنی دې.نو د حديث مطلب دا شو چې د قيامت په ورځ به د متوضی اندامونه نه پرقيږی که تسميه ئې نه وی وئيلې باقی طهارت خو پرې حاصليږی.لکه چې په دې حديث کښې د آخرت په باره کښې خبره ده د دنيا په باره کښې نه ده.خلاصه دا شوه چې په دې کښې نفی د شرط نه ده بلکه نفی د ثمر ده. ([1])

⑦ **بې اودسه د سلام جواب ورکولو عدم جواز:** امام طحاوی رحمه الله په نفی دوجوب تسميه باندې د حضرت مهاجربن قنفذ په روايت استدلال کړې دې ((قال رأيت النبی صلی الله عليه وسلم وهو يتوضاء فسلمت عليه فلم يرد علی فلما فرغ من وضوءه قال انه لم يمنعنی ان اردعليك الا انی كنت علی غيرطهر)) ([2])

**وجه الاستدلال:** وجه داستدلال داده.چه وعليکم السلام کښې صراحة دالله نوم شته. ددې سره دوی ﷺ دا ترك کړو.نو بسم الله چه دې کښې صراحة دالله تعالی نوم نشته.دا دویٔ د بې اودسیٔ په حالت کښې څنګه وئيلې شی؟

**اشکال:** په دې اشکال کيږی .چه دې روايت نه خود تسميه عندالوضوء کراهت معلوميږی

---

[1] ) تشريحات ترمذی (۱|۱۵۳)-

[2] ) اخرجه النسائی فی باب ردالسلام بعدالوضوء واخرجه ابوداود وابن ماجة وابن حبان وصحيح فی صحيحه والحاکم فی المستدرک باختلاف فی اللفظ . معارف السنن (۱|۱۵۶) _

حالانكه ددې څوك هم قائل نه دی.

**۵ اشكال جواب:** ددې جواب حضرت شاه صاحب رحمه الله دا وركړې دې.چه د امام طحاوی رحمه الله اصل مقصددا دې.چه ددې روايت څخه عدم وجوب خو معلوم شو پاتې شو ددې مسنون او مستحب كيدل.نو داد دې روايت څخه نه معلوميږی.بلكه ددې د اثبات دپاره نورو روايتونه شته دې.

## [۴۰۵] د اودس د بعضې اعمالو حكم

۴۰۵-()[۱۱] ①وَعَنْ لَقِيطِ بْنِ صَبِرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: ②«قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَخْبِرْنِي عَنِ الْوُضُوءِ. ③ قَالَ: أَسْبِغِ الْوُضُوءَ، وَخَلِّلْ بَيْنَ الْأَصَابِعِ، ④ وَبَالِغْ فِي الِاسْتِنْشَاقِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ صَائِمًا» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ، ⑤ وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ إِلَى قَوْلِهِ: بَيْنَ الْأَصَابِعِ.

اود حضرت لقيط بن صبره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی ② چه ما عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ ماته دَ اودس باره كښې خبر راكړه.③ حضورپاك اوفرمائيل ته اودس پوره كوه، په ګوتو كښې خلال كوه④ اوكه چرې ستا روژه نه وی نو پوزې ته په ښه شان سره اوبه رسوه. (ابوداؤد، دارمی)⑤ نسائی، ابن ماجه او دارمی دا حديث بين الاصابع پورې روايت كړې دې.

**حل اللغات:** ① أَسْبِغِ: أَيْ: أَتِمَّ فَرَائِضَهُ وَسُنَنَهُ: يعنی كامل اودس كوه د فرائضو او سنتو پوره خيال ساته. ② خَلِّلْ: د لاسونو اود خپو د ګوتو په مينځ كښې خلال كوه، ③ بَالِغْ: مبالغه كوه يعنی په ښه شان اوبه رسوه، ④ الِاسْتِنْشَاقِ: پوزه وينځل، د پوزې زيزمو يعنی ويخ ته اوبه رسولو ته استنشاق وائی.

**د راوی مختصر تعارف:**

نوم لقيط دَ پلار نوم عامر بن صبره بن عبدالله بن مثفق. ده ته لقيط بن صبره وائی يعنی نيكه طرف ته ئی نسبت كيږی. دَ بنو مثفق وفدسره راغلې وو هغه وخت مسلمان شو.

**مرويات:** دَ هغه نه يوڅو روايتونه نقل دی امام بخاری رحمه الله خودَده نه په خپل تاريخ كښې روايت نقل كړې دې خو په صحيح كښې هيڅ روايت نه دې اخستې دغه شان امام مسلم رحمه الله هم دَ ده روايت نه دې نقل كړې دَ ده نه اصحاب سنن روايات اخستی دی.

**تسهيلات:**

**قوله: أَخْبِرْنِي عَنِ الْوُضُوءِ.:**

**دسوال مقصد:** دې صحابی رضي الله عنه د اودس دمكملاتو اودَ آدابو باره كښې سوال اوكړو ځكه چې نفس اودس خو ددوئ دپاره يو معروف عمل وو. هم دا وجه ده چې نبی كريم ﷺ په جواب كښې دَ اودس مكملات او محسنات بيان اوفرمائيل.

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة ، باب فی الاستنثار (رقم- ۱۴۲)وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/المبالغة فی الاستنشاق والاستنثار(رقم- ۴۰۷) اخرجه الترمذی كتاب الصوم عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية مبالغة الاستنشاق للصائم (رقم-۷۸۸) والدارمی كتاب الطهارة/باب فی تخليل الأصابع (رقم-۷۳۲)

**قوله:** خَلِّلْ بَيْنَ الْأَصَابِعِ:

**د لاسونو د گوتو په خلال کښې مذاهب:**

دگوتو نه دلته پښې او دلاسونو گوتې مراد دی. حدیث پاك کښې د دواړو ذکر دې.

① د امام مالك رحمه الله او ځينې نورو فقهاء کرامو قول دې چې خلال د پښو د گوتو سره خاص دې لاسونو د گوتو خلال نشته، ځکه چې دلاسونو په گوتو ارتوالی زيات دې په دې وجه په کښې د خلال ضرورت نشته دې. داشان که د پښو خلال هم پريښودې شی نو پرواه نشته.

② دجمهورو په نيز د پښواو لاسونو د گوتو خلال سنت دې.

**اشکال:** که خلال سنت وی نو بيا خو ځينو احاديثو کښې ددې په پريښودلو وعيد ولې راغلې دې د هغې نه اندازه کيږی چې خلال واجب دې.؟

**داشکال جواب:** ددې جواب دادې که چرې گوتو کښې فراختيا وی نو خلال سنت دې او که د پښو گوتې خپلوکښې مضبوطې نتوتې وی نو بيا خلال واجب دې. او هم ددې په پريښودلو وعيد راغلې دې چې په مينځ کښې څه ځائې اوچ پاتې نشی. نو وعيد په اوچوالی باندې دې.

**[۳۰۶] په اودس کښې د گوتو خلال کول**

٣٠٦-()[١٢] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «إِذَا تَوَضَّأْتَ فَخَلِّلْ بَيْنَ أَصَابِعِ يَدَيْكَ وَرِجْلَيْكَ» " ③ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ نَحْوَهُ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① اودَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائيلو ② کله چه تاسو اودس کوئی نودَ خپلو لاسونو په گوتو او دخپلو خپو په گوتو کښې خلال کوئی. ③ (ترمذی او ابن ماجه هم دا شان روايت کړې دې اوترمذی وئيلی دی چه دا حديث غريب دې).

**قوله:** فَخَلِّلْ بَيْنَ أَصَابِعِ يَدَيْكَ وَرِجْلَيْكَ:

**د پښو د گوتو دخلال طريقه:** د پښو په گوتو کښې د خلال کيفيت دادې چې د گس لاس کچنا(وړه) گوته دې د ښی پښې دَ کچې گوتې په مينځ کښې داخله کړی او ترتيب سره دې د گسې پښې وړوکې گوتې پورې مکی او د لاسونو خلال دادې چې د دواړو لاسونو گوتې دې يو بل کښې ورکړی او خلال دې اوکړی.

(۱) اخرجه الترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی تخليل الأصابع (رقم- ۳۹) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/بباب تخليل الأصابع (رقم- ٤٤٧)

## [۴۰۷] د ګس لاس په ټیچه ګوته خلال کول

۴۰۷-(۱)[۱۳] ① وَعَنِ الْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «قَالَ: ② رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ ③ يُدَلِّكُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ بِخِنْصَرِهِ.» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① اوډ حضرت مستورد بن شداد ﷛ نه روايت دې فرمائي ② چه ما رسول الله ﷺ اوليدلو كوم وخت ئې چه اودس كولو ③ نوډ خپلو خپو ګوتې ئي (دَ ګس لاس) په كچه ګوته مږلې (يعنى دَ خپو دَ ګوتو په مينځ كښې به ئې دَ ګس لاس په كچې ګوتې سره خلال كولو). (ترمذى، ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① يُدَلِّكُ: أَيْ: يُخَلِّلُ: د مږلو نه مراد خلال كول دى. ② بِخِنْصَرِهِ: كچه ګوته، نرئ ګوته.

### د راوي مختصر تعارف:

نوم ئې مستورد دَ پلار نوم شداد دَقبيليې فهرى قرشى سره ئې تعلق لرلو دَهغوى شمير دَ كوفې په خلقو كښې كيږى بيائى په مصركښې سكونت اختيار كړې وو(۲) دا عجيبه اتفاق دې چه په كومه ورځ رسول الله ﷺ دَ دنيانه تشريف يوړودې هغه وخت ډير وړوكې ووخودَې نه باوجود هغوى دَرسول الله ﷺنه احاديث اوريدلى دى اودَ دوى نه اووه احاديث روايت دى. څلور احاديث دَاهل مصر نه اودوه دَ اهل لكوفه نه مسلم شريف كښې دَهغوى نه روايت موجوددې خوبه بخارى كښې دَهغوى نه هيڅ روايت نقل نه دې.

## [۴۰۸] په اودس كښې د ږيري خلال كول

۴۰۸-(۲)[۱۴] ① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ أَخَذَ كَفًّا مِنْ مَاءٍ، ③ فَأَدْخَلَهُ تَحْتَ حَنَكِهِ، ④ فَخَلَّلَ بِهِ لِحْيَتَهُ، ⑤ وَقَالَ: هٰكَذَا أَمَرَنِي رَبِّي». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① اوډ حضرت انس ﷛ نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ به كله اودس كولو نو يو چونګ اوبه به ئې واخستلې ② بيا به ئې هغه دَ زنې لاندې رسولې ③ او په دې سره به ئې په خپله ږيره مباركه كښې خلال كولو ④ او بيا به ئې فرمائيل چه زما پروردګار (دَ وحى خفى په ذريعه) ماته هم دغه شان حكم فرمائيلې دې. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① كَفًّا: لپه، چونګ، ② حَنَكِهِ: أَيْ تَحْتَ الذَّقَنِ: د ځنې لاندې ځاې ته وايې.

**تسهيلات:**

**قوله: فَخَلَّلَ بِهِ لِحْيَتَهُ:**

---

(۱) اخرجه الترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب ما جاء أن مفتاح الصلاة الطهور (رقم- ۳) وابوداود كتاب الطهارة ، باب غسل الرجلين (رقم- ۱۴۸) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/بباب تخليل الأصابع (رقم- ۴۴۶)

(۲) اسدالغابه).(۲) مسلم فى أول كتاب الزهد).

(۳) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة ، باب تخليل اللحية (رقم- ۱۴۵)

**د ږیرې په خلال کښې مذاهب:**

① دَامام شافعی رحمه الله امام احمد رحمه الله او اکثر علماؤ په نیز په ږیره کښې خلال کول سنت دی.
② امام مالك رحمه الله دَ مستحب قول اختیار کړې دې.
③ امام مزنی رحمه الله او په یو قول کښې امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چه داخلال واجب دې.
④ دَائمه احنافو په نیز دَ ږیرې خلال دَ راجح قول مطابق سنت دې

تولو :حادیثوته په کتوسره داخبره مخې ته راځی چه دَ ږیرې خلال یوښه کاردې او حضورپاك به دې عمل کړې دې.
اوس دامسئله زیربحث ده چه دَ ږیرې څه حکم دې آیا وینځل دی که دَدې مسح کول دی؟

**د ږیرې په وظیفه کښې مذاهب:**

① جمهوروبغیردَ څه تفصیل نه فرمائیلی دی چه دَږیرې وینځل په اودس کښې واجب دی
② احنافوپه نیز د ګورې ږیرې دپاسه وینښتو باندې اوبه بیول فرض دی جرړو ته اوبه رسول واجب نه دی او د رنګی ږیرې څرمنې ته اوبه رسول واجب دی.

**د ږیرې دوه قسمونه اودهریو حکم:** ① کمه ږیره هغه وی په کوم کښې چه څرمن ښکاری دَ کمې ږیرې حکم دادې چه دَدې دَ جرړو پورې اوبه رسول واجب اوضروری دی.
② ګڼره هغه وی په کوم کښې چه دَ مخ څرمن نه ښکاری. اودَ ګڼرې ږیرې داحکم دې چه دَدې جرړوته اوبه رسول ضروری نه دی دَ پاسه وینځل فرض دی اودَ ږیرې چه کوم وینښته لاندې زوړند وی دَهغې وینځل ضروری نه دی اونه مسح کول ضروری دی

**دږیرې د خلال دپاره د نوې اوبو راخستلو حکم:** البته خلال کول اودَ خلال دَپاره نوې اوبه اخستل ضروری نه دی دَ اودس سابقه اوبه کافی دی. دَخلال په مسئلې سره په ضمنی توګه دا خبره بالکل واضح شوه چه په شریعت کښې دَ یوموټې نه دکمې ږیرې وجودنشته دې ځکه چه په خشخشی ږیره کښې څنګه خلال کیدې شی ځکه چه دَ ږیرې دَخلال کیفیت داسې دې چه دَ وینځلونه پس دَ لاس ګوتې دَ ږیرې لاندې داخلولوسره پورته راؤچتولې شی.

**[۴۰۹] د نبی علیه السلام په ږیره کښې خلالول**

۴۰۹ – ()[۱۵] ①وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: ②أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُخَلِّلُ لِحْيَتَهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ①اودَ حضرت عثمان رضی الله عنه نه روایت دې② چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به (دَاودس کولوپه وخت) په خپله ږیره مبارکه کښې خلال کولو (ترمذی، دارمی)

(۱) اخرجه الترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ باب ما جاء فی تخلیل اللحیة (رقم- ۳۱)

## [٤١٠] د نبی علیه السلام د اودس طریقه

۴۱۰-()[۱۶] ① وَعَنْ أَبِي حَيَّةَ قَالَ: ② «رَأَيْتُ عَلِيًّا تَوَضَّأَ فَغَسَلَ كَفَّيْهِ حَتَّى أَنْقَاهُمَا، ③ ثُمَّ مَضْمَضَ ثَلَاثًا وَاسْتَنْشَقَ ثَلَاثًا ④ وَغَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا، وَذِرَاعَيْهِ ثَلَاثًا ⑤ وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ مَرَّةً، ثُمَّ غَسَلَ قَدَمَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ، ⑥ ثُمَّ قَامَ فَأَخَذَ فَضْلَ طَهُورِهِ فَشَرِبَهُ وَهُوَ قَائِمٌ، ⑦ ثُمَّ قَالَ: أَحْبَبْتُ أَنْ أُرِيَكُمْ كَيْفَ كَانَ طَهُورُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① و د حضرت ابوحیه رحمه الله نه روایت دي فرمائي ② چه ما حضرت علی رضی الله عنه په اودس کولو اولیدو. نو هغوی خپل لاسونه اووینځل تردې چه هغه ئې پاک کړل. ③ بیائی درې غرغرې اوکړې، درې ځل ئی په پوزه کښې اوبه واچولې، ④ درې ځل ئی خپل مخ اووینځلو. درې ځل ئی خپل لاسونه ترڅنګلوپورې اووینځل، ⑤ یو ځل ئی د سر مسح اوکړه او خپلې دواړه خپې ئی تر ګیټو پورې اووینځلې. ⑥ بیا اودریدو او د اودس نه پاتې شوې اوبه ئی په ولاړه باندې اوڅکلې ⑦ او بیائی اوفرمائیل چه ما دا خوښ کړل چه تاسو ته دا اوښایم چه د حضورپاك اودس څنګه وو. (ترمذی، نسائی)

**حل اللغات:** ① أَنْقَاهُمَا: أَيْ: أَزَالَ الْوَسَخَ عَنْهُمَا: خیرې ئې ترې لرې کړو یعنی پاک ئې کړو. ② اسْتَنْشَقَ: پوزه کښې ئې اوبه واچولې، ③ ذِرَاعَيْهِ: أَيْ: يَدَيْهِ مِنْ رُءُوسِ الْأَصَابِعِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ: دواړه متې یعنی د ګوتو نه تر څنګلو پورې.

## [۴۱۱] د نبی علیه السلام د اودس نقل کول

۴۱۱-()[۱۷] ① وَعَنْ عَبْدِ خَيْرٍ، «قَالَ: ② نَحْنُ جُلُوسٌ نَنْظُرُ إِلَى عَلِيٍّ حِينَ تَوَضَّأَ ③ فَأَدْخَلَ يَدَهُ الْيُمْنَى فَمَلَأَ فَمَهُ، فَمَضْمَضَ ④ وَاسْتَنْشَقَ وَنَثَرَ بِيَدِهِ الْيُسْرَى، فَعَلَ هَذَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ⑤ ثُمَّ قَالَ: مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى طَهُورِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهَذَا طَهُورُهُ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① و د حضرت عبد خیر رحمه الله نه روایت دي فرمائي ② چه مونږ ناست وو د حضرت علی رضی الله عنه اودس کولو ته مو کتل. ③ نوهغوی د لوښی نه په ښی لاس سره اوبه واخستې او په خله کښې ئې واچولې او غرغرې ئې اوکړې، ④ او په پوزه کښې ئې اوبه واچولې او په ګس لاس باندې ئې پوزه سونړکړه. دغه شان ئی درې ځل اوکړل. ⑤ بیا ئی اوفرمائیل چه د چا دپاره دا خبره د خوشحالئ وی چه هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم اودس اوګوری نو (هغه دې اوګوری چه) د حضورپاك اودس داسې دې (یعنی حضورپاك به داسې اودس کولو) (دارمی)

**حل اللغات:** ① فَمَلَأَ: ډکه ئې کړه (خُله) یعنی خله کښې ئې اوبه واچولې، ② فَمَضْمَضَ: أَيْ: حَرَّكَ الْمَاءَ فِي فِيهِ: په خُله کښې ئې اوبه اوړقولې یعنی خُله ئې اووینځله، ③ اسْتَنْشَقَ: أَيْ: أَدْخَلَ الْمَاءَ فِي أَنْفِهِ:

(۱) اخرجه الترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ باب ما جاء فی تخليل اللحية (رقم- ۳۱)
(۲) اخرجه النسائی کتاب الطهارة/باب بأی اليدين يستنثر(رقم-۹۱)

په پوزه کښې ئې اوبه واچولې، ④ نَثَرَ: أَيْ: أَخْرَجَ الْمُخَاطَ وَالْأَذَى مِنْ أَنْفِهِ: پوزې نه ئې اوبه وغیره راویستل، یعنی پوزه ئې سونړ کړه، ⑤ سَرَّهُ: أَيْ: جَعَلَهُ مَسْرُوْرًا وَأَحَبَّ: ځان خوشحالوی، خوښوی.

### [۴۴] په خله او پوزه کښې اوبه اچول

۴۴-(۱)[۱۸] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «قَالَ: ② رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفٍّ وَاحِدٍ، فَعَلَ ذٰلِكَ ثَلَاثًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او دَ حضرت عبدالله بن زید رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی② چه ما رسول الله ﷺ ته اوکتل چه حضورپاک هم په یو چونګ سره غرغرې اوکړې او په پوزه کښې ئې اوبه واچولې اوداسې ئې درې ځل اوکړل. (ابوداؤد، ترمذی)

### [۴۴] د سر او غوږونو مسح کول

۴۴-(۲)[۱۹] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا ② «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَحَ بِرَأْسِهِ، وَأُذُنَيْهِ: ③ بَاطِنَهُمَا بِالسَّبَّاحَتَيْنِ، ④ وَظَاهِرَهُمَا بِإِبْهَامَيْهِ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی② چه رسول الله ﷺ دَ خپل سر او دواړو غوږونو مسح اوکړه③ او دَ غوږونو دننه حصې مسح ئې په خپلو د شهادت ګوتو سره ④ او دَ ظاهري حصې مسح ئې په غټو ګوتو سره اوکړه. (نسائی)

**حل اللغات:** ① السَّبَّاحَتَيْنِ: وَهُمَا السَّبَّابَتَانِ: مسواکې ګوتې ته وائی. (په زمانه دجاهلیت کښې به خلقو دکنځلو په وخت دا ګوته داشارې په طور استعمالوله ځکه به ئې ورته سبابه وئیل، اسلام دا نوم خوښ نه کړو ددې په ځائ ئې مسبحه استعمال کړو ځکه چه په دې سره تسبیح وئیلې کیږی.

② إِبْهَامَيْهِ: تثنیه د ابهام ده مټه ګوته.

### [۴۴] د نبی علیه السلام د سر د مسحې طریقه

۴۴-(۳)[۲۰] ① وَعَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، «أَنَّهَا رَأَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ ② قَالَتْ: فَمَسَحَ رَأْسَهُ مَا أَقْبَلَ مِنْهُ وَمَا أَدْبَرَ، ③ وَصُدْغَيْهِ وَأُذُنَيْهِ مَرَّةً وَاحِدَةً».

**ترجمه:** ① او دَ حضرت ربیع بنت معوذ رضی الله عنها نه روایت دې② چه هغې رسول الله ﷺ په اودس کولو اولیدلو. ② چنانچه هغه فرمائی چه حضورپاک دَ خپل سر په وراندینی حصه باندې، شاتنې حصې باندې ③ او په سنړو او په غوږونو باندې یو ځل مسح اوکړه

---

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة ، باب صفة وضوء النبی صلی الله علیه وسلم (رقم- ۱۱۹)

(۲) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة ، باب صفة وضوء النبی صلی الله علیه وسلم (رقم- ۱۱۹) اخرجه النسائی کتاب الطهارة/باب مسح الأذنین مع الرأس وما یستدل به علی أنهما من الرأس(رقم-۱۰۲) والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ باب مسح الأذنین ظاهرهما وباطنهما (رقم- ۳۶)

(۳) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة ، باب فی الرجل یدخل یده فی الإناء قبل أن یغسلها (رقم- ۱۲۹)

١ وَفِي رِوَايَةٍ: «أَنَّهُ تَوَضَّأَ ٢ فَأَدْخَلَ أُصْبُعَيْهِ فِي جُحْرَيْ أُذُنَيْهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ ٣ وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ الرِّوَايَةَ الْأُولَى، وَأَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهُ الثَّانِيَةَ.

**ترجمه:** ١ او په يو روايت كښې دى چه حضورپاك اودس اوكړو ٢ چنانچه (دَ مسح دَپاره) ئى خپلې دواړه گوتې دَ خپلو دواړو غوږونو په سورو كښې داخل كړې. (ابوداؤد) ٣ ترمذى اول حديث او احمد ابن ماجه دويم حديث روايت كړې دې.

**حل اللغات:** ① صُدْغَيْهِ: مَا بَيْنَ الْأُذُنَيْنِ وَالْعَيْنِ: د غوږونو او ستركو په مينځ كښې حصې ته وائى كوم ځاىٔ چه ويښته راخيژى. ② جُحْرَيْ: أَيْ: صِمَاغَ: د غوږونو سورو ته وائى.

## [٣١٥] په نووااوبو سره د سرمسح كول

٣١٥—() [٢١] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، «أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ، ٢ وَأَنَّهُ مَسَحَ رَأْسَهُ بِمَاءٍ غَيْرِ فَضْلِ يَدَيْهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، ٣ وَرَوَاهُ مُسْلِمٌ مَعَ زَوَائِدَ.

**ترجمه:** ١ اوِدَ حضرت عبدالله بن زيد رضی الله عنه نه روايت دې چه ما رسول الله ﷺ په اودس كولو اوليدلو. ٢ حضورپاك دَ خپل سر مسح په هغه اوبو سره اوكړه كومې چه دَ لاسونو نه بچ شوې نه وې (يعنى نوې اوبه اخستو سره ئى مسح اوكړه) ترمذى ٣ او مسلم دا روايت په زيادت سره نقل كړې دې (په كوم كښې چه دَ نورو اندامونو دَ اودس دَ وينځلو هم ذكر دې).

**تسهيلات:**

**قوله: بِمَاءٍ غَيْرِ فَضْلِ يَدَيْهِ:**

**د سردمسحې دپاره نوې اوبه راخستل:** يعنى حضرت نبى كريم ﷺ د سر مسح دپاره نوې اوبه راواخستې او دلاس په لوندالى باندې ئى اكتفاء اونه كړه.

### د مغسول اندام څخه پاتې شوې اوبو باندې مسح كولو كښې مذاهب:

① د جمهورو په نيز د مغسول اندام څخه پاتې شوو اوبو باندې د سر مسح كول جائزنه گڼړى بلكه نوې اوبه راخستل ضرورى گڼړى.

② د احنافو امامانو په كتابونو كښې دا مسئله موجوده ده چې د يو اندام وينځلو نه پس په لاس چې كوم لوندالى پاتې شى هغه د يو اندام د مسح دپاره كافى دى، د نوې اوبه راخستلو ضرورت نشته دې. خو كه په لاسونو سره يې د يو اندام مسح كړى وى نو بيا ددې نه پس د لاس دَ لوندالى د بل اندام د مسح دپاره كافى نه دې. ددې وجه داده چې دمسح نه پس د لاس لوندالى اوبه مستعمل كيږى. او دا دوباره نشى استعمالولې. او په وينځلو

(١) اخرجه الترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أنه يأخذ لرأسه ماء جديدا (رقم - ٣٥) وابوداود كتاب الطهارة . باب فى الرجل يدخل يده فى الإناء قبل أن يغسلها (رقم- ١٢٠) ومسلم كتاب الطهارة باب فى وضوء النبى صلى الله عليه وسلم (ورقم) ١٩ - (٢٣٦)

سره چې کوم لوندالي پاتې کیږي هغه د مستعملو اوبو په حکم کښې نه دی. ځکه چې مستعمل هغه وی چې په یو اندام باندې په استعمال کښې اوبهیولې شی.

**د اول فریق دلیل:** زیربحث حدیث داول فریق دلیل دې ځکه چې په دې کښې صراحت دې چې نبی علیه السلام د سر د مسحې دپاره نوې اوبه استعمال کړې دی.

**د دویم فریق دلیل:** امام ترمذی رحمه الله داحدیث هم دا شان (بماءغیرفضل یدیه) نقل کړې دې لیکن دې سره ئې دا هم ذکر کړی دی چې دابن لهیعه روایت کښې د (غیرفضل یده) الفاظ دی دهغې مطلب دا شو چې د لاسونو نه بچ شوې اوبه نبی کریم ﷺ د سر دمسح دپاره استعمال کړې دی. که دا روایت صحیح شی نو دا به د احنافو دلیل جوړ شی.

**احتیاطی خبره:** لیکن امام ترمذی رحمه الله اووئیل چې ددې روایت نه وړاندې روایت زیات صحیح دې. ځکه چې هم هغه مشهور دې. (لمعات) بهر حال که نوې اوبه واخستې شی نو هغه به زیات بهتر وی چې د اختلافی صورت نه سرې بچ شی. [اشعة اللمعات: ۲۴۲/۱]

### [۳۸] غوږونه د سر په حکم کښې

٣٨—() [٢٢] ١ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ٢ «ذَكَرَ وُضُوءَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: ٣ وَكَانَ يَمْسَحُ الْمَاقَيْنِ، وَقَالَ: الْأُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ. ٤ وَذَكَرَا: قَالَ حَمَّادٌ: لَا أَدْرِي: (الْأُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ) ٥ مِنْ قَوْلِ أَبِي أُمَامَةَ أَمْ مِنْ قَوْلِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** ١ او دَ حضرت ابوامامه رضی الله عنه نه روایت دې ٢ چه هغوی د رسول الله ﷺ د اودس کولو ذکر اوکړو نو ونې وئیل چه ٣ حضوریاك به دَ سترګو ګوټونه هم مږل او وئیل ئې چه دواړه غوږونه هم سر کښې داخل دی. (ابن ماجه، ابوداؤد، ترمذی) ٤ او ابو داؤد اوترمذی ذکرکړی دی چه حماد وئیل چه زه دا نه پیژنم چه [الأذنان من الرأس] (یعنی دواړه غوږونه په سر کښې داخل دی) ٥ دَ ابو امامه رضی الله عنه خپل قول دې یا دَ حضوریاك ارشاد ګرامی دې.

**حل اللغات:** ① الْمَاقَيْنِ: د مَأْقٍ تثنیه ده، طَرَفُ الْعَيْنِ الَّذِي يَلِي الْأَنْفَ وَالْأُذُنَ: د سترګو ګوټونو ته وائی.

**تسهیلات:**

**قوله:** الْأُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ: په اودس کښې دَ غوږونوځه حکم دې آیا مسح کول دی که وینځل دی نو دَدې باره کښې هم دَعلماؤ مختلف رائې دی:

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/بباب الأذنان من الرأس (رقم- ٤٤٤) وابوداود كتاب الطهارة، باب فى الرجل يدخل يده فى الإناء قبل أن يغسلها (رقم- ١٣٤) والترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب ما جاء أن الأذنين من الرأس (رقم- ٣٧) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/بباب ما جاء فى القصد فى الوضوء وكراهية التعدى فيه (رقم- ٤٢٢) وابوداود كتاب الطهارة، باب الوضوء ثلاثا ثلاثا (رقم- ١٣٥)

**د غوږونو په وظيفه کښې مذاهب چې دا مسح ده که غسل ؟:**

① بعضې فقهاء حضرات مثلاً امام زهري رحمه الله ، قاضي ابوشريح او داؤدظاهري اذنين په اعضاء مغسولة کښې شماري او دغوږونو ظاهراوباطن دواړه د مخ سره وينځل ضروري ګرځوي

②اوامام حسن بن صالح او امام شعبي رحمه الله په نيزدغوږونوباطن اعضاء مغسولة کښې دې چه دادمخ سره وينځل واجب دی.د غوږونو ظاهريعنی روستۍ حصه اعضاء ممسوحۍ کښې ده.چه دا راس سره مسح کول پکار دی.(۱)

③دائمه اربعۍپه نيز د اذنينووظيفه مسح ده نه غسل

**د غوږونو د وينځولو دليل:** ((حديث عائشة رضي الله عنها انه ﷺ كان يقرا في سجود القرآن سجد وجهي للذي خلقه وصوره وشق سمعه وبصره)) په دې کښې د ((سمعه)) ضمير وجه ته راجع دې.نوسمع وجه ته منسوب شوه نو د دې حکم به هم د ((وجه))وی.اود مخ وظيفه غسل دې نو غوږونه به هم وينځلی شی.

**جواب:** دا روايت په دې خبره دلالت نه کوی.چې ((اذن)) د ((وجه)) څخه دې.بلکه د دې په خلاف ((حتى تخرج من اذنيه))مذکوره روايت په دې دلالت کوی چې (اذن)د(راس)څخه دې.دغه شان په راروان باب کښې ((الاذنان من الراس))زياد صريح دې په دې خبره چې غوږونه د راس څخه دی.نوحکم به ئې هم د راس وی چې مسح ده نه چې د وجه چې غسل دې.

**دغسل اومسح د جمع کولودليل:** دحضرت علی رضي الله عنه عمل دې حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمائی چې حضرت علی رضي الله عنه اوبه راغوښتلې اوبيا ئې اوفرمائيل آيا تاسو ته د رسول الله ﷺ اودس اونه ښايم اوبيا ئې اودس اوکړو اوپه هغې روايت کښې دی چه د غوږونو مخکښ حصه ئې د مخ سره اووينځله.(۲)

**د غوږونو د مسحې دلائل:** ①حديث الباب د جمهورو دليل دې څکه چې په دې کښې په صراحت سره دی چې نبی کريم ﷺ د غوږونو په ظاهر اوپه باطن دواړو باندې مسح اوکړه.

② په راروان باب کښې حديث دې چې ((الاذنان من الراس)) يعنی غوږونه د راس څخه دی.دلته بيان د خلقت نه دې بلکه د حکم دې چې کومه وظيفه د راس ده هغه به د غوږونو هم وی نو معلومه شوه چې د غوږونو مسح کول سنت دی.

(۱) من نيل الاوطار،۱/۱۳۲ باب تعاهدالماقين ، ۰۱۱ ١٤ باب ان الاذنين من االراس ۱۲) _
(۲) رواه البخاری باب حکم الاذنين فی وضوء الصلاة (۱|۲۸)-

[۳۱۷] په اودس کښې هر اندام درې ځله وينځل

۳۱۷-(۱) [۲۳] [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُهُ عَنِ الْوُضُوءِ، [۳] فَأَرَاهُ ثَلَاثًا ثَلَاثًا. ثُمَّ قَالَ: "هَكَذَا الْوُضُوءُ، [۴] فَمَنْ زَادَ عَلَى هَذَا فَقَدْ أَسَاءَ وَتَعَدَّى وَظَلَمَ» ". رَوَاهُ النَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو بن شعيب رحمه الله خپل پلار نه اوهغه د خپل نيکه نه روايت کړې دې. [۲] هغوی وائی چه يو کلی وال د حضورپاك په خدمت کښې حاضر شو اود حضورپاك نه ئې د اودس د کيفيت تپوس اوکړو. [۳] چنانچه حضورپاك هغه ته د اودس اندامونه درې ځل وينځل او اخودل او وئې فرمائيل چه (کامل) اودس داسې دې. [۴] لهذا چاچه په دې باندې زيادت اوکړو (يعنی د دريو ځلو نه ئې زيات اووينځل) هغه بد اوکړل او تجاوز ئې اوکړو او ظلم ئې اوکړو. (نسائی، ابن ماجه) او ابو داؤد هم د دې مطلب حديث شريف روايت کړې دې.

**حل اللغات:** ① أَسَاءَ: أَيْ: بِتَرْكِ السُّنَّةِ: بد ئې اوکړل يعنی سنت ئې پريخودل، ② تَعَدَّى: تجاوز ئې اوکړو، د حد نه تيرشو، زياتې ئې اوکړو.

**تسهيلات:**

**قوله: فَمَنْ زَادَ:**

**اشکال: اطالت** غره خومطلوب اومقصود دې حالانکه دلته زيادت فی الوضوء گناه اوظلم خودلې شوې دې؟

**د اشکال جواب:** د دې حديث مطلب دادې چاچه د دې په تبليغ کښې زياتې اوکړو ياکمې ئې اوکړو نو هغه ظلم اوکړو. چاچه د دې خلاف عقيده اولرله هغه ظلم اوکړو ياچا چه د اودس په مراتبوکښې زياتې اوکړو يعنی د دريو ځلونه ئې زيات اووينځل نو هغه ظلم اوکړو. "اساء" يعنی د ترك سنت د وجې نه هغه گناه اوکړه خراب کارئې اوکړو.

[۳۱۸] په دعا کښې غلو ممانعت

۳۱۸-(۲) [۲۴] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُغَفَّلِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَهُ يَقُولُ: [۲] «اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْقَصْرَ الْأَبْيَضَ عَنْ يَمِينِ الْجَنَّةِ. قَالَ: أَيْ بُنَيَّ سَلِ اللَّهَ الْجَنَّةَ وَتَعَوَّذْ بِهِ مِنَ النَّارِ، [۳] فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۴] إِنَّهُ سيكون فِي هَذِهِ الْأُمَّةِ قَوْمٌ يَعْتَدُونَ فِي الطُّهُورِ وَالدُّعَاءِ» . رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

---

(۱) اخرجه النسائی کتاب الطهارة/باب الاعتداء فی الوضوء (رقم-۱۴۰)

(۲) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة/باب الإسراف فی الماء (رقم- ۹۶) وابن ما جة کتاب الدعاء /باب کراهية الاعتداء فی الدعاء (رقم- ۳۸۶۴)

**ترجمه:** [۱] او دَ حضرت عبد الله بن مغفل ﷺ نه روايت دې چه هغوی خپل خوئې نه واوريدل چې دا دعا يې كوله ،[۲] اې الله زه تانه دَ جنت په ښی طرف كښې سپين محل غوارم. [۳] نوهغوی اوونيل اې زما خويه ته دَ الله تعالی نه جنت اوغواره او دَ (دوزخ) دَ اور نه پناه اوغواره[۳]. ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دې چه فرمائيل، زر به په دې امت كښې داسې خلق پيدا شی چه په طهارت او دعا كښې به غلو كوی. (احمد ، ابن ماجه، ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① اَلْقَصْرَ: محل، مانړئ، ② يَعْتَدُونَ: أَی يَتَجَاوَزُونَ عَنِ الْحَدِّ الشَّرْعِيِّ: يعنی د شرعی حد نه به ئې تجاوز كولو.

**تسهيلات:**

**قوله:** اَلْقَصْرَ الْأَبْيَضَ:

**دقصر ابيض دنياوی مصداق:** دَ سپين محل ترجمه په انګريزی ژبه كښې وائټ هاؤس دہ. دا لفظ آئنده دَ مشكوة شريف په دويمه حصه كښې هم راغلې دې. هلته دَفارس دَ بادشاه كسرئ محل اودَهغه دَ خزانو دَ فتوحاتو ذكر دې. دَ مدائن په فتوحاتو كښې په ايوان كسرئ كښې "القصر الأبيض" هم فتح شوې وو. (مشكوة صفحه ۴۶۶)

**قوله:** قَوْمٌ يَعْتَدُونَ:

**په اودس كښې د اعتداء صورتونه:**

① په طهارت كښې تجاوز دا دې چه دَ دريو خلونه زيات اووينځلې شی

② ډيرزياتې اوبه دَ اسراف دَ حده پورې توئی كړې شی

③ په وينځلو كښې دومره مبالغه اوكړی چه شك او وسوسې ته خبره اورسی. دا ټول په طهور كښې تجاوز دې

**په دعا كښې د تجاوز صورتونه:**

① او په دعا كښې تجاوز دا دې چه يا خوډيره اوږده اوغوښتلې شی

② يا دَ تكلف سره په دې كښې وزن او سجع او تصنع الفاظ راوړلې شی

③ قيدونه لګولو سره تعين اوكړې شی لكه څنګه چه په دې حديث كښې سپن محل او دَ جنت دَ ښی طرف قيودات دی

④ داسې دعا اوغوښتلې شی دَ كوم قبليدل چه محال وی مثلاً يو غريب شاړ اوكلی وال دَ بادشاه جوړيدو دعا غواړی دا ټول دَ تجاوز صورتونه دی.

**[۳۱۹] د اودس د شیطان څخه د ځان ساتلو حکم**

۳۱۹-() [۲۵] ۱ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ۲ "«إِنَّ لِلْوُضُوءِ شَيْطَانًا يُقَالُ لَهُ: الْوَلَهَانُ ۳ فَاتَّقُوا وَسْوَاسَ الْمَاءِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ ۴ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ ; ۵ لِأَنَّا لَا نَعْلَمُ أَحَدًا أَسْنَدَهُ غَيْرَ خَارِجَةَ، وَهُوَ لَيْسَ بِالْقَوِيِّ عِنْدَ أَصْحَابِنَا.

**ترجمه:** ۱ اوډ حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ۲ چه د اودس یو شیطان دې کوم ته چه ولهان وئیلې شی. ۳ لهذا د اوبو د وسوسې نه بچ شی. (ترمذی، ابن ماجه) امام ترمذی رحمه الله فرمائیلی دی چه دا حدیث غریب دې اود محدثینو په نیز ددې سند قوی نه دې ۵ څکه چه مونږ ته نه ده معلومه چه خارجه (یو راوي) نه علاوه بل چا د دې سند بیان کړې وی اوهغه (خارجه) زمونږ د محدثینو په نیز قوی نه دې.

**حل اللغات:** ① الْوَلَهَانُ: د وَلِهَ يَوْلَهُ وَلَهَانًا نه حیرانیدو او عقل ختمیدو ته وائی، دې شیطان ته ولهان څکه وائی چه دې دخلقو په عقل کښې د اوداسه متعلق فطور او وسوسې پیدا کوی. ② وَسْوَاسَ الْمَاءِ: د اوبو وسوسه دا چه اوبه اندام ته پوره اورسیدې اوکه نه؟ یا دا اندام مې څو خله وینځلې دې

**تسهیلات:** **قوله: الْوَلَهَانُ:**

**د ولهان په موصوف کښې دوه احتمالات:** ① ولهان دهغه شیطان نوم دې کوم چې د اودس په اوبو کښې د اسراف کولو دپاره حاضریږی. دا لفظ خو یا پخپله ددې شیطان صفت دې چې خلقو لره وسواسی او شکی جوړولو کښې سرګردان ګرځی

② یا حقیقت کښې په وسوسه کښې خو انسان پریوځی نو، ولهان دهغه شکی انسان صفت دې.خومجازی طورددې نسبت شیطان طرفته کړې شوېدې.څکه چې دشیطان په لمسولو باندې هغه کس په وسوسه کښې پریوتې دې.

**[۳۲۰] د اودس څخه وروسته د مخ وچول**

۳۲۰-() [۲۶] ۱ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ مَسَحَ وَجْهَهُ بِطَرَفِ ثَوْبِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ اوډ حضرت معاذبن جبل رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی ۲ چه ما رسول الله ﷺ اولیدلو چه کله به حضورپاک ﷺ اودس کولو نود خپلې کپړې په ګوټ په ئی مخ اوچولو. (ترمذی)

(۱) اخرجه الترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب کراهیة الإسراف فی الماء (رقم- ۵۷) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/بباب ما جاء فی القصد فی الوضوء وکراهیة التعدی فیه (رقم- ۴۲۱)

(۲) اخرجه الترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب المندیل بعد الوضوء (رقم- ۵۴)

**قوله:** مَسَحَ وَجْهَهُ بِطَرَفِ ثَوْبِهِ

**داودس اندامونه په تولیه باندې اوچولو کښې د روایاتو تعارض:**

① ځینې روایاتو کښې داوس څخه پس په تولیه وغیره باندې ځان اوچول ثابت دی.

② ځینې روایاتوکښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ د کپړې داستعمال نه انکار اوفرمائیلو

**د اودس اندامونه په تولیه باندې اوچولو کښې مذاهب:**

① دَ امام شافعی رحمه الله څخه درې اقوال زیات مشهور دی. یو قول دادې چې کپړا استعمالول او اوبه اوچول مستحب دی. او دویم قول دادې چې دا مکروه دی. دریم قول دادې چې په یخنۍ کښې استعمالول پکار دی او ګرمۍ کښې نه دی استعمالول پکار.

② آئمه احناف کښې ځینو دا د اودس په آدابو کښې شمیر کړی دی. ځینې وائی چې دا مستحب دی. او ځینو ورته صریح مباح وئیلی دی.

د احنافو او دَ جمهورو معتمد قول دادې چې د اودس نه پس کپړا استعمالول صرف مباح دی ، مستحب کیدو دپاره هیڅ یودلیل نشته دې. او په مکروه باندې هم څه دلیل نشته دې.

**تطبیقی قول:** دا یو طبعی معامله ده. څه تشریعی حکم نه دې. ګرمۍ کښې ددې ضرورت نه وی،او یخنۍ کښې یئ وی.چاته چې په څه کښې آسانتیاوی هغه صورت دې خپل کړی.

**[۳۲۱] داودس څخه وروسته لوانده اندامونه اوچول**

۳۲۱—(١) [۲۷] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ: ② «كَانَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خِرْقَةٌ ③ يُنَشِّفُ بِهَا أَعْضَاءَهُ بَعْدَ الْوُضُوءِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، ④ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ بِالْقَائِمِ، وَأَبُو مُعَاذٍ الرَّاوِي ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** ① او دَ حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی ② چه رسول الله ﷺ سره یوه کپړه وه ③ په کومې سره چه به نی دَ اودس نه پس خپل لامده اندامونه اوچول. (ترمذی) ④ او امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه دا حدیث قوی نه دې او دَدې یو راوی ابو معاذ دَمحدثینو په نیز ضعیف دې.

**حل اللغات:** ① خِرْقَةٌ: کپړه، تولیه، ② يُنَشِّفُ: اوچول به نې (اندامونه).

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۲۲] د نبی علیه السلام درې قسمه اودس**

۳۲۲—(٢) [۲۸] ① عَنْ ثَابِتِ بْنِ أَبِي صَفِيَّةَ، قَالَ: ② قُلْتُ لِأَبِي جَعْفَرٍ هُوَ مُحَمَّدٌ الْبَاقِرُ ③ حَدَّثَكَ جَابِرٌ: «أَنَّ النَّبِيَّ

---

(١) اخرجه الترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب المندیل بعد الوضوء (رقم - ٥٣)

(٢) اخرجه الترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ باب فی الوضوء مرة، ومرتین، وثلاثا (رقم -٤٥) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فی الوضوء مرة مرة (رقم- ٤١٠)

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ مَرَّةً مَرَّةً، وَمَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ، وَثَلَاثًا وَثَلَاثًا؟ قَالَ: نَعَمْ.» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او دَ حضرت ثابت بن ابی صفیه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی [۲] چه ما دَ حضرت جعفر صادق رحمه الله پلار ته دَ کوم نوم چه محمد باقر رحمه الله دې اوونیل [۳] چه تاسو ته حضرت جابر رضی الله عنه دا حدیث بیان کړې دې چه رسول الله ﷺ (کله) یو یو خل (کله) دوه دوه خل او (کله) درې درې خل اودس کړې دې ؟ هغوی اوفرمائیل چه هو. (ترمذی، ابن ماجه)

**[۴۲۳] هر اندام دوه ځله وینځل**

۴۲۳-() [۲۹] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: [۲] «إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ، وَقَالَ: هُوَ نُورٌ عَلَى نُورٍ».

**ترجمه:** [۱] او دَ حضرت عبد الله بن زید رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی [۲] چه رسول الله ﷺ دوه دوه خل اودس اوکړو (یعنی دَ اودس اندامونه ئې دوه دوه خل اووینځل) او بیائې وفرمائیل چه دا دَ نور دَ پاسه نور دې.

**[۴۲۴] په اودس کښې هر اندام درې واره وینځل**

۴۲۴-() [۳۰] [۱] وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ ثَلَاثًا ثَلَاثًا [۳] وَقَالَ: "هٰذَا وُضُوئِي وَوُضُوءُ الْأَنْبِيَاءِ قَبْلِي، وَوُضُوءُ إِبْرَاهِيمَ» [۴] رَوَاهُمَا رَزِينٌ، وَالنَّوَوِيُّ ضَعَّفَ الثَّانِيَ فِي: شَرْحِ مُسْلِمٍ"

**ترجمه:** [۱] او دَ حضرت عثمان رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی [۲] چه رسول الله ﷺ درې درې خل اودس اوکړو [۳] او بیائې اوفرمائیل چه دا زما او زما نه دَ مخکښې انبیاء کرامو اودس دې او دَ حضرت ابراهیم علیه السلام اودس دې. [۴] (دا دواړه احادیث رزین روایت کړی دی او امام نووی رحمه الله په شرح مسلم کښې دویم حدیث ته ضعیف وئیلې دې).

**[۴۲۵] دَ هر مانځه دَ پاره اودس**

۴۲۵-() [۳۱] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ، [۳] وَكَانَ أَحَدُنَا يَكْفِيهِ الْوُضُوءُ مَا لَمْ يُحْدِثْ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او دَ حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی [۲] چه رسول الله ﷺ به دَ هر (فرض) مونځ دَ پاره اودس کولو [۳] او زمونږ دَپاره به یو اودس ترهغه وخته پورې کافی کیدلو

(۱) اخرجه رزین

(۲) اخرجه رزین

(۳) اخرجه البخاری کتاب الوضوء باب الوضوء من غیر حدث(رقم-۲۱۴) وابوداود کتاب الطهارة ، باب الرجل یصل الصلوات بوضوء واحد (رقم ۱۷۱) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب الوضوء لکل صلاة والصلوات کلها بوضوء واحد (رقم- ۵۰۹) والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب الوضوء لکل صلاة (رقم-۶۰) والنسائی کتاب الطهارة/باب الوضوء لکل صلاة (رقم-۱۳۱) والدارمی کتاب الطهارة/باب الوضوء لکل صلاة (رقم-۷۴۷)

ترکومې چه به اودس نه ماتیدلو. (دارمی)

**حل اللغات:** ① مَالَمْ يُحْدِثْ: دا د احداث نه دې، بې اودسه کیدو ته وائی.

**[۴۳۶] د هر مانځه دپاره اودس کول**

۴۳۶—(۱) [۳۲] ١ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حِبَّانَ، قَالَ: «قُلْتُ لِعُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ: ٢ أَرَأَيْتَ وُضُوءَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ لِكُلِّ صَلَاةٍ طَاهِرًا كَانَ أَوْ غَيْرَ طَاهِرٍ، عَمَّنْ أَخَذَهُ؟ ٣ فَقَالَ: حَدَّثَتْهُ أَسْمَاءُ بِنْتُ زَيْدِ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ حَنْظَلَةَ بْنِ أَبِي عَامِرٍ الْغَسِيلِ حَدَّثَهَا ٤ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ أُمِرَ بِالْوُضُوءِ لِكُلِّ صَلَاةٍ طَاهِرًا كَانَ أَوْ غَيْرَ طَاهِرٍ،

**ترجمه:** ١ او د حضرت محمد بن یحیی بن حبان رحمه الله نه روایت دې فرمائی ٢ چه ما د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما خوئی حضرت عبیدالله رضي الله عنه ته اوونیل ٢ چه ماته دا اووایه چه آیا حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه به د هر مونځ دپاره اودس کولو که هغه به په اودس کښې وو اوکه بې اودسه به وو او هغوی دا عمل د چا نه حاصل کړې وو؟ ٣ حضرت عبیدالله رحمه الله اوونیل چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه ته حضرت اسماء بن زید بن خطاب رضي الله عنهما دا حدیث بیان کړو چه حضرت عبدالله بن حنظله ابی عامر الغسیل رضي الله عنه هغوی ته دا حدیث بیان کړو ٤ چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته د هر مونځ دپاره داودس حکم ورکړې شوې وو که هغوی به په اودس کښې وو اوکه بې اودس به وو.

**حل اللغات:** ① الْغَسِيلِ: دوی ته غسیل ځکه وائی چه دوی په جنګ احد کښې د جنابت په حالت کښې شهید شوي وو او فرشتو ورته غسل ورکړې وو.

١ فَلَمَّا شَقَّ ذٰلِكَ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ أُمِرَ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ، ٢ وَوُضِعَ عَنْهُ الْوُضُوءُ إِلَّا مِنْ حَدَثٍ. ٣ قَالَ: فَكَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يَرَى أَنَّ بِهِ قُوَّةً عَلَى ذٰلِكَ، ٤ فَفَعَلَهُ حَتَّى مَاتَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ١ کله چه د حضور پاك دپاره دا ګران شو نو د هرمونځ په وخت کښې ورته د مسواك حکم ورکړې شو ٢ او اودس موقوف کړې شو (یعني د هرمونځ د پاره تازه اودس کول واجب پاتې نه شو) ترکومې پورې چه اودس مات نه شي. ٣ حضرت عبیدالله رضي الله عنه اوفرمائیل چه د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه داخیال وو چه په ما کښې د هر مونځ د پاره د تازه اودس کولو طاقت شته ٤ نو هغوی هم په دې باندې تر مرګه پورې عمل اوکړو. (احمد)

**حل اللغات:** ② شَقَّ: مشکل او ګران شو ③ حَدَثٍ: یعنی بې اودسه کیدل.

---

[۱] اخرجه ابوداود کتاب الطهارة، باب السواک (رقم-۴۸)

### [۴۲۷] په اودس کښې د اسراف ممانعت

۴۲۷-(۱) [۳۳] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِسَعْدٍ وَهُوَ يَتَوَضَّأُ [۳] فَقَالَ: مَا هٰذَا السَّرَفُ يَا سَعْدُ [۴] قَالَ: أَفِي الْوُضُوءِ سَرَفٌ؟ ! [۵] قَالَ: " نَعَمْ! وَإِنْ كُنْتَ عَلَى نَهْرٍ جَارٍ» ) رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص رضی الله عنهما نه روایت دی [۲] چه (یوځل) رسول الله ﷺ په حضرت سعد رضی الله عنه باندې تیریدو او هغه اودس کولو (او په اودس کښې ئې اسراف هم کولو) [۳] حضورپاك (دا کتلو سره) اوفرمائیل "اې سعد دا څه اسراف (زیاتې) دی؟" [۴] حضرت سعد رضی الله عنه عرض اوکړو چه آیا په اودس کښې هم اسراف شته؟ [۵] حضورپاك اوفرمائیل هو "اګرچه ته په جاری نهر کښې اودس ولې نه کوې" (احمد، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① السَّرَفُ: بِمَعْنَى الْإِسْرَافِ: اسراف یعنی زیاتې اوبه استعمالول، یا د شرعی حد نه زیات خله وینځل.

### [۴۲۸] د بسم الله څخه بغیر د اودس حکم

۴۲۸-(۱) [۳۴] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَابْنِ مَسْعُودٍ وَابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] «مَنْ تَوَضَّأَ وَذَكَرَ اسْمَ اللَّهِ [۳] فَإِنَّهُ يُطَهِّرُ جَسَدَهُ كُلَّهُ، [۴] وَمَنْ تَوَضَّأَ وَلَمْ يَذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ، [۵] لَمْ يُطَهِّرْ إِلَّا مَوْضِعَ الْوُضُوءِ» ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو هریره، حضرت ابن مسعود او حضرت ابن عمر رضی الله عنهم د رسول الله ﷺ نه روایت کوی چه حضورپاك اوفرمائیل [۲] کوم سړی چه اودس اوکړو او د الله تعالی نوم ئې واخستو (یعنی بسم الله) ونیلوسره ئې اودس شروع کړو [۳] نو هغه خپل ټول بدن (د ګناهونو نه) پاك کړو [۴] اوچاچه اودس اوکړو او د الله تعالی نوم ئې وانخستو [۵] نو هغه صرف د اودس اندامونه پاك کړل.

### [۴۲۹] اوداسه کې ګتمې ته حرکت ورکول

۴۲۹-(۲) [۳۵] [۱] وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ وُضُوءَ الصَّلَاةِ [۳] حَرَّكَ خَاتَمَهُ فِي أُصْبُعِهِ» . رَوَاهُمَا الدَّارَقُطْنِيُّ، وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ الْأَخِيرَ.

**ترجمه:** [۱] وحضرت ابو رافع رضی الله عنه بیان کوی [۲] چه رسول الله ﷺ به د مانځه دپاره اودس کولو [۳] نو د خپلې ګوتې ګوتمه به ئې هم تاووله او خوزوله به ئې (دا دواړه احادیث دارقطنی روایت کړی دی او ابن ماجه صرف دویم حدیث نقل کړې دې).

---

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/بباب ما جاء في القصد في الوضوء وكراهية التعدي فيه (رقم- ۴۲۵) واحمد في المسند ۲/ ۲۲۱

(۲) اخرجه الدارقطنی، كتاب الطهارة، باب كل طعام وقعت فيه دابة ليس لها دم.

(۳) اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب تخليل الأصابع (رقم- ۴۴۹)

**حل اللغات:** ① حَرِّكْ: خوزوله به ئې، دا تحريك او خوزول سنت او مستحب امر دې. ② خَاتَم: ګوتمه.

**تسهيلات:**

**قوله: وُضُوءَ الصَّلَاةِ:**

**دمانځه په اودس کښې مبالغه کول:** يعنى دَمانځه دَپاره به چه کله حضورپاك اودس کولونو بنه مبالغه به ئې کوله اودَ دې نه علاوه دَ جمات داخليدو يا تلاوت يا سجده دَتلاوت وغيره دَ پاره به ئې چه اودس کولو نودومره مبالغه به ئې نه کوله په دې صورت کښې به دَ الصلاة لفظ قيد احترازى جوړشى.

**قوله: حَرِّكْ خَاتَمَهُ:**

**دګوتمې خوزولو دوه صورتونه:** علامه ابن همام رحمه الله په زادالفقير کښې ليکلى دى

① که ګوتمه کولاؤ وى نودې ته حرکت ورکول سنت دى

② که چرې تنګه وى نودَدې تاوول اوحرکت ورکول واجب دى دې دَپاره چه لاندې ځائى اوچ پاتې نه شى.

**د حديث څخه بعضې مستنبط مسائل:**

① دَدې حديث دَحکم لاندې په بدن کښې چه دَ اودس دَاندامونه سره کوم يوڅيز هم لګيدلې وى هغې ته حرکت ورکول ضرورى دى که هغه ګهړئى وى يا بل څه بنګړې وغيره وى.

② دَاودس په اندامونوکښې چه کوم ځائى سورى وى لکه دَ بنځوپوزه نو په دې کښې کالى ته حرکت ورکولوسره اوبه رسول ضرورى دى.

③ دغه شان دَ غوږ په سورو کښې دَ غسل په وخت په بنځو لازم دى چه دننه اوبه اورسوى او دَ غوږوالوله دې بنه حرکت ورکړى.

# [۵/۱۰] بَابُ الْغُسْلِ

## دَ جنابت دَ غسل بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه تسعة عشر حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① أسباب وجوب الغسل وعدم وجوبه: ۱، ۲، ۳، ۶، ۱۰، ۱۱، ۱۷۔

② كيفية الاغتسال: ۴، ۵، ۷، ۱۴، ۱۵، ۱۸، ۱۹۔

③ مقدار ماء الغسل: ۸۔

④ حكم الاغتسال من إناء واحد: ۹

⑤ الاحتياط في الغسل: ۱۲، ۱۳۔

⑥ الاستتار عند الغسل: ۵، ۱۶۔

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### [۴۳۰] په نفس دخول باندې د غسل وجوب

۴۳۰–(۱)[۱] ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «إِذَا جَلَسَ أَحَدُكُمْ بَيْنَ شُعَبِهَا الْأَرْبَعِ ثُمَّ جَهَدَهَا، ③ فَقَدْ وَجَبَ الْغُسْلُ وَإِنْ لَمْ يُنْزِلْ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت ابو هريره رضي الله عنه راوی دې چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو ② "کله چه په تاسو کښې یو سړې دَ ښځې دَ څلورو ښاخونو په مینځ کښې کینی بیا کوشش اوکړی (یعنی جماع اوکړی) ③ نو په هغه باندې غسل واجب شو اګرچه منی اونه خې" (بخاری و مسلم)

**حل اللغات:** ① شُعَبِهَا الْأَرْبَعِ: أَيْ: يَدَيْهَا وَرِجْلَيْهَا: د ښځې لاسونه اوخپې مراد دی، ② جَهَدَهَا: أَيْ: جَامَعَهَا: کوشش اوکړی یعنی جماع اوکړی. ③ لَمْ يُنْزِلْ: انزال نه وی شوې یعنی منی نه وی وتلې.

### [۴۳۱] په خروج منی سره د غسل وجوب

۴۳۱–(۲)[۲] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «إِنَّمَا الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ. ③ قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ، رَحِمَهُ اللّٰهُ: هٰذَا مَنْسُوخٌ.

---

[1] اخرجه البخارى كتاب العلم باب: إذا التقى الختانان (رقم-۲۹۱). ومسلم كتاب الحيض باب نسخ الماء من الماء ووجوب الغسل بالتقاء الختانين (رقم-۸۷ - (۳٤۸)

[2] اخرجه مسلم كتاب الحيض باب إنما الماء من الماء(رقم-۸۰ - (۳٤۳) وابوداود كتاب الطهارة/باب فى الإكسال (رقم- ۲۱۷) والترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى المرأة ترى فى المنام مثل ما يرى الرجل (رقم- ۱۲۲)

**ترجمه:** [۱] حضرت ابو سعيد رضي الله عنه وائي چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو [۲] "اوبه دَ اوبو نه دي (يعنى منى وتلوسره غسل واجبيږى)" (مسلم) [۳] او امام محي السنة رحمه الله وائي چه دا حكم منسوخ دي

**حل اللغات:** ① الْمَاءُ: أَيْ: وُجُوبُ اسْتِعْمَالِ الْمَاءِ، وَهُوَ الْغُسْلُ: ددې اول ماء نه مراد د غسل اوبه يعنى غسل دي. ② مِنَ الْمَاءِ: أَيْ: مِنْ أَجْلِ خُرُوجِ الْمَاءِ الدَّافِقِ وَهُوَ الْمَنِيُّ: او دَ دويم ماء نه مراد دنطفې او منى اوبه دى. (يعنى واجبيږى غسل په وتلو د منۍ سره.)

**[۳۳۲] په احتلام كښې دمنى په وتلو سره د غسل وجوب**

۳۳۲–(١)[٠] [۱] وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: [۲] "إِنَّمَا الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ فِي الِاحْتِلَامِ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، [۳] وَلَمْ أَجِدْهُ فِي "الصَّحِيحَيْنِ".

**ترجمه:** [۱] و ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل [۲] چه "اوبه دَ اوبونه دى" دا حكم دَ احتلام دَپاره دي [۳] او ماته دا روايت بخارى او مسلم كښې نه دي ملاؤ شوي. (ترمذى)

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّمَا الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ:**

**د حديث مفهوم:** ددې حديث پاك په الفاظو كښې حصردې چې غسل صرف په هغه صورت كښې فرض دې چې كله منى خارج شى. د خروج منى نه بغير غسل واجب نه دې. كه نطفه غائبه شوې وى او كه نه او كه التقاء ختانين وى اوكه نه وى ، كه د منى انزال شوې دې نو غسل شته دې گنى غسل نشته دې.

**داكسال مفهوم:** ددې مسئلې عنوان اكسال هم دې. اكسال د كسل څخه دې چې معنى ئې سست كيدل دى. مطلب دا چې كله انزال اوشى نو ذكر سست شى گنى نه . او په دې زير بحث مسئله كښې د اكسال مطلب دادې چې يو كس د انزال نه بغير ذكر خارجوى اودَ هغې دَ سستولو كوشش كوى. اوس په ظاهره د ابوسعيد خدرى رضي الله عنه دا روايت ددې نه وړاندې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه بالكل متعارض دې په هغې كښې په ﴿ غيبوبت حشفه ﴾ باندې غسل واجب گرځولې شوې دې كه انزال شوې وى او كه نه. او دې ځائې كښې انزال لره د غسل دپاره شرط گرزولې شوي دې. دا شان دا روايت د حضرت عائشه صديقه رضى الله عنها روايت سره هم متعارض دې كوم كښې چې د ﴿ إِذَا جَاوَزَ الْخِتَانُ الْخِتَانَ وَجَبَ الْغُسْلُ ﴾ كوم چه ددې نه پس رازى. داشان د په دريم فصل كښې د ابى ابن كعب رضي الله عنه روايت سره هم متعارض دې. كوم چې مشكوة صفحه نمبر ۴۹ باندې رازى.

**د اكسال په مسئله كښې د صحابۀ اختلاف:** په احاديثو كښې د تعارض په وجه د اسلام په

(۱) اخرجه الترمذي كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب ما جاء أن الماء من الماء (رقم- ۱۱۲)

ابتداء کښې د صحابه کرامو په دور کښې په دې مسئله کښې ډیر زیات اختلاف پیدا شوې وو. مهاجرین صحابه کرامو به د حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها او حضرت ابوهریره ﷺ روایت ( غیبوبت حشفه ) باندې عمل کولو. او انصار صحابه کرامو به د حضرت ابوسعید خدری ﷺ روایت ( انما الماء من الماء ) باندې عمل کولو.

**د مسئله په غیبوبت باندې د غسل په وجوب اجماع:** حضرت عمرفاروق ﷺ په خپله زمانه د خلافت کښې په دې مسئله کښې صحابه کرامو لره د متحد کولو کوشش اوکړو چې ټول مسلمانان په یو حکم متحد شي. نو دوئ د صحابه کرامو څخه مشوره واخستله نو دا اتفاق اوشو چې د مسئلې تعلق کورنۍ معاملې سره دې لهذا د ازواج مطهرات نه تپوس کول پکار دي. حضرت عمر فاروق ﷺ حضرت ابو موسی اشعری ﷺ حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها ته اولیږلو نو هغې د التقاء ختانین والا روایت بیان کړو. نو ددې نه پس حضرت عمر فاروق ﷺ سرکاری فرمان جاری کړو او انصار ئې په سختۍ سره د اکسال نه منع کړل. نو په دې مسئله باندې اجماع منعقد شوه. او د داؤد ظاهری نه سوا په ټول امت کښې دچا هم اختلاف پاتې نشو ، اوس که انزال وی یا نه وی خو چه حشفه غیبه شی نو غسل به واجب وی.

**د ابوسعید رضی الله عنه په روایت کښې درې تاویلات:** ① امام محی الدین رحمه الله یو تاویل دا کړې دې چې دا حکم منسوخ شوې دې. او د حضرت ابی بن کعب ﷺ راتلونکې حدیث په دې باندې دلالت کوی چې دا حکم په ابتداء اسلام کښې وو. بیا منسوخ شو.

② حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چې د ( انما الماء من الماء ) حکم د احتلام په باره کښې دې.

**د ابن عباس د تاویل ضعف:** لیکن په دې تاویل او توجیه باندې د حدیث دَ شان ورود په وجه دا اعتراض کیږي چې حضرت ابو سعید خدری ﷺ فرمائی چې عتبان بن مالك صحابی مسجد قباء سره نیزدې اوسیدو. او نبی کریم ﷺ د پیر ورځ هلته تشریف یوړو نو حضرت نبی کریم ﷺ د هغه د کور مخې ته اودریدلو او ورته ئې آواز اوکړو . هغه په جماع کښې مشغول وو. دا ئې پریښوده او بهر راغلو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې مونږ په سړی باندې تیزی اوکړه هغه بهر راغلو او دَ راتلو سره ئې د مسئلې تپوس اوکړو چې که بغیر د انزال نه اکسال اوشی نو څه حکم دې؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ( انما الماء من الماء ) یعنی انزال نه بغیر غسل واجب نه دې. نو دا واقعه د بیدارئ ده ،په دې کښې د حضرت ابن عباس ﷺ تاویل څنګه چلیدې شی چې دا په احتلام باندې محمول دې؟

**د ابن عباس د تاویل صحت:** علماء کرامو د ابن عباس ﷺ د دې تاویل دَ صحیح جوړولو دپاره یو تاویل کړې دې ، هغه دا چې د حضرت ابن عباس ﷺ په نیز دا حدیث پاك منسوخ دې. لکه څنګه چې دَ پوره امت په نیز منسوخ دې. خو د دوئ په نیز د دې حدیث پاك یو

صورت داسې هم دې چې اوس هم منسوخ نه دې. او هغه د احتلام صورت دې چې احتلام کښې اوس هم « انما الماء من الماء » ضروری دی. یعنی د بیدارئی په حالت کښې دا حدیث پاك حقیقةً او حکمًا دواړو صورتونو ته شامل دې لیکن په خوب کښې صرف حقیقی صورت ته شامل دې. یعنی دمنی. خروج غسل دپاره ضروری دی.

۴ دحضرت ابوهریره ﷺ او حضرت عائشه رضی الله عنها روایات امر حکمی ته شامل دی یعنی کله چې غیبوبت حشفه اوشی نو د شریعت حکم دادې چې غسل واجب دې. خکه چې د غیبوبت په وخت کښې د منی. خروج خو په نظر نه راځی لهذا شریعت دا غیبوبت حکمًا د انزال قائمقام ګروزلې دې.

او د حضرت ابوسعید ﷺ روایت امر حقیقی او حکمی دواړو باندې محمول دې. چې کله انزال اوشی نو « انما الماء من الماء » باندې به عمل کیږی. او کله انزال اونشی نو بیا به په غیبوبت حشفه باندې عمل کیږی. او د «إِذَا جَاوَزَ الخِتَانُ الخِتَانَ» نه مراد جماع ده ، یعنی د اندامونو مخصوصؤ ملاویدل دی.

**دختان لغوی معنی:** دا دختان تثنیه ده. او ختان د ختن ځخه دې ، د ماشوم سنتولو ته وائی. مراد ترې سنت شوې ځائې دې. دهلکانو سنتول او ختنه کول خو یو معروفه او مسنونه اسلامی طریقه ده. خو دا حدیث د جینکو ختنې ته هم شامل دې. او ددې باره کښې یو صریح حدیث پاك هم راروان دې.

**دجینکو د ختنې وجه:** حقیقت دادې چې خط استواء باندې قائم ګرم ملکونو کښې ددې رواج وړاندې هم وو. او اوس هم ځینو ملکونوکښې شته دې. او شوافع حضرات مصر وغیره کښې دا ضروری ګنړی. خکه چې په داسې ملکونو کښې دجینکو په اندام نهانی کښې د غوښې اودَ وازګې یوه ټکړه راوځی ددې په پریکولو سره طرفینو ته په جماع کښې زیات خوند ملاویږی. د غوښې یا چربی. هم دَ دغې ټکړې پریکولو نوم د ښځو سنتول دی. لیکن یادساتی. دامسئله د برصغیر دَملکونودپاره نه ده. په دې باندې اهل بدعت دَ علماء حق خلاف یو شور جوړوی، لهذا ددې مسئلې هډوذکرنه دې پکار. [اخرجه البخاری ۱/۱۴۴]

### [۳۳۳] په احتلام سره د غسل وجوب

۳۳۳—(١) [۳] ١ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ٢ «قَالَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ: يَارَسُولَ اللّٰهِ، إِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ، ٣ فَهَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ مِنْ غُسْلٍ إِذَا احْتَلَمَتْ؟ ۴ قَالَ: " نَعَمْ، إِذَا رَأَتِ الْمَاءَ " ۵ فَغَطَّتْ أُمُّ سَلَمَةَ وَجْهَهَا، وَقَالَتْ: ٦ يَارَسُولَ اللّٰهِ! أَوَتَحْتَلِمُ الْمَرْأَةُ؟ ٧ قَالَ: (" نَعَمْ تَرِبَتْ يَمِينُكَ، فَبِمَ يُشْبِهُهَا وَلَدُهَا؟» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

(١) اخرجه البخاری کتاب العلم باب الحیاء فی العلم(رقم–۱۳۰) ومسلم کتاب الحیض باب وجوب الغسل علی المرأة بخروج المنی وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب فی المرأة تری فی منامها ما یری الرجل (رقم– ۶۰۰)

**ترجمه**: [۱] حضرت ام سلمه رضي الله عنها فرمائي [۲] چه حضرت ام سليم رضي الله عنها رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو يا رسول الله! الله تعالى دَ حق په معامله کښې حياء نه کوي [۳] (لهذا دا راته اووايه) آيا په ښځه باندې غسل واجب دې؟ کله چه هغې ته احتلام اوشي (يعنى چه په خوب کښې کوروالي اووينى) [۴] حضورپاك اوفرمائيل هو کله چه هغه اوبه (يعنى منى) اووينى. [۵] دې اوريدو سره ام سلمه رضي الله عنها مخ (دَ شرم دَ وجې نه) پټ کړو او وئې وئيل [٦] يا رسول الله! آيا ښځې ته هم احتلام کيږي؟ (يعنى ولې دَ سړي په شان دَ ښځې هم منى وي او راوځي؟) [۷] حضورپاك اوفرمائيل هو، په خاورو دې ککړوي ستا ښي لاس (که چرې داسې نه کيدې نو) بيا به دَهغې بچې څنګه دَ هغې په شان کيدو. (متفق عليه)

**حل اللغات**: ① احْتَلَمَتْ: أَيْ: إِذَارَأَتْ فِي الْحُلُمِ الْمُجَامَعَةَ: په خوب کښې کوروالي اووينى او منى ترې وتلې وي ② رَأَتِ الْمَاءَ: چه اوبه اووينى يعنى منى، ③ فَغَطَّتْ: أَيْ: سَتَرَتْ: مخ ته ئې پرده اوکړه (اوشرميده). ④ تَرِبَتْ يَمِينُكَ: أَيْ أَصَابَهُ التُّرَابُ: ستا ښي لاس دې په خاورو کښې ککړ شي، دا کنايه ده د زيات فقر او محتاجئ نه، دلته ددې نه مراد بد دعا او خيرې نه دى بلکه د زيات تعجب په وجه داسې وئيلې شوي دي.

## [۳۳۳] دسړي اوښځې په منى کښې فرق

۳۳۳-(۱۰) [۱] وَزَادَ مُسْلِمٌ بِرِوَايَةِ أُمِّ سُلَيْمٍ: [۲] «أَنَّ مَاءَ الرَّجُلِ غَلِيظٌ أَبْيَضُ، [۳] وَمَاءَ الْمَرْأَةِ رَقِيقٌ أَصْفَرُ، [۴] فَمِنْ أَيِّهِمَا عَلَا أَوْسَبَقَ يَكُونُ مِنْهُ الشَّبَهُ».

**ترجمه**: [۱] او امام مسلم رحمه الله دَ ام سليم رضي الله عنها په روايت کښې دا الفاظ زياتى نقل کړي دي [۲] چه (حضورپاك دا هم اوفرمائيل) چه دَ سړي منى ټينګه سپينه وي [۳] او دَ ښځې منى زيړه نرئى وي. [۴] لهذا په دې کښې چه کومه منى غالب شي يا وړاندې شي نو (دَ بچى) مشابهت هم هغې طرف ته وي.

**حل اللغات**: ① غَلِيظٌ: سخته، ټينګه، ② أَبْيَضُ: سپينه، ③ رَقِيقٌ: نرمه، ④ أَصْفَرُ: زيړه، ⑤ عَلَا: أَيْ: غَلَبَ: غالبه شي، ⑥ سَبَقَ: أَيْ سَبَقَ وُقُوعُ مَنِيِّهِ فِي الرَّحِمِ: په رحم کښې چه دچا منى مخکښې لاړه شي.

**تسهيلات:**

**قوله: أَوَتَحْتَلِمُ الْمَرْأَةُ؟:**

**په حديث کښې اشکال**: دې حديث پاك باندې په ظاهره دا اعتراض دې چې (اوتحتلم المرأة) جملې څخه معلوميږي چې ښځو ته احتلام نه کيږي. ځکه خو ام سلمه رضى الله عنها د استفهام په طور تپوس اوکړو چې داسې هم کيديشي؟ بيا هم ددې حديث پاك په ابتدائى

(۱) اخرجه مسلم كتاب الحيض باب وجوب الغسل على المرأة بخروج المنى منها(رقم-۳۰ - (۳۱۱) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب فى المرأة ترى فى منامها ما يرى الرجل (رقم- ۶۰۱)

حصه کښې حضرت ام سلیم رضی الله عنها اقرار کوی چې ﴿ فهل علی المرأة من غسل اذا احتلمت ﴾ ددې نه معلومیږی چې دې ښځو ته د احتلام علم وو ځکه خوام سلیم رضی الله عنها سوال اوکړو.

**داشکال اول جواب:** ① امهات المؤمنین ته به د صفاء باطن په وجه احتلاف نه کیدو. نو ام سلمه رضی الله عنها انکار اوکړو. داشان احتلام کښې شیطان یو شکل جوړوی او رازی. او د نبی کریم ﷺ په شکل کښې د شیطان راتلل بالکل ممکن نه دی. او د بل سړی په خوب کښې دراتلو سوال نه پیدا کیږی. په دې وجه ازواج مطهرات ته د احتلام راتلو علم نه وو. نو ام سلمه رضی الله عنها انکار اوکړو. او ام سلیم رضی الله عنها ته معلوم وو په دې وجه ئې اقرار اوکړو.

**دجواب ضعف:** په دې جواب باندې دا اعتراض دې چې دا به هله صحیح وی چې په ازواج مطهرات باندې د جاهلیت زمانه نه وی تیره شوې. یا ئې ددې نه وړاندې بل چا سره نکاح نه وی شوې. حالانکه دواړو کښې معامله برعکس ده. نوددې څه گارنتی ده چې د جاهلیت په زمانه کښې به احتلام نه کیدو. بله دا چې احتلام صرف په شیطانی خوب کښې منحصر نه دې بلکه د دې نور اساب هم کیدې شی لکه

**داحتلام څلور اسباب:** ① د شیطان متشکل شیطان په وجه

② د ستومانی په وجه

③ د امتلاء بطن په وجه

④ د امتلاء منی په وجه

**د اشکال دویم جواب:** په دې وجه دویم صحیح جواب دا دې چې ام سلمه رضی الله عنها د ښځو د احتلام عیب پټول غوښتل چې ام سلیم هسې د فرضی خبرو تپوسونه کوی ښځو ته چرته احتلام کیږی؟

په دې حقیقت باندې د عائشه صدیقه رضی الله عنها حدیث هم دلالت کوی. دوئ اوفرمائیل ﴿ فضحت النساء ﴾ یعنی اې ام سلیم تا دښځو دا پټ راز ښکاره کړو او ښځې دې رسوا کړې. معلومه شوه چې ام سلمه رضی الله عنها دا حقیقت پټول غوښتل او هم دا وجه ده چې نبی کریم ﷺ په سخته اوفرمائیل ﴿تربت یداك﴾ یعنی ستا لاسونه دې په خاورو ککړ شی. که د ښځو نطفه نه وې نو بیا کله کله بچې ددې په شان ولې وی. په دې جملې سره په ځینو هغه اطباؤ باندې رد اوشو چا چه خیال دادې چې د ښځو په ذات کښې ماده منویه نشته دې، منی صرف په سړو کښې وی.

## [۴۳۵] د نبي کریم ﷺ د غسل طریقه

۴۳۵-()[۴] ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ۲ «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ بَدَأَ ۳ فَغَسَلَ يَدَيْهِ، ثُمَّ يَتَوَضَّأُ كَمَا يَتَوَضَّأُ لِلصَّلَاةِ، ۴ ثُمَّ يُدْخِلُ أَصَابِعَهُ فِي الْمَاءِ، ۵ فَيُخَلِّلُ بِهَا أُصُولَ شَعَرِهِ، ۶ ثُمَّ يَصُبُّ عَلَى رَأْسِهِ ثَلَاثَ غُرَفَاتٍ بِيَدَيْهِ، ۷ ثُمَّ يُفِيضُ عَلَى جِلْدِهِ كُلِّهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ اوحضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي ۲ چه رسول الله ﷺ به کله دغسل جنابت (یعنی د ناپاکئی دَ لرې کولو دَپاره غسل) کولو اراده کوله نو (غسل) به ئی داسې شروع کولو چه ۳ اول به ئی دواړه لاسونه (ترمړوندونوپورې) وینځل بیا به ئی اودس کولو لکه څنګه چه مونځ له اودس کولې شی. ۴ بیا به ئی ګوتې (دَ لمدولودَ پاره) په اوبو کښې وهلې بیا به ئی دا راویستلې ۵ او دَ (ګوتو په لوندوالی) سره به ئي دَ خپلو ویښتو په بیخونوکښې خلال کولو. ۶ بیابه ئی په خپلو دواړو لاسونو سره درې لپسې (اوبه اخستو سره) په سر باندې اچولې ۷ اوبیابه ئی په خپل ټول بدن باندې اوبه بهیولې. (بخاری و مسلم)

۱ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: «يَبْدَأُ فَيَغْسِلُ يَدَيْهِ قَبْلَ أَنْ يُدْخِلَهُمَا الْإِنَاءَ، ۲ ثُمَّ يُفْرِغُ بِيَمِينِهِ عَلَى شِمَالِهِ، فَيَغْسِلُ فَرْجَهُ، ثُمَّ يَتَوَضَّأُ».

**ترجمه:** ۱ اودَ مسلم په یو روایت کښې دا الفاظ دی چه (کله چه به حضورپاک غسل) شروع کولو نو په خپل ښی لاس سره به ئی په ګس لاس باندې اوبه اچولې ۲ اوبیا به ئی شرمګاه وینځلو اودَهغې نه پس به ئی اودس کولو.

**حل اللغات:** ۱ بَدَأَ: أَيْ: شَرَعَ: شروع به ئي کوله، ۲ فَيُخَلِّلُ: أَيْ: يَبُلُّ الْأَصَابِعَ: یعنی خلال به ئي کولو په لمدو ګوتوسره (په ویښتوکښې). ۳ أُصُولَ: د اصل نه دې بیخ یعنی بنیاد او جرړې ته وائی ۴ يَصُبُّ: اوبه به ئې اچولې، ۵ غُرَفَاتٍ: د غرفة جمع ده، لپو ته وائی، ۶ يُفِيضُ: دا د افاضه نه دې، أَيْ: يَصُبُّ: یعنی اوبه به ئې اچولې، ۷ يُفْرِغُ: دا د افراغ نه دې، بِمَعْنَى الصَّبِّ: اوبه اچولو ته وائی

### تسهيلات:

**قوله: كَمَا يَتَوَضَّأُ لِلصَّلَاةِ:**

**دغسل د اودس د مونځ اودس سره د تشبیه وجه:** ددې تشبیه وجه داده چې وهم راتلې شو چې په غسل کښې په سر اوبه اچولې کیږي. نو شاید چې په دې اودس کښې به ئې د سر مسح نه وی کړې. یا غسل کښې ټولې اوبه په پښو باندې راځی نو شاید په دې اودس کښې به ئی پښې نه وی وینځلې. په دې وجه حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها

[۱] اخرجه البخاری کتاب الغسل باب الوضوء قبل الغسل (رقم-۲٤۸) ومسلم کتاب الحیض باب صفة غسل الجنابة (رقم-۳۵ - (۳۱۶) ومالک فی الموطا کتاب الطهارة . باب العمل فی غسل الجنابة (رقم- ۶۷) والنسائی کتاب الطهارة/باب ذکر وضوء الجنب قبل الغسل (رقم-۲٤۷)

فرمائي چې دا اودس بالكل د مونځ د اودس پشان وو.

**د تعارض اشكال**: دلته دا شبه هم ده چې په دې روايت كښې اودس سره د پښو وينځلو ذكر دې. او ددې نه روستو دحضرت ميمونه رضى الله عنها په روايت كښې د غسل كولو نه پس د پښو د وينځلو ذكر نشته دې ، دواړو كښې تعارض دې؟

**د تعارض جواب**: دواړه صورتونه جائز دى. هيڅ تعارض په كښې نشته دې. هسې خو د احنافو داقول دې چې مطلقًا پښې روستو وينځل پكار دى. شوافع فرمائى چې دَ غسل نه وړاندې په اودس كښې دې اووينځلې شى. صاحب د هدايه فرمائى كه په ځائې كښې د تلويث قدمين خطره وى نو روستو دې پښې اووينځى. او كه ځائى صفا وى اومناسب چوكۍ وغيره شته نو اودس سره وينځل زيات بهتر دى. غسل كښې دې اول په سر باندې اوبه واچولې شى. بيا دې په ښى اوږه باندې اوبه واچولې شى او بيا په ګسه اوږه باندې. اوبيا دې په ټول بدن باندې اوبه واچولې شى . د اطباؤ په نزد دا طريقه بهتره ده

**[۴۳۶] د نبى عليه السلام غسل طريقه**

۴۳۶-() [۵] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَتْ مَيْمُونَةُ: [۲] «وَضَعْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُسْلًا فَسَتَرْتُهُ بِثَوْبٍ [۳] ثم صَبَّ عَلَى يَدَيْهِ فَغَسَلَهُمَا، [۴] ثُمَّ صَبَّ بِيَمِينِهِ عَلَى شِمَالِهِ، [۵] فَغَسَلَ فَرْجَهُ، فَضَرَبَ بِيَدِهِ الْأَرْضَ فَمَسَحَهَا، ثُمَّ غَسَلَهَا، [۶] فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ، وَغَسَلَ وَجْهَهُ وَذِرَاعَيْهِ،

**ترجمه**: [۱] حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وائى چه ام المؤمنين حضرت ميمونه رضي الله عنها اوفرمائيل [۲] چه ما دَ رسول الله ﷺ دَ غسل دپاره اوبه كيخودې او په كپړې سره مې پرده اوكړه. [۳] چنانچه حضورپاك په خپلو دواړو لاسونو باندې اوبه اچولو سره اووينځل. [۵] بيا حضورپاك په خپل ښى لاس سره په ګس لاس باندې اوبه واچولې او شرمګاه ئې اووينځلو بيائى خپل ګس لاس (كوم سره چه ئې شرمګاه وينځلې وو) په زمكه باندې اومږلو اودا ئې اووينځلو. [۶] بيا ئې خله كښې اوبه واچولې اوبيائى پوزه كښې اوبه واچولې او مخ او لاسونه ئې (ترڅنګلو پورې) اووينځل.

**حل اللغات**: ① غُسْلًا: وَهُوَ الْمَاءُ الَّذِي يُغْتَسَلُ بِهِ: دغسل نه مراد دغسل اوبه دى. ② فَسَتَرْتُهُ: أَيْ: ضَرَبْتُ لَهُ سِتْرًا يَغْتَسِلُ وَرَاءَهُ لِئَلَّا يَرَاهُ أَحَدٌ: يعنى په كپړې سره مې نبى عليه السلام ته د غسل دپاره پرده اوكړه. ③ فَضَرَبَ: اوئې وهلو، اوئې لګولو (ګس لاس). ④ فَمَسَحَهَا: اوئې مږلو ⑤ ذِرَاعَيْهِ: دواړه متې (دګوتو نه تر څنګلو پورې).

(۱) اخرجه البخارى كتاب الغسل باب نفض اليدين من الغسل عن الجنابة (رقم-۲۷۶) ومسلم كتاب الحيض باب صفة غسل الجنابة (رقم-۳۷ - (۳۱۷) وابوداود كتاب الطهارة/ باب فى الغسل من الجنابة (رقم- ۲۴۵) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فى الغسل من الجنابة (رقم- ۵۷۳) والترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الغسل من الجنابة (رقم- ۱۰۳) والنسائى كتاب الطهارة/باب غسل الرجلين فى غير المكان الذى يغتسل فيه (رقم-۲۵۳)باب غسل الرجلين فى غير المكان الذى يغتسل فيه (رقم- ۲۵۳)

۱ ثُمَّ صَبَّ عَلَى رَأْسِهِ، وَأَفَاضَ عَلَى جَسَدِهِ، ۲ ثُمَّ تَنَحَّى فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ ۳ فَنَاوَلْتُهُ ثَوْبًا فَلَمْ يَأْخُذْهُ، ۴ فَانْطَلَقَ وَهُوَ يَنْفُضُ يَدَيْهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَلَفْظُهُ لِلْبُخَارِيِّ.

**ترجمه:** ۱ بيا ئې په خپل سر باندې اوبه واچولې او په ټول بدن باندې ئې اوبهيولې ۲ بيا (چرته چه حضورپاك غسل فرمائيلې وو) د هغه ځائې نه اخوا شو او خپلې خپې ئې اووينځلې. ۳ دې نه پس ما (د بدن اوچولو دپاره) کپړا ورکړه ليکن حضورپاك کپړا وانخستله ۴ بيا لاس راټکولو سره د هغه ځائې نه لاړو. (بخاري ومسلم) دا الفاظ د بخاري دي.

**حل اللغات:** ⑥ أَفَاضَ: اوبه ئې راوبهيولې. ⑦ تَنَحَّى: أَيْ: تَبَعَّدَ: اخوا شو، جدا شو (د غسل د ځائې نه). ⑧ فَنَاوَلْتُهُ: أَيْ: أَعْطَيْتُهُ: ورمې کړه (کپړه). ⑨ فَانْطَلَقَ: أَيْ: ذَهَبَ: لاړو. ⑩ يَنْفُضُ: أَيْ: يُحَرِّكُهُمَا: لاسونه ئې څنډل.

## [۴۳۷] د حيض څخه د غسل كولو طريقه

۴۳۷-( ) [۶] ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ۲ «انَّ امْرَأَةً مِنَ الْأَنْصَارِ سَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ غُسْلِهَا مِنَ الْمَحِيضِ، ۳ فَأَمَرَهَا كَيْفَ تَغْتَسِلُ، ثُمَّ قَالَ: ۴ " خُذِي فِرْصَةً مِنْ مِسْكٍ فَتَطَهَّرِي بِهَا ". ۵ قَالَتْ: كَيْفَ أَتَطَهَّرُ بِهَا؟

**ترجمه:** ۱ او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي ۲ چه (يوه ورځ) يوې انصاري ښځې د رسول الله ﷺ نه د خپل د حيض د غسل باره کښې پوښتنه اوکړه. ۳ چنانچه حضورپاك هغې ته د غسل حکم ورکړو چه څنګه به غسل کولې شي (يعنى په مخکې احاديثوکښې چه د غسل کوم کيفيت تيرشوې دې، حضورپاك هغه بيان کړو) او بيائې اوفرمائيل چه په مشك کښې (د لمدې شوې کپړې) يوه ټکړه واخله په هغې سره پاکې حاصله کړه. ۵ هغې تپوس اوکړو چه په هغې سره څنګه پاکې حاصله کړم؟

**حل اللغات:** ① الْمَحِيضِ: دا مصدر ميمي دې، أَيْ: مِنْ أَجْلِ انْقِطَاعِ حَيْضِهَا: د حيض ختميدو نه پس لامبل مراد دي. ② فِرْصَةً: قِطْعَةً مِنْ صُوفٍ أَوْ قُطْنٍ: د وړئ يا د مالوچو ټکړه. ③ مِسْكٍ: وَهُوَ طِيبٌ: دا لفظ چه په فتحې د ميم سره شي نو څرمن ته وائي، اوچه په کسرې د ميم سره شي نو مُشکو ته وائي چه يوه مشهوره خوشبو ده، دلته هم دا مراد ده.

۱ فَقَالَ: " تَطَهَّرِي بِهَا " قَالَتْ: كَيْفَ أَتَطَهَّرُ بِهَا؟ ۲ قَالَ: " سُبْحَانَ اللّٰهِ تَطَهَّرِي بِهَا " ۳ فَاجْتَذَبْتُهَا إِلَيَّ، فَقُلْتُ لَهَا: ۴ تَتَبَّعِي بِهَا أَثَرَ الدَّمِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ حضورپاك اوفرمائيل چه ته په هغې سره پاکې حاصله کړه. هغې بيا تپوس اوکړو

---

( ) اخرجه البخاري كتاب الحيض باب دلك المرأة نفسها إذا تطهرت من المحيض، وكيف تغتسل، وتأخذ فرصة ممسكة، فتتبع أثر الدم (رقم-۳۱۴) ومسلم كتاب الحيض باب استحباب استعمال المغتسلة من الحيض فرصة من مسك في موضع الدم (رقم-۶۰ - (۳۳۲) وابوداود كتاب الطهارة/باب الاغتسال من الحيض (رقم- ۳۱۵) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/ب باب في الحائض كيف تغتسل (رقم- ۶۴۲)

چه په دې سره څنګه پاکی حاصله کړم؟ [۲] حضورپاك اوفرمائيل سبحان الله (يعنى الله پاك دې) ته په دې سره پاکی حاصله کړه. [۳] حضرت عائشه ﵂ فرمائی (چه حضورپاك هم دَ دې الفاظو بار بار اوريدو سره) ما هغه ښځه خپل طرف ته راښکله او هغې ته مې اووئيل [۴] چه (ته دغه کپړه) دَ وينې په ځائی (يعنى شرمګاه باندې) کيږده. (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** ④ فَاجْتَذَبْتُهَا: دا د راښکلو په معنى کښې دې.أى قَرَّبْتُهَا إِلَى نَفْسِي: رامې ښکله يعنى خان ته مې رانژدې کړه. ⑤ تَتَبَّعِي: أي: اجْعَلِيهَا: راکاږه، کيږده.

**تسهيلات:**

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:**

① فَأَمَرَهَا: يعنى نبى اکرم ﷺ هغه ښځې ته د غسل کيفيت او طريقه اوخودله.

② خُذِي فِرْصَةً: ځينو رواياتو کښې دا لفظ قرصة قاف سره راغلې دې. ددې نه هم وړه ټکړه مراد ده. کومه چې ددوؤ ګوتو په مينځ راځى.

**قوله: تَطَهَّرِي بِهَا**

د تطهرى هم دا مطلب دې چې صفائى حاصله کړه. خو ځينې رواياتو کښې د توضئى لفظ راغلې دې. ددې نه هم مراد صفايى ده.

**قوله: مِنْ مَسْكٍ:**

**??په شرمګاه د مشکو لګولو دوه صورتونه:** ① دا لفظ د ميم په کسرې سره زيات مشهور دې. د لفظ دظاهر څخه معلوميږى چې پخپله د مشکو وړه ټکړه دې په اندام نهانى باندې اومښلې شى چې هلته د بدبوئى اثر پاتې نشى.

② د مشکو نه مراد دادى چې دَ دې په يوه کپړه اومښلې شى او بيا هغه کپړا په اندام نهانى باندې کيږده او صفائى حاصله کړه.

**قوله: قَالَ: "سُبْحَانَ اللهِ:**

**د سبحان الله وئيلو وجه:** يعنى نبى کريم ﷺ هغه زنانه څومره پوهه کړه خو هغه پوهه نشوه او همدا شان سوال به ئې کولو. بل طرفته نبى کريم ﷺ ته حجاب وو چې ښکاره او صفا الفاظ استعمال کړى، نو نبى کريم ﷺ د ډير تعجب په انداز کښې لفظ د سبحان الله استعمال کړو.

ددې حديث پاك څخه معلومه شوه چې په داسې قسمه مسئلو کښې چې څومره کيديشى نو دکنايې الفاظ دې استعمال کړې شى. او د شرم او حيا خيال دې اوساتلې شى.

**قوله: فَاجْتَذَبْتُهَا:**

**دعائشې رضى الله عنها ښوښيارتيا:** دا د راښکلو په معنى کښې دې. دا لفظ که څومره التهٔ

رالیه کړې شی نو ددې معنی هم یو وی. څینو روایاتو کښې فاجمعنها دې ددې مطلب هم دغه دې الله تعالی دې د حضرت عائشه رضی الله عنها درجات اوچت کړی، هغوئ چې کله اوکتل چې دا ښځه نه پوهیږی او نبی کریم ﷺ ئې پریشانه کړې دې نو دوئ هغه راښکله او په بریښدو (صفا) الفاظو کښې ئې پوهه کړه. چې داسې اوکړه څکه چې دښځو په خپلو کښې دَ داسې خبرې کولو کښې ګنجائش وی.

## [۴۳۸] دښځو دپاره په غسل کښې دَ کونسو نه پرانستل

۴۳۸-(۱) [۷] ۞وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، «قَالَتْ: قُلْتُ: يَارَسُولَ اللّٰهِ، ۞إِنِّي امْرَأَةٌ أَشُدُّ ضَفْرَ رَأْسِي، ۞أَفَأَنْقُضُهُ لِغُسْلِ الْجَنَابَةِ؟ ۞فَقَالَ: "لَا ; إِنَّمَا يَكْفِيكِ أَنْ تَحْثِي عَلَى رَأْسِكِ ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ، ۞ثُمَّ تُفِيضِينَ عَلَيْكِ الْمَاءَ فَتَطْهُرِينَ»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۞وحضرت ام سلمة رضی الله عنها فرمائی چه "ما عرض اوکړو یا رسول الله۞ زه یوه داسې ښځه یم چه دَ خپل سر ویښتې ډیر مضبوط کونځئي کوم،۞ آیا دَ صحبت نه پس دَ لامبلو دپاره هغه کولاووم؟ ۞ حضورپاك اوفرمائیل نه (دَ ویښتو دَ کولاوولو ضرورت نشته دې) بلکه تاله هم دغه کافی دی چه درې لپې اوبه واخله په سر باندې ئې واچوه۞ او بیا په ټول بدن باندې اوبه اوبهیوه نو پاکه به شې". (مسلم)

**حل اللغات:** ① أَشُدُّ: أَيْ: أُحْكِمُ: مضبوط او کلک ترم. ②ضَفْرَ: مفرد دې، ددې جمع ضفائر ده، أَيْ: بِنَسْجِهِ: کونځئ جوړولوته وائی. ③ أَفَأَنْقُضُهُ: أَيْ: أُفَرِّقُهُ: آیا زه ئې پرانیزم، اوسپړم؟ ④ تَحْثِي: أی الإِثَارَةُ: یو لپه اوبه اوبهوه. ⑤ تُفِيضِينَ: أَيْ: تَصُبِّينَ: اوبه واړوه، اوبهیوه.

**تسهیلات:**

**قوله: إِنِّي امْرَأَةٌ أَشُدُّ ضَفْرَ رَأْسِي:**

**کمڅی جوړولو حکم:** ضفر دَضاد په فتح او دَ فاء په سکون سره زیات مشهوردې. دا دَ کمڅو په معنی کښې دې. اوس هم په کلوکښې شریفانې ښځې دَ سرویښته راغونډ کړی اوکمڅئی جوړه وی او په دې کارباندې پوره وخت لګی نودَ هرغسل دَپاره دَدې کولاوول آسان کارنه دې. په دې وجه ام سلمة رضی الله عنها دَمسئلې تپوس اوکړو نوحضورپاك دَښځودَپاره دَنه کولاوولواجازت ورکړو. اوس دا رخصت ښځوسره خاص دې په سړوکښې کوم فقیراوملنګ ته دَدې اجازت نشته څکه چه دَهغوی دَ پاره کمڅئی جوړول جائزنه دی. دَښځو په غسل کښې دَفقهاؤ اختلاف دې.

---

(۱) اخرجه مسلم کتاب الحیض باب حکم ضفائر المغتسلة(رقم-۵۸ - (۳۳۰) وابوداود کتاب الطهارة/باب فی المرأة هل تنقض شعرها عند الغسل (رقم-۲۵۱) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فی غسل النساء من الجنابة (رقم-۶۰۳) والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب هل تنقض المرأة شعرها عند الغسل؟ (رقم-۱۰۵) والنسائی کتاب الطهارة/باب ذکر ترک المرأة نقض ضفر رأسها عند اغتسالها من الجنابة(رقم ۲٤۱)

**په غسل کښې د کونسو په پرانستلو کښې مذاهب:**

په دې مسئله کښې دَ فقهاؤاختلاف دې چه دَښځودپاره دَغسل په وخت کمڅئی کولاوول ضروري دي که نه؟

① دَامام مالك رحمه الله اوامام احمد بن حنبل رحمه الله په نیز دَ حیض په غسل کښې نقض دَ ضفائرضروري دې باقي غسلونوکښې نه دې.

② دَ جمهورفقهاؤ په نیزپه یوغسل کښې هم دَ ښځو دپاره نقض ضفائرضروري نه دې په دې شرط چه اوبه دَ ویښتو بیخ ته اورسي.

**داول فریق دلیل:** دَ بخاري شریف دَ هغه روایت د دوی مستدل دې کوم چه دَ حجة الوداع په قصه کښې دې په کوم کښې چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه زمابیماري راغله نودَ غسل دپاره حضورپاك ماته اوفرمائیل چه دَ سروېښته کولاؤ کړه ګمزه اوکړه بیا غسل اوکړه. په مشکوة کښې دا الفاظ دي "فأمرني النبي صلى الله عليه وسلم أن أنقض رأسي وأمتشط" اودا چونکه دَحیض نه پس غسل وو په دې وجه صرف دَ حیض په غسل کښې نقض ضفائردې.

**داول فریق د دلیل جواب:** دا دَ نقض ضفائرحکم دَ حج په موقع باندې دَ نورو خیرو وغیره لرې کولودَ وجې نه فرمائیلې وو. دَحیض سره تخصیص نه دې بلکه محل دَحج سره خاص دې.

**د دویم فریق دلیل:** زیرنظر دَ ام سلمة رضي الله عنها صریح اوصحیح حدیث د وی مستدل دې.

**[۴۳۹] په غسل کښې د اوبو مقدار**

۴۳۹-()[۸] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ بِالْمُدِّ، [۳] وَيَغْتَسِلُ بِالصَّاعِ، إِلَى خَمْسَةِ أَمْدَادٍ.» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] وحضرت انس رضي الله عنه فرمائی [۲] چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به په یو مد (اوبو) سره اودس کولو [۳] اودَ یو صاع نه تر پنځو مدو پورې (اوبو) سره به ئې غسل کولو. (بخاري و مسلم)

**حل اللغات:** ① الْمُدّ: د ناپ کولو یو مقدار او پیمانه ده چه د دوه رطلو یعنی د دوؤ پونډونو برابر دې، ② الصَّاع: دا هم د ناپ کولو یو مقدار او پیمانه ده چه د اته رطلو یعنی د اته پونډونو برابر دې.

**تسهیلات:**

**قوله:** بِالْمُدّ:

**په غسل کښې د مسنون مقدارحد:** د اوبو په مقدار کښې ددې حدیث او نورو احادیثو څخه معلومیږي چې نبی کریم صلى الله عليه وسلم به په یو مد اوبو سره اودس اوپه یوصاع اوبو سره غسل کولو.

د فقهاء کرامو په دې باندې اتفاق دې چې په اودس او غسل کښې د اوبو په استعمال

---

(۱) اخرجه البخاري کتاب الوضوء باب الوضوء بالمد (رقم-۲۰۱) ومسلم کتاب الحیض باب القدر المستحب من الماء في غسل الجنابة، وغسل الرجل والمرأة في إناء واحد في حالة واحدة، وغسل أحدهما بفضل الآخر(رقم-۵۱ - (۳۲۵)

کښې هيڅ حدبندي نشته دې. البته اسراف او تقتير يعني کمی نه بچ کيدل ضروری دی.
دد ې وجه داده چې دا امور عادي دی ، دعادت په وجه بدليږي. کله د زمانې او کله د
مکان او کله دَ مقام په وجه په دې کښې فرق رازي. کله د اوبو د کمی اوکثرت اوکله د
مزاج په تغير سره په دې کښې تغير راځي. نبی کريم ﷺ به عموماً هم دا مقدار استعمالولو
دکوم ذکر چې په دې حديث پاك راغلي دي.

## [٤٤٠] دسړي او ښځې يو ځائې غسل کول

۴۴۰-()[۹] ⓵وَعَنْ مُعَاذَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَتْ عَائِشَةُ: ⓶«كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ بَيْنِي وَبَيْنَهُ،⓷ فَيُبَادِرُنِي، حَتَّى أَقُولَ: دَعْ لِي دَعْ لِي.⓸ قَالَتْ: وَهُمَا جُنُبَانِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⓵ وحضرت معاذه رحمها الله وائی چه حضرت عائشې صديقې اوفرمائيل⓶ چه "ما او رسول الله ﷺ به په يو لوښی کښې کوم چه دَ دواړو په مينځ کښې پروت وو لامبل او ⓷ حضورپاك ﷺ به په (اوبو اخستوکښې) زمانه تادی کوله نو ما به وئيل چه زما دَ پاره خو اوبه پريږده، زما دَ پاره خو هم اوبه پاتې کړه" ⓸ حضرت معاذه فرمائی چه هغوی دواړه (حضورپاك ﷺ او حضرت
عائشه ﷞) جنابت کښې (يعنی په حالت دَ ناپاکۍ کښې) وو.

**حل اللغات:** ⓵ فَيُبَادِرُنِي: أَيْ: يَسْبِقُنِي لِأَخْذِ الْمَاءِ: يعنی نبی عليه السلام به زمانه په اوبو راخستلو کښې مخکښې کيدو ، ⓶ دَعْ لِي دَعْ لِي: أَيْ: اتْرُكْ لِي مَا أُكْمِلُ غُسْلِي: تکرار د تاکيد دپاره دې معنی ئې ده چه ماته هم دومره اوبه پريږده چه زه پرې غسل پوره کړې شم.

## دراوي مختصر تعارف:

نوم معاذة دَ پلار نوم ئې عبدالله او کنيت ئې ام الصبهاء دې. دَ خاوند نوم ئې صله بن اشيم دې. دَ بصرې اوسيدونکې وه دَ محدثينو په نيز ثقه ده. حضرت عائشه صديقه ﷞ کره به ئې تګ راتګ وو په دې چه دَ هغې احاديث هم هغه نقل کوی. ډيره زياته عبادت کونکې ښځه وه.

علامه ابن جوزی ﷫ دَ حکيم بن سنان نه نقل کړی دی ماته يوې خادمه چه حضرت معاذه عدويه په خدمت کښې اوسيدله اوخودل چه معاذه عدديه به ټوله شپه عبادت کولو او چه کله به پرې دَ خوب غلبه شوه نو ګرځيدله به اوبيابه ئې خپل نفس مخاطب کړو فرمائيل به ئې اې نفسه خوب خو ستا په وړاندې دې او ته به دې سره مخ کيږې نو بيا اوده شه. دَ خادمه بيان دې حضرت معاذه عدديه به فرمائيل اودَ هغې دَ سترګونه به

(۱) اخرجه البخاری كتاب الغسل باب غسل الرجل مع امرأته (رقم-۲۵۰) ومسلم كتاب الحيض باب القدر المستحب من الماء في غسل الجنابة، وغسل الرجل والمرأة في إناء واحد في حالة واحدة، وغسل أحدهما بفضل الآخر(رقم-٤٦ - (۳۲۱)

اوبنکي رواني وي تردي چه سحر به شو. (صفوة الصفوة: ۱۴/۴)
**مرويات:** دَ هغې نه اصحاب صحاح سته روايتونه په خپلو كتابونو كښې نقل كړي دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا:

**دزوجينو په غسل كښې دوه اتفاقي صورتونه:** ① ښځه او سړي چې ښځه خاوند وي او په يوځائې كښې غسل كوي نو دا اتفاقًا جائز دي. په دې كښې هيڅ كراهت نشته دې.
② كه سړي وړاندې غسل اوكړو او ښځې روستو نو په دې كښې هم څه كراهت نشته دې.

**د ښځې په پاتې شوو اوبو سره د سړي دپاره دغسل په حكم كښې مذاهب:**

① د امام احمد بن حنبل رحمه الله او اهل ظواهرو په نيز دا صورت مكروه دې.
② دجمهورو علماء كرامو په نيز صرف د ښځې ړومبې غسل كولو سره اوبه نه مكروه كيږي ، لهذا سړي دپاره په دې باندې غسل كول مكروه نه دي.
د دويم فريق دليل.
**داول فريق دلائل:** حنابله او اهل ظواهرو دهغه رواياتو نه استدلال كړې دې كوم كښې چې د ښځو نه پس سړو لره اغتسال ممنوع گرځولې شوی دي.
**د اول فريق د دلائلو جواب:**
① هغه روايات دداسې ښځو باره كښې دي چې د غسل كولو صحيح طريقه ورته معلوم نه وي او په اوبو كښې ځاځكي پريوځي نو هغه ممنوع اومكروه دي گڼي نه .
② دا حديث د اجنبيانو ښځو په استعمال شوؤ اوبو باندې محمول دی. يعنی د اجنبيت په وجه غير محرم دَ پاره التذاذ په وجه منع كړې شوې ده.
**ددويم فريق دليل:** مذكوره حديث د دوی مستدل دې.
**دعائشې د حديث پس منظر:** باقي حضرت عائشه صديقه رضی الله عنها چې كوم منظر بيان كړې دې، دهغې پس منظر داسې دې چې په هغه وخت كښې د اوبو هم تنگدستيا وه ، خانله ځانله اوبه نه وي ، بيل بيل لوبنی هم نه وو. د تنگ كور په وجه بيل بيل ځايونه هم نه وو. او دشپې په تياره كښې به ورته د يوبل بدنونه هم نه ښكاره كيدل. په دې كښې هيڅ خبره داسې نه وه چې په هغې منكرين حديث گوته پورته كړي. اود خبث باطن څه علاج نه وي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۳۳۱] په شیطانی خوب لیدو کښې دوه صورتونه**

۴۳۳-(۱۰) [۱] عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الرَّجُلِ [۳] يَجِدُ الْبَلَلَ وَلَا يَذْكُرُ احْتِلَامًا. قَالَ: "يَغْتَسِلُ" [۴] وَعَنِ الرَّجُلِ يَرَى أَنَّهُ قَدِ احْتَلَمَ وَلَا يَجِدُ بَلَلًا. [۵] قَالَ: "لَا غُسْلَ عَلَيْهِ"

**ترجمه:** [۱] اوحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی [۲] چه دَ رسول الله ﷺ نه دَ هغه سړی باره کښې تپوس اوکړې شو چه دَ (اوده کیدو نه راپاسی) [۳] او (په کپړه باندې دَمنی) لوندوالې محسوس کړی او خوب (احتلام) هغه ته یاد نه وی؟ حضورپاك اوفرمائیل چه "لامبل پکاردی" [۴] او دَ داسې سړی باره کښې هم تپوس اوکړې شو چاته (چه دَ اوده کیدو نه پس) احتلام خو یاد وی مګر لوندوالې معلوم نه وی. [۵] حضورپاك اوفرمائیل "په ده باندې غسل واجب نه دې"

**حل اللغات:** ① اَلْبَلَلَ: لوندوالې (د منی یا د مذی)، ② احْتِلَامًا: أَيْ: أَنَّهُ جَامَعَ أَحَدًا فِي النَّوْمِ: په خوب کښې جماع کولو ته احتلام وائی.

[۱] قَالَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ: هَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ تَرَى ذٰلِكَ غُسْلٌ؟ [۲] قَالَ: "نَعَمْ، إِنَّ النِّسَاءَ شَقَائِقُ الرِّجَالِ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ. [۳] وَرَوَى الدَّارِمِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ، إِلَى قَوْلِهِ: "«لَا غُسْلَ عَلَيْهِ»".

**ترجمه:** [۱] ام سلیم رضی الله عنها تپوس اوکړو چه که ښځه هم دغه لوندوالې اووینی نو په هغې باندې غسل واجب دې؟ [۲] حضورپاك اوفرمائیل "هو" ښځې هم دَ سړو په شان دی. ترمذی، ابوداؤد، [۳] دارمی او ابن ماجه دا حدیث دَ "لاغسل علیه" (په دې باندې غسل واجب نه دې) پوره نقل کړې دې.

**حل اللغات:** ③ شَقَائِقُ: أَيْ: نَظَائِرُهُمْ: مشابه وی، یو شان وی.

**تسهیلات:** **قوله:** يَجِدُ الْبَلَلَ:

**د شیطانی خوب لیدو دوه صورتونه:**

① دې حدیث کښې دی څوک چې اوده شی او بیا راپاسی او په کپړو یا بدن وغیره باندې لوندوالې اوګوری. نبی کریم ﷺ فرمائی چې په دې کس باندې غسل واجب دې.

② څوک چې په اودهٔ باندې څه خوب اوکتلو، احتلام ورته هم یاد دې مګر کله چې ویخ شی نو څه لوندوالې نه وو، نو نبی کریم ﷺ فرمائی چې په ده باندې غسل واجب نه دې.

په دې مسئله کښې د فقهاء کرامو څه لوې اختلاف نشته دې، البته د احنافو په نیز ددې

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة/باب فی الرجل یجد البلة فی منامه (رقم- ۲۳۶) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب من احتلم ولم یر بللا (رقم- ۶۱۲)

په صورتونو کښې ډير اوږد تفصيل دې، دفقه کتابونه ته مراجع اوکړي.

**قوله:** إِنَّ النِّسَاءَ شَقَائِقُ الرِّجَالِ:

**د ښځواو سړود اشتراک په مصداق کښې دوه اقوال:**

① يعنې په تخليق او طبائع کښې ښځې او سړي يو شان دي. کوم څه چې په سړي کښې ظاهريږي هغه په ښځو کښې هم ظاهريږي. ددې جواب نه معلوميږي چې په ښځو کښې د احتلام د قليل او نادرکيدو په وجه ام سليم رضى الله عنها سوال اوکړو چې د ښځو په احتلام کښې هم څه لوندالې ښکاري، نو نبى کريم ﷺ په اثبات کښې جواب ورکړو.

② ځينې علماء کرام شقائق او شقيقه لره د اشتراك فى الاحکام په معنى کښې اخلى. چې دا دواړه د شريعت په احکامو کښې يو شان دى، دا مفهوم زياد آسان دى.

**[۴۴۲] د حشفه غالب کيدو په صورت کښې د غسل وجوب**

۴۴۲- (۱) [۱۱] وَعَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «إِذَا جَاوَزَ الْخِتَانُ الْخِتَانَ، وَجَبَ الْغُسْلُ». ۳ فَعَلْتُهُ أَنَا وَرَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاغْتَسَلْنَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائى چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو ۲ "کله چه د سړي د سنتيدو ځائې د ښځې د سنتيدو د ځائې نه تجاوز اوکړي (يعنى حفشه ورغيبه شى نو په دواړو باندې) غسل واجبيږي" ۳ (حضرت عائشه رضی الله عنها) فرمائى چه ما او حضورپاك ﷺ داسې اوکړل او مونږ دواړو اولامبل. (ترمذى، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① جَاوَزَ: أَيْ: تَعَدَّى: تجاوز اوکړي، ورتيرشي، ② الْخِتَانُ الْخِتَانَ: وَهُوَ مَوْضِعُ الْقَطْعِ مِنْ فَرْجِ الذَّكَرِ وَالْأُنْثَى: ختان د سړي يا د ښځې د سنتيدو ځائې ته وائى، په دې کښې د ړومبى ختان نه د سړي شرمګاه او د دويم ختان نه د ښځې شرمګاه مراد ده، او دا کنايه ده د جماع نه.

**نوټ:** ددې حديث تشريح د باب د شروع په احاديثو کښې تيره شوې ده.

**[۴۴۳] په غسل کښې د ويښتو وينځلو حکم**

۴۴۳- (۲) [۱۲] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «تَحْتَ كُلِّ شَعْرَةٍ جَنَابَةٌ ۳ فَاغْسِلُوا الشَّعْرَ، وَأَنْقُوا الْبَشَرَةَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، ۴ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَالْحَارِثُ بْنُ وَجِيهٍ الرَّاوِي وَهُوَ شَيْخٌ، لَيْسَ بِذَلِكَ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمائى چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو ۲ د هر ويښته لاندې (جرړه کښې) جنابت وى ۳ لهذا ويښته (ښه) وينځى او بدن پاکوئى.

(۱) اخرجه الترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إذا التقى الختانان وجب الغسل (رقم-۱۰۸)

(۲) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب فى الغسل من الجنابة (رقم-۲۴۸) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب تحت كل شعرة جنابة (رقم-۵۹۷)

(ابوداؤد، ترمذی، ابن ماجه) [۴] اوامام ترمذی رحمه الله وائي چه داحديث غريب دي ځکه چه ددي حديث يو راوی حارث بن وجيه يو بوډا سړي دي چه معتبرنه دي. (يعنی دَ کبرسنئ او نسيان دَ غلبي دَ وجې نه دَ هغه روايت دَ اعتماد قابل يعنی قوی: دي بلکه ضعيف دي).

**حل اللغات:** ① أَنْقُوا: دا د انقاء نه دي، پاکئ او صفايئ ته وائی. ② الْبَشَرَةَ: أي ظَاهِرُ الْجِلْدِ: بنکاره بدن او څرمن ته وائی.

**[۳۳۴] په غسل کښې د ويښته برابر ځائي وچ پاتې کيدو حکم**

۴۳۴—(۱) [۱۳] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَنْ تَرَكَ مَوْضِعَ شَعَرَةٍ مِنْ جَنَابَةٍ لَمْ يَغْسِلْهَا [۳] فُعِلَ بِهَا كَذَا وَكَذَا مِنَ النَّارِ". [۴] وَقَالَ عَلِيٌّ: فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِي، فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِي، فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِي. ثَلَاثًا»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَأَحْمَدُ وَالدَّارِمِيُّ [۵] إِلَّا أَنَّهُمَا لَمْ يُكَرِّرَا: فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِي.

**ترجمه:** [۱] وحضرت علی رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائيلو [۲] کوم سړی چه په غسل جنابت کښې دَ يو ويښته برابر ځائی هم (اوچ) پريخودو چه هغه ئی اونه وينځلو [۳] نوهغه ته به داسې داسې دَ اور عذاب ورکولې شی" [۴] حضرت علی رضي الله عنه فرمائی چه "هم په دې وجه ماخپل سر سره دښمنی اوکړه، هم په دې وجه ما خپل سر سره دښمنی اوکړه، هم په دې وجه ما خپل سرسره دښمنی اوکړه (چه اومې خرولو) درې ځل ئی اووئيل". (ابوداؤد، احمد، دارمی) [۵] اودارمی دا الفاظ "هم په دې وجه ماخپل سرسره دښمنی اوکړه" مکرر نه دی ذکرکړی

**حل اللغات:** ① بِهَا كَذَا وَكَذَا: دا دواړه الفاظ کنايه دی د عدد نه، ددې نه مراد دوچند عذاب دې، ② عَادَيْتُ رَأْسِي: أي عَادَيْتُ شَعَرِي: ويښتو سره مې دښمنی اوکړه يعنی اومې خرئيل

**[۳۳۵] د غسل څخه وروسته اودس نه کول**

۴۳۵—(۲) [۱۴] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَتَوَضَّأُ بَعْدَ الْغُسْلِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] وحضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی [۲] چه "رسول الله صلی الله علیه وسلم به دَ غسل کولو نه پس اودس نه کولو". (ترمذی، ابوداؤد، نسائی، ابن ماجه)

---

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة/باب فی الغسل من الجنابة (رقم- ۲۴۹) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب تحت کل شعرة جنابة (رقم- ۵۹۹) والدارمی کتاب الطهارة/باب من ترک موضع شعرة من جنابة (رقم-۷۷۸)

(۲) اخرجه الترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی الوضوء بعد الغسل (رقم- ۱۰۷) وابوداود کتاب الطهارة/باب فی الوضوء بعد الغسل (رقم- ۲۵۰) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب فی الوضوء بعد الغسل (رقم- ۵۷۹) والنسائی کتاب الطهارة/باب ترک الوضوء من بعد الغسل(رقم-۲۵۲)باب ترک الوضوء من بعد الغسل (رقم-۲۵۲)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَايَتَوَضَّأُ بَعْدَ الغُسْلِ:

**دغسل نه پس د اودس نه کولو وجه:** يعني غسل کولو نه پس به ئې اودس نه فرمائيلو ځکه چې غسل نه وړاندې به نبی ﷺ مکمل اودس کولو. لکه څنګه چې ددې باب په حديث نمبر (۴۳۵) کښې حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها تشريح فرمائيلې ده. هسې هم کله چې يو کس غسل کوی نو دَ حدث اکبر نه پاکيږی نو د حدث اصغر پاکی ددې په ضمن کښې ده ، ددې د اعادې ضرورت نشته دې.

**[۴۳۶] په ګل خطمي سره سر وينځل**

۴۳۶–() [۱۵] [۱] وَعَنْهَا قَالَتْ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْسِلُ رَأْسَهُ بِالْخِطْمِيِّ وَهُوَ جُنُبٌ، [۳] يَجْتَزِءُ بِذٰلِكَ، وَلَا يَصُبُّ عَلَيْهِ الْمَاءَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائی [۲] چه "رسول الله ﷺ به دَ ناپاکئ (د جنابت) په حالت کښې (دَغسل په وخت) په خطمی سره سر وينځلو [۳] او هم په دې باندې به ئی کفايت کولو او دوباره به ئی په سرباندې (خالص) اوبه نه اچولې". (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْخِطْمِيّ: نَبْتٌ يُتَنَظَّفُ بِهِ: مشهور بوټې دې کوم نه چه به په اوبوکښې ملاوولوسره دَ صابن کار اخستلو په کوم سره چه به په خاص توګه سروينځلې شو. ② يَجْتَزِءُ: أَيْ: يَقْتَصِرُ عَلَيْهِ: يعني هم دا به ئې کافی ګڼړل ③ لَا يَصُبُّ: نه به ئې پرې اچولې (نورې اوبه).

**تسهيلات:**

**قوله:** يَجْتَزِءُ بِذٰلِكَ:

**د ګل خطمی په اوبو دغسل کولو وجه:** يعنی په کومواوبوکښې چه به خطمی ملاوشوې وو دَهغې استعمال به ئی دَ غسل دَپاره کافی ګڼړلو اودَخطمی دَ وينځلودَپاره به ئی نورې خالص اوبه نه استعمالولې. داپه هغه صورت کښې کيدې شی چه په اوبوکښې ګل خطمی ډيرپه کم مقدار باندې ملاؤ شوې وی نودابه دَخالص اوبوپه شان وو اودَ نورو خالص اوبوپه ضرورت نه راتلو.

**داحنافو د مسلک تائيد:** دَدې حديث نه دَ احنافودَمسلك تائيد کيږی چه که په اوبوکښې څه صفاځيز ملاؤشی اودَهغې اثر په اوبو کښې ښکاره شی اودَ اوبو طبيعت رقت سيلان متاثرنه وی نو په دې سره اودس جائز دې شوافع دا نه مَنی.

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة /باب في الجنب يغسل رأسه بخطمي أيجزئه ذلك (رقم- ۲۵۶)

**[۴۴۷] د غسل د پاره د پردې کولو حکم**

۴۴۷-(۱) [۱۶] ① وَعَنْ يَعْلَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يَغْتَسِلُ بِالْبَرَازِ، ③ فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ، فَحَمِدَ اللَّهَ، وَأَثْنَى عَلَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: ④ "إِنَّ اللَّهَ حَيِيٌّ سِتِّيرٌ يُحِبُّ الْحَيَاءَ وَالتَّسَتُّرَ، ⑤ فَإِذَا اغْتَسَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَسْتَتِرْ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ ⑥ وَفِي رِوَايَتِهِ قَالَ: " «إِنَّ اللَّهَ سِتِّيرٌ، فَإِذَا أَرَادَ أَحَدُكُمْ أَنْ يَغْتَسِلَ فَلْيَتَوَارَ بِشَيْءٍ» ".

**ترجمه:** ① وحضرت یعلی ﷺ فرمائي ② چه رسول الله ﷺ یو سړي په میدان کښې په بربنډه لامبیدو اولیدلو ③ نو حضورپاك (دَ وعظ دپاره) په منبر باندې اوختلو، اول ئې دَ الله تعالی حمد اوثنا بیان کړه بیائي اوفرمائیل ④ چه الله تعالی ډیر حیادار دې (یعنی خپلو بندیگانوسره دَ حیادارو معامله کوی په داسې توګه چه هغوی معاف کوی) او ډیر پرده ساتونکي دې (یعنی دَ خپلو بندیگانو ګناهونه او عیبونه پټ ساتی) هغه حیاء او پرده ساتل خوښوی ⑤ لهذا کله چه په تاسوکښې څوك (میدان کښې) لامبی نو هغه له پکار دی چه هغه پرده اوکړی. (ابوداؤد، نسائی) ⑥ اودَ نسائی په یو روایت کښې داسې دی چه حضورپاك اوفرمائیل "الله تعالی پرده ساتونکي دې لهذا کله چه په تاسو کښې څوك دَ لامبلو اراده اوکړی نوهغه له پکاردی چه په یو څیز سره پرده اوکړی".

**حل اللغات:** ① الْبَرَازِ: أَيْ: الْفَضَاءِ الْوَاسِعِ: کهلاؤ میدان، صحرا، ② فَصَعِدَ: أَيْ: طَلَعَ: اوختلو (منبرته)، جلوه ګر شو. ③ حَيِيٌّ: أَيْ: كَرِيمٌ: ډیر حیادار، ④ سِتِّيرٌ: په وزن د فِعِیل، د مبالغې صیغه ده، پرده ساتونکي.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۴۴۸] د انزال نه بغیر په نفس دخول سره د عدم غسل نسخ**

۴۴۸-(۲) [۱۷] ① عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «إِنَّمَا كَانَ الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ رُخْصَةً فِي أَوَّلِ الْإِسْلَامِ ③ ثُمَّ نُهِيَ عَنْهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① وحضرت ابی بن کعب ﷺ فرمائي ② چه دا حکم چه غسل (صرف) دَ انزال نه پس واجبیږی دَ اسلام په شروع کښې دَ آسانئ دَ وجې نه وو ③ بیا دَ هغې نه منع اوکړې شوه (یعنی دا حکم منسوخ اوګرځولې شو). (ترمذی، ابوداؤد، دارمی)

[1] اخرجه ابوداود كتاب الحمام باب النهى عن التعرى (رقم-۴۰۱۲) والنسائى كتاب الغسل والتيمم/باب الاستتار عند الاغتسال (رقم-۴۰۶) باب الاستتار عند الاغتسال (رقم- ۴۰۶)

[2] اخرجه الترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن الماء من الماء (رقم- ۱۱۰) وابوداود كتاب الطهارة/باب في الإكسال (رقم- ۲۱۴) والدارمى كتاب الطهارة/باب الماء من الماء (رقم-۷۸۶)

## [۲۴۹] په غسل کښې د نوك برابر وچ ځاي پاتې كيدو حكم

۲۴۹–() [۱۸] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: [۳] إِنِّي اغْتَسَلْتُ مِنَ الْجَنَابَةِ، وَصَلَّيْتُ الْفَجْرَ، [۴] فَرَأَيْتُ قَدْرَ مَوْضِعِ الظُّفُرِ لَمْ يُصِبْهُ الْمَاءُ. [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَوْ كُنْتَ مَسَحْتَ عَلَيْهِ بِيَدِكَ أَجْزَأَكَ» "رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] وحضرت علی رضي الله عنه فرمائی [۲] چه یو سړي دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو [۳] چه ما دَ جنابت غسل اوکړو اودَ سحر مونځ مې اوکړو، [۴] بیا ما اوکتل چه په (بدن باندې) دَ نوك برابر ځائې اوچ پاتې شوې دې چه هلته اوبه نه دی رسیدلی. [۵] حضورپاك اوفرمائیل چه که چرې تا (دغه ځائې خپل لوند) لاس سره مسح کړې وې نو دا کافی وو تا دپاره. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① مَسَحْتَ: أي مَرَرْتَ عَلَيْهِ بِيَدِكَ الْمَبْلُولَةِ: یعنی رابنکلې دې وې لوند لاس، ② أَجْزَأَكَ: أيْ: كَفَاكَ: نو کافی شوی به وو تا لره.

**تسهيلات:**

**قوله: مَسَحْتَ عَلَيْهِ:**

**دمسحت عليه جملې مطلب:** دې نه مراد غسل اووینځل دی مسح دَ مږلو په معنی کښې دی او په وینځلو کښې مږل کیږی یعنی که دَغسل نه پس په دغه اوچه حصه باندې تا لږې شان اوبه مږلې وې نو ستادَپاره به دا جائزشوې وې اومونځ به دې کیدلومګر تاداسې اونه کړل لهذا فرض مونځ دې اونه شو اوس به دوباره کوې.

**په اودس اوغسل کښې دمعمولی ځائې اوچ پاتې کیدو حکم:** دامسئله دَغسل دَپاره هم ده اودَ اودس په اندامونوکښې دَاودس دَپاره هم ده. که چرته څه ځائی اوچ پاتې شی یادَ نوکونودَ پالش اوبالپ استیك دَ وجې نه یا دَ نورو روغن یا تیل تارکول او ګوند وغیره دَ وجې نه اوبه دَ بدن هغه مطلوبه حصې ته اونه رسی نونه به ئې غسل صحیح کیږی او نه اودس. رنګ روغن کونکې ښځو او پالش استعمالونکې ښځو باندې په دې مسئله کښې احتیاط لازم دې.

## [۲۵۰] په غسل کښې د تخفیف دعا

۲۵۰–() [۱۹] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، [۲] «قَالَ: كَانَتِ الصَّلَاةُ خَمْسِينَ، [۳] وَالْغُسْلُ مِنَ الْجَنَابَةِ سَبْعَ مَرَّاتٍ، وَغَسْلُ الْبَوْلِ مِنَ الثَّوْبِ سَبْعَ مَرَّاتٍ، [۴] فَلَمْ يَزَلْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُ حَتَّى جُعِلَتِ

---

[۱] اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب من اغتسل من الجنابة، فبقي من جسده لمعة لم يصبها الماء، كيف يصنع (رقم- ٦٦٤)

[۲] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب في الغسل من الجنابة (رقم- ٢٤٧)

الصَّلَاةُ خَمْسًا، ۵ وَغُسْلُ الْجَنَابَةِ مَرَّةً، وَغَسْلُ الثَّوْبِ مِنَ الْبَوْلِ مَرَّةً». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ وحضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائي ۲ چه (اول) پنخوس مونخونه فرض شوی وو، ۳ او دَ جنابت (ناپاکئ) نه لامبل او دَ کپړې نه متیازې وینځل اووه اووه ځل (فرض شوی وو) ۴ بیا رسول الله ﷺ (دَ الله تعالی نه) مسلسل دَ تخفیف دعاګانې غوښتلې. تردې چه مونځونه خو پنځه پاتې شو ۵ اودَ جنابت نه لامبل اودَ کپړې نه متیازې وینځل یو یو ځل پاتې شو. (ابوداؤد)

**تسهیلات:**

**قوله:** كَانَتِ الصَّلَاةُ خَمْسِينَ:

**دعمل مخه وړاندې د نسخې جواز:** یعنی لیلة المعراج کښې دَحضورپاك په امت باندې په شپه ورځ کښې پنځوس مونځونه فرض شوی وو لیکن په دې باندې دَعمل کولونه وړاندې هغه منسوخ اوموقوف شو اوصرف پنځه پاتې شی. معلومه شوه چه په یوحکم باندې دَ عمل کولونه وړاندې هغه منسوخ کیدې شی. دَ نسخ تعریف اودَدې حکم دَدې کتاب په شروع کښې تیرشوې دې.

**قوله:** وَغَسْلُ الثَّوْبِ مِنَ الْبَوْلِ مَرَّةً:

**د کپړې د پاکولو په عدد کښې اختلاف:**

① یعنی دَ نجاست لګیدلونه پس دَدې دَ ازالې دَپاره دَ اووه ځلوحکم ووبیا دَ یوځل وینځلو حکم پاتې شو دادَ شوافع مسلك دې چه په یوځل وینځلوسره کپړه وغیره پاکیږی اودرې ځل وینځل مستحب دی

② دَاحنافو په نیز درې ځل وینځل واجب دی کله چه نجاست غیرمرئیه وی.

# [۶/۱۱] بَابُ مُخَالَطَةِ الْجُنُبِ وَمَا يُبَاحُ لَهُ

## جنبي سره د اختلاط بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه أحد وعشرون حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① **جواز الأمور السبعة للجنب:**

(۱) المجالسة مع الناس ۱۔ (۲) النوم : ۲، ۳، ۱۷۔ (۳) الأكل: ۴ (۴) تعدد الجماع: ۵ (۵) الذكر: ۶، (۶) الاستدفاء بالمرأة: ۹ (۷) الغسل لكل جنابة: ۱۹۔

② الوضوء لبعض الأمور: ۲، ۳، ۴۔

③ الزجر بدوام الجنابة: ۱۲، ۱۳۔

④ التطهير لرد السلام: ۱۵، ۱۶۔

⑤ حكم الوضوء بفضل ماء الجنب سواء كان رجلا أوامرأة : ۷، ۲۰، ۲۱۔

⑥ تعليم طريق غسل الجنابة: ۱۸۔

⑦ عدم جواز التلاوة ومس القرآن ودخول المسجد للجنب. ۱۰،۹، ۱۱، ۱۴)

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۴۵۱] د مومن عدم نجاست

۴۵۱-() [۱] [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «لَقِيَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا جُنُبٌ، [۳] فَأَخَذَ بِيَدِي، فمشيت مَعَهُ حَتَّى قَعَدَ، [۴] فَانْسَلَلْتُ، فَأَتَيْتُ الرَّحْلَ، فَاغْتَسَلْتُ، ثُمَّ جِئْتُ، وَهُوَ قَاعِدٌ [۵] فَقَالَ: "أَيْنَ كُنْتَ يَا أَبَا هِرٍّ؟" فَقُلْتُ لَهُ. [۶] فَقَالَ: "سُبْحَانَ اللهِ، إِنَّ الْمُؤْمِنَ لَا يَنْجُسُ"». هَذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ،

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي [۲] چې د رسول الله ﷺ سره زما ملاقات وشو او زه جُنُب وم [۳] حضور ﷺ زما لاس ونيولو او زه ورسره شوم، کوم وخت چې حضور ﷺ کيناستل [۴] نو زه خيني پټ ووتم خپل مکان ته راغلم او د لمبيدو څخه وروسته د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم حضور ﷺ ناست وو [۵] (زما په ليدو سره) يې وفرمايل ته چېرته وي ما حضور ﷺ ته اصل واقعه ذکر کړه (چې زه ناپاك وم څکه تللی وم) [۶] حضور ﷺ وفرمايل سبحان الله مومن ناپاك نه وي، د روايت الفاظ د بخاري دي

[۱] وَلِمُسْلِمٍ مَعْنَاهُ، وَزَادَ بَعْدَ قَوْلِهِ: [۲] «فَقُلْتُ لَهُ: لَقَدْ لَقِيتَنِي وَأَنَا جُنُبٌ، [۳] فَكَرِهْتُ أَنْ أُجَالِسَكَ حَتَّى أَغْتَسِلَ»

[۱] اخرجه البخاري كتاب الغسل باب: الجنب يخرج ويمشي في السوق وغيره وقال عطاء (رقم-۲۸۵) ومسلم كتاب الحيض باب الدليل على أن المسلم لا ينجس (رقم-۳۷۱) وابوداود كتاب الطهارة/باب في الجنب يصافح (رقم-۲۳۱)

وَكَذَا الْبُخَارِيُّ فِي رِوَايَةٍ أُخْرَى.

**ترجمه:** [۱] مسلم هم د دې معنې روايت نقل کړې دې او د ابوهريره رضي الله عنه دا الفاظ يې مزيد نقل کړې دي [۲] چې هغه اوويل تاسو ماسره ملاؤ شوئ خو زه د ناپاکي په حالت کې وم [۳] ځکه ماته دا مناسب معلوم نه شو چې ستاسو سره کينم ترڅو پورې چې ونه لمبيږم، دغسې د بخاري په يو بل روايت کې هم دا الفاظ منقول دي.

**حل اللغات:** ① فَمَكَثْتُ: أي فَمَضَيْتُ: ورسره شوم، ورسره روان شوم، ② فَانْسَلَلْتُ: أي ذَهَبْتُ بِخُفْيَةٍ: زه پټ شان لاړم، ③ الرَّحْلَ: أي: الْبَيْتَ: کور، ④ لَا يَنْجُسُ: أي: لَا يَصِيرُ عَيْنُهُ نَجِسًا: نه ناپاکه کيږي.

**[۴۵۲] د حالت د جنابت کښې د خوب جواز**

۴۵۲-() [۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «ذَكَرَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ تُصِيبُهُ الْجَنَابَةُ مِنَ اللَّيْلِ، [۳] فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تَوَضَّأْ وَاغْسِلْ ذَكَرَكَ، ثُمَّ نَمْ"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او ابن عمر رضي الله عنهما راوي دي [۲] چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه حضور صلى الله عليه وسلم ته عرض وکړو چې کله کله ماته د شپې جنابت کيږي (يعني احتلام يا جماع سره غسل واجبيږي) [۳] حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې هغه وخت اودس کولو سره عضو تناسل وينځه او اوده کيږه. (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: تَوَضَّأْ:**

**د جنابت په حالت کښې د شپې د خوب په حکم کښې مذاهب:**

① يعنى اودس اوکړه ، ذکر اووينځه او اوده شه. د شپې د جنابت په حالت کښې بغير د غسل نه اوده کيدل د اهل ظواهر په نيز جائز نه دى.

② جمهور فرمائى چې غسل کول مستحب او افضل دى ګنى بيا د اودس درجه ده . او بيا صرف د استنجاء درجه ده.

**هميشه دپاره دجنابت په حالت کښې د اوده کيدووعيد:** شاه انور شاه کشميرى رحمه الله په فيض البارى کښې ليکلى دى چې کوم کس هميشه دجنابت په حالت کښې اوده کيږى نو د هغه په جنا زه کښې فرشتې شرکت نه کوى. بهر حال عامو احاديثو کښې بغير د غسل نه

---

[1] اخرجه البخاری کتاب الغسل باب الجنب يتوضأ ثم ينام (رقم-۲۹۰) ومسلم کتاب الحيض باب جواز نوم الجنب واستحباب الوضوء له. وغسل الفرج إذا أراد أن يأکل أو يشرب أو ينام أو يجامع(رقم*؟؟ ۲۵ - (۳۰۶) وابوداود کتاب الطهارة/باب الوضوء لمن أراد أن يعود (رقم- ۲۲۰) ومالک فی الموطا کتاب الطهارة ، باب وضوء الجنب إذا أراد أن ينام أو يطعم قبل أن يغتسل (رقم- ۷۶) والنسائی کتاب الطهارة /باب وضوء الجنب. وغسل ذکره إذا أراد أن ينام(رقم-۲۶۰)باب وضوء الجنب. وغسل ذکره إذا أراد أن ينام (رقم- ۲۶۰)

د اوده کيدو اجازت موجود دې. الله تعالى دې رحم اوکړی. د غسل کولو په بهترې کښې څه کلام کيدې شی:

[۳۵۳] د خوراک او خوب دپاره د جنب اودس کول

۳۵۳-(۱)[۳] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ جُنُبًا ③ فَأَرَادَ أَنْ يَأْكُلَ أَوْ يَنَامَ، تَوَضَّأَ وضوءه لِلصَّلَاةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه رضی الله عنها فرمايي ② چې رسول الله ﷺ به د ناپاکي په حالت کې وو ③ او د طعام خوړلو يا د خوب کولو اراده به يي کوله نو د لمانځه د اودس په شان اودس به يي کولو. (بخاري، مسلم)

[۳۵۴] د دوو جماعينو په مينځ کښې اودس کول

۳۵۴-(۲)[۴] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِذَا أَتَى أَحَدُكُمْ أَهْلَهُ، ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يَعُودَ، ③ فَلْيَتَوَضَّأْ بَيْنَهُمَا وُضُوءًا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت ابو سعيد خدري رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هرکله چې په تاسو کې څوك خپلې بي بي ته راشي (يعني صحبت ورسره وکړي) او بيا هغې ته د راتلو (يعني د بيا صحبت کولو) اراده وکړي ③ نو هغه ته پکار دي چې د دواړو په مينځ کې اودس وکړي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① أَنْ يَعُودَ: أَيْ: إِلَى الْجِمَاعِ: چه دوباره لاړ شي او جماع اوکړي.

**تسهيلات:**

**قوله:** وُضُوءًا:

**د دوو صحبتو په مينځ کښې د اودس حکم:** په دې کښې تنوين دَ تعظيم دَپاره دې مراد کامل مکمل اودس دې دا حکم وجوبی نه دې بلکه استحبابی دې دې سره تازه والي پيدا کيږي. که يوسړې په دې باندې عمل نه کوی نو هيڅ حرج نشته دې.

[۱] اخرجه مسلم كتاب الحيض باب جواز نوم الجنب واستحباب الوضوء له، وغسل الفرج إذا أراد أن يأكل أو يشرب أو ينام أو يجامع(رقم# ۲۲ - (۳۰۵) ومسلم كتاب الحيض باب جواز نوم الجنب واستحباب الوضوء له، وغسل الفرج إذا أراد أن يأكل أو يشرب أو ينام أو يجامع(رقم# ۲۷ - (۳۰۸) وابوداود كتاب الطهارة/باب الوضوء لمن أراد أن يعود (رقم- ۲۲۰)

[۲] اخرجه مسلم كتاب الحيض باب جواز نوم الجنب واستحباب الوضوء له، وغسل الفرج إذا أراد أن يأكل أو يشرب أو ينام أو يجامع(رقم) ۲۲ - (۳۰۵) وابوداود كتاب الطهارة/باب الوضوء لمن أراد أن يعود (رقم- ۲۲۰)والترمذي كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إذا أراد أن يعود توضأ(رقم-۱٤۱) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب في الجنب، إذا أراد العود توضأ (رقم-۵۸۷)

**[۴۵۵] په تعدد جماع سره د يو غسل وجوب**

۴۵۵-()[۵] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَطُوفُ عَلَى نِسَائِهِ بِغُسْلٍ وَاحِدٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ".

**ترجمه:** ۱ حضرت انس رضی الله عنه فرمايي ۲ چې رسول الله ﷺ به په يو غسل سره د خپلو بيبيانو مباركو سره صحبت كولو. (مسلم)

**حل اللغات:** ① يَطُوفُ: أَيْ: يَدُورُ: ټولو ته به ورتلو(دا كنايه ده دجماع كولو نه).

**تسهيلات:**

**قوله: يَطُوفُ عَلَى نِسَائِهِ:**

**د نوبت په ترک باندې اشكال:** په دې حديث باندې په ظاهره داشبه كيدې شي چه قسم يعنې دَ نمبرواری مقرر كولو په احكامو كښې دادی چه يوه شپه ورځ كم نه كم دَ قسم دپاره ضروری دی نودلته حضورپاك قسم څنګه ترك كړو چه په يوه شپه كښې ئې ټولو بيبيانوته تشريف يوړو هغه نمبرواری چرته لاړه؟

**د اشكال درې جوابونه:**

① دَ ازواج مطهراتو په مرضئی سره داسې اوشو.

② په حضورپاك باندې قسم لازم نه وو.

③ دغه شان واقعات صرف دوه راغلی دی اودواړه دَحجة الوداع په موقع باندې په حج كښې پيښې شوی دی. يوه واقعه دَ احرام نه وړاندې ده اودويمه دَ منی دَ زمانې په قيام كښې پېښه شوې ده. هغه وخت حضورپاك په سفركښې وو او په سفركښې نمبرواری ختميږی.

**[۴۵۶] د نبی عليه السلام په هر حالت كښې د الله تعالى ذكر كول**

۴۵۶-()[۶] ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ۲ «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى كُلِّ أَحْيَانِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ ۳ وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ سَنَذْكُرُهُ فِي كِتَابِ الْأَطْعِمَةِ، إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى.

**ترجمه:** ۱ او بي بي عائشه رضی الله عنها فرمايي ۲ چې رسول الله ﷺ به هروخت په ياد الهي كې

---

[۱] اخرجه مسلم كتاب الحيض باب جواز نوم الجنب واستحباب الوضوء له. وغسل الفرج إذا أراد أن يأكل أو يشرب أو ينام أو يجامع(رقم ۲۸ - (۳۰۹) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فيمن يغتسل من جميع نسائه غسلا واحدا (رقم- ۵۸۸) والترمذی كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب ما جاء فی الرجل يطوف على نسائه بغسل واحد (رقم-۱۴۰)

[۲] اخرجه مسلم كتاب الحيض باب ذكر الله تعالى فی حال الجنابة وغيرها رقم(۱۱۷ - (۳۷۳) وابوداود كتاب الطهارة، باب فی الرجل يذكر الله تعالى على غير طهر (رقم- ۱۸) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها باب ذكر الله عز وجل على الخلاء، والخاتم فی الخلاء (رقم- ۳۰۲) والترمذی كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن دعوة المسلم مستجابة (رقم - ۳۳۸۴)

مصروف وو، مسلم،[۳] او د ابن عباس رضي الله عنه حديث به (چي صاحب مصابيح په دي موقع نقل كړي دي) مونږ ان شاء الله تعالى كتاب الاطعمه كې ذكر كړو.

**حل اللغات:** ① أَحْيَانِهِ: د حين جمع ده، په معنى د وخت سره.

**تسهيلات:**

**قوله:** عَلَى كُلِّ أَحْيَانِهِ:

**په هر حالت كښې ذكر كولو باندې اشكال:** په دې حديث باندې په ظاهره دااشكال دې چه په دې كښې هروخت دَالله تعالى دَ ذكربيان دې حالانكه بعضې وخت ذكرالله كول جائزنه وى لكه چه په قضاء حاجت وغيره كښې منع دى

**داشكال جوابونه:** ① داحيانه ضميردَ حضورپاك طرف ته راګرځولوسره دا اعتراض راځى يعنى حضور پاك به په خپلو ټولو وختونوكښې ذكرفرمائيلو مګر علامه سندهى رحمه الله فرمائيلى دى چه دَ احيانه ضمير دَ ذكرالله طرف ته راجع داې چه دې نه وړاندې ذكرهم دې نومطلب داشوچه رسول الله ﷺ به دَ ذكر وختونوكښې هروخت ذكركولو اودَ ذكراوقات هم هغه جائزوختونه دى.

② دَ احيانه نه صالحة للذكراوقات مراد دى نونامناسب وختونه اومقامات دَ دې نه خارج دى.

③ دذكرنه مراد صرف ذكرلسانى مرادنه دې بلكه ذكرقلبى دې اوهغه هروخت جارى پاتې كيدې شى. ليكن شيخ عبدالحق رحمه الله په لمعات كښې دا توجيه ردكړې ده چه دادَلغت او شريعت دواړو منافى توجيه ده ځكه چه لغت اوشريعت ذكرلسانى ته ذكر وائى نه چه ذكرقلبى ته.

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## [۴۵۷] د غسل ځخه د پاتې شوې اوبو حكم

۴۵۷-(۱)[۷] [۱] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «اغْتَسَلَ بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَفْنَةٍ، [۳] فَأَرَادَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَتَوَضَّأَ مِنْهُ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي كُنْتُ جُنُبًا. [۴] فَقَالَ: "إِنَّ الْمَاءَ لَا يُجْنِبُ"». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ. وَرَوَى الدَّارِمِيُّ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [۱] ابن عباس رضي الله عنه فرمايي[۲] چې (يوه ورځ) د رسول الله ﷺ يوې بى بې مباركې د لګن ځخه (يعني د اوبو ځخه ډك لګن نه) غسل وكړو[۳] هركله چې حضور ﷺ په هغه (لګن كې پاتې شوې) اوبو ځخه د اودس كولو اراده وكړه نو هغې عرض وكړو يا رسول الله ﷺ

[۱] اخرجه ابن ماجة باب اتباع سنة رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب الرخصة فى ذلك (رقم -۶۵) وابوداود كتاب الطهارة، باب الماء لا يجنب (رقم- ۶۸) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب الرخصة بفضل وضوء المرأة (ر قم- ۳۷۰) والنسائى كتاب المياه (رقم- ۳۲۵) والدارمى كتاب الطهارة/باب الوضوء بفضل وضوء المرأة (رقم -۷۶۱)

زه جنب وم (او ما په دي سره غسل کړي دي) [۴] حضور ﷺ وفرمايل اوبه خو جنبي نه وي (يعني د جنب لمبيدو يا د هغه څه عضو باندې پريوتلو سره اوبه نه نا پاکه کيږي). ترمذي ابوداؤد ابن ماجه، او دارمي هم داسې روايت نقل کړي دي

**حل اللغات:** ① جَفْنَةٍ: أي صَحْفَةٍ كَبِيرَةٍ: لوښي خانک يا ټب ② لَا يُجْنِبُ: أَيْ: لَا يَصِيرُ جُنُبًا: نه جنب کيږي يعنی نه پليتيږي.

۴۵۸-()[۰] [۱] وَفِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" عَنْهُ، عَنْ مَيْمُونَةَ بِلَفْظِ "الْمَصَابِيحِ".

**ترجمه:** [۱] او په شرح السنة کې د ابن عباس رضي الله عنه څخه او هغه د بي بي ميموني رضي الله عنها څخه د مصابيح هم داالفاظ نقل دي

**تسهيلات:**

دې حديث سره متعلق تشريح باب الغسل حديث نمبر (۴۳۰) کښې تيره شوې ده.

**[۴۵۹] غسل څخه پس د بي بي سره ملاسته**

۴۵۹-() [۸] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ، [۳] ثُمَّ يَسْتَدْفِئُ بِي قَبْلَ أَنْ أَغْتَسِلَ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي [۲] چه رسول الله ﷺ (به زما سره) د صحبت نه د فارغيدو څخه وروسته غسل کولو [۳] بيا زما د لمبيدو څخه مخکې به يې زما څخه (يوځاي کيدو سره) ګرمي حاصلوله، ابن ماجه، اوامام ترمذي هم دغسې روايت نقل کړي دي.

**حل اللغات:** ① يَسْتَدْفِئُ: أي: يَطْلُبُ الدِّفَاءَةَ وَهِيَ الْحَرَارَةُ: يعنی ځان به ئې ګرمولو.

**[۴۶۰] د جنب دپاره د قرآن د تلاوت حرمت**

۴۶۰-() [۹] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ مِنَ الْخَلَاءِ فَيُقْرِئُنَا الْقُرْآنَ وَيَأْكُلُ مَعَنَا اللَّحْمَ، [۳] وَلَمْ يَحْجُبْهُ - أَوْ يَحْجُزْهُ - عَنِ الْقُرْآنِ شَيْءٌ لَيْسَ الْجَنَابَةَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ، وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [۱] حضرت علي کرم الله وجهه فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به د بيت الخلاء څخه وتلو سره (د اودس څخه مخکې) مونږ ته قرآن کريم وئيلو او (هغه وخت به يې) زمونږ سره غوښه خوړله [۳]. حضور ﷺ د قرآن کريم د ويلو څخه سوا د جنابته بل هيڅ شي نه منع

[۱]) المصابيح السنة رقم الحديث ۳۱۵ واحمد فی المسند رقم الحديث ۱/ ۳۳۷

[۲]) اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/ باب فی الجنب يستدفئ بامرأته قبل أن تغتسل (رقم- ۵۸۰) والترمذی كتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فی الرجل يستدفئ بالمرأة بعد الغسل (رقم-۱۲۳)

[۳]) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب فی الجنب يقرأ القرآن (رقم- ۲۲۹) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فی قراءة القرآن علی غير طهارة (رقم- ۵۹٤) والنسائی كتاب الطهارة/باب حجب الجنب من قراءة القرآن(رقم-۲۶۵)

کولو. ابوداؤد نسائي او ابن ماجه هم داسې روايت نقل کړي دي.

**حل اللغات:** ① لَمْ يَحْجُبْهُ أَوْ يَحْجُزْهُ: أَيْ: لَمْ يَمْنَعْهُ: يعنى نه به ئې منع کولو (د دواړو الفاظو يو معنى ده، لفظ (أو) د راوى شک دې).

**[۳۶۱] د حائضې او جنب دپاره د قرآن د تلاوت ممانعت**

٣٦١-( ) [١٠] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «لَا تَقْرَأُ الْحَائِضُ وَلَا الْجُنُبُ شَيْئًا مِنَ الْقُرْآنِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** ① ابن عمر رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② حائضه (د حيض والا ښځه) او جنب دي د قرآن کريم هيڅ حصه هم نه وايي. (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَقْرَأُ الْحَائِضُ:

**د لا تقرء په صيغه کښې دوه احتمالات:**

① د **لا تقرأ** په حمزه باندې ضمه ده. او دانفي صيغه د نهى په معنى کښې مستعمل ده.

② ځينو جزم سره وئيلې ده. په دې صورت کښې دا دنهى صيغه ده. يعنى حائضه او جنبى دې قرآن پاك نه لولى.

**د حائضې اونفاسې دپاره د قران پاک تلاوت باره کښې مذاهب:**

① امام مالك رحمه الله نه په يو روايت کښې داشان منقول دى چې د ځان د حفاظت او حفاظت نفس د پاره حائضه او جنبى سړې قرآن پاك لوستلې شى په دې شرط چې آيتونه به واړه وى. ددوئ نه بل روايت داشان منقول دى چې جنبى سړې قرآن پاك نشى لوستلې او حائضه او نفساء ښځې دپاره لوستل جائز دى،

**داول فريق دليل:** ددې وجه داده چې جنابت خو هر وخت راتلې شى او ددې وخت لږ وى نو غسل دې اوکړى او بيا دې تلاوت اوکړى او د حيض او نفاس موده زياته وى نو په دې وجه هغوئ د پاره گنجائش شته دې.

② د جمهورو علماء کرامو او احنافو په نيز جنبى، حائضه او نفساء دپاره قرآن پاك لوستل جائز نه دى. پوره آيت نه لوستلو باندې دټولو اتفاق دى د جمهورو علماء کرامو په نيز په عدم جواز باندې فتوى ده.

**په احنافو کښې د مادون الآية په لوستلو کښې دوه اقوال:**

① **مادون الاية** يعنى د نيم آيت په لوستلو کښې د امام علامه کرخى رحمه الله په نيز **مادون الاية**

[1] اخرجه الترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الجنب والحائض أنهما لا يقرآن القرآن (رقم - ١٣١) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فى قراءة القرآن على غير طهارة (رقم - ٥٩٦)

لوستل هم جائز نه دی ځيني علماء کرامو د علامه کرخی رحمه الله رائې ته ترجيح ورکړې ده ځکه چې په دې کښې احتياط دې.

② د امام طحاوی رحمه الله په نيز مادون الاية لوستل جائز دی ځکه چې په دې قليل مقدار باندې د قرآن پاك حکم نشی لګولې. ځينو د امام طحاوی قول ته ترجيح ورکړې ده ځکه چې دې کښې آسانی او سهولت دې.

**د مسئلې څير يقينی حل:** په دې مسئله کښې د علماء کرامو او يعنی د جمهورو او دَ نور علماء کرامو اقوالو کښې کافی تفاوت دې. څه خاص ضابطه نشته دې چې په هغې باندې اتفاق اوکړې شی . نن صبا د زنانو معلماتو دپاره دا مسئله درد سر جوړه شوې ده. نو علماء کرامو دوئ ته د امام طحاوی رحمه الله دمسلك مطابق وائی چې پورا آيت مه وائې بلکه دا نيم ګړې نيم ګړې وائې. يا صرف ددې هيجې کوئی. بهر حال په ظاهری حديث کښې ممانعت دې په دې وجه حيلو او بهانو کښې اخته کيدل نه دی پکار

**[۳۶۳] د حائضې او جنب دپاره جمات ته د داخليدو حرمت**

۳۶۳-()[۱۱] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "②«وَجِّهُوا هَذِهِ الْبُيُوتَ عَنِ الْمَسْجِدِ; ③فَإِنِّي لَا أُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلَا جُنُبٍ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او بی بی عائشه رضی الله عنها راوي ده چې رسول الله ﷺ وفرمايل② د کورونو دروازې د مسجد طرف ځخه واړوئ③ ځکه چې حائضه او جنب ته په مسجد کې داخليدل (خواه هغه هلته د پاتې کيدو د پاره وي يا هلته يې تيريدل وي) جائز نه دي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① وَجِّهُوا : أَيْ: حَوِّلُوا أَبْوَابَهَا: ددې کورونو مخونه واړوئ يعنی دروازې ئې بل طرف ته اوګرځوئ ② لَا أُحِلُّ : أی لَا يَجُوزُ لِلْجُنُبِ وَلَا لِلْحَائِضِ الْمُكْثُ فِي الْمَسْجِدِ: يعنی د جنبی، حائضې او نفاسې دپاره په جمات کښې ايساريدل نه جائزکوم.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَإِنِّي لَا أُحِلُّ الْمَسْجِدَ: دَحائضه نفساء اوجنبی دَپاره په جمات کښې حصاريدل يا تيريدل جائز دی که نه، په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

**د جنب او حائضې دپاره د دخول مسجد په حکم کښې مذاهب:**

دَ امام شافعی رحمه الله په نيز صرف عبور او تيريدل جائزدی "مکث" يعنی حصاريدل جائزنه دی.

② دَامام احمد رحمه الله په نيز دَاودس کولونه پس حصاريدل اوتيريدل جائزدی ځکه چه په اودس سره ثقيل نجاست راځی.

[1] اخرجه داود کتاب الطهارة/باب فی الجنب يدخل المسجد (رقم - ۲۳۲)

③ دَامام ابوحنيفه رحمه الله اوامام مالك رحمه الله په نيز مروروعبور اومكث وقعود مطلقًا ناجائزدی

**داول او دويم فريق دليل:** دوی دَ سورت نساء دَدې آيت نه استدلال کړې دې. ﴿ يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَقْرَبُوا۟ الصَّلَوٰةَ وَأَنتُمْ سُكَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَعْلَمُوا۟ مَا تَقُولُونَ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِى سَبِيلٍ حَتَّىٰ تَغْتَسِلُوا۟[۱] ﴾ طرزدَ استدلال داسې دې چه ﴿ لَا تَقْرَبُوا۟ الصَّلَوٰةَ ﴾ کښې دَ صلوة نه مواضع صلوة يعنی جماتونه مراددی مطلب دا شوچه دَنشې په حالت کښې جماتونوته مه نيزدې کيږئ ترکومې چه نشه لاړه نه شی دغه شان چه کله تاسو په جنابت کښې يئ نوجماتونوته نيزدې کيږئ مه ترکومې چه غسل اونه کړئ. ﴿ إِلَّا عَابِرِى سَبِيلٍ ﴾ آوکه صرف په لار تيريږئ نوبيا ممانعت نشته دَ جنابت په حالت کښې جمات کښې تيريدې شی نودا استثناء دَ ﴿ لَا تَقْرَبُوا۟ الصَّلَوٰةَ ﴾ نه ده اودَ صلوة نه مراد "مواضع الصلوة" دی نوصرف تيريدل جائز دی.

**داول او دويم فريق د دليل دوه جوابونه:**

① دَ صلوة نه دَ مواضع صلوة مراد اخستلو هيڅ ضرورت نشته دَ صلوة نه مراد مونځ دې کوم چه دَدې حقيقی معنی ده. دَدې پريخودوسره مجازی معنی اخستل جائزنه دی.

② په دې آيت کښې دوه حکمونه بيان کړې شوی دی يودا چه دَنشې په حالت کښې مونځ ته مه نيزدې کيږئ ترکومې چه نشته لاړه نه شی اودويم حکم دادې چه دَجنابت په حالت کښې مونځ مه کوئ ترکومې چه غسل نه وی کړې. ﴿ إِلَّا عَابِرِى سَبِيلٍ ﴾ آوکه ته په لاره تيريدونکې مسافرئ او اوبه نه ملاويږی نوته بيادَ غسل دَپاره تيمم کولې شی. خلاصه دا چه ﴿ إِلَّا عَابِرِى سَبِيلٍ ﴾ تعلق مسافرسره دې دې نه مسافرمراددې جمات کښې تيريدونکی سره دَدې تعلق نشته بل دا مسئله دَمبيح اومحرم ده. مبيح اومحرم کښې چه کله تعارض وی نوترجيح محرم ته ورکولې شی. لهذا مرور عبور مکث او قعود په جمات کښې دَ جنبی اوحائضې دپاره جائزنه دی. په صريح حديث باندې عمل کول بهتردی

③ کله چې د مبيح او محرم تعارض راشی نو ترجيح په محرم ته وی ځکه چې په دې کښې احتياط دې.

**د دريم فريق دليل:** دَ احنافو اومالکيه دليل زير بحث صحيح صريح حديث دې په کوم کښې چه دَځه قيدنه بغيرمطلقًا عبور اومرور ته ناجائزونيلی شوی دی.

**[۴۳] د جنب په وجه د فرشتو عدم دخول**

۴۳ ـ() [۱۲] ① وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ② «لَا تَدْخُلُ

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب فی الجنب يؤخر الغسل (رقم- ۲۲۷) وابن ماجة كتاب اللباس . باب الصور فی البيت (رقم- ۳۶۵۰)

الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ وَلَا كَلْبٌ وَلَا جُنُبٌ» "رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت علي كرم الله وجهه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] په كوم كور كې چې عكس يا سپي يا جنب وي په هغې كې فرښتي نه داخليږي. (ابوداؤد، نسائي)

**حل اللغات:** ① الْمَلَائِكَةُ: أَيْ: مَلَائِكَةُ الرَّحْمَةِ: د رحمت ملائک مراد دی. ② صُورَةٌ: تصوير (د ساه لرونکی څیز).

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا يَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ: دَ فرښتونه مراددَ رحمت فرښتې دی ځکه چه دَ رحمت فرښتې خوهرځائی ته راځی.

**قوله:** صُورَةٌ:

**د تصويرونو د حرمت شرطونه:**

① چه تصويردومره وړوکې او نرې نه وی چه هغه په زمکه کيخودې شی اوولاړسړې دې ته ګوری نودَ هغې دَ جنس او اعضاء فرق نه کيږی که دومره وړوکې دې او دغه شان نرې دې نوهغه هم دَدې وعيدنه خارج دې.

② دَبنيادم پوره تصوير مراد دې ياکم نه کم دَهغه حصوتصويرمراددې په کوم سره چه دَ انسان دَ ژونداومرګ تعلق دې. لهذا په کوم تصويرکښې چه سرنه وی يا پوره سينه اودَنامه لاندې اعضاء رئيسه نه وی نوهغه تصويردَدې وعيدنه خارج دې.

③ چه شوقيه تصويروی چه دَ اعزاز په توګه يوښکاره ځائی کښې کيخودې شوې وی اوکه چرې مهان وی يعنی فرش يا قالين يا تکيه تلاتی وغيره په داسې ځايونوکښې کيخودې شوې وی کوم چه دَ خپولاندې کيدې شی نوهغه هم دَدې وعيدنه خالی دې

**دحديث د جملو وضاحت:** ① وَلَا كَلْبٌ: دې نه شوقيه ساتلې شوې سپې مراددې دَ څوکئی والااو دَ ښکار سپې دَ دې نه مستثنی دی.

② وَلَا جُنُبٌ: جلب نه هغه جنبی سړې مراددې چه جنابت کښې پاتې کيدل هغه خپل عادت جوړکړې وی اوغسل دومره روستوکوی چه دَ سحروغيره مونځ ترې قضاء کيږی. صرف دَ غسل په روستوکولودا وعيدنه دې.

**[۴۴۳] درې قسمه خلقو نه د فرښتو لرې والې**

۴۴۳- ()[۱۳] [۱] وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «ثَلَاثٌ لَا تَقْرَبُهُمُ الْمَلَائِكَةُ: [۳] جِيفَةُ الْكَافِرِ، [۴] وَالْمُتَضَمِّخُ بِالْخَلُوقِ، [۵] وَالْجُنُبُ إِلَّا أَنْ يَتَوَضَّأَ» "رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الترجل / باب في الخلوق للرجال (رقم- ۴۱۸۰)

**ترجمه:** ۱ او حضرت عمار بن یاسر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل۲ دري سړي داسې دي چې د رحمت فرښتې هغوئ ته نږدې هم نه ورځي۳ ① د کافر بدن۴ ② خلوق (رنګ داره خوشبو) لګونکي۵ ③ جنب ترڅو پورې چې اودس ونه کړي. (ابوداود)

**حل اللغات:** ① جِيفَةُ: أي: جَسَدُهُ: بدن (د کافر بدن که مړ وی اوکه ژوندې وی). ② الْمُتَضَمِّخُ: أي: الرَّجُلُ الْمُتَلَطِّخُ: رنګداره خوشبو لګونکې، ③ الْخَلُوقِ: وَهُوَ طِيبٌ لَهُ صِبْغٌ يُتَّخَذُ مِنَ الزَّعْفَرَانِ :یو قسم خوشبو ده چه د زعفران نه جوړیږی اودا په سوربخن او زیړبخن رنګ کښې وی.

**د راوي مختصر تعارف:**

نوم عمار، ابوالیقطان کنیت دَ پلار نوم یاسر اودَمور نوم ئې سمیه. حضرت عمار او حضرت صهیب بن سنان په یوځائ دارقم بن ارقم په کورکښې مسلمانان شو دغه وخت پورې تقریبًا دیرش کسان مسلمانان شوی وو.(۲) دې خاندان دَ دین په خاطرډیر مشقتونه برداشت کړی. دَهغوی مور بی بی دَ اسلام په تاریخ کښې ړومبئی ښځه وه چه په دین اسلام کښې شهیده شوه. دَ پلار یاسر اودَ هغه رور عبدالله هم شهیدان شو.(۳) په یوه موقع باندې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو آل عمارتاسوته دې زیرې وی جنت ستاسو په انتظاردې.(۴)

ارباب سیرکښې اختلاف دې چه هغه دَ حبشه طرف ته هجرت کړې که نه خودَ مدینې طرف ته کړې اوحضورﷺ دَ هغه رورولی حذیفه بن الیمان انصاری سره اوکړه. په ټولو غزواتوکښې دَحضورپاك ﷺ سره شریك شوې په جنګ یمامه کښې دَهغوی یوغوږ شهیدشو. حضرت عمر رضي الله عنه په ۲۰ه کښې هغه دَ کوفې والی جوړکړې وو یوکال او نهه میاشتې په دې منصب باندې وو.

**شهادت:** په جنګ صفین کښې شهیدکړې شو کله چه هغوی ته څکلوله پئی ورکړې شو نوونی فرمائیل چه حضورﷺ فرمائیلې ووچه ستاآخری توښه به دَ دنیاپئی وی. ابن الغابد په نیزه وهلې وو او زخمی کړې وو بیایوبل شامی سړی دَ هغه سر دَ بدن نه جدا کړو (طبقات ابن سعد) حضرت علی رضي الله عنه دَ جنازې مونځ اوکړو. دغه وخت کښې دَحضرت عمار رضي الله عنه عمر ۹۱ کاله وو او په کوفه کښې هم دا ړومبې صحابی ووچه خښ شو.

**مرویات:** دَ هغه نه ۶۲ احادیث نقل دی په دوو کښې بخاری اومسلم دواړه متفق دی. صاحب دَ بخاری درې او صاحب دَ مسلم دووحدیثوکښې منفرد دی. دَ نورو حالاتودپاره اوګورئی ① اسدالغابة، تذکرة عمار بن یاسر ② طبقات ابن سعد جزء ثالث ۱۷۷ ③ فتح الباری ۱۷/۷. ④ اصابة تذکرة عماربن یاسر ⑤ مستدرك حاکم ۳۸۷/۳ ⑥ تاریخ طبری ۲۶۷۶ ⑦استیعاب ۴۳۴/۲.

**[۳۶۵] د ناپاکه کس قرآن ته د لاس اوړلو حرمت**

۳۶۵-() [۱۴] ۱ «وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ: ۲ أَنَّ فِي الْكِتَابِ الَّذِي كَتَبَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَمْرِو بْنِ حَزْمٍ: ۳ "أَنْ لَا يَمَسَّ الْقُرْآنَ إِلَّا طَاهِرٌ"». رَوَاهُ مَالِكٌ وَالدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** ۱ عبد الله بن ابي بکر بن عمرو بن حزم راوي دي ۲ چې رسول الله ﷺ چې کومه هدايت نامه د عمرو بن حزم د پاره ليکلې وه په هغه کې دا (حکم هم) ليک وو ۳ چې قرآن کريم ته دې يوازې پاك خلق لاس وروړي. (مالك، دار قطني)

**حل اللغات:** ① الْكِتَاب: دلته دکتاب نه مراد د نبی علیه السلام مکتوب خط او هدايت نامه ده،
② لَا يَمَسَّ: لاس دې ورله نه اوړی (بغير د فاصل او حائل نه).

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ لَا يَمَسَّ الْقُرْآنَ إِلَّا طَاهِرٌ:

**بې اودسه قرآن ته په لاس اوړلو کښې مذاهب:**

① دامام مالك رحمه الله په نيزلکه څنګه چه بغيرد طهارت نه قرآن لوستل جائزدی دغه شان لاس لګول هم جائزدی

**د اول فريق دليل:** د لايمسه ضمير کتاب مکنون يعنی د لوح محفوظ طرف ته راګرځولې دې اود المطهرون نه مراد فرښتې دی

داول فريق د دليل جواب د دې آيت دويم تفسير هم هغه دې په کوم کښې چې د مطهرون څخه فرشتې مراد اخستې شوی دې

**ددويم فريق دلائل:** زيربحث حديث د دوی مستدل دې بياچه کوم څيز ملصق بالقرآن دې هغه هم په لاس لګولو کښې هم د قرآن پاك په حکم کښې دې مثلاً قميص وغيره او کوم څيز چه جدا دې او قرآن په هغې کښې راغونډ کړې شوې دې لکه غلاف څادر رومال وغيره نودې سره لاس لګول جائزدی. لستونړې د انسان بدل سره وابسته دې لهذا ددې نه علاوه بل څه کپړه په لاس لګولو کښې استعمالول پکاردی. واړه ماشومان ددې حکم نه په وجه د ضرورت مستثنی دی.

② د قرآن پاك دا آيت هم د دوی مستدل دې. ﴿لَا يَمَسُّهُ إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ﴾ دلته ضمير د قرآن طرف ته راجع دې اود مطهرون نه مراد په اودس والا خلق دی په دې تفسيرسره دا آيت د جمهورود

**احتياطی خبره:** بهرحال صحيح صريح حديث اود احتياط اوادب تقاضاده چه د جمهورو په مسلك باندې عمل اوکړې شی اوبې اودسه قرآن ته لاس اونه لګوی البته په يادو باندې لوستلې شی.

[۱] اخرجه مالک فی الموطا کتاب القرآن باب الأمر بالوضوء لمن مس القرآن (رقم-۱)

## [۳۳] د سلام اچولو دپاره د اودس افضليت

۳۳-() [۱۵] ۱ «وَعَنْ نَافِعٍ، قَالَ: ۲ انْطَلَقْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ فِي حَاجَةٍ، ۳ فَقَضَى ابْنُ عُمَرَ حَاجَتَهُ، وَكَانَ مِنْ حَدِيثِهِ يَوْمَئِذٍ أَنْ قَالَ: ۴ مَرَّ رَجُلٌ فِي سِكَّةٍ مِنَ السِّكَكِ، ۵ فَلَقِيَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ خَرَجَ مِنْ غَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ، ٦ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ، ۷ حَتَّى إِذَا كَادَ الرَّجُلُ أَنْ يَتَوَارَى فِي السِّكَّةِ،

**ترجمه:** ۱ نافع رحمه الله وايي ۲ چې يوه ورځ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د استنجاء د پاره تلو زه هم ورسره ملګري شوم ۳ (اول خو) هغه استنجاء اوکړه د هغه څخه وروسته يې په هغه ورځ دا حديث بيان کړو ۴ چې يو سړي په يو کوڅه کې تلو ۵ او حضور ﷺ د وړو يا لويو بولو څخه فارغيدو سره تشريف راوړو ٦ هغه سړي د حضور ﷺ سره ملاقات وکړو او سلام يې عرض وکړو حضور ﷺ د سلام جواب ورنه کړو ۷ کوم وخت چې هغه سړي بلې کوڅې ته تاويدو.

**حل اللغات:** ① انْطَلَقْتُ: أَيْ: ذَهَبْتُ: لاړم، ② فَقَضَى: پوره ئې کړو (خپل بشرى حاجت). ③ سِكَّةٍ: أَيْ: الطُّرُقِ: کوڅه، لاره، ④ أَنْ يَتَوَارَى: أَيْ: يَخْتَفِيَ: د پټ والى په معنى کنبې دې، يعنى په کوڅه کنبې تاويدو سره د نظرنه پټيدو والاوو.

۱ ضَرَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيْهِ عَلَى الْحَائِطِ، وَمَسَحَ بِهِمَا وَجْهَهُ، ۲ ثُمَّ ضَرَبَ ضَرْبَةً أُخْرَى، فَمَسَحَ ذِرَاعَيْهِ، ۳ ثُمَّ رَدَّ عَلَى الرَّجُلِ السَّلَامَ، وَقَالَ: ۴ "إِنَّهُ لَمْ يَمْنَعْنِي أَنْ أَرُدَّ عَلَيْكَ السَّلَامَ ۵ إِلَّا أَنِّي لَمْ أَكُنْ عَلَى طُهْرٍ»). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ نو حضور ﷺ د (تيمم د پاره) خپل دواړه لاسونه په ديوال وهلو سره په مخ را تير کړه ۲ بيا (په دويم ځل) وهلو سره په خپلو لاسونو يې تر څنګلوز پورې راتير کړه ۳ د دې څخه وروسته د هغه سړي د سلام جواب يې ورکړو او وي فرمايل ۴ زه ستا د سلام د جواب د درکولو څخه څه شي نه وم منع کړي ۵ فقط دومره قدر خبره وه چې زه بې اودسه وم. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ⑤ الْحَائِطِ: ديوال.

**تسهيلات:**

**قوله:** ثُمَّ ضَرَبَ ضَرْبَةً أُخْرَى:

**د حديث څخه د دوو قاعدو استنباط:** دَدې حديث نه يوه داخبره په واضحه توګه معلومه شوه چه دَ تيمم دَپاره دوه ضربونه دی دامسئله به په تيمم کنبې راځی چه دَ احنافوپه نيز دوه ضربونه ضروری دی دَدې نه پس دَدې حديث نه دوه قاعدې مستنبط کيږي:

① دَ کوم کاردَپاره طهارت شرط نه وی يا هغه عبادت غيرمقصوده وی يعنی دَغيردَ پاره

[1] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة /باب التيمم فی الحضر (رقم- ۳۳۰)

وسیله وی دَهغې دَپاره تیمم کول جائزدی سره دَدې چه اوبه موجود وی. مثلاً جمات ته دَ داخلیدودَپاره ئی تیمم اوکړو، دَزبانی تلاوت دَپاره ئی اوکړو، دَ فقه اسلامی کتابونوته دَ لاس لګولو دَپاره ئی تیمم اوکړو یادَ شپې دَاوده کیدودَپاره ئی تیمم اوکړو داټول جائز اودَثواب اوبرکت سبب دی. رسول الله ﷺ صرف دَ سلام دَجواب دَپاره تیمم اوکړوحالانکه ددې دَپاره طهارت شرط نه دې. درمختار دا ضابطه قبوله کړې ده اګرچه امام شافعی رحمه الله په دې باندې ردکړې دې. حضرت شاه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه دا ضابطه اوقاعده صحیح ده.

۲ که دَ یوعمل دَپاره اودس ضروری وی خوهغه عمل داسې وی چه دَهغې دَ فوت کیدونه پس هغه په لاس نه شی راتلې اونه دَهغې بدل وی اونه قضامثلاً جنازه ده یادَ اخترونومونځ چه دَدې په فوت کیدوسره نه دَدې بدل ملاویدې شی نه قضاکولې شی. که دغه وخت سړې په اودس باندې لګیاشی اودَ دغه عمل دَ فوت کیدو خطره پیداکیږی نودې سړی له پکاردی چه دَ اودس په ځائی دې تیمم اوکړی سره دَدې چه اوبه موجوددی لکه څنګه چه حضورپاک دَ سلام دَ جواب دَپاره تیمم اوکړو ځکه چه دَ دغه سړی دَ تللوخطره پیداشوې وه.

**[۳٦۷] دالله پاک نوم په اودس کښې د اخستلو افضلیت**

٣٦٧-(١) [١٦] [١] «وَعَنِ الْمُهَاجِرِ بْنِ قُنْفُذٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، [٢] أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَبُولُ. فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، [٣] فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ حَتَّى تَوَضَّأَ، ثُمَّ اعْتَذَرَ إِلَيْهِ، وَقَالَ: [٤] "إِنِّي كَرِهْتُ أَنْ أَذْكُرَ اللّٰهَ إِلَّا عَلَى طُهْرٍ» " رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ. [٥] وَرَوَى النَّسَائِيُّ إِلَى قَوْلِهِ: حَتَّى تَوَضَّأَ، وَقَالَ: فَلَمَّا تَوَضَّأَ رَدَّ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او د حضرت مهاجر بن قنفذ رضی الله عنه څخه روایت دې [٢] چې دي (یووار) د حضور ﷺ په خدمت کې داسې وخت حاضر شو کوم وخت چې حضور ﷺ متیازي کولې هغه سلام عرض کې [٣] حضور ﷺ جواب ورنه کې تردې چې حضور ﷺ اودس وکړو بیا یې دا عذر بیان کې چې [٤] زه دا مکروه ګڼم چې بې اودسه د الله جل جلاله نوم ذکر کړم، ابوداؤد، [٥] او نسائي دا روایت دلفظ حَتّٰى تَوَضَّأَ (تر دې چې حضور ﷺ اودس وکړو) پورې نقل کړي دي او ویلي یې دي چې حضور ﷺ اودس وکړو نو د سلام جواب یې ورکړلو،

**حل اللغات:** ۱ اعْتَذَرَ: عذر ئې اوکړو، ۲ كَرِهْتُ: مکروه ګڼړم، بد ګڼړم.

(١) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة . باب أیرد السلام وهو یبول (رقم- ١٧) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب الرجل یسلم علیه وهو یبول (رقم- ٣٥٠) والنسائی کتاب الطهارة/باب رد السلام بعد الوضوء(رقم-٣٨)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۶۸] د جنابت په حالت كښې خوب كول

۳۶۸ــ(۱) [۱۷] ① عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ②«كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ يُجْنِبُ، ثُمَّ يَنَامُ، ③ ثُمَّ يَنْتَبِهُ، ثُمَّ يَنَامُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① بي بي ام سلمه رضي الله عنها فرمايي ② چې رسول الله ﷺ به د ناپاكۍ په حالت كې اوده كيدي ③ اوبيا به ويښيدي او اوده كيدي، احمد

**حل اللغات:** ① يُجْنِبُ: دجنابت په حالت كښې به وو ② يَنْتَبِهُ: رابيدار به شو، ويخ به شو.

## [۳۶۹] دغسل جنابت څخه وړاندې د لاسونو وينځل

۳۶۹ــ(۲) [۱۸] ①«وَعَنْ شُعْبَةَ، قَالَ: ② إِنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ ③ يُفْرِغُ بِيَدِهِ الْيُمْنَى عَلَى يَدِهِ الْيُسْرَى سَبْعَ مِرَارٍ، ثُمَّ يَغْسِلُ فَرْجَهُ، ④ فَنَسِيَ مَرَّةً كَمْ أَفْرَغَ، فَسَأَلَنِي. فَقُلْتُ: لَا أَدْرِي. ⑤ فَقَالَ: لَا أُمَّ لَكَ! وَمَا يَمْنَعُكَ أَنْ تَدْرِيَ؟ ⑥ ثُمَّ يَتَوَضَّأُ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ، ثُمَّ يُفِيضُ عَلَى جِلْدِهِ الْمَاءَ، ⑦ ثُمَّ يَقُولُ: هٰكَذَا كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَطَهَّرُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① شعبه راوي دي ② چې ابن عباس رضي الله عنه به د ناپاكۍ غسل كولو ③ نو مخكې به يې په خپل ښي لاس سره په ګس لاس باندې اووه ځله اوبه اچولي بيا به يې خپل شرم ګاه وينځله، ④ يو ځل ځني دا هير شو چې څو ځله يې اوبه اچولي دي نو هغه زما څخه پوښتنه وكړه ما عرض وكړو ماته ياد نه دي ⑤ هغه وفرمايل مور دې مړه شه ته كوم شي د ياد ساتلو څخه منع كړي وي ⑥ بيا د لمانځه د اودس په شان يې اودس اوكړواو په خپل ټول بدن باندې يې اوبه وبهيولي او وي ويل چې رسول الله ﷺ به هم دغسې پاك كيدلو (يعنى غسل به ئې كولو) ابوداؤد

**حل اللغات:** ① يُفْرِغُ: دا د افراغ نه دي، بِمَعْنَى الصَّبِّ: اوبه اچولو ته وائي. ② لَا أَدْرِي: ماته علم نشته، ماته ياد نه دی. ③ لَا أُمَّ لَكَ: مَعْنَاهُ أَنْتَ لَقِيطٌ: ستاد مور پته نشته ته لقيط نی، اكثر د ذم دپاره استعماليږی. ④ يُفِيضُ: دا د افاضه نه دي، أَيْ: يَصُبُّ: يعنی اوبه به ئې اچولې، ⑤ جِلْدِهِ: څرمن، ددې نه مراد ټول بدن دې وېښته هم پكښې شامل دی.

### د راوي مختصر تعارف:

دهغه نوم شعبة بن الحجاج بن الوردالعتكى دي. سفيان ثورى رحمه الله فرمائى چه شعبة امير المؤمنين فى الحديث دي، ۱۶۰ھ كښې وفات شوی. د نورو حالاتودَ پاره اوګورئ (التقريب،تهذيب التهذيب:۴/۳۳۶-۳۳۸،تذكرة الحفاظ:۱/۱۷۴،الجرح والتعديل: ۲/۳۲۹).

[1] اخرجه احمد فى المسند رقم(۶/۲۹۸)
[2] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب فى الغسل من الجنابة (رقم- ۲۴۶)

**تسهيلات:**

**قوله: سَبْعَ مِرَارٍ:**

**د ابن عباس داووه ځله وينځلو توجيه:** اووه ځل اوبه بهيولوسره دَ لاسونووينځلودَپاره هيڅ حديث نشته. دَحضورپاك عمل دَ مطلق وينځلوهم دې اودوه يادرې ځل دَ وينځلوهم دې دَاووه ځلو ذكرنشته دې. كيدې شي چه حضرت ابن عباس رضي الله عنه دَ يومخصوص ضرورت دَپاره داسې كړې وى دَ دې نه دَ شريعت ضابطه نه شي جوړولې دا څه مخصوص جزئى معامله ده.

**قوله: لَا أُمَّ لَكَ:**

**د دوو كلمو استعمال اومطلب:** ① دا كلمه په مذمت كښې استعماليږى د دې كلمې مطلب دادې چه ته لقيط ئى ستادَ مور پته نشته

② "لا اب لك" اكثر په مدح كښې استعماليږى. دَ دې كلمې مطلب دادې چه ته پخپله مستقل سړې ئى تاته دَپلارڅه ضرورت دې كه پلاروى هم نه نوته پخپله پلارئى دَادَمدح اوتعريف اړخ دې.

**[۴۷۰] د هر جماع څخه وروسته غسل كول**

۴۷۰ــ( ) [۱۹] [۱] «وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: [۲] إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَافَ ذَاتَ يَوْمٍ عَلَى نِسَائِهِ، [۳] يَغْتَسِلُ عِنْدَ هَذِهِ، وَعِنْدَ هَذِهِ، [۴] قَالَ: فَقُلْتُ لَهُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَلَا تَجْعَلُهُ غُسْلًا وَاحِدًا آخِرًا؟ [۵] قَالَ: "هَذَا أَزْكَى وَأَطْيَبُ وَأَطْهَرُ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ابـو رافـع رضي الله عنه وايـي [۲] چـې رسـول الله ﷺ يـوه ورځ خپلـو ټولـو بيبيـانو تـه راغـې (يعني د ټولو سره يې جماع وكړه) [۳] او د هري بي بي سره د جماع څخه فارغيدو سره (جدا جدا) غسل يې وكړو، [۴] ابو رافع رضي الله عنه وايي ماعرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ تا په آخر كې يو ځل غسل ولې ونه كړو [۵] حضور ﷺ وفرمايل دا (يعني د هرجماع څخه وروسته غسل كول) ښه پاكي كوي (د نفس د پاره) ډير پاكونكي دي او بدن ښه صفا كوي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① طَافَ: أَيْ: يَدُورُ: ټولو ته به ورتل (دا كنايه ده د جماع نه). ② عِنْدَ هَذِهِ وَعِنْدَ هَذِهِ: يعني هر يوې بى بى كره به ني جدا جدا غسل كولو. ③ أَزْكَى: أَيْ: أَنْمَى، وَأَقْوَى: يعني بدن لره ډير پاكوى او مضبوطوى. ④ أَطْيَبُ: أَيْ: أَلَذُّ وَأَخَفُّ عَلَى الْبَدَنِ: د بدن ذوق تازه كوى او بدن سپكوى. ⑤ أَطْهَرُ: أَيْ: أَنْظَفُ وَأَحْسَنُ: بدن صفا كوى او ښائسته كوى.

---

[1] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب الوضوء لمن أراد أن يعود (رقم- ۲۱۹) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب فيمن يغتسل عند كل واحدة غسلا (ر قم- ۵۹۰)

## [۴۷۱] د ښځې په پاتې شوو اوبو باندې د غسل کولو ممانعت

۴۷۱-(۱)[۲۰] ① وَعَنِ الْحَكَمِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَتَوَضَّأَ الرَّجُلُ بِفَضْلِ طَهُورِ الْمَرْأَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالتِّرْمِذِيُّ ③ وَزَادَ: أَوْ قَالَ: بِسُؤْرِهَا، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** ① او حکم بن عمرو رضی الله عنه فرمايي ② چې رسول الله ﷺ د ښځې د غسل يا اودس پاتې شوې اوبو سره سړي د اودس کولو څخه منع کړې دي، (ابوداؤد ابن ماجه ترمذي) ③ او ترمذي دا الفاظ زائد نقل کړي دي چې يا حضور ﷺ د ښځې د اودس د بقيه اوبو څخه منع وفرمايله او ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن صحيح دی.

**حل اللغات:** ① طَهُورِ الْمَرْأَةِ: دښځې د اودس يا د غسل اوبه، ② بِسُؤْرِهَا: بَقِيَّةُ الشَّيْءِ: باقي پاتې څيز ته وائي يعني جوټه شوي،

## [۴۷۲] دښځې دپاره د سړي په پاتې شوو اوبو د غسل ممانعت

۴۷۲-(۲)[۲۱] ① وَعَنْ حُمَيْدٍ الْحِمْيَرِيِّ، قَالَ: ② لَقِيتُ رَجُلًا صَحِبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَ سِنِينَ، كَمَا صَحِبَهُ أَبُو هُرَيْرَةَ، ③ قَالَ: «نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَغْتَسِلَ الْمَرْأَةُ بِفَضْلِ الرَّجُلِ، ④ أَوْ يَغْتَسِلَ الرَّجُلُ بِفَضْلِ الْمَرْأَةِ. ⑤ زَادَ مُسَدَّدٌ: وَلْيَغْتَرِفَا جَمِيعًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ ⑥ وَزَادَ أَحْمَدُ فِي أَوَّلِهِ: «نَهَى أَنْ يَمْتَشِطَ أَحَدُنَا كُلَّ يَوْمٍ، أَوْ يَبُولَ فِي مُغْتَسَلِهِ».

**ترجمه:** ① او حميد حميري رحمه الله فرمايي ② چې زه د يوسړي سره ملاؤشوم چې د ابوهريره رضی الله عنه پشان څلور کاله د حضور ﷺ په خدمت اقدس کې پاتې شوې وو ③ هغه اوويل چې حضور ﷺ د دې څخه منع فرمايلې ده چې ښځه د سړي د غسل څخه پاتې شوې اوبو سره ولمبيږي ④ يا سړي د ښځې د غسل څخه پاتې شوو اوبو سره ولمبيږي، ⑤ (يو راوي) مسدد رحمه الله دا الفاظ زائد نقل کړي دي، که دواړه يو ځاي کيدو سره (جدا جدا) لپو اخستو سره ولمبيږي نو جائز دي، ابوداؤد نسائي، ⑥ او امام احمد رحمه الله د دې روايت په شروع کې دا الفاظ زائد نقل کړي دي چې حضور ﷺ د دې څخه (هم) منع فرمايلې ده چې يو سړي هره ورځ ګمنزکوي او د لمبيدلو په ځاي کښې متيازي کوي، او ابن ماجه رحمه الله دا روايت د عبد الله بن سرجس رضی الله عنه څخه نقل کړي دي.

---

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة . باب النهى عن ذلک (رقم- ۸۲) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب النهى عن ذلک (رقم- ۳۷۳) والترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى كراهية فضل طهور المرأة (رقم- ۶۴)

[۲] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة . باب النهى عن ذلک (رقم- ۸۱) والنسائى كتاب الطهارة/باب ذكر النهى عن الاغتسال بفضل الجنب(رقم-۲۳۸)

**حل اللغات:** ① صَحِبَ: صُحبت او ملګرتیا ئې کړې ده، ② بِفَضْلِ الرَّجُلِ: د سړي د اودس یا غسل نه باقي پاتې شوې اوبه، ③ وَلْيَغْتَرِفَا: دواړه ترې لپې اخلي، ددې نه په ظاهر کښې دښځې اوخاوند په يوځای لپې اخستل معلومیږي خو احتمال د جدا لپو اخستلو هم لري ④ يَمْتَشِطَ: أي: يُسَرِّحُ شَعْرَ لِحْيَتِهِ وَرَأْسِهِ: چه ګومنځ کوي (ویښته د سر او ږيرې)

| |
|---|
| ۴۷۳-()[۰] ① وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَرْجِسَ. |

**ترجمه:** ① او ابن ماجه رحمه الله دا روايت د عبد الله بن سرجس رضي الله عنه څخه نقل کړې دي.

# [۷/۱۲] بَابُ أَحْكَامِ الْمِيَاهِ

## دَاوبو مسائل

**خلاصة الباب:**

**فيه أربعة عشر حديثاً مشتملة على ثمانى مسائل:**

① النهي عن البول في الماء القليل : ۱، ۲.
② النهي عن الاغتسال في الماء القليل: ۱.
③ شرب ماء الوضوء: ۳.
④ عدم نجاسة الماء الكثير بوقوع النجاسة فيه: ۴، ۵، ۶.
⑤ حكم الوضوء بالنبيذ: ۷.
⑥ حكم سؤرة الهرة: ۸، ۹.
⑦ حكم سؤرة الحمار والسبع : ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳.
⑧ حكم الماء المشمش: ۱۴.

**دمیاه عموم:** دلته میاه دَ جمع صیغه راوړلې شوې ده په کوم سره چه اشاره کیږي چه که اوبه دَباران وي که دکوهي او دَنهر وي اوکه دَسمندر او دَدریاب وي اوکه دَ چینو وي دِیرې وي که لږې وي مستعمل وي که غیرمستعمل دَټولو احکام به بیانیږي.

**داسلامي احکامو حکمتونه:** دَ اسلام په احکاموکښې عجیبه حکمت وي مثلاً دَ اودس په شروع کښې دَ لاس وینځلوحکم دې دې دَپاره چه په لاس باندې اندازه اوشي چه اوبه خوټکیدلې سختې ګرمې یا سختې یخې خونه دي کله چه معلومه شوه چه دَاستعمال قابل دي نوبیائي په خله کښې دَاچولوحکم اوکړودې دَپاره چه معلومه شي چه دااوبه دي خوروا یا شربت وغیره نه دې. بیائي په پوزه کښې دَاچولوحکم اوکړوچه معلومه شي بدبویه یا سخاخونه دي کله چه ښه تسلي اوشوه نو حکم اوشو چه اوس ئې په مخ واچوه.

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب النهي عن ذلك (رقم- ۳۷٤)

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۴۷۳] په اوبو كښې د متيازو كولو حرمت

۴۷۳- ()[ ۱ ] ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② ( «لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ الَّذِي لَا يَجْرِي، ③ ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ④وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ: " «لَا يَغْتَسِلْ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ وَهُوَ جُنُبٌ". ⑤قَالُوا: كَيْفَ يَفْعَلُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ؟ قَالَ: يَتَنَاوَلُهُ تَنَاوُلًا».

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② په تاسو کې دي يو سړي په هغه ولاړو اوبو کې چې بهيدونکي نه وي متيازي نه کوي③ چې بيا په هغې کښې غسل وکړي [يعني يو عقلمند څخه دا بعيده ده چې هغه په اوبو کې متيازي وکړي او بيا په هغه اوبو کښې غسل وکړي] بخاري مسلم،④ د مسلم د يو روايت الفاظ دادي چې حضور ﷺ وفرمايل په تاسو کې دي يو سړي د ناپاکۍ په حالت کې په ولاړو اوبو کې غسل نه کوي (چې اوبه ناپاکي نه شي)⑤ خلقو اوويل اي ابوهريره رضي الله عنه بيا څرنګه لمبيدل پکار دي؟ هغه وفرمايل هغه څخه دي لږې لږې اوبه (په لپه) رااخلي او د اوبو څخه بهر دي لمبيږي.

**حل اللغات:** ① الْمَاءِ الدَّائِمِ الَّذِي لَا يَجْرِي: أَيْ: الرَّاكِدِ: ولاړې اوبه.

**تسهيلات:**

**قوله: فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ:**

**د ماء دائم او راكد په تعريف كښې دوه اقوال:**

① دې روايت كښې د دائم لفظ دې. او دحضرت جابر رضي الله عنه په راتلونكى روايت كښې د راكد لفظ راغلى دې. دعامو علماء كرامو په نيز د دائم او راكد مطلب الذي لا يجري دې. دا د دائم دپاره د صفت كاشفه ده چې د دائم نه مراد غير جاري اوبه دى.

② شاه انور شاه كشميرى رحمة الله عليه فرمائى چې ماء دائم او راكد نه مراد هغه اوبه دى كومې چه غير منقطع وى يعنى دائمى وى او نه ختميدونكې اوبه وى كه هغه جارى وى او كه جارى نه وى. نو دلته د الذي لا يجري كوم الفاظ دى. دا څه قيد احترازى نه دې، دا بيان تعريف دپاره دې بلكه د ماء دائم يو قسم دپاره دا قيد لګولې شوې دې چې د دائم يو قسم هغه كوم الذي لا يجري دې.

**په ماء راكد كښې د متيازو كولو د ممانعت وجوهات:**

① اوبو كښې متيازې كول د انسانى شرافت خلاف دى. نو ددې نه منع كړې شوې ده.

[۱] اخرجه البخارى كتاب الوضوء باب البول فى الماء الدائم (رقم-۲۳۹) ومسلم كتاب الطهارة باب النهى عن البول فى الماء الراكد رقم(۹۹۵ - (۲۸۲)

③ دائم او راكد اوبو كښې متيازې كولو نه په دې وجه منع كړې شوې ده چه كه چرې د اقليل وى نو متيازو سره به نجسې شى. او كه كثير وى نو كله چې يو كس په اوبو كښې په متيازو كولو سره اووينى نو بل به ئې هم كوى. داشان به آخر اوبه خرابې شى .

② **قوله: ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ**

**د يغتسل په صيغه كښې دوه اقوال:** ① ديغتسل صيغه د مشهور روايت مطابق مرفوع ده. يعنى ﴿ لايبل ثم هو يغتسل فيه﴾ نو دا دَ لايبولن په پوره جمله باندې عطف دې. په دې صورت كښې به مفهوم دا وى چې هيڅوك دې په ولاړو اوبو كښې متيازې نه كوى. او د اځومره غيرمعقوله خبره ده چې اول ئې متيازې اوكړې او بيا په كښې غسل كوى. په دې صورت كښې ثم د استبعاد او تعجب دپاره كيديشى.

② بعضې علماؤ دا صيغه په جزم سره لوستلې ده اودا ئې دَ لانهى ماتحت په يبولن باندې عطف كړې ده. او دواړو جملو لره د نهى ماتحت داخل كړې دى. په دې صورت كښې به د حديث پاك مفهوم به داشان وى چې هيڅوك دې نه په ولاړو اوبو كښې متيازې كوى او نه دې په ولاړو اوبو كښې غسل كوى. په دې صورت كښې د دواړو خبرو نه منع كړې شوې ده. خينې علماء كرامو د ثم نه پس أن لره مقدر منلې دې او دا ئې منصوب لوستلې دې.

**[۴۷۵] په ولاړو اوبو كښې د متيازو كولو ممانعت**

| |
|---|
| ۴۷۵-(¹) [۲] ①وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ②«نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُبَالَ فِي الْمَاءِ الرَّاكِدِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |

**ترجمه:** ① حضرت جابر ﷺ راوي دي② چې رسول الله ﷺ په ولاړو اوبو كې د متيازو كولو څخه منع فرمايلي ده. ( مسلم )

**حل اللغات:** ① الرَّاكِدِ: أَيِ: الْوَاقِفِ: ولاړې اوبه.

**[۴۷۶] د رسول الله د اودس څخه د پاتې اوبو څكل**

| |
|---|
| ۴۷۶-(²) [۳] ①«وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ②ذَهَبَتْ بِي خَالَتِي إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ ابْنَ أُخْتِي وَجِعٌ، ③فَمَسَحَ رَأْسِي، وَدَعَا بِالْبَرَكَةِ، ثُمَّ تَوَضَّأَ، فَشَرِبْتُ مِنْ وَضُوئِهِ ④ ثُمَّ قُمْتُ خَلْفَ ظَهْرِهِ، فَنَظَرْتُ إِلَى خَاتَمِ النُّبُوَّةِ ⑤ بَيْنَ كَتِفَيْهِ مِثْلَ زِرِّ الْحَجَلَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه:** ① سائب بن يزيد ﷺ وايي② چې زما خاله (د مور خور) زه د حضور ﷺ په خدمت كې حاضر كړم هغې عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ دا زما خوريي دې اوبيمار دي③ نو حضور ﷺ خپل لاس مبارك زما په سر راتير كړواو زما د پاره يي د بركت دعا وكړه بيا

(¹) اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب النهى عن البول فى الماء الراكد رقم(۹۴ - (۲۸۱) واحمد فى مسنده ۳/ ۳۵۰

(²) اخرجه البخارى كتاب الوضوء باب استعمال فضل وضوء الناس (رقم-۱۹۰)

حضور ﷺ اودس وکړو او ما د حضور ﷺ د اودس اوبه وڅښلي ④ د دې څخه وروسته زه د حضور ﷺ شا طرفته ودريدم اومهر نبوت مي اوليدلو⑤ چې د حضور ﷺ د اوږو په مينځ کې وو او د ناوي د چپرکټ د بټن پشان بريښيدي. بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① خَالَتِي: ترور (د مور خور)، ② وَجِعٌ: أَيْ: مَرِيضٌ: بيمار، ③ زِرٌّ: بټن ④ الْحَجَلَةِ: د ناوي دولي.

## د راوي مختصر تعارف:

نوم سائب دَ پلار نوم يزيد بن سعيد بن ثمامه کندي دې. امام زهري رحمه الله فرماني دې دَ قبيله ازد (دَ يمن اوسيدونکې) وو خودَ هغه شمير په کنانه کښې کولې شو دې دَ عمر کندي خوريئي دې.

په کال ۲۰هـ کښې پيدا شو دَ اووه کالوپه عمرکښې خپل پلار سره په حجة الوداع کښې شريك شو دَهغوى نه زهري او محمدبن يوسف عموما روايت نقل کوي.

**مرويات:** دَ هغه نه ډير روايتونه نقل دي. **وفات:** دَ هغه وفات په ۸۰هـ کښې شوې.

**تسهيلات:**

**قوله: فَشَرِبْتُ مِنْ وَضُوئِهِ:**

**په وضوء کښې اعرابات ثلاثه:** ① وضو کښې د واؤ په ضمه سره د اودس عمل ته وائي.

② د واو په فتحه داودس کولونه پس په لوښى کښې پاتې شوې اوبو ته وائي

③ په واؤ باندې کسره وئيلو سره د اوبو لوښې ته وائي

**د مذکوره حديث په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې ليکلي دى چې ددې حديث پاك بل مفهوم دادې چې د نبى کريم ﷺ د اودس د اعضاؤ نه کومې اوبه لاندې توې شوې وې ما هغه راواخستې او هغه مې اوڅکلې، شيخ فرمائى چې ډيرو علماء کرامو هم دا مفهوم اختيار کړې دې.

② دلته که واؤ باندې فتحه ده نو ددې نه مراد دادې چې نبى کريم ﷺ نه کومې اوبه پاتې شوې هغه مې په طور د تبرك اوڅکلې. په دې کښې هيڅ قسمه شك وشبه نشته دې. او ډيرو علماء کرامو د حديث هم دا مطلب اخستې دې.

**نوټ:** دلته د مستعملو اوبو د استعمال مسئله کښې د فقهاء کرامو اختلاف رامخکښې کيږي. او ددې تفصيل به انشاء الله روستو راشي.

دلته کښې ماء مستعمل وئيل هم مشکل دى. ځکه چې کومې اوبه د نبى کريم ﷺ د بدن مبارك نه جدا شوې خو دَ برکت باعث وې او صحابه کرامو به په دې باندې جګړې کولې. دا دَ نبى کريم ﷺ خصوصيت وو . شيخ عبدالحق رحمه الله هم ددې حديث په تشريح کښې ليکلي چې د اکثرو علماء کرامو په نيز دنبى کريم ﷺ فضلات پاك وو نو دَ مستعمل اوبو به

څه وائی. [اشعة المعات: ۱/۲٦۱]

**قوله: خَاتَمِ النُّبُوَّةِ:**

**د مهر نبوت تعارف:** دا دنبی کریم ﷺ د نبوت نښه وه. دې ته مهر نبوت او ختم نبوت وائی. دا دَ نبی کریم ﷺ د اوږو په مينځ کښې دګسې اوږې د غضروف هډوکی لاندې وو. دا د نبی کریم ﷺ د بدن مبارك يو راوتلې ډيره ښکلې حصه وه. وړاندينی کتابونو کښې ددې ذکر موجود وو. په دې وجه به اهل کتابو خاصکر د اکتله.

**د مهر نبوت جوړيدو په زمانه کښې دوه اقوال:**

① دځينو علماء کرامو خيال دادې چې دشق صدر د وخت نه د امهر نبوت ظاهر شوې وو. او د وفات په وخت کښې په بدن مبارك کښې غائب شوې وو.

② دَ ځينې علماء کرامو رائې ده چې دا ختم نبوت د پيدائش د وخت نه د نبی کريم ﷺ په بدن مبارك باندې وو. يو ضعيف قول دې چې مهر نبوت باندې دا عبارت ليکلی شوې وو (محمد رسول الله ﷺ). (سرفائت منصور)

**قوله: زِرِّ الْحَجَلَةِ:**

**دزر الحجلة معنی:** حجله هغه چپرکټ ته وائی چې د ناوې دپاره ښائسته کولې شی. په دې باندې ښکلې پردې لګولې کيږی. او په دې کښې چې کومې تنړنۍ وی هغې ته زر وائی چه جمع ئې أزرار ده. ځينو دا لفظ د را په تقديم سره رز الحبلة وئيلې دې. رز اګۍ ته وائی. او حجلة تيتر ته وائی يعنیَ ختم نبوت د تيتر دَ اګۍ برابر مقدار کښې وو

**د مهر نبوت په نقشه کښې تعارض اوتطبيق:** دَ مهر نبوت دَ مقدار او حجم باره کښې مختلف الفاظ راغلی دی. ټولو کښې تعارض معلوميږی. ليکن دا څه تعارض نه دې، هر يو راوی د خپل خپل انداز مطابق اظهارخيال کړې دې. او تشبيه ئې ورکړې ده. زيات واضح د کونترې يا تيتر اګۍ سره تشبيه ده.

# الْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۷۷] د ډيرو اوبو نه پليتيدل**

۴۷۷-(۱) [۴] ⟨۱⟩ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ⟨۲⟩ «سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمَاءِ يَكُونُ فِي الْفَلَاةِ مِنَ الْأَرْضِ ⟨۳⟩ وَمَا يَنُوبُهُ مِنَ الدَّوَابِّ وَالسِّبَاعِ ⟨۴⟩ فَقَالَ: (إِذَا كَانَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ لَمْ يَحْمِلِ الْخَبَثَ)». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. ⟨۵⟩ وَفِي أُخْرَى لِأَبِي دَاوُدَ: "فَإِنَّهُ لَا يَنْجُسُ".

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة . باب ما ينجس الماء (رقم- ٦٣) والنسائی كتاب الطهارة . باب التوقيت فی الماء (رقم- ۵۲) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب مقدار الماء الذی لا ينجس (رقم- ۵۱۷) والترمذی كتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب منه آخر (رقم-٦٧)

ترجمه: [۱] ابن عمر رضي الله عنه فرمايي [۲] چې د رسول الله ﷺ څخه د هغه اوبو د حکم پوښتنه وشوه چې په ځنګل کې په زمکه جمع کيږي[۳] او اکثره چوپايه، درندې په هغې راځي [يعنې حيوانات وغيره چې هغه اوبه څکي نو په هغه کې متيازې وغيره هم کوي]. [۴] حضور ﷺ وفرمايل که اوبه د دوه قُلو په اندازه وي نو هغې ناپاکي نه قبلوي (يعنې په نجاست وغيره سره نه ناپاکه کيږي) احمد ابوداؤد، ترمذي، نسائي دارمي ابن ماجه، [۵] او د ابوداؤد د يو دويم روايت الفاظ دا دي چې هغه اوبه ناپاکه کيږي نه.

**حل اللغات:** ① الْفَلَاةِ : أَيْ: فِي الصَّحْرَاءِ: کهلاؤ ميدان، فضاء، ② يَنُوبُهُ : څي راځي، ③ الدَّوَابُّ: څاروی، ④ السِّبَاعِ: د رنده ګان، شلونکی ځناور ⑤ قُلَّتَيْنِ : د قُلَّةٌ تثنيه ده، أي الجَرَّةُ الكَبِيرَةُ: لوئي چاټۍ، ته وائی. ⑥ لَمْ يَحْمِلِ الْخَبَثَ: أي لَمْ يَنْجُسْ: نه پليتيږي

**[۴۷۸] د بئر بضاعه په اوبو د اودس کولو حکم**

۴۷۸-() [۵] [۱] «وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: [۲] قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ، أَنَتَوَضَّأُ مِنْ بِئْرِ بُضَاعَةَ، [۳] وَهِيَ بِئْرٌ يُلْقَى فِيهَا الْحِيَضُ، وَلُحُومُ الْكِلَابِ، وَالنَّتْنُ؟ [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الْمَاءَ طَهُورٌ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

ترجمه: [۱] ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دي [۲] چې رسول ﷺ ته چا عرض وکړو يا رسول الله ﷺ آيا مونږ د بضاعه کوهی (د اوبوسره) اودس کولې شو؟ [۳] (حال دا چې) په هغې حوض کې د حيض (د وينې څخه ډکې) کپړې ،د سپو غوښې او ګندګي اچول کيږي [۴] حضور ﷺ وفرمايل (د هغه کوهی اوبه) پاکې دي (ترڅو پورې چې د هغې په رنګ وخوند او بوی کې فرق رانشي) هيڅ شي يې نشي ناپاکه کولې. (احمد ترمذي ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** ① بِئْرِ بُضَاعَةَ: په مدينه کښې د يو مشهور کوهی نوم دي. ② الْحِيَضُ: د حَيْضَةٍ جمع ده، هغه کپړه چه ښځه ئې دحيض په وخت استعمالوی، ③ وَالنَّتْنُ: وَهِيَ الرَّائِحَةُ الْكَرِيهَةُ: بد بوئ ته وائی، دلته ترې بد بويه ګنده څيزونه مراد دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا كَانَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ الخ: حديث بئر بضاعه او حديث قلتين چونکه دواړه په اوبو کښې د نجاست غورزيدو اوبيا د اوبو پاك پاتې کيدو او يا ناپاکه کيدو متعلق دی. په دې وجه په عمومی توګه ددې دواړو تشريح يو ځائې کيږی. او د ترتيب په اعتبار سره د حديث بئر بضاعه تفصيل اول کيږی. او حديث قلتين روستو. حالانکه مشکوة کښې د

[۱] اخرجه الترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء أن الماء لا ينجسه شیء (رقم- ۶۶) وابوداود کتاب الطهارة ، باب ما جاء فی بئر بضاعة (رقم- ۶۶) والنسائی کتاب المياه/باب ذکر بئر بضاعة(رقم- ۳۲۶)باب ذکر بئر بضاعة (رقم- ۳۲۶)

ذکر په اعتبار سره حدیث قلتین اول او حدیث بئر بضاعه روستو دې لیکن ددې معروف ترتیب لحاظ سره دلته هم اول په بئربضاعة باندې بحث او تحقیق لیکلې کیږی.

## د نجاست په پریوتو د اوبو په حکم کښې مذاهب:

اوداوبود طهارت اونجاست مسئله د فقهاء په مینځ کښې معرکة الارء مسائلوکښې ده.او ددې په باره کښې دفقهاؤ اقوال دشلوڅخه هم متجاوز دی.دې مسئله کښې مشهور مذاهب څلور دی.

① حضرت عائشه رضي الله عنها حسن بصری رحمه الله او داؤدظاهری رحمه الله ته داخبره منسوب ده چه اوبه که قلیل وی اوکه کثیرچه دې کښې نجاست پریوځی نودا به ترهغه نجس نه وی اومطهربه وی ترکومې چه ددې طبیعت یعنی رقت اوسیلانیت ختم شوې نه وی.اګرچه ددې اوصاف ثلاثه متغیرشوې وی.د دې مذهب خاوندانو رقت او سیلان حد مقرر کړې دې.حدیث الباب د دې حضراتو مستدل دې.

حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه که دامسلك دحضرت عائشه رضي الله عنها څخه ثابت وې نودابه قوی ترین مسلك وو.ځکه چه حضرت عائشه رضي الله عنها اعلم بمسائل المیاء وه.او دې معامله کښې به حضرت نبی کریم ﷺ ته په کثرت مراجعت کیدلوخو صحیح داده.چه دا مسلك دحضرت عائشه رضي الله عنها څخه روایت ثابت نه دې.

② د ټولو محدثینو او فقهاؤ رحمهم الله په نیز که اوبه قلیل وی نو د نجاست په پریوتلو دا پلیتیږی.اوکه کثیر وی نو چې ترڅو د اوبو څه صفت بدل شوې نه وی.نه پلیتیږی.بیا د دوی په مینځ کښې د قلیل او کثیر په تعین کښې اختلاف دې.

**د عدم نجاست دلائل:** ① ((وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً)) د دې آیت څخه معلومه شوه چې اوبه پاکې دی نه پلیتیږی.بیااهل ظواهردا آیت په خپل اطلاق باندې ساتلې دې.چې ترڅو پورې د اوبو طبیعت باقی وی چې رقت اوسیلان دې.نواوبه نه پلیتیږی.اومالکیانو په کښې د ابن ماجه د روایت په وجه تقیید کړې دې چې ((الماءطهورلاینجسه شئ الا ماغلب علی طعمه اولونه اوریحه))(1)

**جواب:** په دې آیت کښې د خلقت بیان دې.چې اوبه خلقة پاکې دی دا مطلب نه دې چې اوبه نه پلیتیږی.

② قوله تعالی((فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا)) دلته ،،ماء،، نکره ده.او د نفی لاندې واقع شوې ده.نو مطلب دا دې چې کله هیڅ قسم اوبه نه وی نو تیمم جائز دې ګنی نه دې.اوبه کومو اوبو کښې چې وقوع د نجاست وی هغه هم اوبه وی.نوچې هغه موجود وی.نوهم به تیمم نه کیږی.

---

(1) ابن ماجة ص.۴۰)-

**جواب:** دلته د ماء څخه مآء طاهر مراد دی.یعنی هغه اوبه چې د استعمال قابلې وی.

④ داهل ظواهرو دریم دلیل حدیث الباب دې.په کوم کښې چې دا راغلی دی.((ان الماء طهور لاینجسه شئ )) دلته اوبه مطلق دې.د قلیل او کثیر قید په کښې نشته.نوپه وقوع د نجاست اوبه نه پلتیږی.

**جواب:** چونکه دا حدیث دامام مالك رحمه الله مستدل هم دې.روستو په دویم بحث کښې چې کله مونږ د امام مالك رحمه الله په دلائلو څخه جواب کوو نود دې دلیل څخه به هم جواب ورکوو.هغه به د اهل ظواهرو دپاره هم جواب شی.(فلاتنساه)

**د قلیل اوکثیر په تعریف کښې مذاهب:**

بیا د محدثیو اوفقهاؤ په خپل مینځ کښې په قلیل او کثیر کښې مذاهب دی د هریو مذهب تفصیل دا دې.

① د امام مالك رحمه الله فرمائی چې د اوبوقلت اوکثرت امر اضافی دې.که که په اوبو کښې د نجاست اثر ښکاره شی نو دغه اوبه د پاکئ په مقابله کښې قلیل دی.نواوبه په په وقوع د نجاست پلیتیږی.اوکه د نجاست اثر په کښې ښکاره نه شو.نودغه اوبه د پاکئ په مقابله کښې کثیر دی نونه به پلیتیږی.مثلاً په یوه لوټه کښې دوه درې څاکی پریوځی نو ښکاره خبره ده چې د دې اثر په اوبو کښې نه ښکاره کیږی.نودا اوبه د دوی په نیز نه پلیتیږی.

خلاصه دا چې د دوی په نیز د قلیل اوکثیر مدار په ظهور الاثر اوعدمه باندې دې.

② د امام شافعی رحمه الله او د امام احمد رحمه الله په نیز د قلیل اوکثیرمدار په قلتین باندې دې.

یعنی کومې اوبه چې قلتین ته رسیږی.نوهغه کثیر دی.په وقوع د نجاست نه پلتیږی. او کومې چې د قلتین څخه کمې وی.نوهغه قلیل دې.د نجاست په وقوع پلیتیږی.که د اوبو څه صفت بدل شوې وې اوکه نه وی.خلاصه دا چې ددوی په نیز مدار دقلیل او کثیر په قلتین دې.تردې چه امام نووی رحمه الله لیکی چه که یوقلة اوبوکښې نجاست اوغورزیږی نو دابه نجس وی.خوکه دې کښې یوه قلة طاهری اوبه شامل کړې شی.نو ټولې اوبه به پاکې شی.اوکه دې څخه پس دوباره دا دواړه جُداجُدا کړې شی.نوهغه پلیتی به نه راواپس کیږی.

③ د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د قلیل او کثیر مدار د اوبو په بهیدلو باندې دې که د اوبو بهیدل او اوږدوالې دومره وی چې د یو طرف حرکت بل طرف ته نه رسیږی.نودا اوبه کثیر دی.اوکه رسیږی نو دا اوبه قلیل دی.د دوی د مسلك څخه تعبیر په ((خلوص الاثر وعدمه)) دې.یعنی د یوطرف اثر بل طرف ته رسیدل او نه رسیدل.

بیا هرکله چې دا مسئله د عوامو دپاره ګرانه وه نو طالبانو د امام محمد رحمه الله څخه د دې د تعین په باره کښې تپوس اوکړو.هغوی چې په کوم جمات کښې درس ورکولو.نوهغې طرف ته ئې اشاره اوکړه او وې فرمائیل چې ((کصحن مسجدی هذا)) یعنی که زما د جمات د

دې غولۍ په برابر د اوبو خوريدل وی.نو هغه به کثير وی ګڼی قليل.
بيا طالبانو د هغې صحن پيمائش او اندازه اوکړه نوپه دې کښې درې قسمه اقوال منقول دی.هشت درهشت، ده در ده، دوازده در دوازده، يعنی چې هر بازو ئې اته اته ،يا لس لس، يا دولس دولس وی.يو لاس يونيم فټ وی.روستنو مفتيانو په درميانی قول باندې فتوی ورکړه چې هر بازئې لس لس لاسه وی.
يعنی شپيته فټه وی.خو دا اصل مذهب نه دې.اصل مذهب ((خلوص الاثر وعدمه)) دې.
**د امام مالک دليل:**
① امام مالک رحمه الله خپل مسلك دبيربضاعة د حديث الباب څخه استدلال کړې دې.
((عن ابی سعيد الخدری رضی الله عنه قال قيل يارسول الله ﷺ انتوضأ من بير بضاعة فقال رسول الله ان الماء طهور لا ينجسه شئ )) محل استدلال هم داآخری جمله ده.چه مطلق دې .
**يوه اهمه فائده:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دطرفه ددې استدلال جوابونه او دروايت د توجيهاتواوريدو څخه وړاندې دوه خبرې ذهن کښې اوساتئ
**اول په اطلاق د حديث عدم عمل:** ړومبې خبره داده.چه ددې حديث په اطلاق اوپه عموم باندې پخپله امام مالک رحمه الله هم عامل نه دې ځکه چه دې حديث څخه معلوميږی که د اوبواوصاف متغيرشی نوبيا به هم طاهروی اونجس به نه وی حال دادې چه امام مالک رحمه الله ددې قائل نه دې ددې وجې دې هم ددې اطلاق په مقيدکولومجبور دې.
**جواب:** ددې جواب کښې بعض مالکيه وائی چه امام مالک رحمه الله داتقيدهم دحديث په بناء کړې دې.ځکه چه دارقطنی کښې دحضرت ثوبان رضی الله عنه او دحضرت ابوامامه رضی الله عنه څخه او ابن ماجه کښې صرف دابوامامه رضی الله عنه څخه دا حديث داسې مروی دې.
((ان الماء طهور لا ينجسه شئ الا غلب علی طعمه اولونه اوريحه))
**د روايت تضعيف:** خوحافظ ابن حجر رحمه الله [1] داپه تفصيل سره ثابته کړې ده.چه دحضرت ثوبان رضی الله عنه اود حضرت ابوامامه رضی الله عنه داروايت صحيح نه دې.ځکه چه د دې مداريه د رشدين بن سعد دې. چه متروک دې اوامام دارقطنی رحمه الله ددې زياتی روايت کولو نه پس ليکی ((لايثبت هذا الحديث)) د دې وجې د اوصاف ثلاثو په عدم تغيرسره مقيدکول داپه څه صحيح روايت کښې نه دی شوی.بلکه امام مالک رضی الله عنه د قياس اود اصول کليه په بناء دا تقيدکړې دې.اوچه کله امام مالک رحمه الله اطلاق د حديث مقيدکولې شی.نو احنافو اوشوافعوته هم دا حق حاصل دې.چه دوئ به دا د نورو دلائلو په بناء په څه خاص قيدمقيد کوی.

---
[1]) كذا فی التلخيص الخبير (۱۵\۱)

**دویم د حدیث په خپل ظاهر عدم حمل:** دویمه خبره داده.چه ددې حدیث الفاظ او ددې سیاق پخپله په دې خبره دلالت کوی.چه داپه خپل ظاهرمحمول نه دې.ځکه چه که دا حدیث په ظاهر حمل کړې شی نو ددې به دا مطلب وی. چه بیربضاعة کښې د حیض ټوټې اود مردارسپوغوښې اونور بدبویه څیزونه باقاعده غورزول عادت وو.ګویا ددې کوهی نه د ډیران کاراخستې کیدو حال دادې چه داخبره ددوه وجوه په بناء انتهائی بعیده ده.

① ړومبې خودا ده چه حجاز کښې اوبه ډیرې لږې ملاویدې.د دې وجې دا ډیره بعیده ده.چه صحابه قصداً عمداً دا نجاستونه په کوهی کښې واچوی.کم نه کم د نظافت تقاضا خوداده.چه کوهی ددې څیزونوڅخه پاك اوساتلې شی.

بعضې خلق وائی چه دانجاستونه غورزونکې منافقان وو.خو په قول دحضرت شاه صاحب رحمه الله نظافت یو انسانی مسئله ده.اودې کښې دهیڅ یومنافق نه هم داتوقع نه شی کیدې.چه دې به داحرکت کوی.

② دویمه وجه داده.چه که واقعة دینه دډیران کار اخستې کیدلو نو ممکن نه ده.چه داوبواوصاف متغیر شوې نه وی.ځکه چې د امام ابوداؤد رحمه الله دتصریح مطابق دا کوهی شپږ ذراع وو او دې کښې به اوبه کم نه کم ترګُندو او زیات نه زیات ترنامه پورې وې بیادا څنګه ممکن ده.چه دې کښې د حیض ټوټې اومردارڅیزونه اچولې کیدل او ددې اوصاف ثلثه دې متغیرنه وی.داسې صورت کښې خوبه خپله د امام مالك رحمه الله په نیز ددې په نجاست کښې کلام نه شی کیدې.حال دادې چه که په ظاهر د حدیث عمل اوکړې نو تغیرد اوصاف سره اوبوته پاك وئیل پکار دی.حال دادې چه امام مالك رحمه الله پخپله ددې قائل نه دې دینه صفاظاهره ده.چه دحدیث ظاهری الفاظ چه کوم منظربنائی په حقیقت کښې دغه مراد نه دې.

ددې تمهیدڅخه پس په هغه توجیهاتُو کښې غوراوکړئ چه کوم ددې حدیث په باره کښې احنافو کړی دی.

**د حدیث څخه جوابونه:**

① په دې حدیث کښې درې توجیهات شوی دی.کوم چې د دې څخه جواب دې.

**اوله توجیه:** ړومبې توجیه داده.چه په حقیقت کښې د بیربضاعة په باره کښې د صحابه کرامو رضي الله عنهم دا سوال د مشاهدې په بناء نه وو.بلکه د نجاست په اوهامواوخطراتومبنی وو.په اصل کښې دا کوهی په نشیب (کنده) کښې واقع وو.او ددې څلورو طرفونو ته آبادی وه صحابه کرامو رضي الله عنهم ته دا خطره ذهن ته راغله چه ددې څلورو واړوطرفونو ته چه کوم نجاستونه غورزیږی هسې نه چه هوا ئې را اوچتوی یائې باران رابهوی اوپه دې

کوهی کښې ئې غورزوی.ددې خیالاتو د وجې صحابه کرامو رضی الله عنهم د نبی کریم ﷺ څخه ددې نجاست د اوطهارت په باره کښې تپوس اوکړو.خودغو داخیالات صرف په وساوس اوپه اوهام مبنی وو.او په مشاهده نه وو.د دې وجې نبی کریم ﷺ د قطع وسواس دپاره جواب علی اسلوب الحکیم ورکړو.((ان الماء طهور لاینجسه شیء)) څکه چې ((الیقین لایزول بالشك))

اودا توجیه د دې وجې ضروری ده.چې په مدینه منوره کښې د اوبو قلت وو.تردې چې په بعضو محلو کښې به اوبه په قیمت باندې ملاویدې.اویو یهودی به اوبه خرڅولې .نوبیا چې کله حضرت عثمانی رضی الله عنه د هغه څخه نیم کوهې په قیمت واخستل.او نمبر ئې مقرر کړل چې یوه ورځ به یهودی اوبه اوباسی اوبه بله ورځ حضرت عثمان رضی الله عنه نوحضرت عثمان رضی الله عنه به په خپل نمبر کښې زیاتې اوبه راویستلې.نیجه دا شوه چې د یهودی څخه به چا اوبه نه اخستې. د دې وجې مجبوراً یهودی باقی نیم کوهې هم خرڅ کړل.نوهرکله چې د مدینې خلقو اوبه په قیمت اخستلې دا څنګه ممکن ده چې هغوی به په بئربضاعه کښې ګندګئ اچولې.ددې توجیه حاصل داشو چه " الماء" کښې الف لام د عهدخارج دې او دې څخه مراد خاص د بیربضاعة اوبه دی.او د «لاینجسه شیء" مطلب دادې ((لاینجسه شیء مما تتوهمون)) علامه شیخ الاسلام محمد تقی عثمانی مدظله العالی فرمائی په حدیث الباب کښې دا توجیه داحقرپه نیز دټولونه زیاته بهترراجح او اصح ده.

**دویمه توجیه:** دویمه توجیه بعضې حضراتو دا کړې ده.چه ((یلقی فیه الحیض)) په حقیقت کښې ((کان یلقی فیه الحیض)) په معنی باندې دې یعنی داګندونه اوغلاظتونه به په بیربضاعة کښې په زمانه د جاهلیت کښې اچولې کیدل.داسلام نه پس داسلسله منقطع شوله خود صحابه کرامو رضی الله عنهم په زړه کښې دا شك وو.چه اګرچه کوهی خو اوس صفا شوې دې خو ددې په دیوالونو به اوس هم د نجاست اثرات باقی وی.ددې وجې دوئ سوال اوکړو.حضرت نبی کریم ﷺ دخپل ارشادمبارك په ذریعه ددې وهم ازاله اوکړه

**دریمه توجیه:** دریمه توجیه امام طحاوی رحمه الله په شرح معانی الآثار کښې داکړې ده.چه دبیربضاعة اوبه جاری وې ددې په تائید کښې دوئ یو روایت هم راوړې دې چه هغې کښې د ((انها کانت سیحاتجری، اویستقی منه البساتین)) الفاظ راغلې دی ([1])

**اول اعتراض:** دامام طحاوی رحمه الله په دې توجیه دا اعتراض شوې دې چه دکوهی جاری کیدل ډیره مستبعد دی. څکه چه داکوهی وړوکې وو.

**جواب:** ددې جواب خو داورکړې شوې دې.چه دجاری کیدونه مراد د دریابونو نهرونو په شان جاری کیدل نه دی بلکه مقصددا دې چه دې کوهې نه د ډول وغیره په ذریعه به

[1] ) کما ذکره الحافظ فی التلخیص الحبیر ۱۱/۱٤)

باغونه مسلسل د دې په اوبو باندې خړوبولې شول.نودا لکه د جاري اوبو پشان وو. نود باغ په يو ځل اوبه کولو سره به دکوهی تړولې اوبه اووتلې نود جناست په واقع کیدو به د دې اوبه نه متاثره کیدې.

**دويم اعتراض:** د امام طحاوی رحمه الله په توجیه باندې يو مضبوط اعتراض دا کیږی.چه دا ستا روایت د واقدی څخه مروی دې او واقدی ضعیف دې

**اول جواب:** بعضې احنافو حضرات ددې داجواب ورکوی.چه واقدی اګرچه د حدیث په معامله کښې ضعیف دې خود تاریخ اوسیرامام دې او ددوئ قول معتبردې او دا معامله د تاریخ سره متعلق ده.

**د اولنی جواب تضعیف:** خودا جواب په نظرد انصاف ضعیف دې اول خوددې وجې چې واقدی په خپله د تاریخ اوسیر معامله کښې هم مختلف فیه راوی دې د محققینو مورخینو یوه ډله دې د تاریخ په معامله کښې افسانه طراز ګرځوی. دویم که تاریخ کښې دده قول معتبر هم اومنلې شی نوچه په کوم تاریخی روایت باندې د یوې فقهی مسئله دارومدار وی د هغې د جانچ پړتال دپاره د جرح اوتعدیل دپاره به هم هغه اصول استعمالیږی کوم چې د فقهی روایاتو د تنقید دپاره مقرر دی.نه د تاریخ په دې لحاظ د یوفقهی مسئلې دپاره ددې روایت څخه استدلال صحیح نه دې.

**داعتراض څخه دويم جواب:** اګرچې امام واقدی ضعیف دې.خوپه دې مسئله کښې څه قرائن موجود دی د هغې څخه د دوی د خبرې صحت معلومیږی.په بخاری کښې دی ((قال کنا نفرح بیوم الجمعة قلت ولم قال کانت عجوز لا ترسل الی بضاعة قال ابن مسلمة نخل بالمدینة فتأخذ عن اصول السلق فتطرحه فی قدر وتکرکر حبات من شعیر))[1]

**دحديث ددوو ټکو وضاحت:** په دې کښې دوه الفاظ قابل توجه دی.یو ((نخل بالمدینة))د دې مطلب دا دې چې په دې کوهی سره باغونه آباد وو.دویمه دا چې هغوی به چقندر راغوستل.اودا هغه ځائې کښې کیږی چرته چې اوبه وی. (تشریحات ۲۲۲)

⑦ که چرته دا کوهي ورکوتې وو.او د دې باوجود خلقو په دې کښې ګندګئ اچولې.اود دې اوبه نه پلیتې دې نومونږ دا وایو.چې هرکله دومره ګندګئ په ورکوتی ورکوتی کوهی اچولې شی.نو عقل دا خبره نه منی چې د دې په اوصاف ثلاثه کښې دې تغیر رانشی.نوچې څه ستاسو جواب وی.هغه به زمونږ د احنافو جواب وی.

**د بئر بضاعه د حديث د ضعف وجه:** بعضې حضراتو دبیربضاعة په حدیث باندې سنداً هم کلام کړې دې.اوونیلې دی.چه د ضعف اسناد په وجه دا حدیث قابل استدلال نه دې.
یو خو ددې وجې چې د دې مدار په ولید بن کثیر دې اود هغه تضعیف شوې دې.او

[1] ) البخاری باب تسليم الرجال على النساء (۹۲۳۱۲)-

بعضې حضراتو دې د خوارج په فرقه باضیه کښې شمیرلې دې.خو د انصاف خبره دا ده.چه ولیدبن کثیرپه حسان رواتو کښې دې او دده احادیث مقبول دی. لکه چه حافظ ابن معین رحمه الله وغیره دې ثقه ګرځولې دې که بالفرض دې فرقه اباضیه سره تعلق هم ساتی .نو هم په اصول حدیث کښې داخبره فیصله شوې ده .که مبتدع عادل اوثقه وی نودده روایات قبلیږی.په شرط ددې چه دا روایت دده دمذهب تائید کښې نه وی.

د دې وجې ددې حدیث د ټولونه بهترین توجیه دغه ده.چه کومه وړاندې بیان شوله اوپه دې توجیه سره ټولو روایاتوکښې تطبیق هم کیږی.

**د امام شافعی دلیل:-** په ماء قلیل اوکثیرکښې د امام شافعی رحمه الله مستدل په ((بَابٌ مِنْهُ)) سره امام ترمذی رحمه الله په خپل جامع کښې نقل کړې دې.د مذاهبو بحث په دې باب کښې شروع دې.نودلته به د امام شافعی دغه مستدل نقل کړو.اوبیا به ترې جواب ورکوو.

عُمَرَعَنْ ابْنِ عُمَرَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَيُسْأَلُ عَنِ الْمَاءِ يَكُونُ فِي الْفَلَاةِ مِنَ الْأَرْضِ وَمَا يَنُوبُهُ مِنَ السِّبَاعِ وَالدَّوَابِّ قَالَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَاكَانَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ لَمْ يَحْمِلِ الْخَبَثَ»

**دحدیث ضعف او د ضعف وجوه:** ددې حدیث ضعف احنافوپه لاندینی طریقه بیان کړې دې.

① **د حدیث ضعف:** صاحب هدایه ددې دویم جواب دا هم ورکړې دې.چه ،،ضعفه ابوداوٗد" یعنی امام ابوداوٗد د دې حدیث تضعیف کړې دې

**په تضعیف کښې په صاحب هدایه اعتراض:** خو چه دابوداوٗد په معروف نسخوکښې څه صریح تضعیف نه ملاویږی.نو د صاحب هدایه خلاف راوچت شو چه ده ابوداوٗدته دتضعیف نسبت غلط کړې دې.

**د اعتراض جواب:** ددې جواب کښې بعضې احنافو فرمائی چه دابوداوٗد څخه مراد ابوداوٗد سجستانی صاحب السنن نه دې.بلکه ابوداوٗد طیالسی دې

**د جواب ضعف:** خوداخبره اول خوځکه بعیده چه ابوداوٗد مطلق ذکرشی. نو د دې څخه هم ابوداوٗد سجستانی مراد وی نه چې ابوداوٗد طیالسی.دویم حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه ما مسندابوداوٗد طیالسی ته رجوع اوکړله نو دې کښې هم چرته تضعیف ملاؤ نه وو.

**د اعتراض دویم جواب:** دې وجې بعضې حضراتو دا جواب ورکړې دې.چه دې څخه مراد ابوداوٗد سجستانی دې اودوئ اګرچه صراحة دا حدیث ضعیف نه دې ګرځولې خو ددې حدیث اضطراب ئې نقل کړې دې.چه د تضعیف قائم مقام دې.

**د دویم جواب ضعف:** خوداجواب هم صحیح نه دې.ځکه چه دابوداوٗد په موجوده نسخه کښې د اضطراب نقل کولو سره ترجیح راجح هم شته اود ترجیح په صورت کښې اضطراب باقی نه پاتې کیږی.دابوداوٗد عبارت داسې دې.((هذا لفظ ابن العلاء وقال عثمان والحسن

بن علی عن محمد بن عباد بن جعفر قال ابوداؤد الصواب الی محمد بن جعفر))

**د اعتراض ځخه د امام قدوري صحيح جواب:** د دې وجې صحيح جواب دادې چه دابوداؤد په موجود نسخه کښې ددې حديث تضعيف ثابت نه دې.البته صاحب دعنايه دابوداؤد يوعبارت نقل کړې دې.چه هغې کښې تضعيف صراحة موجود دې.دا عبارت دابوداؤد لؤلؤی په مروجه نسخوکښې خونشته دې البته دعلی بن الحسن په نسخه کښې به يقينًا موجود وی چه اوس ناياب دې په دې کښې په رجالُ زيات کلام شوې دې.غالبًاصاحب د عنايه اود صاحب هدايه په وړاندې دغه نسخه وه والله اعلم.

② **د محمد بن اسحاق ضعف:** د دې په سند کښې محمد بن اسحاق راوی دې.کوم چې ضعيف دې.

**د ضعف راوی ځخه جواب:** خو د دې ځخه جواب دا ورکړې شوې دې.چې د محمدابن اسحاق په باره کښې دحافظ ذهبیؒ قول چه دې په حسان راويانو کښې دې.حضرت شاه صاحبؒ هم داقول معتدل ترين ګرځولې دې لکه چه په خپله امام ابوحنيفهؒ په ډيرومقاماتوکښې د ده په رواياتو استدلال کوی.

③ د دې په سند کښې اضطراب دې. د اضطراب فی السند وضاحت دا دې داده.چه دارِوايت په بعضې طرق کښې ((عن الزهری عن سالم عن ابن عمر)) سندسره مروی دې.اوپه بعضې کښې ((عن محمد بن جعفر عن عبدالله عن ابن عمر)) په سند سره دغه شان د وليدبن کثيرپه بعضې طرق کښې ((عن محمد بن جعفر بن الزبير)) راغلې دې اوپه بعضې کښې ((عن محمد بن عباد بن جعفر)) دغه شان عبيدالله بن عبدالله بن عمر دې.اوپه بعضو کښې عبدالله بن عبدالله بن عمر مذکور دې.

**د اضطراب في السند جواب:** خودا اضطرابات شيخ ابن همامؒ په دوو جملوسره لرې کړی دی هغوی وائی چه وليدبن کثير دا روايت د محمدبن جعفربن زبيراو د محمدبن عباد بن جعفر دواړو ځخه اوريدلې دې.اودې دواړو د عبيدالله بن عبدالله بن عمراو د عبدالله بن عبدالله بن عمر د دواړو ځخه سماع کړې ده.داسې ددې روايت بنيادی اضطراب ختم شو.داسې امام دارقطنیؒ هم اضطراب په تطبيق سره لرې کړې دې.او وائی چه روايت په ټولو طرق مروی دې اويوطريق دبل طريق معارض نه دې.

④ **په رفع او عدم رفع کښې اختلاف:** دغه شان حمادبن سلمه په طرق کښې د رفع او د وقف هم اضطراب دې په بعضې طرق کښې دا موقوف علی ابن عمر دې.((کما عند ابی داؤد)) اوپه بعضې طرق کښې دا مرفوع دې ((کما عند الترمذی فی الباب)).

**د اعتراض جواب:** د دې جواب دا دې اګرچې ابوداؤد په ابن عمر باندې دا حديث موقوف ذکر کړې دې.خو امام ترمذی مرفوع ذکر کړې دې.نواعتراض ختم شو.

**⑤ په متن کښې اضطراب :** دغه شان دا مضطرب في المتن هم دې اود اضطراب في المتن وضاحت دا دې.چه په بعضې روایاتو کښې ((اذاکان الماء قلتين لم يحمل الخبث)) اوپه بعضې کښې ((قلتين اوثلاثا)) راغلې دې لکه چه دارقطنی اوابن عدی وغیره روایت کړې دې.اود دارقطنی په متعدد طرق سره د اربعین قلة الفاظ هم راغلې دی.په دې کښې یو طرق شیخ ابن همام رحمه الله هم صحیح ګرځولې دې اوامام دارقطنی رحمه الله بعض روایتونه داسې نقل کړې دی.چه هغې کښې د اربعين دلوا یاد اربعين غربا الفاظ هم راغلی دی.

**د اعتراض في المتن ځغه جواب:** اضطراب فی المتن موجب د ضعف نه دې.د دې وجې چې ټولو محدثینود قلتین روایت راجح ګرځولې.چه کوم روایت کښې د ثلاثًا زیاتې مروی دې اول خودا مرجوح دې اوکه دا صحیح هم تسلیم کړې شی نو تطبیق کیدې شی.چه عدد اقل د اکثرنفی نه کوی او دا هم بعیده نه ده.چه دلته او((اذا كان الماء قلتين فصاعدا لم يحمل الخبث )) وی

**⑥ په معنی کښې اضطراب:** په دې کښې اضطراب في المعنی هم شته. د دې وضاحت دا دې.چه د صاحب قاموس د قول مطابق قلة د غرځوکه د انسان قد او چاتې په معنی راځی .دلته دیوتعین مشکل دې. اود معنی اعتبارمشکل نه دې ځکه سیاق د کلام ښائی چه دلته ،،قلة الجبل ،، یا ،، قامة الرجل،، مراد نه ده بلکه د "جره" معنی مراد ده.ځکه چه د ،،قلة،، لفظ کله د اوبو دپاره اوونیلې شی نو دې ځخه عمومًا چاټې مراد وی. اوکه مونږ دغرځوکه یاد انسان قد مراد واخلو نو دا ښکاره تکلف دې.

**⑦ په مصداق کښې اختلاف:** په دې کښې د قلة د مصداق په اعتبار سره هم اضطراب دې.علامه ابن نجیم رحمه الله فرمائی چه درې قسمواضطراب نه علاوه څلورم اضطراب دقلة په مصداق کښې دې.یعنی که قلة په معنی دچاټې واخلې لکه چه د امام شافعی رحمه الله مسلك دې.نو بیا هم د چاټې حجم متفاوت وی. په دې کښې د یوتعین مشکل دې. ځکه چه حدیث کښې دا تعین نشته.چه څومره چاټې مراد ده

**د قله تعیین:** د امام دارقطنی رحمه الله په یوروایت کښې ((من قلال هجر)) الفاظ راغلی دی.دې ځخه معلومیږی چه دیمن دیوځائې هجر چاټې مراد دی.

**زیادت د ضعیف راوی دې:** نوردې جواب دادې چه دا زیادت صرف مغیره بن سقلاب ذکر کړې دې.چه په تصریح د محدثینومنکر الحدیث دې اوبعضې نورو محدثینودده په حق کښې دې ځخه زیات سخت الفاظ استعمال کړې دی.د دې وجې په خپله دارقطنی دا زیادت غیرمحفوظ ګرځولې دې په هرصورت د قلة مصداق کښې اضطراب دې.

**د حدیث ضعف د بعضې علماؤ په نظر کښې :** په هرحال ددې قسماقسم اضطراباتود وجې بعضې خلقوددې حدیث تضعیف کړې دې.شیخ ابن همام رحمه الله نقل کړې دی.چه حافظ ابن

عبدالبر رحمه الله په الاالهام " کښې ددې حدیث تضعیف کړې دې اود قاضی اسماعیل بن اسحاق او دابوبکربن عربی نه هم تضعیف منقول دې دې څخه علاوه احب دائع د علی بن المدینی څخه هم تضعیف نقل کړې دې حافظ ابن القیم رحمه الله تهذیب السنن کښې په حدیث د قلتین مفصل کلام کړې دې.او دائې ناقابل استدلال ګرخولې دې.ابن تیمیه رحمه الله ، امام غزالی رحمه الله ، علامه عینی رحمه الله ، علامه زیلعی رحمه الله څخه هم تضعیف منقول دې.

**د حدیث صحت د علماؤ په نظر کښې:** خوحقیقت دادې چه د مذکوره اضطراباتو د وجې دا حدیث علی الاطلاق ضعیف اوناقابل استدلال ګرخول انصاف نه دې.واقعه داده.چه د اعتراض ضعف حدیث اوټول اضطرابات رفع کیدې شی.لکه څنګه چې مونږ لاندې په حاشیه کښې رفع کړی دی.

ددې وجوهاتو په بناء دمحدثینویوه لویه طائفه دې ته حدیث صحیح وائی .امام شافعی رحمه الله.امام احمد رحمه الله حافظ ابن منده رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله ددې تصحیح کوی. دامام ترمذی رحمه الله صنیع هم په دې دلالت کوی.احنافو کښې هم دشیخ ابن همام رحمه الله رجحان عدم تضعیف دې امام طحاوی رحمه الله هم ددې په سندڅه کلام نه دې کړې.صاحب سعایه هم عدم تضعیف ته مائل دې دې وجه نه حضرت ګنګوهی رحمه الله په الکوکب الدری کښې فرمائی چه دحدیث دقلتین تضعیف مشکل دې.دې وجه نه صحیح جواب دادې.چه داحدیث اګرچه ضعیف نه دې خو دلاندینی وجوه په بناء دیته د تحدیدشرعی مرتبه ورکول مشکل دی.

**حدیث القلتین باندې د عمل نه کولو وجوهات:**

① عموم بلوی: داخبره ثابته ده.چه دحجازپه علاقه کښې اوبه ډیرې لږې وې.اوهلته به داوبود نجاست اودطهارت مسئلې روزانه په کثرت رابیښیدې. اوخلقوبه هم د اوبو د مسئلوڅخه خبریدلو کښې ډیرشوق ساتلو ددې تقاضا ده چه حضرت نبی کریم ﷺ که د قلت اوکثرت څه حدد مقرر کړې وې.نو دا به د صحابه کرامو رضی الله عنهم په مینځ ډیرمشهوروو. خومونږ ګورو چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم به دې دومره لوئې جماعت کښې د قلتین د تحدید روایت کوونکې ددې کم عمره صحابی یعنی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما څخه علاوه بل چا نه دې کړې.او دده نه هم روایت کوونکې صرف دده دوه خامن دی ګویا دا ((خبرالواحد فیماتعم به البلوی)) ده . چه په اتفاق د محدثینو اوفقهاؤ مخدوش کیږی.

② **د مقادیر شرعیه ثبوت:** دا مسئله د مقادیر شرعیه سره متعلق ده.او ددې د ثبوت دپاره دډیرو مضبوطو اوغیرمحتمل دلائلو ضرورت دې حدیث القلتین اګرچه ضعیف ورته نشې وئیلې خوبیا هم دحسن د درجه څخه پورته نه دې اواحنافو چه د نجاست الماء په سلسله کښې دکومواحادیثو څخه استدلال کړې دې. هغه د صحت په اعلی مقام

دی.په دې لحاظ حديث القلتين د دغه روايات صحيحو مقابله نشي کولې.

④ **د تقدير الماء په ترک د صحابؓ اجماع:** دنورو صحابه کرامو ﷺ څخه نه ده ثابته چه دوئ قلتين د قلت اوکثرت معيارګرځولي وی.بلکه شيخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله خو لمعات التنقيح کښې تردې فرمائی چه ددې تقدير په ترك د صحابه کرامو اجماع معلوميږی د دې دليل دادې چه يوځل کله بيرزمزم کښې يوحبشی پريوتونو دغه دواړو حضراتودکوهی ټولو اوبوراويستو حکم اوکړو.حال دادې چه اوبوکښې اثرهم ظاهرشوې نه وو.اوبيرزمزم بلاشبه دقلتين څخه ډير زيات وو.اودا عمل د صحابه کرامو ﷺ په مجمع کښې راپيښ شو اوصحابه کرامو ﷺ هم په دې څه نکير يا اعتراض اونکړو.((فيکون حديث القلتين مخالفًا لاجماع فلايقبل)) ([1]) نود قلتين حديث ګويا چې د صحابه کراموز د اجماع څخه مخالف دې.

**خلاصه د کلام:** په هرحال ددې وجوهات اوعوارضويه بناء دې حديث ته د مقادير شرعيه په باب کښې تحديدتشريع مقام نشي ورکولې بلکه ضرورت ددې خبرې دې چه د څه مناسب توجيه په ذريعه دا حديث په احاديث صحيحو محمول کړې شی نو داحنافو د طرفه د حديث د قلتين مختلف توجيهات شوې دی.چه هغې کښې دوه توجيهات زيات راجح دی.

**اوله توجيه:** حضرت شاه صاحب رحمه الله کړې ده.هغه دا چه د حديث په الفاظو باندې دغورکولو څخه معلوميږی چه دې حديث کښې د اوبو څخه مراد د حجازد زمکې يو مخصوص اوبه دی.چه د مکې معظمې اود مدينې منورې په لاره کښې کثرت سره وی. دا د غرونو د چينواوبه دی.چې د چينې څخه راوځی او په نالو کښې اوبهيږی.اوپه وړو کندو کښې جمع شی.او ددې مقدارعمومًا د قلتين څخه زيات نه وی.خودا اوبه جاری وی ددې په باره کښې ئې اوفرمائيل چه دا نه پليتيږی.ددې تائيد د حديث د ابتدائی جملې څخه کيږی.چه ((وهويسئل عن الماء يکون فی الفلاة من الارض ومايَنوبه من السباع والدواب)) دې څخه ښکاره ظاهره ده.چه دلته د کورونو د اوبو په باره کښې سوال نه دې بلکه دصحراء د اوبو په باره کښې سوال دې.

**اعتراض:** په دې سوال راځی چه دغه اوبه خوجاری وې نو د قلتين دتحديدڅه ضرورت وو؟

**جواب:** ددې جواب دا دې چه دا تحديدنه دې بلکه بيان د واقع دې او کيدې شی ددې منشاء هم دا وی چه د قلتين څخه کمې اوبه اګرچې چه جاری وی د تغيرپيدا کيدو په

[1]) قال الشيخ فی لمعات التنقيح ۱۳۷/۲ ولمالم يثبت عن النبی ﷺ حديث فی تقديرالماء وتحديده رجع اصحابنافی ذلک الی الدلائل الحسية دون السمعية وجعلوامعيارالقلة والکثرة الخلوص ۱۲) _

کښې زيات امکان وی.د حضرت شاه صاحب رحمه الله دا توجيه په حقيقت کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله ددې قول تشريح ده.چه کوم دوئ امام ابويوسف رحمه الله ته فرمائيلی وو.((اذاکان الماء قلتين لم يحمل الخبث اذاکان جارياً)) هغه داسې چې په معارف السنن کښې دا واقعه ذکر ده چې امام ابوحنيفه رحمه الله د خپل شاګرد امام ابويوسف رحمه الله څخه د دې حديث د مطلق په باره کښې تپوس اوکړو.نو امام ابويوسف رحمه الله مختلف توجيهات اوکړل خو امام اعظم رحمه الله يوه توجيه هم قبول نکړه نو شارد ورته عرض اوکړو حضرت تاسو د دې حدث مطلب بيان کړئ امام اعظم رحمه الله اوفرمائيل دا حديث د جاری اوبه په باره کښې دې.امام ابويوسف رحمه الله باندې دا توجيه دومره ښه اولګيده چې هغوی د خپل استاذ محترم تندې ښکل کړلو.

**دويمه توجيه:** حضرت ګنګوهی رحمه الله بيان کړې ده.هغه فرمائی چه دا حديث د احنافو خلاف نه دې.په اصل کښې د احنافو په نيز مدار «خلوص اثر نجاسة من جانب الی جانب» دې. که په يومقام کښې مبتلی به ته دايقين حاصل وی.چه د قلتين په مقدارکښې خلوص نجاست نه کيږی.نو دې سره طهارت حاصلول جائز دی.لکه چه فرمائی چه ماپخپله ددې عملی تجربه کړې ده.اويوه کنده مې اوکنستله او دې کښې مې پنځه مشکه اوبه واچولې.چه په کتابونو کښې ليکلې شوې د قلتين د مقدارمطابق وې.دې کښې يو طرف ته تحريک ورکولو سره بل طرف ته تحريک نه کيدلو ظاهره ده چه داسې صورت کښې احناف هم اوبو ته نجس نه وائی البته بعضو صورتونو کښې داسې هم کيدې شی چې د نجاست اثر خلوص وی نوپه داسې صورت کښې به دا اوبه نجس ګڼړلې شی.ګويااصل مدار په خلوص نجاست دې.د دې وجې قلتين په طور د يوحد مقررکول صحيح نه دی.اودکلی تحديد کولو په ځائې دا په رائی د مبتلی به پريخول پکار دی.د حضرت ګنګوهی رحمه الله دا توجيه زياته د اطمنان ده .

**دريمه توجيه:** صاحب هدايه ددې يو توجيه دا هم کړې ده چه ماء القلتين ((لم يحمل الخبث)) د نجاست متحمل نه شی کيدې.بلکه نجس کيږی.

**د تاويل تضعيف:** خوداتاويل خلاف ظاهردې.بلکه د ابوداود او ابن حبان په روايت کښې داسې الفاظ دی ((اذابلغ الماء قلتين لم ينجس))(1)

**د حنفيانو دلائل:**

① دحضرت ابوهريره رضی الله عنه مرفوع حديث دې. ((لايبولن احدکم فی الماء الدائم ثم يتوضأ منه))(2)

**وجه استدلال:** طريقه د استدلال دا ده چې په بولو کولو سره تغير د احد اوصاف الماء نه راځی.خو د دې باوجود نبی کريم صلی الله عليه وسلم منع فرمائيلې ده.معلومه شوه چې په احد الاوصاف

---

(1) کذا فی التخليص للحافظ (۲۳/۱، ۲٤) نقلا عن تحفة الاحوذی ) -

(2) قال ابوعيسى هذا حديث حسن صحيح جامع الترمذی (۲۱/۱)-

پورې تحديد صحيح نه دې.

(۲) عن ابی هریرة مرفوعاً أَحَدُكُمْ مِنْ مَنَامِهِ فَلْيَغْسِلْ يَدَهُ ثَلَاثاً قَبْلَ أَنْ يُدْخِلَهَا فِي الْإِنَاءِ فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ.

()په دې کښې هم دتغير احد الاوصاف ذکر نشته بلکه مطلقاً نهى ده.

(۳) روی مرفوعاً عن ابی هریرة رضی الله عنه لا یغتسل احدکم فی الماء الدائم وهو جنب فقال کیف یفعل یا اباهریرة قال یتناوله تناولا))په غسل کولو سره په اوبو کښې تغير نه راځي خو د دې باوجود نهى راغلې ده.معلومه شوه چې د جناست په پريوتو اوبه پليتيږي.()

(۴) د ولوغ الكلب حديث دې.په کوم کښې چې راغلی دی ((یغسل الاناء اذا ولغ فیه الکلب سبع مرات))([۳]) دلته هم دعدم تغير اوصاف الماء باوجود نبی کریم ﷺ منع کړې ده.

(۵) ((حدیث وقوع الفارة فی السمن)) ([۴])

**خلاصه:** د دې ټولو دلائلو څخه معلومه شوه چې اوبه د نجاست په واقع کېدو پليتيږي. اوحديث الباب څخه چې عدم نجاست معلوميږي.نوکه د ترجيح طريقه اختيار کړې شی.نو هم دغه دلائل اربعه د حديث الباب په مقابله کښې راجح دی.نوپه دې به عمل کولې شی.

**[۴۷۹] د درياب په اوبو د پاکۍ حاصلول**

۴۷۹-(۵) [۶] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: [۲] «سَأَلَ رَجُلٌ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، [۳] إِنَّا نَرْكَبُ الْبَحْرَ، وَنَحْمِلُ مَعَنَا الْقَلِيلَ مِنَ الْمَاءِ، [۴] فَإِنْ تَوَضَّأْنَا بِهِ عَطِشْنَا، أَفَنَتَوَضَّأُ بِمَاءِ الْبَحْرِ؟ [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هُوَ الطَّهُورُ مَاؤُهُ الْحِلُّ مَيْتَتُهُ»". رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضی الله عنه فرمايي [۲] چې يوسړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې يارسول الله ﷺ [۳] مونږ په تريخ درياب کې د کشتۍ په ذريعه سفر کوو او خوږې اوبه د خان سره لږې وړو [۴] که مونږ په دې اوبو سره اودس کوو نو تږي به پاتې شو [۵] آيا زمونږ د درياب په اوبو سره اودس کولې شو (يا تيمم ووهو؟) حضور ﷺ وفرمايل د درياب هغه اوبه پاکونکې دي او د هغې مړشوي حلال دي. (مالك ترمذي ابوداؤد نسائي ابن ماجه دارمي)

[۱] ) جامع الترمذی (۱۳۱۱)-
[۲] ) صحیح مسلم باب النهی عن البول فی الماء الراکد (۱۳۸۱۱)-
[۳] ) باب حکم ولوغ الکلب مسلم ۱۳۷۱۱ ) _
[۴] ) صحیح ۳۷/۱ باب مایقع من النجاسة فی السمن والماء) _
[۶] اخرجه مالک کتاب الطهارة باب الطهور للوضوء (رقم- ۱۲) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب الوضوء بماء البحر (رقم- ۳۸۶) وابوداود کتاب الطهارة . باب الوضوء بماء البحر (رقم- ۸۳) والنسائی کتاب الطهارة . باب ماء البحر (رقم- ۵۹) والدارمی ومن کتاب الصید/باب فی صید البحر (رقم-۲۰۵۴)

**حل اللغات:** ① نَرْكَبُ الْبَحْرَ: يعنى د كشتو وغيره په ذريعه په تريخ سمندر كښې سفر كوو. ② عَطِشْنَا: مونږ به تږى پاتى شو

**تسهيلات:**

**قوله:** (سَأَلَ رَجُلٌ)

**رجل څوک وو؟:** د سائل هوم عبد، عبيد، حميد يا عبداله مدلجى وو هم دا راجح دې.

**قوله:** (إِنَّا نَرْكَبُ الْبَحْرَ) يعنى د ښكار په اراده باندې دريابى سفر كوو امام زرقانى رحمه الله فرمائيلى دى چې د درياب نه مراد مالح او تريخ دې.(¹)

**قوله:** (وَنَحْمِلُ مَعَنَا الْقَلِيلَ مِنَ الْمَاءِ)

**دبعضې راويانو زيادت:** د احمد، حاكم او بيهقى په روايت كښې راغلى دى چې مونږ د رسول الله ﷺ سره يو ورخ وو په دې كښې ښكارى راغلل او تپوس ئې اوكړو چې اې دالله رسوله مونږ په درياب كښې د ښكار په اراده باندې روان يو. اوپه مونږ كښې يو كس د خان سره په لوټه كښې اوبه اوړى. اوهغه دا اميد ساتى چې وړاندې به اوبه بيا مومى نوكله خو اوبه اومومى اوكله اوبه اونه مومى تردې چې په سمندر كښې داسې ځائې ته اورسيږى چې هلته د رسيدو د هغه ګمان هم وى. لنډه دا چې د سمندر اوبه خود څكلو نه وى خو د اودس دپاره هم دغه اوبه استعمالولې شو؟ نو نبى كريم ورته په دغه موقع دا الفاظ وئيلى وو (²)

**قوله:** (عَطِشْنَا) يعنى مونږ تګې شو. نود سمندر اوبه څكلې شو؟

**د سوال وجوهات:** ① د سمندر اوبه متلون وى ددې وجې سائل ته تردد پيدا شو چې آيا د دې حكم به د عامو اوبو پشان وى كه نه ؟

② د سمندر په اوبه كښې ملوحت وى نوشبه ورته پيدا شوه چې دا خالصې نه دى نو آيا په دې سره به اودس كول جائز وى؟

③ سمندرى ځناور د وچې د ځناورو په مقابله كښې زيات وى. اوهغوى په اوبه كښې بول بزار كوى او مرى هم. په وچه كښې خو دا څيزونه د اوبو د نجاست سبب ګرځى نوآيا د سمندر اوبه به د دې په واقع كيدو سره پلتيږى اوكه نه او اودس به پرې جائز وى كه نه؟

**قوله:** هُوَ الطَّهُورُ مَاؤُهُ يعنى د دې اوبه پاكې پاكونكې دى.

**قوله:** الْحِلُّ مَيْتَتُهُ د درياب مرداره حلاله او جائز الاستعمال ده.

---
¹) شرح موطا مالک للزرقانى (۸۰/۱)-
²) تحفة الاحوذى (۲۳۳/۱)-

**د سائل په جواب کښې د زیادت وجوهات:**

① امام رافعي رحمه الله فرمائيلي دي چې نبي ﷺ چې هرکله اوکتل چې په دې سائل باندې د سمندري اوبو اشتباه راغلې ده. دغه شان په ده باندې د سمندري حيواناتو د خوراك د څيز اشتباه هم راتلې شي نوځکه ئې ورته شفقة په جواب کښې اضافه اوکړه.

② ابن العربي رحمه الله فرمائيلي دي چې د سوال په جواب باندې د سوال څخه اضافه کول د فتوى په محاسنو کښې ده کله چې مفتي د مستفتي دپاره د هغې ضرورت محسوسوي. لکه څنګه چې ده ته د اوبو د استعمال ضرورت پيښيدو دغه شان ورته د سمندري ځناورو د خوراك هم ضرورت پيښيدې شو. نوځکه ورته نبي کريم ﷺ په جواب کښې اضافه اوکړه.[1]

يعنى دا د محسنات الفتوى څنې دې چې د سوال په جواب کښې د جواب سره مفيده اضافي خبره هم اوکړې شي. دې ته د بلاغت په کتابونو کښې اسلوب الحکيم وائي.

**د خبر تعريف باللام د تعارف دپاره دې:** دلته دخبرتعريف باللام د تعارف دپاره دې نه د حصردپاره. ابتداء کښې د صحابه کرامو په مينځ کښې د وضوء بماء البحرمسئله کښې اختلاف وو. لکه امام ترمذي رحمه الله هم د حضرت ابن عمر رضي الله عنه او د ابن عمرو رحمه الله مسلك دانقل کړې دې. چه وضوء بماء البحرمکروه دې. خو روستو بيا د دې په جواز اجماع منعقد شوه.

**فقهي مباحث:** دلته درې مسائلو کښې بحث کولې شي.

**د سمندري ځناورپه حلت او حرمت کښې مذاهب:**

① د امام مالك رحمه الله مسلك دادې چه دبحري خنزير نه سوا نورټول د اوبو ځناور حلال دي. خود خنزير په باره کښې هم د هغوى څخه مختلف اقوال منقول دي. يودحرمت بل د کراهت اوبل د توقف.

② دامام شافعي رحمه الله څخه دې باره کښې څلور اقوال منقول دي. (ا) د حنفيانو موافق (ب) د وچې ټول حلال ځناور په سمندر کښې هم حلال اود وچې ټول حرام ځناور په سمندر کښې هم حرام اوهغه ځناور چې په وچه کښې د هغې نظير نه وي هغه حلال دي. (ج) (ضفدځ) چندخه تمساح شمستئ (سلخفاة) سمندري سپې اوخنزير حرام دي اوباقي ټول حلال دي. (د) د چيندخ څخه سوا باقي نور ټول ځناور حلال دي. امام نووي دې آخري قول ته ترجيح ورکړې ده. او دا د امام شافعي رحمه الله مفتى به قول ګرځولې دې.

③ داحمدبن حنبل رحمه الله په نيزدضفدخ اوتمساح څخه علاوه نور ټول سمندري ځناورحلال دي.

[1]) عارضة الاحوذي (۸۹/۱) نقلا عن تحفة الاحوذي (۲۳٤/۱)-

③ دامام ابوحنیفه رحمه الله مسلك دادي چه دسمك څخه علاوه نورټول ځناور حرام دی.او سمك طافي هم د حلت څخه مستثنی دي.

**د ائمه ثلاثه رومبی دلیل:** ① ((أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهُ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ)) په دې آیت کښې لفظ "صید" عام دې.د دې وجې هرځناور حلال وی.

**داول دلیل دوه جوابونه:** ① دې څخه خپله د شوافع استدلال هله صحیح کیږی. چه کله صیدد مصید په معنی واخلی او اضافت د استغراق دپاره شی.حال دادې چه مصدر د اسم مفعول په معنی اخستل مجاز دې اوبلا ضرورته مجاز ته د رجوع حاجت نشته.د دې وجې احناف ددې خبرې قائل دی.چه دلته لفظ د صیدپه خپله حقیقی یعنی مصدری معنی باندې محمول دې اوسیاق هم ددې شاهد ځکه چه ذکر د هغه افعالو روان دې.چه کوم د محرم دپاره جائز اوناجائزدی.د دې وجې دلته منشاء صرف د ابنودل دی چه سمندر کښې ښکارکول جائزدی.دې څخه د خوراك حلت نه ثابتیږی.

② که دلته صیدد مصیدپه معنی شی.نو بحرته ددې اضافت داستغراق دپاره نه دې بلکه د عهدخارجی دې.د دې وجې یو مخصوص ښکاریعنی ماهی مراد دې.چه د هغې حلال کیدل په نورو دلائلوسره ثابت دې. لکه څنگه چې د ((وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا)) کښې اضافت په اتفاق سره د عهد دپاره دې.

**د ائمه ثلاثه دویم دلیل:** ② حدیث الباب "الحل میتته" داالفاظ د بحر د هرې میته حلت بیانوی.

**د دویم دلیل دوه جوابونه:** ① میته کښې اضافت د استغراق دپاره نه دې بلکه دعهد خارجی دپاره دې نو د حدیث مطلب هم دا شو چه د سمندر هغه مخصوص میتته حلال ده.چه هغې کښې د حلت نص راغلې دې او هغه سمك دې.

② حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی که دلته اضافت د استغراق دپاره اومنلې شی نو دلته د((الحل)) څخه مراد حلال کیدل نه دی بلکه طاهرکیدل دی.اولفظ د حل په کلام د عربو کښې په کثرت سره د طاهرکیدو په معنی استعمال شوې دې.لکه د بخاری شریف یو مشهورحدیث کښې داالفاظ راغلی دی. ((حتی بلغنا سدالروحاء حلت فبنی بهاالخ)) ([1]) . دې حدیث کښې لفظ د حلت په اتفاق د طهارت په معنی دې نو داسې په حدیث الباب کښې هم لفظ دحل د طهر په معنی دې اوددې یو دلیل دا هم دې.چه کلام هم د طهارت په باره کښې روان دې. صحابه کرامو رضی الله عنهم ته دا شبه وه چه سمندر کښې مړکیدونکی ځناور پاك

[1]) الحدیث اخرجه البخاری فی صحیحه ۲۹۸۱۱ فی اواخرجه کتاب البیوع عن انس بن مالک تحت باب هل یسافر بالجاریة قبل ان یستبرئها) _

وی. ددې شبهې ختمولو دپاره نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د سمندر میته طاهر وی.

**د ائمه ثلاثه دریم دلیل:** ③ په حدیث العنبرباندې هم مالکیانو اود شوافعو استدلال کړې دې.په دې کښې صحابه فرمائی چه مونږ ډیره زمانه یو سمندرې ځناورخوړلو چه د هغې نوم عنبروو.د بخاری شریف په روایت کښې الفاظ دادی.((فألقی لنا البحر دابة يقال له العنبرفأكلنامنه نصف شهر العر)) دې روایت کښې لفظ د دابة دابنائی چه دا ځناور د سمك څخه علاوه بل څه څیز وو. اود صحیح بخاری شریف په روایاتوکښې دحوت اودابه دواړوالفاظ راغلی دی.

**د دریم دلیل دوه جوابونه:** ①د صحیح بخاری په یوروایت کښې ((فألقی البحر حوتاً میتاً)) (¹)الفاظ راغلی دی.د کوم څخه چې معلومیږی چه نورو روایتونو کښې د دابه څخه مراد هم حوت دې.

② که چرته اومنلې شی چې دا هم دابة البحر وه.نومونږ وایو چې په مسند احمد کښې د دې حدیث په تفصیل کښې دی چې هرکله مونږ د سمندر په غاړه دابه اولیدله نو په اول کښې ابوعبیده د هغې د خوراك څخه منع اوکړه او بیا ئې اوفرمائیل ((لا بل نحن رسل رسول الله وقد اضطررتم فكلوا))نو د دې څخه معلومه شوه چې ابوعبیده د جواز دپاره د اضطرار وجه اوخودله.د دې څخه دا معلومه شوه چې صحابه کرام ﷺ د دریابی میته د حرمت قائل وو.د دې وجې هم ابوعبیده د هغې د خوراك څخه اول منع اوفرمائیل اوبیا ئې خپل ځانونو مضطرین ثابت کړل اود دابه د خوراك اجازت ئې ورکړل.

**په جواب اعتراض:** که دا اومنلې شی چې خوراك د دابه په حالت د اضطرار کښې وو.نوپه حالت د اضطرار کښې خوراك په قدر د ضرورت وی حال دا چې صحابؤ تراتلس ورځو پورې د هغې څخه خورا کړې وو.اوپه بعضې روایاتو کښې راځی چې روستو کله دوی نبی کریم ﷺ سره دا واقعه واوروله نونبی کریم ﷺ اوفرمائیل دا د الله تعالی رزق وو چې تاسو ته ئې درکړل او ماته هم د هغې څه حصه راکړئ که پاتې شوې وی.نونبی کریم ﷺ خو مضطر نه وو.د دې باوجود ئې د هغې دابه د خوراك خواهش ښکاره کړې وو

**د اعتراض څخه جواب:** مونږ وایو چې دا ماهی (کب) ډیر غټ وو.په اول کښې ابوعبیده ﷺ اونه پیژندل د دې وجې د حالت اضطرار څخه په وخت ئې اووئیل ((لقد اضطررتم فكلوه)) اوچې بیا ئې کله اوپیژندل چې ماهي دې نو ښه په مړه خیټهٔ ئې اوخوړلو.

**د ائمه ثلاثه څلورم دلیل:** ④ بیاامام مالك ﷺ دقرآن کریم دآیت د ((لحم الخنزير)) دعموم د

---

¹) البخاری کتاب المغازی باب غزوة سیف البحرو کتاب الاطعمة باب فی اکل الطافی من السمک ۲۳٤۱ ابواب الصیدباب الطافی من صیدالبحر) _

وجې دبحری خنزیرحلت ترې مستثنی کوی اوامام شافعی رحمه الله ترې د احادیث النهی عن قتل الضفدع په بناء ضفدع د حلت څخه مستثنی کوی.لکه په یو حدیث کښې راغلی دی چې سو سړی د نبی کریم ﷺ څخه په دوائی کښې د اچولو دپاره د چیندخې د قتلولو اجازت اوغوښتلو نو نبی کریم ﷺ هغه منع کړلومعلومه شوه چې دا ناپاکه او حرامه ده.

**د څلورم فریق دلائل:** ددې په مقابله کښې داحنافو دلائل دادی

**اول دلیل:** ① علامه عینی رحمه الله ددې ((وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَٰٓئِثَ)) قرآنی آیت څخه په مسلك داحنافو استدلال کړې دې. وجه د استدلال داده.چه د خبائث څخه مراد هغه مخلوقات دی.چه د کومو څخه د انسان طبیعت کرکه کوی او د ماهی څخه علاوه د سمندر ټول ځناورداسې دی. چه د هغې څخه انسان کرکه کوی.د دې وجې د سمك څخه علاوه نور سمندری ځناوربه خبائث کښې داخل شو.

**دویم دلیل:** ② د آیت ((حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ)) څخه معلومه شوه چه هرمیته حرام ده. سوا د هغه میتته څخه چه د هغې تخصیص په دلیل شرعی ثابت وی.اوپه دریاب کښې مړ شوې ځناور هم په میته کښې راځی.باقی سمك هم په میته کښې راځی خودا بیله خبره ده چې د سمك استثناء په حدیث کښې راغلې ده.

**دریم دلیل:** ③ ((عن عبدالله بن عمر ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال احلت لنا ميتتان ودمان فاما الميتتان فالحوت والجراد واما الدمان فالكبد والطحال))[1]

دلته استدلال په عبارة النص دې.ځکه چه سیاق کلام دحلت اودحرمت دبیان دپاره دې اوتعارض په وخت داستدلال کښې بعبارة النص راجح وی کماتقرر فی اصول الفقه.د دې وجې د حدیث څخه دا خبره ښکاره ده.چه میتته یعنی هغه ځناور چه کوم کښې دم سائل نه وی د هغه صرف دوه قسمونه حلال دی.جراد اوحوت .اود سمندر نورځناور په دې دوه قسمونوکښې داخل نه دی.نو هغه حرام دی.

**څلورم دلیل:** دټولوڅخه اهم خبره داده چه حضرت نبی کریم ﷺ په پوره حیاة طیبه کښې د دوئ څخه او نبی کریم ﷺ څخه پس د صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه یوځل هم د سمك څخه علاوه د بل سمندری ځناور خوراك ثابت نه دې.که دا ځناور حلال وې.نو دوئ به کله خود بیان جواز دپاره ضرورخوړلي وو.((واذليس فليس)) پاتې شو.

**د سمک طافی په حلت او حرمت کښې مذاهب :**

**د سمک طافی تعریف:** طافی هغه ماهی ته وائی چه په اوبو کښې بغیردڅه سبب خارجی

[1]) وقد اخرجه الحافظ فى التلخيص الحبيرمرفوعاوموقوفا وصححه وموقوفااخرجه من حديث زيدبن اسلم عن ابن عمرعند الشافعى واحمدوابن ماجه والدارقطنى والبيهقى وابن عدى فى تفسيره ونقل تصحيح الموقوف من الدارقطنى وابى زرعة وابى حاتم . معارف السنن ٢٥٧\١١ ،ازمرتب) _

څخه په طبعي مرګ مړشي.
① دائمه ثلاثه یعنی امام مالك رحمه الله، امام شافعي رحمه الله اوامام احمد رحمه الله په نیز داسې ماهی حلال دي.
② امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله ددې دحرمت قائل دې هم دامسلك دحضرت علی رضي الله عنه ، ابن عباس رضي الله عنه، جابر رضي الله عنه، ابراهیم نخعي رحمه الله ،شعبي طاؤس رحمه الله اوسعیدبن المسیب وغیره دې.
**د اول فریق اول دلیل:** ① ائمه ثلاثه یواستدلال د حدیث الباب څخه کوی.په دې کښې د دریاب د هرڅیز د حلت حکم ورکړې شو ې دې اوپه سمك طافی باندې هم د دې اطلاق صادقیږی.
**داول دلیل جواب:** دلته ((میته))کښې اضافت د عهد دپاره دې د استغراق دپاره نه دې.او د دې څخه مراد اګرچې ماهی دې خود ((ماطفی))استنثی په حدیث کښې شوې ده.
**د اول فریق دویم دلیل:**② د حدیث العنبر څخه استدلال کوی چې دغه ماهی سمك طافی وو.
**د دویم دلیل جواب:** په حدیث العنبر کښې د طافی کیدو تصریح نشته.طافی صرف هغه ماهی ته وائی چه کوم دخارجي سبب څخه بغیرپه خپله په اوبوکښې مړشی.اوالټه شی.ددې په خلاف که یو ماهی د څه خارجي سبب د وجې مړ شی.مثلاً د شدت حرارت یا د شدت برودت یا تلاطم امواج د وجې یا غاړې ته د رسیدو په وجه یا د اوبو څخه د لرې کیدو د وجې مړشی. نو دا طافی نه ګرځی.او دده خوراك حلال په حدیث دعنبرکښې هم ظاهره داده.چه دا ماهی د اوبو د پریخودو په په وجه مړشوې وو.د دې وجې دده حلت محل نزاع نه دې.
نوخلاصه دا شوه چې دا استدلال صحیح نه دې ځکه چې په حدیث العنبر کښې د طافی قید تصریح نشته که چرته دا اومنلې شی چې دغه سمك طافی وو.خو مونږ وایو چې ابوعبیده رضي الله عنه ته به په قرائینو سره معلومه شوې وه چې دا په سبب خارجي سره مړ شوې دې په په خپل مرګ سره نه دې مړ شوې.
**د اول فریق دریم دلیل:**③ د حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه یواثرد حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه مروی دې .په هغې کښې سمك طافی حلال ګرځولې شوې دې. (١)
**د دریم دلیل دوه جوابونه:** ① د دې راوی ابن عباس رضي الله عنه دې.اوهغوی د سمك طافی د حرمت قائل دې. نومعلومه شوه چې د دې څخه مصطلح طافی مراد نه دې.بلکه هغه ماهی مراد دې کوم چې د ښکار څخه بغیر بهر ته راشی.

١) سنن بیهقی اودارقطنی بحواله معارف السنن ١\٢٥٧))

④ که دا هم اومنلې شي چې د دې څخه هم اصطلاحی طافی مراد دې نو مونږ وایو چې دا روایت په ابن عباس رضی الله عنه باندې موقوف دې.او مونږ روایت مرفوع دې.او موقوف د مرفوع په مقابله کښې حجت نشي جوړیدې.

**د دویم فریق دلائل:** داحنافو استدلال ابوداؤد اوابن ماجه کښې دحضرت جابربن عبدالله رضی الله عنه روایت دې ((**قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ماالقی البحراوجزرعنه فکلوه ومامات فیه وطفا فلاتاکلوه**)) امام ابوداؤد داروایت مرفوعًا وموقوفًا په دواړو طریقو روایت کړې دې.بیانې طریق موقوف صحیح ګرځولې دې خوحقیقت دادې.چه مرفوع روایت هم ټولوترثقاتو څخه مروی دی.اودثقه زیادت مقبول وی.د دې وجې ددې په مرفوع منلوکښې هیڅ اشکال نشته.اوکه موقوف طریق هم صحیح اومنلې شی نو بیاهم چه مسئله غیرمدرك بالقیاس ده.نوحدیث به د مرفوع په حکم کښې وی.

**اعتراض:** امام بیهقی رحمه الله داحدیث ضعیف ګرځولې دې اود ضعف وجه ئې د ابن اسلم ضعف بیان کړې دې.

**جواب:** ابن اسلم د صحیحینو راوی په دې.ددې وجې ددوئ دا تضعیف صحیح نه دې.

**اعتراض:** ابن الجوزی د دې مرفوع روایت ته د اسمعیل بن امیه روحیه د وجې ضعیف وئیلی دی.[1]

**جواب:** امام ابن جوزی رضی الله عنه ته مغالطه شوې ده.دې اسمعیل بن امیه ابوالصلت نه دې چه ضعیف دې بلکه اسمعیل بن امیه قریشی اموی دې چه ثقه دې

④ د مسلك حنفی تائید په قرآنی آیت ((حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ)) سره هم کیږی.چې دا په خپل عموم پریخودې شی.نوپه دې کښې سمك طافی هم شامل دې.

**د جینګی په حلت او حرمت کښې مذاهب:**

① د شوافعو اود مالکیانو په نیز ددې په حلت کښې هیڅ شبه نشته

④ د احنافو په نیز مداریه دې خبره دی.چه دې سمك دې اوکه نه دا خبره خاص کر د پاك وهند دعالمانو په مینځ کښې ډیره مختلف فیه دې

**دجنیکی د سمک د جنسیت قول:**

۱- علامه دمیری رحمه الله په حیات الحیوان کښې دا د سمك یو قسم ګرځولې دې. ددې په وجه بعضې علماء هند د دې د حلت قائل دی چه دوئ کښې حضرت تهانوی باب رحمه الله هم داخل دې لکه چه دوئ په امدادالفتاوی کښې ددې اجازت ورکړې دې.

**جواب:** د علامه دمیری رحمه الله تعلق دې نو دې د علم الحیوان څه ماهرنه دې بلکه صرف ناقل د روایاتو دې.اوده په حیاة الحیوان کښې هرقسم رطب یابس روایات جمع دی.د

[1] معارف السنن ۱۱.۲۶۰) _

دي وجي دده قول د نورو ماهرينوپه خلاف حجت نه دي.
۲- خو صاحب د فتاوی حماديه اوبعضي نورو فقهاؤ ددې د سمك کيدوڅخه انکار کړې دې.شيخ الاسلام مفتي تقي عثماني مدظله العالي په درس ترمذي کښې ليکلي دي ،،احقر د علم الحيوان د ماهرينوڅخه ددې تحقيق اوکړو.نو ټول په دې خبره متفق په نظر راغلل چه جينګې ماهي نه دې او د دواړو په مينځ کښې نسبت داسې دې. کوم نسبت چې د زمرې اود پيشو دې د ماهي تعريف د علم الحيوانات په کتابونوکښې مرقوم دې.ددې په بناء هم جينګې دماهي مصداق کښې داخل نه دې.د جينګې تعريف دا دې. دملا د تيرد هډوکې خناور چه اوبوڅخه بغير ژوندې نه شي پاتې کيدې اوپه غوړونو ساه اخلې دې دې ته ماهي وائي.جينګې په رومبي قيدخارجيږي ځکه چه دده د ملا تير نشته
③ بعضې علماء حيوانات دا د چينجي يو قسم ګرځوی.دې څخه علاوه عرف عام کښې هم دې ته ماهي نه وئيلې کيږي.ځکه چه که يو کس ته د ماهي راوړلو حکم اوشي اوده جينګې راوړله نو دې به صحيح تعميل کونکې نه کنړلې کيږي.ددې وجوه په بناء راجح دا ده.چه دا ماهي نه ده.اود ده خوراك صحيح نه دې.

**په اجتناب کښې بهتری:** د دې څخه علاوه چې کله مونږ د شريعت په عمومي قواعدو باندې نظر اوکړو نو د جنګې د خوراك څخه پرهيز کول پکار دې.هغه دا دی
① ((الحلال بين والحرام بين وبينهما امور مشتبهات))اود مشتبه څيزونو پريخودل پکار وی.
② ((دع ما يريبك الى ما لا يريبك))د دې حديث تقاضا هم دا ده چې د جيګې خوراك اونکړې شي ځکه چې د دې په سمك کيدو کښې شك دې

## [۴۸۰]د نبيذ په اوبو سره اودس کول

۴۸۰–()[۷] ① وَعَنْ أَبِي زَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ② أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ لَيْلَةَ الْجِنِّ: "مَا فِي إِدَاوَتِكَ؟". ③ قَالَ: قُلْتُ: نَبِيذٌ. قَالَ: "تَمْرَةٌ طَيِّبَةٌ، وَمَاءٌ طَهُورٌ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، ④ وَزَادَ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ: فَتَوَضَّأَ مِنْهُ. ⑤ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: أَبُو زَيْدٍ مَجْهُولٌ.

ترجمه: ① ابوزيد د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په باره کې نقل کوي ② چې رسول الله ﷺ په ليلة الجنّ (يعني د پيريانو په شپه) کې ز ما څخه پوښتنه وکړه چې ستا په پتك کې څه شي دي؟ ③ عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وايي ماعرض وکړو چې نبيذ (يعني د قجورو شربت) دي حضور ﷺ وفرمايل قجورې پاکې دي او اوبه پاکونکې دي، ابوداؤد، ④ او امام احمد او ترمذي دا الفاظ زيات نقل کړي دي چې حضور ﷺ په هغې سره اودس

(۱) اخرجه ابوداود فى السنن رقم الحديث ۸۴ والترمذى فى السنن رقم الحديث ۸۸ وابن ماجة فى السنن رقم الحديث ۳۸۴

وکړو، ⑤ او امام ترمذي دا هم فرمايلي دي چې ابوزيد معلوم نه دي چې داڅوك دي؟

**حل اللغات:** ① لَيْلَةَ الْجِنِّ: يوشپه د جناتو وفد نبی عليه السلام ته د دين د زدكړې دپاره راغلي وو، هغه شپې ته ليلة الجن وائي. ② إِدَاوَتُكَ: د څرمني وړوكي لوښي وو، چهاګل. ③ نَبِيذٌ: وَهُوَ مَاءٌ يُلْقَى فِيهِ تَمَرَاتٌ لِيَحْلُوَ: اوبو كښې چه كجورې د اوبو دخوږوالي دپاره واچولي شي نوهغه اوبو ته نبيذ وائي.

**[۳۸] په ليلة الجن كښې د عبدالله بن مسعود عدم وجود**

| |
|---|
| ۴۸۱–()[ ۰ ] ① وَصَحَّ عَنْ عَلْقَمَةَ، «عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② لَمْ أَكُنْ لَيْلَةَ الْجِنِّ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |

**ترجمه:** ① حضرت علقمه البته د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه په صحيح طور سره دا روايت نقل كړي دي ② چې هغه اووېل چې زه په ليلة الجن كې د حضور صلى الله عليه وسلم ملګري نه وم (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: فَتَوَضَّأَ مِنْهُ:**

**د نبيذ درې قسمونه:** نبيذ په درې قسمه دی.

① غير مطبوخ، غيرمسكر، غير متغير، غيرحلورقيق. يعنی چې پخ شوې نه وی نشه راوستونكې نه وی متغير شوې نه وی او خوږ نه وی او بهيدونكې سيال وی. نو په دې سره په اتفاق اودس جائز دې.

② مطبوخ مسكر غليظ يعنی چې پخ شوې نشه راوستونكې او سخت وی چې رقت اوسيلان ئې ختم شوې وی په دې په اتفاق اودس جائز نه دې.

③ حلورقيق غير مطبوخ غيرمسكر يعنی چې خوږ نرم پخ شوې نه وی او نشه راوستونكې هم نه وی نو په دې باره كښې د امامانو اختلاف دې

**د حلو رقيق غير مطبوخ غيرمسكرنبيذ په حكم كښې مذاهب:**

① **داودس جواز او تيمم عدم جواز:** اودس جائزنه دی. تردې چه كه نورې اوبه نه وی. نو تيمم متعين دې دادائمه ثلاثو اودجمهورو مسلك دې. امام ابويوسف رحمه الله هم ددې قائل دې او دامام ابوحنيفه رحمه الله يو روايت هم ددې مطابق دې.

② **داودس تعين اودتيمم عدم جواز:** وضوء متعين دی اوتيمم ناجائزدې. دا د سفيان ثوری رحمه الله مسلك دې او دامام ابوحنيفه رحمه الله مشهور روايت دې.

③ **د اودس اوتيمم جمع كول:** دامام محمد رحمه الله مسلك دادې چه كه نورې اوبه نه وی. نو رومبې دې په دې وضوء اوكړی روستو دې بيا تيمم هم اوكړی دا د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله يو روايت هم دادې.

[1] اخرجه مسلم كتاب الصلوة باب الجهر بالقراءة فی الصبح والقراءة علی الجن، رقم (۱۵۲ - (۴۵۰)

③ **د اودس وجوب اوتيمم استحباب:** په دې صورت کښې اودس واجب دې.اودې څخه روسته تيمم مستحب دې دا د امام اسحاق بن راهويه رحمه الله مسلك دې.

**دامام ابوحنيفه عدم جواز وضوء ته رجوع:** علامه کاساني رحمه الله په بدائع کښې نقل کړې دی.چه امام صاحب رحمه الله په اخرکښې رومبی قول ته رجوع کړې ده.د دې وجې اوس په نبيذ سره په عدم وضوء باندې دائمه اربعۀ اتفاق دې.احنافو کښې امام طحاوی رحمه الله ،علامه ابن نجيم رحمه الله اوقاضی خان رحمه الله هم دا اختيارکړې دې.اگرچه علامه شامی رحمه الله ته په دې اعتراض دې اودوئ د ،،البحرالرائق،، په حاشيه باندې ليکلې دی.چه مفتی به قول د متون روايت کيدل پکاردی.اودې کښې د جوازفتوی ورکړې شوه. خو متاخرين احناف رحمهم الله د عدم جواز روايت ته ترجيح ورکوی.خاص کر په دې وجه چې دې ته د امام صاحب رحمه الله رجوع ثابته ده .

**په حديث الباب باندې استدلال:** حديث الباب يعنی ((عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه قال سألنی النبی صلى الله عليه وسلم مافی اداوتك ؟ قلت نبيذفقال ثمرة طيبة وماء طهور)) دحضرت سفيان ثوری رحمه الله اودامام ابوحنيفه رحمه الله د قول اول مستدل دې.

**اشکال:** امام ترمذی رحمه الله او جمهورو محدثين دناقابل استدلال گرځوی.ځکه چه ددې مدار په ابوزيد دې. چه مجهول دې

**جوابونه:** ① ابوزيد مجهول نه دې ځکه چې دا د عمروبن حريث مولی دې او دوه کسان د دوی څخه روايت کوی يو راشدبن کيسان او ابو روق عطيه بن حارث خو دومره ده چې د دوی نوم معلوم نه دې نو مجهول العين نه شوبلکه مجهول الحال او صفت شو اودا د حديث صحت ته څه نقصان نه رسوی.

② د دې روايت څه ځوارلس متابع روايات موجود دی کوم چې په تفصيل سره په نصب الرايه او عمدةالقاری ()کښې موجود دی.نو ابوزيد په خپل روايت کښې منفرد هم نه دې

**دويم اشکال:** په دې سند کښې ابوفزاره دې کوم چې مجهول دې دا معلومه نه ده چې د دې څخه راشدبن کيسان دې اوکه بل څوك دې؟

**جواب:** د ابوفزاره څخه مراد راشدبن کيسان دې يعنی بن معين ، ابن عدی ،ابن عبدالبر ،دارقطنی او امام بيهقی د دې تصريح کړې ده([2]) او د دوی څخه جم غفير روايت کوی نو دې مجهول نشو.

**دريم اشکال:** دا روايت ځکه صحيح نه دې چې عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د نبی کريم صلى الله عليه وسلم سره په ليلة الجن کښې موجود نه وو.

[1] ) عمدة القاری باب لا يجوز الوضوء بالنبيذ والمسكر (۱۸۰\۱۳)-

[2] ) تهذيب التهذيب (۲۲۷\۱۳)-

**جواب:** عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د نبی کریم ﷺ سره په ليلة الجن کښې موجود وو پخپله امام ترمذی په ترمذی کښې د دې تصريح کړې ده ((وكان رواية اسماعيل اصح من رواية حفص بن غياث))(۱)اود اسماعيل په روايت کښې دی ((انه كان مع رسول الله ﷺ ليلة الجن الحديث بطوله))د دې څخه معلومه شوه چې ابن مسعود ورسره وو.په دويم جلد کښې هم دی چې نبی کريم ﷺ د ابن مسعود رضي الله عنه څخه ګول کربښه تاؤ کړه او ورته ئې اوفرمائيل چې د دې کربښې څخه بهر مه اوځه اوامام ترمذی دغه روايت هم صحيح ګرځولې دې (۲)

**انصافی خبره:** بعضې احنافو دضعف حديث اعتراض رفع کولو دپاره دحديث دثابتولو کوشش کړې دې.خو حقيقت دادې چه دا توجيهات دتکلف څخه خالی نه دې.اوچه کله د امام صاحب رحمه الله د جمهورو قول ته رجوع ثابته ده نو بيا د دې تکلف څخه ډك جوابابونو ته څه ضرورت دې.د دې وجې امام طحاوی رحمه الله اوعلامه زيلعی رحمه الله غوندې حنفی محدثينو هم ددې حديث ضعف تسليم کړې دې.والله اعلم

**[۴۸۲] د پيشو دجوټې حکم**

۴۸۲-(۱) [۸] ۱ «وَعَنْ كَبْشَةَ بِنْتِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -وَكَانَتْ تَحْتَ ابْنِ أَبِي قَتَادَةَ- ۲ أَنَّ أَبَا قَتَادَةَ دَخَلَ عَلَيْهَا، فَسَكَبَتْ لَهُ وَضُوءًا، ۳ فَجَاءَتْ هِرَّةٌ تَشْرَبُ مِنْهُ، ۴ فَأَصْغَى لَهَا الْإِنَاءَ حَتَّى شَرِبَتْ، ۵ قَالَتْ كَبْشَةُ: فَرَآنِي أَنْظُرُ إِلَيْهِ، فَقَالَ: ۶ أَتَعْجَبِينَ يَا ابْنَةَ أَخِي؟ قَالَتْ: فَقُلْتُ: نَعَمْ. ۷ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ، ۸ إِنَّهَا مِنَ الطَّوَّافِينَ عَلَيْكُمْ أَوِ الطَّوَّافَاتِ» ". رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ د بي بي کبشه بنت کعب بن مالك څخه چې د ابو قتاده رضي الله عنه د خوي ښځه وه روايت دې ۲ چې يوه ورځ د هغه سخر(خسر) ابو قتاده رضي الله عنه هغې ته راغې بي بي کبشه وايي چې ما د هغه د اودس د پاره په يو لوښي کې اوبه کينبودلې ۳ يوه پيشو(پشي) راغله د هغه څخه يې اوبه څکل شروع کړل ۴ ابو قتاده رضي الله عنه د هغې طرف ته لوښي ښکته کړو (چې په اساني سره اوبه وڅکي) نوپيشو(پشي) اوبه وڅښلې ۵ بي بي کبشه وايي ابو قتاده رضي الله عنه چې زه وليدم چې زه په تعجب سره هغه طرف ته ګورم نو هغه اوويل ۶ زما وريري تاته په دې تعجب کيږي؟ ما اوويل چې هو ۷ ابو قتاده رضي الله عنه اوويل چې حضور ﷺ وفرمايل پيشوګانې (پشيانې) ناپاکه نه دې ۸ ځکه چې دوې تاسو ته د تلونکو راتلونکو والو څخه

---

(۱) ((باب كراهية ما يستنجى به))

(۲) جامع الترمذی ابواب الامثال (۱۰۹/۲)-

(۳) اخرجه مالك فی الموطا كتاب الطهارة باب الطهور للوضوء (رقم- ۱۳) وابوداود كتاب الطهارة . باب سؤر الهرة (رقم- ۷۵) اخرجه ابود داود كتاب الطهارة . باب سؤر الهرة (رقم- ۷۶) والترمذی كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی سؤر الهرة (رقم- ۹۲) والدارمی كتاب الطهارة/باب الهرة إذا ولغت فی الإناء (رقم-۷۶۳)

دي يا دا يي وفرمايل چې تلونكي راتلونكي دي،( مالك احمد ترمذي ابوداؤد نسائي ابن ماجه دارمي)

**حل اللغات:** ① فَسَكَبْتُ: اوبه مې واچولې، ② فَأَصْغَى: أَيْ: أَمَالَهُ: لوښې ئې ورته ښکته کړو. ③ الطَّوَّافِينَ أَوِالطَّوَّافَاتِ: بار بار تلونكى راتلونكى، أو د راوى شک دې چه نبى عليه السلام د مذکر صيغه استعمال کړې وه او که د مؤنث.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَاابْنَةَ أَخِي؟:

**د ابنة اختى محمل:** حضرت قتاده ﷺ د عربو دعادت مطابق کبشه ﷺ ته ئې رور او د هغه لور ته ئې لور اووئيله، ددې نه اسلامى رورولى مراد ده ، رشته دارې ترې مراد نه ده.

**قوله:** أَنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ:

**اشکال:** د نجس لفظ مذکر دې نو د هرة دپاره څنګه استعمال شو؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① ددې يو عام شان جواب په طور د لطيفې دادې چې (زيدها هو) يعنى که ددې نه لفظ مراد اخلې نو دمذکر ضمير به راوړې. څکه چې زيد مذکر دې ليکن که زيد سره دَ كلمة اراده اوکړې نو مؤنث هم جائز دې. دا لطيفه هر ځائې کښې چليږى.

② شيخ عبدالحق صاحب رحمة الله عليه په لمعات کښې فرمائى چې د مشکوة او مصابيح په ټولو نسخو کښې دا لفظ هم داشان مذکر دې. خو په شروحاتو کښې دا (انها نجسة) تانيث سره راغلې دې. شيخ فرمائى چې د ترمذى څينو زړو نسخو کښې دالفظ تذکير سره راغلې دې . داسې معلوميږى چې د حديث پاك اصل لفظ نجس مذکر دې. چا په دې کښې تغير کړې دې او ددې نه ئې نجسة جوړې کړې دې. او شروحاتو دا ذکر کړو، د راتلونکى حديث معامله هم څه داشان ده.

**دمؤنث دپاره د مذکر صيغې د استعمال وجه:** شيخ عبدالحق رحمه الله فرمائى چې د مؤنث د پاره د مذکر صيغه په دې و جه استعمال شوې ده چې د هرة نه سنور مراد اخستې شوې دې. دې پسې راتلونکى د حضرت عائشه رضى الله عنها حديث پاك کښې لفظ هرسه راغلې دې.

**د پيشود جوټې په حکم کښې مذاهب:**

① سور هره دامام اوزاعى رحمه الله په نيز نجس ده.

② دائمه ثلاثو او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز بلاکراهت طاهره ده

③ د امام ابوحنيفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نيز مکروه ده. بياامام طحاوى رحمه الله ورته مکروه تحريمى وائى اوامام کرخى تنزيهى اکثراحنافو دکرخى روايت ته ترجيح ورکړې

ده.او په کراهت تنزیهی ئې فتوی ورکړې ده.

**د سؤرالهرة د نجاست دلیل:** په مسند احمد وغیره کښې دحضرت ابوهریره رضي الله عنه حدیث دې. ((قال کان النبی صلی الله علیه وسلم یأتی دارقوم من الانصار ودونهم دار فشق ذلك علیهم فقالوا یارسول الله ﷺ تأتی دارفلان والا تأتی دارنا فقال النبی ﷺ لان فی دارکم کلبا قالوا فان فی دارهم سنو فقال النبی صلی الله علیه وسلم السنور سبع))

ددې حدیث دآخری جمله د ((السنور سبع)) ځخه د امام اوزاعی رحمه الله استدلال دې.دې جمله کښې پیشودرنده شمارلې شوې ده.او د درنده جوټه پلیته وی.

**د اول فریق د دلیل دوه جوابونه:**

① خو حافظ جمال الدین زیلعی رحمه الله په نصب الرایه. کښې فرمائی چه داحدیث ضعیف دې (١)

② په مجمع الزوائد(٢) ، کښې علامه هیثمی رحمه الله ددې حدیث ذکرکولو نه پس فرمائی ((وفیه عیسی بن المسیب وهوضعیف)) دې ځخه علاوه که استدلال تسلیم هم شی نو بیا هم هره به په علت د کثرت طواف او عموم بلوی د سور سباع د حکم ځخه خارج وی.

**د عدم نجاست دلائل:** ① د عدم نجاست سورالهرة دپاره د حضرت ابوقتاده رحمه الله حدیث الباب دلیل دې.په دې کښې ابوقتاده پشو ته لوښې وربنکته کوی چې هغه ترې اوبه اوڅکی معلومه شوه چې د پیشو جوټه پلیته نه ده.

② په ابوداوٗد کښې دی ((حدثنا عبدالله بن مسلمة قال حدثنا عبدالعزیز عن داوٗد بن صالح بن دینار التمار عن امه ان مولاتها ارسلتها بهریسة الی عائشة فوجدتها تصلی فأشارت الی ان ضعیها فجاءت هرة فأکلت منها فلما انصرفت أکلت من حیث أکلت الهرة فقالت ان رسول الله ﷺ قال انها لیست بنجس انما هی من الطوافین علیکم وقد رأیت رسول الله ﷺ یتوضاء بفضلها (٣)

③ واخرج مسدد فی مسنده عن ام سلمة انه اهدي لها قصعة فیها خبزولحم فقامت الی الصلاة وقمنا نصلی فخالفت هرة الی الطعام فأکلت منه الی ان سلمنا اخذت ام سلمة القصعة فدورتها حتی کان حیث أکلت الهرة من نحوها منه (٤)

④ عن الرکین بن الربیع عن عمته ان الحسن بن علی رضي الله عنه قال لاباس بسور الهرة (٥)

⑤ عن ابی سعید الجابري ان علیا سئل عن الهرة تشرب من الاناء قال لاباس بسور الهرة (٦)

**د کراهت دلائل:** ① د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل امام طحاوی رحمه الله ذکر کړې دې ((ابوبکرة

(١) ١٣٤\١ . ١٣٥ فصل فی الاسار وغیرهاالحدیث السابع والاربعون ١٢) ــ
(٢) باب فی السنور والکلب ١\١٨٦، ١٨٧
(٣) (ابوداوٗد ١\١١ باب سورة الهرة)-
(٤) المطالب العالیة لابن حجر ١\١١ رقم ١٩)-
(٥) المطالب العالیة لابن حجر (١\١١) رقم ٣٠)-
(٦) المطالب العالیة لابن حجر (١\١١) رقم ٣١)-

حدثنا قال ثنا ابوعاصم عن قرة بن خالد قال ثنا محمد بن سيرين عن ابي هريرة عن النبي ﷺ قال طهور الاناء ان اولغ فيه الهر أن يغسل مرة اومرتين شكو)) (١)بيا امام طحاوي فرمائي ((هذا حديث معصل الاسناد))

**اشكال:** په دې اعتراض شوې دې.چه هم داحديث هشام بن حسان د محمدبن سيرين څخه موقوف علي ابي هريرة روايت کړې دې.د دې وجې په دې کښې وقفًا او رفعًا اضطراب پيدا شو

**جواب:** امام طحاوي رحمه الله فرمائي چې د محمدبن سرين دا عادت دې.چه هغه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث موقوفًا ذکر کوی.حال دادې چه هغه مرفوع وی.ددې دليل امام طحاوی رحمه الله دا بيان کړې دې. ((حدثنا ابراهيم بن ابي داؤد» قال ثنا ابرهيم بن عبدالله الهروي قال ثنا اسمعيل بن ابراهيم عن يحي بن عتيق عن محمد بن سيرين انه كان اذا حدث عن ابي هريرة رضي الله عنه فقيل له عن النبي صلى الله عليه وسلم فقال كل حديث ابي هريرة عن النبي (٢) ﷺ) دې څخه معلومه شوه چه محمدبن سيرين رحمه الله چه کوم روايت هم د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت کوی هغه به مرفوع وی.که د مرفوع کيدو تصريح اوکړی اوکه نه.نو دا اضطراب رفع شو.

② امام طحاوی رحمه الله دابوهريره رضي الله عنه دا اثرهم نقل کړې دې.((يغسل الاناء من الهركما يغسل من الكلب))(٣)

③ د ابن عمر رضي الله عنه اثرهم امام طحاوی رحمه الله په ((شرح معاني الاثار)) کښې نقل کړې دې.((عن ابن عمر انه قال لاتوضوا من سور الحمار ولا الكلب ولا السنور))

طريقه د استدلال دا ده چې يو طرف ته د طهارت روايات دی او بل طرف ته د نجاست روايات دی.نو په قدر مشترك به عمل کولې شی چې مکروه دې.

**آخرى فيصله:** رواية الباب اګرچې صحيح دې خو اعتراض پرې هم شوې دې.د دې په مقابل کښې هم صحيح روايات شته نو درميانه لاره به اختيار کړې شی چې کراهت تنزيهی دې.اوهغه هم په دې صورت کښې چې ماء مطلق اوبه وی که مآء مطلق نه وی نو بيا خو بلاکراهته په سور الهره باندې اودس کول جائز دی.

**نوټ:** دا خبره دې په ذهن کښې وی چې د سورالهرة په باره کښې چې د طهارت يا د کراهت تنزيهی کول اقوال دی.دا په هغه وخت کښې دی چې پيشو مګه نه وی خوړلې اوکه مګه ئې خوړلې وی او سمدستی ئې اوبه جوته کړې نو بيا به ئې جوته پليته وه او هغه جوته شوې څيز به پليت وی.

---

[١]) شرح معاني الاثارباب سورالهرة)-

[٢]) طحاوي ١١١١ باب سورة الهرا) ـ

[٣]) حواله بالا١٢ ) ـ

## [۲۸۳] د پیشو په جوټه د اودس کولو حکم

۲۸۳-() [۹] [۱] «وَعَنْ دَاوُدَ بْنِ صَالِحِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ أُمِّهِ، [۲] أَنَّ مَوْلَاتَهَا أَرْسَلَتْهَا بِهَرِيسَةٍ إِلَى عَائِشَةَ. [۳] قَالَتْ: فَوَجَدْتُهَا تُصَلِّي، فَأَشَارَتْ إِلَيَّ: أَنْ ضَعِيهَا، [۴] فَجَاءَتْ هِرَّةٌ، فَأَكَلَتْ مِنْهَا، [۵] فَلَمَّا انْصَرَفَتْ عَائِشَةُ مِنْ صَلَاتِهَا، أَكَلَتْ مِنْ حَيْثُ أَكَلَتِ الْهِرَّةُ.

ترجمه: [۱] د اود بن صالح بن دینار رحمه الله د خپلي مور څخه نقل کوي [۲] چې یوه ورځ د هغې آزادونکي مالکي هغې ته هریسه [چې غوښې او غنم ګډ پاخه شی او هریسه شي. اردو ژبه کې ورته حلیم وایي.] ورکولو سره یي د بي بي عائشې رضي الله عنها په خدمت کې ولیږله [۳] د هغه مور وایي چې زه هلته ورسیدم نو بي بي عائشې رضي الله عنها مونځ کولو هغې په اشاره سره د هغه د ایښودلو د پاره ماته اوویل (نو ما د هریسه لوښي کیښودل په دې کې) [۴] یوه پشو (پشي) راغله د هغې څخه یي خوړل شروع کړل [۵] بي بي عائشه رضي الله عنها چې د مانځه څخه فارغه شوه نو پشو (پشي) چې کوم طرف ته حریره خوړلي وه هم د هغه طرف څخه یي وخوړله

[۶] فَقَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ، [۲] إِنَّهَا مِنَ الطَّوَّافِينَ عَلَيْكُمْ". [۳] وَإِنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأُ بِفَضْلِهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

ترجمه: [۱] بیا یي وفرمایل د حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد دي چې (پشو) پشي ناپاکه نه ده [۲] او هغه تاسو ته د تلونکو راتلونکو څخه ده [۳] او ما خپله حضور صلی الله علیه وسلم د پیشو (پشي) په جوټه (پسخورده) اوبو سره په اودس کولو لیدلي دي ابوداؤد

**حل اللغات:** ① مَوْلَاتَهَا: آزادونکي مالکه، ② بِهَرِيسَةٍ: چه غوښه او د غنمو اوړه یو ځای پاخه شی لکه حلیم سالن. ③ بِفَضْلِهَا: باقی پاتي شوي اوبه.

## [۲۸۴] د خر او درنده د جوټې حکم

۲۸۴ - () [۱۰] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: [۲] «سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَتَوَضَّأُ بِمَا أَفْضَلَتِ الْحُمُرُ؟ [۳] قَالَ: "نَعَمْ، وَبِمَا أَفْضَلَتِ السِّبَاعُ كُلُّهَا"» رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

ترجمه: [۱] حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي [۲] چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وشوه آیا مونږ په هغه اوبو سره اودس کولي شو چې خرو پسخورده (جوټه) کړي وي [۳] حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل هو [په هغه اوبو سره اودس کول جائز دي] او په هغه اوبو سره هم اودس کول جائز دي چې درندګانو پسخورده (جوټه) کړي وي. (شرح السنة)

---

[۱] اخرجه ابوداود کتاب الطهارة، باب سؤر الهرة (رقم - ۷۶)

[۲] اخرجه شرح السنة في كتاب الطهارة باب غسل النجاسة الكلب... رقم الحديث ۲۲٤

**حل اللغات:** ① أَفْضَلَتِ الْحُمُرُ: د خرو جوټه شوې باقي پاتې اوبه. ② السِّبَاعُ : درنده ګانوته په عربي کښې سباع وائي لکه ازمرې، ميلو، ليوه، لومبړه وغيره شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** السِّبَاعُ كُلُّهَا: د درنده ګانو څناورو په جوټه کښې اختلاف دې.

**د درندګانو د جوټې په حکم کښې مذاهب:**

① دَ ځنګلي درنده ګانوجوټه دَمالکيه اوشافعيه په نيزپاکه ده

② دَاحنافو او دَ يوقول مطابق دَ حنابله په نيزناپاکه ده.

**داول فريق دلائل:** ① زيربحث روايت داول فريق دليل دې. کوم چې په خپله مدعا باندې واضح دليل دې. ② حديث نمبر(۳۸٦)او (۳۸۸) هم د دوی مستدل دې

**د دويم فريق دلائل:** ① دَ شريعت هغه ضابطه د دوی مستدل دې په کومم کښې چه ليکلی دی چه دَ کوم څيزچه غوښه حرام ده دَهغې جوټه هم حرام ده ځکه چه لعاب هم دَ غوښې نه راپيدا کيږی.

② په فصل الثالث د حضرت عمرو بن عاص رضي الله عنه روايت هم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دا الفاظ دی: "هل تردحوضك السباع" داسوال دَدې خبرې دليل دې چه حضرت عمروبن العاص رضي الله عنه به دَ درنده ګانوجوټه ناپاکه ګڼله ګنی دَ سوال څه ضرورت وو. داحديث دَ شوافع دليل دې که چرې دَ مذکوره الفاظو نه احنافو استدلال کړې دې.

**د اول فريق د دليل درې جوابونه:** ① دلته دَيقين خبره نشته بلکه صرف يو احتمالي خبره ده چه کيدې شی درنده ګانوپه اوبوکښې خله وهلې وی حضورپاك دارد کړه ځکه چه "اليقين لايزول بالشك"

② شيخ عبدالحق رحمه الله په لمعات کښې داجوابورکړې دې چه په طهارت باندې دلالت کونکی رواياتوباندې کلام دې.

③ دا روايات دَ غټو حوضونو متعلق دی په کوم کښې ماء کثيروی او په هيڅ شان سره ناپاکه کيږی نه. [اشعة المعات: ۱/۲۶۷]

**قوله:** بِمَا أَفْضَلَتِ الْحُمُرُ؟:

**د خر د جوټې حکم:** دَاحنافوپه نيزدَخرجوټه مشکوك ده يعنی دَ دلائلو په تناظرکښې چه کوم شك شبه راځی دَهغې دَ وجې نه مشکوك ده ګنی شريعت ته په حکم اوررولوکښې هيڅ شك نشته.

**د خرد جوټې په حکم کښې د شک سبب:** په پوهيدلو کښې شك داسې راغلوچه دَخرغوښه حرامه ده دَ کوم چه تقاضا ده چه دَ ده لاړې او خوله دواړه نجس دی. ليکن حضورپاك په

خرباندې سورلی کړې ده نولامحاله به خوله لګیدلې وی. حضورپاك دَدې دَنجاست هیڅ څه خبره نه خودلې نوخوله ئې پاکه شوه اوچونکه دَ خولې په شان لاړې هم دَ غوښې نه متولددی نولاړې هم دغه شان پاکیدل پکاردی دَدې وجې نه شك پیدا شو نومسئله مشکوك شوه لهذا په مشکوك اوبو سره به اول اودس اوکړې شی بیابه تیمم کیږی.

• دَمذکوره حدیث تعلق کیدې شی چه حماروحشی سره دې اوهغه حلال دې.

**[۴۸۵]د اوړو سره خلط شوې اوبو باندې د اودس کولو حکم**

۴۸۵–() [۱۱] ①وَعَنْ أُمِّ هَانِئٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ②" اغْتَسَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ وَمَيْمُونَةُ فِي قَصْعَةٍ③فِيهَا أَثَرُ الْعَجِينِ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او بي بي ام هاني رضي الله عنها راویه ده② چې حضور ﷺ او بي بي میموني رضي الله عنها په یو طشت کې غسل وکړلو ③چې په هغه کې د اغړلی(اخښل) شوو وړو څه حصه لګیدلې وه (نسائي ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① قَصْعَةٍ: أَيْظَرْفٌ كَبِيرٌ: لوئې لوښې، خانک، لګن ② الْعَجِين: وَهُوَالدَّقِيقُ الْمَعْجُونِ: اغړلی شوی اوړو ته دقیق وائی.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۴۸۶]د درندګا نو جوړته شوې حوض حکم**

۴۸۶–() [۱۲] ①وَعَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ، قَالَ: ②إِنَّ عُمَرَ خَرَجَ فِي رَكْبٍ فِيهِمْ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ③ حَتّٰى وَرَدُوا حَوْضًا.④ فَقَالَ عَمْرٌو: يَا صَاحِبَ الْحَوْضِ، هَلْ تَرِدُ حَوْضَكَ السِّبَاعُ؟⑤ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: يَا صَاحِبَ الْحَوْضِ، لَا تُخْبِرْنَا،⑥فَإِنَّا نَرِدُ عَلَى السِّبَاعِ وَتَرِدُ عَلَيْنَا. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ① یحیي بن عبد الرحمٰن فرمایي ② چې حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه د یوي قافلي سره چې په هغې کې عمرو بن عاص رضي الله عنه هم وو لاړلو(روان شو) ③ هرکله چې (اهل قافله په خنګل کې) یو تالاب ته ورسیدل④ نو عمرو بن عاص رضي الله عنه پوښتنه وکړه اي د تالاب مالکه آیا ستا دي تالاب ته (د اوبو څکلو د پاره) درندګان هم راځي؟⑤ (په دې اوریدو سره) حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه وفرمایل اي د تالاب مالکه د دې ښودلو هیڅ ضرورت نشته ⑥ ځکه چې مونږ په درندګانو راځو او درندګان په مونږ راځي (یعني کله مونږ اوبو ته راځو او کله درندګان اوبو ته راځي) او په تالاب کې اوبه زیاتي دي په دې وجه د درندګانو په څکلو سره نه ناپاکه کیږي، مالك

---

[1] اخرجه النسائي كتاب الطهارة/باب ذكر الاغتسال في القصعة التي يعجن فيها(رقم-٢٤٠)باب ذكر الاغتسال في القصعة التي يعجن فيها (رقم-٢٤٠) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب الرجل والمرأة يغتسلان من إناء واحد (رقم-٣٧٨)

[2] اخرجه مالک في الموطا كتاب الطهارة باب الطهور للوضوء (رقم-١٤)

**حل اللغات:** ① رَكْبٍ: أَيْ: جَمَاعَةٍ مِنَ الرَّاكِبِينَ: په اسونو وغيره د سورو قافلې ته ركب وائي. ② وَرَدُوا حَوْضًا: اورسيدل يو تالاب ته.

٤٨٧-()[٠] ①وَزَادَ رَزِينٌ، قَالَ: ②زَادَ بَعْضُ الرُّوَاةِ فِي «قَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: وَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ يَقُولُ: "لَهَا مَا أَخَذَتْ فِي بُطُونِهَا، وَمَا بَقِيَ فَهُوَ لَنَا طَهُورٌ وَشَرَابٌ»".

**ترجمه:** ① او رزين ويلي دي چې بعضې راويانو د حضرت عمر رضي الله عنه په دې قول كې دا الفاظ زائد نقل كړي دي چې حضرت عمر رضي الله عنه وايي چې ماخپله د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چې درندګان څه په خپله خيټه كې يوسي هغه د هغوئ دي او څه چې باقي پاتې شي هغه زمونږ د څكلو قابل او پاكونكي دي.

**[٤٨٨] دحوضونو د اوبو حكم**

٤٨٨-()[١٣] ①وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، ②«أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم سُئِلَ عَنِ الْحِيَاضِ الَّتِي بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ ③تَرِدُهَا السِّبَاعُ وَالْكِلَابُ وَالْحُمُرُ عَنِ الطُّهْرِ مِنْهَا ④فَقَالَ: "لَهَا مَا حَمَلَتْ فِي بُطُونِهَا، وَلَنَا مَا غَبَرَ طَهُورٌ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① ابوسعيد خدري رضي الله عنه راوي دي ② چې رسول الله ﷺ څخه د هغه تالابونو په باره كې پوښتنه وشوه چې د مكې او مدينې په مينځ كې واقع دي ③ او هغې ته (د اوبو څكلو د پاره) درندګان (درندي) سپي او خره راځي آيا په دې سره څه شي پاك كيدي شي يا نه؟ ④ حضور ﷺ وفرمايل څه چې د هغوئ په خيټو كې راشي هغه د هغوئ دي او څه چې باقي پاتې شي هغه زمونږ د پاره پاكونكي دي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① الْحِيَاضِ: أَيِ: الْغُدْرَانُ: د حوض جمع ده، تالابونو ته وائي. ② غَبَرَ: أَيْ: بَقِيَ: باقي پاتې.

**[٤٨٩] په نمر كرمې شوې اوبو باندې غسل كول**

٤٨٩-()[١٤] ①وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ②لَا تَغْتَسِلُوا بِالْمَاءِ الْمُشَمَّسِ ③فَإِنَّهُ يُورِثُ الْبَرَصَ. رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** ① د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه په باره كې روايت دي چې هغه وفرمايل ② چې د نمر په ګرمۍ كې د ګرمو شوو اوبو سره غسل مه كوئ ③ څكه چې دا د برص (برګې) بيماري سبب وي. دارقطني

**حل اللغات:** ① الْمُشَمَّسِ: وَهُوَ أَنْ يُوضَعَ الْمَاءُ فِي الشَّمْسِ لِيَسْخُنَ: هغه اوبه چه په نمر ګرمې شي. ② يُورِثُ: پيدا كوي، ③ الْبَرَصَ: برګې مرض دې چه په بدن باندې په څرمن سپين چاپونه پيدا شي.

---

[١] اخرجه رزين
[٢] اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب الحياض (رقم - ٥١٩)
[٣] اخرجه الدارقطني في السنن رقم الحديث ٤ من باب الماء مسخن

# [۸/۱۳] بَابُ تَطْهِيرِ النَّجَاسَاتِ

## دَ نجاستونو دَ پاکولو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه أربعة وعشرون حديثاً مشتملة على تسع مسائل:**

① طريق التطهير عن ولوغ الكلب: ۱.

② طريق تطهير الأرض: ۲، ۳، ۲۳.

③ طريق تطهير الدم من الثوب: ۴.

④ طريق تطهير المني من الثوب: ۵، ۶.

⑤ طريق تطهير بول الغلام والجارية: ۷، ۱۱.

⑥ طريق تطهير النعل والرجل: ۱۲، ۲۱، ۲۲.

⑦ طريق تطهير النجاسة اليابسة: ۱۳.

⑧ حكم بول مايؤكل لحمه: ۲۴.

⑨ حكم الجلود: ۸، ۹، ۱۰، ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰.

**د نجس لغوی معنی:** لفظ نجس دَ باب سمع اوکرم دواړونه راځی صاحب قاموس لیکلی دی چه دَنجس په جیم باندې کسره او فتح دواړه لوستلې شی.

**دنجس اصطلاحی تعریف:** دَ فقهاء کرامو په اصطلاح کښې که چرې دَجیم کسره وی نو دا عین اوذاتِ نجاست ته وئیلی شی اوکه چرې دَجیم فتح وی نو دا عام دې ذاتِ نجاست ته هم وائی اوهغه څیزته هم وائی کوم سره چه نجاست لګیدلې وی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### [۴۹۰] د سپی جوټه شوې لوښې اووه ځله وینځل

۴۹۰-(۱) [۱] ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" «إِذَا شَرِبَ الْكَلْبُ فِي إِنَاءِ أَحَدِكُمْ فَلْيَغْسِلْهُ سَبْعَ مَرَّاتٍ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ③وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: («طَهُورُ إِنَاءِ أَحَدِكُمْ إِذَا وَلَغَ فِيهِ الْكَلْبُ ④أَنْ يَغْسِلَهُ سَبْعَ مَرَّاتٍ، أُولَاهُنَّ بِالتُّرَابِ»).

**ترجمه:** ① حضرت ابو هریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② هرکله چې په تاسو کې د چا په لوښي کې سپي اوبه وڅکي نو هغه لوښي اووه ځله وینځل پکار دي،

[۱] اخرجه البخاری کتاب الوضوء باب الماء الذی یغسل به شعر الإنسان (رقم-۱۷۲) ومسلم کتاب الطهارة باب حکم ولوغ الکلب . رقم (۹۰ - (۲۷۹)

بخاري، مسلم، [۳] او د مسلم په یوروایت کې دا الفاظ دي: په تاسو کې چې د چا په لوښي کې سپي اوبه وځکې نو د هغه لوښي د پاکولو صورت دا دي [۴] چې هغه اووه ځله ووينځئ او په اولني ځل يې په خاورو سره ووينځئ.

**حل اللغات:** ① وَلَغَ: إِذَاشَرِبَ بِلِسَانِهِ: د سپي په ژبې سره اوبو څکلو ته وائي. يعنى څټل

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَاشَرِبَ الْكَلْبُ:

**د سپي د جوټې دپاره عربي الفاظ:** دَ سپو او ځناورو په يو لوښي کښې خله وهلو دَپاره په عربي کښې څه مخصوص الفاظ راځي چنانچه وئيلی شی: [ولغ ولغا وولوغا اذا ادخل الكلب او السبع لسانه في الماء، حركه فيه ولحس الكلب لحسا فاذا كان الاناء خاليا فهو لحس واذا كان فيه شئ فهو ولغ] يعنى دَ ژبې په غاړه باندې چه سپی او ځناور وغيره کومې اوبه څټی هغې ته ولغ وائی.

**د سپي د جوټې په حکم کښې مختلف راوايات:** دَ سپی جوټې نه دَ پاکئی حاصلولو په باره کښې مختلف احاديث راغلی دی.

① بعضې کښې "سبع مرات" ذکردې.
② بعضې کښې دَ اتو ځلو وينځلو ذکردې.
③ بعضې کښې دَ درې ځلو وينځلو ذکردې.
④ بعضې کښې دَ بنځو ځلو وينځلو ذکردې.
⑤ بعضې کښې دَ درې ځلو وينځلو ذکردې.
⑥ بعضې رواياتو کښې وينځلو سره دَ خاورې مږلو ذکرهم راغلې دې
⑦ بعضې رواياتو کښې په شروع کښې دَ خاورې دَ استعمال حکم دې،
⑧ بعضې کښې په آخره کښې دې،
⑨ بعضې کښې په اووم ځل خاورې استعمال تعليم دې.
⑩ بعضې رواياتو کښې په اتم ځل دَ خاورې دَ استعمال خبره ده.

دَ رواياتودَ دې اختلاف دَ وجې نه په فقهاء كرامو کښې هم اختلاف راغلې دې. ليکن دا ياد ساتئی چه دلته په دوو مسئلو کښې جدا جدا اختلاف دې.

**د سور الكلب په حکم کښې مذاهب:**

دسور کلب په باره کښې دفقهاؤ اختلاف دې.

① د امام مالك رحمه الله په نزد دې سره لوښې نه پلتيږی. البته داووځلو وينځلوحکم تعبدی دې يعنى دَ شريعت حکم دې دَ نجاست دَ وجې نه نه بلکه شريعت دَ وينځلو فرمائيلی دی نو مونږ ئی وينځو. دا څيز په عقل کښې راتلونکې نه دې اودا نص غير معقول المعنى اودَ

قياس خلاف دي.

② دجمهورو په نزد سورکلب نجس دي.

**داول فريق اول دليل:** ① دَ قرآن مجيد دَ آيت نه دوی استدلال کړي دي. چې دَ ښکاری سپو باره کښې دَ قرآن پاك حکم دې چه کوموسپو ښکارکړې دې اوستاسو دَ پاره ئې راحصار کړې دې تاسو هغه خورئی. ﴿فَكُلُوامِمَّاأَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ﴾ طرز دَ استدلال داسې دې چه ښکار کله سپی په خله کښې نیولې دې نودَ هغه لعاب به خامخا لګيدلې وی او په قرآن کښې دَ هغې دَ خوړلو ذکر دې دَ وينځلو حکم نه دې. نو معلومه شوه چه دَ سپی په جوټې سره هغه ښکار نجس نه شو نودَ ده جوټه پاکه شوه.

**د اول فريق د اول دليل جواب:** که چرې دَ "کلوا" امر دَ يو قيد لحاظ کولونه بغير مطلق اخلئی نوبيا اوښايئی چه کچه غوښه به خورئی، وزرو کولمو او دَ وينې ککړ والی سره به ئی خورئی؟ ځکه چه په قرآن کښې خو "کلوا" راغلې دې يعنی خورئی که دَ وينځلو قيد نشته دې نودَ دې ټولو څيزونو هم قيد نشته دې. حالانکه دَ آيت مطلب دَ اقتضاء النص په توګه دا دې چه دَ دغه ښکار غوښه جوړه کړئی، وينځئی، پخه ئی کړئی او بيائی خورئی نو بغيردَ وينځلو دَ خوړلو ثبوت دَ چرته نه راغلو؟ کله چه آيت په لازمی توګه باندې مقيد دې نوبيا دَ وينځلو قيد هم شته دَ کوم نه چه دَ جوټې نجاست ثابتيږی.

**د اول فريق دويم دليل:** ② دَ بخاری شريف روايت د دوی مستدل دې کوم چه صاحب مشکوة فصل ثالث کښې دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنه په روايت سره نقل کړې دې چه [كانت الكلاب تقبل وتدبر في المسجد في زمان رسول الله صلى الله عليه وسلم فلم يكونوا يرشون من ذلك] نو ښکاره خبره ده چه کله سپی جمات ته تلل راتلل نو لعاب به ئی په جمات کښې پريوتل او دَ وينځلو ذکر نشته نومعلومه شوه چه دَ سپی جوټه پاکه ده.

**داول فريق د دويم دليل دوه جوابونه:**

① ترکومې چه په جماتونو کښې دَ سپو دَ تګ راتګ او لعاب غورزيدلو دليل دې نودَې جواب دادې چه هغه نوې جمات وو دَ شګو ډيری وو څه چارديواری نه وه دَ شپې به سپی راتلل دَ لعاب اومتيازو دَ ځائی پته به ئی نه لګيدله. ګرم ملك وودَ سخت نمر دَ وجې نه به زمکه پاک کيدله او "زکاة الأرض يبسها" باندې به عمل کيدلو.

② که چرې لعاب پريوتل او هغه پاك وو نو سپی خو به متيازې هم کوی دَ هغې دَ وينځلو هم ذکر نشته هغه هم پاکې شوې؟ علامه خطابی وئيلی دي چه کيدې شی چه هغه سپو بهر متيازې کولې او بيا جمات ته راتلل، نومونږ ورته اووئيل چه شاباش!

**داول فريق دريم دليل:** ③ دَ بخاری شريف هغه حديث د دوی مسدل دې په کوم کښې چه دَ يوې فاجرې ښځې دَ مغفرت ذکردې چا چه په خپلو پنړو کښې دَ تګی سپی دپاره دَ

کوهی نه اوبه راویستلې او وروئی څکولې.
طرز دَ استدلال داسې دې چه دغه موزې او پنړې سره به دغه ښځې مونځ کړې وی اودَ وینځلو هیڅ ذکر نشته دې نومعلومه شوه چه دَ سپی جوټه پاکه ده.
**ه اول فریق ه دویم دلیل جواب:** دَ دغه فاجرې ښځې دَ موزې معامله هم مطلق نه ده بلکه وینځلوسره مقید ده که چرې دَ وینځلو ذکر نشته نودَ نوروځیزونو ذکرخو هم هلته نشته. بل دې سره دَ مونځ کولو تذکره هم نشته دې چه هغې هم دې سره مونځ هم کړې وو.
**ه دویم فریق ه دلائل:**
① دحضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث د دوی مستدل دې. ((قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ طَهُورُ إِنَاءِ أَحَدِكُمْ إِذَا وَلَغَ فِيهِ الْكَلْبُ أَنْ يَغْسِلَهُ سَبْعَ مَرَّاتٍ أُولَاهُنَّ بِالتُّرَابِ)) (مسلم شریف باب حکم ولوغ الکلب)
دې کښې د((ان یغسله)) الفاظ دا ښائی. چه حکم غسل دتطهیر دپاره دې اوتطهیر دهغه ځیز کیږی. چه هغه نجس وی دې وجه نه داحدیث دامام مالک رحمه الله خلاف حجت دې.
**د دویم فریق دویم دلیل:** ② جمهورو عقلی دلیل هم پیش کړې دې چه سپې ډیر زیات نجس دې دَ ده غوښه په اتفاقی توګه باندې حرامه ده نودَ ده نه پیدا شوې لعاب څنګه پاک کیدې شی؟

**د سور الکلب د تطهیر په طریقه کښې مذاهب:**

دَ سپی دَ جوټې دَ تطهیر دَ طریقې په باره کښې دَ جمهورو په خپل مینځ کښې اختلاف دې.
① دَ امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نیز دَ سپی دَ جوټې تطهیر او پاکوالې په اووه ځل وینځلو باندې موقوف دې په کم سره به نه پاکیږی.
② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی دَ سپی دَ جوټې پاکی درې ځل ویځلو سره حاصلیږی اودَ اووه ځل پورې مبالغه کول مستحب دی.
**داول فریق دلیل:** مذکوره خدیث د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دَ اووه ځل ذکر دې.
**داول فریق د دلیل شپږ جوابونه:**
① دَ اووه ځل وینځلو روایت په استحباب باندې محمول دې او د درې ځل وینځلو روایت په فرض باندې محمول دې په دې کښې زمونږ هم اختلاف نشته دې.
② دَ اووه ځل وینځلو حکم دَ اسلام په شروع کښې وو دې دَپاره چه دَ سپو نفرت دَ مسلمانانو په زړونوکښې کینی روستو په دغه حکم کښې تخفیف اوشو.
③ دَ بحث په شروع کښې داخبره تیره شوې ده چه بعضې روایاتو کښې درې، پنځه او اووه ځل وینځلو کښې اختیارهم ورکړې شوې دې لکه څنګه چه دَ دارقطنی په روایت کښې دی. کله چه اختیاردې نو اووه ځل وینځلو ته واجب نه شی وئیلې کیدې.

④ "اغلظ النجاسات" دَ خنزیر جوته اودَ هغه گندگي، پخپله دَ سپی گندگی، دَ حیض وینه او نور نجاستونه ټول دري ځل وینځلوسره پاکیږی نودَ سپی جوته ولې نه پاکیږی؟ حالانکه په دې کښې خو اختلاف هم دې چه امام مالک رحمه الله دې ته پاك وائی.

⑤ درې ځل وینځل دَ طهارت دَ حصول دَپاره دی او اووه ځل دَ طب اوحکمت او دعلاج دَ پاره دی. هم په دې وجه په آخره کښې دَ خاورې ذکر راغلې دې ځکه چه په خاوره کښې نوشادر شامل دی په کوم سره چه دَ سپی دَ خلې جراثیم په خاص توگه باندې مړه کیږی. هم په دې وجه دَ دې حکمت تحقیق کله چه یو ډاکټر اوکړو نوهغه مسلمان شو ځکه چه دا حکمت صرف په وحی سره معلومیدې شی.

⑥ الزامی جواب دادې چه که چرې نه منئی نودَ حضرت عبدالله بن مغفل رضی الله عنه په روایت کښې دَ اته ځل وینځلو ذکر دې او دَ تتریب ذکر هم دې نو تاسو پخپله په حدیث باندې پوره عمل نه دې کړې.

**د دویم فریق دلائل:** ① دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَ روایت نه استدلال کړې دې کوم چه ابن عدی په خپل کتاب الکامل کښې ذکرکړې دې دکوم الفاظ چه دادی: [إذا ولغ الكلب في إناء أحدكم فليهرقه وليغسله ثلاث مرات]

② دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه دَ فتویٰ نه استدلال کړې دې په کوم کښې چه درې ځل دَ وینځلو ذکر دې او طحاوی او دارقطنی دا نقل کړی ده. هغوی داهم لیکلی دی چه دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه خپل عمل هم دَ دریو ځل وینځلو وو. په دې روایاتو سره دَ شوافعو مستدلات منسوخ پاتې کیږی.

## [۴۹] دآسا نتیا پیدا کولو حکم

۴۹-() [۲] ①«وَعَنْهُ قَالَ: قَامَ أَعْرَابِيٌّ، فَبَالَ فِي الْمَسْجِدِ، ②فَتَنَاوَلَهُ النَّاسُ. فَقَالَ لَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ③(دَعُوهُ وَهَرِيقُوا عَلَى بَوْلِهِ سَجْلًا مِنْ مَاءٍ - أَوْ ذَنُوبًا مِنْ مَاءٍ - ④ فَإِنَّمَا بُعِثْتُمْ مُيَسِّرِينَ، وَلَمْ تُبْعَثُوا مُعَسِّرِينَ)». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې یوه ورځ یو صحرایي په مسجد کې په ولاړه متیازي وکړي② (په دي لیدو سره) خلق په هغه پسي پسي شو نو حضور ﷺ وفرمایل③ دي پریږدئ او یو بوقه اوبه د ده په ورو بولو وبهیوئ او حضور ﷺ وفرمایل تاسو خلق اساني کونکي رالیږل شوي یئ د تنګي د پاره نه، (بخاري) (؟)جاري

[۱] اخرجه البخاری کتاب الوضوء باب صب الماء علی البول فی المسجد(رقم-۲۲۰) وابوداود کتاب الطهارة/ باب الأرض یصیبها البول (رقم- ۳۸۰)وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب الأرض یصیبها البول. کیف تغسل (رقم- ۵۲۹) والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی البول یصیب الأرض (رقم- ۱۴۷) والنسائی کتاب الطهارة/باب الترقیت فی الماء (رقم-۵۶)

**حل اللغات:** ① لِتَتَنَاوَلَهُ: وریسي شو یعنی: أي زَجَرُوهُ وَمَنَعُوهُ: بد رد ئې ورته اووئیل او منع ئې کړو. ② دَعُوهُ: أيْ: اتْرُكُوهُ: پریږدئ، ③ هَرِيقُوا: د أَهْرَاقَ يُهْرِيقُ نه د امر صیغه ده، أيْ: صُبُّوا: واړوئ پرې اوبه، ④ سَجْلاً أَوْ ذَنُوبًا: أيْ: دَلْوًا: أو لفظ د راوی شک دې، د دواړو یوه معنی ده یعنی بوقه، بوکه (یا د سجلا معنی وړوکې بوقه او د ذنوبا معنی غټه بوقه)، ⑤ بُعِثْتُمْ: رالیږلی شوی یئ، ⑥ مُيَسِّرِينَ: أيْ: مُسَهِّلِينَ: خلقو سره آسانی او نرمی کونکی، ⑦ مُعَسِّرِينَ: خلقوسره سختی کونکی.

**تسهیلات:**

**قوله: قَامَ أَعْرَابِيٌّ:**

**داعرابی تعریف:** د عربو صحرانشینو ته أعراب وائی. دې طرفته نسبت اعرابی دې. یعنی کلی وال یا بانډیچی.

**د مذکوره اعرابی نوم:** ځینو ددې بانډیچی نوم ذوالخویصرة خودلې دې. دا یو جاهل کس وو. ترمذی کښې دی چې ده په مسجد نبوی کښې مونځ کولو نه پس دعا اوغوښتله: [اللهم ارحمنی وارحم محمدا ولا ترحم معنا احدا] نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې تا د یو فراخه رحمت د بندولوکوشش اوکړو. دې نه لږ ساعت پس دا کس په مسجدکښې اودریدو او متیازې ئې اوکړې. دا سړې دې نه پس د خوارجو مشر جوړ شو. ځینې وائی چې دده نوم اقرع بن حابس وو.

**د زمکې په پاکولو کښې مذاهب:**

① جمهور فرمائی که زمکه پلیته شی نو ددې د پاکولو صرف یوه طریقه ده چې اوبو سره دې اووینځلې شی.

② امام ابو حنیفه رحمة الله علیه فرمائی چې د پلیتې زمکې د پاکولو درې طریقې دی. اول دا چې اوبو سره دې اووینځلې شی.دا اتفاقی صورت دې. دویمه دا چې د دې حصې خاوره دې کنستلوسره اوویستلې شی او نوې خاوره دې راوړی ورډکه دې کړې شی. دریمه طریقه داده چې زمکه دې دَ نمر په ذریعه سره اوچه کړې شی، اوچیدو سره زمکه پاکیږی.

اوس که چا د مسجد په مینځ کښې متیازې اوکړې . نو دا بهٔ کتلې شی که فرش پوخ دې نو کپړا یا تولې سره دې دا اوچ کړې شی . بیا دې کپړا لمده کړې شی او په دې نجس ځائې دې اووهلې شی . دوه درې ځل داشان کولو سره به هغه ځائې پاك شی. په وسط مسجد کښ اوبه تویول په پورا فرش باندې او بیا وینځل صحیح نه دی. او که متیازې د پوخ فرش په غاړه باندې دی نو دا ځائې دې بالکل اووینځلې شی اوبه دې بهر طرفته اوغورزولې شی. او که فرش کچه دې او خاوره مضبوطه ده نو دا دې اوکنستلې شی اودې غورزولې شی. او هلته دې پاکه خاوره واچولې شی. او که خاوره شګلنه ده اوبه په کښې

جذب كيږي نو په دې باندې دې اوبه واړولې شي او ددې د جذب كيدو پورې دې انتظار اوكړې شي . دري ځل داسې كولو سره به زمكه پاكه شي. اوكه په دې باندې نمر لږي نو اوچيدو سره هم زمكه پاكيږي. البته جمهور ددې نه انكار كوي.

**د اول فريق دلائل:** ①زير بحث حديث د دوى مستدل دې په كوم كښې چه داوبو د استعمال ذكر دې.

② هغه حديث د دوى مستدل دې مذكور دى چې مسجد نبوى ته به سپى تلل راتلل. او دا به ئې نه وينځلو.

**د دليلونو ځخه جواب:** دا به په ذكورة الارض يبسها باندې عمل وو. دكوم تفصيل چې د احنافو په دليل كښې راځي.

**د دويم فريق دليل:** احنافو د مصنف ابن ابى شيبة يو حديث پاك ځخه هم استدلال كړې دې كوم چې د محمد بن حنفيه اثردې، فرمائى چې اذا جفت الارض فقد ذكت، يعنى كله چې زمكه اوچيږي نو پاكيږي.

آو په داسې زمكه باندې خو مونځ كيږي خو په دې تيمم نشى وهلې، ځكه چې په قران كريم كښې په نص قطعى سره دا قيد ذكر دې چې تيمم به په پاكه زمكه وهلې شى. او ذكورة الارض يبسها خبر واحد دې كوم چه دَ تيمم دجواز دپاره كافى نه دې.

### [۴۹۲] په جمات كښې د باندېجى متيازې كول

۴۹۲—(۱) [۳] ①«وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ②بَيْنَمَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِذْ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ ③فَقَامَ يَبُولُ فِي الْمَسْجِدِ. فَقَالَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَهْ مَهْ. ④فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُزْرِمُوهُ، دَعُوهُ". ⑤فَتَرَكُوهُ حَتَّى بَالَ،

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي يوه ورځ زمونږ د رسول صلى الله عليه وسلم سره په مسجد كې ناست وو ناګاه يو صحرايي سړي راغې③ او په مسجد كې يې په ولاړه متيازې كول شروع كړل (په دې ليدو سره) د حضور صلى الله عليه وسلم صحابه ؤ هغه ته اوويل مه كوه مه كوه ④ حضور صلى الله عليه وسلم (په دې اوريدو سره) وفرمايل دې د ورو بولو كولو ځخه مه منع كوي بلكه دې پريږدې [چې متيازې وكړي ځكه كه ستاسو د دهمكي سره د ده متيازې بندې شوې نو د ده د پاره به تكليف وي يا بيا داسې كه د ده متيازې په يو ځاى كې وي نو ځو ځايه به لاړې شې]، ⑤صحابه وو رضي الله عنهم پريښودو او هغه صحرايي (چې پوره) متيازې وكړې

(۱) اخرجه البخارى كتاب الوضوء باب ترك النبى صلى الله عليه وسلم والناس الأعرابى حتى فرغ من بوله فى المسجد (رقم-۲۱۹) والنسائى كتاب الطهارة ، باب التوقيت فى الماء (رقم-۵۳) ومسلم كتاب الطهارة باب وجوب غسل البول وغيره من النجاسات إذا حصلت فى المسجد. وأن الأرض تطهر بالماء، من غير حاجة إلى حفرها(رقم# ۹۹ - (۲۸٤) والترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى البول يصيب الأرض (رقم- ۱٤۸)

[۱] ثُمَّ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَاهُ، فَقَالَ لَهُ: [۲] "إِنَّ هٰذِهِ الْمَسَاجِدَ لَا تَصْلُحُ لِشَيْءٍ مِنْ هٰذَا الْبَوْلِ وَالْقَذَرِ، [۳] إِنَّمَا هِيَ لِذِكْرِ اللّٰهِ، وَالصَّلَاةِ، وَقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ). أَوْ كَمَا قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [۴] قَالَ: وَأَمَرَ رَجُلًا مِنَ الْقَوْمِ فَجَاءَ بِدَلْوٍ مِنْ مَاءٍ»، فَسَنَّهُ عَلَيْهِ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: [۱] نو حضور ﷺ هغه راوغوښتو او (په ډير شفقت او مهرباني سره يې) ورته وفرمايل [۲] چې مسجدونه د بولو او ګندګۍ د پاره نه دي [۳] بلکه د ذکر الٰهي او د لمانځه او د قرآن ويلو د پاره دي [۴] يا حضور ﷺ د دې په مثل وفرمايل [يعني راوي ته شك دي چې حضور ﷺ صحرايي ته دا الفاظ فرمايلي وو يا د دې قسم نور الفاظ] [۴] حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې (د دې څخه وروسته) حضور ﷺ په مجلس کې يو سړي ته حکم وکړو هغه يوه بوقه (سولاغه) اوبه راوړې او په متيازو باندې وبهيولې. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① مَهْ مَهْ: اُکْفُفْ: مه کوئ، منع شئ، ② لَا تُزْرِمُوْهُ: أَيْ: لَا تَقْطَعُوا عَلَيْهِ بَوْلَهُ: مه ئې منع کوئ يعنی دې د متيازو کولو نه مه بندوئ، ③ دَعُوْهُ: أَيْ: اتْرُكُوْهُ: پريږدئ، ④ لَا تَصْلُحُ: أَيْ: لَا تَلِيْقُ: ددې دشان سره لائق او مناسب نه دی، ⑤ الْقَذَرُ: مَا يَتَنَفَّرُ مِنْهُ الطَّبْعُ: ګندګی کوم چه د انسان طبيعت کرکه کوی مثلاً پليتی او بدبوئی وغيره. ⑥ دَلْوٌ: بوقه، ⑦ فَسَنَّهُ: أَيْ: فَصَبَّهُ: وائې ړولې اوبه.

## [۳۳] د حيض په وينه د ککنده شوې جامو پاکولو طريقه

۴۹۳-( ) [۴] [۱] «وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَتْ: [۲] سَأَلَتِ امْرَأَةٌ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، [۳] أَرَأَيْتَ إِحْدَانَا إِذَا أَصَابَ ثَوْبَهَا الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ، كَيْفَ تَصْنَعُ؟ [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (إِذَا أَصَابَ ثَوْبَ إِحْدَاكُنَّ الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ [۵] فَلْتَقْرُصْهُ، [۶] ثُمَّ لِتَنْضَحْهُ بِمَاءٍ، ثُمَّ لِتُصَلِّ فِيهِ» "). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: [۱] د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه لور بي بي اسماء رضي الله عنها فرمايي [۲] چه يوې ښځې د حضور ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې يا رسول الله ﷺ [۳] دا راته اووايه که په مونږ کې څوك د حيض وينه په کاليو ووينې نو څه به کوي؟ [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل که په تاسو کې د چا په کپړو چې د حيض وينه ولګي [۵] نو هغې ته پکار دي چې اول يې په نوك سره ومږي [۶] بيا ئې په اوبو سره ووينځي او په هغې کپړو سره دې اګرکه لوند وي مونځ کوي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① فَلْتَقْرُصْهُ: الدَّلْكُ بِأَطْرَافِ الْأَصَابِعِ وَالْأَظْفَارِ مَعَ صَبِّ الْمَاءِ عَلَيْهِ: په نوکانو يا په ګوتو ګرول اوپه اوبو وينځلو ته قرص وائی. ② لِتَنْضَحْهُ: أَيْ: لِتَغْسِلْهُ بِمَاءٍ: چې ته ئې په اوبو سره اووينځي.

---

(۱) اخرجه البخاري کتاب الحيض باب غسل دم المحيض (رقم-۳۰۷) ومسلم کتاب الطهارة باب نجاسة الدم وکيفية غسله(رقم-۱۱۰ - (۲۹۱) وابوداود کتاب الطهارة/باب المرأة تغسل ثوبها الذی تلبسه فی حيضها (رقم- ۳۶۱) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب المنی يصيب الثوب (رقم- ۵۳۶) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی التسليم فی الصلاة (رقم- ۲۹۵)

## [۴۹۳] د منی څخه د کپړو د پاکولو د پاره د هغې وینځل

۴۹۳ – (۱) [۵] ۱ «وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، قَالَ: ۲ سَأَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عَنِ الْمَنِيِّ يُصِيبُ الثَّوْبَ ۳ فَقَالَتْ: كُنْتُ أَغْسِلُهُ مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَخْرُجُ إِلَى الصَّلَاةِ ۴ وَأَثَرُ الْغَسْلِ فِي ثَوْبِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: ۱ او حضرت سلیمان بن یسار رحمه الله وایي ۲ چې ما د بي بي عائشې صدیقې رضي الله عنها څخه په کپړه د لګیدلې مَني په باره کې پوښتنه وکړه ۳ نو بي بي عائشې رضي الله عنها وفرمایل ما به د حضور ﷺ د کپړې څخه مني وینځله نو حضور ﷺ به (د هغه لوندې کپړې سره) د لمانځه د پاره تشریف وړلو ۴ او په هغه کپړې باندې (به د مني) د وینځلو اثروو. (بخاري مسلم)

## [۴۹۵] د کپړو څخه مني کرول

۴۹۵ – (۲) [۶] ۱ وَعَنِ الْأَسْوَدِ وَهَمَّامٍ، «عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، ۲ قَالَتْ: كُنْتُ أَفْرُكُ الْمَنِيَّ مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: ۱ او حضرت اسود رحمه الله او حضرت همام رحمه الله راویان دي چې بي بي عائشې رضي الله عنها وفرمایل ۲ ما به د حضور ﷺ د کپړې څخه وچه مني ګرووله. (مسلم)

**حل اللغات:** ① أَفْرُكُ: أَيْ: أَدْلُكُهُ وَأَمْسَحُهُ: ګرولو سره به مې لرې کوله.

**تسهیلات:**

**قوله:** سَأَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عَنِ الْمَنِيِّ: دَپورتنو دواړو حدیثو تعلق دَ منی سره دې چه آیادا پاکه ده که نجس؟ اودَدې دَ ازالې اوتطهیرطریقه څه ده. سلیمان بن یسار رحمه الله چونکه دَحضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها شاګرد دې په دې وجه هغه دَحضرت عائشه رضي الله عنها نه دَمنی باره کښې تپوس کړې دې اوحضرت عائشه رضي الله عنها جواب ورکړې دې. دَدواړو روایتونو تعلق حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها سره دې داکلام به په پرده کښې کیدلو.

### د منی په طهارت او عدم طهارت کښې مذاهب:

دَامام شافعي رحمه الله او دَ امام احمد رحمه الله دَاصح قول مطابق منی پاکه ده.

② دَامام مالك رحمه الله اوامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزمنی نجس ده. آوبه دې دواړو کښې په خپل

---

(۱) اخرجه البخاری کتاب الوضوء باب غسل المنی وفرکه، وغسل ما یصیب من المرأة (رقم-۲۳۰) ومسلم کتاب الطهارة باب حکم المنی (رقم#۱۰۸ - (۲۸۹) وابوداود کتاب الطهارة/ باب المنی یصیب الثوب (رقم- ۳۷۱) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب المنی یصیب الثوب (رقم- ۵۳۶) والنسائی کتاب الطهارة/باب غسل المنی من الثوب(رقم-۲۹۵)

(۲) اخرجه مسلم کتاب الطهارة باب حکم المنی (رقم#۱۰۶ - (۲۸۸) وابن ماجة باب فی فرک المنی من الثوب (رقم-۵۳۷) والنسائی کتاب الطهارة/باب فرک المنی من الثوب (رقم-۲۹۸)

مینځ کښې دومره فرق دې چه دَامام صاحب په نيزکه چرې په کپړه باندې اوچه شي اوبيااوګرولې شي نوکپړه به پاکه شي داهم دَتطهير يوه طريقه ده اوکه چرې مني لمده وي نو په هرحال کښې وينځل لازم دي. ليکن امام مالك رحمه الله فرمائي چه مني اوچه وي اوکه لمده په هرحال کښې وينځل فرض دي. ګرولوسره به کپړه پاکيږي نه.

**داول فريق اول دليل:** ① په حديث کښې دَمني دَ ازالې باره کښې "حَكٌ او حَتٌّ" الفاظ راغلي دي چه دَ مږلو اوګرولوپه معنی کښې دي اوداخبره واضح اوظاهر ده چه ګرولوسره پوره نجاست نه لرې کيږي بلکه څه باقي پاتې کيږي او حضورپاك په ګرولوباندې اکتفاء فرمائيلې ده نومعلومه شوه چه مني پاکه ده ځکه خو دَدې قليل اجزاء برداشت کړې شوي دي.

**داول فريق د اول دليل جواب:** دَ دې الزامي جواب احناف داورکوي چه دَ قضاء حاجت نه پس استنجاء بالحجار تاسو منئي حالانکه احجار سره مکمل ازاله نه کيږي دَ نجاست ذرات باقي پاتې کيږي کوم چه دَ قليل کيدودَ وجې نه برداشت کړې شوي دي لهذا تاسو حضرات انساني غلاظت ته هم پاك اووائې. دلته داخبره هم ياد ساتئي چه دَاحنافو په نيز دَ درهم دَ اندازې نه کم نجاست معاف دې ليکن دَ شوافع په نيز دَ نجاست هيڅ مقدار معاف نه دې. په دې وجه هغوی مجبوره شو اوداوينا ئې اوکړه چه مني پاکه ده خو په استنجاء بالاحجارکښې به هغوی څه کوي.داخبره يادساتئي چه دَ ملا ئم څيزونونه دَ نجاست اوچولو اومږلوسره دَدې ازاله کيږي لکه شيشه چاقو توره موزه وغيره دَدې ملائم څيزونو دَ پاکئي شوافع هم قائل دي نودا ضروري نه دي چه کوم څيز وينځلې شوې نه وي هغه پاك دې.

**داول فريق دويم دليل:** ② لکه چه مني دَ سينې دَ پيټوپه شان ده.

**داول فريق د دويم دليل درې جوابونه:** ① دَ سينې په پيټو قياس کول قياس مع الفارق دې ځکه چه دَ پيټودَ راوتلو لار جدا ده اودَ مني دَ راوتلولارجدا ده. دَ پيټوراوتلو لار پاکه ده او دَمني دَ راوتلو لار دَ متيازو مذي او دَ ودي غوندې دَ ناپاکه څيزونو دَ وتلو لار ده.

② يوحلال خوراك کله چه په خيټه کښې منقلب کيدوسره غټې متيازې جوړيږي نوهغه نجس ګڼړلې شي هم دغه شان مني هم دَ طعام نه مبدل کيدوسره نجس کيږي

③ خروج مني موجب حدث دې اوکوم څيزچه موجبِ حدث دې هغه نجس دې نومني هم نجس ده بلکه دا خو حدث اصغرنه حدث اکبرواجب کوي.

**د اول فريق دريم دليل:** ③ دَ مني نه دَمور په خيټه کښې بچي خوراك حاصلوي نودا به پاکه ګڼړلې شي.

**د اول فريق د دريم دليل جواب:** دَماشوم دَخوراك چه کومه خبره ده نوهغې سره دَمني په طهارت باندې دليل نه شي راوړلې ځکه چه بچې خودَ حيض دَ وينې نه خوراك حاصلوي نوآيادَ حيض وينه هم پاکه ده.

**د اول فریق څلورم دلیل:** ④ دَدې نه اولیاء او انبیاء پیداشوی دی نودَ اولیاؤ اوانبیاؤ بنیاداو اصل ته به څنګه نجس واثې؟

**داول فریق د څلورم دلیل جواب:** ترکومې یورې چې دَ منی نه اولیاء اوانبیاء پیدا کیدل دی نوواؤرئی دَ منی تحلیل دَ وینې طرف ته دې دَ دم تحلیل دَ غوښې طرف ته دې اودَ غوښې تحلیل اوتحویل دَ هډوکی طرف ته دې نودَدې تحویل اوتحول او تبدیل اوتبدل او دَ ماهیت دَ تغیر دَوجې نه شئی پاکیږی.

**د اول فریق پنځم دلیل:** ⑤ دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روایت دارقطنی داسې نقل کړې دې:
"سئل النبي عن المني يصيب الثوب فقال انما هو بمنزلة المخاط والبزاق"
یعنی دَمنی تشبیه حضورپاك دَ پوزې ګرینګ سره ورکړې دې ښکاره خبره ده چه دَ پوزې آلا نش پاك دې نومنی هم پاکه ده.

**داول فریق د پنځم دلیل جواب:** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ منی تشبیه ګرینګ سره ورکول دپاکوالی کښې نه ده بلکه دَ ازالې طریقه ئی خودلې ده چه زه دادَ پوزې دَ آلائش په شان اخوا کوم نوهغه زائل کیږی. دَ ګرینګ په شان سخته ده غلیظ ده اینختونکې څیزدې اخواکولوسره پوره اخواکیږی.

**د دویم فریق اول دلیل:** ① دَحدیث نه چرته هم دا ثابت نه دی چه حضورپاك منی سره مونځ کړې وی آودَ منی دَ لرې کولو طریقې مختلف دی کله په غسل اووینځلوسره زائله کړې شوې ده کله دَ اوچیدو په صورت کښې "حك" او "حت" اوکله "فرك" په طریقه سره دَدې ازاله کړې شوې ده. دَازالې چه هر صورت وی خو داخبره فیصله شوې ده چه منی سره کله هم مونځ نه دې شوې کوم چه دَ دې دَ نجاست لوئی دلیل دې که چرې دا پاکه وې نودَ جوازدَبیان دَپاره اوبه یوځل نیم رسول الله صلى الله عليه وسلم دې سره مونځ کولو او ورکولو معلومه شوه چه منی نجس ده.

**د دویم فریق دویم دلیل:** دَترمذی شریف واضح حدیث هم د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه دادی: "وأغسله اذاكان رطبا وافركه ان كان يابسا" صحیح ابوعوانه

**ددویم فریق دویم دلیل:** امام طحاوی رحمه الله هم داقسم روایت نقل کړې دې حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائی چه "كنت أفرك المني من ثوب رسول الله صلى الله عليه وسلم اذاكان يابسا واغسله اذاكان رطبا"

**تنبیه:** یادلرئی چه په موجوده زمانه کښې دَمنی دا کیفیت پاتې نه دې بلکه دَ چائی وغیره غیرمعیاری خوراك دَ وجې نه منی نرئی شوې ده اوس دَدې دَ لرې کولودَپاره هم اوبه استعمالول پکاردی. هسې هم احتیاط دَاحنافو او دَ مالکیه په مسلك کښې دې.

۴۹۶ــ(۱)[۰] ۱ وَبِرِوَايَةِ عَلْقَمَةَ وَالْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ نَحْوَهُ، وَفِيهِ ثُمَّ يُصَلِّي فِيهِ.

ترجمه: ۱ او مسلم د دې څخه علاوه د علقمه او د حضرت اسود په سند بي بي عائشي ﷞ ، ددې پشان يو روايت هم نقل کړي دي چې په هغې کې دا الفاظ هم دي چې حضور ﷺ به هغه کپړه کې مونځ کولو.

## [۴۹۷] د کپړو څخه متيازې وينځل

۴۹۷ــ(۲)[۷] ۱ «وَعَنْ أُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، ۲ أَنَّهَا أَتَتْ بِابْنٍ لَهَا صَغِيرٍ لَمْ يَأْكُلِ الطَّعَامَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ۳ فَأَجْلَسَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حِجْرِهِ، فَبَالَ عَلَى ثَوْبِهِ، ۴ فَدَعَا بِمَاءٍ، فَنَضَحَهُ وَلَمْ يَغْسِلْهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: ۱ د بي بي ام قيس بنت محصن ﷞ څخه روايت دي ۲ چې هغه خپل وړوکى خوى چې اوس يې لا طعام (خوراک) هم نه خوړلو د حضور ﷺ په خدمت کې راوستو ۳ حضور ﷺ هغه بچي په خپل غيږ کې کينولو هغه د حضور ﷺ په کپړو متيازي وکړي ۴ حضور ﷺ اوبه راوغوښتي او په کپړو يې وبهيولي او په ښه مړلو سره يې وو نه ينځله. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① حِجْرِهِ: غيږ. ② فَنَضَحَهُ: أَيْ: أَسَالَ الْمَاءَ عَلَى ثَوْبِهِ: اوبه ئې پرې وارولې.

**تسهيلات:**

**قوله: أَنَّهَا أَتَتْ بِابْنٍ لَهَا صَغِيرٍ لَمْ يَأْكُلِ الطَّعَامَ**

**د يې رودونکى هلک او جينۍ د متيازو په نجاست اتفاق:** وړوکي پيئى څکونکې بچې (مؤنث مذکر دواړه) چې لا ئې د پئيو نه سوا بل څه خوراك نه وى شروع کړې د هغې د متيازو باره کښې د ټولو علماء کرامو اتفاق دې چې دا ناپاکې دى، صرف داود ظاهرى د هلك متيازو

ته پاکې وائى. چه دهغې هيڅ اعتبار نشته دې.

**دهلک د متيازو په طريقه د تطهير کښې اختلاف:** دفقهاء کرامو د هلك په طريقهٔ تطهير کښې اختلاف شته دې. او دهغې نه دا وهم کيږى چې د شوافع په نيز د هلك متيازې پاکې دى ، داوهم صحيح نه دې . ځکه چې د شوافعو په کتابونو کښې ددې د ناپاکه کيدو

(۱) اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب حكم المنى (رقم#۱۰۵ - (۲۸۸)

(۲) اخرجه البخارى كتاب الوضوء باب بول الصبيان (رقم-۲۲۳) ومسلم كتاب الطهارة باب حكم بول الطفل الرضيع وكيفية غسله (رقم-۱۰۳ - (۲۸۷) وابوداود كتاب الطهارة/باب بول الصبي يصيب الثوب (رقم- ۳۷۴)وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فى بول الصبى الذى لم يطعم (رقم- ۵۲۴) والترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى نضح بول الغلام قبل أن يطعم (رقم- ۷۱) والنسائى كتاب الطهارة/باب بول الصبى الذى لم يأكل الطعام (رقم- ۳۰۲) والدارمى كتاب الطهارة/باب بول الغلام الذى لم يطعم (رقم-۷۶۸)

تصریح موجود ده.

**د بول الغلام د تطهیر باره کښې د مختلفو الفاظو استعمال:** د بول الغلام باره کښې احادیث مختلف راغلی دی، چرته رشح الماء دی، چرته نضح الماء دی، چرته رش الماء هم ذکر دی. چرته د اتباع الماء الفاظ هم راغلی دی. او چرته صب الماء او چرته د لم یغسله غسلا جمله هم راغلې ده. هم ددې اختلاف په وجه فقهاء کرامو هم دَ دې په طریقهٔ تطهیر کښې اختلاف کړې دې.

**د پیؤ رودونکی غلام او جاریه په بولو کښې مذاهب:**

① دپیوڅکونکی بچی په باره کښې دداؤد ظاهری مسلك دا دې چه دا نجس نه دی قاضی عیاض دامام شافعی رحمه الله مسلك هم دابیان کړې دې.چې بول د غلام طاهر دی. خو علامه نووی رحمه الله د قاضی عیاض تردید کړې دې.

② جمهوردغلام دبول د نجاست قائل دی. اوامام شافعی رحمه الله هم د جمهورو په شان د نجاست قائل دې.

**د غلام د بولود وينځلو په طريقه کښې مذاهب:**

بیاد جمهورو په مینځ کښې د غلام د بولو طهارت حاصلولو په طریقه کښې اختلاف دې

① دامام شافعی رحمه الله ،امام احمد رحمه الله اودامام اسحاق رحمه الله په نیز د غلام بول به وینځل ضروری نه دی بلکه د اوبو څاڅکی شیندل کافی دی.او دجاریه بول وینځل ضروری دی. بیا د شیندلو په تحدید کښې د امام شافعی رحمه الله یوقول دادې.چه تقاطربالکل ضروری نه دې. اودویم مفتی به قول دادې چه دومره شیندل پکار دی.چه تقاطرخو په خپله نه وی خویه نچوړکولو سره تقاطر وشی.

② د امام ابوحنیفه رحمه الله ، امام مالك رحمه الله ، سفیان ثوری رحمه الله اودکوفې د فقهاؤ مسلك دا دې چه د جاریه د بول په شان د غلام بول وینځل هم ضروری دی البته په بول د رضیع غلام کښې د زیاتې مبالغې ضرورت نشته غسل خفیف کافی دې.

**دامام شافعی رحمه الله دلیل:** امام شافعی رحمه الله وغیره د حدیث الباب څخه اودهغه تولو روایاتوڅخه استدلال کوی په کومو چې کښې دغلام د بول سره د نضح یا د رش الفاظ راغلی دی.د هغې معنی څاڅکی شیندل دی.بیا د امام شافعی رحمه الله څخه د تقاطریه تفسیرکښې منقول دی چی دومره اوبه پرې اوشیندلې شی چې دهغې څخه څاڅکی اوبهیږی.

**جواب:** د احنافو د دلائل په رڼړا کښې کوم چې وړاندې راروان دی. مناسب دادې چه کومو احادیثوکښې د نضح او د "رش" الفاظ راغلی دی ددوی داسې معنی مراد آخستې کیږی چه کوم نورو روایاتوسره مطابقه وی.اوهغه معنی داده چې د ،،نضح،، او ،،رش،، څخه

غسل خفیف مراد واخستې شي.ځکه چې رش او نضح لکه څنګه چې د شینډولو معنی ورکوي دغه شان د غسل خفیف معنی هم ورکوي.

**نضح په معنی د غسل باندې دلائل:** ① په ترمذی کښې د حضرت سهل بن حنیف روایت دې په هغې کښې د حضرت نبی کریم ﷺ د مذی څخه د تطهیرطریقه ښائی اوفرمائی ((يكفيك ان تأخذكفاً من ماء فتنضح به ثوبك حيث ترى ان اصابه منه)) [1] ددې روایت ترلاندې امام ترمذی فرمائی ((وقد اختلف اهل العلم في المذي يصيب الثوب فقال بعضهم لايجزء الا الغسل وهوقول الشافعي رحمه الله واسحاق رحمه الله)) ظاهره ده چه دلته امام شافعی رحمه الله نضح د غسل خفیف په معنی اخستې دې.

② د حضرت علی کرم الله وجهه روایت دې.فرمائی ((ارسلنا المقداد بن الاسود الى رسول الله ﷺ فسأله عن المذي يخرج من الانسان كيف يفعل به فقال رسول الله ﷺ توضأ وانضح فرجك)) [2] ددې ترلاندې امام نووی رحمه الله لیکی. واما قوله صلى الله عليه وسلم وانضح فرجك فمعناه اغسل فان النضح يكون غسلاً ويكون رشاً وقد جاء في الرواية الاخرى بغسل ذكره فتعين حمل النضح عليه))

**رش په معنی د غسل خفیف باندې دلیل:** امام ترمذی رحمه الله نقل کړی دی.((ان امرأة سألت النبي ﷺ عن الثوب يصيبه الدم من الحيضة فقال رسول الله ﷺ حتيه ثم اقرصيه بالماء ثم رشيه وصلي فيه)) [3] دلته امام شافعی رحمه الله لفظ د رش د غسل په معنی کښې اخستې دې. ددې حدیث ترلاندې امام ترمذی رحمه الله لیکی ((وقال الشافعي رحمه الله يجب عليه الغسل وان كان اقل من قدر الدرهم وشدد في ذلك)) هم دا حدیث مبارک صحیح مسلم کښې په دې الفاظو سره مذکور دې چه ((عن اسماء قالت جاءت امرأة الى النبي ﷺ فقالت احدانا يصيب ثوبها من دم الحيضة كيف تصنع به قال تحته ثم تقرصه ثم تنضحه ثم تصلي فيه)) [4]

ددې حدیث ترلاندې امام نووی رحمه الله چه خپله هم شافعی المسلك دې لیکی.((وتنضحه تغسله وهو بكسر الضاد ،كذا قال الجوهري وغيره وفي هذا الحديث وجوب غسل النجاسة بالماء)) نو څنګه چه په دې ټولو مقاماتوباندې لفظ د نضح اولفظ د رش د غسل په معنی اخستې شوې دې نوکه د مختلف روایاتوپه مینځ کښې د تطبیق دپاره په حدیث الباب کښې " نضح او رش" د غسل په معنی کښې واخستې شی نو دې کښې څه حرج دې البته د احادیثوڅخه دومره خبره ضرور معلومیږی چه په بول د جاریه اوبول د غلام کښې فرق دې اوهغه دا چه بول دجاریه کښې غسل شدید اوبول دغلام کښې غسل خفیف دې.

[1] ) جامع الترمذی باب فی المذی یصیب الثوب )-
[2] ) صحیح مسلم باب المذی جلداول ۱۴۳)-
[3] ) جامع الترمذی باب ماجاء غسل دم الحیض من الثوب اسماء بنت ابی بکر)-
[4] ) جلد اول باب نجاسة الدم وکفیة غسله صفحه ۱۴۰)

**د حنفيانو دلائل:** ① په اولنى باب كښې چې كوم حديث ذكر شو چې ((استنزهوامن البول)) په دې كښې مطلقا د بولو څخه د ځان ساتلو حكم شوې دې. اودائې نجس ګرځولې دى.دا احاديث عام دى.اودې كښې دځه خاص بول تخصيص نشته

② دويم هم د غلام د بول په باره كښې په حديث كښې د ((صب،اتبعه عليه الماء)) الفاظ هم راغلى دى.چه د غسل په معنى كښې صريح دى.د داسې احاديثود تولو طرقو تخريج صحيح مسلم كښې شته بلكه اعلاء السنن كښې د حضرت عائشه حديث مروى دې د هغې څخه صراحة د غسل بول الغلام پته لګى.((قالت كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يؤتى بالصبيان فاتى بصبى مرة فبال عليه فقال صبوا عليه الماء صبا،)) (١)

**اشكال:** اوس دلته يوسوال داپاتې كيږى.چه دغلام اودجاريه بول كښې فرق ولې دې.اګرچه دافرق داحنافو په نيز دمبالغې اودعدم مبالغې دې.

**د فرق وجوه:** ① د سړو په طبعيت كښې حرارت وى او رطوبت كم وى او د ښځو.په مزاج كښې برودت او رطوبت زيات وى نو د سړى بول نرئ وى نو لرې اوبه د دې دپاره كافى وى.اود ښځې بول ټينګې وى اوبدبودارې وى.نوهغې ته د غسل شديد ضرورت دې.

② د ضيق مخرج په وجه چې د غلام مخرج تنګ وى نو په جامه كښې نفوذ كم وى اود جاريه مخرج فراخه وى نو په جامو كښې نفوذ زيات كوى.ځكه د هغې دپاره د غسل شديد ضرورت دې.

③ غلام زيات په جولو كښې كينولې شى او اخستلې شى نوكه د ده د بولو دپاره غسل خفيف كافى دې چې حرج دفع شى اوجاريه عادة كمه اخستې شى او دې سره كم محبت كولې شى.نوكه په بعضې وخت كښې دا په جامو باندې بول اوكړى نو د دې په وينځلو كښې حرج نشته.

## [۳۹۸] په رنګ كولوسره د څرمنې پاكيدل

۳۹۸-(٢) [٨] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ② "«إِذَا دُبِغَ الْإِهَابُ فَقَدْ طَهُرَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابن عباس ﷺ فرمايي چه ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي② چې هركله څرمن دباغت كړل شى نو هغه پاكه شي. مسلم

(١) رواه الطحاوى واسناده صحيح و اثارالسنن (١٧١١)

(٢) اخرجه مسلم كتاب الحيض باب طهارة جلود الميتة بالدباغ (رقم) ١٠٥ - (٣٦٦) وابوداود كتاب اللباس/باب فى أهب الميتة (رقم- ٤١٢٣) باب فى أهب الميتة (رقم- ٤١٢٣) وابن ماجة كتاب اللباس. باب لبس جلود الميتة إذا دبغت (رقم- ٣٦٠٩) ومالك فى الموطا كتاب الصيد /باب ما جاء فى جلود الميتة (رقم- ١٧) والنسائى كتاب الفرع والعتيرة/باب جلود الميتة(رقم-٤٢٤١)

**حل اللغات:** ① دُبِغَ: هو إصلاح الجلد بما يمنع النتن والفساد: د څرمن نه چه په کومه طریقه هم بد بوئی او سخاوالي لرې کړې شی هغې ته دباغت وائی مثلا رنګ کول، خاوره یا مالګه لګول وغیره. ② الإِهَابُ: وَهُوَ الْجِلْدُ الْغَيْرُ الْمَدْبُوغِ: چې رنګ شوې نه وی هغې څرمنې ته اهاب وائی.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَا دُبِغَ الْإِهَابُ:

**ددباغت مختلفې طریقې:** دباغت یعنی رنګ کول په ډیرو طریقوسره کیږی.

① تتریب یعنی په خاوره،

② تشمیس یعنی په نمر کښې اچولوسره،

③ تقریظ یعنی دَ بعضې ونو په پوستکو اومالګه یوځائی کولوسره کیږی.

دَ دباغت دَپاره ضروری ده چه څرمن دې دَ دباغت قابله هم وی لهذا دَ مار اومږې څرمن ناقابل دباغت کیدودَوجې نه دَدې حکم نه خارج دی.

**د دباغت د حکم تعلق د مردارې څرمنې سره:** دَ حلت و حرمت او دَ دباغت داحکم دَ مردار ځناورو دَ څرمنودَپاره دې حلال خوهسې حلال دی. دَ انسان څرمن دَ عظمت دَ وجې نه اودَ خنزیر څرمن دَ وجې دَ سخت نجاست نه قابل دَ دباغت نه ده.

**په دباغت سره د څرمنې د طهارت په حکم کښې مذاهب:**

① امام شافعی رحمه الله دَ سپی دَ څرمن باره کښې لیکلی دی چې د سپی څرمن به هم په دباغت سره نه پاکیږی.

② دَامام مالك رحمه الله په نیزپه دباغت سره دَ مردار ځناور څرمن نه پاکیږی لهذا دې نه فائده اخستل ناجائزدی.

③ دَ جمهورفقهاؤپه نیزدَ انسان څرمن دَ عظمت دَ وجې نه اودَ خنزیر څرمن دَ وجې دَ سخت نجاست نه قابل دَ دباغت نه ده. او د دې څخه علاوه هره څرمن دباغت سره پاکیږی اوهغې نه فائده اخستل جائزدی. دَ انسان څرمن دَ انسانی شرافت دَ وجې نه ممنوع ده او دَخنزیر نجس العین کیدودَ وجې نه ممنوع اوناپاکه ده.

**د اول فریق دلیل:** سپے نجس العین دې ددې وجې دَده څرمن په دباغت سره نه پاکیږی.

**د دلیل جواب:** په دباغت سره د مطلق څرمنې د طهارت احادیث راغلی دی.نو د دلیل څه بغیر د دې د عموم نه د سپی استثناء تیک نه ده.

**د دویم فریق دلیل:** دَ عبدالله بن عکیم رضی الله عنه راتلونکی روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه "أن لاتنتفعوا من الميتة بإهاب ولاعصب" الفاظ راغلی دی.

**د دویم فریق د اول دلیل دوه جوابونه:** ① دادَ مردار ځناور هغه څرمن ده کوم ته چه

دباغت نه وي ورکړې شوې او اهاب په لغت کښې هم دغه غیرمدبوغ څرمن ته وائی.
④ دَ امت تعامل هم په جواز باندې دې اودَې یوحدیث په مقابله کښې دِ یرزیات احادیث دی کوم چه تواترته نیزدې دی داحدیث دَهغې معارض کیدې نه شی

**دِ دریم فریق دلائل:** زیربحث حدیث د دوی مستدل دې او دددې څخه علاوه تقریبًا راتلونکو شپږو حدیثونه د دوی مستدلات دی په کومو کښې چه په واضحه توګه دَ مردار ځناور دَ څرمن نه استفاده اوانتفاع ته جائزوئیلی شوی دی کله چه دباغت اوشی.

**[۴۹۹] په دباغت سره د مردارې د څرمنې پاکول**

۴۹۹–(۱) [۹] ①وَعَنْهُ قَالَ: ②«تُصُدِّقَ عَلَى مَوْلَاةٍ لِمَيْمُونَةَ بِشَاةٍ ②فَمَاتَتْ، فَمَرَّ بِهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: ③ هَلَّا أَخَذْتُمْ إِهَابَهَا فَدَبَغْتُمُوهُ فَانْتَفَعْتُمْ بِهِ" ④فَقَالُوا: إِنَّهَا مَيْتَةٌ، فَقَالَ: " إِنَّمَا حُرِّمَ أَكْلُهَا» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې د بي بي ميموني رضي الله عنها يوي آزاد شوې وينځې ته يوه بزه په صدقه کښې ورکړې شوه② (اتفاقًا) هغه بزه مړه شوه حضور ﷺ په هغې باندې تیریدو نو وي فرمايل③ تاسو د دې څخه څرمن ولې نه وباسله دې څرمنې ته دباغت ورکولو سره به مو د دې څخه فايده پورته کړې وه④ (خلقو عرض وکړو) دا خو مرداره ده حضور ﷺ وفرمايل یوازې د دې خوراك حرام دې. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①تُصُدِّقَ: أَيْ: دُفِعَتْ صَدَقَةٌ: يعنی په صدقه کښې ورکړې شوه، ② مَوْلَاةٍ: أَيْ: عَتِيقَةٍ: آزاده کړې شوې وینزه.

**[۵۰۰] د مردارې څرمن د باغت څخه پس په استعمال کښې راوستل**

۵۰۰–(۲) [۱۰] ①«وَعَنْ سَوْدَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ: ②مَاتَتْ لَنَا شَاةٌ، فَدَبَغْنَا مَسْكَهَا، ③ثُمَّ مَا زِلْنَا نَنْبِذُ فِيهِ حَتَّى صَارَ شَنًّا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① د حضور ﷺ زوجه مبارکه بي بي سوده رضي الله عنها فرمایي② چې زمونږ یوه بزه مړه شوې وه مونږ د هغې څرمن وښکله او دباغت مو کړه③ او همیشه مو په هغه کې نبیذ (یعني د اوبو او خرماؤ شربت) جوړولو تر دې چې هغه زوړ مشك شو. (بخاري)

---

(۱) اخرجه البخاری کتاب الزکوة باب الصدقة علی موالی أزواج النبی صلی الله علیه وسلم(رقم-۱۴۹۲) ومسلم کتاب الحیض باب طهارة جلود المیتة بالدباغ (رقم) ۱۰۰ - (۳۶۳) وابوداود کتاب اللباس/باب فی أهب المیتة (رقم- ۴۱۲۰) وابن ماجة باب ما جاء فی الحامل المتوفی عنها زوجها تضع (رقم- ۱۱۹۳) کتاب اللباس . باب لبس جلود المیتة إذا دبغت (رقم- ۳۶۱۰) ومالک فی الموطا کتاب الصید /باب ما جاء فی جلود المیتة (رقم- ۱۶) والنسائی کتاب الفرع العتیرة/باب جلود المیتة(رقم-۴۲۳۶).

(۲) اخرجه البخاری کتاب الایمان والنذور باب إن حلف أن لا یشرب نبیذا. فشرب طلاء. أو سکرا. أو عصیرا (رقم-۶۶۸۶) والنسائی کتاب الفرع والعتیرة/باب جلود المیتة(رقم-۴۲۴۰)

**حل اللغات:** ① شَاةٌ: چيلئ، بزه، ② مَسْكٌ: څرمن ته واني ③ شَنًّا: أَيْ: سِقَاءً خَلِقًا: زوړ مشک (يعني ډير استعمال شوې).

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## [۵۰۱] د ماشوم او ماشومې د متيازو پاکولو طريقه

۵۰۱-(١)[١١] ⟨١⟩ «عَنْ لُبَابَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ⟨٢⟩ كَانَ الْحُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، فِي حِجْرِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ⟨٣⟩ فَبَالَ عَلَى ثَوْبِهِ. ⟨٤⟩ فَقُلْتُ: الْبَسْ ثَوْبًا، وَأَعْطِنِي إِزَارَكَ حَتَّى أَغْسِلَهُ، ⟨٥⟩ قَالَ: إِنَّمَا يُغْسَلُ مِنْ بَوْلِ الْأُنْثَى، ⟨٦⟩ وَيُنْضَحُ مِنْ بَوْلِ الذَّكَرِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَةَ.

**ترجمه:** ⟨١⟩ بي بي لبابه بنت حارث رضي الله عنها فرمايي ⟨٢⟩ چې حسين بن علي رضي الله عنهما د حضور ﷺ په غيږ کې ناست وو ⟨٣⟩ چه د حضور ﷺ په کپړو يې متيازي وکړلې ⟨٤⟩ ما عرض وکړو چې ته ﷺ دويمه کپړه واغونده دا پرتوګ يا لنګ ماته راکړه چې زه يې وينځم ⟨٥⟩ حضور ﷺ وفرمايل د جينئ متيازې وينځل پکار دي (يعني د مبالغې سره) ⟨٦⟩ او د هلك په وړو بولو اوبه پاشل کول پکار دي (يعني بغير د مښولو او نښتيځولو اوبه پرې بهيول)، (احمد ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① حِجْرٌ: غيږه، ② يُنْضَحُ: اوبه به پرې بهيولې شي (بغير د مږلو نه).

۵۰۲-(٢)[٠] ⟨١⟩ وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيِّ، عَنْ أَبِي السَّمْحِ، قَالَ: ⟨٢⟩ "«يُغْسَلُ مِنْ بَوْلِ الْجَارِيَةِ، وَيُرَشُّ مِنْ بَوْلِ الْغُلَامِ»".

**ترجمه:** ⟨١⟩ اود ابوداؤد اونسائي په يوروايت کې د ابوسمح څخه دا الفاظ منقول دي ⟨٢⟩ چې حضور ﷺ وفرمايل د جينئ متيازې دي ووينځل شي او د هلك په بولو دي اوبه وشيندلې شي.

**حل اللغات:** ① الْجَارِيَةِ: جينئ، ② يُرَشُّ: اوبه دې اوشيندلې شي. ③ الْغُلَامِ: هلک.

## [۵۰۳] د پليتئ څخه د پښې پاکول

۵۰۳-(٣)[١٢] ⟨١⟩ «وَعَنْ أَبِي هريرة قال قال رسول الله ﷺ ⟨٢⟩ إِذَا وَطِئَ أَحَدُكُمْ بِنَعْلِهِ الْأَذَى، ⟨٣⟩ فَإِنَّ التُّرَابَ لَهُ طَهُورٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَلِابْنِ مَاجَةَ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** ⟨١⟩ ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ⟨٢⟩ هرکله چې په تاسو کې

(١) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب بول الصبي يصيب الثوب (رقم- ٣٧٥) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء في بول الصبي الذى لم يطعم (رقم- ٥٢٢)
(٢) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب بول الصبي يصيب الثوب (رقم- ٣٧٦) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء في بول الصبي الذى لم يطعم (رقم- ٥٢٦)
(٣) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب في الأذى يصيب النعل (رقم- ٣٨٥)

څوك خپلو څپلو سره په ګندګي تیرشي (اوګرځي) ۳ نو خاوره هغه پاکوي، (ابوداؤد او ابن ماجه هم د دې معنې روایت نقل کړې دی.)

**حل اللغات:** ۱ وَطِئَ: أَيْ: قَرُبَ وَمَسَحَ: ورتیرشی، اوګرځی (په ګندګئ باندې).

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَا وَطِئَ:

**د نجاست دوه قسمونه:** که چرې موزې یا څپلئی سره دَ لارې ګندګی اولګی نودَدې په حکم کښې دَ امامانو اختلاف دې. تفصیل داسې دې.

۱ چه دا نجاست به ذی جرم مجسد یعنی قط لګیدونکی وی یا رقیق نرئی وی که دَ شرابو یا متیازو یا وینې په شان نرې اونرم وی نودَ ټولو په نیزبه څپلئی اوموزه په اوبوسره وینځلې شی بغیردَ وینځلوبه نه پاکیږی.

۲ اوکه نجاست ذی جسدوی او په هغې باندې خاوره وغیره اچولوسره بنه جذب شی او بیا اوګرولې شی نو په دې صورت کښې دَ ائمه حضراتو اختلاف دې.

**د جوثه دار نجاست د پاکولو په طریقه کښې مذاهب:**

دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله اوزاعی شامی رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله په نیزکه دا نجاست لوند وی اوکه اوچ په دواړو صورتونوکښې به په مږلوسره پاکوالې حاصل شی. دَ امام شافعی رحمه الله یوقول هم دغه دې.

۲ دَ امام ابوحنیفه رحمه الله او په یوقول کښې امام شافعی رحمه الله په نیزکه چرې دا نجاست اوچ وی نو په مږلوسره به پاکې راشی اوکه چرې تر او لوندوی نو وینځل به ضروری وی.

**د څرمنې او څپلئ د پاکولو دوه صورتونه:**

۱ څرمن یا څپلئ که نرمه وی نو دَ کپړې په شان به درې ځل نچوړی کولوسره وینځلې شی

۲ اوکه چرې څپلئی اوموزه سخته وی نوبیابه دَ لرګی په شان وینځلې کیږی چه دَ پاسه پرې اوبه واچولې شی او اومږلې شی او اوبه پرې اوبهیولې شی. دَدې نه علاوه که نجاست په کپړه یادَ انسان په بدن باندې اولګی نوهغه په مساماتوکښې ننوځی دَهغې دَپاره صرف وینځل دی مږل کافی نه دی.

**د احادیثو څخه د امامانو جوابونه:**

۱ باقی مذکوره احادیث دَ ټولو ائمؤ خلاف دی نوبعضې علماؤ جواب ورکړې دې چه دلته حقیقی خبره نه ده بلکه دا احادیث په توهم نجاست باندې محمول دی.

۲ بعضې وئیلی دی چه داحکم دَ اوچ نجاست باره کښې دې مګر د مشکاة دَ فصل ثالث دَ روایت تفصیل دَدې خلاف دې.

③ بعضې وئیلي دی چه دَدې احادیثوتعلق طینِ شارع یعنی دَ لارې ختوسره دې خکه چه هغه دَمجبورۍ دَ وجې نه دَپاك په حکم کښې دی دَ راتلونکی روایت هم دغه شان تشریح ده.

**[۵۰۴] د وچ نجاست د پاکولو پاکیدل**

۵۰۴-()[۱۳] ①«وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ لَهَا امْرَأَةٌ: ②إِنِّي امْرَأَةٌ أُطِيلُ ذَيْلِي، وَأَمْشِي فِي الْمَكَانِ الْقَذِرِ. قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُطَهِّرُهُ مَا بَعْدَهُ» " رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ وَقَالَا: الْمَرْأَةُ أُمُّ وَلَدٍ لِإِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ.

**ترجمه:** ① بي بي امّ سلمه رضي الله عنها روايت کوي چه هغي ته يوي ښځي اوويل② چې زما پروني (څاك) اوږد دي او زه په ناپاکه ځاي کې ګرځم (دا خيال وي چې د هغې لمنو ته ناپاکي رسيږي) بي بي ام سلمه رضي الله عنها ورته اوويل چه حضور ﷺ (د دي قسم سوال په جواب کې) فرمايلي وو چې دا هغه شي پاك کوي چې د دې څخه وروسته دي (يعني پاکه زمکه يا خاوره) احمد مالك ترمذي ابوداؤد دارمي، او ابو داود او دارمي ويلي دي چې هغه پوښتنه کونکې ښځه دابراهيم بن عبدالرحمٰن بن عوف ام ولده وه (چې د هغې نوم حميده وو).

**حل اللغات:** ① أُطِيلُ: اوږد دې، ②ذَيْلِي: پروني زما، ③ القَذِرِ: ګندګی او ناپاکه ځائ يعنی ډيران وغيره.

**[۵۰۵] د درندګانو د څرمنو اغوستل ممانعت**

۵۰۵-()[۱۴] ①وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي يكَرِبَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ②«نَهَى رَسُولُ اللَّهِ عَنْ لُبْسِ جُلُودِ السِّبَاعِ، وَالرُّكُوبِ عَلَيْهَا» ، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① مقدام بن معديکرب رضي الله عنه راوي دي ② چې رسول الله ﷺ د درندګانو د څرمنو داغوستو او په هغې باندې د سوريدو څخه منع فرمايلي ده. (ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** ①جُلُودِ السِّبَاعِ: څرمني د درنده ګانو او ماتونکو ځناورو.

**[۵۰۶] د درندګانو د څرمنو څخه فرش جوړولو ممانعت**

۵۰۶-()[۱۵] ①وَعَنْ أَبِي الْمَلِيحِ بْنِ أُسَامَةَ عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" «نَهَى عَنْ جُلُودِ السِّبَاعِ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ. ③وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ: أَنْ تُفْتَرَشَ.

**ترجمه:** ① ابو المليح بن اسامه رضي الله عنه د خپل پلار مکرم څخه روايت کوي② چه رسول الله ﷺ

(۱) اخرجه مالک فی الموطا کتاب الطهارة باب ما لا یجب منه الوضوء (رقم - ۱۶) وابوداود کتاب الطهارة /باب فی الأذی یصیب الذیل (رقم - ۳۸۳) وابن ماجه کتاب الطهارة وسننها /باب الأرض یطهر بعضها بعضا (رقم - ۵۳۱) والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی الوضوء من الموطإ (رقم-۱۴۳)

(۲) اخرجه ابوداود کتاب اللباس /باب فی جلود النمور والسباع (رقم-۴۱۳۱)

(۳) اخرجه احمد فی المسند ۵/ ۷۴ وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۴۱۳۲ والنسائی فی السنن رقم الحدیث ۴۲۵۳

د درندګانو د څرمني استعمالولو څخه منع فرمايلي ده، احمد، ابوداؤد، نسائي[۳] او امام ترمذي په دي روايت کې دا الفاظ زيات نقل کړي دي چې حضور ﷺ د دي څخه هم منع فرمايلي ده چې د درندګانو د څرمنو فرش دي جوړ کړل شي.

**تسهيلات:**

**قوله:** نَهَى عَنْ جُلُودِ السِّبَاعِ:

**د درندګانو د څرمنو د استعمال حکم:** دواړواحاديثو کښې د ځيرونکو ځناورو په څرمن کيناستل يا په سورلۍ کښې استعمالول يا اغوستل ټول منع دي. په دې وجې د علماء کرامو د فتوى مطابق د ځيرونکو ځناورو په څرمن باندې کيناستل مکروه تحريمي دي ځکه چې په دې باندې ناستې سره د انسان په طبيعت کښې د ځيرونکو ځناورو صفات پيدا کيږي. دځيرونکو ځناورو څرمن د دباغت نه پس خرڅولې شي. او دا جائز دي. ليکن د دباغت نه وړاندې اخستل ،خرڅول جائز نه دي. ښکاريانو خلقو لره د سوچ مقام دې چې د دباغت نه وړاندې د ځيرونکو ځناورو شيرمخ وغيره څرمن خرڅوي.

### [۵۰۷] د درندګانو د څرمنو د قيمت کراهت

۵۰۷-(١) [۱۶] [۱]وَعَنْ أَبِي الْمَلِيحِ، أَنَّهُ كَرِهَ ثَمَنَ جُلُودِ السِّبَاعِ. [۲]رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ فِي كِتَابِ اللِّبَاسِ. بِلَفْظِ: كَرِهَ جُلُودَ السِّبَاعِ. وَسَنَدُهُ جَيِّدٌ.

**ترجمه:** [۱] او د ابو المليح په باره کې منقول دي چې هغه به د درندګانو د څرمنو قيمت (هم) مکروه ګڼلو. ترمذي [۲] ترمذي په کتاب اللباس صرف په دې لفظ سره نقل کړې دې چې د درندګانو د څرمنو قيمت ئې بد ګڼړلو.[۳] او د دې سند ښه دې.

**حل اللغات:** ① ثَمَنَ: أَيْ: بَيْعَهَا وَشِرَاءَهَا: قيمت او رقم ته وائي يعنى اخستل خرڅول.

### [۵۰۸] د نبي عليه السلام د يو خط مضمون

۵۰۸-(٢) [۱۷] [۱]«وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُكَيْمٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲]أَتَانَا كِتَابُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۳]أَنْ لَا تَنْتَفِعُوا مِنَ الْمَيْتَةِ بِإِهَابٍ، وَلَا عَصَبٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالْبُخَارِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله بن عکيم راوي دي[۲] چې زمونږ قبيله جهينه ته چې د حضور ﷺ کوم مکتوب ګرامي (خط) راغې په هغه کې دا ليکلي وو[۳] چې تاسو د مرداري د څرمن او د هغې د پټي (پلو)څخه نفع مه اخلي. (ترمذي ،ابوداؤد ،نسائي ،ابن ماجه)

[۱]) اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ٤/ ٢١٢

[۲]) اخرجه الترمذى كتاب اللباس عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى جلود الميتة إذا دبغت (رقم -١٧٢٩) وابوداود كتاب اللباس/باب من روى أن لا ينتفع بإهاب الميتة (رقم- ٤١٢٧) وابن ماجة كتاب اللباس ، باب من قال: لا ينتفع من الميتة بإهاب ولا عصب (رقم- ٣٦١٣) والنسائى كتاب الفرع والعتيرة/باب ما يدبغ به جلود الميتة رقم- (٤٢٥١)

**حل اللغات:** ① إِهَابٍ: أَيْ: قَبْلَ الدِّبَاغِ: بغير رنګ شوي او پاکه شوي څرمن. ② عَصَبٍ: پټې

**[۵۰۹] د دباغت څخه وروسته د څرمنې څخه د فائدې اخستلو جواز**

۵۰۹-(۱)[۱۸] ①«وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، ②أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ أَنْ يُسْتَمْتَعَ بِجُلُودِ الْمَيْتَةِ إِذَا دُبِغَتْ». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه رضي الله عنها روايي ده ② چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي د مرداري د څرمنې څخه د دباغت څخه وروسته دې فائده واخستې شي. (مالك، ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① دُبِغَتْ: چه رنګ کړې شي (يعني پاکه کړې شي).

**[۵۱۰] د څرمنې پاکي په دباغت سره**

۵۱۰-(۲)[۱۹] ①وَعَنْ مَيْمُونَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ②«مَرَّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رِجَالٌ مِنْ قُرَيْشٍ يَجُرُّونَ شَاةً لَهُمْ مِثْلَ الْحِمَارِ، ③فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَوْ أَخَذْتُمْ إِهَابَهَا. ④قَالُوا: إِنَّهَا مَيْتَةٌ. فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُطَهِّرُهَا الْمَاءُ وَالْقَرَظُ"». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① بي بي ميمونه رضي الله عنها څخه روايت دي ② چه د قريشو يوڅو سړو يوه مړه بزه د خره په شان رانښکله حضور ﷺ ورسره تير شو ③ (په دې ليدو سره) حضور ﷺ ورته وفرمايل کاش (آرمان) چې تاسو د دې څخه څرمن ويستې وې (نو په خپل کار کې به مو راوستلې واي) ④ نو هغوئ عرض وکړو چه دا خو مرداره ده يعنې ذبح کړې شوې نه ده حضور ﷺ ورته وفرمايل دا د کيکر پاني او اوبه پاکوي (يعني د دواړو څيزونو په ذريعه دباغت سره څرمن پاکيږي). (احمد، ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْقَرَظُ: أَيْ وَرَقُ السَّلَمِ وَقِيلَ: هُوَ قِشْرُ الْبَلُّوطِ: د کيکر په شان يوه ازغي داره ونه ده دهغې په پاڼو به څرمنې رنګ کولې شوې.

**[۵۱۱] دباغت شوې څرمې څخه د مشک جوړولو جواز**

۵۱۱-(۳)[۲۰] ①وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبَّقِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ②«إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ عَلَى أَهْلِ بَيْتٍ، ③فَإِذَا قِرْبَةٌ مُعَلَّقَةٌ، فَسَأَلَ الْمَاءَ. ④فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، إِنَّهَا مَيْتَةٌ. ⑤فَقَالَ: دِبَاغُهَا طُهُورُهَا»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

---

(۱) اخرجه مالک في الموطا كتاب الصيد /باب ما جاء في جلود الميتة (رقم- ۱۸) وابوداود كتاب اللباس/باب في أهب الميتة (رقم- ۴۱۲۴) وابن ماجة كتاب اللباس، باب لبس جلود الميتة إذا دبغت (رقم- ۳۶۱۲) والنسائي كتاب الفرع والعتيرة/باب الرخصة في الاستمتاع بجلود الميتة إذا دبغت(رقم-۴۲۵۲)

(۲) اخرجه ابوداود كتاب اللباس/باب في أهب الميتة (رقم- ۴۱۲۶) والنسائي كتاب تحريم الدم/باب تحريم القتل (رقم-۴۱۲۶)

(۳) اخرجه ابوداود كتاب اللباس/باب في أهب الميتة (رقم- ۴۱۲۶) والنسائي كتاب الفرع والعتيرة/باب جلود الميتة(رقم-۴۲۴۴)

**ترجمه:** [۱] سلمه بن محبّق راوي دي [۲] چې رسول ﷺ د جنګ تبوك په موقعه د يو سړي كور ته تشريف راوړو [۳] ناڅاپه په يو زوړند مشك يي نظر ولګيدو حضور ﷺ اوبه وغوښتلي [۴] نو خلقو عرض وكړو يا رسول الله ﷺ دا خو د دباغت كړي شوي مرداري څرمنه ده [۵] حضور ﷺ ورته وفرمايل دباغت دا پاكه كړي ده. (احمد، ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① قِرْبَةٌ: مشک، ② مُعَلَّقَةٌ: رازوړند.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۵۱۲] د ناپاكې لارې ګندګی په پاكه لار پاكيدل

۵۱۲—(۱) [۲۱] [۱] عَنِ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِي عَبْدِ الْأَشْهَلِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] قُلْتُ: «يَا رَسُولَ اللّٰهِ، إِنَّ لَنَا طَرِيقًا إِلَى الْمَسْجِدِ مُنْتِنَةً، [۳] فَكَيْفَ نَفْعَلُ إِذَا مُطِرْنَا؟ [۴] قالت فَقَالَ: "أَلَيْسَ بَعْدَهَا طَرِيقٌ هِيَ أَطْيَبُ مِنْهَا؟" [۵] قُلْتُ: بَلَى. قَالَ: "فَهٰذِهِ بِهٰذِهِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] دبنو عبد الاشهل د يوي ښځي بيان دي [۲] چې ما حضور ﷺ ته عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ مسجد ته د راتلو چې زمونږ كومه لار ده هغه ګنده ده [۳] كله چې باران وشي نو مونږ څه وكړو؟ [۴] هغه ښځه وايي چې رسول ﷺ وفرمايل آيا د دې لارې څخه ورستو علاوه څه پاكه صفا لاره نه راځي ؟ [۵] ما عرض وكړو چې هو راځي، حضور ﷺ وفرمايل دا پاكه لار د هغه ناپاكي لارې په بدله كې ده. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① مُنْتِنَةً: أَيْ: ذَاتَ نَجَسَةٍ: پليته او بدبويه، ګنده، ② مُطِرْنَا: أَيْ: إِذَا جَاءَنَا الْمَطَرُ: يعنى كله چه باران اوشي.

## [۵۱۳] د لارې د ختو څخه د قدمونو د وينځلو عدم وجوب

۵۱۳—(۲) [۲۲] [۱] (وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: [۲] «كُنَّا نُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا نَتَوَضَّأُ مِنَ الْمَوْطِىءِ») رواه الترمذي

**ترجمه:** [۱] عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي [۲] چه مونږ به د رسول الله ﷺ سره مونځ كولو او په زمكه د تلو په وجه به مو اودس نه كولو. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① الْمَوْطِىءِ: أَيْ: مِنْ أَجْلِ مَوْضِعِ الْوَطْءِ وَالْمَشْيِ: يعنى په ګنده ځاى باندې تلل او ګرځيدل.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا نَتَوَضَّأُ مِنَ الْمَوْطِىءِ:

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب فى الأذى يصيب الذيل (رقم- ۳۸٤) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب الأرض يطهر بعضها بعضا (رقم- ۵۳۳)

(۲) اخرجه الترمذى كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الوضوء من الموطئ (رقم-۱٤۳) وابوداود كتاب الطهارة/ باب فى الرجل يطأ الأذى برجله (رقم- ۲۰٤)

**د اودس مصداق:** علماء کرامو ليکلي دي چې د لته د اودس نه مراد لغوي اودس دي. يعني پښې وينځل. په دې صورت کښې مطلب داشو چه که نجاست اوچ وو نو په هغه وخت کښې به مونږ لغوي اودس هم نه کولو يعني پښې به مو نه وينځلې ځکه چې نجاست پرې هډو لګيدلې نه دې صرف په لګيدو مونږ پښې نه وينځو. اوکه اودس نه شرعي اودس مراد وي نو مطلب به دا وي چې کله نجاست تر يعني لوند وي نو ددې ګندګۍ په لګيدو سره مونږ شرعي اودس نه کوؤ بلکه صرف پښې وينځو ځکه چې ګندګۍ لګيدو سره اودس نه ماتيږي.

**[۵۱۴] د سپو متيازې نه وينځل**

۵۱۴-()[۲۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «كَانَتِ الْكِلَابُ تُقْبِلُ وَتُدْبِرُ فِي الْمَسْجِدِ فِي زَمَانِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، [۳] فَلَمْ يَكُونُوا يَرُشُّونَ شَيْئًا مِنْ ذَلِكَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمايي [۲] چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه کې به مسجد ته سپي تلل راتلل [۳] او صحابه رضي الله عنهم به د هغوئ د تګ راتګ په وجه هيڅ نه وينځل. (۲) (بخاري)

**حل اللغات:** ① تُقْبِلُ وَتُدْبِرُ: د اقبال او ادبار نه دي، تلل راتلل مراد دي ② يَرُشُّونَ: أَيْ: يَغْسِلُونَ: نه به ئې وينځل.

**تسهيلات:**

**قوله:** كَانَتِ الْكِلَابُ تُقْبِلُ وَتُدْبِرُ

**په جماتونو کښې د سپو د داخليدو وجه:** يعني د اسلام په شروع کې جوماتونو کې دروازې نه وې چې د هغې په وجه به سپي جوماتونو ته دننه تلل راتلل نو د هغوئ پښې به وچې وې ځکه د څه شي د وينځلو ضرورت نه وو هرکله چې په جوماتونو کې دروازې لګيدل شروع سوه نو د دې احتياط شروع شو.

**[۵۱۵] مسئلة بول ما يؤكل لحمه**

۵۱۵-()[۲۴] [۱] وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «لَا بَأْسَ بِبَوْلِ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ»".

**ترجمه:** [۱] او حضرت براء رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] د کوم شي چې غوښه خوړل کيږي د هغې په متيازو کې هيڅ حرج نشته

(۱) اخرجه البخاری كتاب الوضوء باب الماء الذی يغسل به شعر الإنسان (رقم-۱۷٤) وابوداود كتاب الطهارة/باب فی طهور الأرض إذا يبست (رقم- ۳۸۲)

(۲) اخرجه الدارقطنی

۵۱۳-()[۰] ١ وَفِي رِوَايَةِ جَابِرٍ، قَالَ: ٢ "«مَا أُكِلَ لَحْمُهُ فَلَا بَأْسَ بِبَوْلِهِ»" رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** ١ او د حضرت جابر رضی الله عنه په روایت کښې دا الفاظ دي ٢ هغه حیوان چې د هغې غوښه خوړل کیږی د هغې په متیازو کښې هیڅ هرج نشته. (احمد، دار قطني)

**قوله:** لَا بَأْسَ بِبَوْلِ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ: دَ غیرماکول اللحم څناورومتیازې په اتفاق سره ناپاك دی دَ ماکول اللحم څناورو دَ متیازوپه حکم کښې دَ فقهاء کرامو اختلاف دې.

**د ما يؤكل لحمه دبول په حكم كښې مذاهب:**

دې جملې سره دوه فقهی مسئلې متعلق دی. یوه مسئله دبول مایوکل لحمه ده.چه دا طاهر دی اوکه نه ؟

① د امام مالك رحمه الله ، امام محمد رحمه الله اود یو روایت مطابق د امام احمد رحمه الله مسلك دا دې چه دا طاهر دې

② اوامام ابوحنیفه رحمه الله ، امام شافعی رحمه الله ، امام ابویوسف رحمه الله او د سفیان ثوری رحمه الله مسلك دا دې چه دا نجس دی البته امام ابوحنیفه رحمه الله دا نجاست خفیفه گرځوی.ځکه چه دفقهاء داختلاف د وجې ددوئ په نیز احکاموکښې تخفیف راځی.

**دطهارت د قائلینو دلائل:**

① په روایت الباب کښې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی ((کلوامن البانها وابوالها)) که د اوښانو متیازې پاکې نه وې.نو حضرت نبی کریم ﷺ به ددې حکم نه ورکولو.

**جوابونه:**

① **اول جواب:** نبی کریم ﷺ ته د وحی په ذریعه خبر شوې وو چه د ابوال ابل څخه بغیر د دوئ شفاء او ژوند ممکن نه دې.نو دا خلق د مضطرپه حکم کښې شو.اود مضطردپاره د نجس څيز استعمال اوشرب جائز گرځی.نو د دې څخه حکم نشی مستنبط کولې.

**اول اعتراض:** په دې باندې دا اعتراض کیږی چې تداوی حالت د ضرورت نه دې.ځکه چې تداوی واجب نه ده او ستاسو جواب مبنی دې په دې صورت چې تداوی واجب شی.

**جواب:** مونږ دا نه تسلیموو چې تداوی حالت د ضرورت نه دې بلکه تداوی حالت د ضرورت دې که یو معتمد علیه طبیب خبر ورکړی چې د متیازو څکلو څخه بغیر بله دوائی نشته نودا حالت د ضرورت گرځی اود ضرورت په وخت کښې حرام ،حرام نه پاتې کیږی خوچې کله ضرورت باتې نشی نو حرمت بیا عود کوی.اونبی کریم ﷺ ته خو د وحی په ذریعه د عرنیینو شفاء په بول کښې معلومه شوې وه نودا ضرورت شو.بلکه حافظ ابن حجر رحمه الله خو فرمائیلی دی چې بغیر د ضرورته هم حرام مباح گرځی لکه څنگه چې په

(۱) اخرجه الدارقطنی

رمضان کښې د مسافر دپاره د ضرورت څخه بغیر هم افطار جائز او مباح ګرځی.

**دویم اعتراض:** که بول نجس وو نو دا به حرام وو.اوپه حرامو کښې شفاء نشته لکه څنګه چې په حدیث کښې راغلی دی ((ان الله لم یجعل شفاء امتی فیما حرم علیها))او د بخاری په روایت کښې دی ((ان الله لم یجعل شفاءکم فیما حرم علیکم))(۱)

**جواب:** داحدیث په حالت اختیار ی باندې محمول دې په حالت اضطراری کښې حرام استعمالولې شی.

۲ نبی کریم ﷺ دوئ ته د متیازو د څکلوحکم نه ووکړی.بلکه د دې د خارجی استعمال حکم ئې کړې وو.اوحقیقت کښې دا جمله د((علفته تبنا وماء باردا)) د قبیله څخه ده او دې کښې تضمین دې.اصل کښې عبارت داسې وو.((اشربوامن البانها وشموامن ابوالها)) یعنی د دې پئ اوڅکئ او د دې بول بوئی کړئ.

۳ بعضې حضرات دا وائی چه دا حدیث منسوخ دې او ددې ناسخ د حضرت ابوهریره ﷺ ((استنزهومن البول)) حدیث دې.د نسخ دلیل دادې چه د عرنیین واقعه د مؤرخینو د تصریح مطابق په شپږمه هجرئ جمادی اولی یا ذی قعده یا شوال کښې واقع شوې وه. او حدیث د ((استنزهوامن البول)) لازما د دې څخه روستو دې ځکه چه د دې راوی حضرت ابوهریره ﷺ په اووم کال د هجرت مسلمان شوې وو.د دې څخه علاوه حدیث کښې مذکور دی. چه نبی کریم ﷺ د عرنیین مثله کړې وه.اومثله په اتفاق سره منسوخ ده.دې وجې ظاهره دا ده.چه دا حکم به منسوخ وی.

**دجواب ضعف:** خو دا جواب بهترنه دې.ځکه چه اصول حدیث کښې دا خبره فیصله شوې ده.چه صرف د راوی متاخر الاسلام کیدل د حدیث د متاخرکیدو دلیل نه دې ځکه چه کیدې شی.چه حدیث ده د اسلام راوړوڅخه وړاندې وی.او راوی د اسلام راوړوڅخه پس د یوبل صحابی څخه دا اوریدلې وی.اوروایت کړې ئې وی. داسې حدیث د عرنیین ته منسوخ وئیل مشکل دی رومبی دوه جوابونه بهتردی.

۲ **دویم دلیل:** نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی ((صلوافی مرابض الغنم)) (۲) د دې څخه معلومیږی.چې بول د مایؤکل لحمه پاك دی. وجه داستدلال دا ده.چه مرابض دغنم د چیلو پچواو متیازو څخه ډك وی که د دوئ بول وغیره نجس وې.نو دې کښې به ئې د مونځ کولو اجازت نه ورکولو. ددې څخه دا حضرات د مایوکل لحمه د بول څخه علاوه د بعراو د روث په طهارت باندې هم استدلال کوی.

---

۱) الصحیح البخاری باب شرب الحلواء والعسل (۱۲۰ ۸٤)-

۲) جامع الترمذی باب ما جاء فی الصلاة فی مرابض الغنم وأعطان الإبل)-

**جوابونه:** ① په مرابض الغنم كښې د مونځ كولو مطلب دا نه دې چې په دې كښې د متيازو په ځائې دپاسه مونځ اوكړې شي.بلكه مطلب دا دې چې په جدا ځائې باندې جائې نماز پوزكې وغيره واچوئ او مونځ پرې اوكړئ.

② كه په مرابض الغنم كښې د مونځ كولو په وجه د جيلئ د متيازو طهارت معلوميږى نو په بل روايت كښې خو په ((مبارك الابل)) كښې د مونځ كولو څخه منع راغلې ده.نود اوښانو متيازې پكار ده چې نجس وى حالانكه تاسو ورته پاكې وائې نو ((فماهوجوابكم فهوجوابنا))

③ دا روايت منسوخ دې لكه څنګه چې په بخارى كښې دى ((عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي مَرَابِضِ الغَنَمِ، ثُمَّ سَمِعْتُهُ بَعْدُ يَقُولُ: «كَانَ يُصَلِّي فِي مَرَابِضِ الغَنَمِ قَبْلَ أَنْ يُبْنَى المَسْجِدُ» ([1]) يعنى په مرابض الغنم كښې د مونځ د جواز واقعه د هغه وخت وه چې مسجد نبوى نه وو جوړ شوې.

③ **دريم دليل:** دحضرت براء رضي الله عنه مرفوع روايت دې ((لا بأس ببول ما يؤكل لحمه)) ([2]) دغه شان اود حضرت جابر رضي الله عنه روايت روايت دې چې ((ما أكل لحمه فلا بأس ببوله)) () د دې دواړو روايتونو څخه معلوميږى چې بول د ما يوكل لحمه پاك دى.

**جواب:** دا دواړه روايتونه ضعيف دې د احتجاج قابل نه دى.حافظ ابن حجر رحمه الله په «التلخيص الحبير)) كښې فرمائيلى دى ((اسنادكل منهما ضعيف جدا)) ([3])

**د نجاست د قائلينو دلائل:**

**اول دليل:** ① په مستدرك حاكم كښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دې چې نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى ((إِسْتَنْزِهُوا مِنَ الْبَوْلِ فَإِنَّ عَامَّةَ عَذَابِ الْقَبْرِ مِنْهُ)) ابن خزيمه وغيره د دې حديث تصحيح كړې ده.اوحاكم دا حديث صحيح على شرط البخارى ګرځولې دې.دا حديث علامه هيثمى رحمه الله هم په مجمع الزوائدكښې نقل كړې دې.دې كښې بول د ((ما يوكل لحمه)) هم شامل دى.

**دويم دليل:** ② په مسندامام احمد رحمه الله كښې د حضرت سعدبن معاذ رضي الله عنه د وفات واقعه ده په هغې كښې دى ([4]) چې د دفن څخه پس دې قبراوزورلو او يوروايت كښې دا هم دى.چه نبى كريم ﷺ ددې خبروركولو څخه پس اوفرمائيل دادده دعدم تحرزعن البول په وجه سره وو.

[1] ) الصحيح البخارى باب الصلاة فى مرابض الغنم)-
[2] ) سنن دارقطنى (۱۱\۱۳۵) رقم الحديث (٤٥٤)-
[3] ) التلخيص الحبير(۱۱\۷)-
[4] ) مشكوة المصابيح ۱۱\۲۶ باب اثبات عذاب القبرالفصل الثالث) _

**دحضرت ګنګوهی تحقیق:** حضرت ګنګوهی رحمه الله په الکوکب الدری ' کښې په دې مقام فرمائی چه ددې حدیث په بعضې طرق کښې دا تصریح هم ده.چه کله د دوئ د بی بی ښځه تپوس اوشو نودوئ اوفرمائیل چه ده به څاروی څرول او د دوئ د بولو څخه به ئې ځان نه ساتلو.

**د ګنګوهی په تحقیق د مفتی تقی عثمانی تبصره:** مفتی اعظم پاکستان علامه محمد تقی عثمانی مدظله العالی په درس ترمذی کښې فرمائیلی دی چې د حضرت سعدبن معاذ دوفات په واقعه کښې دبی بی نه تپوس کولو دا قصه احقرته د حدیث په یوکتاب کښې ملاو نشوه خو حضرت ګنګوهی رحمه الله دا ډیر په وثوق سره نقل کړې ده.که دا واقعه ثابته شی نو په زیر بحث مسئله کښې د نص صریح درجه لری.د دې عبارت نقل کولو څخه پس ما هم دا خبره په ((تحفة المعی)) کښې هم اولیدله. دلته تقی عثمانی مدظله العالی کومه تبصره کړې ده په تحفة الالمعی کښې د دې تبصرې نسبت علامه انور شاه کشمیری رحمه الله ته کړې ده.اوحواله ئې د معارف السنن ورکړې ده.کیدې شی چې دا د مفتی تقی عثمانی صاحب خپله تبصره وی اوهم دا تبصره د دوی څخه وړاندې شاه صاحب هم کړې وی.ځکه چې زه په مفتی صاحب دا ګمان نه کوم چې دوی به د بل چا د تحقیق ځان طرف ته نسبت اوکړی.والله اعلم

**دریم دلیل:** ③ د حضرت ابن عمر رضي الله عنه حدیث دې ((نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن أكل لحوم الجلالة وألبانها)) ([1]) جلاله هغه څاروی ته وائی چه پچې وغیره ګندګی خوری ګویا چې بچې وغیره د نهی سبب دې.دې څخه په دلالة النص سره د مایوکل لحمه بول روث اود بعره نجاست معلومیږی

**څلورم دلیل:** ④ په سابقه باب کښې چې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه روایت تیر شو په هغې کښې د عذاب قبر سبب دا بیان شو چې ((كان لا يستنزه من البول)) اوبول مطلق دی د ماکول اللحم او غیر ماکول اللحم دواړو ته شامل دی.نو د دغه حدیث څخه هم د بولو نجاست معلومیږی.

**پنځم دلیل:** ⑤ امام طحاوی رحمه الله فرمائی چې بول په دم باندې قیاس کول پکار دی په لحم باندې نه ځکه چې هر کله موږ د انسان حالت ته اوکتل نو د ده وینه نجسه وه نو ب،ل ئې هم حرام او نجس اوګرځولې شو.اګرچې د انسان غوښه پاکه ده.خو په دې باندې قیاس نه دې شوې.نودغه شان به بول د ما یوکل لحمه ددې په وینه باندې قیاس کولې شی.په غوښه

---

[1]) جامع الترمذي ابواب الاطعمة باب ما جاء في اكل لحوم الجلالة والبانها)-

باندې نه او وينه ئې نجسه ده او بول به ئې هم نجس وی.(١)

**شپږم دليل:** ⑥ كه بول د ما يوكل لحمه پاك وو نو كم ازكم د صحابه كرامو څخه به يو څل د دې استمال ثابت وو.ليكن په تړوله ذخيره د احاديث كښې داسې څه روايت نشته.معلومه شوه چې بول د مايوكل لحمه پاك نه دی.

**اووم دليل:** ⑦ كله چې د حرمت او اباحت دلائل متعارض شی نو د احتياط دپاره به ادله د حرمت مقدم وی په دلائلو د اباحت نود دې اصول په رڼړا كښې هم د حرمت او نجاست د قائلينو مذهب راجح دې.

**اتم دليل:** ⑧ د حرمت مذهب د قانون كلي موافق دې قانون كلي دا دې چې بول وغيره د بدن څخه لرې اوساتلې شی..

## [۹/۱٤] بَابُ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ

### په موزوباندې دَمسح بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه تسعة أحاديث مشتملة على خمس مسائل:**

① مدة المسح للمقيم والمسافر: ۱، ۳، ۴.

② ثبوت المسح بفعله عليه الصلوة والسلام: ۲، ۸.

③ شرطية لبس الخفين بعد التطهير: ۲، ۳.

④ موضع المسح من الخفين: ۵، ۶، ۹.

⑤ حكم المسح على الجوربين: ۷.

**د مسح على الخفين په حكم كښې د اسلافو احتياط:** په موزوباندې مسح كول چونكه دَ كتاب الله دَ آيت الوضوء سره په ظاهری توګه متعارض وو ځكه چه په قرآن كښې دَخپو وينخلوسره ﴿إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾ لفظ راغلې دې اودَ ګيټوپورې مسح دَ چاپه نيزهم نشته دې دې قيددَ خپو دَ وينځلونه علاوه هرحكم ردكړې دې هم په دې وجه په خپوباندې دَ مسح كولوحكم امت په ډير سوچ اوپوهه سره قبول كړو پخپله صحابه كرامو به په موزوباندې دَمسح كولوروايت كونكی صحابی دَ حضرت جريربن عبدالله ﷺ نه ئی؟ دَ تعجب او استفسار په توګه پوښتنه كوله چه آيا په موزوباندې دَ مسح حكم دَ سورت مائده دَ نزول نه پس راغلې دې يا وړاندې راغلې.نوهغوی به فرمائيل چه روره دَ سورت مائده دَ نزول نه

(١) شرح معاني الآثار باب حكم بول ما يؤكل لحمه (٨٤\١)-

وړاندې خو مااسلام قبول کړې نه وو زه خود هغې نه پس مسلمان شوې یم دحضور پاك په موزو باندې مسح کول د سورت مائده نه پس دې

**د مسح على الخفين باره کښې د اسلافو کردار**: لکه چه د احادیث کثیره مشهوره د وجې نه د قرآن پاك په آیت کښې تخصیص شوې دې او په موزو باندې مسح دهغې نه پس امت قبول کړې دی

① بعضو د مسح على الخفين د احادیثو راویان راجمع کړې دی نومعلومه شوه چه د اتیاؤ نه زیات صحابه کرامودې روایت کړې دې په کوم کښې چه عشره مبشره بالجنة صحابه شامل دی

② حضرت عبدالله بن مبارك رحمه الله فرمائی چه ما د مسح على الخفين باره کښې په صحابه کرامو کښې هیڅ اختلاف نه دې لیدلې اونه روستوعلماؤ په دې کښې اختلاف کړې دې.

③حضرت ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی دې مسئلې نه سلف صالحین کښې چاهم انکارنه دې کړې.

④ حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه زه د اویاؤ نه زیات داسې صحابه کرامو سره ملاؤ شوې یم چه هغوی په موزوباندې د مسح کولو عقیده لرله.

⑤ دامام کرخی رحمه الله قول دې چه کوم سړې په موزو باندې د مسح نه انکاراوکړی اودا ناجائزاوګنړی نوماته دهغه دکفرخطره ده ځکه چه په دې باره کښې احادیث تواترته رسیدلی دی. امام نووی د موزو په مسح باندې اجماع نقل کړې ده.

⑥ امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه ماپه موزو باندې مسح کول هغه وخت قبول کړل کله چه نمر دنیمې ورځې په شان واضح احادیث ماته راؤرسیدل بیا هغوی په موزوباندې مسح کول د اهل سنت والجماعت نشانی اوشعار اوګرځولو.

**دامام ابوحنیفه په نیزد اهل سنت والجماعت د شعارنښې**: هغوی د اهل سنت کیدودپاره درې څیزونه لازمی ګرځولی دی فرمائی «"أَنْ نُفَضِّلَ الشَّيْخَيْنِ وَنُحِبَّ الْخَتَنَيْنِ وَنَرَى الْمَسْحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ"»

① دحضورپاك د دوو خومانو حضرت علی رضي الله عنه او حضرت عثمان رضي الله عنه سره محبت ساتل

② په موزوباندې مسح کول جائز ګنړل

③ د شیخینو یعنی صدیق اکبر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه دټولوصحابؤ نه غوره اوګنړئی.

خلاصه دا چه په موزو باندې مسح کول شرعًا جائزدی ددې نه انکار څوك مبتدع اوبدباطن کولې شی لکه روافض خذلهم الله کړې دې او خوارج هم کړې دې

**د خپو وینځلو افضلیت**: بیاداخبره یادساتئی چه په موزوباندې مسح کول رخصت دې اود خپو وینځل افضل اوعزیمت دې خوکه څوك تکلف کوی او مشقت سره خپې وینځی نوداسې وینځل افضل نه دی اوکه بغیرد تکلف نه ئی څوك وینځی نووینځل افضل دی صاحب د سفرالسعادة لیکلی دی چه کوم عمل د رسول الله صلى الله عليه وسلم مخې ته راغلې دې

نوبغیرد څه تکلف نه هغوی په دې باندې عمل کړې دې اولړشان ئې هم دتکلف نه کارنه دې اخستې.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۵۱۵] په موزو د مسحې کولو موده

۵۱۵-()[۱] ①عَنْ شُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ②سَأَلْتُ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ، ③فَقَالَ: «جَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهُنَّ لِلْمُسَافِرِ، ④وَيَوْمًا وَلَيْلَةً لِلْمُقِيمِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① شریح بن هاني رضي الله عنه راوي دي② چې ما د حضرت علي کرم الله وجهه څخه په موزو د مسح کولو په باره کې پوښتنه د وکړه نو هغه وفرمایل ③ چې رسول الله ﷺ د مسافر د پاره درې ورځې او درې شپې ④ او د مقیم د پاره د یوې ورځې او یوې شپې موده مقرره کړې ده. (مسلم)

**حل اللغات:** ① الْخُفَّيْنِ: دا دخُف تثنیه ده، مَا يَسْتُرُ الْكَعْبَ وَيُمْكِنُ بِهِ ضَرُورِيَّاتُ السَّفَرِ: د څرمنې داسې جرابې چه ګیټې پکښې پټیږی او سفر په کښې کیدلې شی، دې ته موزې وائی.

**تسهیلات:**

**قوله: ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ: توقیت فی المسح** دادې چه شریعت کله په موزوباندې دَ مسح کولوحکم ورکړو نواوس داکتل دی چه آیا دامسح کول دَڅه مقرروخت پورې ده که دَدې دَپاره څه وخت مقررنه دې دامسئله دَ توقیت او عدم توقیتِ مسح په عنوان سره بیانولې شی په دې کښې دَ فقهاء کرامو اختلاف دې.

### د مسح علی الخفین په تحدید کښې مذاهب:-

① د امام مالک رحمه الله اود لیث بن سعد رحمه الله دا مسلک دې.چه د مسح هیڅ مده مقرر نه ده. بلکه تر کومې چه دې موزې اغوستې وی په دې مسح کیدې شی.

② دجمهورو په نیز د مسح علی الخفین مده دمقیم دپاره یوه شپه او یوروځ ده.اود مسافر دپاره درې شپې او درې ورځې ده.

**د اول فریق اول دلیل:** ① د حضرت خزیمه بن ثابت رضي الله عنه روایت دې ((عن النبی صلی الله علیه وسلم علی الخفین للمسافر ثلثة ایام وللمقیم یوم ولیلة لواستزدناه لزادنا))([2])

**داول فریق د اول دلیل محلور جوابونه:-** ① د ((لواستزدناه لزادنا)) زیاتې صحیح نه دې لکه چه

---

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الطهارة/ باب التوقیت فی المسح علی الخفین،.. رقم الحدیث ۶۶۱

[2]) ابوداود باب التوقیت فی المسح قال ابوداود رواه منصور بن المعتمر عن ابراهیم التیمی باسناده قال فیه ولواستزدناه لزادنا))

علامه زيلعي رحمه الله او علامه ابن دقيق العيد رحمه الله ددې تضعيف کړې دې.

② بعضې حضرات فرمائی چه دا د ابتداء واقعه ده.روستو مده مقرر شوه

③ بعضې حضرات فرمائی دادحضرت خزيمه رضي الله عنه خپل ګمان دې چه شرعًا حجت نه دې.

④ د ټولوڅخه بهترجواب علامه ابن سيدالناس په شرح ترمذی کښې ورکړې دې.چه قاضی شوکانی په نيل الاوطار ۱۷۹\۱ کښې نقل کړې دې.هغه داچه که دازياتې ثابت هم شی نو هم ددې جملې نه په عدم توقيت استدلال صحيح نه دې.ځکه چه "لو" په کلام دعربوکښې د انتفاء د ثانی د وجې د انتفاء اول دپاره راځی.نو د دې حديث مطلب دا شو.چه که مونږ دحضرت نبی کريم صلی الله علیه وسلم څخه د د مسح د مودې د زيادت طلب کړې وې.نو دوئ به زياتې کړې وو.خوچه زياتې موطلب نه کړو.نو زياتې اونه شوه هم ددې جواب تشريح اوتفصيل علامه عثمانی رحمه الله دحضرت شيخ الهند رحمه الله په حواله سره په فتح الملهم کښې دا نقل کړې دې.چه په اصل کښې د حضرت نبی کريم صلی الله علیه وسلم دا معمول وو.چه دوئ به په اهم معاملاتواو ډيرو شرعی معاملاتوکښې د تحديددپاره د صحابه کرامو رضي الله عنهم سره مشوره کوله.حضرت خزيمه رضي الله عنه دې باره کښې فرمائی.چه که مونږ د زيادت مشوره ورکړې وې.نو حضرت نبی کريم صلی الله علیه وسلم به زياته مُوده مقرر کړې وې.خو مونږ دزياتې مودې مشورو ورنه کړه.نو دوئ صلی الله علیه وسلم زياتې اونه کړو.په هرحال داد هغه وخت واقعه ده.ترکومې چه څه شرعی تحديد نه وو شوې.خو چه کله يوه مده مقرررشوه.نو دې څخه پس ددې مخالفت قطعًاجائزنه دې.

**اشکال:**-په امورو شرعيه کښې د مشورې څه ضرورت دې؟

**جواب:**- دا د دې امت خصوصيت دې چې ((وَأَمْرُهُمْ شُورَىٰ بَيْنَهُمْ)) دغه شان په بل آيت کښې دی ((وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ)) نو بعضې وخت په امورو شرعيه کښې هم د امت د رائې اعتبار کولې شی لکه څنګه چې حکم راغلو ((يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُولَ فَقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوَاكُمْ صَدَقَةً))نو نبی کريم صلی الله علیه وسلم د علی رضي الله عنه سره مشوره اوکړه چې څومره صدقه به پکار وی هغوی ورته عرض اوکړو چې يوه شعيره به کافی وی نو هم دغه شعيره مقرر کړې شوه دلته هم درې ورځې او درې شپې د مسافر دپاره مقرر کړې شوې نو اوس به په کښې زيادت نشی کولې.

**د اول فريق دويم دليل:**② دحضرت ابی عماره رضي الله عنه څخه روايت دې.((قَالَ يارسول الله صلی الله علیه وسلم امسح على الخفين ؟قال نعم قال يوما؟قال......ويومين.....قال ثلثه ؟قال نعم وماشئت)) ([1])

[1]) باب التوقيت في المسح ۱۲)_

اوپه یوروایت کښې داسې دی.(۱) ((عن ابی بن عمارة رضی الله عنه قال فیه حتی بلغ سبعاً، قال رسول الله ﷺ نعم مابدالك)) داروایت په عدم توقیت کښې صریح دې.

**داول فریق د دویم دلیل جواب:-** دا روایت سنداً ضعیف دې لکه چه امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی ((وقد اختلف فی اسناده ولیس هو بالقوی)) اوامام بیهقی رحمه الله په کتاب المعرفة کښې فرمائی ((اسناده مجهول)) او امام دارقطنی رحمه الله په خپل سنن کښې لیکی چه دا اسنادثابت نه دې.او دې کښې عبدالرحمن بن رزین اومحمدبن یزید اوایوب بن قطن مجهول دی.امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه ((لیس ینبغی لاحدان یترك هذه الآثار المتواترة فی التوقیت لمثل حدیث ابی عمارة))

**د اول فریق دریم دلیل:** ③ د حضرت عقبه بن عامر څخه روایت دې.((قال اتردت (ای جئت) من الشام الی عمر بن الخطاب فخرجتُ من الشام یوم الجمعة ودخلت المدینة یوم الجمعة فدخلت علی عمر وعلیَّ خفان جرمقانیان رصوابه جرمقانیان فقال لی متی عهدك یاعقبة بخلع خفیك فقلت لبستهما یوم الجمعة وهذا الجمعة فقال لی اصبت السنة)) (۲)

**داول فریق د دریم دلیل څلور جوابونه:-**

① امام طحاوی رحمه الله فرمائی چې کیدې شی چې عقبه بن عامر په داسې لار باندې راغلې وو چې په هغې کښې اوبۀ نه وی او عمر رضی الله عنه ته هم معلومه وه چې دې په کومه لار راغلې دې په هغې کښې اوبۀ نشته نو ښکاره ده چې تیمم به کوی او تیمم خو صرف د مخ او لاسونومسح کول دی په هغې کښې خو د موزو ویستل نه وی.

② د سنت څخه مراد سنت نبوی نه دې بلکه سنت عمری دې چې دا د عمر رضی الله عنه اجتهاد وو.خو دې ته ئې د ((علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین)) په وجه سنت وئیلې دې.

③ ابن عربی رضی الله عنه فرمائی چې په پښو کښې اصل وینځل دی او مسح خود عارض لبس الخفین د وجې راځی بل طرف ته د صحیح احادیثو څخه توقیت فی المسح ثابت دې.او د دې روایت څخه علاوه بل صحیح روایت دعدم توقیت په باره کښې نشته نو چې اصل او صحیح روایاتو ته اوکتلې شی نو دا حدیث قابل عمل نشی پاتې کیدې.ځکه چې عدم توقیت خلاف الاصل او خلاف الرویات دې.

④ د جمعې څخه جمعې پورې د مسح کولو مطلب دادې.چه دطریق مشروع مطابق ئې د یوې هفتې څخه خفین اچولې وو.او طریق مشروع دا دې چه په مودۀ مخمیدو به ئې خفین ویستل پښې به ئې وینځلې او دا به ئې په دوباره اغوستل.په عرف کښې داسې عمل کوونکو داوئیلې کیږی.چه دې د یومیاشتې داسې مسح کوی.ددې دلیل دادې چه

۱) باب التوقیت فی المسح ۱۲) ــ
۲) شرح معانی الآثارباب المسح علی الخفین کم وقته للمقیم والمسافر)-

حضرت عمر رضي الله عنه پخپله دتوقیت مسح قائل وو.اودمذکوره روایت خلاف د دوی څخه ډیر روایات ثابت دی.

**دعمر رضي الله عنه د مسح د توقیت قائل کیدو دلائل:-** (۱) مثلاً طحاوی کښې (۱) د حضرت سویدبن عقله روایت دې. ((قال قلنا لنباتة الجعفی وکان اجرأنا علی عمر رضي الله عنه سله عن المسح علی الخفین فسأله فقال للمسافر ثلثة ایام ولیالیهن وللمقیم یوم ولیلة)) دحضرت عمر رضي الله عنه دا حدیث دړومبی حدیث سره معارض دې که دترجیح صورت اختیارکړې.نو ظاهره ده چه هغه روایت به راجح وی چه کوم د احادیث مرفوعه متواتره مطابق وی اوکه د تطبیق کوشش اوکړې شی.نو هم دابه وئیلې کیږی.چه د شرعی قاعدې مطابق نې د یوې هفتې څخه موزې اچولې وې

(ب) یوځلې دحضرت سعد رضي الله عنه او حضرت ابن عمر رضي الله عنه په مینځ کښې د مسح علی الخفین په باره کښې اختلاف راغې او معامله حضرت عمر رضي الله عنه ته وړاندې شوه نو حضرت عمرفاروق رضي الله عنه خپل ځوی عبدالله بن عمر رضي الله عنه ته اوفرمائیل ((یابنی عمك افقه منك للمسافر ثلثة ایام ولیالیها وللمقیم یوم ولیلة)) دې څخه هم دا ثابتیږی چه حضرت عمر رضي الله عنه پخپله هم د توقیت قائل وو.

(ت) دې څخه علاوه په مسند بزارکښې پخپله دحضرت عمر رضي الله عنه نه دامرفوع حدیث مروی دې.((ان النبی صلی الله علیه وسلم قال یمسح المسافر علی الخفین ثلاثة ایام ولیالیهن وللمقیم یوماً ولیلة )) (۲) امام بزار رحمه الله فرمائی ((وخالد لین الحدیث وروی عنه جماعة))

**داول فریق څلورم دلیل:**④ دامام مالک رحمه الله یو استدلال په مسندابویعلی کښې د حضرت میمونه رضي الله عنها دحدیث څخه هم دې.((قالت یارسول الله صلی الله علیه وسلم ایخلع الرجل خفیه کل ساعة قال لاولکن یمسح علیها مابداله))(۳) علامه هیثمی رحمه الله ددې روایت ذکرکولو نه پس فرمائی ((فیه عمربن اسحاق قال الدارقطنی لیس بالقوی وذکره ابن حبان فی الثقات)) هم داحدیث المطالب العالیة کښې هم د عمر بن اسحاق څخه مروی دې (( قال قرأت لعطاء کتابامعه فاذافیه حدثنی میمونة رضي الله عنها زوج النبی صلی الله علیه وسلم انها قالت الخ)) (۴)

**داول فریق د څلورم دلیل جواب:-** په هرحال ددې جواب دادې چه عمربن اسحاق متکلم فیه راوی دې اوکه دده.حدیث صحیح هم تسلیم شی.((فالمراد مابداله بالمدة لان السوال انما کان فی خلع الخفین کل ساعة))

---

(۱) الطحاوی کتاب الطهارة باب المسح علی الخفین کم وقته للمقیم والمسافر) ـ

(۲) کشف الاستار ۱۵۶\۱ رقم ۳۰۶))

(۳) (مجمع الزوائد ۲۵۸\۱ باب التوقیت فی المسح علی الخفین)

(۴) المطالب العالیة ۳۵\۱ رقم ۱۱۳)

**داول فریق پنځم دلیل:** ⑤ مسنداحمد کښې هم د حضرت میمونه رضي الله عنها حدیث دې. ((عن عطاء بن یسار قال سألت میمونة زوج النبی صلی الله علیه وسلم عن المسح علی الخفین قالت قلت یارسول الله ﷺ أکل ساعة یمسح الانسان علی الخفین ولایخلعهما قال نعم)) (¹)

**داول فریق د پنځم دلیل جواب:** دې کښې هم د عمربن اسحاق راوی واسطه ده. اوکه داتسلیم هم شی. نو ددې هم دغه جواب دې چه کوم تیرشوې حدیث کښې بیان شو. ((وایضًا لایقاوم الاحادیث الصحیحة المشهورة))

**دجمهورو دلائل:** - حدیث الباب د جمهورو صحیح اوصریح دلیل دې. او ددې معنی نورهم ډیراحادیث منقول دی. او دتوقیت مسح دامفهوم خو حد د شهرت ته رسیدلې دې. لکه چه دحضرت علی رضي الله عنه ، حضرت ابوبکر رضي الله عنه ، حضرت ابوهریره رضي الله عنه ، صفوان بن غسال رضي الله عنه ، حضرت ابن عمر رضي الله عنه ، عوف بن مالک رضي الله عنه وغیر هم څخه ددې مضمون روایات منقول دی.

## [۵۱۸] په موزوباندې مسح کول

۵۱۸ - (¹) [۲] ① وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ② ((أَنَّهُ غَزَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزْوَةَ تَبُوكَ. قَالَ الْمُغِيرَةُ: ③ فَتَبَرَّزَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ الْغَائِطِ، ④ فَحَمَلْتُ مَعَهُ إِدَاوَةً قَبْلَ الْفَجْرِ، ⑤ فَلَمَّا رَجَعَ أَخَذْتُ أُهَرِيقُ عَلَى يَدَيْهِ مِنَ الْإِدَاوَةِ، ⑥ فَغَسَلَ يَدَيْهِ وَوَجْهَهُ، وَعَلَيْهِ جُبَّةٌ مِنْ صُوفٍ، ⑦ ذَهَبَ يَحْسِرُ عَنْ ذِرَاعَيْهِ، فَضَاقَ كُمُّ الْجُبَّةِ، ⑧ فَأَخْرَجَ يَدَيْهِ مِنْ تَحْتِ الْجُبَّةِ، ⑨ وَأَلْقَى الْجُبَّةَ عَلَى مَنْكِبَيْهِ، وَغَسَلَ ذِرَاعَيْهِ، ⑩ ثُمَّ مَسَحَ بِنَاصِيَتِهِ وَعَلَى الْعِمَامَةِ،

**ترجمه:** ① د مغیره بن شعبه رضي الله عنه په باره کې روایت دې ② چې هغه د حضور ﷺ سره په غزوه تبوک کې شرکت وکړو هغه وایې ③ په دې دوران کې یوه ورځ د سحر د لمانځه څخه مخکې حضور ﷺ د قضایې حاجت (اودس ماتې) د پاره بهر تشریف یوړلو ④ زه هم د اوبو پتکې آخستو سره د حضور ﷺ سره ملګرې شوم ⑤ کوم وخت چې حضور ﷺ د قضایې حاجت څخه واپس تشریف راوړو (او د اودس د پاره کیناستل) نو ما د حضور ﷺ په لاسونو اوبه اچول شروع کړل ⑥ حضور ﷺ مخکې خپل دواړه لاسونه ووینځل او مخ یې ووینځلو حضور ﷺ یوه اُونې (و وړې) جُبّه اغوستې وه ⑦ د هغې لستونې یې پورته کول اوغوښتل لیکن لستونې یې تنګ وؤ (څکه پورته ونه ختل) ⑧ نو حضور ﷺ خپل دواړه لاسونه د جبې څخه راوښکل ⑨ جبه یې په اوږو واچوله او دواړه څنګلې یې ووینځلې ⑩ بیا یې په څلورمې

---

(¹) معجم الزوائد ۱\۲۵۸)-

(²) اخرجه مسلم کتاب الطهارة باب تقدیم الجماعة من یصلی بهم إذا تأخر الإمام ولم یخافوا مفسدة بالتقدیم(رقم) ۱۰۵ - (۲۷٤) وابوداود کتاب الطهارة . باب المسح علی الخفین (رقم- ۱٤۹) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فی المسح علی الخفین (رقم- ۵٤۵) والنسائی کتاب الطهارة/باب المسح علی الخفین فی السفر (رقم- ۱۲۵)

حصي سر اوپه لنگوټي (پټکي) مسح وکړله.

**حل اللغات:** ① فَتَبَرَّزَ: أَيْ: خَرَجَ إِلَى الْبَرَازِ: يعنى قضاء حاجت دپاره ئي تشريف راوړو، براز صحراء او فضاء ته وائي خو دا كنايه ده د قضاء حاجت نه ② قِبَلَ الْغَائِطِ: أَيْ: جَانِبَهُ لِقَضَاءِ الْحَاجَةِ: يعنى د بشرى تقاضې دپاره روان وو. ③ فَحَمَلْتُ: نو وامې خستل، ④ إِدَاوَةً: لوښي، يعنى لوټه يا كوزه. ⑤ أُهَرِيقُ: أَيْ: أَصُبُّ الْمَاءَ: ما به ورته اوبه اچولې، ⑥ جُبَّةٌ: چوغه، ⑦ صُوفٍ: وړئ، ⑧ ذَهَبَ: أَيْ: شَرَعَ وَأَخَذَ: دلته ذهاب په معنى د شروع كولو او د نيولو په معنى كښې دې، ⑨ يَحْسِرُ: أَيْ: يَكْشِفُ كُمَّيْهِ: يعنى لستونړي ئي اوچتول. ⑩ كُمٌّ: لستونړې،

> ⑪ ثُمَّ أَهْوَيْتُ، لِأَنْزِعَ خُفَّيْهِ، فَقَالَ: ⑫ "دَعْهُمَا؛ فَإِنِّي أَدْخَلْتُهُمَا طَاهِرَتَيْنِ" فَمَسَحَ عَلَيْهِمَا ⑬ ثُمَّ رَكِبَ وَرَكِبْتُ، فَانْتَهَيْنَا إِلَى الْقَوْمِ، وَقَدْ قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ، ⑭ وَيُصَلِّي بِهِمْ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ، وَقَدْ رَكَعَ بِهِمْ رَكْعَةً، ⑮ فَلَمَّا أَحَسَّ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَهَبَ يَتَأَخَّرُ، فَأَوْمَأَ إِلَيْهِ، ⑯ فَأَدْرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِحْدَى الرَّكْعَتَيْنِ مَعَهُ، ⑰ فَلَمَّا قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقُمْتُ مَعَهُ، ⑱ فَرَكَعْنَا الرَّكْعَةَ الَّتِي سَبَقَتْنَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ⑪ بيا چې كله ما د حضور ﷺ د موزو ويستلو (كښلو) اراده وكړله چې حضور ﷺ پښې ووينځې نو وي فرمايل ⑫ دا پريږده ځكه چې ما د پښو د پاكې په حالت كې دا اچولې وې (يعني اودس كولو څخه وروسته مې اچولي دي) نو حضور ﷺ په دواړو موزو باندې مسح وكړله ⑬ بيا حضور ﷺ او زه دواړه سوريدو سره خلقو ته راغلو نو د سحر لمانځه د پاره جماعت اودريدلې وو ⑭ او عبد الرحمٰن بن عوف رضی الله عنه مونځ وركولو او يو ركعت يې كړې وو ⑮ هغه ته چې د حضور ﷺ د تشريف راوړلو احساس وشو نو هغه په وروسته كيدو شو (چې حضور ﷺ امامت وكړي) ليكن حضور ﷺ ورته اشاره وكړله چې په خپل ځاي ولاړ اوسه او مونځ وركړه ⑯ نو حضور ﷺ يو ركعت د هغه سره وكړو [يعني حضور ﷺ دويم ركعت د عبد الرحمٰن بن عوف رضی الله عنه په اقتداء كړو ادا كې هركله چې هغه سلام وګرځولو] ⑰ نو حضور ﷺ اودريدلو او زه هم د حضور ﷺ سره ودريدم ⑱ او كوم مخكني ركعت چې زمونږ څخه تير شوې وو هغه مو اداكړلو. (مسلم)

**حل اللغات:** ⑪ أَهْوَيْتُ: أَيْ: انْحَنَيْتُ: يعنى قصد مې اوكړو چه ورښكته شم، ⑫ أَحَسَّ: أَيْ: عَلِمَ: احساس ورته اوشو يعنى پته ورته اولګيده، ⑬ فَأَوْمَأَ: اشاره ئې ورته اوكړه.

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## [۵۱۰] مسافر دپاره درې ورځې اوشپې په موزو د مسحې كولو جواز

> ۵۱۰ -(۱)[۳] ① عَنْ أَبِي بَكْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② أَنَّهُ «رَخَّصَ لِلْمُسَافِرِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهُنَّ، ③ وَلِلْمُقِيمِ يَوْمًا وَلَيْلَةً، ④ إِذَا تَطَهَّرَ فَلَبِسَ خُفَّيْهِ أَنْ يَمْسَحَ عَلَيْهِمَا»، رَوَاهُ الْأَثْرَمُ فِي سُنَنِهِ، وَابْنُ خُزَيْمَةَ،

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فى التوقيت فى المسح للمقيم والمسافر (رقم- ۵۵۶)

والدَّارَقُطْنِيُّ، ⑤ وَقَالَ الْخَطَّابِيُّ: هُوَالْإِسْنَادُ، هَكَذَافِي الْمُنْتَقَى.

**ترجمه:** ① ابي بکره رضي الله عنه راوي دي ② چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په موزو د مسح کولو اجازت مسافر ته دري ورځي او دري شپو پورې ③ او مقيم ته د يوي ورځي او يوي شپي پورې ورکړي دي ④ هرکله چې هغه موزي د اودس کولو څخه وروسته په پښو کړي وي، اثرم ابن خزيمه، دارقطني، ⑤ او خطابي وايي چې دا حديث د اسناد له مخه صحيح دي او په منتقى کې (هم چې د ابن تيميه حنبلي رحمه الله کتاب دي) دغسي منقول دي.

**حل اللغات:** ① رَخَّصَ: أَيْ: جَوَّزَ: اجازت ئې ورکړې دې.

**تسهيلات:**

**قوله: إِذَا تَطَهَّرَ:**

**د موزې اچولو دپاره د پښو د طهارت شرطيت:** دَحضرت ابوبکر رضي الله عنه په دې روايت کښې اودَدې نه وړاندې دَحضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه روايت کښې داقسم الفاظ راغلی دی چه په موزوباندې مسح هله صحيح ده کله چه داپه کامل طهارت باندې واچولې شی يعنی اودس ئی جوړکړو اوتردغه وخت پورې دا سرې په اودس کښې دې اوموزه ئی واچوله نوبيادې مسح کولې شی ځکه چه موزه ئی په طهارت باندې اچولې ده اودَ بهرنه چه کوم نوې نجاست يا حدث راځی هغه په موزه کښې دننه نه ورځی لهذا صرف مسح کافی ده.

**د موزو اچولودپاره د کامل اودس په شرطيت کښې مذاهب:**

① امام شافعی رحمه الله فرمائی چه ترکومې پورې ئی پوره اودس نه وی کړې هغه وخته پورې مسح کول جائزنه دی بلکه په کامل طهارت باندې موزه اچول دَ آئنده مسح دَپاره شرط دې.
② امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی که يو سړی دَ اودس جوړولووخت کښې اول خپې وينځلې بيائی موزه واچوله اوباقی اودس ئی پوره کړو نوپه دې صورت کښې هم آئنده مسح جائزده ځکه چه هغه دَ خپې دَ طهارت په حالت کښې موزه اچولې ده.

**په اودس کښې د ترتيب په فرضيت کښې مذاهب:**

په اصل کښې دا مذکوره اختلاف په يو بل اختلاف باندې مبنی دې. يعنی په اودس کښې د ترتيب په فرضيت کښې اختلاف.

① دَامام شافعی رحمه الله په نيزپه اودس کښې ترتيب فرض دې اوس چاچه اول خپې اووينځلې نوهغه غيرمرتب اودس اوکړو کوم چه صحيح نه دې نوموزې ئی په طهارت باندې کوم ځائی واچولې؟ليکن ② دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز چونکه غيرمرتب اودس هم صحيح دې لهذا دا موزې هم په طهارت کښې اچولې شوی دی. احتياط دَ شوافع په مسلک کښې دې او ظاهر دَحديث هم دې طرف ته اشاره کوی.

[۵۲۰] په جنابت د موزو د مسحې ماتیدل

۵۲۰-()[۴] ①وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ②«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا إِذَا كُنَّا سَفَرًا أَنْ لَا نَنْزِعَ خِفَافَنَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهُنَّ إِلَّا مِنْ جَنَابَةٍ، ③وَلَكِنْ مِنْ غَائِطٍ وَبَوْلٍ وَنَوْمٍ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

ترجمه: ① او صفوان بن عسال رضی الله عنه فرمايي② هرکله به چې مونږ په سفر کې وو نو رسول الله ﷺ به مونږ ته حکم راکولو چې تر دريو ورځو او دريو شپو پورې (اودس کولو په وخت د پښو وينځلو د پاره) موزې نه اوداږو البته د جنابت په وجه [يعني د غسل واجب کيدو په صورت کې د لمبيدو د پاره دې وباسل شي] ،③ نه د اودس ماتي په وجه او نه د متيازو په وجه او نه د خوب په وجه [يعنى په دې صورتونو کې به په سفر کې د پښو نه تر درې ورځو پورې موزې نه ويستلې کيږی بلکې مسح به پرې کولې شی. (ترمذي نسائي)

[۵۲۱] په موزو د مسحې کولو طريقه

۵۲۱-()[۵] ①وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ: ②«وَضَّأْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ، ③فَمَسَحَ أَعْلَى الْخُفِّ وَأَسْفَلَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. ④وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ مَعْلُولٌ، وَسَأَلْتُ أَبَا زُرْعَةَ وَمُحَمَّدًا -يَعْنِي الْبُخَارِيَّ- عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، ⑤فَقَالَا: لَيْسَ بِصَحِيحٍ، وَكَذَا ضَعَّفَهُ أَبُو دَاوُدَ.

ترجمه: ① مغيره بن شعبه رضی الله عنه راوي دي② چې ما په غزوه تبوک کې رسول الله ﷺ ته په اودس کې اوبه اچولې وې③ او حضور ﷺ په موزو د لاندې او د بره مسح وکړه، ابوداؤد ابن ماجه،④ امام ترمذي فرمايلي دي چه دا حديث معلومول دي ما د دې حديث په باره کې دابو زرعه او محمد يعنى امام بخاري رحمه الله څخه پوښتنه وکړه ⑤ نو دواړو اوويل چې دا حديث صحيح نه دي دغسې امام ابوداؤد هم دي حديث ته ضعيف ويلي دي.

**حل اللغات:** ①وَضَّأْتُ: أَيْ: سَكَبْتُ: يعنى اودس کولو دپاره مې ورته اوبه اچولې وې.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَمَسَحَ أَعْلَى الْخُفِّ وَأَسْفَلَهُ: موزو باندې د محل مسح باره کښې اختلاف دي. ټول درې صورتونه دی ، دوؤ باندې اتفاق دې او يو کښې اختلاف دې.

**د مسح على الخفين په اعلى او اسفل کښې مذاهب:**

① امام شافعي رحمه الله فرمائي چه مسح ((على الخفين آعلى وآسفل)) دواړو طرفونه به وی

(۱) اخرجه الترمذی كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب المسح على الخفين للمسافر والمقيم (رقم-۹۶) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب الوضوء من النوم (رقم- ۴۷۸) والنسائی كتاب الطهارة/باب التوقيت فى المسح على الخفين للمسافر (رقم- ۱۲۷)

(۲) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة ، باب كيف المسح (رقم- ۱۶۵) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فى مسح أعلى الخف وأسفله (رقم- ۵۵۰)

② بيا امام مالك رحمه الله د جانبينو مسح واجب وائي.او امام شافعي رحمه الله اعلى واجب او اسفل مستحب گرځوي.

③ دحنفيانو اودحنابلو په نيز صرف د اعلى الخف مسح ضروري ده.او د اسفل الخف مسح مشروع هم نه ده.

**داول او دويم فريق دليل:** زيربحث د مغيره بن شعبه رضى الله عنه حديث عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ: «وَضَّأْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ، فَمَسَحَ أَعْلَى الْخُفِّ وَأَسْفَلَهُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، د دوى مستدل دې.ځكه چې په دې كښې د مسح داعلى او اسفل ثبوت دې.

**داول اودويم فريق د دليل جواب:** دا روايت معلول دې او بخاري او ابو زرعه رحمة الله عليه دا ضعيف گرزولې دې. لهذا دا قابل د استدلال نه دې.

**د احنافو دلائل:** ① داحنافودليل ترمذي رحمه الله كښې د حضرت مغيره بن شبه رضي الله عنه روايت دې. ((قال رأيت النبى صلى الله عليه وسلم يمسح على الخفين ظاهرهما»، قال ابوعيسى حديث المغيرة حديث حسن)) ([1])

**اشكال:** خو ددې په باره كښې امام ترمذي رحمه الله ليكى.((وهوحديث عبدالرحمن بن ابى الزنادعن ابيه عن عروة عن المغيرة ولانعلم احدا يذكرعن عروة، عن المغيرة على ظاهرهما غيره))

**د اشكال جواب:** خو دې خبرې سره د حديث په صحت هيڅ اثر نه پريوځى ځكه چه امام بخاري رحمه الله هم دا حديث په تاريخ كبيركښې ((عن عروة عن المغيرة)) په طريق روايت كړې دې.او دا ئې صحيح گرځولې دې.

**اشكال:** د عبدالرحمن بن ابى الزناد بعضې حضراتوتضعيف كړې دې.

**داشكال جواب:** صحيح داده.چه ددوى احاديث مقبول دى.

② په ابوداؤد كښې په اسناد حسن سره دحضرت على رضي الله عنه ارشادمروى دې.((عن على رضى الله عنه قال لوكان الدين بالراى لكان أسفل الخف أولى بالمسح من أعلاه وقد رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم يمسح على ظاهرخفيه))([2])

③ د عبدالله بن المغفل المزنى روايت دې.((قال اول من رايت عليه خفين فى اسلام، المغيرة بن شعبة اتانا ونحن عند رسول الله صلى الله عليه وسلم وعليه خفان اسودان فجعلنا ننظر اليهما ونعجب منهما فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم اما انه سيكون لكم اعلى الخفاف قالوا يارسول الله فكيف نصنع ؟ قال تمسحون عليهما وتصلون))([3])

اود حديث د باب جواب دادې چه دامعلول دې لكه چه زربه ددې تفصيل راشى.اوكه

---

[1]) الترمذى كتاب الطهارة باب فى المسح على الخفين ظاهرهما)-

[2]) وكذا فى بلوغ المرام وفى التلخيص ۵۹/۱ واسناده صحيح)-

[3]) (المطالب العالية ۳۵/۱)-

دابل استدلال هم اومنلې شي نو بیاهم داونیلې شي چه په اصل کښې مسح دوی په ظاهرکړې وه خودموزو دسختې په وجه ئې اسفل خف هم نیولې وو. چه دینه راوی په مسح علی الاسفل تعبیراوکړو.

**[۵۲۲] د موزو په ظاهر باندې مسح کول**

۵۲۲-()[۶] [۱] وَعَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: [۲] «رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ عَلَى ظَاهِرِهِمَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] مغیره ابن شعبه رضي الله عنه راوي دي [۲] چې ما رسول الله ﷺ په موزو دپاسه په مسح کولو باندې لیدلي دي. (ترمذي ابوداؤد)

**[۵۲۳] په جورابو د مسحې کولو حکم**

۵۲۳-()[۷] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: [۲] «تَوَضَّأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، [۳] وَمَسَحَ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَالنَّعْلَيْنِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] مغیره ابن شعبه رضي الله عنه راوي دي [۲] چې رسول الله ﷺ اودس وکړو [۳] او د نعلینو سره یې په جوربینو مسح وکړله. (احمد ترمذي ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① الْجَوْرَبَيْنِ: دا جورب تثنیه ده، جرابو ته وائی. ② النَّعْلَيْنِ: د نعل تثنیه ده، پنړې ته وائی.

**تسهیلات:**

**قوله: وَمَسَحَ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ:**

**د جورب لغوی تحقیق:** جورب معرب دې. اصل کښې دا د فارسی گورپ دې. او ددې اصل گوربا دې اوددې معنی ده د پښې قبر. جرابې هم د پښو دپاره قبر دې. داشان جوربین تثنیه ده. لکه څنگه چې خفین تثینه ده. ددې مفرد خف دې. او خف موزې ته وائی. دا دواړه په طور د تثنیه راوړلې کیږی څکه چه دا مسئله د تثنیه سره خاص ده. په یوه جرابه یا یوه موزه باندې مسح نه کیږی.

په جورابو باندې د مسح د حکم بیانولو څخه وړاندې د جورابو اقسام بیانولی شی. چې دا زده شی نو بیا به د فقهاء کرامو اختلاف په ذهن کښې کینی. احادیثو کښې د خفین او جوربین نه علاوه د جرموقین نوم هم راغلې دې.

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة، باب كيف المسح (رقم- ۱۶۱)وابن ماجة باب في المسح على الخفين ظاهرهما (رقم- ۹۸)

(۲) اخرجه الترمذی كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في المسح على الجوربين والنعلين (رقم- ۹۹)وابوداود كتاب الطهارة ، باب المسح على الجوربين (رقم- ۱۵۹)وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء في المسح على الجوربين والنعلين (رقم- ۵۵۹)

**د جورابو قسمونه:**

① جوربین منعلین، دا هغه جوربین دی چې دهغې صرف لاندې تلی باندې یا صرف په پورتنۍ حصه باندې څرمن لګولې شوی وی.په دې هم اتفاق دې چې په دې هم مسح جائز ده.

② جوربین مجلد، داهغه (جوربین) دې چې دهغې لاندې باندې څرمن لګیدلې وی او دټولو فقهاء کرامو په دې اتفاق دې چې دا جوربین د خفین په حکم کښې دی. په دې باندې مسح کول جائز دی.

③ جوربین رقیقین، یعنې داسې جوربین چې لاندې باندې ښنه په نظر راځی او په هغې کښې یوکس مسلسل بغیر د پیزار نه نشی ګرزیدلې. هغې کښې پورته لاندې اوبه ورځی. په دې کښې هم اتفاق دې چې په داسې قسمه جوربینو مسح جائز نه ده.

④ که جوربین نه منعل دی او نه مجلد او نه رقیق بلکه ثخینین دی په دې ثخینینو کښې اختلاف دې. خود ثخینینو دپاره د څلورو شرطونو موندل ضروری دی.

**د ثخینینو څلور شرطونه:**

① د یو طرف نه هم کاشف قدمین نه وی بلکه ساتر قدمین وی.

② چې دومره غټې او مضبوطې وی چې بغیر د پیزار نه درې میله مسلسل دې سره مزل کولې شی.

③ دځه ربړ یا تسمی وغیره په مدد سره استمساك نه وی بلکه پخپله پنډۍ سره لګیدلې وی.

④ داشان ثخینین وی چې په اوبو باندې قدم ایښودو سره دا اوبه نه جذب کوی.

**په ثخینینوجورابو باندې د مسحې په حکم کښې مذاهب:**

① د جمهورو او صاحبینو په نیز مسح جائز ده.

② امام ابوحنیفه رحمة الله علیه فرمائی چې ترکومې پورې جوربین مجلدین یا منعلین نه وی په دې باندې مسح جائز نه ده.

**داول فریق دلیل:** حدیث الباب د دوی مستدل دې.ځکه چې په دې کښې په جورابو باندې د مسحې کولو ذکر دې.

**داول فریق د دلیل جواب:** د مغیره بن شعبه ﷺ روایت لره ډیرو محدثینو ضعیف او ناقابل استدلال ګرزولې دې. بیا په دې حدیث پاك ابهام او احتمالات هم شته دې چه نبی کریم ﷺ په کوم قسم جوربین باندې مسح کړې وه. آیا رقیقین وې یا مجلدین وې یا منعلین وې، دا ټول تفصیل پټ دې. د دې وجې دا حدیث قابل استدلال نه دې.

**د دویم فریق دلیل:** ځکه چې د قرآن پاك آیت نه د ښپې وینځل معلومیږی. لیکن احادیث مشهوره نه د خفین مسح هم اومنلې شو ، لهذا کله چې جوربین منعلین یا مجلدین وی نو دابه د خفین په حکم کښې راځی. نو ددې مشهور احادیث په وجه به دقرآن پاك په حکم

کښې تخصیص راشي. لیکن که جوربین منعلین یا مجلدین نه وی نو دا به د خفین په حکم کښې نه رازی. لهذا دقرآن پاك په آیت الوضوء باندې د جوربین په خبر واحد سره زیادت کول جائز نه د ی.

**دامام ابوحنیفه رجوع:** بهر حال د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه ددې دلائلو نه قطر نظر ددوئ رجوع د جمهورو مذهب طرفته ثابت ده او هم په دې باندې فتوی ده چې **مجلدین جرابین** باندې مسح کول جائز دی.

**د غیر مقلدینو مسلک:** دلته د افسوس خبره دا هم واؤرئی چې اهل ظواهر حضرات خپل خان ته اهل حدیث وائی هغوئ د څه شرط نه بغیر په هر قسمه جرابو باندې مسح کوی او مزې کوی. حالانکه پورا امت په دې باندې متفق دې چې جوربین که رقیق وی نو په دې باندې مسح کول جائز نه دی.

**قوله:** وَالنَّعْلَيْنِ:

**په نعلینو باندې د مسح کولو حدیث څخه دوه جوابونه:** په پیزار باندې مستقل طور سره مسح کول د هیچا په نیز جائز نه دی. لهذا ټول فقهاء کرام په دې روایت کښې تاویل کوی.

① ځینو داحدیث پاك منسوخ کړې دې لکه څنګه په سنن دارمی کښې دی.

② ځینې وائی چې اصل مسح په جوربین باندې وه مګر نبی کریم ﷺ داسې پیزار په پښو کړې وو چې په هغې سره په جوربین باندې مسح اوشوه نو څه مسح په نعلین باندې تبعًا اوشوه ، هم دې ته والنعلین اووئیلې شو. دې وخت واؤ بمعنی مع وی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٥٢٣] په موزو مسح د الله تعالی په حکم**

٥٢٣ – ()[٨] ① عَنِ الْمُغِيرَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «مَسَحَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْخُفَّيْنِ. ③ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، نَسِيتَ؟ ④ قَالَ: "بَلْ أَنْتَ نَسِيتَ، بِهَذَا أَمَرَنِي رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① مغیره ابن شعبه رضی الله عنه راوي دې ② چې رسول الله ﷺ په موزو باندې مسح وکړه ③ (په دې لیدو سره) ماعرض وکړو چې ستا څخه هیره شوې ده (یعني په موزو ویستلو (کښلو) سره پښې دې ونه وینځلې) ④ حضور ﷺ وفرمایل نه بلکه تا نه هیره شویده چې زما طرف ته د نسیان نسبت کوي څکه چې الله بزرګ وبرتر ماته دغسې حکم کړي دې. (بخاري مسلم)

[1] اخرجه ابوداود کتاب الطهارة ، باب المسح علی الخفین (رقم- ١٥٦)

**[۵۲۵] د موزو په ظاهر مسح او عقل**

۵۲۵–() [۹] ۞«وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّهُ قَالَ: ۞لَوْ كَانَ الدِّينُ بِالرَّأْيِ لَكَانَ أَسْفَلُ الْخُفِّ أَوْلَى بِالْمَسْحِ مِنْ أَعْلَاهُ، ۞وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ عَلَى ظَاهِرِ خُفَّيْهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَلِلدَّارِمِيِّ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** ۞ حضرت علي ﷺ فرمايي ۞ چه که دين (يوازي) په رايي او عقل باندې موقوف وې نو د موزو دپاسه مسح کولو څخه به لاندي مسح کول ښه وو ۞ او ما حضور ﷺ د موزو دپاسه په مسح کولو باندې ليدلي دي. (ابوداؤد دارمي)

**حل اللغات:** ① بِالرَّأْيِ: أَيْ: بِمُجَرَّدِ الْعَقْلِ دُونَ الرِّوَايَةِ وَالنَّقْلِ: صرف په رائې او عقل باندې چه روايت او نقل ته پکښې ضرورت نه وي.

# [۱۰/۱۵] بَابُ التَّيَمُّمِ

## دَتيمم بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه تسعة أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

① مايجوز به التيمم : ۱، ۲، ۴، ۵، ۸۔

② أسباب جواز التيمم من الجنابة:۳،۲۔والجراحة:۶۔ والأمر ليكون له خلفاعند الفوت: ۴،۸۔

③ طريقة التيمم: ۳، ۴، ۹۔

④ حكم إعادة الصلوة المؤدية بالتيمم إذا وجد الماء بعده: ۷۔

**دتيمم لغوی معنی:** تيمم په لغت کښې دَقصد په معنی کښې دې

**د تيمم اصلاحی معنی:** اصطلاحِ شريعت کښې دَ تيمم تعريف داې دې: "قصد التراب ومايقوم مقامه على وجه مخصوص بنية الطهارة"

**دتيمم د مشروعيت پس منظر:** دَتيمم حکم پنځم هجری کښې هغه وخت راغلې وو چه کوم وخت حضورپاك دَ بنومصطلق دَ غزوه په موقع باندې په سفر کښې وو. حضرت عائشه ﷺ دَدې پوره قصه پخپله بيان کړې ده امام بخاری ﷫ دا نقل کړې ده، ترجمه اوګورئی:

حضرت عائشه ﷺ فرمائی مونږ نبی اکرم ﷺ سره دَهغوی په بعضې سفرونو کښې وتلې وو مونږ په مقام بيدا ياپه مقام ذات الجيش کښې وو چه زما هارمات شو اوچرته ورك شو. دَهار دَ لټون دَپاره حضورپاك هم حصارشو اوصحابه کرام هم حصارشو دَ مونځ وخت شوې وو اوخلقو سره اوبه بالکل نه وې. خلقودَې شکايت حضرت ابوبکر صديق ﷺ ته

---

[1] اخرجه ابوداود كتاب الطهارة ، باب كيف المسح (رقم- ۱۶۲) والدارمی

اوکړوچه دَعائشه ﷞ دَ وجې نه خلق حصارشوی دی اوحضورپاك هم حصاردې اوچاسره هم اوبه نه وې. په دې باندې حضرت ابوبکر ﷜ ماله راغلو هغه وخت رسول الله ﷺ اوده وواودَهغوی سرمبارك زما په پتون پروت وو. حضرت ابوبکر ﷜ ماته اووئیل تا خلق او رسول الله ﷺ حصارکړی دی اوهیچاسره هیڅ اوبه نشته دې. حضرت عائشه ﷞ فرمائی چه حضرت ابوبکر ﷜ څه بنه اورټلم او بیا نی په خپل لاس باندې زه په تشی کښې اووهلم زه ځکه نه خوزیدم چه حضورپاك زما په پتون باندې سر کیخودې وو چه چرته حضورپاك ته تکلیف اونه رسی. په دې کښې رسول الله ﷺ مبارك رابیدارشو اوهغه وخت هیڅ اوبه نه وې چه ناڅاپې الله تعالی دَ تیمم حکم نازل کړو او خلقو تیمم شروع کړو. «دې آسانئی سره لیدلوسره» حضرت اسید بن حضیر ﷜ اوفرمائیل"ماهی بأول برکتکم یا آل ابی بکر" اې دَ ابوبکر ﷜ اولاد دا ستاسو ړومبې برکت نه دې. په یوروایت کښې دَحضرت اسید بن حضیر ﷜ داسې الفاظ دی. اې عائشه ﷞ الله تعالی دې تاله جزاء خیردرکړی په الله تعالی قسم چه په تاسو باندې کله هم دَ پریشانئی څه حالت راغلې دې په هغې کښې الله تعالی ستاسوسره دَ ټول امت دَپاره ښیګړه کیخودې وی. حضرت عائشه ﷞ فرمائی چه زه په کوم اوښ باندې سوره ووم هغه ناست وو کله چه مونږ هغه اوچت پاسولو نودَهغې نه لاندې هارملاؤشو.

**د تیمم د جواز څلور شرطونه:** تیمم دَ اودس په ځائی دې کله چه په اودس کښې لاسونه دَ ځنګلو پورې وینځل دی نودَدې په ځائی په تیمم کښې هم دغه شان کیدل پکاردی. دَ تیمم دَ جوازدَپاره څلورشرطونه دی.

① په کوم څیزسره چه تیمم کولې شی چه هغه پاك وی
② دَ اوبو دَ استعمال نه حقیقةً یا حکمًا عاجزکیدل.
③ دَعبادت مقصوده په نیت تیمم کول.
④ دَتیمم دَ اندامونو په ټولو حصوباندې داسې لاس رابنکل چه څه ځائی دَ مسح نه بغیر پاتې نه شی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۵۲۶] د زمکې په خاوره پاکی حاصلیدل**

۵۲۶ – ( ) [۱] ⓵ عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ⓶ «فُضِّلْنَا عَلَى النَّاسِ بِثَلَاثٍ: ⓷ جُعِلَتْ صُفُوفُنَا كَصُفُوفِ الْمَلَائِكَةِ، ⓸ وَجُعِلَتْ لَنَا الْأَرْضُ كُلُّهَا مَسْجِدًا، ⓹ وَجُعِلَتْ تُرْبَتُهَا لَنَا طَهُورًا إِذَا لَمْ نَجِدِ الْمَاءَ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[۱] مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة (رقم-٤ - (٥٢٢)

**ترجمه:** ۱ حضرت حذیفه رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ مونږ خلقو ته (د مخکنیو امتونو په خلقو) په دري څیزونو سره فضیلت راکړې شوي دي ۳ ① زمونږ صفونه (په لمانځه کې یا په جهاد کې) د فرښتو په شان (شمیر) شوي دي. ۴ ② زمونږ د پاره ټوله زمکه مسجد جوړه شویده (چرته چې غواړو مونځ وکړو) ۵ ③ کوم وخت چې مونږ اوبه او نه مومو نو د زمکې خاوره زمونږ د پاره پاکونکي ده. (مسلم)

**حل اللغات:** ① صُفُوفُنَا: أَيْ: وُقُوفُنَا فِي الصَّلَاةِ: صفونو نه مراد په مانځه (یا جهاد) کښې د اودریدو په طریقه صفونه مراد دی. ② مَسْجِدًا: یعنی د مونځ کولو ځائې.

**تسهیلات:**

**قوله:** فُضِّلْنَا عَلَى النَّاسِ بِثَلَاثٍ:

**تعارض:** دا فَضیلت اوخصوصیت دَ امت محمدیه علی صاحبها الف الف تحیة دي. دلته دَ دریوخصوصیاتوذکردې په نورو روایتونوکښې دَدې ن٠ دَزیاتوذکرهم ملاویږي

**د تعارض جواب:** په عدد اوشمیرکښې تعارض نه وی ځکه چه عدد اقل دَاکثرنفی نه کوی. بل فضائلو کښې زیاتوالې دَ الله تعالی دَ طرف نه کیږی. نو اول دَ دریوذکراغلوبیا دَ زیاتو ذکراوشو.

**قوله:** عَلَى النَّاسِ:

**د الناس مصداق:** د الناس نه مرادِ سابقه امتونو خلق دی ځکه چه راتلونکی خلق دَ قیامت پورې دَدې امت دَ اول دوردَ حضرات صحابه کرامو تابع دی. لهذا دَ الناس نه دَدې امت راتلونکی خلق مراد کیدې نه شی.

**د نبي علیه السلام بعضې خصوصیات:**

① دَ یوې میاشتې په مسافت باندې دَ لرې نه په دښمن باندې دَ رعب غورزیدلو خصوصیت

② د غنیمتونوحلال ګرځیدل

③ دَشفاعت کبریٰ اعزاز ملاویدل

④ د نبي علیه السلام د رسالت عمومیت یعنی ټولې دنیا ته مبعوث کیدل.

⑤ د جوامع الکلم په صفت موصوف کیدل

⑥ دَ نبوت دَ برکاتو تکمیل

⑦ ختم نبوت یعنی د ترقیامته پورې د نبوت دروازه بندیدل

⑧ دَ ټولې زمکې کنجیانې ملاویدل

⑨ په انبیاؤ کښې د دوی نوم احمد کیخودل

⑩ دامت دټولو امتونو نه غوره امت کیدل
⑪ وړاندې روستو ګناهونه (خطاګانې) معاف کیدل
⑫ دَ عرش عظیم لاندې دَخاص خزانې نه دَ سورت بقره آخری آیاتونه ملاویدل
⑬ دحوض کوثر ملاویدل
⑭ دَقیامت په ورځ د داسې جنډې ملاویدل چې حضرت آدم علیه السلام اودَهغه نه علاوه ټول خلق به د هغې د لاندې وی.

**قوله:** جُعِلَتْ لَنَا الْأَرْضُ كُلُّهَا مَسْجِدًا:

**په ټوله زمکه د مونځ جائز کیدل:** یعنی پوره زمکه دَدې قابل جوړه کړې شوې ده چه مونږ په دې مونځ کولې شو کله چه ځائی پاك وی که هغه خاص جمات وی اوکه دَجمات نه علاوه مکان. په بنی اسرائیلو باندې دومره سختی وه چه هغوی دَ عبادتخانې نه بهرپه یو ځائی کښې هم مونځ نه شوکولې. او په عبادتخانه کښې هم دَ جمع نه بغیرکول جائزنه وو.

**قوله:** وَجُعِلَتْ تُرْبَتُهَا طَهُورًا:

**دتیمم جائز کیدل:** یعنی دَ زمکې خاوره ئی دَ اوبو په ځائی ګرځولې ده لکه څنګه چه په اوبوباندې طهارت حاصلیدې شی دَ تیمم په صورت کښې په خاوره هم طهارت حاصلیدې شی. په دې حدیث اودَدې په شان نور راتلونکو احادیثو کښې دَ تیمم فضائل او یوځو اخلاقی مسائل مخې ته راغلی دی. دَ تیمم په مسائلوکښې څلورداسې غټ مقامات دی چرته چه دَ فقهاء کرامو اختلاف دې.

## اول بحث: د ما یتیمم بها بیان

### په کومو څیزونو چې تیمم جائز کیږی په هغې کښې مذاهب:

① دَامام شافعی رحمه الله په نیز او دَ امام احمد رحمه الله دَ مشهور قول مطابق تیمم صرف تراب منبت یعنی زرخیزخاوره باندې جائزدې په نور هیڅ څیزباندې جائزنه دې.

② امام ابویوسف رحمه الله فرمائی چه تراب منبت سره سره په شګه باندې هم تیمم کول جائزدی.

③ دَامام ابوحنیفه رحمه الله امام مالك رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نیزپه هرهغه څیزچه دَ جنس الارض نه وی تیمم جائز دې. بیا امام مالك رحمه الله دَ جنس الارض باره کښې فرمائی چه هرهغه څیز کوم چه زمکې سره ملحق وی هغه هم په جنس الارض کښې شامل دې. نودَهغوی په نیزپه هغه لرګی باندې هم تیمم جائز دې دَ کوم یوسر چه په زمکې پورې پیوست وی.

امام ابوحنیفه رحمه الله په جنس الارض کښې دا قیدلګولې دې چه کوم څیز په سوزلوسره نه سوزیږی ویلې کولو سره نه ویلی کیږی په حل کولوسره نه حل کیږی او سخاکیدو سره نه

سخا کیږی په هغې باندې تیمم جائز دې لهذا دَهغوی په نیز لرګې سره زر سپین زر پیتل اوسپنه تانبا مالګه وغیره باندې تیمم جائزنه دې. او که په دې ځیزونو باندې دوړه پریوځی نوبیاجائزدې اوهغه دَتراب منبت په حکم کښې دې.

**داول او دویم فریق اول دلیل:** ددوی دلیل قرآنی آیت ﴿ فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا ﴾ أی ترابًا منبتًا" دې په کوم کښې چه صرف دَ زرخیز خاورې ذکر دې.

**د اول او دویم فریق دویم دلیل:** حضورپاك له یووفدراغلو اوهغوی عرض اوکړو: "فقالوا انانکون بالرمال الأشهر الثلاثة والاربعة ویکون فینا الجنب والحائض والنفساء ولا نجد الماء فقال علیه السلام علیکم بالارض" (احمد بیهقی طبرانی)

**د دریم فریق اول دلیل:** ① دَ قرآن پاك هم دغه آیت ﴿ فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا ﴾ د دوی مستدل دې لیکن دَهغوی په نیزصعیدعام دې دې نه وجه الارض مراددې تراب منبت سره خاص نه دې ځکه چه په بل آیت کښې ﴿ صَعِيْدًا جُرُزًا ﴾ او ﴿ صَعِيْدًا زَلَقًا ﴾ الفاظ راغلی دی کوم چه دَ وجه الارض دپاره عام دی تراب منبت سره خاص نه دی.

**د دریم فریق دویم دلیل:** ②دَ تیمم دَ جواز اصل علت یسر (آسانی) پیداکول دی او دَ تراب منبت په قیدسره خو به یسر په عسر سره بدل شی خاص کر دَ عربستان په ریګستان کښې دَ تراب منبت ملاویدل دَ اوبو دَملاویدونه زیات سخت دی.

**د دریم فریق دریم دلیل:** ③ حضورپاك دَتیمم حکم راتلونه پس هم نه په حضرکښې اونه په سفرکښې دَ تراب منبت لټون کړې دې اونه ئی دَدې حکم ورکړې دې اونه ئی دا ضروری ګنړلې دی.

**تنبیه:** دَجمهورو مسلك قوی تر او صحیح تردې او احتیاط په دې کښې دې چه خاوره اولټولې شی اوپه هغې باندې تیمم اوکړې شی. بعضې حضرات دَ خاورې په موجودګئی کښې خالص نرم مئین کانړی باندې تیمم کوی. که چرې په خاور اوکړې شی نودَ اختلاف نه به هم اوځی اوپه احتیاط باندې به هم عمل اوشی.

## دویم بحث: د تیمم د نوعیت بیان.

### د تیمم په نوعیت کښې مذاهب:

په دې کښې دې چه تیمم طهارت مطلقه اصلیه دې یاطهارت ضروریه دې یعنی په یوتیمم باندې څومونځونه اداکیدې شی یاصرف یومونځ به په یوتیمم باندې اداکیږی؟

① دَ امام شافعی رحمه الله په نیزتیمم طهارت ضروریه دې "والضرورة تتقدر بقدر الضرورة" لهذاپه یوتیمم سره یوفرض مع لواحقه جائزباقی جائزنه دی.

② ائمه احناف فرمائی چه تیمم طهارت اصلیه دې نو په یو تیمم به هر هغه عمل جائز وی

کوم چې په اودس باندې جائز ګرځي.

**د دویم فریق دوه دلائل:** ① اودس قائمقام اوخلیفه دې. اودس اصل اوتیمم دَدې فرع دې نوچه کوم کاردَاصل وی هم هغه به دَ قائمقام او خلیفه وی. په یواودس باندې چه څو مونځونه کولې شی نو په یوتیمم سره هم څومونځونه کولې شی.

② تیمم والاسړی پسې دَ اودس والاسړی مونځ اوامامت دَ شوافع په نیز هم جائزدې. دَدې نه هم دغه خبره واضحه کیږی اودَ ضابطې مطابق به دا منلې کیږی چه دَ تیمم طهارت دَ اودس دَ طهارت په شان مطلقه اصلیه دې اودا جدا خبره ده چه تیمم دَعبادت غیرمقصوده دَپاره وی نوپه هغې سره عبادت مقصوده نه شی اداکیدې.

**دغیره مقصوده عبادت دپاره د تیمم جواز:** دلته دَ لطیفې په توګه په دې مسئله باندې هم ځان پوهه کړئی چه دَ غیرمقصود عبادت دَپاره دَ اوبو په موجودګئی کښې هم تیمم جائزدې ثواب ملاویږی. مثلاً یوسړې جمات ته ځی اوصرف کیناستل غواړی نوسره دَدې چه په حوض کښې اوبه موجود دی خوبیاهم دا سړې دَ برکت دَحاصلولو او دَ طهارت دَپاره تیمم کولې شی یادَ شپې دَ اوده کیدو په وخت دَ اودس په ځائی تیمم کوی نوجائزدی یادینی اودَفقهې کتابونو ته لاس لګولودَپاره تیمم کول غواړی نوکولې شی اودګناه نه بچ کیدې شی که صغیره ولې نه وی اومقامِ تقویٰ حاصلولې شی.

دتیمم په طریقه کښې دوه مسئلې مختلف فیه دی.یودا چه تیمم کښې څو ضربه دی . دویم دا چه مسح د بدن به ترکوم ځائې پورې وی .

## د تیمم په ضرباتو کښې مذاهب:

د تیمم په ضرباتو کښې علامه عینی رحمه الله پنځه مذاهب نقل کړی دی .

① دامام ابوحنیفه رحمه الله ، امام مالک رحمه الله ، امام شافعی رحمه الله ، لیث بن سعد او دجمهورو مسلک دا دې چه تیمم دپاره دوه ضربه دی.یود مخ دپاره اویو دلاسنونو دپاره .

② د امام احمد رحمه الله، امام اسحاق رحمه الله ، امام اوزاعی رحمه الله اود بعض اهل ظواهرو په نیز یوضربه ده . چه هغې سره د مخ اولاسونو ددواړو مسح کولې شی د امام مالک رحمه الله یو روایت هم ددې مطابق دې .

③ دحضرت حسن بصری رحمه الله او ابن لیلی مسلک دا دې چه دوه ضرب به وی خو داسې چه هرضربه کښې د مخ او دلاسونوددواړو مسح اوشی .

④ محمدبن سرین رحمه الله مسلک دادې چه ضربات به درې وی یود مخ دپاره او دوه دلاسونو دپاره دریم ددواړو دپاره .

⑤ د ابن بزیزه مسلک دا دې . چه څلور ضربه به وی دوه د مخ او دوه دلاسنو دپاره .

**د تيمم په محل كښې مذاهب:**

په مقدار د مسح د يدينو كښې اختلاف دې . دې كښې څلور مذاهب دي .

① مرفقين پورې مسح فرض ده.دا قول دامام ابوحنيفه رحمه الله ، امام مالك رحمه الله ، امام شافعي رحمه الله ، ليث بن سعد او دجمهورو دې .

② صرف درسغين پورې مسح فرض ده . دامام اسحاق رحمه الله ، امام احمد رحمه الله ، امام اوزاعي رحمه الله ، او داهل ظاهر مسلك دې .

③ د رسغين پورې واجب ده او مرفقين پورې مسنون ، علامه ابن رشد دادامام مالك رحمه الله يو روايت گرځولې دې . اوعلامه زرقاني دامام مالك رحمه الله مسلك گرځولې دې علامه نووي رحمه الله فرمائي چه دادتطبيق بين الروايات بهترين طريقه ده .

④ علامه ابن شهاب زهري رحمه الله فرمائي چه ديدينو مسح به دمناكبو او اباط پورې وي .

**بنيادي اختلاف:**

په اصل كښې بنيادي اختلاف په دوارو مسئلوكښې د امام احمد رحمه الله اودجمهورو دې .

① دامام احمد په نيز په تيمم كښې يو ضرب دې د مخ او لاسونو دوړارو دپاره.

① دجمهوروپه نيزتيمم كښې دوه ضربه دي.يوضرب دمخ دپاره اوبل ضرب ديدينو دپاره.

**د اول فريق دليل:** دحضرت عماربن ياسر رضي الله عنه حديث د دوى مستدل دې چه دينه په يوضرب سره د مخ او لاسونو د مسحې پته پته لگي . ((أن النبي صلى الله عليه وسلم أمره بالتيمم للوجه والكفين)) دې كښې دلاسونو دپاره دكفين لفظ راغلې دې اوددې اطلاق صرف په رسغين كيږي.دحضرت عماربن ياسر رضي الله عنه دا حديث چه اصح مافى الباب دې . د دې وجې امام احمد رحمه الله دا روايت اختيارکړې دې .

**داول فريق د دليل جواب:** دا په تعليم كښې حضورپاك دَ نمونې په توگه اوخودل چه دَ غسل دَپاره په خاورو كښې لړپرکيدلو ضرورت نشته بلكه دَاودس دَتيمم په شان ضرب وهلوسره دغه شان په مخ او لاسونوباندې مسح كول كافي وو نودلته مكمل تيمم خودل نه وو بلكه دا خودل وو چه دَ جنابت دَپاره هم دَ اودس په شان تيمم كافي وو صرف هم دا خودل مقصود وو.

**د دويم فريق دلائل:**

① عن جابر عن النبي صلى الله عليه وسلم قال التيمم ضربة للوجه وضربة للذراعين إلى المرفقين.[1]

**اشكال:** دې حديث كښې يوراوى عثمان بن محمد دې . دده په باره كښې علامه ابن جوزي رحمه الله فرمائي . ((عثمان بن محمد متكلم فيه))

[1] ) (رجاله كلهم ثقات والصواب موقوف دارقطني ١٨١١١ رقم الحديث نمبر ٢٢ باب التيمم)

**د اشکال جواب:** عثمان بن محمد ثقه راوی دي . او دابن الجوزی رحمه الله په ده کلام صحیح نه دي . علامه ابن رقیق العید رحمه الله دابن الجوزی رحمه الله تردید کوی او لیکی.((أن هذا الكلام لايقبل منه لانه لم يبين من تكلم فيه وقد روى عنه ابوداؤد اوبوبكر بن ابى عاصم وغيرهما وذكره ابن ابى حاتم فى كتابه ولم يذكر فيه جرحًا ولاتعديلاً الخ»([1])

**د دویم فریق دویم دلیل:** په مسند بزار کښې دحضرت عمار رضی الله عنه حدیث دي . چه دې کښې هغه فرمائی ((كنت فى القوم حين نزلت الرخصة فأمرنا فضربنا واحدة للوجه ثم ضربة اخرى لليدين والمرفقين)) علامه زیلعی رحمه الله هم ددې تخریج کړې دي .

**د دویم فریق دریم دلیل:** ③ دحضرت ابوجهيم بن الحارث الصمة الانصاری حدیث د دوی مستدل دي . ((قال اقبل النبى صلى الله عليه وسلم من نحو بئر جمل فلقيه رجل فسلم عليه فلم يرد النبى صلى الله عليه وسلم حتى اقبل على الجدار فمسح بوجهه ويديه ثم رد عليه السلام([2])

**د دویم فریق څلورم دلیل:** ④دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه مرفوع روایت د دوی مستدل دي ((عن النبى صلى الله عليه وسلم قال التيمم ضربتان ضربة للوجه وضربه لليدين إلى المرفقين))

## [۵۲۷] د جنابت دپاره د تیمم جواز

۵۲۷ – ([3]) [۲] ①وَعَنْ عِمْرَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ②«كُنَّا فِي سَفَرٍ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَصَلَّى بِالنَّاسِ، ③فَلَمَّا انْفَتَلَ مِنْ صَلَاتِهِ، إِذَا هُوَ بِرَجُلٍ مُعْتَزِلٍ لَمْ يُصَلِّ مَعَ الْقَوْمِ، ④فَقَالَ: مَا مَنَعَكَ يَا فُلَانُ أَنْ تُصَلِّيَ مَعَ الْقَوْمِ؟ ⑤قَالَ: أَصَابَتْنِي جَنَابَةٌ، وَلَا مَاءَ. ⑥قَالَ: "عَلَيْكَ بِالصَّعِيدِ، فَإِنَّهُ يَكْفِيكَ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت عمران رضی الله عنه راوي دي چې يو خل مونږ د نبي ﷺ سره په سفر کې ملګري وو حضور ﷺ مونږ ته مونځ راکړو ② کوم وخت چې حضور ﷺ د لمانځه څخه فارغه شو نو څه ګوري چې يو سړي جدا ناست دي هغه د خلقو سره مونځ نه وو کړي ④حضور ﷺ ورته وفرمايل اي فلانيه ته کوم شي د خلقو سره د لمانځه کولو څخه منع کړي وي ؟ ⑤ هغه عرض وکړو (يا رسول الله ﷺ) ما ته د لمبيدو ضرورت شوي دي او اوبه مي پيدا نه کړي ⑥ حضور ﷺ ورته وفرمايل په داسې صورت کې تاته په خاوره سره تيمم وهل لازم وو او تاته هغه کافي وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① انْفَتَلَ : أَيْ: انْصَرَفَ وَفَرَغَ: يعنى فارغ شو (د مونځ نه). ② مُعْتَزِلٍ : أَيْ: خَارِجٍ مِنْ بَيْنِهِمْ: ځانله ،جدا ، ③ عَلَيْكَ بِالصَّعِيدِ: يَلْزَمُ عَلَيْكَ التَّيَمُّمُ بِالصَّعِيدِ: يعنى لازم وو په تا باندې چه په خاوره دې تيمم کړي وې.

[1]) التعليق المغنى على الدارقطنى لابى الطيب محمدشمس الحق العظيم ابادى ۱۸۱ ، ۱۸۲ ))

[2]) رواه البخارى ۴۸۱۱ فى التيمم فى الحضر اذا لم يجدالماء وخاف فوت الصلوة)

[3] اخرجه البخارى كتاب التيمم باب: الصعيد الطيب وضوء المسلم، يكفيه من الماء(رقم-۳۴۴) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة باب قضاء الصلاة الفائتة، واستحباب تعجيل قضائها (رقم# ۳۱۲ - (۶۸۲) والنسائى كتاب الطهارة/باب التيمم بالصعيد(رقم-۳۲۱) والدارمى كتاب الطهارة /باب التيمم (رقم-۷۷۰)

**د راوي مختصر تعارف:**

د حديث د راوی نوم عمران بن حصين دې كنيت ئې ابونجيد دې د هجرت په اول كښې ئې اسلام قبول کړې وو (۲)

**په غزاګانو کښې شرکت:** په بعضې غزاګانوکښې د نبی کریم ﷺ سره شریک شوې وو. د نبی کریم ﷺ په ژوند کښې به برابر مدینه منوره ته تللو. د نبی کریم ﷺ د وفات نه پس ئې مدينې ته راتګ پرې خودلو ګوشه نشينی ئې اختيار کړه د حضرت عمر ؓ په زمانه کښې کله چه بصره آباده شوه نو هلته ئې کړه يوړه حضرت عمر ؓ د فقه تعليم د دوی په ذمه لګولې وو. (۳) د حضر عمر ؓ نه پس چه کوم جنګونه شوی وو. نو دوی د دغه جنګونو نه لرې پاتې شوې وو. (۴) عالمه ابن عبدالبر ؒ فرمائی ((كان من فضلاء الصحابة وفقهائهم)) عمران د فقهاء صحابؤ خنی وو(۵) حسن بصری ؒ فرمائی چه د عمران بن حصين ؓ پشان بهترين سړې بصرې ته نه دې راغلې (۶)

**د ژوند خصوصيات:** د دوی د ژوند خصوصيات دا وو. ① د رسول الله ﷺ احترام ② د سنت پابندی ③ په عباداتو کښې رياضت او مشقت ④ د دوی ذات د خلق مراجع وه. په کومه لاره چه به تيريدلو خلقو به ترې تپوسونه کول

**وفات:** د استسقاء په بيمارئ بيمار شو. او هم په دغه مرض کښې په ۵۲ هجری کښې په بصره کښې وفات شو (۷)

**مرويات:** د دوی د مرویاتو تعداد ۱۳۰ دې په احاديثو کښې ډير زيات محتاط وو. د دې وجې د دوی مرويات کم دی ۸ احاديث متفق عليه دی او په بخاری کښې ۴ او په مسلم کښې ۹ دی

**[۵۲۸] د تيمم طريقه**

۵۲۸–(۱) [۳] ① وَعَنْ عَمَّارٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ ② «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، فَقَالَ: ③ إِنِّي أَجْنَبْتُ فَلَمْ أُصِبِ الْمَاءَ ④ فَقَالَ عَمَّارٌ لِعُمَرَ: أَمَا تَذْكُرُ أَنَّا كُنَّا فِي سَفَرٍ أَنَا وَأَنْتَ؟ ⑤ فَأَمَّا أَنْتَ فَلَمْ تُصَلِّ، وَأَمَّا أَنَا فَتَمَعَّكْتُ فَصَلَّيْتُ، فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**ترجمه:** ① او حضرت عمار ؓ وايي ② چه يو سړي حضرت عمر بن خطاب ؓ ته راغې ورته وې ويل ③ ماته د لمبيدو ضرورت دې او اوبه مې پيدا نه کړې (نو اوس تيمم وکړم يا څه وکړم) ؟ ④ حضرت عمار ؓ په دې اوريدو سره حضرت عمر ؓ ته او ويل آيا تا ته ياد نه دي چې زه او ته په سفر کې وو (او مونږ دواړو ته د لمبيدو ضرورت پيښ شوې وو) ⑤ نو

(۱) اخرجه البخاری كتاب التيمم باب: المتيمم هل ينفخ فيهما؟(رقم-۳۳۸) وابوداود كتاب الطهارة/باب التيمم (رقم-۳۲۲) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء في التيمم ضربة واحدة (رقم- ۵۶۹) والنسائی كتاب الطهارة/باب التيمم في الحضر (رقم- ۳۱۲)

تا مونځ نه وو کړي لیکن ما په زمکه اوړیدو رااوړیدو سره تیمم کړي وواو مونځ مي کړي وو بیا ما حضور ﷺ ته دا صورت حال ذکر کړو.

**حل اللغات:** ① أُصِبِ الْمَاءَ: دا د اصابت نه دې یعنی أَيْ: لَمْ أَجِدْهُ: اوبه مې پیدا نه کړې. ② فَتَمَعَّكْتُ: أَيْ: تَمَرَّغْتُ وَتَقَلَّبْتُ فِي التُّرَابِ: یعنی په خاورو کښې اولوغړیدم.

١ فَقَالَ: إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيكَ هٰكَذَا" ٢ فَضَرَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَفَّيْهِ الْأَرْضَ وَنَفَخَ فِيهِمَا ٣ ثُمَّ مَسَحَ وَجْهَهُ وَكَفَّيْهِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. ٤ وَلِمُسْلِمٍ نَحْوُهُ، وَفِيهِ: قَالَ: " «إِنَّمَا يَكْفِيكَ أَنْ تَضْرِبَ بِيَدَيْكَ الْأَرْضَ ثُمَّ تَنْفُخَ، ٥ ثُمَّ تَمْسَحَ بِهِمَا وَجْهَكَ وَكَفَّيْكَ» ".

**ترجمه:** ١ نو حضور ﷺ وفرمایل چې تا ته داسې کول کافي وو ٢ نو حضور ﷺ خپل دواړه لاسونه په زمکه ووهل بیا یې هغه پوک کړه (یعني خاوره یې خنې وځنډله) ٣ په هغې سره یې په خپل مخ او لاسونو مسح وکړله، بخاري، ٤ د غسې مسلم هم روایت کړي دي چې د هغه آخري الفاظ دا دي چې حضور ﷺ وفرمایل چې ستا د پاره دا کافي دي چې خپل لاسونه په زمکه ووهې بیا هغه پوک کړې ٥ او په خپل مخ او لاسونو باندې مسح وکړې.

**حل اللغات:** ④ نَفَخَ: پوکې ئې ورکړو (چه خاوره ترې کمه شي).

**تسهیلات:**

**د حدیث الباب پس منظر:** دَ پورته حدیث پس منظر داسې دې چه دَ سائل په جواب کښې حضرت عمر رضی الله عنه هغه دَ تیمم نه منع کړو نو حضرت عمار رضی الله عنه پوره واقعه واوروله چې زما او ددوئ تنازعه راغلې وه مګر نبی کریم ﷺ تیمم جائز ګرزولې وو. لهذا دې سائل دپاره هم د تیمم حکم پکار دې.

**د حدث اصغر او اکبر دواړو دپاره د تیمم په جوازاوعدم جواز کښې مذاهب:**

① دصحابه کرامو په ډله کښې د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه او حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دا مسلك وو چې تیمم د جنابت د غسل دپاره جائز نه دې.

② تیمم په حدث اصغر کښې د اودس قائمقام دې ، حدث اکبر یعنی جنابت کښې هم د غسل قائمقام دې. غسل که د جنابت وی که دحیض اوکه د نفاس غسل وی ، دجمهورو صحابه کرامو اوتابعینو او ائمه اربعۀ هم دا مسلك دې چې کله اوبه نه ملاویږی نو بیا د د جنابت دغسل دپاره تیمم جائز دې. بیا چه کله په اوبو باندې قادرشی نو غسل دې اوکړی.

**د اول فریق د مسلک ضعف:** دداسې صریح احادیث په موجودګی کښې به ددوئ قول پرینښودلې کیږی.

**داول فریق د رجوع تحقیق:** ځینی محققینو وئیلی دی چې ددې حضراتو مسلك د اول نه دجمهورو سره دې لیکن هغوئ دا قول د سدا للذرائع لاتدې اختیار کړې دې چې هسې نه خلق ددې نه غلطه فائده پورته کړی . چې لږ شان عذر ورته راشی یا معمولی شان یخنی

راغله او دې جنابت والا د غسل په ځائې تميم اوکړو. دخلقو ددې سستۍ په وجه دې حضراتو د تیمم نه خلق منع کړی وو.

**د ابوموسی او ابن مسعود بحث:** حضرت ابو موسی رضي الله عنه سره د یو بحث دوران کښې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه اصل حقيقت داشان ښکاره کړو چې: لو رخصت لهم في هذا كان اذا وجد أحدهم البرد قال هكذا يعني تيمم وصلى (بخاری صفحه: ۵۰ ج: ۱) [البخاری: ۱/۱۵۰]

**د دویم فریق دلائل:** ① ② پورتنی دواړه حدیثونه د جمهورو دلیل دې.
③ ددې باب په ړومبی حدیث کښې هم دا فرمائیلې شوی دی چې خاوره د هر نجاست دپاره طهور ده. لهذا حدث اکبر او اصغر دواړو دپاره خاوره طاهر او مطهر ده.

## [۵۲۹] د سلام جواب ورکولو دپاره تیمم کول

۵۲۹ـ( )[۴] [۱] وَعَنْ أَبِي الْجُهَيْمِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الصِّمَّةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «مَرَرْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَبُولُ، [۳] فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ [۴] حَتَّى قَامَ إِلَى جِدَارٍ، فَحَتَّهُ بِعَصًى كَانَتْ مَعَهُ، [۵] ثُمَّ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى الْجِدَارِ، فَمَسَحَ وَجْهَهُ وَذِرَاعَيْهِ، ثُمَّ رَدَّ عَلَيَّ». [۶] وَلَمْ أَجِدْ هَذِهِ الرِّوَايَةَ فِي: الصَّحِيحَيْنِ "، وَلَا فِي " كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ "، [۷] وَلَكِنْ ذَكَرَهُ فِي: " شَرْحِ السُّنَّةِ " قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.

**ترجمه:** [۱] ابو جهیم ابن حارث ابن صمه رضي الله عنه راوي دي [۲] چې (یو ځل) زه د نبي کریم ﷺ سره نزدې تیر شوم حضور ﷺ هغه وخت متيازې کولې ما په حضور ﷺ سلام واچولو خو جواب يې رانه کړو [۴] (او د بولو څخه چې فارغه شو) یو دیوال سره ودریدلو او یوه همسا چې د حضور ﷺ سره وه په هغې يې دیوال وګرولو [۵] اوبيايې خپل دواړه لاسونه په هغې ووهل بيا ئې په خپل مخ او تر څنګلو پورې دواړو لاسونو باندې مسح وکړه بيايې زما د سلام جواب راکړو. [۶] (د مشکوة شریف مصنف رحمه الله فرمایي چې) ما دا روایت نه په صحیحین کې پیدا کړې دې او نه د حمیدي په کتاب کې [۷] لیکن محي السنة دا په شرح السنة کې ذکر کړې دې او ويلي يې دي چې دا حدیث حسن دی (نو صاحب د مصابیح ته پکار وو چې دا روایت يې په اولني فصل کې نه ذکر کولو).

**حل اللغات:** ① فَحَتَّهُ: أَيْ: حَكَّهُ وَخَدَشَهُ: دیوال ئې پرې اوګرولو.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ:

**عبادت مقصوده او غیر مقصوده تعارف:** ① دمقصوده مطلب دادې چې هغه عبادت پخپله اصل او مقصود وی. د څه بل عبادت دپاره ذریعه نه وی لکه مونځ او تلاوت وغیره شو.

[۱] اخرجه شرح السنة فی کتاب الطهارة / باب التیمم... رقم الحدیث ۲۴۱

۳ عبادت غير مقصوده هغه وى چې پخپله اصل نه وى بلكه د يو عبادت مقصوده په ضمن كښې وى. لكه تيمم او اودس او غسل.

**دغير مقصوده عبادت په تيمم د مقصوده عبادت ادا كولو عدم جواز:** عبادت غير مقصوده دپاره كوم تيمم اوكړې شى نو دې سره عبادت مقصوده نه ادا كيږى.

**د لا الى خلف عبادت دپاره دتيمم جواز:** تيمم د داسې عبادت دپاره هم كيديشى چې دهغې دمكمل فوت كيدو خطره وى. او دَ هغې څه خليفه يا نائب نه وى. لكه د اخترونو او جنازې مونځونه. يا دسلام جواب، دلته د سلام جواب دپاره نبى كريم ﷺ تيمم په دې وجه اوكړو چې دجواب فوت كيدو خطره وه.

## الْفَصْلُ الثَّانِي

### [۵۳۰] تيمم د اودس قائم مقام دې

۵۳۰- ( ) [۵] ١ عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ الصَّعِيدَ الطَّيِّبَ وَضُوءُ الْمُسْلِمِ، ٣ وَإِنْ لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ عَشْرَ سِنِينَ ; ٤ فَإِذَا وَجَدَ الْمَاءَ فَلْيُمِسَّهُ بَشَرَتَهُ، فَإِنَّ ذَلِكَ خَيْرٌ» " ٥ رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى النَّسَائِيُّ نَحْوَهُ إِلَى قَوْلِهِ: "عَشْرَ سِنِينَ".

**ترجمه:** ١ حضرت ابو ذر رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ پاكه خاوره مسلمان لره پاكونكي ده ٣ اګر كه هغه لس كاله پورې اوبه او نه مومي ٤ اوكله چې يي او مومي نو بدن وينځل پكار دي ځكه چې دابهتر دي، ٥ (احمد ترمذي ابوداؤد، او نسائي هم دغسې روايت تر عشر سنين پورې نقل كړي دي.)

### [۵۳۱] د ناجوړه دپاره د تيمم جواز

۵۳۱- ( ) [۶] ١ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ «خَرَجْنَا فِي سَفَرٍ، فَأَصَابَ رَجُلًا مِنَّا حَجَرٌ، ٣ فَشَجَّهُ فِي رَأْسِهِ، فَاحْتَلَمَ ٤ فَسَأَلَ أَصْحَابَهُ: هَلْ تَجِدُونَ لِي رُخْصَةً فِي التَّيَمُّمِ؟ ٥ قَالُوا: مَا نَجِدُ لَكَ رُخْصَةً وَأَنْتَ تَقْدِرُ عَلَى الْمَاءِ. فَاغْتَسَلَ فَمَاتَ، ٦ فَلَمَّا قَدِمْنَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُخْبِرَ بِذَلِكَ، قَالَ: ٧ " قَتَلُوهُ، قَتَلَهُمُ اللَّهُ، أَلَا سَأَلُوا إِذْ لَمْ يَعْلَمُوا ; ٧ فَإِنَّمَا شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَالُ، ٨ إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيهِ أَنْ يَتَيَمَّمَ، ٩ وَيَعْصِبَ عَلَى جُرْحِهِ خِرْقَةً، ١٠ ثُمَّ يَمْسَحَ عَلَيْهَا، وَيَغْسِلَ سَائِرَ جَسَدِهِ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او حضرت جابر رضی الله عنه فرمايي ٢ چې مونږ په سفر روان وو په مونږ كې يو سړي په كاڼي ولګيدو ٣ چې د هغه سر يي زخمي كړو (په اتفاقي طور سره) هغه ته دلمبيدو هم حاجت پيښ شوې وو ٤ هغه د خپلو ملګرو څخه پوښتنه وكړه چې ستاسو په نيز په دي

(۱) اخرجه الترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب الصلوات بتيمم واحد (رقم- ۳۲۲) وابوداود كتاب الطهارة/باب الجنب يتيمم (رقم- ۳۳۲)
(۲) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/ باب في المجروح يتيمم (رقم- ۳۳۶)

صورت کې مالره تيمم جائز دي؟⑤ هغوئ اوويل په داسې صورت کې چې ته اوبه استعمالولي شې مونږ ستا دپاره د تيمم څه وجه نه مومو نو هغه سړي غسل وکړو د هغه نتيجه دا شوه چې هغه وفات شو⑥ مونږ چې د سفر څخه واپس راغلو او د نبي ﷺ په خدمت کې حاضر شو نو دا واقعه مو ورته بيان کړه حضور ﷺ (په انتهايي رنج او غم سره) وفرمايل ⑦ خلقو هغه قتل کړو الله ﷻ دي هغوئ قتل کړي بيا يې وفرمايل هغوئ ته چې کومه خبره معلومه نه وه د هغې معلومات يې ولې ونه کړل ⑦(څکه) چې د ناپوهۍ د بيماري علاج پوښتنه ده⑧ او هغه ته خو دا کافي وه چې تيمم يې کړي وې⑨ او په خپل زخم يې يوه پټۍ تړلې وې⑩ او په هغه يې مسح کړي وې او بيا يې خپل ټول بدن وينځلي واي، ابوداؤد،

**حل اللغات:** ① فَأَصَابَ: اورسيدو، اولګيدو (په کاڼړي). ② فَشَجَّهُ: زخمي ئې کړو، ③ فَاحْتَلَمَ: په خوب کښې ئې جماع اوکړه، جنابت ورته پيښ شو. ④ شِفَاءُ: علاج، ⑤ الْعِيّ: ناپوهي، ⑥ السُّؤَالُ: تپوس کول. ⑦ يَعْصِبَ: أَيْ: يَشُدَّ: تړلې ئې وې، ⑧ جُرْحِ: زخم، ⑨ خِرْقَةً: کپړه، ټکړه د کپړې،

**تسهيلات:**

**قوله: قَتَلُوهُ، قَتَلَهُمُ اللهُ:**

**يواهم اشكال:** دلته دا سوال پيداکيږی چه دي حضراتودي مريض ته چه کومه مسئله خودلي وه په هغې کښې هغوی غلط شوی دی اوهم دغه مسئله حضرت عمر ؓ او حضرت ابن مسعود ؓ اوخودله هلته هم دهغوی نه غلطی شوې ده چه دغسل جنابت دپاره تيمم کافی نه دې. خودلته حضورپاك هغه خلق رټلوسره دا شان جمله اوفرمائيله کومه چه پورته ذکرده. اوهلته دحضرت عمر ؓ اوحضرت ابن مسعود ؓ هيڅ قسم رټنه نه ده شوې حالانکه په دواړو ځايونوکښې هم يوه مسئله وه چه تيمم دغسل دپاره جائزنه دې او دحضرت عمر ؓ خو مونځ هم فوت شوې وو؟

**دااشكال جواب:** هغه حضرات د اجتهاداهل وو اود صالح الاجتهاد سړی نه چه کله اجتهادی غلطی کيږی نوهغه ته يواجرملاويږی رټلې نه شی اودلته ددې خلقونه چه کومه غلطی شوې وه دا هم اجتهادی غلطی وه ليکن داخلق صالح الاجتهاد نه وونوچه کله دوی د اجتهاداهل نه وو او په اجتهاد کښې ئی غلطی اوکړه نو دهغوی رټل ضروری وو.

**دااهليت اوغيراهليت پته لګيدل:** دا خلق څنګه اهل نه ووداڅنګه پته اولګيدله نو په حديث کښې لفظ "اَلْعِيّ" راغلې دې ددې ترجمه عاجز ناواقف ده اومراد جهل دې معلومه شوه چه داخلق اهل نه وو اوچه کله پخپله اهل علم نه وو نوهغوی ولې فتویٰ ورکړه په کوم سره چه سړې مړشو. که دې خلقو د يوعالم يا صاحب اجتهادنه پوښتنه کړې وې نوهغه به صحيح مسئله خودله.

**د تقليد ثبوت:** دَدې نه معلومه شوه چه کله مسئله پخپله معلومه نه وی نودَ صاحب علم نه تپوس کولو سره دَهغه تقليد کول پکاردی اوهم دغه تقليد دې مسلمانانو خپل ائمه شارع نه دی جوړکړی بلکه پخپله دَنه پوهيدلو دَ وجې نه ئې دَ زمانې دَټولونه دَ لوئی عالم مجتهد خبره اومنله او قبوله ئې کړه. هم دغه تقليد مونږ منو. غيرمقلدهم دغه هرڅه کوی مګرخپل ځان ته مقلدنه وائی. حضوراکرم ﷺ ووَمګر تاوان ئې بوجه اجتهادنه دې اخستې.

۵۳۲ــ () [۰] ۱ وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ". عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ.

**ترجمه:** ۱ اوابن ماجه دا روايت دعطاء ابن ابي رباح څخه او هغه د ابن عباس څخه نقل کړي دي.

## [۵۳۳] په تيمم د مونځ کولو څخه پس د اوبو موجودوالي

۵۳۳ ــ () [۷] ۱ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ «خَرَجَ رَجُلَانِ فِي سَفَرٍ، فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ وَلَيْسَ مَعَهُمَا مَاءٌ، ۳ فَتَيَمَّمَا صَعِيدًا طَيِّبًا، فَصَلَّيَا، ۴ ثُمَّ وَجَدَا الْمَاءَ فِي الْوَقْتِ فَأَعَادَ أَحَدُهُمَا الصَّلَاةَ بِوُضُوءٍ، وَلَمْ يُعِدِ الْآخَرُ. ۵ ثُمَّ أَتَيَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَا ذَلِكَ. ۶ فَقَالَ لِلَّذِي لَمْ يُعِدْ: أَصَبْتَ السُّنَّةَ، وَأَجْزَأَتْكَ صَلَاتُكَ، ۷ وَقَالَ لِلَّذِي تَوَضَّأَ وَأَعَادَ: "لَكَ الْأَجْرُ مَرَّتَيْنِ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ، وَرَوَى النَّسَائِيُّ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** ۱ ابو سعيد خدري رضی الله عنه راوي دي ۲ چې دوه سړي په سفر روان شو (په لارکې) د لمانځه وخت شو خو د هغوئ سره اوبه نه وې ۳ دواړو په پاکه خاوره باندې تيمم اوکړو او مونځ يې وکړو ۴ (په مخکې تلو سره) هغوئ اوبه اوموندلې او د لمانځه وخت هم باقي وو په هغوئ کې يو اودس کولو سره مونځ دوباره وکړو خو هغه دويم دوباره ونه کړو ۵ کوم وخت چې دواړه د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو نو دا واقعه يې ذکر کړه ۶ (پوره واقعه آوريدو سره) حضور ﷺ هغه سړي ته چې هغه مونځ دوباره نه وو کړي، وفرمايل تا په سنت عمل اوکړو ستا د پاره هغه مونځ کافي دي ۷ او کوم سړي چې اودس کولو سره دوباره مونځ کړي وو هغه ته يي وفرمايل ستا د پاره دوچنده اجر دي. (ابوداؤد دارمي، او نسائي هم دغسې روايت نقل کړي دي)

۵۳۴ــ () [۰] ۱ وَقَدْ رَوَى هُوَ وَأَبُو دَاوُدَ أَيْضًا عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** ۱ نسائي او ابوداؤد د عطاء ابن يسار څخه مرسلاً هم نقل کړي دي.

---

(۱) اخرجه ابن ماجة باب فى المجروح تصيبه الجنابة. فيخاف على نفسه إن اغتسل (رقم- ۵۷۲)
(۲) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة / باب فى المتيمم يجد الماء بعد ما يصل فى الوقت (رقم-۳۳۸) والنسائى كتاب الغسل والتيمم/باب التيمم لمن يجد الماء بعد الصلاة (رقم- ۴۳۳) والدارمى كتاب الطهارة/باب التيمم (رقم-۷۷۱)
(۳) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب فى المتيمم يجد الماء بعد ما يصل فى الوقت (رقم-۳۳۹) والنسائى كتاب الغسل والتيمم/باب التيمم لمن يجد الماء بعد الصلاة (رقم- ۴۳۴)

**حل اللغات:** ① صَعِيدًا: خاوره، ② فَأَعَادَ: راوئې ګرځولو (مونځ). ③ أَصَبْتَ: تا عمل اوکړو، ④ السُّنَّةَ: سنت، شریعت. ⑤ وَأَجْزَأَتْكَ: جائز او کافی دې تا لره. ⑥ الْأَجْرُ: ثواب، ⑦ مَرَّتَيْنِ: دوچند (ځکه چه په احتياط ئې عمل اوکړو او دوه ځل ئې مونځ اوکړو).

**تسهیلات:**

**قوله: ثُمَّ وَجَدَا الْمَاءَ فِي الْوَقْتِ:**

**داوبو ملاویدو درې صورتونه:**

① که چا په تیمم سره مونځ اوکړو روستو اوبه ملاؤشوې نو په اتفاق سره دده مونځ اوشو

② که دَتیمم نه پس اودمانځه نه وړاندې اوبه ملاؤشی نو اودس دې اوکړی په دې باندې هم اتفاق دې.

③ که تیمم ئې اوکړو اومونځ ئې شروع کړو بیا په مینځ کښې اوبه ملاؤشوې

**په دریم صورت کښې مذاهب:**

① دَامام مالك رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله مسلك . ادې چه داسې دې هم په تیمم سره مونځ پوره کړی.

② دَاحنافو اوحنابله په نیز مونځ باطل شو داسې دې اودس اوکړی اومونځ دې بیا اوکړی.

**د دویم فریق دلائل:** هغه روایات د دوی مستدلات دی کومو کښې چه "ان لم یجد الماء" الفاظ دَ شرط په توګه ذکردی او "فاذا وجد الماء فلیمس بشره" الفاظ دی نوچه کله هم اوبه ملاؤشی تیمم به ختم شی نودَ مونځ دوران کښې دَ اوبو په لیدو سره به مونځ هم ختم شی.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۳۵] د سلام جواب ورکولو دپاره د نبی علیه السلام تیمم کول**

د ه—(۱)[۸] ۱ عَنْ أَبِي الْجُهَيْمِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الصِّمَّةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ «أَقْبَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ نَحْوِ بِئْرِ جَمَلٍ، ۳ فَلَقِيَهُ رَجُلٌ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، فَلَمْ يَرُدَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۴ حَتَّى أَقْبَلَ عَلَى الْجِدَارِ، فَمَسَحَ بِوَجْهِهِ وَيَدَيْهِ، ثُمَّ رَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ ابو جهیم ابن حارث ابن صمه رضی الله عنه راوي دي ۲ چې نبي ﷺ (په مدینه کې) د جمل د کوهی طرف ځخه تشریف راوړو ۳ د حضور ﷺ سره یو سړي ملاو شو (یعني خپله ابوجهیم) او سلام یي اوکړو حضور ﷺ د هغه د سلام جواب ورنه کړو ۴ او یو دیوال ته یي تشریف راوړو نو رومبې حضور ﷺ د مخ اولاسونو مسح وکړه (یعني تیمم یي وکړو) بیا یي

(۱) اخرجه البخاری کتاب التیمم باب: المتیمم هل ینفخ فیهما؟(رقم-۳۳۷) ومسلم کتاب التیمم باب التیمم (رقم# ۱۱۴ - (۳۶۹) وابوداود کتاب الطهارة/باب التیمم فی الحضر (رقم- ۳۲۹) والنسائی کتاب الطهارة/باب التیمم فی الحضر(رقم-۳۱۱)

: سلام جواب ورکړلو، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① أَقْبَلَ: تشريف ئې راوړو. ② نَحْوِ: له طرفه، ③ بِئْرِ جَمَلٍ: په مدينه کښې يو مشهور ځای دې.

## [۵۳۶] د تيمم دپاره دوه ضربونه

۵۳۶-()[۹] [۱] «وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ: [۲] أَنَّهُمْ تَمَسَّحُوا وَهُمْ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالصَّعِيدِ لِصَلَاةِ الْفَجْرِ، [۳] فَضَرَبُوا بِأَكُفِّهِمُ الصَّعِيدَ، ثُمَّ مَسَحُوا بِوُجُوهِهِمْ مَسْحَةً وَاحِدَةً، [۴] ثُمَّ عَادُوا، فَضَرَبُوا بِأَكُفِّهِمُ الصَّعِيدَ مَرَّةً أُخْرَى، [۵] فَمَسَحُوا بِأَيْدِيهِمْ كُلِّهَا إِلَى الْمَنَاكِبِ [۶] وَالْآبَاطِ مِنْ بُطُونِ أَيْدِيهِمْ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] د عمار ابن ياسر رضي الله عنه بيان دي چه (يو خل) څو صحابه د نبي کريم ﷺ سره ملګري وو [۲] (د اوبو نه پيدا کيدو په وجه) د سحر لمانځه دپاره هغوئ په پاکي خاوري باندې تيمم ووهلو [۳] داسې چې اول يي خپل لاسونه په خاوره باندې ووهلو سره په خپلو مخونو راتير کړل [۴] بيا يي په دويم ځل خپل لاسونه په خاوره ووهلو سره په خپلو پوره لاسونو باندې يعنی تر اوږو پورې [۶] او د ترخونو د ننه پورې مسح وکړه د لاسونو د دننه طرف څخه. ابوداؤد

**حل اللغات:** ① تَمَسَّحُوا: أَيْ: تَيَمَّمُوا: يعنی تيمم ئې اوکړو. ② الصَّعِيدِ: خاوره، ③ الْآبَاطِ: د إبط جمع ده، ترخونو ته وائی.

**تسهيلات:**

**قوله:** ثُمَّ عَادُوا، فَضَرَبُوا: داحديث په ډيروضاحت سره دا خبره ښائی چه دَتيمم دَپاره دوه ضربونه دی.

**قوله:** الْمَنَاكِبِ:

**داوګو پورې د تيمم کولو حکم:** د اوګوداوګوپورې تيمم کښې مسح کول اودَترخونوپورې تيمم کول، دا دَ صحابه کرامو دَ ظاهری آيت نه يواجتهادی استنباطی حکم وو يعنی دَ "يد" دَ لفظ نه هغوی پوره لاس دَ اوګوپورې ګنړلې وو ځکه چه په لغت کښې دَ يداطلاق هم په دې باندې کيږی ليکن دَ شارع عليه السلام دَ فعل نه دَ څنګلوپورې حکم ملاويږی په دې وجه هم په دې عمل کولې شی. دَ دې نه معلومه شوه چه دَ لغت په زور اوپه عربئی باندې دَ پوهې په زور په شريعت باندې په کامل توګه باندې پوهيدل انتهائی مشکل دی.

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الطهارة/باب التيمم (رقم-۳۱۸) والنسائی كتاب الطهارة/باب التيمم فی السفر (رقم- ۳۱۴)

# [۱۱/۱۶] بَابُ الْغُسْلِ الْمَسْنُونِ

## دَ مسنون غسل بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية احاديث مشتملة على أقسام الغسل:**

① الغسل للجمعة: ۱، ۲، ۳، ۴، ۸.

② الغسل لتغسيل الميت: ۵، ۶.

③ الغسل للجنابة والحجامة: ۶.

④ الغسل للإسلام: ۷.

**ماقبل باب سره ربط:** صاحب مشکوة دَدې نه وړاندې باب الغسل په عنوان سره يوباب قائم کړې دې ليکن دَدې نه پس دَ غسل مسنون په عنوان سره دلته هغوی يوبل باب قائم کړويه کوم سره چه اشاره ملاوېږی چه مخکښې دَهغه غسل احکام ووچه دَ فرض اوواجب دَ قسم نه وو اودلته دَهغه غسل بيان دې چه دَ سنت يا مستحب دَ قسم نه دې.

**د غسل قسمونه:** په دې باب کښې صاحب مشکوة دَ څلورقسم غسلونو بيان کړې دې. ① دَ جمعې دَ ورځې دَ غسل بيان

② مړی ته دَ غسل ورکولونه پس پخپله دَ غسل کولوبيان

③ دَ ښکر اوحجامه کولونه پس غسل کول او

④ دَ اسلام قبلولو په وخت کښې غسل کول.

**دااخترونودپاره د غسل حکم:** دَدې نه علاوه دَ اخترونودَپاره غسل کول فقهاؤ مسنون ليکلي دې مګردَدې دَپاره چه کوم دوه يا زيات احاديث راغلی دی هغه ضعيف دی کيدې شی چه دَدې وجې نه مؤلف دَدې ذکر نه دې کړې خودَ صحابه کرامو دَ دور نه امت کښې دَاخترونودَپاره دَ غسل کولو معمول راروان دې.

**دعرفه په ورځ اوهره هفته کښې غسل کول:** دغه شان دَ يوم عرفه دَپاره اوپه وخت دَ احرام غسل کولوته فقهاؤ مستحب ليکلی دی. دَ اسلام عام حکم ټولومسلمانانوته دادې چه په يوه هفته کښې دې کم نه کم يوځل غسل کوی. الله تعالی مسلمانانوته دَ پاکوالی دَپاره دالويه تحفه ورکړې ده دکوم نه چه غيرمسلم محروم دی.

**دغسل په ضبط کښې اقوال:** ① دَغين په ضمې اودَ سين په سکون سره دې بدن دَ سر نه واخله ترخپوپورې دَ ټولو اندامونو وينځلو نوم غسل دې

② دَغين په فتح سره دَ يوڅيزوينځلوته غَسل وائی

③ دَغين اوسين دواړو په ضمه سره چه غُسُل وی نودا دَ غسل اوبوته وئيلې شی

④ چه په غين كسره اوپه سين سكون وى نو دَغسل په اوبو كښې دننه صابن يا سرف يا اشنان وغيره ملاؤشوي څيزونو ته وائي.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۵۳۷] د جمعي د مالخه دپاره د غسل حكم**

۵۳۷ – (۱)[۱] ①عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" « إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ فَلْيَغْتَسِلْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** ① ابن عمر رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② هركله چې په تاسو كې څوك د جمعي د لمانځه د پاره راځي نو هغه ته پكار دي چې غسل وكړي. (بخاري مسلم)

**[۵۳۸] د جمعي په ورځ غسل**

۵۳۸ – (۲)[۲] ①وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ②«غُسْلُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلَى كُلِّ مُحْتَلِمٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② چه په هر بالغ باندې د جمعي په ورځ لمبيدل واجب دي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① مُحْتَلِمٍ: أَيْ: بَالِغٍ: چه بلوغ ته رسيدلې وى.

**تسهيلات:**

**د جمعي د غسل دپاره دري قسمه الفاظ:** جمعي دپاره دغسل باره كښې

① د "فليغتسل" لفظ راغلي دي. او دا د امر صيغه ده.

② د "حق" كلمه هم راغلي ده.

③ د "واجب" لفظ هم موجود دي. داشان نور هم د تاكيد الفاظ راغلى دى چې د هغې په وجه فقهاؤ كښې اختلاف پيدا شو چې آيا غسل واجب دې يا سنت يا مستحب؟

---

(۱) اخرجه البخارى باب فضل الغسل يوم الجمعة، وهل على الصبى شهود يوم الجمعة، أو على النساء(رقم-۸۷۷) ومسلم كتاب الجمعة (رقم۱ - (۸٤٤) وابوداود كتاب الطهارة /باب فى الغسل يوم الجمعة(رقم-۳٤۰) ..........

..... وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، باب ما جاء فى الغسل يوم الجمعة (رقم - ۱۰۸۸)ومالک فى الموطا كتاب الجمعة /باب العمل فى غسل يوم الجمعة(رقم- ۵) والنسائى كتاب الجمعة /باب الأمر بالغسل يوم الجمعة (رقم- ۱۳۷۶) والدارمى كتاب الصلاة /باب الغسل يوم الجمعة (رقم-۱۵۷۷)

(۲) اخرجه البخارى كتاب الجمعة باب هل على من لم يشهد الجمعة غسل من النساء والصبيان وغيرهم؟ (رقم-۸۹۵) ومسلم كتاب الجمعة باب وجوب غسل الجمعة على كل بالغ من الرجال، وبيان ما أمروا به (رقم-۵ - (۸٤۶)وابوداود كتاب الطهارة /باب فى الغسل يوم الجمعة(رقم-۳٤۱) كتاب إقامة الصلاة، باب ما جاء فى الغسل يوم الجمعة (رقم - ۱۰۸۹) ومالک فى الموطا كتاب الجمعة /باب العمل فى غسل يوم الجمعة(رقم- ٤) والدارمى كتاب الصلاة /باب الغسل يوم الجمعة (رقم-۱۵۷۸)

## د جمعې ورځې د غسل په حکم کښې مذاهب:

① اهل ظواهر وائی چې د جمعې غسل فرض او واجب دې. حضرت ابوهریره ﷺ او عمار بن یاسر ﷺ د جمعې دغسل د وجوب قائل وو. او دا مسلك د ابوسعید خدری ﷺ هم وو.

② د جمهور فقهاء کرامو په نیز د جمعې غسل سنت دې. جمهور صحابه کرام رضی الله عنهم اجمعین هم ددې د سنتیت قائل وو.

**داول فریق دلائل:-**

① عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " « إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ فَلْيَغْتَسِلْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ(۱)

② وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " «غُسْلُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلَى كُلِّ مُحْتَلِمٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. (۲)

③ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «حَقٌّ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ أَنْ يَغْتَسِلَ فِي كُلِّ سَبْعَةِ أَيَّامٍ يَوْمًا يَغْسِلُ فِيهِ رَأْسَهُ وَجَسَدَهُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. (۳)

د دې درې واړه احادیثو د ظاهر څخه وجوب معلومیږي. بلکه د وجوب واضح الفاظ دی

**داول فریق د دلائلو جوابونه:** ① کوم ځائې کښې چې د امر صیغه راغلې ده هلته به دَ غسل د نورو روایاتو په وجه امر په استحباب حمل کړو ځکه چې قرینه صارفه موجوده ده چې دې امر لره په وجوب باندې نشی حمل کولې نو دا امر د ﴿ وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا ﴾ دامر پشان په استحباب باندې محمول دې.

② کوم ځائې کښې چې د حق یا د واجب الفاظ راغلی دی هغه د ثابت په معنی کښې دی ، یا به حق د سنت مؤکده په حکم کښې اخستې کیږی.

③ دا روایات موقوف او منسوخ دی، یعنی انتهاء حکم دانتهاء علت په سبب سره شوې ده. ددې قصه د حضرت ابن عباس ﷺ روایت په مشکوة ص/۵۵ فصل ثالث کښې ددې

---

(۱) اخرجه البخاری باب فضل الغسل یوم الجمعة، وهل علی الصبی شهود یوم الجمعة، أو علی النساء(رقم-۸۷۷) ومسلم کتاب الجمعة (رقم۱ - (۸٤٤) وابوداود کتاب الطهارة /باب فی الفسل یوم الجمعة(رقم-۳٤۰) ..........

..... وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، باب ما جاء فی الفسل یوم الجمعة (رقم - ۱۰۸۸)ومالک فی الموطا کتاب الجمعة /باب العمل فی غسل یوم الجمعة(رقم- ۵) والنسائی کتاب الجمعة /باب الأمر بالغسل یوم الجمعة (رقم- ۱۳۷۶) والدارمی کتاب الصلاة /باب الغسل یوم الجمعة (رقم-۱۵۷۷)

(۲) اخرجه البخاری کتاب الجمعة باب هل علی من لم یشهد الجمعة غسل من النساء والصبیان وغیرهم؟ (رقم-۸۹۵) ومسلم کتاب الجمعة باب وجوب غسل الجمعة علی کل بالغ من الرجال، وبیان ما أمروا به (رقم-۵ - (۸٤۶)وابوداود کتاب الطهارة /باب فی الفسل یوم الجمعة(رقم-۳٤۱) کتاب إقامة الصلاة، باب ما جاء فی الغسل یوم الجمعة (رقم - ۱۰۸۹) ومالک فی الموطا کتاب الجمعة /باب العمل فی غسل یوم الجمعة(رقم- ٤) والدارمی کتاب الصلاة /باب الغسل یوم الجمعة (رقم-۱۵۷۸)

(۳) اخرجه البخاری بخاری کتاب الجمعة باب هل علی من لم یشهد الجمعة غسل من النساء والصبیان وغیرهم؟ (رقم-۸۹۷) ومسلم فی صحیح رقم الحدیث ۹- ۸٤۹

باب په آخری حدیث کښې په تفصیل سره مذکور ده. په هغې کښې حضرت ابن عباس ﷺ دهغه زماني مکمل نقشه پیش کړې ده.

**ه دويم فريق دلائل:** دحضرت سمره بن جندب ﷺ روايت د دوی مستدل دې کوم چې د فصل ثاني اول حديث دې. په هغې کښې د " فالغسل أفضل " الفاظ راغلی دی.

② په مشکاة کښې دحضرت عکرمه ﷺ روايت هم د دوی مستدل دې.

③ دحضرت عثمان بن عفان ﷺ او حضرت عمر فاروق ﷺ مکالمه ده هم د دوی مستدل ده.هغه دا چې حضرت عمر ﷺ د جمعې خطبه ونيله چې په دې کښې حضرت عثمان ﷺ تشريف راورو. حضرت عمر ﷺ هغه ته په ناوخته راتلو زورنه ورکړه. نودوئ ﷺ ورته په جواب کښې اوونيل چې اې امير المؤمنين ما اودس کولو ځکه ناوخته شو. حضرت عمر فاروق ﷺ اوفرمائيل چې "الوضوء أيضا" (لمعات)[اشعة المعات ۱/۲۸۷]

يعنی ناوخته هم راغلي او غسل دې هم نه دې کړې. صرف اودس دې کړې دې؟ بس دومره مکالمه وه. او حضرت عثمان ﷺ کيناستو. او جمعه ئې ادا کړه. جمهور فرمائی که غسل واجب يا فرض وې نو حضرت عمر ﷺ به ضرور حضرت عثمان ﷺ غسل دپاره ليږلې وو. معلومه شوه چې واجب نه دې.

④ د حضرت ابن عباس ﷺ هغه تفصيلی بحث هم د دوی مستدل دې کوم چې باب الغسل په آخر کښې راځی. او حضرت عکرمه ﷺ د حضرت ابن عباس ﷺ شاګرد دې. او تابعی دې. هغوئ دا روايت نقل کړې دې ددې ټولو روايتونو په رڼا کښې جمهور د جمعې غسل لره مسنون او مستحب ګرزوی.

**خلاصه د بحث:** ګويا د غسل وجوب د اسلام په ابتداء کښې وو. بيا موقوف شو. بهر حال دلائل چې هر څنګه وی ليکن افضل او بهتر غسل کول دی. او احتياط د هغه حضراتو په مسلك کښې دې چې د جمهورو نه علاوه دی. او دجمعې غسل لره ضروری ګڼړی.

**[۵۳۹] په پوره هفته کښې يو ځل د غسل کولو مسنونيت**

| |
|---|
| ٥٣٩-()[٣] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«حَقٌّ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ أَنْ يَغْتَسِلَ فِي كُلِّ سَبْعَةِ أَيَّامٍ يَوْمًا ③يَغْسِلُ فِيهِ رَأْسَهُ وَجَسَدَهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② چه په هر عاقل بالغ مسلمان باندې حق دي (يعني ثابت او لازم دي يا لائق دي) چې په هره هفته کې يوه ورځ (يعني د جمعې په روځ کې) ولمبيږي③ او خپل سر او بدن ووينځي . (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①حَقٌّ: أَيْ: ثَابِتٌ وَلَازِمٌ: ثابت او لازم دی.

[1] اخرجه البخاری بخاری کتاب الجمعة باب هل علی من لم يشهد الجمعة غسل من النساء والصبيان وغيرهم؟ (رقم-۸۹۷) ومسلم فی صحيح رقم الحديث ۸٤۹۰۹

**تسهيلات:**

**د جمعې په ورځ د ما له الغسل په مصداق کښې مذاهب:**

① دجمهورو په نيز د جمعې په ورځ غسل د يوم الجمعه دپاره دې. دامام مالک رحمه الله هم يوقول دا دې.

② داحنافو په نيز صلوة الجمعه دپاره دې. دامام مالک رحمه الله هم يوقول دا دې.

**ثمره د اختلاف:** ددې اختلاف ثمره به په هغه وخت کښې ظاهره شی چې کوم حضرات غسل لره دجمعې دپاره سنت ګرځوی. د هغوئ په نيز به دا سنت هله پوره شی چې هم دې غسل سره مونځ ادا کړې شی اوکه سحر ئې غسل اوکړو او بيا ئې اودس مات کړو او دې غسل سره ئې مونځ ادا نه کړو نو سنت به پورا نشی. او کوم حضرات چې دا غسل يوم الجمعه دپاره ګرځوی دهغوئ په نيز که د جمعې په ورځ سحر ئې غسل اوکړو نو سنت به ادا شی.که دې غسل سره ئې مونځ کړې وی اوکه نه .خوکه يو کس مونځ نه پس غسل کوی نو دَهيچا په نيز به سنت ادا نشی.

په احاديثوکښې چې د يوم جمعه ، صلوة جمعه او هفته کښې يو ځل دغسل کولو حکم راغلې دې ، په هغې کښې په ظاهر تعارض ښکاری، خو احاديثو کښې تعارض نشته دې بلکه درې قسمه غسل مستحب دې. او درې واړو دپاره مختلف احاديث راغلی دی. اوس د جمعې د مونځ دپاره چې دکوم غسل حکم راغلې دې که په هغې کښې دا نيت اوکړې شی چې د جمعې د ورځې او د مونځ دپاره غسل کوم او دا نيت هم اوکړی چې هفته وار غسل کوم نو هيڅ تعارض به نه وی او په ټولو احاديثو به عمل راشی.

# الْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۳۰] د جمعې په ورځ د غسل کولو افضليت**

۵۳۰-(۱)[۳] ① عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«مَنْ تَوَضَّأَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَبِهَا وَنِعْمَتْ، ③ وَمَنِ اغْتَسَلَ فَالْغُسْلُ أَفْضَلُ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① سمره ابن جندب رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② چاچې د جمعې په ورځ اودس وکړو نو هغه فرض ادا کړل او دا ډير ښه فرض دي ③ او چاچې (د جمعې د لمانځه د پاره) غسل وکړو نو دا ډير ښه دي. (احمد ابوداؤد ترمذي نسائي دارمي)

**حل اللغات:** ① فَبِهَا وَنِعْمَتْ: دا کلام د تحسين او تعريف دپاره استعماليږی يعنی چه دا ډير ښه عمل دي.

(۱) وابوداود كتاب الطهارة/باب فى الرخصة فى ترک الغسل يوم الجمعة (رقم-۳۵٤) والترمذى كتاب الجمعة/باب فى الوضوء يوم الجمعة(رقم-٤٩٧) والدارمى كتاب الصلاة /باب الغسل يوم الجمعة (رقم-۱۵۸۱)

**[۵۰۱] د مړي غاسل دپاره د غسل او حامل دپاره د اودس حکم**

۵۰۱-()[۵] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«مَنْ غَسَّلَ مَيِّتًا فَلْيَغْتَسِلْ»" رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ. ۳ وَزَادَ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ: "وَمَنْ حَمَلَهُ فَلْيَتَوَضَّأْ".

**ترجمه:** ۱ ابو هريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ کوم سړي چې مړي ولمبوي هغه ته پخپله هم لمبيدل پکار دي، (ابن ماجه، ۳ او احمد ترمذي) او ابوداؤد په دې حديث کې زيات نقل کړي دي چې حضور ﷺ وفرمايل کوم سړي چې جنازي ته وږه ورکړي وي هغه ته اودس کول پکار دي.

**حل اللغات:** ۲ غَسَّلَ: چه اوبۀ لامبولو (يعنى مړی ته ئې غسل ورکړو).

**[۵۰۲] د غسل څلور اسباب**

۵۰۲-()[۶] ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۲ «كَانَ يَغْتَسِلُ مِنْ أَرْبَعٍ: مِنَ الْجَنَابَةِ، ۳ وَيَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَمِنَ الْحِجَامَةِ، وَمِنْ غُسْلِ الْمَيِّتِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي ۲ چې نبي ﷺ به د څلورو څيزونو په وجه غسل کولو ۱ جنابت يعنى د ناپاکي څخه ۳ ۲ د جمعي د پاره ۳ د ښکر په لګولو سره يعنى په وينه راښکلو سره ۴ مړي ته په غسل ورکولو سره. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ۱ الْحِجَامَةِ: أَيْ: لِلْمَحْجُومِ: يعنى دکوم کس نه چه خرابه وينه اوويستلې شي هغه له پکار دی چه اولامبی.

**تسهيلات:**

**په دريې قسمه خلقو د غسل عدم وجوب:**

۱ په حجامت کونکی يعني د حجامه په ذريعه ئې وينه راويستې وی.

۲ دجنازې د کټ په حامل يعنى چې د مړی جنازه ئې اوچته کړې وی.

۳ د مړی په غاسل يعنى چې مړی ته ئې غسل ورکړی وی.

**په آخرى دوو صورتونو کښې دليل په وجوب کښې مذاهب:**

۱ دأهل ظواهر په نيزجنازه اوچتونکی باندې اومړی ته غسل ورکونکی باندې پخپله غسل واجب کيږی.

۲ دجمهورو په نيز په ده باندې غسل نه دې واجب.البته مستحب دې.

---

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب الجنائز /باب ما جاء فى غسل الميت(رقم-۱۴۶۳) واحمد فى المسند:-۲/۴۵۴ . و ابوداود كتاب الجنائز،باب فى الغسل من غسل الميت(رقم-۳۱۶۱) والترمذى كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الغسل من غسل الميت (رقم-۹۹۳)

(۲) اخرجه وابوداود كتاب الطهارة/باب فى الغسل يوم الجمعة(رقم-۳۴۸) واحمد فى المسند:۶/۱۵۲

**داول فريق دلائل:**

① دَحضرت ابوهريره رضی الله عنه روايت د دوى مستدل دې په كوم كښې چه "من غسل ميتاً فليغتسل" الفاظ دی

② دَحضرت عائشه رضی الله عنها روايت د دوى مستدل دې په كوم كښې "ومن غسل الميت" الفاظ دی.

**د دويم فريق دلائل:**

① دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما يوروايت دې "كنا نغسل الميت فبعضنا يغتسل وبعض لا يغتسل" (اخرجه الخطيب) دَدې نه معلومه شوه چه كه چرته نجاست اولګی نوغسل به كوی ګنی نه به كوی.

② په دې خلقوياندې ځكه غسل نشته دې چه موجب غسل څه څيز موجودشوې نه دې صرف دَدې وهم په بنياد چه چرته ځاځكی پريوتلوسره په بدن باندې نجاست لګيدلې وی دَ وجوب غسل دَپاره كافی نه دی ځكه چه داڅه يقينی خبره نه ده.

**داول فريق د دليل درې جوابونه:** ① دَحضرت ابوهريره رضی الله عنه په روايت كښې "من حمله فليتوضأ" كښې دَحمل نه مراد دا دې چه كله يوسړې جنازه اوچتولوسره روان شی نوهغه له پكاردی چه اودس كښې دې ځی ځكه چه وړاندې تلوسره به هغه دَ جنازې مونځ كوی نوتياربه وی

② دا روايت منسوخ دې. ابوداؤد وئيلی دی داروايت منسوخ دې

③ دا حكم په استحباب باندې محمول دی.

**قوله:** وَمِنْ غُسْلِ الْمَيِّتِ:

**د نبی عليه السلام مړی ته د غسل وركولوعدم ثبوت:** يعنی دَ مړی لامبولونه پس به ئی غسل كولويادساتنی چه حضورپاك په ټول عمركښې يومړی ته هم په خپله غسل نه دې وركړې دلته اسناد اونسبت مجازی دې لكه چه "بنی الامير القصر" كښې "اسناد الی غير ما هوله" دې يا لكه چه حديث دې: "ان النبی صلی الله عليه وسلم رجم ماعزا" ای امر برجمه.

**[۵۴۳] د اسلام راوړلو دپاره غسل**

۵۴۳- ()[۷] ① وَعَنْ قَيْسِ بْنِ عَاصِمٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ أَسْلَمَ، ② فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ «يَغْتَسِلَ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ

**ترجمه:** ① او د حضرت قيس ابن عاصم رضی الله عنه په باره كې روايت دې چې هغه اسلام راوړو ② نو نبي صلی الله عليه وسلم هغه ته دا حكم وركړو چې هغه په اوبو او د بيرې په پاڼو سره ولمبېږي، (ترمذي ،ابوداؤد ، نسائي)

**حل اللغات:** ① سِدْر: بيره، (د بيرې پاڼې مراد دی).

---

(۱) اخرجه وابوداود كتاب الطهارة/باب فی الرجل يسلم فيؤمر بالغسل(رقم-۳۵۵) والترمذی كتاب السفر/باب: فی الاغتسال عندما يسلم الرجل(رقم-۶۰۵) والنسائی كتاب الطهارة/باب ذكر ما يوجب الغسل وما لا يوجبه غسل الكافر إذا أسلم (رقم-۱۸۸)واحمد فی المسند:-۶۱/۵

**تسهیلات:**

**قوله: أَنَّهُ أَسْلَمَ:**

**داسلام قبلولو څخه پس د غسل دوه صورتونه:** ① اسلام نه وړاندې که يو کافر د جنابت په حالت کښې وی نو اسلام کښې داخليدو نه پس په هغه غسل کول فرض دی.
② که اسلام کښې داخليدو نه پس هغه د جنابت په حالت کښې نه وی نو بيا غسل کول مستحب دی خلاصه دا شوه چې اسلام د غسل نه بغير هم قبليدې شی.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۴۳] د جمعې د مونځ ابتداء**

۵۴۳-()[۸] ① عَنْ عِكْرِمَةَ، قَالَ: إِنَّ نَاسًا مِنْ أَهْلِ الْعِرَاقِ جَاءُوا ② فَقَالُوا: يَا ابْنَ عَبَّاسٍ، أَتَرَى الْغُسْلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاجِبًا؟ ③ قَالَ: لَا، وَلَكِنَّهُ أَطْهَرُ وَخَيْرٌ لِمَنِ اغْتَسَلَ، ④ وَمَنْ لَمْ يَغْتَسِلْ فَلَيْسَ عَلَيْهِ بِوَاجِبٍ. ⑤ وَسَأُخْبِرُكُمْ كَيْفَ بَدْءُ الْغُسْلِ: ⑤ كَانَ النَّاسُ مَجْهُودِينَ يَلْبَسُونَ الصُّوفَ، وَيَعْمَلُونَ عَلَى ظُهُورِهِمْ، ⑥ وَكَانَ مَسْجِدُهُمْ ضَيِّقًا مُقَارِبَ السَّقْفِ، إِنَّمَا هُوَ عَرِيشٌ،

**ترجمه:** ① حضرت عکرمه رضی الله عنه راوي دي چې د عراق څو سړي راغلل ② او د ابن عباس رضی الله عنه څخه يي پوښتنه وکړه چې آيا ستاسو په رايه کې د جمعې په ورځ لمبيدل واجب دي؟ ③ هغه اوويل نه، خو د جمعې په ورځ لمبيدل ډيره زياته صفايي او سترايي ده او کوم سړي چې غسل وکړي نو دا د هغه د پاره بهتره ده ④ او کوم سړي چې ونه کړي په هغه واجب نه دي ⑤ او زه تاسو ته ښايم چې د جمعې په ورځ د غسل ابتداء ولې وشوه (يعني د جمعې په ورځ غسل په څه وجه شروع شو نو اصل خبره داوه چې د اسلام د شروع په زمانه کې) ⑤ بعضې غريب صحابه ورضی الله عنهم به صوف (د وړی کالي) اغوستل او په شا به يي (د بوج پورته کولو) کار کولو ⑥ د هغوئ مسجد و تنگ وو چې د هغې چت ښکته او د خرما د څانگو وو.

**حل اللغات:** ① مَجْهُودِينَ: د جهد او مشقت کارونه به ئې کول (مزدوری به ئې کوله). ② الصُّوفَ: وړئ، ③ ظُهُورِهِمْ: په شا گانو به ئې پيټی او بوجونه وړل. ④ مُقَارِبَ السَّقْفِ: چتونه به ئې نزدې وو (اوچت به نه وو). ⑤ عَرِيشٌ: د خرماؤ د څانگو څخه جوړشوې سپر.

① فَخَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي يَوْمٍ حَارٍّ، ② وَعَرِقَ النَّاسُ فِي ذَلِكَ الصُّوفِ، ③ حَتَّى ثَارَتْ مِنْهُمْ رِيَاحٌ، آذَى بِذَلِكَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا. ④ فَلَمَّا وَجَدَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ الرِّيَاحَ، قَالَ: ⑤ أَيُّهَا النَّاسُ، إِذَا كَانَ هَذَا الْيَوْمَ، فَاغْتَسِلُوا، ⑥ وَلْيَمَسَّ أَحَدُكُمْ أَفْضَلَ مَا يَجِدُ مِنْ دُهْنِهِ وَطِيبِهِ" ⑦ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ثُمَّ جَاءَ اللَّهُ بِالْخَيْرِ، وَلَبِسُوا غَيْرَ الصُّوفِ، ⑧ وَكُفُوا الْعَمَلَ، وَوُسِّعَ مَسْجِدُهُمْ، ⑨ وَذَهَبَ بَعْضُ الَّذِي كَانَ يُؤْذِي

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الطهارة/باب في الرخصة في ترک الغسل يوم الجمعة (رقم-۳۵۳)

بَعْضُهُمْ بَعْضًا مِنَ الْعَرَقِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] يو ځل د جمعي په ورځ چې سخته ګرمي وه حضور ﷺ مسجد ته تشريف راوړو [۲] (د سختي ګرمي په وجه) صوف (وړي) کې دننه خلق د خولي څخه لونده شوې وو [۳] تر دي چې د خولو بدبويي خوره شوه چې په هغې سره خلقو په خپلو کې تکليف محسوس کړو [۴] هرکله چې حضور ﷺ ته د بدبويي احساس وشو نو وي فرمايل [۵] اې خلقو ! کله چې د جمعي ورځ شي نو غسل کوئ [۶] بلکه په تاسو کې چې چاته تيل او خوشبويي ميسر (حاصل) وي نو هغه دي هم لګوي (يعني ويښتان دي غوړ کړي او په کپړو دي خوشبويي لګوي (مثلًا عطر وغيره) [۷] ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي چه د دې څخه وروسته الله جل جلاله دمال اودولت فراخي راوستله نو خلقو صوف (وړئ) پريښودلو سره بني کپړي استعمالول شروع کړل [۸] د محنت او مشقت کارونه هم ختم شو، مسجدو هم فراخه شو [۹] او د خولو (پسيني) د وجي څخه چې خلقو ته تکليف وو هغه هم دفع شو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① عَرِقَ: خوله شو خلق، ② ثَارَتْ: أَيْ: انْتَشَرَتْ: راوالوتلو، خور شو، ③ رِيَاحٌ: باد يعنی بد بويه هوا، ④ وَلْيَمَسَّ: او لګوئ، مګئ (په ځانونو باندې)، ⑤ دُهْنِهِ: تيل (چه ويښته پرې غوړ کړی)، ⑥ طِيبِهِ: خوشبو، عطر (چه په جامو ئې اولګوی)، ⑦ الْخَيْرُ: أَيْ: الْمَالُ: مال دولت، فراخی، ⑧ وَكُفُوا الْعَمَلَ: أَيْ: كَفَاهُمُ اللَّهُ تَعَالَى الْعَمَلَ: الله تعالی ئې په کارونو کښې کفايت اوکړو، د مشقت کارونه ئې کم شو.

# [۱۲/۱۷] بَابُ الْحَيْضِ

## دَ حيض بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه اثنا عشر حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① حرمة الجماع: ۱، ۲.

② الأمور الجائزة للحائض أومعها من المباشرة وتغسيل رأس الزوج: ۲، وقراءة القرآن في حجرها: ۴

③ طهارة سؤر الحائض: ۳. وطهارة يدها : ۵

④ إشتمال ثوب المصلي على الحائض: ۶.

⑤ الاستمتاع بما فوق الإزار من الحائض: ۸. ۱۱.

⑥ قباحة الجماع مع الحائض وكفارتها: ۷، ۹، ۱۰.

**دحيض لغوی معنی:** دَ حيض لغوی معنی بهيدل دی عرب وائی "حاض الوادی" ای سال اوهم

په دغه مفهوم کښې حوض دې دکوم طرف ته چه اوبه بهیږی او جمع کیږی.
**دحیض تعریف:** ((هودم ینفضه رحم امرأة بالغة من غیرداء)) دا هغه وینه ده د بالغې زنانه رحم ئې بیوی خو د څه بیماری په وجه نه وی بلکه د ټولوبالغو زنانؤ څخه دا وینه په هره میاشت کښې جاری کیږی.

**د حیض په نوعیت او تعریف کښې دوه مذاهب:**

① دَحیض د بعضې فقهاؤ په نیز د انجاس یعنی پلیتنې دباب څخه دې.
② دبعضې فقهاؤ په نیز من باب الاحداث څخه دې.
**دحائضة اوحائض په مینځ کښې فرق کښې اقوال:** ① حائض هم وائی او حائضه هم وائی.
② بعضې دا فرق کړې دې چه "الحائض" کښې دَدوام مفهوم پروت دې او "الحائضه" کښې دَحدوث اوجدت مفهوم پروت دې. "الحیضة" دَحاء په فتح سره یوځل حیض راتلوته وائی
**دحیض وینه د ماشوم خوراک:** الله تعالی دَ ماشوم دَ خوراك دَپاره دَمور په رحم کښې دَحیض دَ وینې انتظام کړې دې. څلورمیاشتې پس په ماشوم کښې ساه راځی نوهغه دَدې وینې نه خوراك حاصلوی. هم دغه وجه ده چه د څلورومیاشتو کومه وینه په رحم کښې جمع کیږی هغه دَ بچی دَ پیدا کیدونه پس دَ نفاس په شکل کښې بهرراځی. دَڅلورمیاشتونه پس وینه بچې څکی لیکن الله تعالی دَانسان خله پاکه ساتلې ده دې دَپاره چه په دې سره دَالله تعالی مبارك نوم واخلی لهذا بچې دَ خلې په ذریعه نه بلکه دَ نوم دَ نالئی په ذریعه دَدغه وینې نه خوراك حاصلوی اوخله دَالله تعالی دَ مقدس نوم اخستلودَپاره پاکه ساتلې ده.
**په زنانؤ دحیض راتلو کښې درې اقوال:**
① بعضې کتابونوکښې داهم دی چه حضرت حواء په جنت کښې کله دَ غنم دَ ونې دَ ښاخ نه دانه حاصلول اوغوښتل نوهغه ښاخ پورته اوچت شو. حضرت حواء چه کله دا رانښکله نوهغه مات شو اودَهغې نه وینه اوبهیدله دغه ښاخ بددعااوکړه چه الله تعالی دې تانه داسې وینه اوبهیوی څنګه وینه چه تامانه جاری کړه. دَدغه بدعانه پس په ښځوباندې دَحیض بیماری راتلل شروع شو.
② دَ حیض شروع څنګه اوشوه اودابیماری په ښځو ولې اولګیده. په دې باره کښې یوخودَ نبی کریم ﷺ حدیث شریف دې چه الله تعالی دَ حیض دابیماری دَ آدم علیه السلام په لونړو لګیدلې ده لکه چه حیض دَ ښځې طبیعت او بشری تقاضا ده اوداَهغې دَ فطرت حصه ده.
③ بعضو خلقوداهم وئیلی دی چه دَ ټولونه اول حیض دَ بنی اسرائیلو په ښځوراغلې ومصنف عبدالرزاق کښې دَحضرت ابن مسعود رضی الله عنه یوحدیث کښې دی چه دَ بنی اسرائیلو ښځې اوسړی به یوځائی جمات ته دَ مانځه دَپاره تلل نوښځوداشرارت شروع کړو چه دَ شانه به ئی دَ سړو مستوراندامونو ته کتل نوالله تعالی په هغوی باندې دَحیض

بیماری راوستله. دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنه روایت دې الله تعالی چه کله حضرت حواء علیها السلام دَ جنت نه زمکې ته راکوزه کړه نوهغې سره ئې دَحیض بیماری اولګوله دا هر څه په لمعات کښې شیخ عبدالحق رحمه الله لیکلی دی.

**دحیض راتلل د بقاء نسل ضرورت:** بهرحال حیض دَښځې دَ صحت دَپاره ډیر ضروری دې اودَاولاد نظام هم حیض سره لګیدلې دې دکومې ښځې چه حیض نه راځي هغه بیماره هم وی او اولادئې هم نه کیږی لکه دا یوطبعی نظام دې چه دَ ښځې دَ فطرت او دَ تخلیق حصه ده.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵۳۵]په دوران حیض کښې د جماع حرمت

۵۳۵ – ()[۱] [۱]عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲]«إِنَّ الْيَهُودَ كَانُوا إِذَا حَاضَتِ الْمَرْأَةُ فِيهِمْ لَمْ يُؤَاكِلُوهَا، [۳] وَلَمْ يُجَامِعُوهُنَّ فِي الْبُيُوتِ، [۴] فَسَأَلَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: ﴿وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ﴾ [البقرة: ۲۲۲] الْآيَةَ، [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اصْنَعُوا كُلَّ شَيْءٍ إِلَّا النِّكَاحَ»

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضی الله عنه راوي دي [۲] چې په یهودوکي چې کله به د یوي ښځي د حیض ورځي شوې نو هغه خلقو به نه یوازي دا چې د هغوئ سره خوراك څښاك نه کولو [۳] بلکه د هغوئ سره ئي په کورنو کې اوده کیدل او ناسته هم پریښودل [۴] د نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه اصحابو په دي باره کې پوښتنه وکړه (چې د حائضه ښځو سره د یهودیانو دا عمل دي مونږ ته څه کول پکار دي) ؟ نو الله جل جلاله دا آیت: وَيَسْئَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ الآية یعنی دا خلق ستا څخه د حیض په باره کې پوښتنه کوي الخ نازل کړو [۵] د آیت د نازلیدو څخه وروسته حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې تاسو د خپلو ښځو سره کله چې هغه حائضه وي ماسوا د صحبت څخه نور څه چې غواړئ تاسو یي کولي شئ.

**حل اللغات:** ① لَمْ يُجَامِعُوهُنَّ: أَيْ: لَمْ يُسَاكِنُوهُنَّ: یعنی کورکښې به ورسره نه اوسیدل. ② الْمَحِيضِ: أَيْ: حُكْمِ زَمَانِ الْحَيْضِ: دلته دمحیض نه مراد د حیض موده ده. ③ النِّكَاحِ: أَيْ: الْجِمَاعَ: دلته دنکاح نه مراد جماع اوصحبت کول دی. ④ يَدَعُ: أَيْ يَتْرُكَ: پریږدی ئي، ⑤ فَاسْتَقْبَلَتْهُمَا: أَيْ: اسْتَقْبَلَ الرَّجُلَيْنِ شَخْصٌ: دوارو ته مخې له یو سړي راغې. ⑥ هَدِيَّةٌ: هدیه، تحفه. ⑦ آثَارِهِمَا: أَيْ: عَقِبَهُمَا: یعنی هغوی پسې، ⑧ لَمْ يَجِدْ عَلَيْهِمَا: أَيْ: لَمْ يَغْضَبْ: یعنی نبی علیه السلام په هغوی باندې څه غصه ښکاره نه کړه.

[۱] اخرجه مسلم کتاب الحیض باب جواز غسل الحائض رأس زوجها وترجیله وطهارة سؤرها والاتکاء فی حجرها وقراءة القرآن فیه(رقم-۱۶ - (۳۰۲) وابوداود کتاب الطهارة/باب فی مؤاکلة الحائض ومجامعتها(رقم-۲۵۸) والترمذی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة البقرة (رقم-۲۹۷۷) والنسائی کتاب الطهارة/باب تأویل قول الله عز وجل: {ویسالونک عن المحیض} [البقرة: ۲۲۲] (رقم-۲۸۸) والدارمی کتاب الطهارة/باب: مباشرة الحائض(رقم-۱۰۹۳) واحمد فی المسند:۱۳۲/۳

١ فَبَلَغَ ذٰلِكَ الْيَهُودَ. فَقَالُوا: ٢ مَا يُرِيدُ هٰذَا الرَّجُلُ أَنْ يَدَعَ مِنْ أَمْرِنَا شَيْئًا إِلَّا خَالَفَنَا فِيهِ. ٣ فَجَاءَ أُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ وَعَبَّادُ بْنُ بِشْرٍ، فَقَالَا: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّ الْيَهُودَ تَقُولُ كَذَا وَكَذَا، أَفَلَا نُجَامِعُهُنَّ؟ ٤ فَتَغَيَّرَ وَجْهُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنْ قَدْ وَجَدَ عَلَيْهِمَا، ٥ فَخَرَجَا، فَاسْتَقْبَلَتْهُمَا هَدِيَّةٌ مِنْ لَبَنٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ٦ فَأَرْسَلَ فِي آثَارِهِمَا فَسَقَاهُمَا، فَعَرَفَا أَنَّهُ لَمْ يَجِدْ عَلَيْهِمَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ دا خبره چې يهوديانو ته ورسيده نو هغوئ اوويل ٢ دا سړي يعني نبي كريم ﷺ زمونږ كوم ديني امر تـه چې متوجه شي پـه هغې كې ضرور زمونږ مخالفت كوي ٣ (د يهوديانو ددي خبري اوريدو سره دوه صحابه) اسيد بن حضير رضي الله عنه او عباد بـن بشـر رضي الله عنه پـه دربار رسالت كې حاضر شو او عرض يي وكړو چې يارسول ﷺ يهود داسي داسي وايي (يعني هغوئ د يهودو كلام نقل كړو او بيا يي دا اوويل چې) كه اجازت وي نو د يهودو د مخالفت د پاره مونږ د حيض په حالت كښې جماع او كور والي ونكړو؟ ٤ (په دي اوريدو سره) د حضور ﷺ د مخ مبارك رنګ متغير شو او زمونږ دا ګمان شو چې حضور ﷺ د هغه دواړو ځخه غصه (خفا) شو ٥ نو هغه دواړه ووتل، د هغوي په وتلو سره حضور ﷺ تـه د يو خاي ځخه په تحفه كې شيدي (پۍ) راغلي ٦ حضور ﷺ په هغه دواړو پسي ځوك وليږل كوم وخت چې هغه راغلل نو حضور ﷺ په هغوئ شيدي (پۍ) وځښلي (چې هغوئ تـه د حضور ﷺ د لطف وكرم احساس وشي) نو د شيدو ځكلو ځخه وروسته هغوي پوهه شو چې حضور ﷺ زمونږ ځخه ناراضه نه دي. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: أَفَلَا نُجَامِعُهُنَّ؟:**

**د مذكوره جملې دوه مطلبونه:**

① د دې يو مطلب دا دې چې آيا مونږ دوی ته استوګنه وغيره جدانه كړو دې دپاره چه دَ يهودوسره موافقت راشی دحديث په ترجمه كښې هم دغه مطلب مراد اخستې شوې دې.

② دويم مطلب دادې چه آيا مونږ دغه حائضه ښځوسره جماع اونه كړو دې دپاره چه يهوديان اوسوزی. علماؤ دويم مطلب ته راجح وئيلې دې او هم په دې وجه حضورپاك خفه شوې وو.

دحيض متعلق ډيربحثونه دی او په اكثركښې اختلاف دې:

**اول بحث د حيض اقله موده:**

**په اقله موده د حيض كښې مذاهب:**

په اقله موده دحيض كښې اختلاف دې ابن المنذر فرمائی ① دفقهاؤ ديوجماعت په نزد اقل مدت دحيض ځه تحديد نشته بلكه قطره واحده اوسيلان دفعه واحده هم حيض دې دا مسلك دامام مالك رحمه الله دې ② دجمهورو په نزد اقله موده دحيض مقرر ده.

**د حیض د مودې په تحدید کښې مذاهب:**

بیاد دې په تحدید کښې هم اختلاف دې .

① د امام شافعی رحمه الله او دامام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد اقله موده د حیض یوم ولیلة ده

② دامام ابویوسف رحمه الله په نیز ((یومان واکثر الیوم الثالث)) دې .

③ د طرفین په نزد ((ثلاثة ایام ولیالیها اقل)) مدت دې .

**دویم بحث: د حیض اکثره موده:**

**د حیض په اکثره موده کښې مذاهب:**

په اکثره موده دحیض کښې هم اختلاف دې

① داحنافو په نزد ((عشرة ایام ولیالیها))

② دامام شافعی رحمه الله په نزد ((خمسة عشر یومًا)) دې

③ دامام مالک رحمه الله په نزد ((سبعة عشر یومًا)) دې

④ اوامام احمد رحمه الله نه ((مثل المذاهب الثلاثة)) درې روایتونه دی . خرقی دپنځلسو او ابن قدامه دلسو روایت ته ترجیح ورکړې ده

**دریم بحث: اقل موده د طهر:**

په اقله موده دطهرکښې هم اختلاف دې .علامه نووی رحمه الله فرمائی چه:

① د بعضې علماء په نزد ددې څه تحدید نشته دایوروایت دامام مالک رحمه الله دې ددوئ بل روایت دپنځو ورځو دې . دریم دلسو او څلورم دپنځلسو ورځو دې

② د امام ابوحنیفه رحمه الله او دامام شافعی رحمه الله په نیز اقله موده د طهر پنځلس ورځې دې . دایوروایت دامام احمد رحمه الله هم دې . دده یوبل روایت ددیارلسو ورځو دې .دا ابن قدامه اختیار کړې دې .

په هرحال دجمهورو په نیزاقله موده دطهر پنځلس ورځې دې علامه نووی رحمه الله فرمائی په اکثرمدت دطهر کښې په عدم تحدید باندې اجماع ده .

**په اقل او اکثرې مودې د حیض او طهر کښې د اختلاف سبب:** علامه ابن رشد ، ابن قدامه اوعلامه نووی رحمه الله لیکی چه په مدت دحیض اوطهرکښې دا اختلاف په دې بناء دې چه په روایاتوکښې دې باره کښې څه صراحت نشته دې وجه نه فقهاؤ دخپل خپل ماحول دتجربې مشاهدې اودعرف په لحاظ دامدتونه مقررکړې دی . علامه

**د اول فریق دلیل:** په اکثره موده د حیض اواقله موده دحیض کښې دامام شافعی رحمه الله دپاره هم یوروایت مرفوع پیش کیږی . ((تمکث إحداکن شطر عمرها لا تصلی))[1]

[1]) التلخیص الحبیر ۱۱۱/۱ ۲۱ رقم الحدیث ۲۲۲ لکن فیها شطر دهرها مکان شطر عمرها ۱۲ مرتب عفی عنه ) _

**د اول فریق د دلیل جوابونه:**

① ابن الجوزی رحمه الله ددې حدیث په باره کښې فرمائی ((هذا حدیث لایعرف)) بیهقی فرمائی ((لم نجده)) پخپله علامه نووی شافعی رحمه الله په المجموع کښې فرمائی ((حدیث باطل لایعرف))
② که بالفرض داصحیح هم شی نو بیاهم دشطردلفظ اطلاق ځنګه په نصف کیږی . داسې مطلق حصه هم کیږی.اګرچه هغه دنصف نه کم وی . دلته دا معنی مراد اخستل ضروری دی. ځکه چه که دامام شافعی رحمه الله د مسلك مطابق پنځلس ورځې حیض شمار شی . نو بیاهم مجموعی عمر کښې دحیض حصه نصف نه شی کیدې چه قبل البلوغ او بعدالایاس تمامه زمانه بغیردحیض ده . ددې وجه نه امام نووی رحمه الله په خپل مسلك استدلال بالحدیث پریښې دې اوپه استدلال بالقیاس ئې عمل کړې دې . چه تجربه کښې دا خبره راغلې ده چه ډیرو ښځو ته دلسوورځونه زیاته وینه راځی اوابوحنیفه رحمه الله دا زیادت په استحاضه کښې شمارلې دې د دې کلام نه دامعلومه شوله چه په مدت د حیض په مسئله کښې داحنافواستدلال ضعیف روایات دی اود حضرات شوافع قیاس نه نو اول خو خبره داده چه دنورومؤیداتودوجه په احادیثوکښې یوقسم قوت راغلو بل د قیاس په مقابله کښې په هرحال داروایات مقدم دی. بالخصوص د شرعی تحدیداتو په باب کښې په قیاس عمل کول داحادیث ضعیفویاندې دعمل په مقابله کښې خطرناك دې.

**د دویم فریق دلیل:** زیلعی رحمه الله فرمائی چه موده دحیض او دطهرکښې داحنافو استدلال د حضرت عائشه رضی الله عنها معاذ بن جبل رضی الله عنه ، حضرت انس رضی الله عنه واثله بن اسقع رضی الله عنه او دحضرت امامه دروایاتو نه دې دا ټول روایات اګر چه ضعیف دی . خو تعدد طرق په وجه دا په درجه د حسن کښې راځی ([1])

**څلورم بحث: د حیض د وینو بحث:**

**د حیض د وینې شپږ قسمونه:** صاحب هدایه فرمائی.الوان دحیض شپږ دی .
① سواد ، ② حمرة ، ③ صفرة ④ کدرة ⑤ حضرة ⑥ تربة. بهرحال

**د حیض په وینه کښې مذاهب:**

دینه معلومه شوله چه ترڅو بیاض خالص نه وی راغلې ترهغه به هره وینه حیض وی
① دا مام شافعی رحمه الله په نزد صرف توراو سور رنګ دوینې حیض دې . باقی څلور اړه رنګونه د استحاضه رنګ دې هم دا مسلك دحنابله هم دې
② امام مالك رحمه الله اصفر او اکدر هم حیض ګرځوی . علامه نووی رحمه الله فرمائی.چه صفرة اوکدرة په ایام حیض کښې حیض دې صاحب دهدایه فرمائی چه دامام ابویوسف رحمه الله په نیز که داپه اخر دحیض کښې خارجیږی . نو حیض کښې به شمارلې کیږی . ګنې نه .

[1] انظرالزیلعی ۱۹۱۱۱ ومابعدها ۱۲) _

③ دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په دې شپږو رنګونو کښې کوم رنګ وینه هم راشی دا حیض دې په دې شرط چه ایام حیض کښې راشی . مګردا چه سپین رطوبت خارجیدل شروع شی .

**داول اودویم فریق دلیل:** دَ حضرت فاطمه بنت ابی حبیش رضی الله عنها روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دا الفاظ راغلی دی "فانه دم اسود یعرف" یعنی دَ حیض وینه توره وی کومه چه پیژندلې شی دَدې تمیزښځه کولې شی. لهذا دَ تمیز بالالوان اعتبارشته دې اوممیزه یومنلې شوې حقیقت دې.

**داول او دویم فریق د دلیل درې جوابونه:** ① دَالوان اختلاف اغذیه، امکنه او ازمنه دَ وجې نه راځی چنانچه دَغوښې خوړونکې ښځې حیض وینه توره وی اودَ سبزئی زیات استعمالونکې دَ وینې په رنګ کښې دَ سبزئی رنګ غالب وی اودګرمئی اویخنئی مقامات او ښاریو او آب وهوا اثر لازمی توګه باندې په انسانی طبیعت باندې وی. لهذا دَ وینې رنګ دَحیض اواستحاضه دَ وینې دَپاره معیار اوضابطه نه شی جوړولې. بلکه عادت یومضبوط طبعی نظام دې هم دادَ معیارپه توګه قبلول پکاردی.

② بیهقی رحمه الله ونیلی چه دا الفاظ مضطرب دی. ابن ابی حاتم رحمه الله ونیلی دی چه مادَ خپل پلارنه دَ دغه الفاظو باره کښې تپوس اوکړو نوهغوی اوونیل دا روایت منکردې. یحي بن سعید قطان رحمه الله اوونیل چه دامنقطع دې. طحاوی رحمه الله دا روایت شاذ ګرځولې دې

③ دَاحادیثو زیات تر اشارې دَعادت طرف ته دی صرف دا یوه جمله کومه چه پورته ذکرشوې ده په دې کښې دَ الوان ذکر دې خودا روایت قابل دَاستدلال نه دې خصوصاً کله چه دَدې په مقابله کښې نور احادیث هم دی.

**د دریم فریق دلیل:** دامام ابوحنیفه دلیل هغه روایت دې چه کوم مؤطائینو کښې موصولاً او بخاری شریف کښې تعلیقًا بصیغة الجزم روایت دې ((عن علقمه بن ابی علقمه عن أمه مولاة عائشه ام المؤمنین رضی الله عنها انها قالت كان النساء يبعثن الى عائشه بالدرجة فيها الكرسف فيه الصفرة من دم الحيض ليسألنها عن الصلاة فتقول لهن لاتعجلن حتى ترين القصة البيضاء تريد بذلك الطهر من الحيض ، رواه ایضاعبدالرزاق وابن ابی شیبه واللفظة لفظ مالك)) ([1])

## پنځم بحث : حائضې سره د تعلق ساتلو بحث :

### حائضې سره د تعلق ساتلو په باره کښې درې ډلې :

① یهودو ښځه په حیض کښې نجس ګڼړله او دَ ځان نه ئې جدا کړه چه په کورکښې اوسیدل هغې سره ملاویدل، دَهغې دَلاس خوراك پخول ټول هرڅه ئې ناجائزاوممنوع

[1]) موطاء ۱\۴۳ طهرالحائض ۱۲) _

اوګرخول لکه چه دَ ایام په موده کښې به ئې ښځوسره سماجی پرې کون کولو.

② عیسایانو هرڅه جائزګرځولې وو. تردې چه جماع کول ئې هم جائزکړی وو اودَ حیض نه ئې انکاراوکړو.

③ اسلام خومعتدل اودَ افراط اوتفریط نه پاك مذهب دې په دې وجه اسلام مسلمانانوته دَ اعتدال لار اوخودله چه مه سماجی بائیکاټ کوئی مه جماع کوئی. حضورپاك په خپل قول اوفعل سره دَامت مخې ته یومعیارکیخودودکوم تفصیل چه فقهاء کراموداسې بیان کړې دې.

**د حائضې سره دتعلق ساتلو درې صورتونه:** دَحیض په حالت کښې ښځوسره دَ یوځائې کیدو اوتعلق ساتلو یوځوصورتونه دي:

① دَ حیض په حالت کښې خپله ښځه ښکلول اومینه کول، مواکلت اوملامست دَټولوپه نیزجائزدی په اهل اسلام کښې دَ چاپه دې کښې اختلاف نشته دې

② حالت حیض کښې ښځې سره جماع اوکوروالې کول اجماعًا حرام دې.

③ حالت حیض کښې استمتاع بماتحت الازار کولې شی که نه، په دې کښې اختلاف دې.

**د استمتاع من الحائض بما تحت الازار په حکم کښې مذاهب:**

① دَ امام احمد بن حنبل رحمه الله امام محمد رحمه الله اوسفیان ثوری رحمه الله په نیز استمتاع جائزده په دې شرط چه دَ جماع نه سرې بچ پاتې شی اوموضع دم یعنی دَ وینې دَ ځائی نه ځان اوساتی.

② دَ جمهور ائمه په نیز استمتاع ماتحت الازار ناجائزده.

**داول فریق دلیل:** دَحضرت انس رضي الله عنه روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دا لفاظ راغلی دی "اصنعوکل شیٔ الاالنکاح" نو تحت الازاراستمتاع جائزشوه ځکه چه دَ جماع نه علاوه دَ هرڅه کولواجازت ورکړې شوې دې.

**داول فریق د لیل جوابونه:** ① د "اصنعواکل شیٔ الاالنکاح" مطلب دَ یهودوغلوماتول ووچه سماجی پرې کون به ئې کولو نو حضور پاك ﷺ اوفرمائیل "اصنعواکل شیٔ" یعنی بالکل بائیکاټ مه کوئی بلکه ښکلول اوتعلق ساتئی لیکن جماع مه کوئی.

② دې نه جماع او دواعی دَ جماع دواړونفی اونهی مراد ده او تحت الازار چه کوم استمتاع ده هغه خو خالص دواعی دَ جماع دی لکه څنګه چه جماع ممنوع دی دغه شان دواعی هم ممنوع ده. بهرحال فوق الازار په صریح حدیث کښې موجوددې او تحت الازاراستمتاع کول یقینًا داعی جماع دې نوداهم ناجائزدی. دَ نامه لاندې او دَ زنګون دپاسه دغه مینځمې حصې ته ماتحت الازار وائی اودَدې نه علاوه ته فوق الازار وائی ځکه چه چه دَ شپې استعمالونکی دَ ازاربندهم دغه حدوددی.

**د دویم فریق دلائل:** ① دَحضرت عائشه رضي الله عنها روایت دې کوم چه فصل ثالث کښې دې

دَ هغې الفاظ دادي: "فلم تقرب رسول الله ﷺ ولم تدن منه"

④ په دې فصل کښې دَ حضرت زیدبن اسلم ﷺ حدیث هم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه داالفاظ دي: "ثم شانك بأعلاها" یعنی دَ ازاربند دَپاسه فایده اوچتونی لاندې نه.

⑤ دَحضرت معاذ ﷺ روایت هم دوی مستدل دې په کوم کښې چه دا الفاظ دي: "قال مافوق الازار" داحدیث په اصل کښې دَ سائل دَسوال جواب کښې دې دکوم اندازِ جواب چه هیرولې نه شی.

## [۵۳۶] د حائضې سره د اوده کیدو جواز

۵۳۶–()[۲] ①وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ②«كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ، وَكِلَانَا جُنُبٌ، ③وَكَانَ يَأْمُرُنِي، فَأَتَّزِرُ، فَيُبَاشِرُنِي وَأَنَا حَائِضٌ. ④وَكَانَ يُخْرِجُ رَأْسَهُ إِلَيَّ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ، فَأَغْسِلُهُ، وَأَنَا حَائِضٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: ① بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي ② چې ذه او نبي کريم ﷺ به د جنابت په حالت کې د يو لوښي څخه لمبيدو ③ او په بعضو وختونو کې چې زه به د حيض په حالت کې وم نو حضور ﷺ به ماته تهبند (لنګ) ترلو د پاره ارشاد وفرمايلو چې ما به تهبند (لنګ) وترلو نو حضور ﷺ به زما سره د بسترې د پاسه خپل بدن لګولو سره سملاستلو ④ او (بعضې وخت به) حضور ﷺ په اعتکاف کې وو نو خپل سر مبارك به يې (د مسجد څخه) بهر راويستو نو ما به دخپلو ورځو (يعنې د حيض په حالت) کې دحضور ﷺ سر مبارك وينځلو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① فَأَتَّزِرُ: فَأَعْقِدُ الْإِزَارَ فِي وَسَطِي: نو ما به خپل لنګ په منځ باندې ترلو. ② فَيُبَاشِرُنِي: أَيْ: يُضَاجِعُنِي: څملاستلو به ماسره، يعنې خپل بدن به ئې زما بدن سره لګولو.

## [۵۳۷] د حائضې سره د خوراک څکاک کولو جواز

۵۳۷–()[۳] ①وَعَنْهَا قَالَتْ: «كُنْتُ أَشْرَبُ وَأَنَا حَائِضٌ، ②ثُمَّ أُنَاوِلُهُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَيَضَعُ فَاهُ عَلَى مَوْضِعِ فِيَّ ③فَيَشْرَبُ وَأَتَعَرَّقُ الْعَرْقَ، وَأَنَا حَائِضٌ، ④ثُمَّ أُنَاوِلُهُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَضَعُ فَاهُ عَلَى مَوْضِعِ فِيَّ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

(۱) اخرجه البخاری کتاب الحیض باب مباشرة الحائض (رقم-۲۹۹، ۳۰۰، ۳۰۱) ومسلم کتاب الحیض باب الاضطجاع مع الحائض فی لحاف واحد(رقم-۵ - (۲۹۶) والنسائی کتاب الغسل والتیمم/باب اغتسال الرجل والمرأة من نسائه من إناء واحد (رقم-۴۱۱)

(۲) اخرجه مسلم کتاب الحیض باب جواز غسل الحائض رأس زوجها وترجیله وطهارة سؤرها والاتکاء فی حجرها وقراءة القرآن فیه(رقم-۱۴ - (۳۰۰) وابوداود کتاب الطهارة/باب فی مؤاکلة الحائض ومجامعتها(رقم-۲۵۹) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها باب ما جاء فی مؤاکلة الحائض وسؤرها(رقم-۶۴۳) واحمد فی المسند:-۶/۱۲۷ والنسائی کتاب الطهارة/باب الانتفاع بفضل الحائض (رقم-۲۸۲)

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي چې ما به د حيض په ورځو کې اوبه وڅکلې [۲] (هغه لوښي) به مې بيا نبي کريم ﷺ ته ور کولو حضور ﷺ به د هغه ځايي څخه چرته چې به زما خله لګيدلي وه [۳] خله لګولو سره اوبه څکلي او کله به ما د حيض په حالت کې د هډوکو څخه غوښه شوکولو سره خوړله [۴] بيا به هغه هډوکي ما حضور ﷺ ته ور کولو حضور ﷺ به په هغه ځاي خله مبارکه کيښودله غوښه به يي شوکوله چرته چې به ما خکه لګولو سره شوکولي وه. (مسلم)

**حل اللغات:** ① أُنَاوِلُهُ: أَيْ: أُعْطِيهِ: ما به ورکولو نبی عليه السلام ته. ② أَتَعَرَّقُ الْعَرْقَ: أَيْ: آخُذُ اللَّحْمَ مِنَ الْعَرْقِ بِأَسْنَانِي: يعنی دهډوکی نه به مې غوښه په غاښونو شوکوله، عَرْق هغه هډوکی ته وائی چه څه غوښه ترې اوشوکولې شی اوڅه ورپورې پاتې شی.

## [۵۳۸] د حائضې په غيږ کښې د قرآن پاک د تلاوت کولو جواز

۵۳۸-(۱)[۴] [۱] وَعَنْهَا قَالَتْ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَّكِئُ فِي حِجْرِي وَأَنَا حَائِضٌ، [۳] ثُمَّ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها روايت کوي [۲] چې زه به د حيض په ورځو کې وم نبي کريم ﷺ به زما په غيږ کې تکيه وهله کيناستلو به [۳] او قرآن کريم به يي ويلو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① يَتَّكِئُ: أَيْ: يَسْتَنِدُ: تکيه يعنی ډډه به ئې وهلې وه.

## [۵۳۹] د حائضې د جمات څخه يوڅيز د راخستلو جواز

۵۳۹-(۲)[۵] [۱] وَعَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «نَاوِلِينِي الْخُمْرَةَ مِنَ الْمَسْجِدِ. فَقُلْتُ: إِنِّي حَائِضٌ. [۳] فَقَالَ: إِنَّ حَيْضَتَكِ لَيْسَتْ فِي يَدِكِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها وايي چه نبي کريم ﷺ وفرمايل [۲] د مسجد څخه کپړه (جانماز) پورته کولو سره ماته راکړه [يعني د مسجد څخه بهر ودريدو سره لاس دننه کړه او

(۱) اخرجه بخاری كتاب الحيض باب قراءة الرجل فی حجر امرأته وهی حائض(رقم-۲۹۷) ومسلم كتاب الحيض باب جواز غسل الحائض رأس زوجها وترجيله وطهارة سؤرها والاتكاء فی حجرها وقراءة القرآن فيه(رقم-۱۵ - (۳۰۱) وابوداود كتاب الطهارة/باب فی مؤاكلة الحائض ومجامعتها(رقم-۲۶۰) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب الحائض تتناول الشیء من المسجد(رقم-۶۳۴) والنسائی باب فی الذی يقرأ القرآن ورأسه فی حجر امرأته وهی حائض (رقم-۲۷٤)

(۲) اخرجه مسلم كتاب الحيض باب جواز غسل الحائض رأس زوجها وترجيله وطهارة سؤرها والاتكاء فی حجرها وقراءة القرآن فيه(رقم-۱۱ - (۲۹۸) وابوداود كتاب الطهارة/باب فی الحائض تناول من المسجد(رقم-۲۶۱) و ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب الحائض تتناول الشیء من المسجد(رقم-۶۳۲) والترمذی كتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الحائض تتناول الشیء من المسجد(رقم-۱۳٤) والنسائی كتاب الطهارة/باب استخدام الحائض (رقم-۲۷۱) والدارمی كتاب الطهارة/باب الحائض تبسط الخمرة (رقم-۷۹۸)و اخرجه احمد فی المسند:-۴۵/۶

جانماز پورته کولو سره راوړه! [۳] ما عرض وکړو چې زه خو په حيض کې يم (دې وجه په مسجد کښې ځنګه لاس دننه کولي شم) حضور ﷺ وفرمايل ستا په لاس کې خو حيض نشته دي (مسلم)

**حل اللغات:** ① نَاوِلِينِي : أَيْ: أَعْطِينِي: راکړه ماته، ② الْخُمْرَةَ: وَهِيَ سَجَّادَةٌ صَغِيرَةٌ تُعْمَلُ مِنْ سَعَفِ النَّخْلِ: خمره هغه پوزکی يا جانماز ته وائی چه د کجورو د پانړو نه جوړشوې وی، اوپه تارونو سره ښانسته کړې شوې وی او دې سره چونکه دسجدې ځاێ يعنی زمکه پټه کړې شوی وی په دې وجه ورته د خمره نوم ورکړې شو.

**تسهيلات:**

**ديوې قاعدې استنباط:** دَدې حديث نه داضابطه راوځی چه دَهرسړی دَ قيام اومقام اومکان اعتباردَ هغه په قدمونو او خپو دی په کوم چه دَهغه پوره بدن متوازن ولاړدې اوس که سړې په خپوباندې دَ جمات نه بهرولاړدې اودَ بدن بوج په خپوباندې دې نوداسړې به دَجمات نه بهرګنړلې شی که دَهغه لاسونه يا سروغيره په جمات کښې ولې نه وی داسړې دَ جمات نه خارج دې.

**په قاعده باندې متفرعات:**

① که جنبی سړې يا حائضه ښځه داسې اوکړی نودَې ګنجائش شته ② که په جمات کښې دَنه داخليدوڅوك سړې قسم اوخوری اوبياداسې عمل اوکړی نوهغه به حانث نه شی
③ دغه شان که په جمات کښې دننه څوك ولاړدې اوسرئی بهرکړو يا لاس ئی بهرکړو نودَې اعتبار نشته اعتباردَخپواو په هغې باندې دَ قيام دې.

**ددين اسلام اعتدال:** پورتنې حديث اوراتلونکې حديث امت ته دَ حائضه ښځو سره دَتعلق ساتلو تعليم ورکوی اودَجماع نه ئی منع کوی په يهوديانو او نصاریٰ باندې دې دَالله تعالی لعنت وی.

**[۵۵۵] د حائضې د ټول بدن عدم نجاست**

۵۵۵ – ()[۶] [۱] وَعَنْ مَيْمُونَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي مِرْطٍ، [۳] بَعْضُهُ عَلَيَّ وَبَعْضُهُ عَلَيْهِ، وَأَنَا حَائِضٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ام المؤمنين بي بي ميمونه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې نبي کريم ﷺ به په يو داسې څادر کې مونځ کولو [۳] چې د هغې او څه حصه به په ما پرته وه څه حصه به په حضور ﷺ پرته وه او زه به د حيض په حالت کې وم. (بخاري مسلم)

(۱) اخرجه ابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب فی الصلاة فی ثوب الحائض(رقم-۶۵۳) واحمد فی المسند:۶/۳۳۰ و بخاری باب إذا أصاب ثوب المصلی امرأته إذا سجد(رقم-۳۷۹) ومسلم باب الاعتراض بين يدی المصلی(رقم-۲۷۳ - ۵۱۳)

**حل اللغات:** ① مِرْطٍ: كِسَاءٌ مِنْ صُوفٍ أَوْ خَزٍّ يُؤْتَزَرُ بِهِ: د ورېئ يا ريښمو څه جوړ شوې څادر ته وائي چې لنګ به ترې وهلې شو.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۵] حائضې سره د شا د طرفه د جماع کولو حرمت**

۵۵ - ()[۷] [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «مَنْ أَتَى حَائِضًا، أَوِ امْرَأَةً فِي دُبُرِهَا، [۳] أَوْ كَاهِنًا، فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَابْنُ مَاجَهْ. وَالدَّارِمِيُّ [۴] وَفِي رِوَايَتِهِمَا: " فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ ; فَقَدْ كَفَرَ ". [۵] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: لَا نَعْرِفُ هَذَا الْحَدِيثَ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ حَكِيمٍ الْأَثْرَمِ عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې د حیض په ورځو کې د ښځې سره صحبت وکړي یا د ښځې سره د وروسته طرف نه بد فعلي وکړي [۳] یا یو کاهن ته (د غیب د خبرو پوښتلو د پاره) ورشي نو هغه سړي (لکه چې) په محمد ﷺ باندې د نازل شوې دین کفر (انکار) وکړو، ترمذي ابن ماجه دارمي، [۴] ابن ماجه او د دارمي په روایتونو کې دا الفاظ هم دي چې د کاهن د خبرو تصدیق یې وکړو نو هغه کافر دي [۵] او امام ترمذي رحمه الله فرمایلي دي چه مونږ ته دا حدیث معلوم نه دي ماسوا د دې سند څخه چې دا حکیم اثرم د ابو تمیمه څخه نقل کوي او هغه د ابوهریره رضی الله عنه څخه.

**حل اللغات:** ① أَتَى حَائِضًا: أَيْ: جَامَعَهَا: یعنی د حائضې ښځې سره د حیض په حالت کښې جماع اوکړی ② كَاهِنًا: د غیب خبر ورکونکی ته وائی. ③ فَصَدَّقَهُ: او هغه ئې رښتیا اوګڼړلو.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ أَتَى حَائِضًا:

**په حالت حیض کښې په جماع د کفر حکم لګولو تاویل:** یعنی که د حیض په حالت کښې جماع حلاله ګڼړی نو هغه کافر دي. ځکه چې دَ دې حرمت په نص قطعی سره ثابت دي. اودا دصحت دپاره هم تباهی ده.

**قوله:** فِي دُبُرِهَا:

**په دبر کښې په جماع د کفر حکم لګولو تاویل:** ددې نه مراد ښځې سره بدفعلی ده. او څوك چې دا حلال ګڼړی هغه کافر دي.

**دروافض په نیزپه دبر کښې د جماع کولو جواز:** ځینې شیعه امامیه دې ته جائز وائی. څه

[۱] ( اخرجه الترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة إتیان الحائض(رقم-۱۳۵) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/باب النهی عن إتیان الحائض(رقم-۶۳۹) وابوداود باب فی الکاهن (رقم-۳۹۰۴) واحمد فی المسند:-۴۰۸/۲ والدارمی کتاب الطهارة/باب من أتی امرأته فی دبرها (رقم-۱۱۷۶)

خلق د قرآن پاك دې آيت مبارك ﴿فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ﴾ په دهوكه كښې اچولي دي. دا رنګ هغه روايت هم خلق په دهوكه كښې اچولي دي كوم كښې چې د ﴿أَنَّى شِئْتُمْ﴾ صورت بيان شوي دې چې د دبر طرف نه قبل كښې جماع كول دي. نو جماع خو په هر حال كښې په قبل كښې ده. د هيڅ طرف پابندي او تعين نشته دې.

**ابن عمر ته غلط نسبت:** روافض دا قبيح فعل حضرت ابن عمرؓ طرفته منسوب كوي. حالانكه دوئ ؓ اوفرمائلي دي چې آيا يو مسلمان د بدفعلۍ دا عمل كولې شي ؟

**قوله: أَوْ كَاهِنًا:**

**كاهن ته د ورتلو حرمت:** كاهن هغه څوك دې چې خلقو ته دغيبو خبرونه وركوي. كله كله يو جن ده ته يو خبر رااوړي. دا كاهن دې سره سل دروغ نور د خپل طرفنه را يوځائې كړي او دمستقبل پيشن ګوئي كوي. داهم حرام دي.

**قوله: فَقَدْ كَفَرَ:**

**دكفر په حكم كښې درې تاويلات:**

① دا كس دا حلال ګنړي نو دا كافرشو ،

② دكفر نه عملي كفر مراد دې، اعتقادي نه.

③ داحديث پاك په تشديد وتغليظ باندې محمول دې. ځكه چې دكبيره ګناه كوؤنكى د اهل سنت په نيز كافر نه دې.

**[۵۵۳] د حائضې په بدن د ما فوق الازار څخه د فائدې اخستلو جواز**

| |
|---|
| ۵۵۳–()[۸] ① وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قُلْتُ: ② «يَا رَسُولَ اللّٰهِ، مَا يَحِلُّ لِي مِنِ امْرَأَتِي وَهِيَ حَائِضٌ؟ ③ قَالَ: "مَا فَوْقَ الْإِزَارِ، وَالتَّعَفُّفُ عَنْ ذٰلِكَ أَفْضَلُ" ». رَوَاهُ رَزِينٌ. وَقَالَ مُحْيِي السُّنَّةِ: إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِقَوِيٍّ. |

**ترجمه:** ① معاذ ابن جبل ؓ وايي ما عرض وكړو ② چې يارسول الله ﷺ زما د ښځې د حيض په ورځو كې زما د پاره څه څه جائز دي؟ ③ رسول ﷺ وفرمايل هغه شي چې تر تهبند (لنګ) پورته وي او د دې څخه هم بچ كيدل ډير ښه دي، (رزين) او محي السنة رحمه الله فرمايي چې د دې حديث سند قوي نه دي.

**حل اللغات:** ① الْإِزَارُ: تهبند ، لنګ، ② التَّعَفُّفُ: أي التَّجَنُّبُ: ځان ساتل، بچ كيدل.

---

(۱) اخرجه ابوداود باب في المذى (رقم- فوق الازار)

**[۵۵۳] په حالت حيض کښې د جماع کولو کفاره**

۵۵۳-(۱)[۹] ①وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" «إِذَا وَقَعَ الرَّجُلُ بِأَهْلِهِ، وَهِيَ حَائِضٌ، ③فَلْيَتَصَدَّقْ بِنِصْفِ دِينَارٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړي چې د خپلې حائضې ښځې سره جماع وکړي ③ نو هغه ته نصف دينار صدقه کول پکار دي. (ترمذي، ابوداؤد، دارمي، ابن ماجه، نسائي)

**حل اللغات:** ② وَقَعَ الرَّجُلُ: سړي وربريوځي، يعنى جماع اوکړي، ③ فَلْيَتَصَدَّقْ: صدقه دې و رکړي.

**[۵۵۴] د حيض په حالت کښې د جماع کولو دوه قسمه کفاره**

۵۵۴-(۲)[۱۰] ①وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ②" «إِذَا كَانَ دَمًا أَحْمَرَ فَدِينَارٌ، ③وَإِذَا كَانَ دَمًا أَصْفَرَ فَنِصْفُ دِينَارٍ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د حيض په حالت کې که د وينې رنګ سور وي (او په دې حالت کې څوك صحبت وکړي) نو پوره دينار ③ او که د وينې رنګ زيړ وي نو نيم دينار صدقه کول لازم دي. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① دَمًا أَحْمَرَ: چه وينه سره وی، ددې نه مراد د حيض ابتدائی ورځې دی، ② دَمًا أَصْفَرَ: چه وينه زيړه وی، ددې نه مراد د حيض آخری ورځې دی.

## تسهيلات:

### قوله: إِذَا كَانَ دَمًا أَحْمَرَ:

### په دواړو صورتونو کښې د فرق وجوهات:

① چې کله وينه سره وی نو دا د حيض د شباب زمانه وی، داسې وخت کښې جماع کول جرم دې، نو پورا دينار به ورکوی ګنی نيم دينار به ورکوی.

② وينه په ابتداء د حيض کښې سره وی نو دداسې وينې په دوران کښې دجماع مطلب دا شو چې اوس اوس ښځه حائضه شوې ده. ددې نه لږ مخکښې ور سره خاوند جماع کوله. او لا يوه ورځ هم نه ده تيره شوې چې خاوند بې قاعدګی او بې صبری کوی نو په دې جرمانه

---

(۱) اخرجه الترمذی كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية إتيان الحائض(رقم-۱۳۶) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/بباب فی كفارة من أتى حائضا (رقم-۶۴۰) واحمد فی المسند:۱/۲۷۲ والنسائی كتاب الطهارة/باب ما يجب على من أتى حليلته فی حال حيضتها بعد علمه بنهی الله عز وجل عن وطئها(رقم-۲۸۹) والدارمی كتاب الطهارة/باب من قال: عليه الكفارة (رقم-۱۱۵۱)

(۲) اخرجه الترمذی كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الكفارة فی ذلك(رقم-۱۳۷) والدارمی كتاب الطهارة/باب من قال: عليه الكفارة (رقم-۱۱۵۱)

هم زیاته ده ، یو دینار به ورکوی. لیکن کله چې وخت زیات اوشي نو وینه زیږه شی. لهذا اوس دا کس څه نه څه معذوره دې ځکه چې ډیرې ورځې ئې ناغه اوکړه نو ا وس په ده باندې نیم دینار جرمانه ده.

**دصدقې ورکولو فائده:** دصدقې حکم په دې وجه ورکړې شو چې " الصدقة تطفئ غضب الرب " نو صدقه به دا جرم کم کړی. هسې خود جمهورو په نیز د صدقې حکم استحبابی دې. اصل څیز استغفار دې. او ریښتونې توبه ویستل دی

**دجرمانې ورکولو حکمت:** ددې معمولی شان جرمانې لګولو مطلب دې کس ته یو احساس ورکول دی چې لږ شرم اوکړه چې د حیض په حالت کښې جماع کوې ، اوس ددې جرم تاوان ادا کړه ، کله چې یو ځل تاوان ادا کړی نو بیا به جرم ته نزدې نه ورځی. د جرمانې فرق د حیض د قوت او دضعف په بناء باندې دې.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۵۵۵] د استمتاع بما تحت الإزار حرمت

۵۵۵-()[۱۱] [۱] عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] إِنَّ «رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: مَا يَحِلُّ لِي مِنَ امْرَأَتِي وَهِيَ حَائِضٌ؟ [۳] فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَشُدُّ عَلَيْهَا إِزَارَهَا، [۴] ثُمَّ شَأْنَكَ بِأَعْلَاهَا» "رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالدَّارِمِيُّ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** [۱] زید بن اسلم رحمه الله هم فرمایي [۲] چې یو سړي د نبي کریم ﷺ څخه پوښتنه وکړه هر کله چې زما ښځه د حیض په ورځو کې وي نو د هغې نه به زما د پاره څه جائز وي؟ [۳] حضور ﷺ ورته وفرمایل د هغې په جسم تهبند (لنګ) ښه مضبوط اوتړه [۴] بیا د تهبند (لنګ) دپاسه ستا کار دي [یعني د نو (ناف) څخه پورته تالره اختلاط مباح دي او د نامه څخه لاندي حرام دي] مالك رحمه الله او دارمي رحمه الله داحدیث بطریق ارسال روایت کړي دي.

**حل اللغات:** ① تَشُدُّ: مضبوط اوتړه، ② إِزَارَهَا: تهبند ، لنګ دهغې، ③ شَأْنَكَ بِأَعْلَاهَا: یعنی جائز دی تا لره د لنګ دپاسه ځان مشغولول.

## [۵۵۶] د حیض په ورځو کښې د خاوند څخه احتیاط

۵۵۶-()[۱۲] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «كُنْتُ إِذَا حِضْتُ نَزَلْتُ عَنِ الْمِثَالِ عَلَى الْحَصِيرِ، [۳] فَلَمْ يَقْرَبْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَمْ نَدْنُ مِنْهُ حَتَّى تَطْهُرَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

(۱) اخرجه مالک کتاب الطهارة . باب ما یحل للرجل من امرأته وهی حائض(رقم-۹۳) والدارمی کتاب الطهارة/باب: مباشرة الحائض (رقم-۱۰۷۲)

(۲) اخرجه ابوداود کتاب الطهارة/باب فی الرجل یصیب منها ما دون الجماع(رقم-۲۷۱)

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي [۲] کله چې زه به د حيض په ورځو کې اوم نو د چارپايي څخه به بورئ (چټايي) ته راښکته شوم [۳] نو تر ځوپوري چې به مونږ (ازواج مطهرات) پاکې شوې نه وو نه به نبي کريم ﷺ مونږ ته نژدې راتلو او نه به مونږ نبي ﷺ ته نژدې کيدو (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① نَزَلْتُ: راکوزه به شوم، ② الْمِثَالِ: أي: الْفِرَاشِ: بستره، ③ الْحَصِيرِ: پوزکې، چټائی، ④ لَمْ نَدْنُ: نه به نژدې کيده هيڅ يوه بی بی نبی عليه السلام ته.

**تسهيلات:**

**د حيض په وجه بعضې ځيزونه ناجائز ګرځيدل:** حيض په ډيرو ځيزونو باندې اثرانداز کيږي اود ډيرو ځيزونو دَپاره مانع دې دا يوځو ځيزونه اوګورئی:

① حيض دَ طهارت دَپاره مانع دې ترکومې چه حيض دې طهارت نه شی راتلې.

② وجوب الصلوة دَپاره مانع دې. دغه شان صحة الصلوة دَپاره هم مانع دې.

③ دَ صحة الصوم نه هم مانع دې يعنی روژه سره دَدې چه واجب کيږي ليکن دَدې په دغه حالت کښې ساتل صحيح نه دی.

④ تلاوت قرآن او مس مصحف دَپاره مانع دې. ⑤ دخول مسجد نه مانع دې. ⑥ دَجماع نه مانع دې.

**په حديث باندې اشکال:** دا حديث دَ سابقه ډيرو احاديثو معارض دې په کوم کښې چه حائضې سره دَ تعلق ساتلو اوښکلولو ذکر دې؟

**د اشکال دوه جوابونه:**

① مونږ به دَ حضورپاك دَاجازت نه بغير نيزدې کيدوهم نه په اجازت سره به ښکلول کيدل.

② دا حديث منسوخ دې يا ضعيف دې اوداخبره هم په ذهن کښې ساتئی چه په دې حديث کښې يونسخې فلم يقرب ده مذکوره ترجمه هم دَدې نسخه مطابق ده.

# [۱۳/۱۸] بَابُ الْمُسْتَحَاضَةِ

## دَمستحاضه بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ستة عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① حكم المستحاضة المميزة: ۱، ۲۔

وهذا حديثان محمولان على المعتادة عند أبي حنيفة رحمه الله تعالى۔

② حكم المستحاضة المعتادة: ۳، ۵۔

③ عدم ترک الصلوة والصوم فی أيام الاستحاضة: ۱، ۲، ۳، ۴، ۵۔

④ وضوء المستحاضة لكل الصلوة : ۲، ۳، ۵، ۶۔

⑤ جمع المستحاضة الصلاتين بغسل واحد: ۵، ۶۔

**تسهیلات:**

**د مستحاضه په بحث کښې تصنیفات:** داستحاض د مسائلو د ګرانوالی د وجې په دې باندې په مختلفو زمانو کښې تصنیفات لیکلی شوی دی. مثلاً
① امام محمد رحمه الله مستقل کتاب لیکلې دې
② علامه نووی رحمه الله په دې باندې مستقل کتاب لیکلې دې،
③ امام طحاوی رحمه الله هم په دې باندې مستقل کتاب لیکلې دې.

**مستحاضې سره متعلق مباحث:** دَمستحاضه اواستحاضه متعلق یوځو ابحاث جدا جدالیکل ضروری دی دې نه پس به ټول احادیث دَ دغه بحثونوپه رڼړا کښې په پوهه کښې راتلل ډیر آسان شی.

### اول بحث: د استحاضه لغوی او اصطلاحی بحث:

**د استحاضه لغوی معنی:** استحاضه دَباب استفعال مصدردې. دَدې مجرد حیض دې کوم چه باب حاض یحیض حیضًا نه راځی. په باب استفعال کښې چه کوم سین اوتاء زائد راځی دې دَدې ډیرخواص دی دلته دَسین اوتاء زیاتوالې یاخودَ مبالغې دَپاره دې یعنی ډیرزیات وینې بهیدل او یا دا مصدر دَ تحول دَپاره راغلې دې یعنی دَ یوحقیقت نه وتلوسره شئ دویم حقیقت ته تلې دې مثلاً "استنوق الجمل ای تحول الجمل الی الناقة" یا اوونیلې شی "کان حمارًا فاستأن ای صار الحمار اتانا" یعنی اول خر وو اوس خره شوه دلته هم استحاض یعنی "صار الحيض شيئًا آخر أی تحول الحیض استحاضة" یا ونیلی شی "استحجر الطین ای صار الطین حجرا".

اوس دَ علمی لطيفې په توګه په دې خبره باندې ځان پوهه کړئ چه دَاستحاضه دَمادې اوصيغې نه چه تاسو کومه يوه صيغه هم استعمالوئ هغه به دَمجهول وی دَمعروف صيغه به نه راځي دغه شان به اسم فاعل نه استعماليږي بلکه دَدې دَپاره اسم فاعل ماتولوسره به اسم مفعول جوړولې شی. نو استحاضت المرأة نه شی وئيلې کيدې بلکه اُسْتُحِيْضَتِ الْمَرْأَةُ يا اُسْتُحِيْضَتِ الْمَرْأَةُ دَمجهول صيغه به لوستلې کيږی امرأة مستحيضة وئيل صحيح نه دی بلکه مستحاضة ضروری دی کوم چه اسم مفعول دې نو دا دَ استحاضه لغوی تحقيق وو.

**داستحاضه اصطلاحی تعريف:** دَ استحاضه اصطلاحی تعريف دادې چه دَ حيض اونفاس نه علاوه دَښځې دَ قبل نه چه کومه وينه راځي هغې ته استحاضه وئيلی شی.

**داستحاضه په وجه تسميه کښې اقوال:** دَاستحاضه وجه اودَدې دَ اسبابو باره کښې مختلف الفاظ راغلی دی

① يوځائې عرق انقطع الفاظ راغلی دی. ② بل ځائې انها ركضة الشيطان الفاظ دی

③ دَدې په تشريح کښې په يوحديث کښې داء عُرِضَ الفاظ دی.

④ حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه دا يورګ دې دَ کوم نوم چه "عاذل" دې

⑤ حضرت شاه انورشاه کشميری رحمه الله دې ته دَ فم رحم نوم ورکړې

**مستحاضه د معذورينو په فهرس کښې:** مستحاضه ښځې دَ اصحاب اعذار او دَ شرعی معذورينو په حکم کښې دې. لهذا دابه دَنورو معذورانو په شان مونځ کوی ټول عبادات به ادا کوی خاوند دې سره جماع کولې شی. لکه چه استحاضه سلسل البول، رعاف دائم، استطلاق البطن او انفلات الريح په شان دَ بيمارو نه يوه بيماری ده چه دَ هيڅ يوشرعی امردَپاره مانع نه ده.

**دويم بحث: د مستحاضه قسمونه:**

صاحب دبحرالرائق فرمائی چه دمستحاضه درې قسمونه دی .

① **مبتده** :يعنی هغه ښځه چه دهغې په ژوند کښې په ړومبی ځل حيض شو او بيا استمرار دم شو .

② **معتاده**:يعنی هغه ښځه چه هغې ته څه موده پورې په انضباط سره حيض راتللوبيا استمرار دم شو. نو په دې کښې د امام ابويوسف رحمه الله په نيز حيض په انضباط سره راتلل کافی دی.اودطرفينوپه نيز کم نه کم ددوه حيضونو انضباط ضروری دې . (1) فتوی په قول دطرفينو ده .

---

1) كمافی تبيين الحقائق ۷۳\۱۱ تحت شرح قول النسفی فمازادعلی عادتها استحاضة باب الحيض ۱۲ قال ابن عابدين والحاصل ان المبتداة اذا استمردمها فحيضها فی كل شهرعشرة وطهرها عشرون كما فی عامة الكتب بل نقل نوح افندی الاتفاق عليه .خلافا لما فی الامدادمن ان طهرها خمسة عشرة ردالمختار ۲۰۹\۱۱ باب الحيض تحت قوله وعم كلامه المبتداه)

③ **متحیره:** بیا متحیره په دري قسمه ده.
(ا) **متحیره بالعدد:** یعنی هغه ښځه چه هغې ته دایام حیض تعداد نه وی معلوم چه داپنځه ورځې وو. یا اووه یا بل څه عدد وو.
(ب) **متحیره بالوقت:** یعنی چه هغې ته حیض یاد نه وی چه هغه په اول د میاشتې کښې وو او که مینځ کښې او که په آخر د میاشت کښې وو.
(ج) **متحیره بهما:** یعنی هغه ښځه چې په یووخت متحیره بالعدد هم وی او متحیره بالوقت هم وی.
**د مبتده حکم:** دمبتده حکم په اتفاق سره دا دې چه ددې داکثرې مودې د حیض تیریدو پورې به د دې وینه د حیض شمارلې شی. دې موده کښې به مونځ او روژه نه ساتی. او د اکثرموده نه پس به غسل اوکړی اومونځ روژه به شروع کړی. بیاشل ورځې پس به په دوباره ایام حیض شمار شروع کړی.
**دمعتاده احکام:** دمعتاده حکم داحنافو په نزد دا دې. چه که دایام عادت نه پس هم وینه جاری پاتې شی. نودا به دلس ورځو پوره کولو پورې توقف اوکړی. که دلسونه وړاندې وینه بنده شوه. نو داپوره وینه به حیض شمارلې کیږی. او دابه ګڼرلې کیږی. چه ددې عادت بدل شو نو ددغه ورځو مونځ به واجب نه وی. اوکه دلسوورځونه پس هم وینه جاری وه. نود ایامودعادت نه زیاتی دټولو ایامو وینه به استحاضه اوګرځولې شی. اودایام عادت نه پس چه څومره مونځونه ئې پریښې دی. دهغې ټولو قضاء به لازم وی. البته دقضاء کولو ګناه به نه وی. په حدیث دباب کښې ((فإذا أقبلت الحيضة فدعي الصلوة وإذا أدبرت فاغسلي عنك الدم وصلي)) هم دا مطلب دې دارنګه په ((تدع الصلوة أيام أقرائها التي كانت تحيض فيها الخ)) سره هم ددې زیات وضاحت سره بیان شوې دې.
**د متحیره حکم:** په اجمالی توګه باندې دَدې په حکم باندې ځان پوهه کړئی. چه دا ښځه دې په خپلو مسائلوکښې سوچ فکر اوتحری اوکړی اوبیا دې په غالب ګمان باندې عمل اوکړی. دَفقهاء احناف دَتفصیلاتوهم دغه خلاصه ده. دَدې نه زیات دَدې په مسائلوکښې اخته کیدلوسره به صرف حیرانیدل کیږی دحیرانتیانه سوابه بل هیڅ نه حاصلیږی ځکه چه دغه متحیره ته ضاله هم وائی چه پخپله بې درکه شوې ده یا مُضِلّه ده چه عالم بې لارې کړی.

**دریم بحث: د احادیثو مصداق:**

**باب الاستحاضه** کښې دَمستحاضه باره کښې په احادیثوکښې مختلف احکام ذکردی. دکوشش اولتهون نه پته لګی چه دلته دري قسمه احکام ذکرشوی دی.
① دَمستحاضه دَپاره دَ حضورپاك ﷺ حکم دادې چه "تدع الصلوة أيام أقرائها" دَحیض په ورځوکښې دې دا ښځه مونځ پریږدی.

۲ "اذا اقبلت حيضتك فدعى الصلوة واذا ادبرت فاغسلى عنك الدم" په دې روايت كښې دَ حيض دَتلو راتلودَ وختونو طرف ته اشاره ده اودَ ښځې عمل نې خودلې دې. په كوم سره چه دَمعتاده طرف ته اشاره كيدې شي.

۳ "لتنظر عدد الليالى والايام التى كانت تحيضهن من الشهر" په دې روايت كښې هم اشاره ده چه ښځې له دَ خپلو ورځوښه حساب كول پكاردى.

**د مستحاضه مميزه په وجود كښې مذاهب:**

دَ ائمه احنافو په نيزدَدې ټولو روايتونوتعلق معتاده سره دې اوداحكام هم دَ معتاده بيان شوى دى.

۱ دَ شوافع په نيز په دويم روايت كښې دَمعتاده اومميزه دواړو احتمال دې اودريم روايت دَ مميزه دَپاره دې. دَاحنافو اوحنابله په نيزدَ مميزه وجودنشته دې مستحاضه يامعتاده ده يا مبتدأه ده اويامتحيره ده كومې ته چه ضالة اومضله هم وائى. خكه چه دابنځه يا دَ حقيقت پيژندلونه پخپله وركه شوې ده يافقيه گمراه كوى.

**څلورم بحث: دَمستحاضه دَاودس حكم:**

**د مستحاضه د اودس او غسل په باره كښې مختلف الفاظ:**

دَباب المستحاضه په رواياتوكښې دَمستحاضه ښځې دَ اودس احكام او دَ غسل د احكامو باره كښې مختلف قسم الفاظ راغلى دى مثلاً......

۱ "تتوضأ لكل صلوة" الفاظ

۲ "تغتسل لكل صلوة" الفاظ

۳ "تتوضأ لوقت كل صلوة" الفاظ

۴ "تجمع بين الصلوتين بغسل واحد" الفاظ دَمشكوة شريف دَ رواياتو مفهوم هم دغه شان راؤځى سره دَدې چه دَ پورته الفاظونه دَمشكوة الفاظ مختلف دى.

**دمستحاضه په خروج الدم سره د اودس په ماتيدو كښې مذاهب:**

دَانقضاء حيض نه پس په مستحاضه باندې غسل په اتفاق سره فرض دې.

۱ دَ اودس باره كښې امام مالك رحمه الله فرمائى دَ استحاضه په وينه اودس نه ماتيږى او په كومو روايتونو كښې چه دَ اودس حكم راغلې دې هغه دَ مالكيه په نيزپه استحباب باندې محمول دى.

۲ دَائمه ثلاثه په نيز دَ دم استحاضه خروج موجب للوضؤدې. مستحاضه به اودس كوى

**د مستحاضه د هرمونځ يا هر وخت دپاره په اودس كولو كښې مذاهب:**

بيادَدې حضراتو په خپل مينځ كښې دَاودس باره كښې اختلاف پيداشوې دې چه آيا دَ هر

مونځ دپاره به مستحاضه اودس کوی او که دَ هروخت دپارة به اودس کوی؟

① دَ شوافع په نیزیه مستحاضه باندې ضروری دی چه دَهرمانځه دپاره اودس اوکړی که په یووخت کښې ډیر مونځونه کوی نو دَ هرفرض مونځ دپاره به نوې اودس کوی. اودَ وخت مونځ سره چه کوم توابع سنت دی هغه په دغه اودس سره کولې شی لکه دَ فرض مونځ نه پس دَ مستحاضه اودس مات شو.

② دَ ائمه احناف اوحنابله په نیزمستحاضه دې دَ دَمونځ دَ وخت دپاره اودس کوی کله چه دَمانځه وخت اوځی نودَدې اودس به مات شی. ترکومې پورې چه وخت موجوددې دا مستحاضه په دغه وخت کښې دَهرقسم ډیر مونځونه کولې شی که نوافل وی که فرائض وی.

**داول فریق دلیل:** دوی دَ "تتوضأ لكل صلوة" او "تتوضأ عند كل صلوة" والا روایاتونه استدلال کړې دې اوحکم ئې لګولې دې چه مستحاضه کله هم مونځ کوی نوې اودس به کوی په ډیرو زیاتو احادیثوکښې دَ اودس کولوحکم راغلې دې. اودمشکوة په فصل ثانی کښې دَ عدی بن ثابت رضی الله عنه روایت کښې تتوضأ عند كل صلوة الفاظ موجوددی کوم چه دَ شوافع دلیل دې.

**داول فریق د دلیل جواب:** ① دَاحنافو مشهور محقق ابن همام رحمه الله فرمائی چه په احادیثو کښې درې قسم الفاظ دی لوقت كل صلوة، لكل صلوة، عند كل صلوة رومبې لفظ دَ وخت دپاره متعین دې او په آخری دواړو جملوکښې دَوخت او مونځ دواړو معنواحتمال دې ځکه چه لام اوعند تعلیلیه هم کیدې شی نومعنی به داشی چه مستحاضه دې دَهرمانځه دَوجې نه اودس کوی اووقتیه هم کیدې شی. نومطلب به داشی چه مستحاضه به دَمونځ دَهروخت دپاره اودس کوی. اوس دا محتمل کلمات په دغه متعین کلمات باندې حمل کول پکاردی په کومو کښې چه دَ وخت تعین کړې شوې دې. لکه تتوضأ لوقت كل صلوة دې. خلاصه دا چه مجمل اومحتمل به په مفسر اومتعین باندې حمل کړو اوپه عربی لغت کښې لام دَ وخت دپاره استعمالیږی. دَ قرآن کریم آیت ﴿ أَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ ﴾ دلته لام دَوخت دپاره دې ای وقت دلوك الشمس دغه شان عرب وائی آتيك للظهر ای فی وقت الظهر.

خلاصه دا راوَتله چه دَحدیث ټول الفاظ دَوخت په معنی باندې په آسانئی سره حملولې شی اوکه دَمونځ معنی واخستې شوه نو په دغه روایتونوباندې عمل نه شی کیدې په کوم کښې چه دَ وخت لفظ راغلې دې.

**دامام طحاوی په اول فریق دوه اعتراضات:**

① امام طحاوی رحمه الله په شوافع باندې دا اعتراض کړې دې چه مثلاً یومستحاضه ښځې دَمانځه دپاره اودس خوجوړکړو مګر مونځ ئې اونه کړواودَ مونځ وخت اووتلو نواوس وائې چه دَدې اودس به څنګه ماتیږی حال دادې چه دَدې دپاره تاسو حضرات مونځ ناقض

للوضو گرځوئی؟

۲ دارنګ امام طحاوی رحمه الله داهم اشكال كړي دي چه په شريعت مطهره كښې داخبره خو معروف اومشهوره ده چه دَ وخت ختميدو اووخت وتلوسره اودس ماتيږي مثلاً يوسړی په موزوباندې مسح كړي ده اوس چه كله دَمقيم اومسافردَمسح موده ختميږي او وخت وتلوسره تيريږي نواودس ماتيږي نوخروج وقت ناقض للوضو شو. ليكن په شريعت كښې چرته هم فراغ عن الصلوة ناقض للوضو نه دي وئيلې شوې اونه دَدې څه مثال ملاويږي. بل دَهرمانځه دَپاره اودس كولوكښې احتياط خوشته ليكن په دې كښې دَ دې په شان مسكينانوښځوباندې حرج هم شته. كه دَحديث شريف نه دَ آسانئی صورت ملاويدې شي نو حرج مدفوع فی الشرع دې. په حرج كښې دَ اچولوڅه ضرورت دې؟

**د دويم فريق دلائل:** ۱ د دوی مستدل هغه روايت دې په كوم كښې چه تتوضالوقت كل صلوة الفاظ راغلی دی دا روايت ابن قدامه رحمه الله په خپل مشهوركتاب مغنی كښې ذكر كړي دي. دا دَ فاطمه بنت ابی حبيش رضي الله عنها دَ بعضې رواياتو الفاظ دی.

۲ بعضې رواياتوكښې حتی يجمع ذلك الوقت الفاظ راغلی دی دَدې نه هم احنافو استدلال كړي دي چه دَ وخت دَپاره اودس دي ځكه چه دَوخت صراحت موجود دې.

**دَ مستحاضه دَغسل مطلب**

دَمستحاضه متعلق چه كوم احاديث راغلی دی په هغې كښې دَبعضونه په واضحه توګه معلوميږی چه حضورپاك مستحاضه ته دَهرمانځه دَپاره دَغسل حكم وركړې وو.

**مستحاضه ته د هر مانځه دپاره دغسل كولو روايت:** ۱ امام طحاوی رحمه الله هم دَ سهله بنت سهل رضي الله عنها متعلق نقل كړی دی چه هغې ته رسول الله ﷺ دَهرمانځه دَپاره دَغسل حكم وركړې وو.

**مستحاضه ته د دوؤ مونځونو دپاره دغسل كولو روايات:** ۱ دَمشكوة شريف په دريم فصل كښې دَ اسماء بنت عميس رضي الله عنها په حديث كښې دا الفاظ "لما اشتدعليها الغسل" يعنی دَ هر مانځه دَپاره غسل كول چه كله په فاطمه بنت ابی حبيش رضي الله عنها ته ګران شو نوحضور پاك هغې ته دَ دوو مونځونودَپاره دَ يوغسل كولوحكم وركړو يادَدې نه هم دَهرمانځه دَپاره دَغسل حكم معلوميږی.

۲ دغه شان دَمشكوة باب المستحاضه كښې حمنه بنت جحش رضي الله عنها دَ روايت نه دَدوو مونځونو دَپاره دَ يوغسل حكم معلوميږی يعنی دَ ماسپښين اومازيګردَپاره يوغسل او ماښام او

ماسخوتن دَپاره دویم غسل او اودَ سحردَپاره دریم غسل نو دا دَ پنځو مونځونو دَپاره دَدریوغسلونوحکم دې.

**مستحاضه ته د پنځو مونځونو دپاره دغسل کولو روایت:**

① دغه شان دَ پنځومونځونودَپاره دَدریوغسلو حکم دَدې باب په آخرې حدیث کښې هم دې دکوم روایت چه اسماء بنت عمیس رضی الله عنها کړې دې.

دَدې غسلونونه علاوه دَهرمانځه دَپاره دَاودس کولوحکم هم په ډیرواحادیثوکښې راغلې دې. اوس دَ ائمه اربعه مسلك دَاودس دې نودَغسل دَدې احادیثوجواب ورکول اودا احادیث په صحیح محمل باندې حمل کول دَائمه اربعه ذمه واری ده. چنانچه دَدې احادیثو دَ ائمه اربعه او دَ جمهورفقهاؤ دَ طرف نه علماء کرامو ډیر توجیهات کړی دی.

①اول توجیه اوجواب دادې چه دَ غسل ټول احادیث په استحباب باندې محمول دی غسل خوواجب نه دې خوکه چرې وئی کړی نومستحب دې دَهرمانځه دَپاره جداجدا یا دَدوو مونځونودَپاره دې یوغسل اوکړی.

② دَغسل دَټولواحادیثوتعلق علاج سره دې مطلب داچه دې مستحاضه ښځوته دَ غسل حکم دَدې دَپاره ورکړې شو وو چه دَیخواوبو په استعمالولوسره په وینه کښې کمې راشی اووینه بنده شی.

③ دَ غسل دَ احادیثو تعلق دَمتحیره دَ بعضې صورتونوسره دې دَ کوم دَغسل چه احناف هم قائل دی.

④ دَغسل او اودس دَټولواحادیثونقشه په ډیره ښه طریقه امام طحاوی رحمه الله پیش کړې ده. فرمائی چه سهله بنت سهیل رضی الله عنها ته رسول الله صلی الله علیه وسلم په شروع کښې دَهرمانځه دَپاره دَغسل حکم کړې ووبیا حضورپاك په هغې کښې نرمی اوکړه او دَ دوو مونځونودَپاره ئی دَ یوغسل حکم اوکړو کله چه داهم هغې ته ګرانه شوه نوحضورپاك دَهرمانځه دَپاره دَاودس حکم ورکړو نودَ دوو مونځونو دَپاره دَ یوغسل په حکم سره دَهرمانځه دَپاره دَغسل حکم منسوخ شو بیادَهرمانځه دَپاره دَاودس په حکم سره دَغسل حکم منسوخ شو اوکه چرې دَغسل حکم منسوخ نه دې نوعلماء کرامو داجواب ورکړې دې چه حضورپاك دَعلاج په توګه دَ تبرید دَ حصول دَپاره دَغسل حکم ورکړې وو.(والله اعلم)

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۵۵۷] په حالت استحاضه کښې د مونځ حکم

۵۵۷-(١) [١] ①عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ②«جَاءَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ أَبِي حُبَيْشٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، ③إِنِّي امْرَأَةٌ أُسْتَحَاضُ، فَلَا أَطْهُرُ، أَفَأَدَعُ الصَّلَاةَ؟ ④فَقَالَ: لَا، إِنَّمَا ذٰلِكِ عِرْقٌ وَلَيْسَ بِحَيْضٍ، ⑤فَإِذَا أَقْبَلَتْ حَيْضَتُكِ فَدَعِي الصَّلَاةَ، ⑥وَإِذَا أَدْبَرَتْ فَاغْسِلِي عَنْكِ الدَّمَ، ثُمَّ صَلِّي» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: ① بي بي عائشه رضي الله عنها راویه ده ② چې فاطمه بنت ابي حبیش د نبي کریم ﷺ په خدمت کې حاضره شوه او عرض یې وکړو چې یا رسول الله ﷺ ③ زه یو داسې ښځه یم چې برابر (د استحاضې) وینه راځي زه هیڅ وخت پاکه نه یم نو آیا زه مونځ پریږدم؟ ④ حضور ﷺ ورته وفرمایل نه دا خو د یو رګ وینه ده د حیض وینه نه ده ⑤ هرکله چې تاته حیض راشي نو ته مونځ پریږده ⑥ او کله چې حیض ختم شي (نو د بدن څخه) وینه وینځه او (په لمبیدو سره) مونځ کوه. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① أُسْتَحَاضُ: یعنی مسلسل مې دحیض وینه راځي (وینه نه اودریږي) (دې ته مستحاضه هم وائي او ممتاده هم). ② أَفَأَدَعُ: أَيْ: أَفَأَتْرُكُهَا: آیا زه مونځ پریږدم؟ (تر د وینې اودریدو پورې). ③ عِرْقٌ: أَيْ: دَمُ عِرْقٍ: د وینې رګ، ④ أَقْبَلَتْ: راشي (حیض)، ⑤ أَدْبَرَتْ: أَيْ: تَوَلَّتْ: واپس شي، یعنی حیض ختم شي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۵۵۸] د حیض د وینې پیژندګلو

۵۵۸-(٢) [٢] ①عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ «فَاطِمَةَ بِنْتِ أَبِي حُبَيْشٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، ②أَنَّهَا كَانَتْ تُسْتَحَاضُ، فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ③" إِذَا كَانَ دَمُ الْحَيْضِ فَإِنَّهُ دَمٌ أَسْوَدُ يُعْرَفُ، ④فَإِذَا كَانَ ذٰلِكِ، فَأَمْسِكِي عَنِ الصَّلَاةِ، ⑤فَإِذَا كَانَ الْآخَرُ فَتَوَضَّئِي وَصَلِّي، فَإِنَّمَا هُوَ عِرْقٌ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

---

(١) اخرجه بخاری کتاب الوضوء باب غسل الدم (رقم-۲۲۸) ومسلم کتاب الحیض باب المستحاضة وغسلها وصلاتها رقم(۶۲ - (۳۳۳) وابوداود کتاب الطهارة/باب من روی أن: الحیضة إذا أدبرت لا تدع الصلاة(رقم-۲۸۲) والنسائی کتاب الحیض والاستحاضة باب بدء الحیض ، وهل یسمی الحیض نفاسا؟ (رقم-۳۵۹) وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/بباب ما جاء فی المستحاضة التی قد عدت أیام أقرانها، قبل أن یستمر بها الدم(رقم-۶۲۱) واحمد فی المسند:۶/۱۹٤ والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی المستحاضة(رقم-۱۲۵) والدارمی کتاب الطهارة/باب فی غسل المستحاضة (رقم-۸۰۱)

(٢) اخرجه ابود اود کتاب الطهارة/ باب من قال إذا أقبلت الحیضة تدع الصلاة(رقم-۲۸۶) والنسائی کتاب الحیض والاستحاضة/باب الفرق بین دم الحیض والاستحاضة (رقم-۳۶۲)

**ترجمه:** [۱] حضرت عروه ابن زبیر رحمه الله د فاطمه بنت حبیش رضي الله عنها څخه روایت کوي [۲] چې هغې ته د استحاضې وینه راتله نبي کریم ﷺ د هغې په باره کې وفرمایل [۳] هرکله چې د حیض وینه راشي چې د هغې پیژندنه دا ده چې هغه د تور رنګ وي [۴] نو هغه وخت ته د لمانځه کولو څخه منع شه [۵] او هر کله چې د استحاضې وینه راشي (یعني هغه وینه د تور رنګ څخه علاوه د بل څه رنګ وي)، نو اودس کولو سره مونځ کوه ځکه چې دا حیض نه دي بلکه د یو رګ وینه ده. (ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** ① عِرْقٌ: أَيْ: دَمُ عِرْقٍ: د وینې رګ،

## [۵۵] د معتاده د حیض حکم

۵۵ـ() [۳] [۱] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «إِنَّ امْرَأَةً كَانَتْ تُهْرَاقُ الدَّمَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۳] فَاسْتَفْتَتْ لَهَا أُمُّ سَلَمَةَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: [۴] لِتَنْظُرْ عَدَدَ اللَّيَالِي وَالْأَيَّامِ الَّتِي كَانَتْ تَحِيضُهُنَّ مِنَ الشَّهْرِ قَبْلَ أَنْ يُصِيبَهَا الَّذِي أَصَابَهَا، [۵] فَلْتَتْرُكِ الصَّلَاةَ قَدْرَ ذَلِكَ مِنَ الشَّهْرِ، [۶] فَإِذَا خَلَّفَتْ ذَلِكَ فَلْتَغْتَسِلْ، [۷] ثُمَّ لِتَسْتَثْفِرْ بِثَوْبٍ»، رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُو دَاوُدَ. وَرَوَى النَّسَائِيُّ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** [۱] بي بي ام سلمه رضي الله عنها فرمایي [۲] چه د نبي کریم ﷺ په زمانه کې یوې ښځې ته د استحاضې وینه راتله (او هغه معتاده وه) [۳] بي بي ام سلمه رضي الله عنها په دې باره کې حضور ﷺ څخه فتوې وپوښتله (چې د دې څه حکم دي؟) حضور ﷺ وفرمایل [۴] هغې ته پکار دي چې هغه وګوري چې د دې بیماري راتلو څخه مخکې هغې ته په میاشت کې د حیض وینه څو ورځې څو شپې راتله [۵] (هرکله چې دا معلومه شي نو) هره میاشت دې هغومره ورځې مونځ کول پریږدي [۶] او هر کله چې هغه ورځې تیرې شي نو ودې لمبیږي [۷] او (په پاجامه کې دننه) د کپړې ترلو سره دې مونځ کوي، (مالك، ابوداؤد، دارمي) او نسائي دا روایت بالمعنٰي نقل کړي دي.

**حل اللغات:** ① تُهْرَاقُ: أَيْ: تَصُبُّ: وینه بهیوی، یعنی مسلسل ترې وینه جاری وی، (یعنی معتاده وه). ② فَاسْتَفْتَتْ: أَيْ: سَأَلَتْ: د مسئلې تپوس ئې اوکړو د نبی علیه السلام نه، ③ لِتَنْظُرْ: أَيْ: لِتَفَكَّرْ: اودې ګوری یعنی سوچ او فکر دې اوکړی، معلومه دې کړی. ④ خَلَّفَتْ: أَيْ: إِذَا جَاوَزَتْ قَدْرَ حَيْضِهَا: دغه معلومه ورځې تیرې شی یعنی د معلومو ورځو نه تجاوز اوکړی. ⑤ لِتَسْتَثْفِرْ: أَنْ تَشُدَّ فَرْجَهَا بِثَوْبٍ: یعنی خپل فرج دې په کپړې سره اوتړی.

(۱) اخرجه مالک کتاب الطهارة باب المستحاضة(رقم-۱۰۵) واحمد فی المسند:۶/۲۹۳ وابن ماجة کتاب الطهارة وسننها/ باب ما جاء فی المستحاضة التی قد عدت أیام أقرانها، قبل أن یستمر بها الدم(رقم-۶۲۳) وابوداود کتاب الطهارة / باب فی المرأة تستحاض، ومن قال: تدع الصلاة فی عدة الأیام التی کانت تحیض(رقم-۲۷٤) والنسائی کتاب الطهارة/ باب اخبرنا قتیبة مرة أخری ولم یذکر جعفرا(رقم-۲۰۸) والدارمی کتاب الطهارة/باب فی غسل المستحاضة (رقم-۸۰۷)

[۵۱۰] د مستحاضه دپاره هر مانځه ته تازه اودس کول

۵۱۰–(۱)[۴] ۱ وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ- ۲ قَالَ يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ: جَدُّ عَدِيٍّ اسْمُهُ دِينَارٌ، «عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ۳ أَنَّهُ قَالَ فِي الْمُسْتَحَاضَةِ: " تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا الَّتِي كَانَتْ تَحِيضُ فِيهَا، ۴ ثُمَّ تَغْتَسِلُ، وَتَتَوَضَّأُ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ، ۵ وَتَصُومُ، وَتُصَلِّي» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ

ترجمه: ۱ د عدي ابن ثابت ځخه روايت دي هغه د خپل پلار ځخه او هغه دخپل نيکه ځخه، ۲ يحيي ابن معين فرمايي چې د عدي دنيکه نوم دينار دي، هغه د نبي کريم ﷺ ځخه روايت کوي ۳ چې حضور ﷺ د يوي مستحاضه ښځي په باره کې وفرمايل چې په کومو ورځو کې هغې ته د عادت موافق حيض راتلو هغې ته پکار دي چې په هغه ورځو کې مونځ پريږدي ۴ بيا (د هغه ورځو ځخه وروسته يو ځل) ولمبيږي او د هر لمانځه د پاره دې تازه اودس کوي ۵ او روژه دې نيسي او مونځ دې هم کوي. (ابوداؤد ترمذي)

**حل اللغات:** ① أَقْرَائِهَا: د قُرْء جمع ده، وَهُوَمُشْتَرَكٌ بَيْنَ الْحَيْضِ وَالطُّهْرِ: قُرء په معنی دحيض هم راځي او په معنی د طهر هم، خو دلته ترې حيض مراد دي.

[۵۱۱] د استحاضه حقيقت

۵۱۱–(۲)[۵] ۱ «وَعَنْ حَمْنَةَ بِنْتِ جَحْشٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: ۲ كُنْتُ أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيرَةً شَدِيدَةً، فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْتَفْتِيهِ وَأُخْبِرُهُ، ۳ فَوَجَدْتُهُ فِي بَيْتِ أُخْتِي زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ، ۴ فَقُلْتُ: يَارَسُولَ اللّٰهِ، إِنِّي أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيرَةً شَدِيدَةً، فَمَا تَأْمُرُنِي فِيهَا؟ قَدْ مَنَعَتْنِي الصَّلَاةَ وَالصِّيَامَ. ۵ قَالَ " أَنْعَتُ لَكِ الْكُرْسُفَ، فَإِنَّهُ يُذْهِبُ الدَّمَ " ۶ قَالَتْ: هُوَأَكْثَرُ مِنْ ذَلِكَ. قَالَ: " فَتَلَجَّمِي ". ۷ قَالَتْ: هُوَأَكْثَرُ مِنْ ذَلِكَ. قَالَ: فَاتَّخِذِي ثَوْبًا. ۸ قَالَتْ: هُوَأَكْثَرُ مِنْ ذَلِكَ، إِنَّمَا أَثُجُّ ثَجًّا.

ترجمه: ۱ بي بي حمنة بنت حجش رضي الله عنها فرمايي ۲ چه ماته به په کثرت سره د استحاضې وينه راتله په دې وجه زه د نبي ﷺ په خدمت کې حاضره شوم چې حضور ﷺ خبر کړم او د دې حکم ترينه وپوښتم ۳ نو زه د خپلې خور زينب بنت حجش په مکان کې د حضور ﷺ سره يو ځاي شوم ۴ او عرض مې وکړو يا رسول الله ﷺ ماته د استحاضې وينه په کثرت سره راځي چې زه يې د لمانځه او روژې ځخه هم منع کړي يم په دې باره کې تاسو څه حکم

(۱) اخرجه ابوداودكتاب الطهارة/ باب من قال تغتسل من طهر إلى طهر(رقم-۲۹۷) وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء في المستحاضة التي قد عدت أيام أقرائها. قبل أن يستمر بها الدم(رقم-۶۲۵) والترمذي كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن المستحاضة تتوضأ لكل صلاة(رقم-۱۲۶) والدارمي كتاب الطهارة/باب في غسل المستحاضة (رقم-۸۲۰)

(۲) وابوداود كتاب الصلاة باب من قال إذا أقبلت الحيضة تدع الصلاة(رقم-۲۸۷) اخرجه احمد في مسند:-۴۳۹/۶ ، وابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء في المستحاضة التي قد عدت أيام أقرائها. قبل أن يستمر بها الدم(رقم-۶۲۲) و باب ما جاء في البكر إذا ابتدئت مستحاضة. أو كان لها أيام حيض فنسيتها(رقم-۶۲۷) والترمذي كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب في المستحاضة أنها تجمع بين الصلاتين بغسل واحد(رقم-۱۲۸)

راكوي؟ [۵] حضور ﷺ وفرمايل زه ستا د پاره پمبه تجويز كوم څكه چې هغه وينه بنده وي (يعني د ويني وتلو په ځاي كې پمبه كيږده چې بهر راونوځي) [۶] حمنة رضي الله عنها اوويل هغه خو په دي سره نه منع كيږي څكه چې ډيره زياته ده حضور ﷺ وفرمايل (پمبه كيږده او) په هغې د واكي په شان كپړه (يعني لنګوټ) تړه [۷] هغي اوويل هغه په دي سره نه بنديږي څكه چې ډيره زياته ده حضور ﷺ وفرمايل بيا (د لنګوټ لاندي) يوه كپړه اږده [۸] هغي اوويل هغه په دي سره هم نه بنديږي څكه چې ډيره زياته ده تر دي چې وينه د باران (د شيبو) په شان راځي

**حل اللغات**: ① أَنْعَتُ: أَيْ: أَصِفُ: زه بنايم، تجويز كوم. ② الْكُرْسُفَ: أَيْ: الْقُطْنَ: مالوچ. ③ تَلَجَّمِي: يَعْنِي خِرْقَةً عَلَى هَيْئَةِ اللِّجَامِ: يعنى د واكي په شان يوه كپړه تړه. ④ أَثُجُّ ثَجًّا: أَيْ يَسِيْلُ دَمِي سَيَلَانًا فَاحِشًا: د سيلاب په شان وينه راځي يعني ډيره زياته وينه بهيږي.

[۱] فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَآمُرُكِ بِأَمْرَيْنِ، أَيَّهُمَا صَنَعْتِ أَجْزَأَ عَنْكِ مِنَ الْآخَرِ [۲] وَإِنْ قَوِيتِ عَلَيْهِمَا، فَأَنْتِ أَعْلَمُ " [۳] قَالَ لَهَا: " إِنَّمَا هَذِهِ رَكْضَةٌ مِنْ رَكَضَاتِ الشَّيْطَانِ [۴] فَتَحَيَّضِي سِتَّةَ أَيَّامٍ أَوْ سَبْعَةً فِي عِلْمِ اللَّهِ، ثُمَّ اغْتَسِلِي، [۵] حَتَّى إِذَا رَأَيْتِ أَنَّكِ قَدْ طَهُرْتِ وَاسْتَنْقَأْتِ ; [۶] فَصَلِّي ثَلَاثًا وَعِشْرِينَ لَيْلَةً أَوْ أَرْبَعًا وَعِشْرِينَ لَيْلَةً، وَأَيَّامَهَا، وَصُومِي، فَإِنَّ ذَلِكَ يُجْزِئُكِ، [۷] وَكَذَلِكَ فَافْعَلِي كُلَّ شَهْرٍ كَمَا تَحِيضُ النِّسَاءُ وَكَمَا يَطْهُرْنَ ; مِيقَاتُ حَيْضِهِنَّ وَطُهْرِهِنَّ،

**ترجمه**: [۱] حضور ﷺ وفرمايل بيا خو زه تاته د دوو خبرو حكم دركوم په هغه كې چې ته كومه يوه اختياروي د دويمي به ضرورت نه پاتې كيږي [۲] او كه په تا كې په دواړو د عمل كولو طاقت وي نو پخپله ښه پوهيږې (چې ډير لوي اجر لري ته خپل حالت ته په كتلو سره څنګه چې غواړي هغسي كوه) [۳] نو حضور ﷺ حمنه ته اوويل چې دا استحاضه د شيطان د لغتو څخه يوه لغته ده [۴] نو ته هره مياشت شپږ يا اووه ورځي څكه د غيب علم الله جل جلاله لره دي د حيض ورځي وګرځوه او بيا مذكوره موده تيريدو څخه وروسته لمبيږه [۵] او هر كله چې ته پوهه شې چې زه پاكه صفا شوې يم [۶] نو درويشت ورځي شپې (ايام حيض اووه ورځي ګرځولو په صورت كې) يا څلورويشت ورځي شپې (ايا) حيض شپږ ورځي ګرځولو په صورت كې) مونځ كوه او دغسې هره مياشت (د رمضان وغيره) روژي هم نيسه ستا د پاره به دا كافي وي، [۷] ته هم هره مياشت دغسې كوه څنګه چې ښځي په خپله خپله موده دحيض كې وي او بيا په وخت باندې پاكيږي (چې شپږ يا اووه خو د حيض ورځي وګرځوه او بقيه ورځي طهر يعني د پاكي ايام وګرځوه)

**حل اللغات**: ⑤ قَوِيتِ: أَيْ: قَدَرْتِ: كه ته قدرت لرې، ⑥ رَكْضَةٌ: أَيْ: دَفْعَةٌ وَضَرْبَةٌ: يعنى دا د شيطان وهل دي، (د خپې لتې اوګذار ته ركض وائى، دلته د وهلونه مراد ضرر او فساد دي). ⑦ اسْتَنْقَأْتِ: دلته استنقاء مبالغه ده په پاكوالى د بدن كښې، يعنى پاكه شې او بيخى صفا شې، ⑧ مِيقَاتُ: معلوم وخت ته وائى.

۱ وَإِنْ قَوِيتِ عَلَى أَنْ تُؤَخِّرِينَ الظُّهْرَ وَتُعَجِّلِينَ الْعَصْرَ ۲ فَتَغْتَسِلِينَ وَتَجْمَعِينَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ، ۳ وَتُؤَخِّرِينَ الْمَغْرِبَ وَتُعَجِّلِينَ الْعِشَاءَ، ۴ ثُمَّ تَغْتَسِلِينَ وَتَجْمَعِينَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ، فَافْعَلِي ۵ وَتَغْسِلِينَ مَعَ الْفَجْرِ فَافْعَلِي، ۶ وَصُومِي إِنْ قَدَرْتِ عَلَى ذَلِكَ. ۷ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَهَذَا أَعْجَبُ الْأَمْرَيْنِ إِلَيَّ» رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او که په تاکې دومره طاقت وي چې د ماسپښین وخت تاخیر کولو سره په مازیګر کې تادي اوکړې ۲ بیا ولمبیږې دا دواړه لمونځونه (ماسپښین او مازیګر) یو ځای وکړې ۳ او بیا ماښام مؤخر کولو سره په ماسخوتن کې تادي اوکړې ۴ بیا ولمبیږې او دا دواړه لمونځونه یو ځای او کړې نو دغسې کوه ۵ او د سَحر لمانځه د پاره (جدا) لمبیږې نو دغسې کوه [او په کومو ورځو کې چې مونځ کوې په هغه ورځو کې نفل او فرض څنګه چې غواړې کوه] ۶ او روژې هم نیسه که په تا کې د دې طاقت وي ۷ بیا حضور ﷺ وفرمایل په دې دواړو خبرو کې آخري خبره زما زیاته خوښه ده. (احمد، ترمذي، ابوداؤد)

**تسهیلات:**

**په مدینه کښې مستحاضه زنانه:** حمنه بنت جحش صحابیه ﵂ د نبی کریم ﷺ بنیني وه. د حضرت زینب بن جحش ﵂ نه علاوه د حضرت جحش ټولې لونړه د استحاضې بیمارې وې. مدینه منوره کښې تقریبا دولس زنانو ته د استحاضې بیماری وه. په دوئ کښې د حمنه بنت جحش ﵂ بیان په دې حدیث پاك کښې دې.

**دحدیث دبعضې جملو وضاحت:**

① " فَتَلَجَّمِي ".: لجام لګولو ته وائی. فارسی کښې ورته لګام وئیلې کیږی او په عربی کښې لجام دکتاب په وزن سره دې. دا هغه کپړې ته وائی چې حائضه او مستحاضه ښځه ئې د کرسف دپاسه د وینې بندولو دپاره تړی.

② فَاتَّخِذِي ثَوْبًا: یعنی د کپړې یو مضبوط منډوس (ډیرې کپړې رایوځائې کولو ته وائی) جوړ کړه د پتونانو مینځ کښې په فرج باندې کیږده او ددې دپاسه لګام او کپړه اوتړه.

③ إِنَّمَا أَثُجُّ: حدیث پاك کښې دی چې الحج العج الثج یعنی حج په زوره تلبیه وئیلو او وینې تویولو ته وائی. قرآن پاك کښې دَ ﴿مَآءً ثَجَّاجًا﴾ لفظ راغلې دې.

④ فَتَحَيَّضِي: یعنی خپل ځان ته حائضه وایه. او د حیض احکام په ځان لازم اوګرزوه.

⑤ أَوْ سَبْعَةً فِي عِلْمِ اللَّهِ: " او " دَ شك دپاره نه دې بلکه نبی کریم ﷺ دې ښځې ته د دوؤ کارونو حکم ورکړې وو. " او " دتنویع دپاره شو چې دالله ﷻ په علم کښې څه دی په هغې عمل اوکړه. که هغه شپږ ورځې وی او که اووۀ ورځې وی ، تحرّی کوه او عمل کوه.

**قوله: وَهٰذَا أَعْجَبُ الْأَمْرَيْنِ إِلَيَّ:**

**داعجب الامرين مصداق:** دَ ملا علی قاری رحمه الله او امام ابو داود رحمه الله د دواړو رجحان دې طرفته دې چې اعجب الامرین کښې ړومبې امر نبی کریم ﷺ دا ورکړې وو چې هر مونځ دپاره مستقل غسل کول پکار دی. لیکن بیا د حرج په وجه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې دوؤ مونځونو دپاره یو غسل کوه یعنی ماسپخین او مازیگر دپاره به یو غسل وی او ماښام او ماسختن دپاره به بل غسل وی او سحر دپاره به خانله غسل وی. نو د پنځومونځونو دپاره د پنځونو غسلونو په ځائې درې غسله کولو کښې حرج کم شو.

**د استثفار په معنی کښې دوه اقوال:**

① د استحاضې په یو حدیث پاك کښې لتستثفر لفظ راغلې دې. کله چې په آسونو او خرونو باندې سامان بار کولې کیږی نو د لکۍ لاندې چې کومه پټۍ مضبوطه تړلې کیږی هغې ته استثفار وائی. چې چړهائی کښې سامان دَ خر سر طرف اونه خوځیږی.

② استفثاردې ته هم وائی کله چې سپې کینی نو دکیناستو په وخت کښې دې لکۍ د دواړو پتونو مینځ کښې راولی او کینی. مستحاضه ښځې ته هم دا حکم ورکړې شوې دې چې آرام سره دې کینی او د کپړې منډوس دې جوړ کړی او بیا دې په فرج کښې مضبوط کیږدی او ددې دپاسه دې کپړه اوتړی چې وینه بنده شی. دا استثفار دې.

**د پیمپر استعمال:** په موجوده زمانه کښې بعضې کمپنیانو د پیمپر په نوم جانگۍ راویستې دی کوم چې زنانه استعمالوی اودوی ته په کښې ډیره آسانتیا وی. دا جائزدې د دې په استعمال کښې څخه قباحت نشته.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۶۲] د مستحاضې دپاره هر دوؤ مونځونو لره غسل کول**

> ۵۶۳-( )[۶] ① «عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، إِنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ أَبِي حُبَيْشٍ اسْتُحِيضَتْ مُنْذُ كَذَا وَكَذَا فَلَمْ تُصَلِّ. ③ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: سُبْحَانَ اللّٰهِ، إِنَّ هٰذَا مِنَ الشَّيْطَانِ. ④ لِتَجْلِسْ فِي مِرْكَنٍ، ⑤ فَإِذَا رَأَتْ صُفَارَةً فَوْقَ الْمَاءِ فَلْتَغْتَسِلْ لِلظُّهْرِ وَالْعَصْرِ غُسْلًا وَاحِدًا، ⑥ وَتَغْتَسِلْ لِلْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ غُسْلًا وَاحِدًا، ⑦ وَتَغْتَسِلْ لِلْفَجْرِ غُسْلًا وَاحِدًا، وَتَوَضَّأُ فِيمَا بَيْنَ ذٰلِكَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ،

ترجمه: ① بي بي اسماء بنت عُمیس رضي الله عنها وایي ② چه ما نبي کریم ﷺ ته عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ فاطمه بنت ابي حبیش رضي الله عنها ته (اول ځل) د دومره مودې څخه استحاضه راځي او هم ددې وجې (هغې دا خیال کولو چې شاید دا هم د حیض په حکم کې وي) مونځ

[1] اخرجه ابوداود کتاب الطهارة/باب من قال تجمع بين الصلاتين وتغتسل لهما غسلا(رقم-۲۹۶)

نه کوي[۳] حضور ﷺ وفرمایل سبحان الله دا مونځ پریښودل خو شیطاني اثر دي [۴] هغې ته پکار دي چې په یو لګن کې اوبه اچولو سره کیني [۵] کوم وخت چې په اوبو زیړ والې معلوم شي نو د ماسپښین او ماز یګر د پاره دي یو غسل وکړي [۶] او د ماښام او ماسخوتن د پاره دي یو غسل وکړي [۷] او د فجر (سحر) د پاره دي جدا یو غسل وکړو (او هرکله چې ضرورت وي نو د ماز یګر او ماسخوتن د پاره دي) د ددې دواړه په مینځ کې اودس وکړي، دا روایت ابوداؤد نقل کړي دي او ویلي یې دي

**حل اللغات:** ① مِرْكَن: أي ظَرْفٌ كَبِيْرٌ: لوئې لوښې، خانک، لګن، ② صُفَارَةٌ: زیړوالې.

**تسهیلات:**

**قوله:** لِتَجْلِسَ:

**د تجلس په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① یعنی دَغسل دَپاره دې دَ یوټب سره کینی ② دَماسپښین آخری وخت اودَماز یګر اول وخت معلومولودَپاره دې دَ یوټب په خواکښې کینی.

**قوله:** فَإِذَا رَأَتْ صُفَارَةً فَوْقَ الْمَاءِ:

**د ماسپخین اوماز یګر مونځونو کولو وخت:** یعنی چه دَنمررنګ بدل شی اودَاوبودَپاسه دَ نمر دَرنګ زیړوالې ښکاره شی یعنی دَ ماسپخین آخری وخت شی اودَماز یګر اول وخت راشی نوهغه وخت دې غسل کولوسره دواړه مونځونه خپل خپل وخت کښې اداکړی. دَ زیړرنګ نه دَماز یګرمکروه وخت مرادنه دې بلکه دَماسپخین آخری وخت مراددې په کوم کښې چه نمر یوقسم بدل شان شی.

**قوله:** وَتَوَضَّأُ فِيمَا بَيْنَ ذَلِكَ:

**دغسل باوجود د اودس کول:** یعنی دَماسپخین اوماز یګردَپاره چه کله یوغسل اوکړی نو دَ ماز یګر دَپاره دې دَدغه غسل باوجود اودس هم اوکړی اوکله چه دَ ماښام اوماسخوتن دَپاره یوغسل اوکړی نودَ ماسخوتن دَپاره دې یو اودس هم اوکړی اودَ سحردَپاره دې جدا یوغسل اوکړی. دَ مستحاضه په احکام غسل کښې دَ تخفیف داړومبئی مرحله ده دې نه پس تخفیف اودس پورې اوشو.

۵۱۳-()[۰][۱] رَوَى مُجَاهِدٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ:[۲] «لَمَّا اشْتَدَّ عَلَيْهَا الْغُسْلُ»[۳] أَمَرَهَا أَنْ تَجْمَعَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ»

**ترجمه:**[۱] چې مجاهد رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما څخه نقل کړي دي[۲] چې کله فاطمي رضي الله عنها ته (د هرلمانځه د پاره) غسل کول مشکل معلوم شو[۳] نو حضور ﷺ هغې ته په یو غسل سره د دوو لمونځونو یو ځاي کولو حکم وکړلو.

(الحمد لله کتاب الطهارة ختم شو.)

(۱) اخرجه ابوداود ابوداود کتاب الطهارة/باب من قال تجمع بین الصلاتین وتغتسل لهما غسلا(رقم-۲۹۶)

# [۴] كِتَابُ الصَّلَاةِ

**خلاصة الباب:**

**فيه ستة عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① تكفير الذنوب الصغائر بالصلوة: ۱، ۲، ۳، ۴، ۱۱، ۱۲، ۱۳۔

② كون الصلاة سبب المغفرة ودخول الجنة: ۷، ۸، ۱۴۔

③ ترك الصلوة من أعمال الكفر وسبب برآءة ذمة الله ورسوله) ۶، ۱۰، ۱۵، ۱۶۔

④ كون الصلاة أحب الأعمال إلى الله تعالى: ۵۔

⑤ الأمر بالصلاة للصبيان عند سبع سنين: ۹۔

**په صلاة باندې د طهارت د تقديم وجه:** مونځ د عباداتو اصل او د طاعاتو بنياد دې. نوځکه دا په ټولو مشروعاتو باندې مقدم کړې شو. اوطهارت دمانځه شرط دې. او شرط مقدم وی په مشروط باندې. نوځکه کتاب الطهارة په کتاب الصلاة باندې مقدم کړې شو.

**د صلاة لغوی معنی:** صلاة په لغت کښې د دعا په معنی کښې راځی. لکه ﴿وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ﴾ يعنی ته د دوی دپاره دعا غواړه. بيشکه ستا دعا د دوی دپاره سبب د اطمينان دې. اود نبی ﷺ قول دې. «وصلت عليكم الملائكة) يعنی فرښتې تاسو ته دعاګانې کوی. او دنبی ﷺ قول «إذا دعی أحدكم إلى الطعام فليجب فإن كان مفطراً فليأكل وإن كان صائماً فليصل» يعنی کله چه چا ته دعوت ملاؤشی. نوهغه قبلول پکار دی. که روژه دارنه وی. خوراك دې اوکړی. اوکه روژه داروی. نوهغه دپاره دې د خير اوبرکت دعا اوکړی.

**د صلاة اصطلاحی معنی:** دشريعت په اصطلاح کښې د افعال معلومه ؤ او ارکان مخصوصه ؤ نوم دې. او دې افعال معلومه ؤ او ارکان مخصوصه ؤ ته صلاة ځکه وائی. چه دا د دعا په معنی مشتمل دې. د وجوب صلاة سبب ددې وخت دې. او د مونځ ادا کولو سبب دالله تعالی امر تقديری دې.

**د مونځ شرطونه او ارکان:** د مونځ شرطونه طهارت، سترعورت، استقبال دقبلې، وخت، نيت. او تکبير تحريمه دی. په دې موقع که څوك دا اعتراض اوکړی. چه وخت سبب دې. نو شرط څنګه شو. نوجواب دا دې. چه وخت سبب د وجوب دې. اوشرط دپاره د ادا دې. نوځه اشکال باقی پاتې نشو.

**دمونځ ارکان:** دمونځ ارکان قيام، قرات، رکوع، سجده، اودتشهد په اندازه آخری قعده.

**د مونځ حکم:** ددې حکم په دنيا کښې د ذمه نه د واجب سقوط دې. اوپه آخرت کښې دهغه ثواب حاصليدل دی. چه وعده نې شوې ده.

**د مونځ د فرضیت دلائل:** د مونځ فرضیت په کتاب، سنت او اجماع درې واړو باندې ثابت دې. ① کتاب الله مثلاً ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ او ﴿إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَوْقُوتًا﴾ دې.

② او سنت د رسول الله ﷺ لکه رسول الله ﷺ فرمائي . «إن الله تعالى فرض على كل مسلم ومسلمة في كل يوم وليلة خمس صلوات»

③ او اجماع دا ده.چه د نبی ﷺ د زمانې نه واخله تر اوسه پورې د مونځ په فرضیت باندې د ټول امت اجماع ده.

**د سورة بقرې نه د پنځو مونځو د فرضیت اثبات:** داخبره چه مونځونه پنځه دی.دا هم دکتاب الله نه ثابته ده.الله تعالی فرمائی.﴿حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى﴾ دا آیت د مونځ په فرضیت هم دلالت کوی.اودا چه دا پنځه دی.دا په دې طریقه چه الله تعالی د ټولو مونځونو د محافظت حکم کړې دې.او په دې باندې ئې د ،،صلاة وسطی،،عطف کړې دې. اواقل د جمعې چه وسط په کښې متحقق وی. څلور دی. نو په ،،علی الصلوات،، کښې د څلورو مونځونو ذکر دې.او په صلاة وسطی کښې د یو مونځ. نو داسې دا پنځه مونځونه شو.

**د مونځ د فرضیت تاریخ:** باقی پاتې شوه داخبره.چه مونځ کله فرض شوې وو.او د مونځ دفرضیت نه وړاندې د نبی ﷺ دعبادت طریقه څه وه؟ نو په دې باندې خو د تاریخ او سیرت د ټولو عالمانو اتفاق دې.چه مونځ د معراج په شپه باندې فرض شوې دې.خو بیا دمؤرخینو د معراج د شپې په باره کښې اختلاف دې.چه دا په کوم کال کښې واقع شوې وه.نو د نبوت د پنځم کال نه تر لسمه پورې په کښې مختلف اقوال منقول دی.جمهور عالمان د پنځم کال قائل دی.

**د پنځو مونځو په فرضیت کښې حکمتونه:** دَمونځونودَ فرض کیدودَپاره اصل علت او سبب خودَ الله تعالی حکم دې. بیا دَهرمونځ دَ پاره دَ هغې وخت دَ هغې سبب دې. شیخ عبدالحق رحمه الله په لمعات کښې دَ پنځو مونځونودَپاره دَ پنځو وختونو چه کوم حکمت بیان کړې دې دَهغې خلاصه داسې ده. فرمائی

① انسان چه کله دَ شپې اوده کیږی نوهغه دَ الله تعالی دَ ډیرو زیاتو نعمتونودَ شکر ادا کولونه پاتې کیږی اوترڅو چه هغه دَخپل سکون او امن او صحت دَ نعمت نه هم غافل کیږی. دغه شان هغه دَخپل کار روزګار نه هم عاجز کیدوسره دَمړی په حکم کښې کیږی. دَ شپې تیریدونه پس چه کله ورځ راغله نوالله تعالی په دې بنده باندې دَ سحرمونځ فرض کړو چه دَ شپې دَ ټولو کوتاهو معافی اوکړې شی اودَ مرګ نه پس چه الله تعالی هغه ته کوم ژوند ورکړو دَ هغې په بهتره طریقه سره شکر اداشی.

② بیا چه دا انسان دَ الله تعالی په ورکړې شوې قوتونو سره دَ ژوند اسباب لټوی. اودَ

ورځې په رڼا کښې نیکئی حاصلوی او حلال رزق ګټی. نوچه کله دا نعمت انسان ته حاصل شو نوالله تعالی دَدې نعمت دَ شکر اداکولو دَپاره په دې انسان باندې دَ ماسپښین مونځ فرض کړو.

③ بیا دَ انسانانو عام عادت دې چه هغه دَ غرمې په وخت کښې اوده کیږی دې دَپاره چه آرام اوکړی. دَ دغه خوب په وجه سره چه په ذکرالله او عبادت کښې کومه کوتاهی کیږی دَهغې دَپاره ئې دَ مازیګر مونځ فرض کړو چه دَ دغه کوتاهئی په ځائې راشی.

④ بیا عام عادت دې چه دَمازیګر په وخت کښې انسان په خپلو مشاغلو کښې او کار روزګار کښې ډیر زیات مشغول کیږی او په بازارونو کښې ګرځیدو سره بیا دَ غفلت ښکار کیږی. دغه شان دَ ټولې ورځې دَ نعمتونو تکمیل کیږی په دې وجه دَدې شکر اداکولو او دَ ګناهونو دَ ختمولو دَپاره الله تعالی دَ ماښام مونځ فرض کړو.

⑤ بیا چه کله انسان دَ هرقسم آفتونونه بچ کیدو سره دَ ورځې په ختمیدو باندې یو ښه انجام ته اورسیدو نو دَ حسن خاتمه شکر ادا کولو په ده باندې لازم شو په دې وجه الله تعالی دَ ماسخوتن مونځ فرض کړو. دې دَپاره چه دَ "ختامه مسك" مصداق جوړشی.

[اشعة اللمعات: ۲۰۵-۲۰۴]

**د مونځ د فرضیت نه وړاندې د تهجدو د مونځ په فرضیت کښې اقوال:** ① د امام شافعی رحمه الله قول دې چه د معراج نه وړاندې د تهجدو مونځ فرض وو.

② دزیاتو عالمانو هم دا خیال دې چه د پنځو مونځونو نه وړاندې څه مونځ فرض نه وو.

**د اول فریق دلیل:** د سورت مزمل اولنی آیاتونه ﴿قم اللیل الا قلیلا﴾ د دوی مستدلات دی.دا سورت په مکه کښې بالکل په اولنۍ زمانه کښې نازل شوې وو.

**د اول فریق د دلیل جواب:** په سورت مزمل کښې د مونځ حکم مدنی دې.ځکه چه ددې سورت په آخر کښې ﴿وَآخَرُونَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾مزمل: ۲۰﴾ راغلی دی. او قتال په مدینه منوره کښې شروع شوې وو.خو دا خبره صحیح نه ده.ځکه چه د قتال ذکر په دې سیاق کښې دې.﴿عَلِمَ أَن سَيَكُونُ مِنكُم مَّرْضَىٰ وَآخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِي الْأَرْضِ يَبْتَغُونَ مِن فَضْلِ اللَّهِ وَآخَرُونَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ په دې آیت کښې صیغه د مستقبل ده.دا په دې باندې دلالت کوی.چه دا حکم به روستو ورکولې شی.اود آیت د نزول په وخت کښې قتال نه وو.نوکه دا سورت مکی اوګڼړلې شی .په دې کښې څه قباحت نشته.نو دامام شافعی رحمه الله استدلال ټیک دې.خو د بعضې عالمانو قول دې.چه د تهجدو مونځ صرف په نبی ﷺ باندې فرض وو.په باقی امت باندې فرض نه وو.

**د مونځ د فرضیت نه وړاندې د بل مونځ په فرضیت کښې اقوال:** ① د بعضې عالمانو رحمهم الله دا خیال دې.چه د صبا او ماښام مونځ د معراج دشپې نه وړاندې فرض شوی وو.

د اول فريق دليل: دا آيت د دوى مستدل دي ﴿وَسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ﴾ آل عمران: ۴۱ دا آيت د معراج نه وړاندې نازل شوې دې.او په دې كښې هم ددې دوو مونځونو ذكر دې.

تحقيقي قول: په دې باره كښې تحقيقي خبره دا ده.چه دومره خبره خو د رواياتو نه ثابته ده.چه نبي ﷺ او صحابه كرامو ﷺ به د معراج نه وړاندې دصبا او ماښام مونځونه كول.په سورت جن كښې چه د جناتو د قرآن اوريدو كومه واقعه راغلې ده.هغه د صبا په مانځه كښې پېښه شوې وه.اوغالباً دا د معراج نه وړاندې وه.خودا دواړه مونځونه په نبي ﷺ فرض وو.كه دوى به دا نفلي كول.نوددې څه دليل او صراحت په رواياتو كښې نشته.

# الْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## ٥٦٤- د وړو ګناهونو معاف كونكي اعمال

٥٦٣-()[١] ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«الصَّلَوَاتُ الْخَمْسُ، وَالْجُمُعَةُ إِلَى الْجُمُعَةِ، وَرَمَضَانُ إِلَى رَمَضَانَ ;③ مُكَفِّرَاتٌ لِمَا بَيْنَهُنَّ ④ إِذَا اجْتُنِبَتِ الْكَبَائِرُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ

ترجمه: ① حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چه رسول الله ﷺ وفرمايل ② چه پنځه لمنځونه او دجمعي څخه ترجمعي پورې او د رمضان څخه تر رمضان پورې ③ هغه ګناهونه رژوي (معاف كيږي) چې د دې په مينځ كې شوې وي، ④ كه يو سړي د كبيره ګناهونو څخه بچ اوسي (.مسلم.)

حل اللغات: ① مُكَفِّرَاتٌ: دَ تكفير نه دَ كفاره په معنى كښې دې مراد دګناهونو كفاره او معاف كول اوختمول دی. ② اجْتُنِبَتِ: دا دَ اجتناب نه دَ مجهول صيغه ده، چه بچ اوساتلې شو.

تسهيلات:

قوله: "الصَّلَوَاتُ الْخَمْسُ" داكلمه خپل معطوفات سره مبتداء واقع ده اودَ "مكفرات" كلمه دَدې خبردې.

بعضې واړه ګناهونه معاف كونكي اعمال: دَ حديث شريف مطلب دادې چه دَ پنځومونځونو په مينځ كښې كوم واړه ګناهونه كيږي هغه دَ دغه مونځونو په ادا كولوسره ختميږي او معاف كيږي. دغه شان دَ يورمضان روژې ساتلو سره دَ بل رمضان پورې دَ ټول كال ګناه په دغه روژوسره ختميږي اومعاف كيږي.

(١) اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب الصلوات الخمس والجمعة إلى الجمعة، ورمضان إلى رمضان مكفرات لما بينهن ما اجتنبت الكبائر(رقم-١٦ - (٢٣٣) والترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فی فضل الصلوات الخمس(رقم-٢١٤) واحمد فی مسند:٣٥٩/٢

دا بحث وړاندې تیرشوې دې چه نیک اعمال کولوسره په اتفاق سره واړه ګناهونه معاف کیږي. دَ قرآن کریم آیت ﴿إِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ﴾ [هود: ۱۱۴]. نه هم دغه صغائرمراد اخستې شوی دی سره دَدې چه بعض علماؤ دَ کبائرهم قول کړې دې لیکن دَ جمهور علماؤ په نیزدَ کبائردَمعافئی دَپاره توبه کول ضروری دی. دغه شان دَ حقوق العباد دَمعافئی دَپاره ضروری دی چه دَ صاحب حق نه معافی اوغوښتلې شي. خلاصه دا چه په نیکو اعمالوسره صغائرمعاف کیږي اوکه توبه ئی اوکړه نو کبائرهم معاف کیږي اوکه توبه ئی اونه کړه نو په کبائرکښې تخفیف ضرورکیږي.

**د حدیث په مفهوم کښې دوه اقوال: "لمابینهن"** ① دَدې جملې یومطلب دادې چه دَ یوې ورځې پنځه واړه مونځونه واخله دَ بلې ورځې دَ پنځو مونځونو په مینځ کښې دَ دوو ورځو کوم صغائردی هغه معاف کیږي.

② دویم مطلب دادې چه دَهرو دوو مونځونو په مینځ کښې کومه ګناه کیږي په دغه مونځونوسره هغه ګناه معاف کیږي. په لمعات کښې شیخ عبدالحق رحمه الله لیکلی دی چه هم دغه دویم مطلب دلته مراد دې او احادیث په دې باندې دلالت کوي. [اشعة المعات: ۲۹۸، ۲۹۹]

**اشکال:** کله چه په یومونځ یا روژه سره او دَ جمعې په مونځ سره دَ بلې جمعې پورې ټول صغائرمعاف کیږي نو بیا په اودس کولواوجمات ته په تللوسره او بل مونځ سره څه معاف کیږي؟ څکه چه صغائرخو ټول په اول معاف شوی دی؟

**جواب:** دَدې جواب دادې چه په نورو نیکوسره به دَ دغه سړی درجې اوچتیږي او نورې نیکئی به دَهغه په عمل نامه کښې جمع کیږي. شیخ رحمه الله په لمعات کښې لیکلی دی چه دَ صغائردَختمیدو داصفت په هره نیکئی کښې موجوددې که یوختم کړل نودیره ښه ده اوکه ټولو په یوځائی ختم کړل نو نور علی نور به شي. [اشعة المعات: ۲۹۹]

**قوله:** "إِذَا اجْتُنِبَتِ الْكَبَائِرُ" په دې حدیث کښې دا بحث دې چه آیا دَ صغائرمعافئی دَپاره اجتناب علی الکبائر شرط دې یا شرط نه دې؟

**د ګناهونو درې صورتونه:** په دې کښې داتفصیل دې چه دلته درې صورتونه دی.

① که دَ یوسړی ګناهونه صرف صغائردی اوکبائرنه هغه سړې پاك دې نو په دې باندې اتفاق دې چه دَهغه به ټول ګناهونه معاف شي.

② دَ دغه سړی ټول ګناهونه کبائردی نو په دې باندې هم اتفاق دې چه دَ توبې کولونه بغیربه دَهغه هیڅ ګناه نه معاف کیږي الاماشاء الله.

③ دریم صورت دادې چه دَ یوسړی صغائرګناهونه هم دی اوکبائرهم دی.

**د صغائرو د مغفرت دپاره د کبائرو څخه د اجتناب په شرطیت کښې مذاهب:**

① په دریم صورت کښې دَمعتزله مسلك دادې چه دَ کبائر په موجودګئ کښې صغائرنه شې معاف کیدې اود کبائر دَمعاف کیدوخو هډو سوال نه پیدا کیږي. هغوی وائی دَ صغائرد معاف کیدو دَپاره اجتناب علی الکبائرشرط ګرځولې شوې دې

② جمهور اهل سنت والجماعت فرمائي چه دَ صغائرد معاف کیدودَپاره اجتناب علی الکبائر شرط نه دې دَ کبائر په موجودګئ کښې هم په نیکو اعمالو سره صغائر معاف کیږي

**داول فریق دلیل:** دَوی د زیربحث حدیث څخه استدلال کوی خکه چې په دې کښې د صغائرو د مغفرت دپاره د کبائرو څخه اجتناب شرط ګرځولې شوې دې.

**د اول فریق د دلیل جواب:** دا استدلال صحیح نه دې خکه چه "اذااجتنبت الکبائر" جمله دَ استثنٰی په خانی کښې واقع وی هغه دَ ماقبل دَپاره شرط نه وی نومطلب به داشی چه په نیکواعمالوصغائرمعاف کیږی کبائربه نه معاف کیږی.

**د دویم فریق دلیل:** اکثراحادیثوکښې مطلقًا دَ څه شرط نه بغیردَ صغائردَمعاف کیدو ذکرراغلې دې. (کذاقاله النووی)

### ۵٦۵–د مانځه په سبب د ګناهونو معاف کیدل

٥٦٥–()[٢] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«أَرَأَيْتُمْ لَوْ أَنَّ نَهْرًا بِبَابِ أَحَدِكُمْ يَغْتَسِلُ فِيهِ كُلَّ يَوْمٍ خَمْسًا، ③ هَلْ يَبْقَى مِنْ دَرَنِهِ شَيْءٌ؟» قَالُوا: لَا يَبْقَى مِنْ دَرَنِهِ شَيْءٌ. ④ قَالَ: " فَذَلِكَ مَثَلُ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ، يَمْحُو اللهُ بِهِنَّ الْخَطَايَا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې نبي کریم ﷺ صحابهٔ کرام رضی الله عنهم مخاطب کولو سره وفرمایل② تاسو وښایئ که په تاسو کې د چا د دروازي مخې ته د اوبو وَاله بهیږي اوهغه په هغې کې پنځه وخته لمبیږي③ نو آیا د هغه په بدن باندې د خیري څخه هم څه پاتې شي؟ صحابه وو رضی الله عنهم عرض اوکړو نه ،خیري به بالکل باقي نه پاتي کیږي④ حضور ﷺ وفرمایل نو پوهه شئ چې دا مثال دي د پنځو لمونځونو چې الله تعالٰی جل جلاله ټول (صغیره) ګناهونه د دې لمونځونو په سبب داسې ختموي (څنګه چې اوبه خیري لري کوي) (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① أَرَأَيْتُمْ: أَخْبِرُونِي: خبر راکړئ ماته، ② دَرَنِهِ: أَيْ: وَسَخِهِ: خیري، خیرن والي، ③ يَمْحُو: رجوی، ورانوی.

---

[١] اخرجه البخاری کتاب مواقیت الصلوة باب: الصلوات الخمس کفارة (رقم-٥٢٨) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة باب المشی إلی الصلاة تمحی به الخطایا، وترفع به الدرجات ر قم(٢٨٣ - (٦٦٧) والترمذی کتاب الأمثال عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب مثل الصلوات الخمس(رقم-٢٨٦٨) والنسائی کتاب الصلاة/ باب فضل الصلوات الخمس(رقم-٤٦٢) واحمد فی مسنده ٢/٣٧٩ والدارمی کتاب الصلاة/باب فی فضل الصلوات (رقم-١٢٢١)

**تسهیلات:**

**د حدیث د بعضې جملو وضاحت:**

① "أَرَأَيْتُمْ" اي اخبروني یعنی ماته اوښایه.

② "لَوْأَنَّ نَهَرًا" اي لوثبت ان نهرًا یعنی فرض کړه دچا دروازې سره د پاکوصفا اوبو نهر موجود وي.

③ "هَلْ يَبْقَى؟ هل يبقى" داجمله په محل د استفهام کښې ده یعنی د استفهام نه مقصود هم دغه جمله ده.

④ "مِنْ دَرَنِهِ" په بدن کښې خیری وغیره ته درن وائی د دې جمع ادران راځي.

⑤ "فَذَلِكَ مَثَلُ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ" دلته د فاء کلمه د شرط محذوف په جواب کښې واقع ده عبارت داسې دې "اذا اقررتم ذلك وصح عندكم فهو مثل الصلوة" [الکاشف عن حقائق السنن: ۱۷۳/۲] (کذا قال الطیبی)

**د تشبیه وجه:** په دې حدیث کښې په بدن باندې ظاهری خیری وغیره ته د ګناه سره تشبیه ورکړې شوې ده او د مونځ تشبیه ئی د اوبو سره ورکړې ده لکه څنګه چه د ظاهری خیری وغیره ختمیدل په اوبو سره کیږی دغه شان د باطنی خیری وغیره ګناهونو د ګندګئی ختمیدل په مونځ سره کیږی.

**اشکال:** په اوبو سره د وړوکې پلیتئی او غټې پلیتئی هر قسم ختمیدل کیږی حالانکه په مونځ سره صرف واړه ګناهونه ختمیږی لوئی نه؟

**د اشکال جواب:** دلته تشبیه ټولو اجزاؤ کښې نه ده بلکه بعضې اجزاء کښې ده او هغه وړه ګناه ده لکه څنګه چه وړه پلیتی صرف د اوبو په خویولو سره ختمیږی د مږلو ضرورت نه وی. دغه شان مونځونو سره صرف واړه ګناهونه معاف کیږی د توبې ضرورت نه وی.

### ۵۶۲ - د ټولو امت په نیکو باندې د ګناهونو معاف کیدل

۵۶۲ - (۱) [۳] ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «إِنَّ رَجُلًا أَصَابَ مِنِ امْرَأَةٍ قُبْلَةً، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ، ③ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: ﴿وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ﴾ [هود: ۱۱۴] ④ فَقَالَ الرَّجُلُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَلِي هَذَا؟ قَالَ: "لِجَمِيعِ أُمَّتِي كُلِّهِمْ" ⑤ "وَفِي رِوَايَةٍ: "لِمَنْ عَمِلَ بِهَا مِنْ أُمَّتِي. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابن مسعود رضی الله عنه فرمایي ② یو سړي د یو (غیر) ښځي څخه مچي (ښکل) واخسته بیا (د احساس ندامت او شرمندګي سره) د رسول کریم ﷺ په خدمت اقدس کې حاضر شو

(۱) اخرجه البخاری کتاب مواقیت الصلوة باب: الصلاة كفارة (رقم-۵۲۶) ومسلم كتاب التوبة باب قوله تعالى: {إن الحسنات يذهبن السيئات} [هود: ۱۱۴] رقم (۳۹ - (۲۷۶۳) والترمذی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم باب: ومن سورة هود (رقم-۳۱۱۴) واحمد فی مسنده: ۳۸۵/۱

او د واقعې څخه يې خبر کړو [او د دې حکم يې د نبی کريم ﷺ څخه وپوښتلو حضور ﷺ هيڅ جواب ورنه کړو بلکه د وحي په ذريعه دحکم الٰهي منتظر وو په دې اثناء کې هغه سړي مونځ اوکړو]۳ نو الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ دا ايت نازل کړو وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ، او مونځ د ورځې اول او آخر د شپې څو ساعتونوکې کوه ځکه چې نيکې (يعني لمونځونه) بدې ختموي،۴ د آيت نازليدو څخه وروسته هغه سړي عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ داحکم خاص زمادپاره دې (يا دپوره امت دپاره) ؟ حضور ﷺ وفرمايل نه دا حکم زما د پوره امت د پاره دې،۵ په يو بل روايت کې د حضور ﷺ جواب داسې مذکور دې چې حضور ﷺ وفرمايل زما په امت کې چې کوم سړي په دې آيت باندې عمل وکړي د هغه د پاره دا حکم دې [يعنی کوم سړي چې د بدې څخه وروسته نيکې وکړي هغه ته دا سعادت حاصليږي چې دهغه نيکۍ په نتيجه کښې دهغه بدې ختميږي] (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① أَصَابَ: أَيْ: أَخَذَ: وائې خستله، ② قُبْلَةٌ: مُچې، پَيه. ③ زُلَفًا: أَيْ: سَاعَاتٍ: دا دَ زلفة جمع ده دَ نيزدې په معنی کښې دې مراد ترينه وختونو اوساعتونه دی. ځکه چه ساعتونه هم يو بل ته نيزدې وی.

**تسهيلات:**

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:** ① "طَرَفَيِ النَّهَارِ" دَ ورځې دَ دوو طرفونه مراد دَ يوقول مطابق سحر اوماسپښين اول طرف دې او مازيګر اوماښام بل طرف دې.

② "وَزُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ" نه ماسخوتن مراد دې. دَ دويم قول مطابق سحريوطرف دې او ماسپښين او مازيګر بل طرف دې. اودَ "زلفامن الليل" نه مراد ماښام اوماسخوتن دواړه دی .[الكاشف: ۱۷۳/۲]

**قوله: "إِنَّ رَجُلًا"**

**د رجل نوم او د حديث شان ورود:** شارحينو ليکلی دی چه دَدغه سړی نوم ابواليسر وو. هغه لـه دکهجورو اخستودَپاره يوه انصاری ښځه راغله. دَدغه سړی دا ډيره خوښه شوه نوهغې ته ئی اووئيل چه ماسره په کورکښې دَدې نه زياتې ښائسته کهجورې دی هغه اوګوره. کله چه دغه ښځه دَهغه کورته راغله نوهغه دغه ښځه راغاړه وېسته او ښکل ئی کړه. هغه ښځې اووئيل دَ الله تعالی نه اوويريږه. دې اوريدوسره هغه سړې په خپلو کړو باندې پښيمانه شو اودَ کورنه بهر راؤوتلو. حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه راروان وو هغه سړی دَ خپل دې غلط حرکت ذکر دَهغوی په مخکښې اوکړو. حضرت ابوبکر رضي الله عنه اوفرمائيل توبه اوکړه اوبيا داسې ګناه اونه کړې. دا سړې بيا نبی کريم ﷺ لـه راغلو اوټولـه قصه ئی ورتـه بيان کړه. [الكاشف عن حقائق السنن: ۱۷۳/۲وفی اللمعات: ۲۹۹]

**د صغائرو معاف کیدل:** په دې حدیث کښې سیئات یعنی ګناهونه اودې نه مخکښې والا حدیث کښې خطایا یعنی ګناهونو کوم الفاظ چه راغلی دی. دَ هغې نه ګناه صغیره یعنی وړه ګناه مراد ده. نور دَدې حدیث نه دامعلومه شوه چه دَ یوې ښځې صرف ښکلول سره دَدې چه دَ فتنې محل دې مګردا په غټوګناهونوکښې داخل نه دی اوکه چرې زنا نې اوکړه نوبیا دا ټول ښکلول راښکلول اوکتل اوریدل ټول به په غټوګناهونوکښې شمیرلې کیږي.

**۵۷۶-د صحابۀ دالله نه ویره**

۵۷۶-()[۴] ⓵ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ⓶ «جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أَصَبْتُ حَدًّا فَأَقِمْهُ عَلَيَّ. ⓷ قَالَ: وَلَمْ يَسْأَلْهُ عَنْهُ. وَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ، فَصَلَّى مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلَاةَ، ⓸ قَامَ الرَّجُلُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أَصَبْتُ حَدًّا، فَأَقِمْ فِيَّ كِتَابَ اللَّهِ. قَالَ أَلَيْسَ قَدْ صَلَّيْتَ مَعَنَا قَالَ نَعَمْ ⓹ قَالَ: "فَإِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ قَدْ غَفَرَ لَكَ ذَنْبَكَ-أَوْ حَدَّكَ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⓵ حضرت انس رضی الله عنه فرمایي ⓶ چه یو سړي د نبي کریم ﷺ په خدمت کې عرض اوکړو چې یا رسول الله ﷺ زما څخه یو داسې کار شوې دې چې په هغې حد واجب دې نو ته په ما حد جاري کړه ⓷ د راوي بیان دې چه حضور ﷺ د هغه څخه د حد متعلق هیڅ معلومات ونه کړل او د مونځ وخت راغي هغه سړي د حضور ﷺ سره مونځ وکړو کوم وخت چې حضور ﷺ د لمانځه څخه فارغه شو ⓸ نو هغه سړي ودریدلو بیا یي عرض وکړو یا رسول الله ﷺ زما څخه داسې کار شوې دې چې واجبونکې دحد دې نو ته زما په باره کې د الله جل جلاله حکم نافذ کړه ⓹ حضور ﷺ وفرمایل ایا تاز زمونږ سره مونځ ونه کړو ؟ هغه اوویل چې هو حضور ﷺ وفرمایل چه الله جل جلاله ستا خطا، یا وي فرمایل ستا حد بخښلې دې، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① أَصَبْتُ حَدًّا: أَيْ: فَعَلْتُ شَيْئًا يُوجِبُ الْحَدَّ: یعنی داسې ګناه مې کړې ده چه حد پرې واجبیږي. ② فَأَقِمْهُ: قائم ئې کړه، نافذ کړه دا (حد).

**تسهیلات:**

**قوله: "أَصَبْتُ حَدًّا"**

**دحسناتو سره د کبائرو په معاف کیدو باندې اشکال:** دلته دا اشکال دې چه دغه سړي پخپله اقرار اوکړو چه ما لوئی ګناهونه په شان دَ غلا او شرابوڅکلووغیره کړې دی او حضورپاک دَ مونځ په اداکولوسره دَ هغې دَ بخښنې اعلان اوکړو په کوم سره چه معلومه شوه چه مونځ وغیره نیکواعمالوسره دَ وړې ګناه نه علاوه لوئی ګناهونه هم معاف کیږي حالانکه معامله داسې نه ده؟

(۱) اخرجه البخاری کتاب الحدود باب البکران یجلدان وینفیان (رقم-۶۸۳۳) ومسلم کتاب التوبة باب قوله تعالی: {إن الحسنات یذهبن السیئات} [هود: ۱۱۴]رقم( ۴۵ - (۲۷۶۵)

**داشکال جوابونه:** ① دغه سړی پښیمانه کیدوسره په ډیر اخلاص سره توبه اوکړه په کوم سره چه دَ هغه لویه گناهم معاف شوې وه. په مونځ کولوسره هغه ته صرف زیرې ورکړې شو. بهرحال څواحتمالات دی په دې وجه څه اشکال نشته دې.[الکاشف: ۱۷۴/۲]

② دې سړی په تعزیر باندې دَحد استعمال اوکړودَ هغه گناه دَ تعزیر سبب وو کومه چه وړه وه.

③ دَدغه سړی لوئی گناهونه نه وولیکن هغه دَ خپل خان نه دا گمان کړې وو چه زما گناه ډیره لویه ده. دَ الله تعالی نه ویریدونکی وړه گناه هم لویه گنړی.

**د گناه نوعیت معلومولو څخه اعراض ولې وشو؟** حضورپاك دَ دغه سړی دَ گناه دَ نوعیت معلومولوباره کښې تحقیق اوتفتیش ولې اونه کړې شو که دَ هغه گناه لویه وی؟

**اشکال جواب:** حضورپاك ته به دَ وحی، الهالم یا دَ کشف په توگه معلومه شوې وی چه دَدغه سړی گناه وړه ده لویه نه ده گنی که هغه سړی په حقیقت کښې دَحد گناه کړې وه نودَ حد مقدمه دَ حاکم عدالت ته رسیدونه پس دَ حد جاری کولو نه بغیر هیڅ حاکم معاف کولې نه شی. "اوحدك"دَ راوی په دې کښې شك شوې چه حضورپاك دَ "حدك"لفظ ارشاد کړې وو یا دَ "ذنبك" ئی فرمائیلې وو. دَدې نه دَ محدثینوحضراتو دَ احتیاط اندازه کیږی چه هغوی دَ حضورپاك دَ ارشاد فرمائیلو الفاظو نقل کولوکښې څومره اندازې سره اهتمام کوی.

## ٥٦٨-په عباداتو کښې بهترین عمل

٥٦٨-()[٥] [١] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيُّ الْأَعْمَالِ أَحَبُّ إِلَى اللَّهِ تَعَالَى؟ [٣] قَالَ: الصَّلَاةُ لِوَقْتِهَا". [٤] قُلْتُ: ثُمَّ أَيٌّ؟ قَالَ: بِرُّ الْوَالِدَيْنِ. [٥] قُلْتُ: ثُمَّ أَيٌّ؟ قَالَ: الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ. [٦] قَالَ: حَدَّثَنِي بِهِنَّ، وَلَوِ اسْتَزَدْتُهُ لَزَادَنِي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي [٢] چه ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې الله تعالى جل جلاله ته کوم عمل د ټولو څخه زيات خوښ دي؟ [٣] حضور ﷺ وفرمايل په وخت مونځ کول (يعني په مکروه وخت کې مونځ او نه کړې شي) [۴] ما اوويل بيا کوم عمل بهتر دي؟ وي فرمايل د مور اوپلار سره نيك سلوك کول [٥] ما عرض وکړو بيا کوم عمل بهتر دي؟ حضور ﷺ وفرمايل د الله په لار کې جهاد کول، [٦] ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چه حضور ﷺ دا دري خبري فرمايلي وي که ما زياتي پوښتني کړي وې نو حضور ﷺ به د دې څخه هم زيات بيان فرمايلي وي، (بخاري ،مسلم)

**حل اللغات:** ① بِرٌّ: نیکی، ښه سلوك.

---

(١) اخرجه البخاری کتاب مواقیت الصلوة باب فضل الصلاة لوقتها (رقم-٥٢٧) ومسلم کتاب الایمان بیان کون الإیمان بالله تعالی أفضل الأعمال (رقم) ١٣٩ - (٨٥) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الوقت الأول من الفضل (رقم-١٧٣) والنسائی کتاب المواقیت/ باب فضل الصلاة لمواقیتها(رقم-٦١٠) واحمد فی مسنده:٤٠٩/١

**تسهیلات:**

**قوله:** "أَيُّ الْأَعْمَالِ أَحَبُّ إِلَى اللهِ تَعَالَى؟" يعنى په عملونوكښې دَ ټولو نه غوره عمل كوم يو دې.

**سوال يو او جوابونه مختلف ولې؟** دَ ټولو نه غوره او اوچت خو هم يو څيز كيدې شى. ليكن په احاديثوكښې چه رسول الله ﷺ نه دَ ټولو نه دَ غوره عمل باره سوال اوكړې شونو حضورپاك په جواب كښې مختلف عملونه غوره ګرځولى دى. مثلاً په زير بحث حديث كښې "الصلوة لوقتها" ئى ټولو نه غوره ګرځولى دى.

دَ حضرت ابوذرغفارى رضي الله عنه په حديث كښې "ايمان بالله وجهاد فى سبيل الله" ئى غوره ګرځولى دى. په يوحديث كښې "اطعام الطعام" غوره ګرځولې دې. يو بل حديث كښې "ان يسلم المسلمون من يده ولسانه" ته دَ ټولو نه بهتر عمل وئيلې شوې دې. يوحديث كښې "ذكرالله" ته دَ ټولو نه غوره عمل وئيلې شوې دې. په يوحديث كښې "ان افضل الاعمال جهاد لاغلول فيه" دَ ټولو نه غوره عمل ګرځولې شوې دې. او په يوحديث كښې "ان احب الاعمال الى الله ادومه" راغلې دې. نودَ سوال مقصد دادې چه دَحضورپاك دَ ژبې مباركې نه دا مختلف جوابونه څنګه راغله؟

**دا اشكال جوابونه:** دَ حديث شارحينوحضراتو دَدې سوال مختلف وجوهاتودَ وجې نه جوابونه وركړى دى. په بنيادى توګه باندې په دې خبره باندې ځان پوهه كول ضرورى دى چه فضيلت كليه صرف ايمان ته حاصل دې په عملونوكښې يوعمل ته كلى فضيلت حاصل نه دې البته افضليت جزئى وى. نودَ عملونوباره كښې چه دامختلف جوابونه راغلى دى

داخويا دَ سوال كونكوپه اعتبار سره اختلاف راغلې دې چه په هريوسوال كونكى كښې چه كومه عملى كمزورى وه هغه ئى ورته په ګوته كړه يعنى ستادَ پاره او ستا مناسب خودَ ټولو نه غوره فلانكې عمل دې په كوم كښې چه تانه سستى كيږى.

② كوم كوم ځائى كښې دَ اسم تفضيل صيغه استعمال كړې شوې ده دَ هغې نه مراد نفس فعل او مطلق فضيلت دې په يوبل عمل باندې اوچتوالې مقصود نه دې.

③ دَ زمان اووخت په اعتبارسره ئى يوعمل دَ ټولونه غوره ګرځولې شوې دې. مثلاً دَ جهادپه زمانه كښې ئى جهاد ته غوره وئيلى دى اودَ حج په موسم كښې حج غوره ګرځولې دې اوپه اضطرارى حالت كښې دَمضطر خوراك خوړل غوره ګرځولى دى.

④ افضل خو يو نوع يعنى قسم دې اودَ دغه نوع يو كس نه بلكه بې شميره كسان كيدې شى. نوچه كوم عمل ته غوره اووئيلې شو نوهغه به لكه دَ هغه نوع يوكس وى. دا ډير ښه جواب دې.

⑤ افضليت په مختلف اعتبارونوسره دې. مثلاً ابوبكر رضي الله عنه دَ ارحم امة په اعتبارسره افضل

دي. عمر فاروق اشدهم في امرالله عمر په اعتبارسره افضل دي. حضرت عثمان رضي الله عنه دَ حيا په اعتبارسره او حضرت علی رضي الله عنه دَ قضاء په اعتبارسره افضل دي.
يا مثلاً جهاد دَ اعلاء كلمة الله په اعتبارسره افضل دي او مونځ دَ ذكرالله په اعتبارسره افضل دي او سلام دَتواضع په اعتبارسره دَ ټولو نه افضل دي اوصدقه دَ همدردئی او سخاوت په اعتبارسره دَ ټولو نه افضل ده نودَ دي حديث دَ نورو احاديثوسره هيڅ څه تعارض نشته دي. دا جواب هم ډير ښكلي دي.

## دَ ټولو نه افضل او غوره عمل كوم يو دي؟

**د صلاة او جهاد په افضليت كښي اقوال:** دَ ايمان مقابله خوهيڅ يو عمل سره نه شي كيدي او په مونځ اوجهاد في سبيل الله كښي فقهاؤ بحث كړي دي چه كوم يو افضل دي. ① دَ علماؤ يوه لويه طبقه دي طرف ته تلي ده چه مونځ مطلقًا افضل دي
② مګر دَ علماؤ يوه طبقه دي طرف ته هم تلي ده چه جهاد دَ ټولو نه افضل عمل دي.
يادلرئی چه دا تقابل هغه وخت دي كله چه جهاد فرض كفايه وی ليكن كه جهاد فرض عين شي نوبيا دَايمان نه پس دَ ټولو نه افضل عمل جهاد دي.

## دحديث د بعضي جملو وضاحت:

① "حَدَّثَنِي بِهِنَّ" په دي جمله سره حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دَ حديث دَ سماع تاكيد كوی چه دا خبري ماته پخپله حضورپاك مبارك بيان كړی دی او ما پخپله اوريدلی دی هيڅ واسطه نشته دي.
② "وَلَوِاسْتَزَدْتُهُ" يعنی كه دَ افضليت والا دَ خبرو باره كښي ما نور معلومات كړي وي نوحضورپاك به ماته نور عملونه بيان كړی وي ليكن ما نور سوال اونه كړو دي دَ پاره چه حضورپاك په مشقت كښي نه شي.

## ۵۴۹- د مؤمن او د كافر په مينځ كښي تميز كونكي عمل

٥٤٩-()[٢] [١] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " «بَيْنَ الْعَبْدِ وَبَيْنَ الْكُفْرِ تَرْكُ الصَّلَاةِ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي چي نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل[٢] مونځ پريښودل د مؤمن بنده او د كفر په مينځ كي د يوال غورځوي. (مسلم)

---

(١) اخرجه مسلم كتاب الايمان اب بيان إطلاق اسم الكفر على من ترك الصلاة رقم (١٣٤ - (٨٢) وابوداود كتاب الديات/باب فى رد الإرجاء(رقم-٤٦٧٨) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، باب ما جاء فيمن ترک الصلاة(رقم-١٠٧٨) والترمذی كتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى ترک الصلاة (رقم-٢٦١٨)

**تسهیلات:**

**قوله:** "بَيْنَ الْعَبْدِ" یعنی دَ مسلمان او کفر په مینځ کښې پرده او بندیز مونځ دې.

**اشکال:** دَدې حدیث دَ ظاهری الفاظونه یو اشکال پیدا کیږی هغه داسې چه دَ ظاهری الفاظو مطلب دادې چه دَ بنده او کفر په مینځ کښې فرق کونکې څیز ترک الصلوٰة دې حالانکه دَبنده او کفر په مینځ کښې فرق کونکې څیز دَمونځ کول دی نه چه ترک کول دی؟

**داشکال جوابونه:** ① قاضی عیاض رحمه الله دا جواب ورکړې دې چه دلته په حدیث کښې چه "بین" کوم لفظ دې داظرف دې او هر یو ظرف دَ خپل ځان دَ پاره یو متعلق غواړی نودَ دغه ظرف متعلق محذوف دې کوم چه دَ وصلة لفظ دې. تقدیری عبارت داسې دې "ترک الصلوٰة وصلة بین العبد والکفر" یعنی مونځ پریخودل سړې کفر طرف ته اوری. په دې دواړو توجیحاتو کښې رومبې ډیر واضح دې سره دَدې چه په دې کښې تاویل دې. [الکاشف: ۲/۱۷۷]

② علامه طیبی رحمه الله وغیره دَدې جواب ورکړې دې کوم چه په حقیقت کښې قاضی عیاض مالکی رحمه الله ورکړې دې هغه دادې چه دَ ترک لفظ "حد" په معنی کښې واخستې شی نو مطلب به صفاشی یعنی دَ بنده او کفر په مینځ کښې چه کوم حد فاصل دې هغه مونځ دې که یوسړې دغه حدنه تیریږی او مونځ نه کوی نو هغه به دَ کفر په میدان کښې داخل شی او کفر ته به نیزدې شی.

③ شیخ عبدالحق رحمه الله په لمعات کښې دا جواب ورکړې دې. فرمائی کیدې شی چه په دې حدیث کښې "العبد" نه مؤمن مراد وی او "الکفر" نه کافر مراد وی نو معنی به داسې شی چه دَ مؤمن او کافر په مینځ کښې فرق کونکې څیز دَمانځه پریخودل دی چاچه مونځ پریخودو هغه کافر کیږی او چاچه اوکړ و هغه به مسلمان وی. [اشعة المعات: ۲۰۱]

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## ۵۷۰—په ښه شان مولځ د ګناهونو د بخشش سبب

۵۷۰—(۱)[۷] ① عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «خَمْسُ صَلَوَاتٍ افْتَرَضَهُنَّ اللّٰهُ تَعَالَى ; ③ مَنْ أَحْسَنَ وُضُوءَهُنَّ، وَصَلَّاهُنَّ لِوَقْتِهِنَّ، ④ وَأَتَمَّ رُكُوعَهُنَّ وَخُشُوعَهُنَّ، ⑤ كَانَ لَهُ عَلَى اللّٰهِ عَهْدٌ أَنْ يَغْفِرَ لَهُ، ⑥ وَمَنْ لَمْ يَفْعَلْ فَلَيْسَ لَهُ عَلَى اللّٰهِ عَهْدٌ إِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهُ، وَإِنْ شَاءَ عَذَّبَهُ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى مَالِكٌ وَالنَّسَائِيُّ نَحْوَهُ.

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب فی المحافظة علی وقت الصلوات(رقم-۴۲۵) ومالک کتاب صلاة اللیل باب الأمر بالوتر(رقم-۱۴) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء فی فرض الصلوات الخمس والمحافظة علیها (رقم-۱۴۰۱) والنسائیکتاب الصلاة/باب المحافظة علی الصلوات الخمس(رقم-۴۶۱) والدارمی کتاب الصلاة /باب فی الوتر (رقم-۱۶۱۸)

**ترجمه:** ① عباده بن صامت رضي الله عنه راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل② کوم سړي چې د دې پنځه لمونځونو دپاره چې الله تعالى جل جلاله فرض کړي دي (د فرائضو اومستحباتو د ادائيګي سره)③ په ښه شان اودس وکړو اوهغه په وخت وکړي④ په هغه کې رکوع اوخشوع وکړي (يعني لمونځونه يې د زړه د حاضري سره وکړل) ⑤ نو د هغه د پاره د الله تعالى جل جلاله په ذمه (يعني دالله تعالى جل جلاله وعده) دا ده چې د هغه (صغيره) ګناه وبخښي⑥ اوکوم سړي چې داسې ونه کړل (يعني په مذکوره بالا طريقې سره يا مطلق مونځ ونه کړي) نو الله تعالى جل جلاله د هغه ذمه وار نه دي که غواړي نو وي بخښي او غواړي نو په عذاب کې يې اخته (مبتلا) کړي. (احمد، ابوداؤد، مالك، نسايي)

**حل اللغات:** ① خُشُوعَهُنَّ: اَلْخُشُوْعُ حُضُوْرُ الْقَلْبِ: د زړه حضور او اطمينان.

**تسهيلات:**

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:**

① "مَنْ أَحْسَنَ وُضُوءَهُنَّ، احسن وضوءهن" بهترين او احسن اودس هغه دې دَ کوم فرائض او سنن او مستحباتو پوره پوره خيال اوساتلې شي

② "وَصَلَّاهُنَّ لِوَقْتِهِنَّ،" دلته دَ لام کلمه "في" په معنى کښې ده يعنى افضل اومستحب وختونو کښې مونځ اداکړی

③ "وَخُشُوعَهُنَّ،" دلته ممکن دی چه دَ خشوع نه سجده مراد واخستلې شی او رکوع او سجده په دې وجه خاص کړې شوه چه په مانځه کښې دااهم ارکان دی. [وفي الكاشف: ۱۷۸/۲]

**قوله: "عَهْدٌ"**

**د عهد مختلف معاني:** ① عهد دلته دَ وعدې په معنى کښې اخستې شوې دې مطلب دا چه الله تعالى دَ احسان په توګه بنده سره دَ مغفرت داسې وعده کړې ده دَ کوم پوره کول چه به يقينى وی.

② دلته دَ اتساع او تشاکل په توګه دَ بنده طرف ته دَ عهد نسبت کړې شوې دې.

③ مجمع البحار کښې ليکلی دی چه دَ "عهد" لفظ دَ يووصيت په معنى کښې هم استعماليږی. په احاديثو کښې دَ عهد لفظ هم دَدغه معنو نه په يونه يو معنى کښې استعماليږی. (كذا في اللمعات)

④ علامه توريشتى رحمه الله ليکی چه دَ يو څيز في الحال او في المآل حفاظت اورعايت سره مکمل خيال ساتلو ته هم عهد وائی. هم دَدې وجې نه چاسره پخه وعده کولو ته عهد وائی.

**د مرتکب کبيرې عدم کفر:** شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې ليکی په دې حديث کښې دَدې خبرې دليل دې چه مونځ پريخودونکې کافرنه دې اود ګناه کبيره مرتکب کيږی.

بیافرمائی چه دَ کبیره دَ مرتکب باره کښې دا واجب اولازم نه دی چه الله تعالی دې هغه ته سزا ورکړی داخالص دَالله تعالی مرضی ده چه هغه ته عذاب ورکړی یائی معاف کړی دا دَ اهل سنت مسلك دې. بل په دې هم ځان پوهه کول پکاردی چه دَ ګناه کبیره مرتکب دائمی دوزخی نه دې بلکه دَ ګناه په اندازه باندې دَ سزا خوړلونه پس به دَ دوزخ نه راویستلې شی. دَ خوارج او معتزله په دې کښې اختلاف دې. دَ اهل سنت په نیزپه الله تعالی باندې دَ بنده دَ طرف نه هیڅ څیز واجب نه دې. که چرې الله تعالی یوصالح مؤمن یا مجانین واطفال په عذاب کښې ساتل غواړی یا څوك فاسق په ثواب اونعمت کښې ساتل غواړی نوهغه په دې کښې دَ هیڅ یوطرف نه پابندنه دې. بهرحال مونږ کول دَهریومسلمان ذمه واری ده کومه چه دَالله تعالی دَطرف نه په هغه باندې مقرره دَدې ادا کول لازم دی که چاته په دې کښې مزه ورځی او که نه ورځی.

## ۱۷۵- په جنت کښې دلوړو درجو حاصلونکی اعمال

۱۷۵- (۸)[۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «صَلُّوا خَمْسَكُمْ، وَصُومُوا شَهْرَكُمْ، [۳] وَأَدُّوا زَكَاةَ أَمْوَالِكُمْ، [۴] وَأَطِيعُوا ذَا أَمْرِكُمْ، [۵] تَدْخُلُوا جَنَّةَ رَبِّكُمْ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابو امامه رضی الله عنه راوي دي[۲] چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل (مسلمانانو!) پنځه وخته خپل لمونځونه کوئ د رمضان د میاشتي روژي نیسئ [۳] د خپل مال زکوٰة ورکوئ [۴] او د خپل سردار (تر څو پورې چې هغه د خلاف شرع څیزونو حکم ونه کړي) [۵] طاعت کوئ (که داسې وکړئ نو) دخپل رب په جنت کې به داخل شئ (یعني په جنت کې به د اوچتو درجو حقداره شئ) (احمد، ترمذي)

**حل اللغات:** ① ذَاأَمْرِكُمْ: أَي: الْخَلِيفَةَ وَالسُّلْطَانَ: بادشاه او حاکم.

**تسهیلات:**

**قوله: "صَلُّوا خَمْسَكُمْ"**

**امت محمدی ته د خمس د نسبت وجه:** یعنی هغه پنځه مونځونه اداکوئی کوم چه په ورځ اوشپه کښې په تاسو باندې فرض دی او کوم چه تاسوسره خاص دی. علامه طیبی رحمه الله لیکی چه دَدې عملونو اضافت دَدې امت دَ کسانوطرف ته ځکه کړې شوې دې چه عملونه دَخپلو کیفیتونو او خصوصیتونوسره دې امت سره خاص دی دَ کوم په وجه چه داامت دَ نورو امتونو په مقابله کښې په دې عملونوکښې ممتاز شوې دې.

(۱) اخرجه الترمذی کتاب السفر/باب ما ذکر فی فضل الصلاة (رقم-۶۱۶)

**قوله: "شَهْرَكُمْ"**

**په شهر کښې د رمضان نه ذکر کولو وجه:** دې نه دَرمضان روژې مراد دی. دَ رمضان میاشت مشهوره وه په دې وجه دَ صراحت ضرورت نه وو. دَ زکوة ذکر دَ روژې نه پس اوکړې شو. کیدې شی دا تاخیر دَ یوراوی دَ بیان دَ وجې نه شوې وی.

**د صوم د زکاة نه د روسته ذکر کولو وجه:** ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه دَ فرضیت په اعتبارسره زکوة دَ رمضان دَ فرض کیدونه پس فرض شوې وو په دې وجه روستو ذکرکړې شو او قرآن اوحدیث کښې دَمانځه سره زکوة ځکه متصل کیخودې شوې دې چه مونځ دَ بدنی عبادتونو جرړه ده او زکوة دَ مالی عبادت اصل او جرړه ده. په دې حدیث کښې دَ حج ذکرنشته. علماء فرمائی چه دَدې حدیث دَ بیانولووخت کښې به حج نه وی فرض شوې.

**قوله: "ذَاأَمْرِكُمْ"**

**د ذاأمر مصداق:** ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه دې نه خلیفه اوبادشاه اودَ هغه ښکته وزیران مراد دی یادَې نه علماء مراد دی چه دَ شریعت په رڼا کښې علماء کوم حکم کوی دَهغې تابعداری اوکړئ. کوم حکمرانان چه دَ شریعت خلاف حکمونه جاری کوی دَ هغوې تابعداری نه ده (بلکه دَ هغې نافرمانی ضروری ده).

**قوله: "تَدْخُلُوا جَنَّةَ رَبِّكُمْ"** دَ وړاندې څلورو کارونو جواب دادې یعنی اول کښې داخلیدو سره به جنت کښې داخلیږئ.

**اشکال:** دَ جنت دَ داخلیدو دَپاره اصلی سبب او علت خودَ الله تعالی رحمت او فضل اوکرم دې دلته اعمال دَعلت او شرط په درجه کښې ولې کیخودې شوی دی؟

**داشکال جواب:** دَ جنت دَ داخلیدودَپاره اصل علت او سبب خودَ الله تعالی رضا اودَ هغه فضل و کرم دې لیکن دَ جنت دَ اوچتو درجودَ حاصلولودَپاره دَاعمالو کیدل ضروری دی. علماء کرام دَدې اشکال داجواب هم ورکوی چه دَ جنت دَ داخلیدودَپاره نیک عملونه دَ اسباب او سبب په درجه کښې دی دکوم طرف ته چه نسبت په ې مناسبت سره کیږی. ؟

**۵۷۲- د اولادکالو ماشومانو ته د مانځه حکم**

۵۷۲-()[۹] [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مُرُوا أَوْلَادَكُمْ بِالصَّلَاةِ وَهُمْ أَبْنَاءُ سَبْعِ سِنِينَ، [۳] وَاضْرِبُوهُمْ عَلَيْهَا وَهُمْ أَبْنَاءُ عَشْرٍ، [۴] وَفَرِّقُوا بَيْنَهُمْ فِي الْمَضَاجِعِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ،

**ترجمه:** [۱] عمرو ابن شعیب د خپل والد مکرم څخه او هغه د خپل نیکه څخه روایت کوي

[۱] اخرجه ابوداود کتاب الصلوة باب متی یؤمر الغلام بالصلاة (رقم-۴۹۵) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء متی یؤمر الصبی بالصلاة (رقم-۴۰۷)

چې نبي کريم ﷺ وفرمایل[۲] هر کله چې ستاسو ماشومان د اوو⑦ کالو شی نو هغوئ ته د مونځ کولو حکم ورکړئ[۳] او هر کله چې هغوي د لسو ⑩ کالو شی نو په لمانځه پرېښودلو باندې هغوي وهئ[۴] اوهغوئ په بسترو کې سره جدا کړئ، (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① فَرِّقُوا: جدائی اوکړئ، ② الْمَضَاجِع: أي: الْمَرَاقِد: د څملاستو ځایونه.

**تسهیلات:**

**قوله:** "سَبْعِ سِنِينَ"

**داووه کالو د عمر د تخصیص وجه:** دَ اووه کالودَتخصیص وجه ملاعلی قاری رحمه الله او شیخ عبدالحق رحمه الله دالیکلي ده چه په دې عمر کښې په سړی کښې دَ قوت اوطاقت یونوې درو شروع کیږی هم دغه وجه ده چه دویم سبع یعنی څوارلسم کال نه پس دَ بلوغ دور شروع کیږی. په دې وجه دَ اووه کالو په عمر کښې ماشوم ته دَ مونځ عادت کولو حکم ورکړې شوې دې دې دَ پاره چه ماشوم سره اموخته شی.

**د لسو کالو د عمر د تخصیص وجه:** شیخ عبدالحق رحمه الله نور فرمائی چه دَ لسو کالو په شمیر کښې ړومبې لس دی او په دې عمر کښې په ماشوم کښې داسې طاقت راځی کوم چه دَ بلوغت حدودته نیزدې وی په دې وجه په شرعی حکم کښې هم سختی راځی او نوبت وهلو ټکولوته رسی. او هم دغه شعور عمر اوهوش اوحواس کښې دَ راتللودَ وجې نه دَ هلك اوجینئی په دې عمر کښې په یوځائی سملاستلونه منع کړې شوې دی اودا حکم چه څنګه دَ خور او رور دپاره دې هم دغه پردی هلك او جینئی دَپاره هم دې بلکه دَهغوی دَ پاره دا ممانعت په درجه اولی دې.

**قوله:** "وَاضْرِبُوهُمْ"

**د دینی تربیت دپاره د ماشومانو د معمولی وهلو جواز:** په دې حدیث کښې دَ ماشومانودَپاره دَ سزا او تربیت په توګه کم ورکړې شوې دې چه په یومونځ پریخودو باندې هغوی تادیبًا وهئی او بل دا چه دَ تربیت په توګه ورله بسترې جدا کړئی دَ حکم تعلق حقوق الله سره دې او دَدویم تعلق حقوق العباد اودَ معاشرې اصلاح سره دې، دغه شان دَدې حدیث په تعلیم کښې پوره دین راغلو. او په دې کښې داخبره هم راغلهَ چه دَ دین دَ یوحکم په خلاف کولوباندې ماشوم وهلې شی. افسوس سره وئیلې کیږی چه نن صبا سکول نه وئیلوباندې دَ پنځوکالودَ ماشوم بنه وهل ټکول کوی مګردَ مونځ پرواه نه کوی.

**یوه فقهی مسئله:** ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی که چرې دوه سړی یا دوه ښځې په جاموکښې یوبل سره داسې اوده شی چه دَ ستر والااندامونه بربنډیدو سره یوبل پورې اونه لګی نو دا جائزدی.

۵۷۳-()[۹] ① وَكَذَا رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" عَنْهُ. وَفِي الْمَصَابِيحِ عَنْ سَبْرَةَ بْنِ مَعْبَدٍ.

**ترجمه:** ① دغسې په شرح السنه کې د عمرو ځخه او په مصابيح کې د سبره ابن معبد ځخه دا روايت نقل شوې دي

## ۵۷۴-د کافرانو او مسلمانانو په مينځ کښې پيژندګلو

۵۷۴-()[۱۰] ① وَعَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«الْعَهْدُ الَّذِي بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمُ الصَّلَاةُ، ③فَمَنْ تَرَكَهَا فَقَدْ كَفَرَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① حضرت بريده رضي الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل② زمونږ او د منافقانو په مينځ کې چې کوم عهد دي هغه مونځ دي③ چا چې مونځ پريښودو هغه کافر شو. (احمد، ترمذي، نسايي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① الْعَهْدُ: أَيْ: الْمِيثَاقُ الْمُؤَكَّدُ بِالْإِيمَانِ: مضبوط لوظ چه په ايمان مضبوط شوې دي.

**تسهیلات:**

**قوله: "بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ"**

**د مونځ په وجه د ظاهرى حفاظت ضمانت:** يعنى زمونږ اودَمنافقانو په مينځ کښې دَ ځان اومال دَ حفاظت چه کومه معاهده شوې ده چه مونږ دَهغوى ځان اومال سره څه غرض نه کوو. دَ دې بنيادى وجه داده چه هغه خلق په ظاهرى توګه باندې دَ ځان خودلودَپاره مونځ کوى په کوم سره چه هغوى دَمسلمانانو په شان کيږى. اوس که چرې دغه خلقو مونځ پريخودو کوم چه په ټولو عبادتونوکښې دَټولو نه غوره عبادت دې. نوهغوى او کافران به په ظاهرى توګه يوشان شى ځکه چه دَ عقيدې سره منافقان خودَ اول نه کافران وو ليکن دَ مونځ کولودَوجې نه دَهغوى په کفرباندې پرده پرته وه. کله چه ئې مونځ پريخودو نودکفرنه ئې پرده اوچته شوه.

شارحين حديث دَدې تشريح په رنړاکښې "فقدكفر" ترجمه کوى چه اوس هغوى خپل کفرښکاره کړو. دَدې مضمون تائيد دَدې حديث سره هم کيږى کله چه دَ حضورپاك نه دَمنافقانودَ قتل کولواجازت اوغوښتې شو نوحضورپاك ارشاد اوفرمائيلو چه دَمونځ کونکودَقتل کولونه منع کړې شوې يم.

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلوة باب متى يؤمر الغلام بالصلاة (رقم-۴۹۴)

(۲) اخرجه الترمذى كتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى ترك الصلاة (رقم-۲۶۲۱) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، باب ما جاء فيمن ترك الصلاة(رقم-۱۰۷۹) والنسائى كتاب الصلاة/باب الحكم فى تارك الصلاة(رقم-۴۶۳)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## ۵۷۵-د مونځ په وجه د ګناهونو معاف کيدل

۵۷۵-()[۱] [۱] عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُوْلَ اللهِ، إِنِّي عَالَجْتُ امْرَأَةً فِي أَقْصَى الْمَدِيْنَةِ، [۳] وَإِنِّي أَصَبْتُ مِنْهَا مَا دُوْنَ أَنْ أَمَسَّهَا، [۴] فَأَنَا هٰذَا، فَاقْضِ فِيَّ مَا شِئْتَ. [۵] فَقَالَ عُمَرُ: لَقَدْ سَتَرَكَ اللهُ لَوْ سَتَرْتَ عَلٰى نَفْسِكَ. [۶] قَالَ: وَلَمْ يَرُدَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِ شَيْئًا.

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي [۲] چه يو سړي د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يي وکړو يا رسول الله ﷺ د مديني په غاړه زه يوي ښځي سره ترغاړه وتلم [۳] نور څه صحبت وغيره مي ورسره نه دې کړي [يعنى صحبت خومي نه دي کړي ليکن مچي وغيره شوي دي] [۴] ځکه زه حاضر شوي يم څه چې تاسي ﷺ غواړي زما باره کې حکم وفرمايي [يعنى تاسي ﷺ چې زمادپاره کومه سزا تجويز کړي ماته هغه منظوره ده] [۵] حضرت عمر رضي الله عنه (چې هغه وخت مجلس نبوي کې حاضر وو) دي اوريدو سره وفرمايل الله ستا دعيب پرده پوشي کړي وه که تا هم خپل عيب پټ کړي وې (نو ښه به) وه [۶] عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي حضور ﷺ د الله جل جلاله دحکم په انتظار کې هيڅ جواب ورنه کړو.

**حل اللغات:** ① عَالَجْتُ: عالج معالج يعالج معالجة لوبې توقي او ښکلولونه کنايه ده. ② أَقْصَى الْمَدِيْنَةِ: أي: أَسْفَلَهَا: د ښار ښکته طرف، ③ أَصَبْتُ: أي: فَعَلْتُ: کړي مي دی، رسيدلي يم.

[۱] فَقَامَ الرَّجُلُ، فَانْطَلَقَ فَأَتْبَعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا فَدَعَاهُ، [۲] وَتَلَا عَلَيْهِ هٰذِهِ الْآيَةَ: " ﴿وَأَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ [۳] إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذَّاكِرِيْنَ﴾. [۴] فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: يَا نَبِيَّ اللهِ! هٰذَا لَهُ خَاصَّةً؟ [۵] " فَقَالَ: بَلْ لِلنَّاسِ كَافَّةً» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] نو هغه سړي پاڅيدو او لاړلو بيا حضور ﷺ د يو سړي په ذريعه هغه وروسته راوغوښتو [۲] حضور ﷺ د هغه په مخکې دا آيت ووېلي: وَأَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذَّاكِرِيْنَ، د ورځي اول اوآخر او د شپي په څو ساعتونو کې مونځ کوه [۳] ځکه چې نيکي بدي ختموي او دا نصيحت نصيحت منونکو د پاره دي، [۴] په خلقو کې يو سړي (حضرت عمر رضي الله عنه يا حضرت معاذ رضي الله عنه) عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ آيا دا حکم په خاص طور سره د هغه د پاره دي؟ [۵] حضور ﷺ وفرمايل نه

(۱) اخرجه مسلم كتاب التوبة باب قوله تعالى: {إن الحسنات يذهبن السيئات} [هود: ۱۱۴] رقم(۴۲ - (۲۷۶۳) وابوداود كتاب الصلوة باب في الرجل يصيب من المرأة دون الجماع. فيتوب قبل أن ياخذه الإمام(رقم ۴۴۶۸)

د ټولو خلقو د پاره دا حکم دي. (مسلم)

**حل اللغات**: زُلَفًا: أَيْ: سَاعَاتٍ: دا دَ زلفة جمع ده دَ نيزدې په معنى کښې دې مراد ترينه وختونو اوساعتونه دی. ځکه چه ساعتونه هم يو بل ته نيزدې وی. ⑤ لِلذَّاكِرِينَ: أى لِلْمُتَّعِظِينَ: نصيحت اخستونکو دپاره (قبلونکو دپاره).

**تسهيلات:**

**قوله**: "عَالَجْتُ امْرَأَةً"

**د عاجلت په مصداق کښې دوه اقوال**: ① شارحين ليکلی دی چه دا هم هغه سړې دي چې دَ چا قصه دَدې باب په رومبی فصل حديث نمبر(٥٦٦) کښې تيره شوې ده دَ کوم نوم چه ابواليسر دې

② ابن حجر رحمه الله وغيره شارحين فرمائی چه داقصه دَ يو بل سړی ده.

**اشکال**: که چرې دا دَ بل يوسړې قصه ده او جدا قصه ده نوچه کوم آيت دَ رومبی سړی متعلق لوستلې شوې دې هم هغه آيت دَ دې سړی متعلق هم لوستلې شوې نودا څنګه دوه واقعات کيدې شی؟

**داشکال جواب**: ابن حجر رحمه الله فرمائی کيدې شی دا آيت مکرر نازل شوې وی. دويم جواب محققين علماؤ دا ورکړې دې چه دا ضروری نه ده چه آيت مکرر نازل شوې وی اونه په دې حديث کښې څه اشاره ده چه آيت دوباره نازل شوې دې. بلکه حضورپاك دَ اول نه نازل شوې آيت ددغه سړی دَ واقعه متعلق تلاوت اوفرمائيلو او دا کيدې شی چه په ډيرو واقعاتو باندې هم يوآيت اولګولې شی.

**قوله**: "فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ":

**د تعدد والعتينو قرينه**: دَدې جمله نه معلوميږی چه دا دواړه جدا جدا واقعات دی ځکه چه دلته سوال کونکې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دې او ياحضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه دې اوهلته په دې رومبنی قصه کښې دَدې حکم اوفضيلت خصوصيت سوال کونکې هغه سړې پخپله وو کوم چه صاحب واقعه وو.

**٥٧٦-دالله تعالی درضا دپاره د مونځ کولو فضيلت**

٥٧٦-(¹)[١٢] ① وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، ② «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ زَمَنَ الشِّتَاءِ، ③ وَالْوَرَقُ يَتَهَافَتُ، فَأَخَذَ بِغُصْنَيْنِ مِنْ شَجَرَةٍ. ④ قَالَ: فَجَعَلَ ذَلِكَ الْوَرَقُ يَتَهَافَتُ. ⑤ قَالَ: فَقَالَ: "يَا أَبَا ذَرٍّ" قُلْتُ: لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. ⑥ قَالَ: إِنَّ الْعَبْدَ الْمُسْلِمَ لَيُصَلِّيَ الصَّلَاةَ يُرِيدُ بِهَا وَجْهَ اللَّهِ فَتَهَافَتُ عَنْهُ ذُنُوبُهُ، ⑦ كَمَا تَهَافَتَ هَذَا الْوَرَقُ عَنْ هَذِهِ الشَّجَرَةِ.» رَوَاهُ أَحْمَدُ.

(¹) اخرجه احمد فی المسند رقم(١٧٩/٥)

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوذر رضي الله عنه راوي دي[۲] چې نبي کریم ﷺ د یخنۍ په موسم کې بهر تشریف راوړو[۳] چې د ونو د پاڼو د پریوتلو وخت وو، حضور ﷺ د یوې ونې دوه څانګې اونیولې [۴] راوي وایي څنګه چې حسب معمول د پاڼو پریوتلو په موسم کې یوه څانګه خوزولو سره زیاتې پاڼې راغورځیږي دغسې حضور ﷺ چې څانګې اونیولې نو د هغې څخه پاڼې پریوتل شروع شول[۵] حضور ﷺ وفرمایل اې ابوذر ما عرض وکړو یا رسول الله ﷺ زه حاضریم [۶] نو حضور ﷺ وفرمایل هر کله چې مؤمن بنده خالصًا لله مونځ کوي نو د هغه ګناه هم داسې رژیږي [۷] څنګه چې د دې ونې څخه پاڼې رژیږي. (احمد)

**حل اللغات:** ① الشِّتَاءِ: أَيِ: الْبَرْدِ: یخنی، د ژمی موسم، ② يَتَهَافَتُ: دَ باب تفاعل نه تهافت یتهافت یو بل پسې اودَمسلسل پریوتلو په معنی کښې راځی. ③ غُصْنَيْنِ: د غُصنٌ تثنیه ده، څانګې او ښاخ ته وائی.

**تسهیلات:**

**دحدیث د بعضې جملو وضاحت:** ① "زمن الشتاء" دَ یخنئی اوژمی موسم ته شتاء وائی دَ بعض ونونه علاوه دَ باقی ټولو ونو پاڼې اوچیدو سره په دې موسم کښې رجیږی دَ دغه شان منظر تذکره کړې شوې ده دلته دَ خزان موسم مراد دې.

② "يَتَهَافَتُ" اوکه دَ ونې ښاخ ته حرکت ورکړې شی نوبیاخودَهغې پاڼې ډیرې په تیزئی سره پریوځی لهذا په دویمه جمله کښې یتهافت چه کوم ذکر راغلې دې هغه هم دَدغه مقصد دَ ښکاره کولودَپاره دې چه رسول الله ﷺ کله دوه ښاخونه اونیول حرکت ئی ورکړو نو ډیر بې اندازې پاڼې راپریوتلې

③ "لَبَّيْكَ يَارَسُولَ اللّٰهِ" یعنی باربار ستاسو په خدمت کښې حاضر یم

④ "يُرِيدُ بِهَا وَجْهَ اللّٰهِ" مطلب دا چه مونځ خالص دَالله تعالی دَپاره اوکړی نه دَ څه بل مقصد دَپاره وی اونه دَ ریاکارئی په غرض باندې وی

٥٧٧- په حضور قلب سره د مونځ کولو فضیلت

٥٧٧-()[١٣] [۱] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنْ صَلَّى سَجْدَتَيْنِ لَا يَسْهُو فِيهِمَا [۳] غَفَرَ اللّٰهُ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] زید بن خالد جهني رضي الله عنه راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل[۲] کوم سړي چې دوه رکعاته مونځ (غافل کیدو سره نه بلکه د دې درجې حضورِ قلبي سره) وکړو چې په هغې کې یې سهو ونه کړه[۳] نو الله تعالی جل جلاله د هغه تیر ګناهونه بخښي. (احمد)

**حل اللغات:** ① لَا يَسْهُو: أَيِ: لَا يَغْفَلُ: نه غافل کیږی.

---

(۱) اخرجه احمد فی المسند رقم(۵/۱۹٤)

**تسهيلات:**

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:** ① "صَلَّى سَجْدَتَيْنِ" دې نه دوه ركعته مونځ مراد دې او ركوع اوسجده وئيلوسره مونځ مراد اخستل په قرآن اوحديث كښې بار بار راغلى دى.

② "لَايَسْهُوفِيهِمَا" يعنى په دې دواړو ركعتوكښې مونځ گذاردَ مانځه نه غافل نه وى. علامه طيبى رحمه الله فرمائى چه مونځ گذار په حاضر دماغى او دَ زړه په حضور سره مونځ كوى يا داسې اوگنړئى چه هغه سړې داسې عبادت كوى لكه چه الله تعالى هغه ته گورى. [الكاشف: ۲/۱۸۲].

**قوله: "غَفَرَاللَّهُ"**

**صغائرو سره د غفران مقيد كول:** يعنى دَهغه سړى سابقه ټول صغائرالله تعالى معاف كوى. ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى چه علماء كرامو ذنوب صغائرسره مقيد كړى دى سره دَدې چه دَ حديث الفاظ صغائراوكبائرټولوته شامل دى.

**د دوو ركعتونو كيفيت:** دَدوو ركعتوكول ډيرآسان دى ليكن دَدې دوو ركعتو دَپاره كوم شرط دې چه په زړه كښې دَ غيرالله خيال بالكل رانه شي دا اسان كارنه دې. وائى چه دا دوه ركعته اصلى كيفيت سره كولودَپاره شاه اسماعيل شهيد رحمه الله دوه سوه ركعتونه اوكړل ليكن داكيفيت پوره نه شو. بيا سيد احمد شهيد رحمه الله هغه خپل خان سره اودرولو او دوه ركعته مونځ ئې اوكړو نوهم په دغه كيفيت سره مونځ اوشو.

**۵۷۸–دمانځه دپابندۍ فضيلت**

۵۷۸–()[۱۴] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، «عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ② أَنَّهُ ذَكَرَ الصَّلَاةَ يَوْمًا فَقَالَ: ③ "مَنْ حَافَظَ عَلَيْهَا، كَانَتْ لَهُ نُورًا وَبُرْهَانًا وَنَجَاةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ④ وَمَنْ لَمْ يُحَافِظْ عَلَيْهَا لَمْ تَكُنْ لَهُ نُورًا وَلَا بُرْهَانًا وَلَا نَجَاةً، ⑤ وَكَانَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَعَ قَارُونَ وَفِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَأُبَيِّ بْنِ خَلَفٍ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالدَّارِمِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** ① عبدالله ابن عمرو بن العاص رضي الله عنهما راوي دي ② چې يو ورځ نبي كريم ﷺ د لمانځه ذكر وكړو (يعني د لمانځه د فضيلت او اهميت بيانولو اراده يي وكړله) نو وي فرمايل③ كوم سړي چې په لمانځه محافظت كوي (يعني هميشه په پابندي سره مونځ كوي) نو د هغه د پاره به دا مونځ د ايمان د نور (د زياتي سبب) او د ايمان د كمال واضح دليل وي او دقيامت په ورځ به د مغفرت ذريعه جوړيږي④ اوكوم سړي چې په لمانځه باندې محافظت نه كوي نو د هغه د پاره نه (د ايمان د) نور (د زياتي سبب) جوړيږي او نه د (كمال ايمان) دليل او نه دقيامت په ورځ د مغفرت ذريعه جوړيږي⑤ بلكه داسې سړي به د

(۱) اخرجه احمد في المسندرقم(۲/۱۶۹) والدارمي ومن كتاب الرقاق/باب: في المحافظة على الصلاة (رقم-۲۷۶۳)

قيامت په ورځ د قارون هامان او ابي ابن خلف سره په عذاب کې مبتلا وي.
(احمد، دارمي، بيهقي)

**حل اللغات:** ① بُرْهَانًا: أي دَلِيلًا: دليل اوحجت.

**د راوي مختصر تعارف:**

**د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ مختصر حالات:** ددوی نوم عبدالله، کنیت ئې ابوعبدالرحمن او د پلار نوم ئې حضرت عمر ﷺ دې او د مور نوم ئې زینب بنت مظعون دې

**اسلام قبلول:** دخپل پلار سره یوځائې مسلمان شوې دې د پلار سره ئې د مکې نه مدینې ته هجرت کړې وو په بدر او احد کښې ئې ورته د شرکت اجازت نه وو ملاؤ شوې ځکه چه ماشوم وو (۱)

**غزواتو کښې شرکت:** په غزوه خندق، بیعت رضوان، فتح مکه، غزوه حنین، محاصره طائف، حجة الوداع، غزوه تبوک ټول کښې ئې دنبی کریم ﷺ سره شرکت کړې وو د فتنې نه ډیر لرې وو د یزید په لاس ئې بیعت کړې وو او دا ئې فرمائیلی وو که دې بیعت کښې خیر وی نو مونږ پرې راضي یو او که په دې کښې شر وی نو مونږ پرې صبر کوو (۲) حضرت ابن عمر ﷺ ته به خلقو د علم او عمل دریاب وئیل (۲) د دنیا نه کناره کشي: حضرت عثمان ﷺ ورته د قضاء عهده پیش کړله خو دوی د قبلولو نو انکار اوکړو په ملکی انتظاماتو کښې ئې بیخی حصه نه اخستله.

**خصوصی صفات:** د دوی په ژوند کښې ځو خصوصی صفات وو ① د سنت تابعداری ② د الله تعالی ویره ③ د غریبانو سره همدردی ④ سخاوت ⑤ د اختلاف نه پرهیز ⑥ د مشتبهاتو نه اجتناب ⑦

**قران سره مینه:** د قرآن پاک سره ئې خصوصی تعلق وو په قرآن کښې به ئې ډیر سوچ او فکرکولو ددې اندازه ددې نه لګی چه صرف سوة بقره ئې په ۱۴ کاله کښې یاده کړې وه (۳)

**حدیث سره تعلق:** د قرآن نه پس ئې د احادیثو سره مینه وه کله چه به د نبی کریم ﷺ په مجلس کښې موجود نه وو او د دوی په غیرحاضرئ کښې به نبی کریم ﷺ ارشادات فرمائیلی وو نو د نورو خلقو نه به ئې دهغې تپوسونه کول او هغه به ئې یادول (۴)

**وفات:** د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ په مدنیه منوره کښې د مرګ ډیره تمنا وه اودا به ئې وئیل د کومې زمکې نه چه ما هجرت کړې دې په هغې کښې زه مرګ نه خوښوم (۵) هغوی

---

[1]) طبقات ابن سعد)_

[2]) طبقات ابن سعد تذکرة ابن عمر ﷺ)_(۲) تذکرة الحفاظ (۱۱\۳۵)- (۳)موطا امام مالک) - (۴)اصابة (۱۰۹\٤)_
(۵) طبقات ابن سعد (۱۳۸\٤)_(۶)تهذیب الکمال (۲۰۷)_(۷) رواه مسلم فی الذکرباب استحباب الاستغفار
، ستکثار منه رقم ٤۸۷۰وکذا ابو فی الصلاة رقم ۱۲۹٤واحمد مسند الشامیین رقم ۱۷۱۷۳)_

دا وصیت هم کړې وو که زه په مکه کښې مړ شوم نو ما به د حرم نه بهر دفن کوئ زه عاجز شاه فیصل چه په کال ۱۴۳۱ کښې حج ته تلې ووم نو هلته راته الله تعالی د دوی د قبر زیارت هم رانصیب کړل هغه داسې چه زمونږ یو ملګرې وو هغوی د دوی قبر معلوم وو هغوی د ځان سره واخستلو او د دوی قبرته لاړلو د دوی د قبر نه ګیرچاپیره دیوال تاؤ وو او په مینځ کښې د دوی قبر مبارک وو خوا کښې ورسره یوه زوړ کنډر هم وو کوم چه د خپلې زمانې مضبوط کور ښکاریدلو خو مونږ ته دا معلومه نه شوه چه دا کوم ځائې دې بهر صورت د حج په دې مبارک سفر کښې الله تعالی دې عاجز ته ډیر تاریخی مقامات اوخودل **مرویات:** د دوی د روایاتو تعداد ۱۲۳۰ دې په دې کښې په ۸ حدیثونو کښې بخاری اوپه ۳۱ کښې مسلم منفرد دې (۶)

**تسهیلات:**

**دحدیث د بعضې جملو وضاحت:**

① "ذکرالصلوة" یعنی یوه ورځ رسول الله ﷺ دَ مانځه فضیلت او دَدې شرف بیان اوفرمائیلو.

② "مَنْ حَافَظَ عَلَيْهَا،" یعنی همیشه والی سره ئی مونځ کولو دَهغې ارکان اودَهغې واجبات، فرائض سنن اومستحبات اودَ دې دَ وختونوئی پوره پوره خیال ساتلو.

③ "كَانَتْ لَهُ نُورًا" یعنی دَ حشر په میدان کښې به دا مونځ دَهغه مونځ ګذاردَپاره دَ هغه وړاندې وړاندې دَمشال کارورکوی.

④ "وَبُرْهَانًا" یعنی دَهغه په ایمان باندې به واضحه دلیل جوړیږی.

⑤ "مَعَ قَارُونَ" دَحضرت موسیٰ علیه السلام په زمانه کښې یوتباه حال بدبخت نوم دې چه په زمکه کښې ورخښ شوې وو.

⑥ "وَفِرْعَوْنَ" دَ یوداسې ملعون سړی نوم دې چه دَ خدائې دعویٰ ئی کړدې وه او بیا په دریا نیل کښې غرق کړې شو.

⑦ "وَهَامَانَ" دادَ هغه شیطان نوم دې چه دَ فرعون وزیر اومشیروو اوهم هغه سره غرق شو.

**قوله:** "وَأُبَيِّ بْنِ خَلَفٍ"

**دابن بن خلف تعارف:** دې بدبخت انسان رسول الله ﷺ په مکه کښې ډیر تنګ کړې وو اوبیا دَ جنګ دَپاره دَ کافرانو لښکرسره مدینې منورې ته راغلو اودَ احد په میدان کښې حضورپاك دَ شهید کولوپه نیت سره راوړاندې شو، رسول الله ﷺ هغه په نیزه اووهلو اودا بدبخت مردار شو ځوك چه دَ انسانیت دَ ټولونه بدبخت سړې اوګرځولې شو.

**د بیلماځو دپاره سخت وعید:** په دې حدیث کښې دَ مانځه پابندی نه کونکو اوسستی

کونکوډپاره دومره سخت وعید دې چه مذکوره کسان دَ ټولو نه ممتاز دوزخیان دی نودوی سره به دغه سړې هم دوزخ ته ځی. اوکوم مسلمان چه بالکل مونځ نه کوی نودَهغه انجام خو به دَدوی نه هم خراب وی. په دې حدیث کښې دا اشاره هم ده چه کله دَ بادشاهت په نشه کښې سړې مونځ پریږدی کله دَ وزارت اوملازمت دَ وجې نه پریږدی اوکله ئی دَ دولت په نشه کښې پریږدی او کله دَحق سره دَ عداوت دَ وجې نه پریږدی. دَدې کسانو ذکر کولوسره دَدې قسم خلقوته سخته تنبیه ورکړې شوې ده اوکوم خلق چه دَ مانځ پابندی کوی په دې حدیث کښې اشاره ده چه هغوی به نبیانو صدیقینوشهداؤ اوصالحینوسره وی.

**۵۷۹-دمانځه پریخودل کفرګڼل**

**۵۷۹-()[۱۵] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ شَقِيقٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② كَانَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَا يَرَوْنَ شَيْئًا مِنَ الْأَعْمَالِ تَرْكُهُ كُفْرٌ غَيْرَ الصَّلَاةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.**

**ترجمه:** ① عبدالله ابن شقیق فرمایي ② چه په ټولو افعالو اواعمالو کې یوازي مونځ یو داسې عمل وو چې د هغې پرېښودل به د نبي کریم ﷺ محترمو صحابهٔ کرامو ﷺ کفر ګڼلو. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① لَا يَرَوْنَ: أَيْ: لَا يَعْتَقِدُونَ: یَرون کلمه دَ رائې نه ماخوذ ده دې نه مراد عقیده لرل دی یعنی دَ صحابه کرامو دا عقیده وه چه مونځ پریخودونکې کافر کیږی.

**تسهیلات:**

**قوله: "لَا يَرَوْنَ"**

**د تارک الصلاة په حق کښې مختلف اقوال:** ① دَدې قسم احکاماتوذکرتغلیظاً او تشدیداً کړې شوې دې لیکن دا الفاظ په خپل ظاهریاندې پریخودل زیات بهتردی ځکه چه حکمت هم په دې کښې ګڼی دَ شارع ﷺ مقصد به ختم شی.

② امام احمد بن حنبل ﷫ فرمائی چه څوک ښه په اراده اوقصدسره مونځ پریږدی نوهغه مرتد دې هغه قتل کړئی.

③ دَ امام مالک ﷫ او امام شافعی ﷫ په نیز هم دَ هغه سړی قتل کول لازم دی. خودا قتل دَ ارتداددَ وجې نه نه دې بلکه دَ زجر په توګه دَ سزا دې.

④ علماؤ لیکلی دی چه که چرې ترک صلوة دَ انکارپه صورت کښې وی نو په دې سره سړې کافرکیږی. اوکه چرې دَمونځ پریخودل دَ خندا توهین او سپکاوی په بنیاد وی نوبیاهم سړې کافرکیږی اوکه څوک دَ سستئی دَ وجې نه مونځ نه کول مباح ګڼړی نوهغه هم کافرکیږی اوکه دَ سستئی دَ وجې نه څوک مونځ پریږدی نوهغه دَ ګناه کبیره مرتکب کیږی.

(۱) اخرجه الترمذی کتاب الإیمان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی ترک الصلاة (رقم-۲۶۲۲)

⑤ امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چه مونځ نه کونکې دَهميشه دپاره جيل خانه کښې واچونی چه توبه اوکړی او يا هم هلته مړشی.

⑥ بعضې علماؤ فرمائيلی دی چه مونځ نه کونکې دَمسلمانانو په قبرستان کښې مه دفن کوئی. بهرحال دَ اهل سنت والجماعة په نيزمونځ نه کونکې کافرنه دې نوبيا دلته په حديث شريف کښې په مونځ نه کونکی باندې به دکفرحکم په توګه دَ تغليظ او تشديد، زجر اوتوبيخ وی.

⑦ باباسعدی رحمه الله فرمائی مونځ نه کونکی له قرض مه ورکوه ځکه چه کوم سړې دَ الله تعالی قرض نه اداکوی هغه به ستا قرض څه اداکړی.

**۵۸۰- د فرض مونځ په پريخودو د الله د حفاظت نه بهر کيدل**

۵۸۰-()[١٦] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢]«أَوْصَانِي خَلِيلِي أَنْ لَا تُشْرِكْ بِاللَّهِ شَيْئًا، [٣]وَإِنْ قُطِّعْتَ وَحُرِّقْتَ، [۴]وَلَا تَتْرُكْ صَلَاةً مَكْتُوبَةً مُتَعَمِّدًا، [٥]فَمَنْ تَرَكَهَا مُتَعَمِّدًا، فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ، [٦]وَلَا تَشْرَبِ الْخَمْرَ؛ فَإِنَّهَا مِفْتَاحُ كُلِّ شَرٍّ» "رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ

**ترجمه:** [١] ابودرداء رضی الله عنه فرمايي[٢] چه زما دوست (نبي كريم صلی الله علیه وسلم) ماته دا وصيت فرمايلي وو چې ته څوك د الله تعالى جل جلاله شريك مه جوړوه[٣] خواه كه ته ټوكړي ټوكړي شې او وسوزولي شې[۴] او قصدا فرض مونځ مه پرېږده[٥] ځكه چا چې قصداً مونځ پرېښودو نو د هغه څخه ذمه بري شوه[٦] او هيڅ كله شراب مه څښه ځكه چې دا د هري خرابي كيلي (چابي) ده. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① أَوْصَانِي: وصيت هغه تاكيدی اوضروری حكم ته وائی چه يوسړې دَخپل مرګ په وخت دَ خپلو پسمانده ګانو په باره كښې كوی. ② خَلِيلِي: خالص دوست ته وائی مراد ترې رسول الله صلی الله علیه وسلم دې. ③ قُطِّعْتَ: ټكړې كړې شې ته، ④ حُرِّقْتَ: اوسوزولې شې ته، ⑤ مُتَعَمِّدًا: قصداً (يعنی په اوده كيدو او د نسيان د وجې نه نه وی). ⑥ بَرِئَتْ: دمؤنث صيغه ده، معنی ئې ده: بری شوه، خلاصه شوه. ⑦ مِفْتَاحُ: چابی، كيلی

**تسهيلات:**

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:** ① "أَنْ لَا تُشْرِكْ بِاللَّهِ شَيْئًا،" دَالله تعالى په ذات اوصفات كښې شريك پيداكولوته شرك وائی.

② "وَإِنْ قُطِّعْتَ" داحكم دَ عزيمت دَ درجې دې يعنی ځان ئی مړكړو ليكن دَ شرك كلمه ئی په ژبه ادا نه كړه سره دَدې چه دَ ځان بچ كولودپاره صرف په ژبه باندې دكفر كلمه اداكولو اجازت شته كومه چه دَ رخصت درجه ده خوچه په زړه كښې ايمان موجودوی.

(١) اخرجه ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها/باب الصبر على البلاء (رقم-۴۰۳۴)

"الامن أكره وقلبه مطمئن بالايمان"..

**قوله: "بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ"**

**تارک الصلاة ته په کافر وئیلو کښې توجیهات:** ① علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دَدې جمله نه تغلیظًا کفر مراد اخستې شوې دې چه دا سړې کافر شو.

② یا دَ ذمه نه مراد هغه امان دې دَ کوم دَ وجې نه چه دَ یو مسلمان دَځان او مال حفاظت کیږی یعنی دَ مونځ پریخودو دَ وجې نه اوس دې سړی ته دَ قتل سزا یا تعزیر سزا ورکولې شی دې وخت کښې امن اوچت شوې دې.

## [۱/۱۹] بَابُ الْمَوَاقِيتِ

### دَمونځ دَوختونو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ستة أحاديث مشتملة على خمس مسائل:**

① ذكر أوقات الصلاة الخمسة قولا: ۵.

② ذكر أوقات الصلاة الخمسة قولاً و فعلاً: ۲ .

③ تعليم أوقات الصلاة الخمسة بعمل جبرئيل عليه السلام ۳، ۴.

④ ذكر إمامة جبرئيل :۳. ۴.

⑤ ذكر وقت الظهر بإختلاف الزمان : ۶.

**په باقی ابوابو باندې د باب المواقیت د تقدیم وجه:** د مونځ وختونه د مونځ د وجوب دپاره اسباب دی.او سبب مقدم وی په مسبب باندې.نوځکه ئې د مونځ د وختونو بیان مقدم کړۀ.مواقیت جمع د میقات ده.میقات هغه زمانه یا مکان دې.چه حد ترې مقررکولې شی.لکه مواقیت صلاة او مواقیت احرام.

**دَمواقیت په لغوی معنی کښې اقوال:** ① مواقیت دَ میقات جمع ده بعضې اهل لغت وئیلی دی چه خلاف القیاس مواقیت دَ وقت جمع ده او دَ وقت او میقات دواړو هم یو معنی ده په دواړو کښې ترادف یعنی یوشان والې دې. کوم چه "المقدار من الدهر" یعنی دَ زمانې یو متعین حصې ته وقت وائی.

② بعضې علماء وائی چه وقت مطلق زمانې ته وائی او میقات دَ زمانې هغه حصې ته وئیلې شی په کوم کښې چه څه کار یا عمل مقرر کړې شی او دلته هم دغه مفهوم مراد دې.
دَ میقات اطلاق کله دَمتعین زمانې په ځائی باندې په متعین مکان باندې هم کیږی لکه چه دَ حج احرام تړلو دَپاره مخصوص مقام ته میقات وائی.

# الْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## ۵۸۱- د پنځه مونځونو وختونه

۵۸۱- ()[۱] عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «وَقْتُ الظُّهْرِ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ، [۳] وَكَانَ ظِلُّ الرَّجُلِ كَطُوْلِهِ، مَا لَمْ يَحْضُرِ الْعَصْرُ، [۴] وَوَقْتُ الْعَصْرِ مَا لَمْ تَصْفَرَّ الشَّمْسُ. [۵] وَوَقْتُ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ مَا لَمْ يَغِبِ الشَّفَقُ، [۶] وَوَقْتُ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى نِصْفِ اللَّيْلِ الْأَوْسَطِ. [۷] وَوَقْتُ صَلَاةِ الصُّبْحِ مِنْ طُلُوْعِ الْفَجْرِ مَا لَمْ تَطْلُعِ الشَّمْسُ، [۸] فَإِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ فَأَمْسِكْ عَنِ الصَّلَاةِ؛ فَإِنَّهَا تطلع بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن عمر رضی الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل [۲] د ماسپښين وخت د نمر د زوال څخه وروسته دي [۳] او د دې آخري وخت تر هغه پورې دي چې د سړي د سايه (سورې) د هغه د طول (اوږدوالي) برابر شي د مازيګر راتلو تر وخته پورې [۴] او د مازيګر وخت تر هغه وخته پورې دي تر څو پورې چې نمر زيړ نه شي [۵] او د ماښام لمانځه وخت تر هغه وخته پورې دي چې شفق غائب نه شي [۶] او د ماسخوتن مونځ تيك تر نيمي شپې پورې دي [۷] او د سحر د لمانځه وخت د طلوع فجر څخه تر هغه وخته پورې دي تر څو پورې چې نمر را ونه خيژي [۸] او هر كله چې نمر راخيجي نو د لمانځه څخه منع شه ځكه چې نمر د شيطان د دوو ښكرونو په مينځ كښې راخيجي، (مسلم)

**حل اللغات:** ① تَصْفَرَّ: چه زيړ شي. ② الشَّفَقُ: وَهُوَ الْحُمْرَةُ الَّتِي تَلِي الشَّمْسَ بَعْدَ الْغُرُوبِ: د نمر د پريوتلو نه پس چه د نمر سره نژدې كوم سوروالې وی هغې ته شفق وائی. ③ قَرْنَي: أَيْ: جَانِبَيْ رَأْسِهِ: قرنَي تثنيه ده دَ قرن، او قرن ښكرته وائی. د سر دواړه اطراف مراد دی.

**تسهيلات:**

**قوله: "وَقْتُ الظُّهْرِ"**

**د ظهر مصداق:** دَ لفظ ظهر ماده اشتقاق ظهوردې داوخت هم دَ ورځې په عين مينځ كښې ښكاره كيږي. دې وخت ته هجيرة هم وئيلی شی ځكه چه دا وخت هاجره يعنی غرمې ته بالكل نيزدې وی.

**په امامت جبريل كښې د ماسپښين نه د مونځو شروع كولو كښې حكمت:** په حديث شريف دَ دَ فجردَ وخت دَ بيان په ځائی دَ ماسپښين دَ وخت نه دَ مونځونودَ وختونو دَ تعين شروع ځكه اوكړې شوه چه ماسپښين هغه ړومبې مونځ دې چه دَ ليلة المعراج دَ سحر په جمع سره

[۱] اخرجه مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلوة باب أوقات الصلوات الخمس (رقم)- ۱۷۳ - (۶۱۲) وابوداود كتاب الصلاة،باب في المواقيت(رقم-۳۹۶) والنسائی كتاب المواقيت/آخر وقت المغرب (رقم-۵۲۲)

اداکړې شوې وو هم په دې وجه دې ته "الصلوة الاولی" وائي. بل کله چه حضرت جبرائیل آمین دَ وختونوبیان اوکړو نو هغه هم دَ ماسپښین نه شروع اوکړه

**قوله:** "إِذَازَالَتِ الشَّمْسُ،"

**د زوال د پیژندګلو طریقه:** دَ نمر سورې چه ترکومې کمیږی نودا ګنړل پکاردی چه نمر اوچتیږی اوکله چه دَدغه سوری کمیدل او زیاتیدل بندشی نو داسې ګنړل پکاردی چه نمبر دَ نصف النهار په نقطه باندې ولاړدې اوکله چه دَدې سورې لړ شان په زیاتیدوشی نوګنړل پکاردی چه دَ زوال وخت شروع شوې دې.

**مجموعی طور د مونځونو وختونه:** په دې خبره باندې هم پوهیدل پکاردی چه په مجموعی توګه باندې دَ مونځونو وختونه په درې قسم باندې دی:

① **د مانځه د صحت وختونه:** دې دا هغه وختونه دی که په دې کښې مونځ اوکړې شو نو هغه به صحیح وی اوقضانه دې بلکه په اداکښې به شمیرلې شی او په دې کښې به دَ کراهت شائبه نه وی.

② **د مانځه مستحب وختونه:** اوقات استحباب دی دا دَ صحیح وخت نه هغه حصه ده په کوم کښې چه دَ مونځ اداکول اولی اوبهتردی سره دَدې چه وړاندې روستوکول هم جائزدی.

③ **د مانځه مکروه وختونه:** اوقات کراهت دی په کوم کښې چه مونځ کول مکروه وی. دَدې باب په احادیثوکښې دَ اوقات صحت بیان دې بیادې نه پس صفحه ۹۴ باندې باب النهی کښې دَهغه مکروه اوقاتو بیان دې په کوم کښې چه مونځ کول مکروه کیږی.

**د ماسپښین په آخر وخت کښې مذاهب:**

دَ ماسپښین وخت: په شروع دَ ماسپښین کښې دَ چاهم اختلاف نشته دَ ټولو ائمه حضراتو په نیز دَ زوال نه دَ ماسپښین وخت شروع کیږی دَ ماسپښین وخت په ختمیدوکښې دَ فقهاؤ اختلاف دې چه دَ ماسپښین وخت ترکومې پورې وی دغه شان دَ مازیګردَ وخت په شروع کښې هم اختلاف راغلې دې

① امام مالك رحمه الله شافعی رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله او صاحبین یعنی دَ جمهورو مسلك دادې چه سورې دَ اصلی نه علاوه چه کله دَ هرڅیز سورې دَهغې په شان شی نو دَ ماسپښین وخت ختمیږی اودَ مازیګروخت شروع کیږی.

② امام مالك رحمه الله دَ ماسپښین او مازیګر په مینځ کښې دَ لږ شان داسې وخت هم قائل دې کوم چه مشترك وی.

③ دَ امام ابوحنیفه رحمه الله نه دَ ماسپښین آخری وخت متعلق څلو اقوال نقل دی لیکن درې اقوال واضح دی په دې وجه هم هغه بیانولې شی:

ا- دَ دوو مثلین پورې دَ ماسپښین وخت وی او مثل ثالث نه دَ مازیګروخت شروع کیږی دا قول دَ احنافو په نیز مشهور دې سره دَدې چه فتویٰ په دې باندې نه ده.
ب- دَ امام ابوحنیفه رحمه الله دویم قول دادې چه په مثل اول باندې دَ ماسپښین وخت ختمیږی او مازیګرشروع کیږی دا قول دَ جمهورو او صاحبین دَ مسلك موافق دې او فتویٰ هم په دې قول ده. په درمختارکښې دَ ډیرو زیاتو کتابونو په حواله سره دا مسلك راجح ګرځولې شوې دې. فتاویٰ ظهیریه او خزانة المفتین کښې دَ امام صاحب رحمه الله دې مسلك طرف ته رجوع ثابت کړې شوې ده.
پ- دَامام صاحب رحمه الله نه دریم قول دا نقل دې چه دَماسپښین وخت خو په مثل اول باندې ختمیږی لیکن دَ مازیګر وخت دَ دوو مثلین نه پس مثل ثالث نه شروع کیږی په مینځ کښې څه وخت مهمل دې نه دَ مازیګردې اونه دَ ماسپښین دې په دې کښې اصحاب اعذار مونځ کولې شی.
**په دې واړه اقوالو کښې تطبیق:** حضرت شاه انور شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه په دې اقوالوکښې تطبیق دادې چه مثل اول خاص دَ ماسپښین دَپاره دې اومثل ثالث دَ مازیګر دَ پاره خاص دې او مثل ثانی مشترك وخت دې مګردَ ټولودَپاره نه دې صرف دَ عذر والودَپاره دې.
**د اول فریق اول دلیل:** ① زیر بحث عبدالله بن عمرو حدیث د اول فریق مستدل دې چه دَ نمر دَ زوال نه دَمثل اول پورې ماسپښین او دَمثل اول نه مازیګرشروع کیږی.
**د اول فریق د اول دلیل جواب:** دَحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دا په مستحب او استحباب باندې محمول دې دَ کوم نه چه دَ احنافو انکارنه دې.
**داول فریق دویم دلیل:** ② دَ جبرائیل علیه السلام امامت د اول فریق مستدل دې په کوم کښې چه تصریح موجود ده چه " حین صار ظل کل شیء مثله" یعنی مثل اول باندې دَ مازیګروخت شروع کیږی.
**داول فریق د دویم دلیل جواب:** علامه نووی رحمه الله دې ته منسوخ وئیلې دې څکه چه دا حدیث بالکل دَ شروع زمانې دې دَ دې نه پس څومره احادیث داسې دی په کوم کښې چه په دې اوقاتوکښې امتداد او تفصیل راغلې او په رومبی حکم کښې تغیرراغلو هسې هم دَدې حدیث په بعض اجزاء باندې جمهور هم عمل نه کوی او په دې کښې تاویل کوی
**د دویم فریق دلائل:** ① هغه احادیث د دوی مستدل دی په کومو کښې چه دَ ماسپښین وخت یخ کولوتاکید او ترغیب راغلې دې. چنانچه دَ بخاری شریف روایت دې: عن ابی سعید (الخدری) قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ابردوا بالظهر فان شدة الحر من فیح جهنم. دغه شان په ترمذی شریف کښې یو روایت دې: عن النبی الله صلی الله علیه وسلم انه قال اذا اشتد الحر فابردوا بالصلوة فان شدة الحر من فیح جهنم.

دَ ابراد دَدې روایتونونه دَ استدلال طرز داسې دې چه په ګرمو ملکونو کښې دَمثل ثاني په وخت ابراد یعني یخوالې راځي دې نه وړاندې وخت یخ کیدې نه شي نو دَ ابراد لفظ لکه چه اعلان دې چه دَ ماسپښین وخت دَ مثلین پورې دې او په مثل اول باندې ختميږي نه.

④ دَ پخوانو امتونو یعني په یهودو او نصاریٰ باندې دَ امت محمدیه دَ فضیلت والاحدیث دې کوم چه په مشکوة کښې "باب ثواب هذه الامة" کښې صاحب دَ مشکوة نقل کړې دې دَ کوم مضمون او مفهوم چه داسې دې چه یهودو مثلاً دَ سحرنه تر ماسپښین پورې کار اوکړو هغوی ته الله تعالی یو قیراط په مزدورئی کښې ورکړو بیا نصاریٰ دَ ماسپښین نه تر مازیګره پورې کار اوکړو هغوی ته الله تعالی یو قیراط ورکړو په دې باندې یهودیان او نصاریٰ غصه شو چه زمونږ کار اووخت زیات وو او معاوضه کمه ملاؤ شوه او دَ دې امت دَ کار وخت کم وو او ثواب زیات ورکړې شو. نو الله تعالی اوفرمائیل ما چه تاسو ته څه درکړی دی ولې په تاسو باندې په هغې کښې ظلم شوې دې؟ هغوی اووئیل چه نه زمونږ حق خو ملاؤ شوې دې لیکن دوی ته زیات ورکړې شو نو الله تعالی اوفرمائیل دا خو زما فضل او کرم دې په چا باندې چه زه کوم نو کوم به.

اوس په دې واقعه کښې داخبره بالکل واضح ده چه دَ ماسپښین نه تر مازیګره پورې وخت زیات او دَ مازیګرنه تر ماښام پورې وخت کم دې. او دا صرف په هغه صورت کښې کیدې شي چه ماسپښین دَ دوو مثل پورې اوږد او منلې شي ګنې که په یو مثل باندې ماسپښین ختم شي نو بیا دَ ماسپښین نه تر مازیګره پورې وخت دَ هغه وخت نه اوږد نه وي کوم چه دَ مازیګرنه تر ماښام پورې دې. دا دَ اشارة النص نه بهترین مثال دې په دې شرط چه صورت حال هم دا شان وي.

③ دَ حضرت ابوذر غفاري ﷛ هغه روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه هغوی دَ حضور پاک سره په سفر کښې یوه قصه پخپله داسې بیان کړې ده:

عن ابی ذر قال کنا مع النبی الله ﷺ فی سفر فاراد المؤذن ان یؤذن فقال له ابردثم اراد ان یؤذن فقال له ابردثم اراد ان یؤذن فقاله ابرد حتی رئینا فی التلول فقال النبی الله ﷺ ان شدة الحر من فیح جهنم فاذا اشتد الحر فابردوا بالصلوة. [بخاري ج۱ ص۷۷]

په دې حدیث کښې دَ فئ لفظ راغلې دې کوم چه دَ سوری په معنی کښې دې او "التُلول" دَ تاء په ضمه سره دَ تل جمع ده چه دَ غونډئ په معنی کښې دې دَ غونډو سورې ډیر روستو راځي خاص کر په ګرمو ملکونو کښې نو دَدې سورې ډیر مشکل وي. دَ حضرت ابوذر ﷛ دا وینا چه مونږ دَ ماسپښین مونځ دومره تاخیر سره اوکړو او دَ ابراد تحقق هغه وخت اوشو کله چه مونږ دَ غونډو سورې اولیدلو دا معامله دَ دوو مثلین نه وړاندې ممکن نه ده په دې وجه دا دَ امام صاحب ﷬ دَ مشهور قول دَپاره واضح دلیل دې.

**مفتی به قول:** بهرحال دَ احنافو علماء کرام فرمائی چه احتیاط په دې کښې دې چه دَ ماسپښین مونځ په مثل اول کښې اوکړې شی اودَ مازیګر مونځ دَ مثل ثانی نه پس اوکړې شی دې دپاره چه دَ ټولو ائمه حضراتو په نیز اختلاف ختم شی او دواړه مونځونه بې ویرې په خپل خپل وختونو کښې اداشی. دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په اقوال کښې کوم قول دَ جمهورو موافق دې فتویٰ هم په هغې ده.

**د ماسپښین او مازیګر په مینځ کښې د وخت مشترک په وجود کښې مذاهب:**

دَ ماسپښین اومازیګردَ وخت متعلق په احادیثو کښې بعض الفاظ داسې راغلی دی دَ کوم نه چه شبه پیدا کیږی چه یووخت داسې هم دې چه په ماسپښین اومازیګر کښې مشترك دې او هریو مونځ په دې کښې کیږی په دې وجه په دې مسئله کښې دَ فقهاء کرامو اختلاف پیداشوې دې.

① امام مالك رحمه الله اوعبدالله بن مبارك رحمه الله د ماسپښین او مازیګر په مینځ کښې د مشترک وخت قائل دی.چې په دې وخت کښې د ماسپښین مونځ هم جائز دې او د مازیګر مونځ هم.

② امام ابوحنیفه، امام شافعی او امام احمدبن حنبل رحمهم الله په نیزیه وختونو کښې هیڅ داسې یووخت نشته چه په دوو مونځونو کښې مشترك وی اودَ امام ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت دې چه دَ اصحاب اعذار دَپاره مثل ثانی مشترك وخت دې.

**د اول فریق دلیل:** حدیث امامت جبرائیل د دوی مستدل دې. په کوم کښې چه دَ دواړو وختونودَپاره دا الفاظ راغلی دی "حین صار ظل کل شیء مثله" او "حین کان ظله مثله" دَدې نه معلومه شوه چه دَاول ورځې دَ ماسپښین مونځ اودَ دویمې ورځې دَ مازیګرمونځ هم په یو وخت کښې اداکړې شو دَ کوم نه چه معلومه شوه چه دَدواړو وخت مشترك دې.

**د اول فریق د دلیل دوه جوابونه:** ① د "حین کان ظله مثله" مطلب "حین کان قریبًا من مثله" دې یعنی بعینه هم هغه نوخت نه بلکه یومثل سوری ته نیزدې نیزدې وخت مراد دې.
② علامه نووی رحمه الله فرمائی چه حدیث امامت جبرائیل منسوخ دې روستو تفصیل راغلې دې په دې کښې اجمال دې.

**د دویم فریق دلیل:** زیربحث حدیث د دوی مستدل دې په کوم کښې چه "مالم یحضر العصر" الفاظ موجود دی دَ کوم واضح مطلب چه دادې ترکومې چه دَ مازیګروخت نه راخی دَ ماسپښین وخت موجود وی اوکله چه دَ مازیګروخت راځی نودَماسپښین وخت زر ختمیږی په دې کښې اشتراك نشته دې.

**احتیاط:** داخبره دَ یادساتلوده چه احناف کومه داخبره کوی چه یومثل یا دوه مثل پورې دَ ماسپښین وخت وی دَدې مطلب دادې چه اصلی سورې اخوا کړې وړاندې کیدونکې

زياتی سورې چه کله دَ يوڅيز په شان اومساوي شي نودَ ماسپښين وخت داخليږي.
**د مازيګر اول وخت:** دَ ماسپښين دَ وخت ختميدوکښې چه کوم اختلاف ووډَ مازيګرډَ وخت په شروع کيدوکښې هم هغه اختلاف دې چه دَ مازيګردَ شروع وخت کوم يودې آيا دَ مثل اول نه شروع کيږي لکه چه دَ جمهورو خيال دې يا دَ مثل ثاني نه پس شروع کيږي لکه چه دَ امام ابوحنيفه رحمه الله رائې ده. ددې تفصيل تيرشوې دې

**د مازيګر آخر وخت کښې مذاهب:**

① امام اوزاعی رحمه الله فرمائی چه دَ اصفرار الشمس پورې دَ مازيګردَ وخت ختميدل دی ددې نه پس نه دې

② دَ جمهورو په نيزدَ مازيګروخت دَ نمردَ ډوبيدوپورې دې يعنی دَ اصفرار الشمس نه وړاندې وړاندې مستحب وخت دې اوددې نه پس جائزمع الکراهة وخت دې.
دَ دَمازيګردَ وخت دَ ختميدو مسئله ده نو په زيربحث حديث کښې دا لفظ راغلې دې "وقت العصرمالم تصفرالشمس"
**د اول فريق دليل:** دَ حديث دَدغه پورتنئی جملې څخه استدلال کوی چه اصفرار ترکومې پورې نه دې نومازيګردې اواصفرار راتلوسره به دَ مازيګروخت ختم شي.
**د اول فريق د دليل جواب:** په دې حديث کښې مستحب وخت بيان کړې شوې دې.او دا زمونږ هم مذهب دې.چې د مازيګرافضل او مستحب وخت قبل الاصفرار دې.اود اصفرار په وخت کښې مونځ کول مکروه تحريمی دی.
**د دويم فريق دليل:** دوی هغه حديث نه استدلال کړې دې په کوم کښې چه دا الفاظ راغلی دی: "من ادرك ركعة من العصر قبل ان تغرب الشمس فقد ادرك العصر" نوچه کله دَ نمردَ ډوبيدونه وړاندې صرف دَ يورکعت په ملاويدو سره دَ مازيګرمونځ ملاويږي نودَ اصفرار په وخت کښې به په طريقه اولی ملاويږي.
**دماښام اول او آخر وخت:** " ووقت صلوة المغرب مالم يغب الشفق" دَ نمر دَ ډوبيدونه پس دَ ماښام وخت شروع کيږي. دَ ماښام دَ وخت په شروع کښې دَ چاهم اختلاف نشته دې. دَ ماښام دَ وخت په ختميدوکښې هم دَ ټولو په دې خبره باندې اتفاق دې چه دَ غروب شفق پورې دَماښام وخت وی.

**د شفق په تعريف او تعيين کښې مذاهب:**

البته دَ شفق تفسير اوددې تعيين کښې اختلاف دې دَ دې وجې نه دَ ماښام دَ وخت ختميدو کښې دَ فقهاء کرامو اختلاف پيداشوې دې.
① دَ فقهاؤ دَاختلاف بنياد دَلفظ شفق مصداق دې. نودَ صاحبينواو جمهور فقهاؤ په نيزدَ نمردَ ډوبيدونه پس په آسمان چه کومه سرخي راځی هم دَ دغه سرخئی نوم شفق دې کله چه

دا سرخی ختمه شی نوذ مابنام وخت ختمیږی.

۲ امام ابوحنیفه رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نیز شفق دَ هغه بیاض اوسپینوالی نوم دې چه دَ سرخئی دَ ختمیدونه پس په آسمان خوریږی ترکومې چه دا بیاض او سپینوالې وی دَ مابنام وخت به باقی وی اودَ دغه سپینوالی دَختمیدو نه پس چه کوم توروالې خوریږی هغه دَ ماسخوتن وخت دې دَ امام صاحب په نیز دا وخت تقریبًا یوه گهنټه او لس منټوپورې وی.

**ثمره د اختلاف:** نتیجه دا راؤوتله چه که چاپه دغه بیاض کښې دَ ماسخوتن مونځ اوکړو نودَ امام صاحب په نیزجائزنه دې دَ جمهورو په نیزجائزدې اوکه چا په دغه بیاض کښې دَ مابنام مونځ اوکړو نودَ جمهورو په نیزبه جائزنه وی اودَ امام صاحب رحمه الله په نیزبه جائزوی.

**داول فریق دلائل:** ۱ دَحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها روایت د دوی مستدل دې دَ کوم الفاظ چه څه داسې دی: قالت کانوا یصلون العتمة فیما بین ان یغیب الشفق الی ثلث اللیل. طرز استدلال داسې دې چه دلته دَ شفق نه مراد سرخی ده ځکه چه که دَدې نه بیاض مراد واخستې شی نوصحیح به نه وی ځکه شفق ابیض ثلث اللیل پورې پخپله باقی پاتې وی نودَدې په مینځ کښې دَ ماسخوتن مونځ کولو مفهوم په پوهه کښې نه راځی معلومه شوه چه شفق نه مراد احمرةدې نه چه بیاض.

۲ دَحضرت ابن عمر رضی الله عنهما هغه روایت هم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه په صریح توګه دَ شفق تفسیر حمرة سره کړې شوې دې. قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم الشفق الحمرة.

۳ دَ اهل لغت تصریح هم د دوی مستدل دې. چه شفق نه مراد حمرة دې چنانچه شیخ اصمعی رحمه الله او خلیل بن احمد رحمه الله او فراء رحمه الله تصریح کړې ده چه دَ شفق نه مراد حمرة دې.

**د اول فریق د دلائلو جواب:** د دویم فریق دلائل د اول فریق دَ روایاتو په مقابله کښې کافی روایات دی اودَ اهل لغت په مقابله کښې لوئی لوئی اصحاب لغت موجود دی لیکن بهرحال دَ احنافو په نیزفتوی دَ جمهورو او صاحبین دَ قول مطابق ده. یادلرئی چه شیخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې دَدې مسئله چه کوم تحقیق فرمائیلې دې په هغې کښې هغوی دَ امام احمد بن حنبل رحمه الله امام ابوحنیفه رحمه الله سره ذکرکړې دې.

**احتیاط:** احتیاط هم په دې کښې دې چه دَمابنام مونځ هم دَ دغه سرخئی په موجودګئی کښې اداکړې شی اوروستوکولې دې نه شی دَ احنافو فتوی هم په دې باندې ده اودَ احنافو اکثرعلماؤ وئیلی دی چه امام ابوحنیفه رحمه الله دَ جمهورو قول طرف ته رجوع کړې ده. (کذافی النهر)

**د دویم فریق دلائل:** ۱ په ابوداؤد (ج۱ ص۵۷) کښې روایت دې په کوم کښې چه "حین یسودالافق" الفاظ راغلی دی اودا سواددَهغه بیاض نه پس راځی کوم بیاض چه دَ حمرة نه پس

راځي معلومه شوه چه ترکومې پورې بياض دې نوډَ ماښام وخت موجود دې.

۲ دَ ترمذي شريف دَ حديث هغه ټکړه د دوی مستدل دې په کوم کښې چه الفاظ راغلي دي "وان اول وقت العشاء الآخرة حين يغيب الافق" اودا ښکاره خبره ده چه دَ آسمان غاړې هغه وخت غائب کيږي کله چه دَ شفق بياض ختميږي. دَدې قسم نور احاديث هم دي په کوم کښې چه دَ بياض ختميدو اوتياري خوريدو ذکردې دَ کوم نه چه داخبره ثابتيږي چه دَ شفق نه مراد حمرة نه دې بلکه بياض دې. دَ امام ابوحنيفه رحمه الله

۳ دَ ائمه لغت تشريح اوتفسيرهم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه هغوی تصريح فرمائيلې چه شفق په لغت کښې بياض ته وئيلی کيږي چنانچه امام لغت شيخ مبرد رحمه الله او شيخ زجاج رحمه الله فرمائي چه دَشفق نه مرادبياض دې دَدې دَذهاب سره دَ ماسخوتن وخت راځي.

**د ماښام د وخت په مضيق او موسع کښې مذاهب:**

دَ ماښام وخت "مُضَيَّق" او "مُوَسَّع" کيدوکښې دَ فقهاؤ اختلاف دې. ۱ دَامام شافعي رحمه الله او امام مالک رحمه الله په نيز دَ ماښام وخت ډير تنګ او مضيق دې صرف اودس کول اودرې فرض او دوه سنت کولو په دې کښې ګنجائش دې دَدې نه پس دَ ماسخوتن وخت شروع کيږي. خوعلامه نووي رحمه الله ليکلي دي چه دَ شوافع فتوی په دې باندې ده چه دَماښام وخت دَ شفق ډوبيدو پورې دې اوهم دغه دَ امام شافعي رحمه الله قديم قول دې.

۲ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله او جمهور علماؤ په نيز دَماښام وخت دَ شفق دَ ډوبيدوپورې موسع دې.

**داول فريق دليل:** امام شافعي رحمه الله او امام مالک رحمه الله حديث امامت جبرائيل نه استدلال کړې دې چه په دې کښې په دواړو ورځو کښې حضرت جبرائيل عليه السلام دَماښام مونځ هم په يووخت ورکړې دې دکوم نه چه معلوميږي چه په دې وخت کښې دَ وړاندې روستوکيدو څه ګنجائش نشته دې.

**د دويم فريق دلائل:**

۱ دَ "مالم يغب الشفق" حديث د دوی مستدل دې دَ کوم نه چه دَ وسعت اندازه کيږي.

۲ دغه شان "قبل ان يغيب الشفق" الفاظ کوم چه دَ حضرت بريده رضي الله عنه په روايت کښې دی دَدې نه هم معلوميږي چه په دې وخت کښې شروع اوختميدل دی او په دې کښې دَ يوحد پورې وسعت دې.

**د ماسخوتن پخواني نوم:** دَ اسلام نه وړاندې به دَعربوخلقو ماسخوتن په عتمة سره يادولو اسلام دَدې لفظ حوصله شکني اوکړه او ماسخوتن ئې متعارف کړو البته عشاء اولی ته ماښام او عشاء آخرته عشاء يعنی ماسخوتن وئيلې شوې دې.

**د ماسخوتن آخری وخت کښې مذاهب:**

د ماسخوتن اول وخت او دَدې دَ شروع وخت کښې هم هغه اختلاف دې کوم چه دَ ماښام دَ ختمیدو په وخت کښې وو. ① حضرت سفیان ثوری رحمه الله عبدالله بن مبارک رحمه الله او حضرت اسحاق بن راهویه رحمه الله او په یوقول کښې امام شافعي رحمه الله داټول حضرات فرمائی چه دَ ماسخوتن وخت دَ نصف اللیل پورې دې دَدې نه پس جائزنه دې.

② جمهورعلماء فرمائی چه دَ ماسخوتن آخری وخت صبح صادق پورې دې

**داختلاف بنیاد:** دا اختلاف څه بنیادی اختلاف نه دې لیکن چونکه په احادیثوکښې مختلف الفاظ راغلی دی په دې وجه دَ فقهاؤ اقوال هم مختلف شوې دی.

① بعض احادیثو کښې "الی نصف اللیل" الفاظ دی

② بعض روایت کښې " ثلث اللیل" الفاظ دی

③ دَ طحاوی رحمه الله په بعض روایاتو کښې "وآخره حین یطلع الفجر" الفاظ راغلی دی.

④ بعض روایاتو کښې "الی ان یدخل وقت الاخری" الفاظ ملاویږی دَ کوم دَ وجې نه چه دَ فقهاء اقوال هم مختلف شوی دی.

**په ټولو احادیثو کښې د تطبیق صورت:** لیکن ټول احادیث مخې ته کولوسره فقهاء کرامو یو اجتماعی مسئله خپله کړې ده او په ټولو احادیثوکښې داسې تطبیق ورکړې دې چه ثلث اللیل پورې دَ ماسخوتن مستحب وخت دې او نصف اللیل پورې جائز وخت بغیرد څه کراهت نه دې او دَ صحب صادق پورې تاخیرکول جائز مع الکراهت دې.

**د صبا په آخری وخت کښې مذاهب:**

دَ فجریعنی سحر وخت دَ فجرنه واخله دَ نمر راختلوپورې دې دَدې وخت په شروع اوختمیدوکښې څه قابل ذکر اختلاف نشته دې ① البته امام شافعي رحمه الله طرف ته دا قول منسوب دې چه دَهغوی په نیزدَ فجر وخت دَ اسفار اورڼړا خوریدوپورې دې دَ نمر راختلوپورې نه دې.

② دجمهورو په نیز د صبا آخری وخت د نمبر راختل دی.چې نمر راختل شروع شی نو د صبا د مونځ وخت ختم شو.

**داول فریق دلیل:** "وصلی الفجر فأسفر" څخه د دوی استدلال کوی .

**د اول فریق د لیل جواب:** دَ دې روایت په رڼړاکښې اودَ امت دَ اجماع په رڼړاکښې دَ امام شافعي رحمه الله قول ناقابل التفات دې هغه دَ حدیث امامت جبرائیل دَ یوجملې نه دَ اجتهادپه توګه استدلال کړې دې اودَ حدیث امامت جبرائیل ډیر اجزاء تعلق دَ مونځ بالکل دَ شروع دَ وخت سره دې په دې وجه دې روایت ته ډیر زیات شارحینو حدیث منسوخ وئیلې دې. والله اعلم.

**د دویم فریق دلیل:** دَ حضرت ابوهریره رضي الله عنه مرفوع حدیث د دوی مستدل دي. په کوم کښې چه دا الفاظ دی "من ادرك ركعة من الصبح قبل ان تطلع الشمس فقد ادرك الصبح" [مشكوة: ۶۱]

**قوله: "الْأَوْسَطِ"**

**د اوسط په مصداق کښې دوه اقوال:**

① حدیث کښې "الاوسط" کوم لفظ راغلې دې دادَ لیل صفت دې مطلب دادې چه شپه کله متوسط وی نه زیاته اوږده وی اونه زیاته وړه وی دَدغه شان متوسط شپې نصف مراددې.

② یا لفظ نصف دَ کلمه دَپاره صفت دې او مطلب دادې چه دَ زیاتوالی اوکموالی نه بغیرتیك دَ نصف پورې ماسخوتن دې نولکه دادَ یوقسم تاکید دې.

**قوله: "بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ"** قرنی تثنیه ده دَ قرن او قرن ښکرته وائی

**د مذکوره جملې مفهوم:** مطلب دا چه نمر دَ شیطان دَ دوو ښکرو په مینځ کښې راخیژی مراددَ سردواړه طرفه دی دَ حدیث دَ دې جملې مطلب دا نه دې چه نمر دَ شیطان دَ دوو ښکرو په مینځ کښې راخیژی بلکه دَدې حدیث مطلب دَ نورو احادیث دَ تفصیل مطابق دې چه دَ ابلیس العین عبادت خو په انسانانو کښې څوك هم نه کوی لیکن داخبیث غواړی چه دَالله تعالی عبادت سره دَخپل عبادت مشابهت پیداکړی دَدې مقصد دَپاره داخبیث دَ نمر راختلو په وخت دَ نمر مخې ته داسې اودریږی چه نمر دَ ده په سریاندې تیریږی. بل طرف ته آفتاب پرست او دَ نمر عبادت کونکی کله چه نمر ته مخامخ شی نودَنمر عبادت کوی نوشیطان هم مخې ته وی. دغه شان شیطان په خپل زړه کښې دا خیال کوی چه خلق زما عبادت کوی اوخپل اولاد ته خودل غواړی چه ګورئی خلق څنګه زما عبادت کوی په دې وجه شریعت مسلمانان منع کړل چه طلوع آفتاب او غروب آفتاب او نصف النهار کښې دې څوك عبادت نه کوی.

**۵۸۳– د مانځه د وختونو تفصيل**

۵۸۳–(۱)[۲] وَعَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «انَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ وَقْتِ الصَّلَاةِ، [۳] فَقَالَ لَهُ: صَلِّ مَعَنَا هٰذَيْنِ يَعْنِي الْيَوْمَيْنِ - [۴] فَلَمَّا زَالَتِ الشَّمْسُ أَمَرَ بِلَالًا فَأَذَّنَ، ثُمَّ أَمَرَهُ فَأَقَامَ الظُّهْرَ، [۵] ثُمَّ أَمَرَهُ فَأَقَامَ الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ بَيْضَاءُ نَقِيَّةٌ، [۶] ثُمَّ أَمَرَهُ فَأَقَامَ الْمَغْرِبَ حِينَ غَابَتِ الشَّمْسُ، [۷] ثُمَّ أَمَرَهُ فَأَقَامَ الْعِشَاءَ حِينَ غَابَ الشَّفَقُ، [۸] ثُمَّ أَمَرَهُ فَأَقَامَ الْفَجْرَ حِينَ طَلَعَ الْفَجْرُ.

**ترجمه:** [۱] حضرت بریده رضي الله عنه راوي دي [۲] چې یو سړي د رسول الله ﷺ څخه د لمانځه د وخت پوښتنه وکړه (چې د لمونځونو اول او آخر وخت څه دي) ؟ [۳] حضور ﷺ هغه ته

(۱) اخرجه مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلوة باب أوقات الصلوات الخمس (رقم) ۱۷۶ - (۶۱۳) والنسائی كتاب المواقيت/ أول وقت المغرب(رقم-۵۱۹)

وفرمايل چې په دي دوو ورځو کې ته زمونږ سره مونځ اوکړه (چې تاته د لمانځه وختونه دروښا يم) [۴] نو کوم وخت چې نمر په زوال شو حضور ﷺ بلال رضي الله عنه ته د اذان کولو حکم وکړو بلال رضي الله عنه اذان وکړو بيا حضور ﷺ هغه ته د تکبير (اقامت وئيلو) حکم وکړو نو هغه د ماسپخين تکبير اوويلو (او حضور ﷺ د ماسپښين مونځ ورکړو) [۵] بيا حضور ﷺ د مازيګر د اقامت حکم ورکړو هرکله چې نمر اوچت (بلند) سپين اوصاف وو (نو د مازيګر مونځ يي ورکړو) [۶] بيا د ماښام د اقامت حکم يي ورکړو کله چې نمر ډوب شوې وو (او د ماښام مونځ يي ورکړو) [۷] بيا د ماسخوتن د اقامت حکم يي ورکړو هرکله چې شفق غائب شو او (د ماسخوتن مونځ يي ورکړو) [۸] بيا فجر (سحر) ظاهريدو سره حضور ﷺ د اقامت حکم ورکړو (او مونځ يي ورکړو، لکه چې په اولني ورځ حضور ﷺ ټول لمونځونه په اول وخت کې ورکولو سره ورروښودل (چې د لمونځونو اول وخت دا دي)

**حل اللغات:** ① مُرْتَفِعَةٌ: اوچت (يعنى بلند اوښکاره واضحه وو) ② بَيْضَاءُ: سپين، ③ نَقِيَّةٌ: أَيْ: طَاهِرَةٌ مِنَ الِاصْفِرَارِ: پاک صفا وو، زيړوالى پکښې نه وو.

[۱] فَلَمَّا أَنْ كَانَ الْيَوْمُ الثَّانِي أَمَرَهُ: "فَأَبْرَدَ بِالظُّهْرِ" [۲] فَأَبْرَدَ بِهَا - فَأَنْعَمَ أَنْ يُبْرِدَ بِهَا - وَصَلَّى الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ - [۳] أَخَّرَهَا فَوْقَ الَّذِي كَانَ، [۴] وَصَلَّى الْمَغْرِبَ قَبْلَ أَنْ يَغِيبَ الشَّفَقُ، [۵] وَصَلَّى الْعِشَاءَ بَعْدَمَا ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ، [۶] وَصَلَّى الْفَجْرَ فَأَسْفَرَ بِهَا. [۷] ثُمَّ قَالَ: أَيْنَ السَّائِلُ عَنْ وَقْتِ الصَّلَاةِ؟ ". [۸] فَقَالَ الرَّجُلُ: أَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ. [۹] قَالَ: "وَقْتُ صَلَاتِكُمْ بَيْنَ مَا رَأَيْتُمْ" . رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** [۱] بيا چې دويمه ورځ شوه نو حضور ﷺ بلال رضي الله عنه ته د ماسپښين يخيدو سره د اذان کولو حکم وکړو [۲] او د ښه يخيدو ځخه وروسته يي د ماسپښين مونځ ورکړو او د مازيګر مونځ يي هغه وخت ورکړو چې نمر ښه اوچت وو [۳] ليکن د پروني وخت ځخه تاخير کولو سره يي مونځ ورکړو [۴] او د ماښام مونځ ئي شفق غائبيدو ځخه مخکې (يعني د شفق غائبيدو نزدې يي) ورکړو، [۵] او د ماسخوتن مونځ ئي دريمه حصه د شپې تيريدو باندې ورکړو [۶] او د فجر (سحر) مونځ ئي ښه رڼا کيدو باندې ورکړو [۷] او د دې ځخه وروسته يي وفرمايل د لمانځه وختونه معلوموونکي سړي چرته دي؟ [۸] هغه سړي عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ زه حاضريم [۹] حضور ﷺ ورته وفرمايل ستا د مونځ وختونه د دې وختونو په مينځ کې دي چې تا دي دوو ورځو کې وليدل، مسلم

**حل اللغات:** ④ فَأَبْرَدَ: برد يخوالى ته وائى. ⑤ فَأَنْعَمَ: أَيْ: بَالَغَ: دَ ښه يخوالى دپاره لفظ انعم استعمال کړې شوې دې. ⑥ فَأَسْفَرَ: اى أَسْفَرَ الصُّبْحُ إِذَا أَضَاءَ: د سحر د سپين والى نه مطلب ښه رڼا لګيدل دى.

**تسهيلات:**

**قوله:** "أَنَّ رَجُلًا"

**د تعليم الصلاة غوره طريقه:** يعنى يوسړى دَ رسول الله ﷺ نه دَ مونځ دَ وختونو متعلق سوال اوكړو چه دَمانځه اول وخت څه ته وائى اودَدې آخر وخت كوم يووى. رسول الله ﷺ مناسب اوګڼړل چه دا سړې زبانى توګه باندې دَ پوهه كولو په ځائى په عملى توګه باندې پوهه كول ډير مفيد دى. په دې وجه حضورپاك په رومبې ورځ مونځونه دَهغې په اول وخت كښې اداكړل په دويمه ورځ ئې بالكل په آخر وخت كښې اداكړل اوبيائى دغه سوال كونكې راوغوښتلو وئى فرمائيل چه دَدې دواړو وختونو په مينځ كښې ستاسو دَ مونځونووختونه دى.

**اشكال:** حضورپاك دَ دوو وختونو په مينځمى وخت دَ مونځ وخت ګرځولې دې دَ كوم نه چه معلوميږى چه پخپله دَدې دوو وختونو طرف اول او طرف ثانى دَدواړو مونځونو دَ وختونونه خارج شو حالانكه هغه پخپله هم دَ مونځ په وختونو كښې داخل دى.

**داشكال جواب:** دَ حديث دَ دې جملې مطلب دادې چه حضورپاك فرمائى په رومبې ورځ چه ما په كوم دَ شروع وخت كښې مونځ اوكړو او بيا په دويمه ورځ چه ما په كوم آخرى وخت كښې مونځ اوكړو دغه اول او آخر يوځائى كولوسره په مينځ كښې ټول وخت دَ مونځ دې. خلاصه داچه دَ مونځونو دَ وختونو جانبين دَ مونځ دَ وختونونه خارج نه دې بلكه په دې كښې داخل دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## ۵۸۳-دجبريل عليه السلام د امامت بيان

۵۸۳-(۱)[۳] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «أَمَّنِي جِبْرِيلُ عِنْدَ الْبَيْتِ مَرَّتَيْنِ، [۳] فَصَلَّى بِيَ الظُّهْرَ حِينَ زَالَتِ الشَّمْسُ، [۴] وَكَانَتْ قَدْرَ الشِّرَاكِ، [۵] وَصَلَّى بِيَ الْعَصْرَ حِينَ صَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَهُ، [۶] وَصَلَّى بِيَ الْمَغْرِبَ حِينَ أَفْطَرَ الصَّائِمُ، [۷] وَصَلَّى بِيَ الْعِشَاءَ حِينَ غَابَ الشَّفَقُ، [۸] وَصَلَّى بِيَ الْفَجْرَ حِينَ حَرُمَ الطَّعَامُ وَالشَّرَابُ عَلَى الصَّائِمِ،

**ترجمه:** [۱] ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې نبي كريم ﷺ فرمايل [۲] جبريل عليه السلام (د لمانځه كيفيت او د لمانځه وختونو ښودلو د پاره) امام جوړيدو سره خانه كعبې ته نزدې ماته دوه خله (دوه ورځې) مونځ راكړې دې [۳] نو ماته يې د ماسپښين مونځ راكړو په اولنې ورځ كوم وخت چې نمر په زوال شو [۴] او سايه (سورې) د تسمې په شان وه [۵] او كوم وخت چې د هر

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب فى المواقيت(رقم-۳۹۳) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى مواقيت الصلاة عن النبى صلى الله عليه وسلم(رقم-۱۴۹) وابن ماجة كتاب الصلاة أبواب مواقيت الصلاة (رقم-۶۶۸)

شي سايه (سوري) (علاوه د اصلي سايه (سوري) د هغې د هغې برابر شوه نو ما ته يې د مازيګر مونځ راکړو[۶] او کوم وخت چې روژه دار روژه ماتوي (يعني د نمر پټيدو څخه وروسته) نو ماته يې د ماښام مونځ راکړو[۷] او د شفق د غائبيدو په وخت يې ماته د ماسخوتن مونځ راکړو[۸] اوکوم وخت چې د روژه دار د پاره خوراك څښاك حراميږي (يعني د صبح صادق څخه وروسته) نو ماته يې د سحر مونځ راکړو

[۱] فَلَمَّا كَانَ الْغَدُ؛ صَلَّى بِيَ الظُّهْرَ حِينَ كَانَ ظِلُّهُ مِثْلَهُ، [۲] وَصَلَّى بِيَ الْعَصْرَ حِينَ كَانَ ظِلُّهُ مِثْلَيْهِ، [۳] وَصَلَّى بِيَ الْمَغْرِبَ حِينَ أَفْطَرَ الصَّائِمُ، [۴] وَصَلَّى بِيَ الْعِشَاءَ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ [۵] وَصَلَّى بِيَ الْفَجْرَ فَأَسْفَرَ " [۶] ثُمَّ الْتَفَتَ إِلَيَّ فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ، هٰذَا وَقْتُ الْأَنْبِيَاءِ مِنْ قَبْلِكَ، [۷] وَالْوَقْتُ مَا بَيْنَ هٰذَيْنِ الْوَقْتَيْنِ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] بيا چې دويمه ورځ شوه نو ماته يې د ماسپښين مونځ هغه وخت راکړو چې سايه (سوري) يو مثل ته (نزدې) شوه[۲] او د مازيګر مونځ يې هغه وخت راکړو چې سايه (سوري) دوه مثل شوه[۳] او د ماښام مونځ يې هغه وخت راکړو کوم وخت چې روژه دار روژه ماتوي[۴] او د ماسخوتن مونځ يې هغه وخت راکړو چې دريمه حصه د شپې شوې وه[۵] او د سحر مونځ يې هغه وخت راکړو هرکله چې ښه رڼا شوې وه[۶] بيا جبرائيل عليه السلام زما طرف ته متوجه کيدو سره اوويل اې محمد ﷺ دا وخت ستا څخه مخکې د نبيانود لمانځه وخت وو[۷] او دلمانځه وخت د دې دواړو وختونو په مينځ مينځ کې دي، (ابوداؤد، ترمذي.)

**حل اللغات:** ① زَالَتِ: زوال به اوشو. ددې نه مراد فيئ الزوال دې. ② عِنْدَ الْبَيْتِ: دَدې نه بيت الله مراد دې اوداد هجرت نه مخکښې واقعه ده. ③ الشِّرَاكِ: د څپلئ تسمې ته وائي. ④ الشَّفَقُ: وَهُوَ الْحُمْرَةُ الَّتِي تَلِي الشَّمْسَ بَعْدَ الْغُرُوبِ: د نمبر د پريوتلونه پس چه دنمر سره نزدې کوم سوروالې وی هغې ته شفق وائی.

**تسهيلات:**

**قوله:** "قَدْرَ الشِّرَاكِ"

**د تشبيه محل:** ښکاره خبره داده چه دَ څپلئی تسمې سره دا تشبيه په پلنوالی کښې ورکړې شوې ده په اوږدوالی کښې نه ده.

**د ځائې او وخت په اعتبار سره د سايه اصلی اختلاف:** بيا دَ ځائی اووخت په اعتبار سره اصلی سورې مختلف وی. په بعضې مقاماتوکښې اصلی سورې زيات وی او په بعضې کښې کم وی اوبعضې مقاماتوکښې اصلی سورې بالکل نه وی لکه په مکه مکرمه کښې دَ نورلسم سرطان بالکل اصلی سورې نه وی.[الکاشف: ۱۹۰/۲]

**دَ امتونودَ مونځونو وختونه : "هذاوقت الانبياء"**

**اشكال :** دَ سابقه انبياء کرامو سره دَ مشابهت څه معنی ده؟

**داشکال جواب:** دا مشابهت دَمتفرق وختونو په اعتبار سره دې. دَ ماسخوتن نه علاوه په غالب توګه باندې دَهغوی اودَدې امت په وختونو او مونځونوکښې ډیر یوشان والې وو. دَماسخوتن مونځ دَامت محمدیه خصوصیت دې داهم وئیلی کیدې شی چه پخوانوامتونو هم دَماسخوتن مونځ کړې وو لیکن دَ نفل په توګه ئې کړې او امت محمدیه ئې دَ فرض په توګه باندې ادا کوی نوتشبیه صحیح ده.

**مخکنو امتونو سره د مشابهت وجه:** شیخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې دَ مختلف امتونودَ مونځونو مختلف وختونه ذکرکولوسره مشابهت داسې ذکر کړې دې.

① دَحضرت آدم علیه السلام توبه چه کله دَ سحروخت کښې قبوله شوه نوهغوی دَ شکرانې په توګه دَ سحردوه رکعته مونځ ادا کړو

② دَ ماسپښین وخت چه کله دَ اسماعیل علیه السلام دَ ځان په بدله کښې دګډ قربانی قبوله شوه نو هغوی دَ شکرانې په توګه دَ ماسپښین څلور رکعته مونځ اوکړو.

③ حضرت عزیر علیه السلام چه کله دَ سلوکالونه پس راژوندې کړې شو نودَ مازیګر وخت وو په دې وجه هغوی دَ شکرانې په توګه دَ مازیګرڅلور رکعته مونځ اوکړو.

④ په حضرت داؤد علیه السلام باندې چه کله دَ امتحان وخت راغلو اوبیا دَهغوی دَ معاف کیدو حکم راغلو نودَماښام وخت وو هغوی څلور رکعته کول غوښتل لیکن څلورم رکعت ئې اونه کړې شو ځکه چه هغوی دَ زیاتې ژړا په وجه باندې کمزورې شوی وو په دې وجه دَماښام درې رکعته مونځ پاتې شو.

⑤ دَ ټولو نه مخکښې دَماسخوتن مونځ رسول الله ﷺ کړې چه دَ دې امت په خصوصیت کښې یو خصوصیت دې.

**قوله:** أَمَّنِي جِبْرِيلُ عِنْدَ الْبَيْتِ مَرَّتَيْنِ:

**دحدیث څخه د دوؤ مسائلو غلط استنباط:** ①په دې کښې داخبره دَ بحث لاندې نه ده چه جبرائیل متنفل وو حضورپاك مفترض وو ځکه چه کله حضرت جبرائیل ته دَ الله تعالی دَ طرف نه دَ مونځ ورکولو حکم ملاؤ شو نو هغوی مفترض جوړشو. دَ "دَبین هذین الوقتین" وغیره جملو تشریح مخکښې شوې ده.

② بل داخبره دَ بحث لاندې نه ده چه جبرائیل مفضول وو هغه دَ حضورپاك څنګه امامت اوکړو ځکه چه دا څه ممنوع کارنه دې.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## ٥٨٤-د جبریل علیه السلام د پنځو مونځونو امامتی

٥٨٤-(١)[٣] ١ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ أَخَّرَ الْعَصْرَ شَيْئًا، ٢ فَقَالَ لَهُ عُرْوَةُ: «أَمَا إِنَّ جِبْرِيلَ قَدْ نَزَلَ فَصَلَّى أَمَامَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ٣ فَقَالَ لَهُ عُمَرُ: اعْلَمْ مَا تَقُولُ يَا عُرْوَةُ. ٤ فَقَالَ: سَمِعْتُ بَشِيرَ بْنَ أَبِي مَسْعُودٍ يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا مَسْعُودٍ،

**ترجمه:** ١ ابن شهاب راوي رحمه الله دي چې عمر بن عبدالعزیز رحمه الله یو ورځ د مازیګر مونځ (د مختار وخت څخه لږ) تاخیر کولو سره وکړو ٢ عروه رحمه الله چې دا ولیدل نو هغه اوویل پوه شه چې جبرائیل علیه السلام راغي د حضور صلی الله علیه وسلم په مخکې ودریدو سره په اول وخت کې یي مونځ ورکړي وو ٣ عمر بن عبدالعزیز رحمه الله ورته وفرمایل اي عروه لږ سوچ سره خبره کوه چې څه وایي ٤ عروه رحمه الله اوویل ما د ابو مسعود رضی الله عنه د خوي د بشیر څخه واوریدل هغه اوویل ما د ابو مسعود رضی الله عنه څخه اوریدلي دي

١ يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ٢ نَزَلَ جِبْرِيلُ فَأَمَّنِي، فَصَلَّيْتُ مَعَهُ، ٣ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ، ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ، ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ، ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ" ٤ يَحْسُبُ بِأَصَابِعِهِ خَمْسَ صَلَوَاتٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ هغه فرمایل چې ما د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم څخه واوریدل چې هغه فرمایل ٢ چې جبرائیل علیه السلام راغي زما امام جوړ شو او ما د هغه سره مونځ وکړو ٣ بیا ما د هغه سره مونځ وکړو، بیا ما د هغه سره مونځ وکړو، بیا ما د هغه سره مونځ وکړو، بیا ما د هغه سره مونځ وکړو، بیا ما د هغه سره مونځ وکړو ٤ راوي وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم پنځه لمونځونه په ګوتو شمیرلوسره وښودل، (بخاري، مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** "أَخَّرَ الْعَصْرَ شَيْئًا"

**د مذکوره جملې نه غلط فهم:** یعنی مستحب وخت کښې لږشان تاخیر اوشو دامطلب نه دي چه دَ مازیګر دَمکروه وخته پورې تاخیراوکړو.

**قوله:** "فَقَالَ لَهُ عُرْوَةُ"

**دحضرت عروه او عمربن عبدالعزیز په مینځ کښې مکالمه:** حضرت عروه رحمه الله یودَ لوئی شان والاتابعی دي دې دَحضرت اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنهما او زبیر رضی الله عنه خوئی دې. ده غوښتل چه حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله ته دَ جبرائیل دَ امامت حدیث واؤروی په کوم کښې چه دَ مونځونو په اول وخت کښې دَ اداکولو بیان دې. په دې وجه هغوی دَحرف تنبیه "اما" سره

(١) اخرجه البخاري بدء الخلق باب ذكر الملائكة (رقم-٣٢٢١) ومسلم كتاب بدء الخلق باب أوقات الصلوات الخمس (رقم) ١٦٦ - (٦١٠) والنسائي كتاب المواقيت(رقم-٤٩٤) وابن ماجة كتاب الصلاة . أبواب مواقيت الصلاة (رقم-٦٦٨)

دکلام شروع اوکړه دي دپاره چه حضرت عمر بن عبدالعزیز په غور سره خبره واؤري.

**قوله**: "اعْلَمْ مَا تَقُولُ يَا عُرْوَةُ."

**د عمر بن عبدالعزیز د قول مطلب**: دا صیغه دَ امر ده حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله حضرت عروه رحمه الله ته اوفرمائیل اې عروه ته په سوچ اوفکر سره خبره کوه ته حدیث بیانوې حالاتکه ته صحابی نه یئې نودَ سند دَ ذکر کولونه بغیر ته څنګه حدیث بیانوې؟ په دې باندې حضرت عروه رحمه الله دَ حدیث مکمل سند بیانولوسره اوخودل چه زه ښه په سوچ اوفکر او پوهه سره داحدیث بیانولې شم. دَدې سند داسې دې په دې باندې حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله چپ شو.

## ۵۸۵-د حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه خپلو عاملانو ته خط

۵۸۵-(۱)[۵]① وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ كَتَبَ إِلَى عُمَّالِهِ: ② إِنَّ أَهَمَّ أُمُورِكُمْ عِنْدِي الصَّلَاةُ; ③ مَنْ حَفِظَهَا وَحَافَظَ عَلَيْهَا حَفِظَ دِينَهُ، ④ وَمَنْ ضَيَّعَهَا فَهُوَ لِمَا سِوَاهَا أَضْيَعُ. ⑤ ثُمَّ كَتَبَ: أَنْ صَلُّوا الظُّهْرَ إِنْ كَانَ الْفَيْءُ ذِرَاعًا، إِلَى أَنْ يَكُونَ ظِلُّ أَحَدِكُمْ مِثْلَهُ،

**ترجمه**: ① د امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په باره کې روایت دې چه هغه خپلو عاملانو (د اسلامي سلطنت حاکمانو) ته خط لیږلې وو② چې ستاسو په ټولو کارونوکې ډیراهمیت والا کار زما په نیز مونځ کول دي③ نو چا چې د دې محافظت وکړو (یعني د ارکان اوشرائط سره یي مونځ وکړو) او د دې نګهباني یي وکړه (یعني همیشه یي ادا کولو او د ریاء او نمائش په سبب یي باطل نه کړو) نو لکه چې هغه د خپل دین د بقیه امورو نګهباني او محافظت وکړو④ او چا چې دا ضائع کړو نو هغه هغه شي لره چې د لمانځه څخه علاوه دي ډیر زیات ضائع کونکي دي⑤ بیایي دا ولیکل چې د ماسپښین مونځ د یو ګز سایه (سوري) زوال کیدو څخه واخله د یو مثل سایه (سوري) پورې (علاوه د اصلي سایه (سوري) نه کوئ.

**حل اللغات**: ① عُمَّالِهِ: أَيْ: أُمَرَائِهِ: د عَامِل جمع ده. حاکمان ګورنران مراد دی. ② الْفَيْءُ: أَيِ: الظِّلُّ: سوري، سایه، ③ ذِرَاعًا: ګز،

① وَالْعَصْرَ وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ بَيْضَاءُ نَقِيَّةٌ ② قَدْرَ مَا يَسِيرُ الرَّاكِبُ فَرْسَخَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً قَبْلَ مَغِيبِ الشَّمْسِ، ③ وَالْمَغْرِبَ إِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ، ④ وَالْعِشَاءَ إِذَا غَابَ الشَّفَقُ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ، ⑤ فَمَنْ نَامَ فَلَا نَامَتْ عَيْنُهُ، فَمَنْ نَامَ فَلَا نَامَتْ عَيْنُهُ، فَمَنْ نَامَ فَلَا نَامَتْ عَيْنُهُ، ⑥ وَالصُّبْحَ وَالنُّجُومُ بَادِيَةٌ مُشْتَبِكَةٌ. رَوَاهُ مَالِكٌ

**ترجمه**: ① او د مازیګر مونځ داسې وخت کوئ چې نمر لا اوچت اوسپین وي② (او د نمر په ډوبیدو کې) دومره وخت وي چې یو سور سړي د نمر ډوبیدو څخه مخکې دوه یا درې میله

(۱) اخرجه مالک کتاب وقوت الصلاة باب وقوت الصلاة (۴)

قطع كړي شي ③ او د مابنام مونځ د نمر ډوبيدو څخه وروسته كوي ④ او دما خستن مونځ د شفق غائبيدو د وخت څخه د دريمي حصي د شپي پورې كوي ⑤ او كوم سړي چې (د ماسخوتن څخه مخكي) اوده شي (نو الله دي وكړي) چې د هغه سترګو ته خوب نصيب نشي درې خله يي دا بد دعا وكړله او وي ليكل ⑥ چې د سحر مونځ داسې وخت كې كوئ چې ستوري ګنړ بريښيدونكي وي يعني په تياره كې يي كوئ. (مالك)

**حل اللغات** ③ فَرْسَخَيْنِ: د فرسخ تثنيه ده، يو فرسخ د دريو ميلونو برابر وي. ⑤ بَادِيَةٌ: أَيْ: ظَاهِرَةٌ: ښكاره وي، ⑥ مُشْتَبِكَةٌ: أَيْ: مُخْتَلِطَةٌ: ګنړ.

**تسهيلات:**

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:** ① "الْفَيْءُ ذِرَاعًا" وړاندې خودلې شوي دي چه دَ هرملك دَ سوري نظام جدا جدا دي دَدې دپاره دَ حضرت عمر رضي الله عنه دا فرمان يوخاص مقام او يوخاص زمانې سره خاص دې.

② "يَسِيرُ الرَّاكِبُ" دلته كلمه دَ "ما" مصدريه ده "فرسخ" درې ميله يو فرسخ وي.

③ "وَالنُّجُومُ بَادِيَةٌ" نجوم دَ نجم جمع ده مراد ستوري دي او دَ باديه نه ظاهر اوواضح كيدل مراد دي مشتبكة هم دَدې تفصيل دې چه ډير ستوري موجود وي.

**قوله:** "كَتَبَ إِلَى عُمَّالِهِ"

**د مونځ په رعايت نه د حقوق العباد په رعايت استدلال:** مونځ چونكه دَ دين ستن ده اودَدې دَ بنيادي اركان نه دې اودَ دې اهتمام دَ مسلمانانو دَ خليفه په بنيادي ذمه واروكښې دې په دې وجه حضرت عمر رضي الله عنه دَ سركاري فرمان او تاكيدي حكم په ذريعه دَهغې حق اداكړو چاچه دَ مانځه حق اداكړو يعني وئې كړلو اودَ هغې فرائض واجبات او سنن اودَ وختونو حفاظت او پابندي اوكړه نوهغه په امور مملكت حقوق الله اوحقوق العباد اونورو احكاماتو هم پابندي كوي ليكن چاچه مونځ ضائع كړويعني كول ئې پريخودل يادَ دې دَ وختونو خيال ئې اونه ساتلو يادَدې فرائض اوواجبات ئې صحيح ادانه كړل نوهغه سړې امور مملكت او نورعبادات به دَدې نه زيات ضائع كونكې وي لكه چه مونځ دَ مسلمان دَ ايماندارئي او امانت دارئي يوه پيمانه اومعيار دې. شيخ سعدي رحمه الله فرمائي چه بې مونځه ته قرض مه وركوه ځكه چه كوم سړې دَالله تعالى قرض نه اداكوي هغه به دَ بنديګانو قرض څه اداكړي. سلطان باهو رحمه الله فرمائي چه بې مونځ دَ مسلمانانو په قبرستان كښې مه ښخه وئې دَ مسلمانانو حكمرانانودپاره داحديث سبق اوع ۱ برت دې چه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په دومره جلالت شان سره ګورنرانو ته خاص دَ مانځه حكم اودَدې دَ وختونو تفصيل ورليګي او دَ نن صبا دا بې دين حكمرانان دَ مانځه خبره شرم او دَ شرم

سبب ګرځي په دې وجه دوی په پوره دنيا کښې ذليل دی او دَ کافرانو غلامان جوړ شوی دی دَ الله تعالى تعريف خونه شي کولې مګر دَ امريکه تعريفو کوی.

**قوله: "فَمَنْ نَامَ**

**دَ ماسخوتن د مانځه نه وړاندې د اوده کيدو حکم:** په ظاهره دا حکم ماسخوتن سره متعلق وې ځکه چه ماسخوتن دَ خوب وخت دې په رواياتو کښې دَماسخوتن دَمانځه نه وړاندې اوده کيدل منع دی نودلته هم حضرت عمر رضي الله عنه دَماسخوتن دَ مانځه نه وړاندې اوده کيدونکی ته بد دُعا کوی.

① ابن حجر رحمه الله فرمائيلی دی چه دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَ ماسخوتن دَ مونځ نه وړاندې اوده کيدل حرام دی.

② دَاحنافو په نيزدا تفصيل دې چه که دَمونځ وخت نه دې داخل شوې نودَدې نه وړاندې اوده کيدل منع نه دی اوکه چرې وخت داخل شوې وی نوکه يومونځ ګذارد پاسيدو مکمل انتظام کوی نودَهغه دَپاره اوده کيدل جائزدی اوکه دَ پاسيدو څه انتظام نشته اوخوب دومره غالب دې چه دَ مانځه دَ وخت وتلو خطره ده نوبيا خوب جائزنه دې بلکه مکروه دې. (کذافی المرقات)

**د ممانعت عموم:** بعض شارحينوحضراتو فمن نام نه ترک صلوة او غفلت او نسيان مراد اخستې دې که په خوب سره وی اوکه په بل څه شغل سره وی. [اشعة المعات: ۳۱۰]

**۵۸۶–د نبي عليه السلام د ماسپښين د مانځه مقدار**

۵۸۶–()[۶] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ قَدْرُ صَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ فِي الصَّيْفِ ثَلَاثَةَ أَقْدَامٍ إِلَى خَمْسَةِ أَقْدَامٍ، [۳] وَفِي الشِّتَاءِ خَمْسَةَ أَقْدَامٍ إِلَى سَبْعَةِ أَقْدَامٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابن مسعود فرمايي[۲] چه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د ماسپښين د لمانځه اندازه په ګرمئ کې دري قدمونو څخه تر پنځه قدمونو پوري[۳] او په يخنئ کې د پنځه قدمونو څخه تر اوه قدمونو پورې وه. (ابوداؤد، نسايي)

**حل اللغات:** ① الصَّيْف: ګرمی، د ګرمئ موسم، ② الشِّتَاء: يخنی، د يخنئ موسم.

**تسهيلات:**

**قوله: "إِلَى خَمْسَةِ أَقْدَامٍ"**

**د مذکوره جملې مفهوم:** په حساب پوهيدونکې دَ رياضی دانانو په اصطلاح کښې "قدم"

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة باب فی وقت صلاة الظهر(رقم–۴۰۰) والنسائی کتاب المواقيت/آخر وقت الظهر(رقم–۵۰۳)

دَهرځیزدَ قد اوومې حصې ته ونیلی شی په یخنئ کښې سورې اوږد وی په دې وجه دَماسپښین وخت کله اووه قدم اوکله پنځه قدم په اندازه وی.

خلاصه دا راووتله چه دا سبعة اقدام مطلب پوره مثل دې او ثلاثة اقدام مفهوم تقریبًا نصف مثل دې او خمسة اقدام مطلب تقریبًا دَیومثل دریمه حصه ده.

داخبره باربار لیکلې شوې ده چه دَ سورو دا نظام دَتولو ملکونو اوعلاقودَپاره یوشان نه دې بلکه دَ علاقې بدلیدوسره دَ سوری مقدار هم بدلیږی.

## [۲/۲۰]بَابُ تَعْجِیلِ الصَّلَوَاتِ]

**په عجلت(تلوار) سره دَ مونځ کولوبیان**

**خلاصة الباب:**

**فیه خمسة وثلاثون حدیثاً مشتملة علی ثلاث عشرة مسائل:**

① التعجیل بالصلوات الأربعة سوی العشاء: ۱، ۲، ۳، ، ۱۹، ۲۰ ، ۲۱ ، ۳۱ .

② التعجیل والتأخیر فی العشاء بحسب أحوال الناس : ۱، ۲، ۲۳، ۲۴، ۲۵، ۲۸، ۲۹، ۳۰

③ الإبراد بصلاة الظهر فی الصیف والتعجیل بها فی الشتاء : ۴، ۳۲ .

④ مقدارتعجیل العصر: ۵، ۲۷.

⑤ الزجربالتاخیر فی صلاة العصر إلی الوقت المکروه و فواتها: ۶، ۷، ۸،

⑥ مقدار التعجیل في صلاة المغرب۹، ۲۲.

⑦ مقدار تعجیل الصلاة في الفجر: ۱۱، ۱۲

⑧ حکم التأخیر بصلاة الفجر: ۲۶ .

⑨ حکم التأخیر بصلاة العصر: ۳۱.

⑩ ترغیب أداء الصلوة فی الأوقات المستحبة:۱۳، ۲۲، ۲۳، ۳۳.

⑪ إدراك الصلاة بإدراك الجزء الأخیر: ۱۴، ۱۵.

⑫ حکم فوات الصلوة عن الوقت بالعوارض: ۱۶، ۱۷.

⑬ حکم الصلوة خلف الأمراء السوء وإن اخروها: ۱۳، ۳ ، ۳۵.

**ماقبل باب سره ربط:** صاحب مشکوة چه کله دَ مونځونودَ وجوبې وختونو بیان اوکړو اودائې اوخودل چه دَهرمونځ دَوخت اوله حصه دکوم ځائې نه ده اوآخری حصه ئې ترکوم ځائې پورې ده. نواوس هغه دَ مونځ دَمستحب وختونو بیان شروع کړو چه دَدې وختونو په کومه یوه حصه کښې مونځ کول افضل اومستحب دی. دَدې مقصد دَپاره هغوی باب

تعجیل الصلوة په عنوان سره قائم کړې دې.

**د مستحب وختونو په باره کښې د امامانو اصول:** ① اصولی توګه باندې دَمونځونو په غوره وختونو کښې دَ احنافو او شوافع اختلاف دې. شوافع دَ ماسخوتن دَ مونځ نه علاوه په ټولو مونځونو کښې تعجیل کول او زر اداکول غوره ګرځولې دی

② احناف دَماښام دَ مونځ نه علاوه باقی ټولو مونځونو کښې تاخیرغوره ګرځوی. لیکن دَ دې تاخیردامطلب نه دې چه دَ مکروه وخت پورې تاخیراوکړې شی بلکه دَدې مطلب دادې چه په مستحب وخت کښې څه تاخیراوکړې شی.

اوس په دې وجه دَ ترتیب په رڼا کښې دَ سحرنه واخله ترماسخوتن پورې به په ترتیب سره دَ مونځونو دَ مستحب وختونو بیان کوم. دې دَپاره چه لوستونکوحضراتو ته په پوهیدو کښې آسانی وی.

**د حدیث نه د صبا د مونځ په تیاره کښې د کولو ثبوت:** دَدې مطلب دا شوچه حضورپاك به دَ سحرمونځ په غلس اوتیاره کښې شروع کولو ځکه چه حضورپاك دَ شپیتونه تر سلو آیاتونو پورې تلاوت دَ سحرپه مونځ کښې کولو اوبیابه هم یوملګری خپل خواکې کس پیژندلو نومعلومه شوه چه په غلس یعنی تیاره کښې به ئې کولو. په نورو احادیثو کښې دامفهوم "والصبح بغلس" الفاظوسره اداکړې شوې دې نودادَ غلس حکم شومګردَدې نه علاوه په ډیرواحادیثو کښې راغلی دی چه حضورپاك دَسحرپه مونځ کښې دَ اسفارحکم ورکړې دې.

**د سحر د مانځه په افضل وخت کښې مذاهب:**

دَ روایاتو په دې اختلاف سره دَ فقهاءکرامو په مینځ کښې هم دَ سحردَ مونځ په مستحب وخت کښې اختلاف پیداشو. سره دَدې چه په دې خبره باندې اتفاق دې چه دَ سحردَ راختونه تردَ نمر دَ راختو پورې ټول وخت دَ سحردَ مونځ دې.

① امام مالك رحمه الله امام شافعی رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله یعنی دَ جمهورو په نیز دَ سحرمونځ په غلس یعنی تیاره کښې کول افضل دی چه شروع هم په تیاره کښې وی او ختمیدل ئې هم په تیاره کښې وی.

② دَ امام ابوحنیفه رحمه الله سفیان ثوری رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله په نیزدَ سحرمونځ په اسفار یعنی رڼاکښې شروع کول اوهم په اسفارکښې ختمول غوره دی.

**احتیاط:** لیکن په دې کښې داخبره یاد ساتل پکاردی که دَ سحرمونځ فاسدشی نودَ راګرځولو دَپاره په وخت کښې ګنجائش وی. دَ امام محمد رحمه الله نه یوقول نقل دې کوم چه امام طحاوی رحمه الله اخستې دې. دَدې دواړو په نیز شروع په تیاره کښې غوره ده خوچه قرأت دومره اوږد کړې شی چه ختمیدل په اسفار یعنی رڼا کښې اوشی. دغه شان به دَ غلس او اسفار والادواړو احادیثو باندې عمل اوشی او په احادیثو کښې به تطبیق اوشی لیکن په

دي مسلك كښې ثقل او لوئي بوج دي.

**د اول فريق دلائل:** ① دَ مشكوة حديث نمبر (۵۸۸) كښې محمد بن عمرو بن الحسن روايت د دوی مستدل دې په كوم كښې چه دا الفاظ راغلی دی "والصبح بغلس" غلس دَ سحر دَ آخری حصې هغه تياره ده چه دَ سحر رڼا سره ملاؤ شوې وی. لهذا په تياره كښې مونځ كول غوره دی. نن صبا په جزيره عرب كښې هم په دې حديث باندې عمل كيږی.

② دَ مشكوة شريف حديث نمبر (۵۱۸) دَ حضرت عائشه ﷺ روايت د دوی مستدل دې په كوم كښې چه دا الفاظ دی: ((قالت كان رسول الله ليصلي الصبح فتنصرف النساء متلفعات بمروطهن مايعرفن من الغلس)) (متفق عليه)

③ دَ حضرت ابومسعود انصاری ﷺ روايت د دوی مستدل دې د كوم الفاظ چه دا دی: ((انه ﷺ صلى الصبح لم صلى مرة اخرى فاسفر بها ثم كانت صلوته بعد ذلك في الغلس حتى مات ولم يعد الى ان يسفر)) (رواه ابوداؤد).

يعنی دَ ژوند معمول ئی غلس وو يو ځل نيم اسفار كړې بيا كله نه دې كړې. جمهور و دَ رسول الله ﷺ دَ ژوند هم دَ دې معمول او فعلی رواياتونه استدلال كړې دې او دَ هغه رواياتونه هم استدلال كوی په كوم كښې چه اول وخت كښې دَ مونځ كول غوره گرځولی دی.

④ دَ مشكوة دَ فصل ثالث دَ حضرت عمره روايت هم د دوی مستدل دې. په كوم كښې چه دا الفاظ دی "والصبح والنجوم بادية مشتبكة" يعنی كله چه په آسمان كښې ډير ستوری پرقيږی نو هغه وخت تياره وی معلومه شوه چه په تياره كښې مونځ وركړو.

**د اول فريق د دلائلو جوابونه:**

**حديث قولی ته په فعلی ترجيح:** دَ حضورپاك مبارك فعل سره په كثرت سره ثابت دې چه حضورپاك دَ سحر مونځ په غلس كښې وركړې دې ليكن هغه ټول فعلی رواياتونه دی او مونږ چه كوم دَ نافع بن خديج روايت "اسفروا بالفجر" راجح گرځولې دې هغه قولی روايت دې او په قول او فعل كښې كله مقابله راشی نو ترجيح به قول ته وركولې شی ځكه چه په فعل كښې خصوصيات امتيازات وغيره احتمالات نو دلته هم دا خصوصيات دی.

**د خصوصياتو قرائن:** ① مثلاً په غلس كښې حضورپاك ځكه مونځ وركړو چه ټول صحابه كرام تهجد والا وو او دَ سحر نه مخكښې به په جمات كښې موجود وو په دې وجه دَ جمع دَ زياتوالی دَ پاره دَ چا دَ انتظار ضرورت نه وو نو چه كله صبح صادق شو جمع اودرولې شوه دې دَ پاره چه ستړې ستومانه تهجد كونكی فارغ شی.

② بل دا چه دَ مسجد نبوی په جمات كښې به ښځې شريكيدلې دَ هغوی دَ پردې مسئله وه په دې وجه به په غلس كښې مونځ كيدلو چه دَ ښځو بې پردگی اونه شی.

③ بل چه كومې ښځې په جمع كښې شريكيدلې شاته به ئی په كورونو كښې واړه ماشومان وو

دَ هغوی دَپاسیدو او ژړيدو وه په دې وجه به مونځ زر کیدلو چه هغه ښځې زر واپس لاړې شي.

**په رمضان کښې د تغلیس په احادیثو عمل:** علماء احناف د تغلیس په افضلیت کښې یوه وجه دا هم بیانوی چې په دې کښې تکثیر د جماعت دې اوپه رمضان کښې د پیشمنی څخه پس خلق ټول راویخ شوی وی. د پیشمنې په وجه ئې خیتې ډکې وی اود خوب غلبه پرې وی زیات وخت ویخ پاتې کیدل ورته گران وی نو چې په تغلیس کښې مونځ اوکړې شی د خلقو تعداد به زیات وی زما په خپل جمات کښې په رمضان کښې هم دا معمول وی چې د سحرد آذان پسې لس منټه پس جماعت قائموو د دې په وجه د سحر په مانځه کښې په جمات کښې د ښځې ایخودو ځائې نه وی. زما خپلو ورنړو ته دا مشوره ده چې په رمضان کښې د تغلیس په احادیثو عمل کوئ.

**د من الغلس په لفظ اعتراض:** په "مایعرفن من الغلس" کښې علماء فرمائی چه دَ "من الغلس" لفظ مدرج دې چرته یو راوی ذکر کړې دې ځکه چه په ابن ماجه وغیره ډیرو کتابونو کښې په دې حدیث کښې دا لفظ نشته دې. یادا چه په تنګ ځائی کښې کله ښځې په څادر کښې راغونډې شوی وی نوهغه په اسفار کښې هم نه شی پیژندلې نودلیل مکمل نه دې. باقی دَ ابومسعود انصاری روایت ته علماؤ ضعیف وئیلې دې. په کوموروایتونو کښې چه مونځ په اول کښې دَ وخت کولو فضیلتونه دی دَ هغې مونږ هم منو چه مستحب وخت مراددې. په مستحب وخت کښې مونځ کول غوره او اوچت څیز دې.

**د احایثو په مینځ کښې تطبیق:** باقی امام طحاوی اوامام محمد رحمه الله دَ بعضې صحابه کرامو دَ معمول نه استدلال کړې دې اودَ ټولو احادیثو دَ رایوځائی کولو کوشش ئې کړې دې ولې په دې باندې عمل کول ډیر گران دی چه درې پاوه وخت پورې دې سرې مونځونه کوی.

**د دویم فریق دلائل:** ① زیربحث حدیث دَ حضرت سیار د دوی مستدل دې په کوم کښې چه "حین یعرف الرجل جلیسه" الفاظ راغلی دی. طرز دَ استدلال داسې دې چه کوم وخت یو ملګرې بل ملګرې پیژندلې شی خاص کر چه جمات تنګ وی نوهغه وخت ښه رڼا وی دادَ اسفار دلیل دې.

② دَحضرت ابن مسعود رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه اختصارسره دادی. ((ما رأیت رسول الله صلی الله علیه وسلم صلی صلوة بغیر وقتها الا بجمع الی ان قال وصلی صلوة الصبح من الغد قبل وقتها)) (متفق علیه) یعنی حضورپاک کله یومونځ دَهغې دَ مقرر وخت نه مخکښې نه دې اداکړې صرف په مزدلفه کښې حضورپاک دَمقرر وخت نه مخکښې دَ سحر مونځ ورکړو کوم چه په غلس یعنی تیاره کښې وو دَدې نه معلومه شوه چه عام عادت ئې دَ غلس نه وو.

③ دَ مشکوة (باب تعجیل الصلوة) دویم فصل کښې دَ رافع بن خدیج رضی الله عنه حدیث نمبر (۶۱۳) د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه دادی: ((اسفروا بالفجر فانه اعظم للاجر)) (رواه ترمذی وابوداؤد)

**دامام شافعی تاویل:** په دې واضح دلیل کښې امام شافعی رحمه الله یوتاویل کړې دې کوم چه کتاب الام کښې ذکردې هغه تاویل دادې چه دلته په حدیث کښې اسفار مراد نه دې بلکه دَاسفروا مطلب دادې چه دَ سحرمونځ ښه یقینی جوړولوسره کونی چرته داسې نه وی چه دَ سحردَ راختونه مخکښې ئې اوکړی. لهذا چه کله تاسوته واضحه اندازه اوشی چه دَ صبح صادق وخت شوې دې نوهغه وخت دَ سحرمونځ کوه لکه چه دَدې حدیث دَ اسفارسره هډو څه تعلق نشته دې اونه دا دَغلس منافی دې.

**د تاویل تضعیفات:** ① دا تاویل بالکل بې محل دې څکه چه دې سره دویمه جمله "فانه اعظم للاجر" موجود ده اواعظم دَ اسم تفضیل نه دې نومطلب به داشی چه دَسحردَ راختو کله یقین شی نومونځ کونی څکه چه دا په اجر او ثواب کښې ډیر لوئی دې. اوکه چرې دَ سحردَ راختونه مخکښې ئې مونځ اوکړو نوهغه به هم جائز وی ولې په هغې کښې به اجر اوثواب کم ملاویږی. دا مطلب بالکل غلط دې څکه چه په دې تاویل سره به دَ حدیث پوره مفهوم وران شی.

② دا تاویل په دې وجه هم صحیح نه دې چه په دې روایت کښې خودَ اسفروا لفظ دې لیکن په نورو روایتونو کښې "کلما اسفرتم" الفاظ دی هلته خودَ یقین مطلب نه شی اخستې کیدې کوم چه امام شافعی رحمه الله اخستې دې په یو روایت کښې "کلما اصبحتم بالفجر" دې. په یوروایت کښې "نوروا بالفجر فانه اعظم للاجر" الفاظ دی. یو روایت کښې "حین اسفرت الارض" الفاظ دی په یو روایت کښې دا الفاظ دی "یابلال اسفر بالصبح حتی یبصر القوم موقع نبلهم من الاسفار". یعنی دَ سحرمونځ دومره روښانه کړه چه که چرته خلق په ښنبه باندې غشی اوولی نوچه دَغشی دَ ویشتو ځائی ښکاری.

دَدې الفاظو او تفصیلاتو موجودګی کښې دَ حضرت امام شافعی رحمه الله تاویل دَ التفات قابل نه دې

**د ماسپښین د مانځه په افضل وخت کښې مذاهب:**

دَماسپښین په مستحب وخت کښې دَعلماؤ اختلاف دې ① دَ شوافع په نیز په ماسپښین کښې تعجیل یعنی تادی غوره ده نور څه تفصیل نشته دې.

② دَاحنافو په نیز په دې کښې دا تفصیل دې که چرې موسم سخت ګرم وی ګرمی ډیره وی نو "ابراد فی صلوة الظهر" او تاخیر مستحب دې اوکه چرې موسم یخ وی نوبیا تعجیل مستحب دې

**داول فریق اول دلیل:** ① دَحضرت خباب رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دا الفاظ دی. ((شکونا الي رسول الله ﷺ حر الرمضاء فلم یشکنا)) دَدې حدیث نه معلومه شوه چه په سخته ګرمئی کښې به مونځ کیدلو. دا په اول وخت کښې دَ ادا کولواودَ تعجیل دلیل دې.

**داول فریق د اول دلیل جواب:** دا روایت دَمکی دور دَمونخونوسره دي اودَمدنی دَ ابراد والاروایتونوسره دا روایت موقوف شوي دي. بل دَ زمکي گرمیدل دَ مونځ زر کولوعلامت نه دي بلکه په گرمو ملکونوکښي ترماښامه پوري زمکه گرمه وی.

**د اول فریق دویم دلیل:** ② دَحضرت عائشه دَ هغه روایات هم د دوی مستدل دي په کوم کښي چه په اول وخت دَمونځ اداکولو فضیلت راغلي دي اودَدي ترغیب ورکړي شوي دي.

**داول فریق د دویم دلیل جواب:** دا تعجیل دَ یخنئی په موسم باندي محمول دي چه یخنئی کښي زر مونځ ورکړي دي کوم چه په پخپله په احادیثوکښي ذکردي.

**د اول فریق دریم دلیل:** ③ دَ حضرت جابر رضی الله عنه دَدي روایت هم د دوی مستدل دکوم الفاظ چه دادی: «کان یصلی الظهر بالهاجرة» یعنی رسول الله ﷺ به دَ ماسپښین مونځ په غرمه کښي ورکولو یعنی وختی به ئی کولو.

**داول فریق د دریم دلیل جواب:** په دي روایت کښي چه کوم لفظ "الهاجرة" راغلي دي نودا اول وخت سره خاص نه دي بلکه هاجره دَ ماسپښین نه واخله ترماښامه پوري وخت دپاره وئیلي کیږی.

**د دویم فریق دلائل:** ① دَبخاری شریف حدیث "ابردوابالظهر" د دوی مستدل دي.

② دَ حضرت ابوذرغفاری رضی الله عنه په قصه کښي چه کوم لفظ راغلي دي "حتی رئینافی التلول" دَدي نه هم دَ ماسپښین دَ مونځ په تاخیرسره دَ کولو استدلال کوی اودَ دي نه علاوه هم دَ ابراد او تاخیر کافی روایتونه دی.

**دَ مازیگر دَمونځ وخت:** زیر بحث حدیث کښي «وصلی العصر............والشمس حیة» الفاظ راغلی دی. بعضي روایتونو کښي "والشمس مرتفعة" الفاظ راغلی دی. دَدي روایتونونه دَ مازیگردَمونځ په تعجیل سره دکولو اندازه کیږی او دَبعضي روایتونونه معلومیږی چه په مازیگرکښي به تاخیرکیدلو. دَ روایاتودَدي اختلاف دَ وجي نه

**د مازیگرد مونځ په افضل وخت کښي مذاهب:**

دَمازیگر دَمونځ په مستحب وخت کښي دَ فقهاء کرامو اختلاف پیداشو ① دریواړه ائمه دَ زماني تعجیل ته مستحب وائی.

② دَ ائمه احنافو په نیز دَمازیگر په مونځ کښي تاخیرمستحب دي لیکن دومره تاخیرجائز نه دي چه په نمرکښي زیړوالي او بدلون راشی بلکه هم په مستحب وخت دننه کولو کښي لږشان تاخیرمستحب دي.

**داول فریق اول دلیل:** ① زیربحث حدیث د دوی مستدل دي په کوم کښي چه ذکردی دَ مازیگردَ مونځ نه پس به زمونږ نه یو سړي دَمدینې نه بهر اطرافوکښي خپل کورته تللو او

نمر به تر دغه وخته پورې تازه یعنی اوچت ولاړ وو معلومه شوه چه دَ مازیګر مونځ به زر کیدلو.

**داول فریق دویم دلیل:** ② په مشکوة کښې صفحه نمبر ۶۰ کښې شپږم روایت د دوی مستدل دې چه دَمازیګر دَمونځ نه پس به یو تلونکې عوالی یعنی مانړئی دَ مدینې ته تللو اونمر به ترهغه وخته پورې اوچت وو او بعضې مانړئی دَ مدینې منورې نه څلور میله فاصله باندې دې.

**داول فریق د اول دریم دلیل دوه جوابونه:** ① دَ مدینې منورې مانړئی په مختلف قسمونو باندې وو بعضې اته میله فاصله باندې وو بعضې څلور میله اوبعضې درې میله فاصله باندې وو او په حدیث کښې تعیین نه دې کړې شوې چه کومه مانړئی مراد دخ. بل دَ تګ کونکی پته هم نشته چه پیدل به تلو که په سورلئی باندې به تلو.

② بل دا هم نه ده معلومه چه ځوان سړې به که بوډا دغه شان علماء داهم لیکی چه دَ مازیګر نه پس څلور یا اته میله سفر کول دَ سختو عربودَپاره څه ګران کار نه وو نن صباهم دَ احنافو دَ مسلك مطابق دَمازیګر دَ مونځ نه پس دومره فاصله په آسانئی سره تګ کوی اونمر باقی وی.

فتح الملهم کښې علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله لیکی په دیوبند کښې یومدرس وو. دَ زیارت په ورځ چه به کله چهټی کیدله نودَ احنافو دَ وخت مطابق به ئی دَمازیګر مونځ په جمع سره اداکولو پیدل به منګلور ته تللو اودَ ماښام مونځ به ئی هلته تلوسره کولو. دَ دیوبندنه منګلور ۱۲ میله فاصله باندې دې.

**داول فریق دریم دلیل:** ③ دَ رافع بن خدیج رضی الله عنه روایت هم د دوی مستدل دې چه دا حدیث مشکوة باب تعجیل الصلوة حدیث نمبر (٦١٥) دې په کوم کښې چه هغه فرمانی مونږ به حضورپاك سره دَمازیګرمونځ کولواودې نه پس به مو اوښ حلالولوسره دَ هغې لس حصې تقسیم کولې بیابه مو غوښه پخوله اوپخه شوې غوښه به مو خوړله اوتردغه وخته پورې به نمبر ډوب شوې نه وو. جمهور فرمائی چه دَدې روایتونونه په واضحه توګه معلومیږی چه دَ مازیګرمونځ به زر ورکولې شو لهذا تادئی سره کول غوره دی.

**داول فریق د اول او دویم دلیل دوه جوابونه:** ① عرب دَ اوښانودَ حلالولو او غوښې جوړولو هنرمندوو که چرې لس هنرمند خلق اوښه حلال کړی غوښه تقسیم کړی او نرمه نرمه غوښه فوری پخه کړی او ونی خوری نودا کار ډیر زر کیدې شی. دادَ مازیګر دَمونځ په تعجیل سره دَ اداکولو دلیل نه دې بلکه داکار خودَ مازیګرنه پس هم کیدې شی.

② ا داقسم روایتونه به دَ ګرمئی په موسم باندې حمل کولې شی په هغې کښې وسعت وی.

**د دویم فریق دلائل:** ① دَحضرت ام سلمه رضی الله عنها روایت د دوی مستدل دې کوم چه مشکوة

باب تعجیل الصلوة حدیث نمبر (۳) دې. دکوم الفاظ چه دا شان دی: ((قالت کان رسول الله ﷺ اشد تعجیلا للظهر منکم وانتم اشد تعجیلا للعصر منه)) (رواه احمد والترمذی) دَ دې حدیث نه معلومه شوه چه دَحضورپاك نه پس خلقو دَمازیگر په مونځ کولو کښې تعجیل شروع کړې وو په کوم باندې چه حضرت ام سلمه ﷞ دَ خفگان اظهار کوی.

② دَ علی بن شیبان ﷛ روایت د دوی مستدل دې کوم چه ابوداؤد ج۱ص۵۹باندې موجود دې الفاظ دادی: ((عن علی بن شیبان قال قدمنا علی رسول الله ﷺ المدینة فکان یؤخر العصر مادامت الشمس بیضاء نقیة)).

③ دَحضرت رافع بن خدیج ﷛ روایت د دوی مستدل دې کوم چه دارقطنی احمد او طبرانی نقل کړې دې الفاظ ئې دادی: ((عن رافع بن خدیج ان رسول الله ﷺ کان یأمرنا بتاخیر العصر)) (کذافی معارف السنن).

④ دَ حضرت ابن مسعود ﷛ عمل د دوی مستدل دې. عبدالرحمن بن یزید فرمائی چه هغوی به دَ مازیگر مونځ په تاخیرسره اداکولو. (کذافی مصنف ابن ابی شیبة). دَدې ټولو روایتونو نه احنافو داتعلیم حاصل کړې دې چه دَ مازیگر مونځ کښې څه اندازه باندې تاخیرمستحب دې په دې شرط چه وخت مستحب موجودوی.

**د حافظ فضل محمد صاحب رائې:** مولانا فضل محمد صاحب په توضیحات کښې لیکلی دی صحابه کرامو دَ مازیگردَمونځ نه پس دَ وخت اندازې خودلی دی په کوم سره چه دَ مازیگرتعجیل گڼړلې شی څه تعین ئی نه دې کړې لهذا که په مستحب وخت کښې څه تاخیراوشی نودَ احنافو دامذهب ډیر مناسب دې اودَ احادیثونه په دې باندې استدلال کولې شی. نن صبا غیرمقلد حضرات اوحجاز مقدس کښې دَ مازیگر مونځ دومره زر کیږی چه دې نه پس خلق کاروبار شروع کوی. حالانکه دَ عصر لغوی معنی نچوړی کول ده نودا وخت ورځې دَ وخت نچوړی کیدل پکاردی داسې نه چه نیمه ورځ دَ مازیگرنه پس راشی اودَماسپښین نه پس لږ شان وخت پاتې. بهرحال دَ انصاف تقاضا داده چه نه زیات ناوخته کړی اونه زیاته تادی اوکړې شی

**قوله:** "وَكَانَ يَسْتَحِبُّ أَنْ يُؤَخِّرَ الْعِشَاءَ"

**د ماسخوتن د مونځ په افضل وخت کښې مذاهب:**

① دَامام مالك ﷫ او امام شافعی ﷫ په نیزدَماسخوتن په مونځ کښې تعجیل غوره دې.

② دَ امام ابوحنیفه ﷫ امام احمدبن حنبل ﷫ او اسحاق بن راهویه ﷫ په نیزدَ ماسخوتن مستحب وخت دَ شپې دَ دریمې حصې پورې دې.

**د اول فریق دوه دلائل:** ①دَ نعمان بن بشیر روایت د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه

دادی: ((كان رسول الله ﷺ يصليها اي العشاء لسقوط القمر لثالثة)) (مشكوة ص ۶۱) دا حضرات فرمائی چه دَ دريمې شپې سپوږمئی زر غيبيږی معلومه شوه چه زر کول غوره دی.

② هغه عام روايات هم د دوی مستدل دی په کومو کښې چه په اول وخت کښې مونځ کولوته غوره وئيلې شوی دی.

**د اول فريق د دلائلو جوابونه:** ① ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه دَ دويمې شپې سپوږمئی دَ آسمان دَ سرخئی سره غيبيږی ليکن دَ دريمې شپې سپوږمئی دَ ډير وخت نه پس ډوبيږی نودَدې حضراتو استدلال مکمل نه دې.

② باقی دَ اول وخت دَفضيلت چه څومره هم روايات دی دَهغه ټولو صرف يوجواب دې چه دَ اول وخت نه مراد هغه وخت دې کوم چه افضل اومستحب وخت وی اوهغه هم هغه دې کوم چه مونږ وايو

**د دويم فريق دلائل:** زيربحث حديث د دوی مستدل دې په کوم کښې چه تاخيرته مستحب وئيلې شوې دې اودا واضحه دليل دې.

② په مشکوة ص ۶۱ باندې دَ حضرت ابوهريره رضی الله عنه روايت د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه دادی: ((لولا ان اشق علی امتی لامرتهم ان يؤخر العشاء الی ثلث الليل)) (رواه احمد و ابوداؤد)

**انصافی خبره:** دَمونځونودَ مستحب وختونو په تعين کښې چه دکومو فقهاؤ اختلاف دې هغه ټول دَ اولی او غيراولی اختلافات دی په جواز او عدم جواز کښې نه دی. لهذا دا اختلافات دَ جګړو سبب نه دی جوړول پکار. احنافو دَ جمع دَ زياتولو دَ وجې نه دَماسخوتن مونځ تاخيرسره غوره ګرځولې دې چه په راتلونکی حديث کښې هم ذکر دی. لهذا په اول وخت کښې دَمونځ کولو فضيلت نه احناف انکارنه کوی.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**۵۸۷–د نبی عليه السلام د فرض مونځونواداکولو کيفيت**

۵۸۷–()[۱] ① عَنْ سَيَّارِ بْنِ سَلَامَةَ، قَالَ: دَخَلْتُ أَنَا وَأَبِي عَلَى أَبِي بَرْزَةَ الْأَسْلَمِيِّ، ② فَقَالَ لَهُ أَبِي: «كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الْمَكْتُوبَةَ؟ ③ فَقَالَ: كَانَ يُصَلِّي الْهَجِيرَ الَّتِي تَدْعُونَهَا الْأُولَى حِينَ تَدْحَضُ الشَّمْسُ، ④ وَيُصَلِّي الْعَصْرَ ثُمَّ يَرْجِعُ أَحَدُنَا إِلَى رَحْلِهِ فِي أَقْصَى الْمَدِينَةِ وَالشَّمْسُ حَيَّةٌ،

[۱] اخرجه البخاری كتاب مواقيت الصلوة باب حک البزاق باليد من المسجد(رقم-٤٠٥) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلوة باب استحباب التبكير بالصبح فی أول وقتها، وهو التغليس، وبيان قدر القراءة فيها(رقم) ٢٣٥ - (٦٤٧) وابوداود كتاب الصلاة،باب فی وقت صلاة النبی صلی الله عليه وسلم وكيف كان يصليها(رقم-٣٩٨) والنسائی كتاب المواقيت،أول وقت الظهر(رقم-٤٩٥) وابن ماجة كتاب الصلاة ، باب وقت صلاة الظهر(رقم-٦٧٤) والدارمی كتاب الصلاة /باب قدر القراءة فی الفجر (رقم-١٣٣٨)

**ترجمه:** [۱] سيار بن سلامه رحمه الله فرمايي چه زه او زما پلار (مونږ دواړه) د ابو برزه اسلمي رضي الله عنه په خدمت کې حاضر شو[۲] زما پلار د هغه څخه پوښتنه وکړه چې نبي کريم ﷺ به فرض لمونځونه څنګه (يعني کوم کوم وخت) اداء کول ؟ [۳] هغه وفرمايل چه حضور ﷺ به د ماسپښين مونځ چې هغه ته اولني مونځ ويل کيږي، د نمر د زوال کيدو په وخت کولو[۴] د مازيګر مونځ (به يي په داسې وخت) کولو چې که په مونږ کې به څوك د مونځ کولو وروسته د مديني په پاي کې خپل مکان ته ورسيدو نمر به لاروښانه وو (يعني د هغه د متغير کيدو څخه مخکي) واپس راغي

**حل اللغات:** ① الْهَجِيرَ: اشْتِدَادُ الْحَرِّ فِي نِصْفِ النَّهَارِ: د غرمې په وخت سختې ګرمۍ ته وائی، دې ته هاجر هم وائی. ② تَدْحَضُ: دحض د سورلۍ خوئيدلو او تيندک خوړلو ته وائی. دلته د آسمان د منځ نه د نمر مغرب طرف ته اوړيدل يعنی زوال مراد دی. ③ رَحْلِهِ: أَيْ: مَنْزِلِهِ: کور. ④ أَقْصَى الْمَدِينَةِ: أَيْ: أَسْفَلَهَا: د ښار ښکته طرف، ⑤ حَيَّةٌ: أَيْ: صَافِيَةٌ: صفا، روښانه،

[۱] وَنَسِيتُ مَا قَالَ فِي الْمَغْرِبِ، [۲] وَكَانَ يَسْتَحِبُّ أَنْ يُؤَخِّرَ الْعِشَاءَ الَّتِي تَدْعُونَهَا الْعَتَمَةَ، [۳] وَكَانَ يَكْرَهُ النَّوْمَ قَبْلَهَا وَالْحَدِيثَ بَعْدَهَا، [۴] وَكَانَ يَنْفَتِلُ مِنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ [۵] حِينَ يَعْرِفُ الرَّجُلُ جَلِيسَهُ وَيَقْرَأُ بِالسِّتِّينَ إِلَى الْمِائَةِ». [٦] وَفِي رِوَايَةٍ: «وَلَا يُبَالِي بِتَأْخِيرِ الْعِشَاءِ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ، [۷] وَلَا يُحِبُّ النَّوْمَ قَبْلَهَا وَالْحَدِيثَ بَعْدَهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] سيار وايي چه د ماښام د لمانځه په باره کې ابو برزه رضي الله عنه چې څه وئيلي وو هغه زما څخه هير شول[۲] او (ابو برزه رضي الله عنه ويل) د ماسخوتن مونځ چې هغه ته تاسو عتمه وايئ حضور ﷺ به په تاخير سره کول بهتر ګڼلي [۳] او د ماسخوتن د لمانځه څخه مخکې اوده کيدل او د ماسخوتن د لمانځه څخه وروسته دنياوي خبري کول حضور ﷺ مکروه ګڼلي[۴] او د سحر مونځ به يي په داسې وخت کولو [۵] چې هر سړي به خپل په څنګ کې ناست سړي پيژندلو او په لمانځه کې به يي د شپيتو آيتونو څخه تر سلو آيتونو پورې ولوستل، [٦] د يو روايت الفاظ دا دي چې حضور ﷺ به تر دريمې حصې د شپې پورې د ماسخوتن په تاخير کولو کې څه پروا نه کوله [۷] او د ماسخوتن د لمانځه څخه مخکې اوده کيدل او د ماسخوتن د لمانځه څخه وروسته خبري کول به يي نه خوښولي، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① الْعَتَمَةَ: هِيَ الظُّلْمَةُ الَّتِي بَعْدَ غَيْبُوبَةِ الشَّفَقِ: د نمرد غروب کيدونه پس دهغې د سوروالی نه روسته چه کومه تياره وی هغې ته عتمه وائی. ② يَنْفَتِلُ: أَيْ: يَنْصَرِفُ: راګرځيدلو به (د مونځ نه). ⑧ الْغَدَاةِ: أَيْ: الصُّبْحِ: سحر، ⑨ جَلِيسَهُ: خواکښې ناست ملګری.

**تسهيلات:** **قوله:** "وَلَا يُحِبُّ النَّوْمَ"

**د ماسخوتن د مانځه وړاندې د خوب په حکم کښې دوه اقوال:** ① يعنی دَماسخوتن دَمونځ نه مخکښې اوده کيدل ئی ناخوښول ځکه چه دَ مونځ دَ فوت کيدو خطره ده. اکثر

عنماؤ دا مکروه لیکلی دی

④ بعضې حضراتو دې ته جائز وئیلی دی. حضرت ابن عمر رضی الله عنهما به دَ ماسخوتن دَ مونځ نه مخکښې اوده کیدلو.

**په دواړو قولینو کښې تطبیق:** علامه نووی رحمه الله فرمائی که چرته په چاباندې دَ خوب غلبه وی اودَ مونځ دَ فوت کیدو خطره نه وی نواوده کیدل مکروه نه دی. دَماسخوتن نه پس فضول خبرې کول مکروه دی اوعلمی او دینی خبرې جائز دی. مخکښې تفصیل تیرشوې دې.

**۵۸۸–د نبي علیه السلام د مونځونو اداکولو وختونه**

۵۸۸–(١)[٢] ① وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ، قَالَ: ② «سَأَلْنَا جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ عَنْ صَلَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: ③ كَانَ يُصَلِّي الظُّهْرَ بِالْهَاجِرَةِ، ④ وَالْعَصْرَ وَالشَّمْسُ حَيَّةٌ، ⑤ وَالْمَغْرِبَ إِذَا وَجَبَتْ، ⑥ وَالْعِشَاءَ: إِذَا كَثُرَ النَّاسُ عَجَّلَ، وَإِذَا قَلُّوا أَخَّرَ، ⑦ وَالصُّبْحَ بِغَلَسٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① محمد بن عمرو بن الحسن بن علي رضی الله عنهم وايي ② چې مونږ د جابر بن عبدالله رضی الله عنه څخه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د لمانځه په باره کې پوښتنه وکړه نو هغه اوويل ③ رسول الله صلی الله علیه وسلم به د ماسپښین مونځ د نمر زوال کیدو سره کولو ④ او د مازیگر مونځ به یي په داسې وخت کولو چې نمر به روښانه وو ⑤ او د ماښام مونځ به یي د نمر ډوبیدو څخه وروسته کولو ⑥ او د ماسخوتن په لمانځه کې چې خلق به زیات راغلل نو زر به یي کولو او که خلق به کم وو نو په تاخیر سره به یي کولو ⑦ او د سحر مونځ به یي په تیاره کې کولو ، (بخاري ،مسلم)

**حل اللغات:** ① الْهَاجِرَةِ: أَيْ: شِدَّةِ الْحَرِّ بَعْدَ نِصْفِ النَّهَارِ: د غرمې په وخت سختې گرمئ ته وائی، دې ته هَجِیر هم وائی. ② حَيَّةٌ: أَيْ: بَاقِيَةٌ عَلَى ضَوْئِهَا: لایه خپل حال روښانه وی، (یعنی رنگ ئې بدل شوې نه وی). ③ عَجَّلَ: جلتی، زر، ④ قَلُّوا: چه لږ به وو (خلق). ⑤ بِغَلَسٍ: ظُلْمَةُ آخِرِ اللَّيْلِ إِذَا اخْتَلَطَتْ بِضَوْءِ الصَّبَاحِ: دغلس نه مراد دشپې د آخر وخت تیاره ده چه دصبا رڼا ورسره شروع شوې وی.

**تسهیلات:**

**قوله:** "وَإِذَا قَلُّوا أَخَّرَ"

**د تکثیر جماعت اهمیت:** دَ حدیث په دې جمله سره یوه ضابطه په پوهه کښې راغله هغه دا چه دَ جمعې زیاتوالې دَ شریعت په نظر کښې ډیر اهم څیز دې. لهذا دَمونځونو په وختونو کښې دَدې خاص خیال ساتل پکاردی. دَ دې ضابطه سره به دَاحنافو مذهب ته په هرځائی کښې فائده کیږی.

(١) اخرجه البخاری کتاب مواقیت الصلوة اب وقت العشاء إذا اجتمع الناس أو تأخروا(رقم-۵۶۵) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلوة باب استحباب التبکیر بالصبح فی أول وقتها، وهو التغلیس، وبیان قدر القراءة فیها(رقم) ۲۳۵ - (۶٤۶) وابوداود کتاب الصلاة،باب فی وقت صلاة النبی صلی الله علیه وسلم وکیف کان یصلیها(رقم-۳۹۷) والنسائی کتاب مواقیت باب تعجیل العشاء (رقم۵۲۷)

## ۵۸۹- د ګرمۍ په وجه په کپړه سجدې کول

۵۸۹-(¹)[۳] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «قَالَ: ۲ إِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالظَّهَائِرِ ۳ سَجَدْنَا عَلَى ثِيَابِنَا اتِّقَاءَ الْحَرِّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، وَلَفْظُهُ لِلْبُخَارِيِّ.

**ترجمه:** ۱ انس رضي الله عنه فرمايي ۲ مونږ به چې کله په نبي کريم ﷺ پسي د ماسپښين مونځ کولو ۳ نو د ګرمي څخه د بچ کيدو د پاره به مو په خپلو کپړو باندې سجده کوله، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① الظَّهَائِر: دالفظ دَ ظهيرة جمع ده دادَ غرمې دَپاره يادولې شي ليکن دلته ماسپښين مراد دې. دَ هرې ورځې دَ ماسپښين دَ وجې نه داجمع راوړلې شوې دې. ② اِتِّقَاءَ: دپاره د بچ کيدلو (دا مفعول له دې). ③ الْحَرّ: ګرمي.

**تسهيلات: قوله:** "سَجَدْنَا عَلَى ثِيَابِنَا"

### د ثياب په مصداق کښې مذاهب:

يعنې دَ ګرمئې نه دَ بچ کيدودَپاره چه تندې اونه سوزي مونږ به په خپلو کپړو باندې سجدې کولې.

① امام شافعي رحمه الله فرمائي چه دلته دکپړو نه هغه کپړا مراد ده کومه چه اغوستلې شوې نه وي بلکه جدا کپړا وي ځکه چه دَ اغوستلې شوې کپړې په څه حصه باندې سجده کول جائز نه دي.

② احناف فرمائي چه دَ اغوستې شوې متصل کپړې په څه حصه باندې سجده کول جائز دي او په حديث کښې هم دغه دَ اغوستې شوې کپړې دَ پاسه دَ سجدې کولو خبره کيږي. ځکه چه صحابه کرامو رضي الله عنهم ته دَ اغوستلودَپاره کپړا په مشکل سره ملاويدله لهذا هغوی سره دَ جدا کپړې دَ موجودکيدو تصور نه کيدلو.

## ۵۹۰- د ګرمۍ د شدت په وخت کښې د ماسپخين مونځ روسته کول

۵۹۰-(²)[۳] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ إِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ

(۱) اخرجه البخارى كتاب مواقيت الصلوة باب: وقت الظهر عند الزوال(رقم-۵٤۲) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلوة باب استحباب تقديم الظهر فى أول الوقت فى غير شدة الحر(رقم) ۱۹۱ - (۶۲۰) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، باب السجود على الثياب فى الحر والبرد(رقم-۱۰۳۳) والترمذى كتاب السفر/باب ما ذكر من الرخصة فى السجود على الثوب فى الحر والبرد(رقم-۵۸٤) والنسائى كتاب التطبيق/باب السجود على الثياب(رقم-*۱۱۱۶)

(۲) اخرجه البخارى كتاب مواقيت الصلوة باب الإبراد بالظهر فى شدة الحر(رقم- ۵۳۶ و ۵۳۷) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلوة باب استحباب الإبراد بالظهر فى شدة الحر لمن يمضى إلى جماعة. ويناله الحر فى طريقه(رقم) ۱۸۶ - ۱۸۰ - (۶۱۵) و (۶۱۱) وابوداود كتاب الصلاة،باب فى وقت صلاة الظهر(رقم-۴۰۲) والنسائى كتاب المواقيت،باب تعجيل الظهر فى السف ومالک كتاب وقوت الصلاة ،باب النهى عن الصلاة بالهاجرة (۲۸)ر (رقم-۵۰۰) وابن ماجة كتاب الصلاة ، باب الإبراد بالظهر فى شدة الحر(رقم-۶۷۸) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى تأخير الظهر فى شدة الحر (رقم-۱۵۷) والدارمى كتاب الصلاة /باب الإبراد بالظهر (رقم-۱۲٤۳)

فَأَبْرِدُوا بِالصَّلَاةِ»".

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر كله چې د گرمي شدت وي نو مونځ په يخ وخت كې كوئي

۵۹-()[۰] [۱] وَفِي رِوَايَةِ لِلْبُخَارِيّ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ: «بِالظُّهْرِ، [۲] فَإِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ، [۳] وَاشْتَكَتِ النَّارُ إِلَى رَبِّهَا، فَقَالَتْ: [۴] رَبِّ! أَكَلَ بَعْضِي بَعْضًا، [۵] فَأَذِنَ لَهَا بِنَفَسَيْنِ نَفَسٍ فِي الشِّتَاءِ، وَنَفَسٍ فِي الصَّيْفِ، [۶] أَشَدُّ مَا تَجِدُونَ مِنَ الْحَرِّ، وَأَشَدُّ مَا تَجِدُونَ مِنَ الزَّمْهَرِيرِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او د بخاري په يو حديث كې د ابو سعيد رضي الله عنه څخه منقول دي [۲] چې د ماسپښين مونځ په يخ وخت كې كوي [يعنى د ابوهريره رضي الله عنه په روايت كې خو بالصلوٰة لفظ راغلي دي او د ابوسعيد رضي الله عنه روايت كې بالظهر لفظ راغلي دي او په دي روايت كې دا الفاظ هم دي چې] د گرمي شدت د دوزخ د (توږن) څخه وي [۳] او د دوزخ اور خپل رب ته شكايتًا عرض وكړو چې [۴] اي زما پروردگاره زما بعضي شغلو بعضي وخوړلي [۵] نو الله تعالى جل جلاله هغه ته د دوو ساه اخستلو اجازت وركړو اوس هغه يوه ساه په يخنئ كې اخلي او يوه ساه په گرمي كې [۶] گرمي كې چې كوم وخت تاسو زياته گرمي محسوسوئ او يخني كې چې كوم وخت تاسو زياته يخني محسوسوي (نو د هغي سبب دا وي چې هغه يوه ساه په گرمي كې او يوه ساه په يخنئ كې اخلي) (بخاري، مسلم)

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيّ: «فَأَشَدُّ مَا تَجِدُونَ مِنَ الْحَرِّ فَمِنْ سَمُومِهَا [۲] وَأَشَدُّ مَا تَجِدُونَ مِنَ الْبَرْدِ فَمِنْ زَمْهَرِيرِهَا».

**ترجمه:** [۱] او د بخاري د يو روايت الفاظ دا دي هركله چې تاسو د گرمئ شدت محسوسوئ نو د دې سبب د دوزخ گرمه ساه اخستل دي [۲] اوكوم وخت چې تاسو د يخنئ شدت محسوسوي نو د دې سبب د دوزخ يخه ساه اخستل دي.

**حل اللغات:** ① فَيْحِ: أَيْ: نَفَسِهَا أَوْحَرَارَتِهَا: د دوزخ ساه ته يا گرمائش ته وائى ② نَفَسٍ: ساه، ③ الزَّمْهَرِير: أَيْ: الْبَرْدِ: يخوالي، يخنى. ④ سَمُومِهَا: د دوزخ گرمي ساه ته وائى.

**تسهيلات:**

**قوله:** "مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ

**په نمر باندې د جهنم اثرات:** "فيح بهړاس او دهوپ ته وائى. په نمركښې دَ جذب كولو قوت اومقناطيسى كشش دې په دې وجه هغه گرمائش خپل طرف ته جذب كولوسره جمع كوى نودَ نمر كومه طبقه چه جهنم سره نيزدې ده هغه طبقه دَ جهنم نه گرمائش په زيات مقدار كښې جذب كوى اوبيا چه كله داحصه كوموعلاقوته نيزدې وى په هغه علاقوباندې زياته گرمى وى. اودَ نمر كومه طبقه چه دَ جهنم نه زياته لرې وى په هغې كښې گرموالې كم

(۱) اخرجه ابن ماجة باب صفة النار (۴۳۱۹)

وی بیاچه دا حصه کومو علاقوته نیزدې وی په هغه علاقوکښې یخنی زیاته وی. هم دغه وجه ده چه کومې ملکونه خط استواء کښې واقع وی هلته ګرمی زیاته وی. دَ نمردَ شغلوچه چرته یو ځیزسره ټکراؤ نه کیږی هلته دَ هغې دَ ګرمائش ظهورنه کیږی. لکه چه په فضاګانو کښې دَ ګرمئی احساس نه کیږی اوچرته چه په تنګومقاماتوکښې دَنمرشغلې پریوځی نو هلته دَګرمئی ظهورزیاتیږی. دَ زمکې نه دَنمر فاصله نهه کروړه دیرش لاکهه میله خودلې کیږی.

**د ګرمۍ او یخنۍ د شدت سبب:** بهرحال دَبخاری په روایت کښې دامضمون راغلې دې چه کوم وخت تاسو دَ ګرمئی سختوالې دَنمرپه دهوپ کښې محسوس کوئی نودَدې سبب دَ دوزخ ګرمه سا وی اوکوم وخت چه تاسو دَ یخنئی احساس کوئی نودادَ دوزخ یخه سا وی.

**قوله:** "وَاشْتَكَتِ النَّارُ"

**په تول کال کښې د دوزخ دوه ساګانې اخستل:** دوزخ دَ الله تعالی په مخکښې دا شکایت اوکړو چه زما بعضې شغلو بعضې اوخوړلې. مطلب داچه دَ اور زیاتوالې اودَ هغې ګرمی دومره سخته او تیزه ده چه دا شغلې په یو بل کښې ورګډیدو سره یوبل ختموی. چنانچه پروردګار دوزخ ته دَ دوو ساګانو اخستلو اجازت ورکړو. یوه سا دَ بهر طرف ته راؤځی نودَ دننه ګرمی په دنیاکښې خوریږی اوکله چه سا دننه طرف ته ځی نودَ بهردنیا کښې یخنی خوریږی.

**اشکال:** داخبره په خپل ځائی باندې ثابته شوې ده چه دَ ګرمئی سختی او کمی دَ زمکې حرکت، عرض البلد او دَ نمر دَ وجې نه دی نودلته دا څنګه اووئیلې شو چه دادَ دوزخ دَ بهراس دَ وجې نه ده؟

**داشکال جواب:** یونظام دَ اسباب ظاهری دې او یونظام اسباب باطنه اوغیرظاهری دې. دَخلقو نظر خو په اسباب ظاهری باندې وی لیکن دَ شریعت نظر اسباب ظاهری سره په اسباب باطنې باندې لګیدلې وی نودلته شریعت دَ نمر هغه پټ علت اوپټ سبب ذکرکړې دې کوم چه دَ دوزخ بهراس او ګرمی ده.

**د جهنم د شکایت مطلب:** باقی دَ دوزخ شکایت به خپله ژبه دَ حال مطابق وی په کوم انداز سره چه تعبیر وی هم هغه به دَ ده ژبه وی. دَ ابراد یعنی یخوالی داحکم په ډیرو احادیثو کښې راغلې دې او صحابه کرامو په دې باندې عمل کړې دې.

**د ماسپخین د مانځه دپاره دامام شافعی بهترین قول:** امام شافعی رحمه الله فرمائی که یوسړې دَ ډیر لرې نه جمات ته راځی او په لاره کښې سخته ګرمی وی نودَ داسې سړی دَ پاره په ابراد کښې مونځ کول اوتاخیرکول جائز دی اوکوم خلق چه په نیزدې جماتونوکښې مونځ کوی نودهغوی دپاره دَ تاخیر کولو اجازت نشته دې.[اشعة المعات: ۳۱۳]

امام ترمذی رحمه الله دَ ابراد احادیث اوګرمئی کښې تاخیرسره دَماسپښین مونځ کول افضل او اولی ګرځولی دی.

**۵۹۲-د مازيګر د مونځ وخت**

()[۵] ١ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الْعَصْرَ، وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ حَيَّةٌ، ٣ فَيَذْهَبُ الذَّاهِبُ إِلَى الْعَوَالِي، فَيَأْتِيهِمْ وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ، ۴ وَبَعْضُ الْعَوَالِي مِنَ الْمَدِينَةِ عَلَى أَرْبَعَةِ أَمْيَالٍ أَوْ نَحْوِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ انس رضي الله عنه فرمايي ٢ چې نبي کريم ﷺ به د مازيګر مونځ په داسې وخت کې کولو چې نمر به اوچت او ژوندې (يعني روښانه) وو ٣ او څوک تلونکي به عوالي (د مدينې پورته برَه طرفونه) ته تلو نو هغه به عوالي ته او رسيدو او نمر به اوچت وو ۴ او بعضې عوالي د مدينې څخه تقريبًا په څلور ميله فاصله دي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① الْعَوَالِي: د عَالِيَةٍ جمع ده. د مدينې پورته طرف ته کلي مراد دی. ② أَمْيَالٍ: د ميل جمع ده. د مسافت يوخاص مقدار ته وائي. موجوده وخت کښې کلو ميټره مستعمل دی.

**تسهيلات:**

**دحديث د بعضو جملو وضاحت:** ① "إِلَى الْعَوَالِي" دادَ عالية جمع ده. دَمسجد قباء طرف ته دَمدينې منورې دَ ښارنه بهرچه کوم اوچت کلي دی هم هغې ته عوالي وئيلی شي. دَمسجد بنو قريظه علاقه هم په عوالي کښې داخله ده.

② "وَبَعْضُ الْعَوَالِي" شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې ليکلی دی چه داکلام دَ يوراوی دَ طرف نه درج دې.

[قال الشيخ فی اللمعات واين قول زهری است که راوی ازانس است ۳۱۴]

**قوله:** "أَوْ نَحْوِهِ"

**په زير بحث حديث باندې د تعجيل عصر د استدلال تضعيف:** په دې کښې دَمذکرضميردَ مقدار طرف ته راګرځي په دې وجه مذکر راوړلې شوې دې. دَدې حديث نه بيشکه داخبره معلوميږي چه دَمازيګرمونځ زر ورکړې شوې دې ليکن دَ دې نه دومره زر کيدل نه معلوميږي کوم چه غيرمقلدين او شوافع حضرات دَ مازيګرپه مونځ کښې کوی. دَهغوی مازيګرخو دَ ورځې په څلورمه حصه باندې وی اودلته په حديث کښې اجمال دې. نه ده معلومه چې عوالي ته تلونکي سړې به پيدل وو يا به په سورلئی باندې وو ياکمزورې وو يا طاقتور ووتيز سړې وو يا سست وو اوداهم معلومه نه ده چه دا سړې به دَ عوالي کوم طرف ته تللو آيا دَ دوو ميلو طرف ته وو يا دَ دريو يا څلورو يا اتو ميلو والاطرف ته وو.

(۱) اخرجه البخاری کتاب مواقيت الصلوة باب وقت العصر(رقم-۵۵۰) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلوة باب استحباب التبکير بالعصر(رقم) ۱۹۲ - (۶۲۱) والنسائی کتاب المواقيت. باب تعجيل العصر(رقم-۵۰۷) وابن ماجة کتاب الصلاة . باب وقت صلاة العصر(رقم-۶۸۲) ومالک کتاب وقوت الصلاة . باب وقوت الصلاة رقم-۱۰ و ۱۱

## ۵۹۳ – د منافق د مونځ کیفیت

۵۹۳ –(١)[٦] ١ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ «تِلْكَ صَلَاةُ الْمُنَافِقِ: يَجْلِسُ يَرْقُبُ الشَّمْسَ، ٣ حَتَّى إِذَا اصْفَرَّتْ، وَكَانَتْ بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ ؛ ٤ قَامَ فَنَقَرَ أَرْبَعًا لَا يَذْكُرُ اللّٰهَ فِيهَا إِلَّا قَلِيلًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** ١ انس رضی الله عنه راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل ٢ دا (د مازیګر مونځ چې په آخر وخت کې کیږي) د منافق مونځ دي چې هغه ناست وي نمر ته ګوري ٣ کوم وخت چې نمر زیړ شي او د شیطان د دواړو ښکرونو په مینځ کې (یعني پټیدو ته نزدې) شي ٤ نو په تادي سره پاسي څلور ټونګې ووهي (یعني بغیر د طمانیت اوسکون لکه چرګ وغیره چې دانو ته پورته وښکته کیږي یعني ټونګې وهي) او دالله جل جلاله ذکر هم هغه په لمانځه کې لږکوي، (مسلم)

**حل اللغات:** ١ يَرْقُبُ: أَيْ: يَنْتَظِرُ: انتظارکوی. ٢ فَنَقَرَ: أَيْ: لَقَطَ: دچرګ ټونګې وهلو ته وائی. دلته ترې په جلتۍ سره مونځ کول مراد دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** "تِلْكَ" دا اشاره ذهنيه ده اودې نه دَ مازیګرهغه مونځ مراد دې په کوم کښې چه دَ مکروه وخت پورې بغیردَ څه شرعی عذر نه تاخیرکړې شوې وی.

**قوله:** تِلْكَ صَلَاةُ الْمُنَافِقِ:

**د منافق په مصداق کښې دوه اقوال:** ١ دې نه یاخو حقیقی منافق مراددې نوداَهغه دَمانځه نقشه پیش کړې شوه څکه چه هغه دَالله تعالی دَ رضادَپاره خوئی اداکوی نه صرف دَ څان خودنې دَپاره ئی کوی په دې وجه په دې کښې دَتعدیل ارکان اومستحب وخت لحاظ نه شی کولې دغه شان په دې کښې دَالله تعالی ذکرډیرکم وی.

[اشعة اللمعات: ۳۱۴ ومرقات ۲/۳۰۰]

نولکه چه دَمنافق مونځ دَ ظاهری ارکانو په اعتبارسره هم ناقص وی اودَ باطنی اذکار په لحاظ سره هم ناقص وی. دَ منافقانو باره کښې دَ قرآن پاك اعلان دې ﴿ وَلَا يَذْكُرُونَ اللّٰهَ إِلَّا قَلِيْلًا ﴾ "فنقراربعاً" ټونګې به وهی مطلب دا چه منافق دَ څان خودنې دَپاره زر زر مونځ کوی او په تیزئی سره په زمکه سجدې لګوی لکه چه دَ چرګ غونډې دانه راټولوی.

٢ شیخ عبدالحق رحمه الله فرمائی چه دَ منافق نه په دې حدیث کښې دَحقیقی منافق په څائی عملی منافق هم مراد اخستې شی کله چه مراد عملی منافق وی نو بیا دغه سړی دَ منافق په صفت باندې مونځ کونکې ګرځولې شی. علامه مظهر رحمه الله فرمائی چه کوم سړی دَ

(١) اخرجه مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلوة باب استحباب التبكير بالعصر(رقم) ۱۹۵ - (۶۲۲) وابوداود كتاب الصلاة،باب فی وقت صلاة العصر (رقم-۴۱۳) والنسائی كتاب المواقيت،باب التشديد فی تأخير العصر (رقم-۵۱۱) والترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی تعجيل العصر (رقم-۱۶۰)

مازیګرمونځ دَ اصفرار شمس پورې روستوکړو لکه چه هغه خپل ځان منافق ښکاره کړو.
په دې وجه په مسلمانانو باندې لازم دی چه هغوی خپل ځان دَ منافق دَمشابهت نه بچ کړي.
په افغانستان او کویته کښې مسلمانان په دې حکم کښې ډیره زیاته کوتاهي کوی په
علماء باندې لازم دی چه هغوی دَ دې ښه تبلیغ اوکړي.[ اشعه المعات: ۳۱۴]

**اشکال:** په څلورو رکعتوکښې اته سجدې وی دلته دَ څلورو سجدو ذکرولې کړې شوې
دې؟

**دَاشکال دوه جوابونه:** ① چه کله منافق دَ ړومبې سجدې نه په ښه شان سره سرنه دې اوچت
کړي نولکه چه یوه سجده ئی اوکړه نو په څلورو رکعاتوکښې ئی څلور ټونګې اووهلې
یادادَ سفردَ مونځ خبره وه په کوم کښې چه دوه رکعتونه وی

② دادَهغه وخت خبره وه کوم وخت چه دَمازیګرمونځ هم دوه رکعته وو ړومبې جواب
راجح او واضح دې

**د مازیګر د تخصیص وجه:** باقي دَ مازیګردَمونځ تخصیص دَدې دَپاره کړې شوې دې چه
دامونځ ډیر اهم دې اودا "صلوٰةوسطی" دې دکوم چه ډیرلوئی فضیلت او شان دې کوم سړې
چه په دې کښې کوتاهي کوی هغه ډیرزیات قبیح حرکت کوی اګرچه په نورو مونځونو
کښې تادی کول خرابه خبره ده.

**۵۹٤ ـ د قضاء شوی مونځ قضا راوړل**

۵۹۳ـ(۱)[٤] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «الَّذِي تَفُوتُهُ صَلَاةُ الْعَصْرِ، ③ فَكَأَنَّمَا وُتِرَ أَهْلَهُ وَمَالَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابن عمر ﷺ راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل ② کوم سړي چې د مازیګر
مونځ قضاء کړي ③ لکه چې د هغه مال او اهل وعیال هر څه لوټ شو،(بخاري،مسلم)

**حل اللغات:** ① وُتِرَ: أَيْ: سُلِبَ وَأُخِذَ: لوټ کړې شو او واخستلې شو. وتر هلاکت او زبردست نقصان
ته وائی. دامادہ دَ ضرب یضرب نه راځی.

**تسهیلات:**

**قوله:** "وُتِرَ أَهْلَهُ"

**دحدیث مطلب:** دَ حدیث مطلب داشو چه دَ سستئی دَ وجې نه دکوم سړی دَمازیګرمونځ
فوت شو نودا دومره لویه حادثه او دومره لوئی مصیبت دې لکه چه دَهغه دَ کور ټول بال بچ

(۱) اخرجه البخاری کتاب مواقیت الصلوٰة باب مواقیت الصلاة وفضلها (رقم-۵۲۲) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلوٰة باب التغلیظ فی تفویت صلاة العصر (رقم) ۲۰۰ - (۶۲۶) وابوداود کتاب الصلاة،باب فی وقت صلاة العصر (رقم-۴۱۴) وابن ماجة کتاب وقوت الصلاة ،باب جامع الوقوت (رقم-۲۱) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ باب ما جاء فی السهو عن وقت صلاة العصر(رقم-۱۷۵) والنسائی کتاب الصلاة/باب صلاة العصر فی السفر (رقم-۴۷۸)

اوپوره مال تباه شو. نوځنګه چه هريوسړي خپل اهل وعيال او مال اومتاع دَ دومره لوئی حادثې نه هروخت خپل ځان بچ ساتی هغه له پکاردی چه دَ مونځ دَ قضاء کیدونه هم هروخت ویریږي. دلته هم دَ مازيګر دَخاص کيدودَ وجې نه دَدې نور فضيلت دې ګنی دا حکم دَ ټولو مونځونو متعلق دې. ځنانچه بعض رواياتو کښې مطلق الفاظ راغلی دی "من ترك صلوة مكتوبة حتى تفوته" يا "من فاته الصلوة فكأنما وتر اهله" (كذا في اللمعات)

**د هلاکت درې مراحل:** دَدې نه معلومه شوه چه داوعيد دَټولو مونځونو باره کښې دې. دا هلاکت په دريو مرحلوکښې کیدې شی

① که دَ وخت پوره مونځ ئې پريخودو نوداکامل او پوره هلاکت دې

② که چرې په مکروه وخت کښې اوکړو نودا دَ دويم نمبر هلاکت دې

③ که چرې جمع ئې پريخودَه نودا دَ دريمې درجې هلاکت دې. دريواړو هلاکتونو نه دَمونځ پريخودونکې يو نه يو کښې داخل دې.[اشعة المعات: ۳۱۴]

**۵۹۵ـــد مازيګر مونځ قضاء کولوباندې داعمالو ضائع کيدل**

۵۹۵ـــ(۱)[۸] ① وَعَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«مَنْ تَرَكَ صَلَاةَ الْعَصْرِ، فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① بريده ﷺ راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل② کوم سړي چې د مازيګر مونځ پريښودو د (لکه چه) هغه ټول نيک اعمال برباد شو، (بخاري)

**حل اللغات** ① حَبِطَ: أَيْ: بَطَلَ: حبط دَ سمع او نصر دواړو نه راځی دَعمل باطل کيدل او ضائع کيدو ته وائی.

**تسهيلات:**

**قوله: "فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ"**

**د حديث نه د معتزلؤ استدلال:** دلته داحکم دَ تغليظ تشديد او زجر اوتوبيخ دَپاره دې. ځکه چه دَ مسلمان ټول عمل مرتد کيدوسره باطل کيږی په يوکبيره ګناه سره داسې نه کيږي. دَ اهل سنت هم دغه مسلك دې. اودَ خوراج اومعتزله په نيز دکبيره ګناه په ارتکاب سره دَ سړی ټولې نيکئی ضائع کيږی. دَدې حديث نه خوارج اومعتزله دَ خپل مسلك دَپاره استدلال هم کړې دې.

**د اهل سنت جواب:** اهل سنت دا په تغليظ اوتشديد باندې حمل کوی چه دَ نورو نصوصو سره تعارض نه وی يا دَ هغه ورځې عملونه مراد دی دکومې ورځې چه دَ مازيګرمونځ ئی

(۱) اخرجه البخاری کتاب مواقيت الصلوة باب من ترک العصر(رقم-۵۵۳) والنسائی کتاب الصلاة/باب من ترک صلاة العصر (رقم-٤٧٤) وابن ماجة کتاب الصلاة . باب ميقات الصلاة فی الغيم (رقم-٦٩٤)

پریخودې دي او که چرې مونځ پریخودل دَ انکار او استحقاق دَ وجې نه وی نودا سړې مرتد شو اودَ هغه ټول اعمال تباه شو. المعات: ۳۱۵ الکاشف: ۲/۲۰۰]

**۵۹٦ – د ماښام د مونځ وخت**

۵۹٦ –(۱)[۹] ۱ وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: ۲ «كُنَّا نُصَلِّي الْمَغْرِبَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ۳ فَيَنْصَرِفُ أَحَدُنَا وَإِنَّهُ لَيُبْصِرُ مَوَاقِعَ نَبْلِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ رافع بن خدیج ﷺ فرمایي ۲ چه مونږ به د نبي کریم ﷺ سره د ماښام مونځ (داسې وخت) کولو ۳ چې د لمانځه نه د فارغیدو څخه وروسته به چا د خپل غشي غورځیدو ځاي لیدې شو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① نَبْلِهِ: أي: مَسَاقِطَ سَهْمِهِ: دخپل غشي د غورځیدو ځاي.

**تسهیلات:**

**قوله: لَيُبْصِرُ مَوَاقِعَ نَبْلِهِ**

**د ماښام د مونځ په اول وخت کښې دکولو افضلیت:** یعنې دَ ماښام دَ مونځ نه فارغیدو سره کله چه مونږ بهر اووتلو اویوسړی به یوطرف ته چرته غشي ویشتلو نوغشي چه به کوم ځائی ته تلو اولګیدو به هغه ځائی به دَ رڼړا دَ وجې نه ښکاریدو. ټول ائمهٔ په دې باندې متفق دی چه دَ ماښام مونځ په اول وخت کښې اداکول مستحب دی. البته دَاحنافو په نیز دَ ماښام وخت "مُوَسَّعْ" دَ شوافع په نیز دَماښام وخت "مُضَيَّقْ" دې تفصیل تیرشوې دې.
[ الکاشف: ۲/۲۰۱]

**۵۹۷ – د ماخوستن د مونځ وخت**

۵۹۷ –(۲)[۱۰] ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ۲ «كَانُوا يُصَلُّونَ الْعَتَمَةَ فِيمَا بَيْنَ أَنْ يَغِيبَ الشَّفَقُ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ الْأَوَّلِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ بي بي عائشه ﷺ فرمایي ۲ چې نبي کریم ﷺ او صحابهٔ کرامو ﷺ به د ماسخوتن مونځ د شفق غائبیدو څخه وروسته دریمي حصي د شپې پورې کولو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① الْعَتَمَةَ: هِيَ الظُّلْمَةُ الَّتِي بَعْدَ غَيْبُوبَةِ الشَّفَقِ: د نمرد غروب کیدونه پس دهغې د سوروالی نه روسته چه کومه تیاره وی هغې ته عتمه وائی.

[۱] اخرجه البخاری کتاب مواقیت الصلوة، باب وقت المغرب (رقم-۵۵۹) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلوة، باب بیان أن أول وقت المغرب عند غروب الشمس (رقم)- ۲۱۷ - (٦۳۷) وابن ماجة، کتاب الصلاة، باب وقت صلاة المغرب (رقم)- ٦۸۷

[۲] بخاری کتاب الاذان، باب خروج النساء إلی المساجد باللیل والغلس(رقم-۸٦۴)

تسهیلات:

قوله: "الْعَتَمَةَ"

**اشکال:** دَ اسلام نه مخکښې په جاهلیت کښې به ماسخوتن ته عربو عتمه ونیل حضورپاك دَدې لفظ نه منع اوفرمائیله. حضرت عائشه رضی الله عنها کیدې شی دا نوم په دې وجه ذکرکړې دې چه هغې ته تردغه وخته پورې معلومه شوې نه وه چه حضورپاك دَدې نه منع فرمائیلې ده.

**په مختلفو روایاتو کښې جمع او تفریق:** دَ حدیث مطلب دا شو چه دَ شروع والاسرخی ډوبیدوسره دَ ماسخوتن وخت کیږی اودَ شپې دَ دریمې حصې پورې مستحب وخت دې دَنیمې شپې پورې وخت دَ جواز دې اوبیا صبح صادق پورې تاخیرکول سره دَ کراهته جائز دې.[أشعة المعات: ۳۱۵]

## ۵۹۸ – دصبا مونځ په تیاره کښې کول

۵۹۸ –()[۱] ① وَعَنْهَا، قَالَتْ: ②«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُصَلِّي الصُّبْحَ، ③ فَتَنْصَرِفُ النِّسَاءُ مُتَلَفِّعَاتٍ بِمُرُوطِهِنَّ، ④ مَا يُعْرَفْنَ مِنَ الْغَلَسِ.» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه رضی الله عنها فرمایي ② چې نبي کریم ﷺ چې به د سحر د لمانځه څخه فارغه شو ③ نو کومو ښځو چې به د حضور ﷺ سره مونځ کولو په پړونو (څادرونو) کې به پټې واپس تلې ④ او د تیارې په وجه به چا د هغوی شناخت نشو کولې. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① مُتَلَفِّعَاتٌ: تلفع بدن اومخ په څادر وغیره سره رانغښتو په معنی کښې دې. ② مُرُوطِهِنَّ: مروط دَ مرط جمع ده دَ ورنی یا ریښمو څادر ته وائی. ③ الْغَلَسِ: ظُلْمَةُ آخِرِ اللَّيْلِ إِذَا اخْتَلَطَتْ بِضَوْءِ الصَّبَاحِ: دغلس نه مراد دشپې د آخر وخت تیاره ده چه دصبا رڼا ورسره شروع شوې وی.

تسهیلات:

**د تعارض اشکال:** حضرت ابو برزه رضی الله عنه په روایت کښې راغلی دی حضورپاك چه به کله دَ مانځه نه فارغ شو نوسړی به خپل ملګرې پیژندلو اودلته په حدیث کښې دی چه ښځې به نه شوې پیژندلې داتعارض دې؟

**د اشکال جواب:** په لمعات کښې دا ورکړې شوې دې چه دَ ابوبرزه رضی الله عنه دَحدیث تعلق نیزدې سره دې چه سړی به خان سره خواکې ناست کس پیژندلو اودَ زیربحث حدیث تعلق دَ لرې سره دې چه دَ لرې نه به ښځې نه شوې پیژندلې، نوهیڅ تعارض نشته دې.

---

[۱] بخارى كتاب مواقيت الصلوة باب خروج النساء إلى المساجد بالليل والغلس(رقم-۸۶۷) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلوة،باب استحباب التبكير بالصبح فى أول وقتها، وهو التغليس، وبيان قدر القراءة فيها(رقم) ۲۳۲ - (۶٤۵) وابوداود كتاب الصلاة،باب فى وقت الصبح (رقم-٤۲۳) والنسائى كتاب المواقيت،باب التشديد فى تأخير العصر (رقم-۵٤۶) وابن ماجة كتاب الصلاة ، باب وقت صلاة الفجر (رقم-۶۶۹) ومالك كتاب وقوت الصلاة ، باب وقوت الصلاة رقم-٤) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى التغليس بالفجر (رقم-۱۵۳) والدارمى كتاب الصلاة /باب التغليس فى الفجر (رقم-۱۲۵۲)

## ۵۹۹ــد پيشمنى او صبا په مونځ کښې فاصله

۵۹۹ــ( )[۱۲] [۱] وَعَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَزَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ، تَسَحَّرَا، [۳] فَلَمَّا فَرَغَا مِنْ سَحُورِهِمَا قَامَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الصَّلَاةِ، فَصَلَّى. [۴] قُلْنَا لِأَنَسٍ: كَمْ كَانَ بَيْنَ فَرَاغِهِمَا مِنْ سَحُورِهِمَا وَدُخُولِهِمَا فِي الصَّلَاةِ؟ [۵] فَقَالَ: قَدْرُ مَا يَقْرَأُ الرَّجُلُ خَمْسِينَ آيَةً». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] قتاده دانس څخه روايت کوي [۲] چې نبي کريم ﷺ او زيد بن ثابت ﷺ د روژو نيولو د پاره پيشمنې وخوړلې، [۳] د پيشمنې د فراغت څخه وروسته نبي کريم ﷺ د لمانځه د پاره ودريدلو او مونځ يې وکړو [۴] قتاده ﷺ وايي چې مونږ د حضرت انس ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې د دې دواړو د پيشمنې څخه د فارغيدو او لمانځه شروع کولو په مينځ کې د څومره وخت وقفه وه ؟ [۵] انس ﷺ وفرمايل چه دومره وخت وقفه وه چې يو سړې پنځوس (متوسط) آيتونه ولوستلې شي. (بخاري)

**حل اللغات:** ① تَسَحَّرَا: أَيْ: أَكَلَا السَّحُورَ: يعنى د پيشمنى روټئ ئې اوخوړله.

**تسهيلات:**

**قوله: "خَمْسِينَ آيَةً"**

**د حديث نه په تغليس بالفجر استدلال:** يعنى دَ پيشمنى نه فارغيدوسره به چه کله حضورپاك دَ صبح صادق پورې مونځ کولو نودَ درميانه پنځوسو آيتونو وقفه به کيدله. صاحب مشکوة ددې حديث نه هم دَ سحر مونځ په تياره کښې اداکول ثابتوى.

**د استدلال جواب:** صاحب لمعات فرمائى چه په دې سره غلس يعنى تياره نه شى ثابتولې ځکه چه دا يوه اندازه ده اودَ آياتونو دَ لوستلو انداز مختلف کيدې شى. بيا جمات ته تلل اودَ سحر دوه رکعته سنت کول اودَ آياتونو لنډى او اوږده کيدل داهغه احتمالات دى دکوم په موجودګئى کښې دَ هغه وخت مقدار معلومول ډير ګران دى. هم دغه وجه ده چه علامه توريشتى ﷫ ليکلى دى چه دلته دَ وخت کومه اندازه بيان کړې ده په دې باندې دَ عوامُو عمل کول جائز نه دى ځکه چه حضورپاك په دينى احکاماتو دَ هيڅ قسم غلطئى نه په امن او محفوظ وو او نور خلق محفوظ نه دى. [اشعة المعات: ۳۱۶]

## ٦۰۰ــپه ظالما نو حاکما نو پسې مونځ کولو نه پس هغه مونځ دوباره کول

٦۰۰ــ( )[۱۳] [۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «كَيْفَ أَنْتَ

(۱) اخرجه البخارى كتاب مواقيت الصلوة باب وقت الفجر (رقم-۵۷۶)

(۲) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلوة، باب كراهية تأخير الصلاة عن وقتها المختار، وما يفعله المأموم إذا أخرها الإمام (رقم) ۲۳۸ - (۶۴۸) و ابوداود كتاب الصلاة، باب إذا أخر الإمام الصلاة عن الوقت (رقم-۴۳۱) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء فيما إذا أخروا الصلاة عن وقتها (رقم-۱۲۵۶) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى تعجيل الصلاة إذا أخرها الإمام (رقم-۱۷۶) والنسائى كتاب الإمامة/ باب إعادة الفجر مع الجماعة لمن صلى وحده (رقم-۸۵۹)

إِذَا كَانَتْ عَلَيْكَ أُمَرَاءُ يُمِيتُونَ الصَّلَاةَ -۳ أَوْقَالَ: يُؤَخِّرُونَ الصَّلَاةَ عَنْ وَقْتِهَا -؟۴ قُلْتُ: فَمَا تَأْمُرُنِي؟ قَالَ: صَلِّ الصَّلَاةَ لِوَقْتِهَا. ۵ فَإِنْ أَدْرَكْتَهَا مَعَهُمْ، فَصَلِّ، ۶ فَإِنَّهَا لَكَ نَافِلَةٌ.» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ ابوذر ﷺ فرمايي يو ځل نبي كريم ﷺ ماته وفرمايل ۲ اي ابوذره هغه وخت به ته څه كوي چې ستا امراء (حكام) مونځ مړكوي ۳ يا دخپل وخت مختار ځخه په تاخير كولو سرئ كوي ۴ ما عرض وكړو يا رسول الله ﷺ په داسې وخت كې ته ماته څه حكم راكوي؟ حضور ﷺ وفرمايل هغه وخت ته خپل مونځ په وخت باندې كوه ۵ بيا كه د هغوئ سره هم مونځ لاندې كړې نو د هغوئ سره يي هم اوكړه ۶ دا مونځ به ستا دپاره نفل شي. (مسلم)

**حل اللغات:** ۱ كَيْفَ أَنْتَ: أَيْ: كَيْفَ الْحَالُ: څه حال به وی ستا ، هغه وخت به ته څه كوې. ۲ يُمِيتُونَ: أَيْ: يُؤَخِّرُونَهَا: دمونځ مړ كولو نه مطلب ددې دخپل وخت نه روسته كول دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا كَانَتْ عَلَيْكَ أُمَرَاءُ:

**دتپولونه اول د مانځه د ضياع پيشنګوئی:** يعنی په تاسوچه كله داسې حكمرانان مسلط شي اوحاكم وی دَ چاچه به تاسو مخالفت نه شې كولې. شارحين ليكي چه دَدې امراء نه مراد دَ بنواميه بعض حكمرانان دی اودا ړومبې حكمرانان دی چه دَ مانځه په واجبات سنن تعديل اركان او وختونو وغيره كښې سستی شروع كړې وه. (كذا فی اللمعات).
په سفر السعادة كښې ليكلی دی چه دَ ټولونه وړاندې كوم خلقو دَ مانځه په قومه اوجلسه كښې سستی شروع كړه هغه دَ بنو اميه حكمرانان وو. دَحضرت ابوذر ﷺ وفات ۳۲هجری كښې شوې وو.

**قوله:** ويؤخرون الصلوة :

**د حاكمانومونځونولره روسته كول:** يعنی هغه خلق په مونځ كښې تاخيركوی كه چرې تاسو هغوی سره كولو نودَ مانځه دَ غوره وخت نه به محروم شئ اوكه ځان له ئی كوئی نودَهغوی دَطرف نه به دَتكليف رسيدو ويره هم وی اودَ جمع نه دَ محروم پاتې كيدو ويره به هم وی. دادَ رسول الله ﷺ پيشنګوئی وه چه راتلونكې واقعاتوسره متعلق وه دَدې مطلب دانه دې چه ابوذر ﷺ به لازمی توګه باندې هم داسې حكمرانان وينی

**قوله:** فَمَا تَأْمُرُنِي؟:

**دامير د مستحب وخت نه د مونځ روستو كولو په صورت كښې د مقتديانو عمل:** حضرت ابوذر ﷺ سره دَ خپل مونځ فكرشو نوتپوس ئی اوكړو چه مونږ ته څه حكم دې؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه خپل مونځ په جدا مستحب وخت كښې كوه اوكه بيا هغوی سره دَ اداكولو

موقع ملاؤ شوه نوهغه مونځ به ستاد پاره نفل جوړشي دغه شان به تاته دوخت فضيلت هم ملاؤشي اود جماعت نه به هم نه محروم کيږې. دَدې حديث نه داخبره معلومه شوه که يوامام مونځ دمکروه وخت پورې روستوکوی نومقتديانوله پکاردی چه هغوی دې په غوره وخت کښې خپل مونځ اوکړی.

**د احنافو په نيز د حديث د حکم مصداق:** علماء کرام ليکي چه دَ رسول الله ﷺ دَ ارشاد مصداق ماسپښين او ماسخوتن دې. ځکه چه دَ فجر او عصر نه پس نفل کول ممنوع دی. دغه شان دَ مغرب مونځ درې رکعته دی اودرې رکعته نفل جائزنه دی

**راجح قول:** ليکن شيخ عبدالحق رحمه الله وغيره شارحين فرمائي چه حضورپاك دَ ټولو مونځونو هم دغه حکم ورکړې دې چه اداکوئي ځکه چه په نه اداکولوکښې فتنه اوفساد راؤچتيدو خطره ده لهذا دَ مکروه ارتکاب دَدې نه بهتردې چه څه فتنه راؤچته شي بل دَ مجبورئي په وخت په غيرتسلئي سره کړې شوی سره به دا کراهت هم ختم شي دامفهوم زيات واضح دې اګرچه اجتهادی مسلك په خپل ځائی باندې دې دَ کوم تفصيل چه به وړاندې راځي. [اشعة اللمعات: ۳۱۶]

**دفرض مونځ نه پس د ماښام د جماعت رالاندې کولو په صورت کښې مذاهب:**

① امام شافعي رحمه الله فرمائي که يوسړې په کورکښې دَ څه مجبورئي عذر يا غلط فهمئي نه مونځ اوکړو او جمات ته په راتلوسره هغه ته جمع ملاؤشوه نو په ټولو مونځونوکښې دې شريك شي اوپه ماښام کښې دې دَيورکعت اضافه اوکړی دې دَپاره چه څلوررکعته پوره شي.

② احناف وغيره فقهاء فرمائي چه دا سړې په ماسپښين او ماسخوتن کښې خوشريك کيدې شي مګر په مازيګر سحر او ماښام کښې نه شي شريك کيدې.

**داول فريق دليل:** زيربحث حديث د دوی مستدل دې. ځکه چې په دې کښې مطلقاً مونځ ذکر شوې دې. د يومونځ استثناء په کښې هم نه ده شوې.

**د اول فريق د دليل جواب:** امام مالك رحمه الله په موطاکښې دَدې حديث په ضمن کښې دا جمله نقل کړې ده چه "الا الفجر والمغرب"

**د دويم فريق دليل:** ځکه چه دَ عصر اوفجر نه پس دَ مانځه ممانعت په صحيح حديث کښې موجود دې اوپه ماښام کښې که داسړې درې رکعته کوی نو په شريعت کښې درې رکعته نفل نشته اوکه چرې کم يا زيات کوی نودَامام مخالفت راځي کوم چه جائزنه دی.

**قوله:** يُمِيتُونَ الصَّلَاةَ-أَوْقَالَ: يُؤَخِّرُونَ

**په کلمه د او کښې دوه احتمالات:** دلته په حديث کښې "او" لفظ دَ شك دَپاره دې دَ راوی شك پيداشو چه حضورپاك دَ "يميتون" لفظ استعمال کړې ووکه "يؤخرون" لفظ وو

① نود یمیتون د لفظ مطلب به دا شی چه مونځ به بالکل وهی یعنی دَ جوازدَوخت نه به ئی په خارج وخت کښې اداکوی
② اودَ "یؤخرون" دلفظ مطلب به داشی چه په مانځه کښې به تاخیر کوی.

[اشعة اللمعات:۳۱۶]

٦٠١ ــ د مونځ یو رکعت رالاندې کولو په صورت کښې د مونځ حکم

٦٠١ ــ (١) [١٣] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «مَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الصُّبْحِ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ، فَقَدْ أَدْرَكَ الصُّبْحَ. [٣] وَمَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الْعَصْرِ قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ؟ فَقَدْ أَدْرَكَ الْعَصْرَ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابوهریره ﷺ راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [٢] کوم سړي چې د نمر د ختلو څخه مخکې د سحر د لمانځه یو رکعت لاندي کړي نو هغه د سحر مونځ لاندي کړو [٣] او چا چې د نمر د ډوبیدو څخه مخکې د مازیګر د لمانځه یو رکعت لاندي کښې نو هغه د مازیګر مونځ لاندي کې (یعني د هغه مونځ ضائع نه شو نو هغه له پکار دي چې بقیه رکعتونه کولو سره مونځ پوره کړي.) (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① أَدْرَكَ: ادراک موندلو او رالاندې کولو ته وائی.

**تسهیلات:**

**قوله: "فَقَدْ أَدْرَكَ الصُّبْحَ":**

**د حدیث دوه اجزاء:**

① دَدې حدیث شریف دوه جزه دی دَ یوجز تعلق دَ سحرمونځ سره دې
② دَ دویم تعلق دَ مازیګرمونځ سره دې.

**د حدیث په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① که چرې یو سړی دَ سحر اومازیګر دَ مونځونونه یو یو رکعت لاندې کړو نوهغه پوره مونځ لاندې کړو لکه چه یو رکعت دَ دغه وخت مکمل مونځ دې. په دې مفهوم باندې دَ امت نه چاهم عمل نه دې کړې نو دا مفهوم مراد نه دې.
② که یوسړی ته دَ سحر اومازیګردَ مونځ یو رکعت ملاؤ شو نوهغه ته هغه مونځ ملاؤ شو لهذا دویم رکعت دَ وخت دَ وتلونه پس وکړی مثلاً دَ نمر دَ راختلو په وخت یا ډوبیدلو په وخت کولوسره مکمل کړی. مطلب دادې چه مثلاً یو سړې دَ مازیګر یا سحر دَ مونځ دَپاره په آخرې وخت اودریدو اوس هغه یو رکعت پوره کړې وو چه سحرکښې نمر راؤختلو او په

(١) بخاری کتاب مواقیت الصلوة ، باب من أدرک من الفجر رکعة (رقم-٥٧٩) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلوة،باب من أدرک رکعة من الصلاة فقد أدرک تلک الصلاة (رقم) ١٦٣ - (٦٠٨) وابوداود کتاب الصلاة،باب فی وقت صلاة العصر (رقم-٤١٢) ومالک کتاب وقوت الصلاة ، باب وقوت الصلاة رقم-٥) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء فیمن أدرک من الجمعة رکعة (رقم١١٢٢) والترمذی کتاب الجمعة /باب فیمن أدرک من الجمعة رکعة (رقم ٥٢٤)

مازيګر کښې نمر ډوب شو نو دَي حديث په رڼا کښې دواړه مونځونه صحيح شو. هغه سړې دَ نمر دَ راختو او ډوبيدونه پس بل وخت کښې خپل مونځ مکمل کولې شي. اوس په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

**د سحر اومازيګرد مانځه د نقض په حکم کښې دوه مذاهب:**

① دا حديث متفق عليه دې بلکه په ټولو صحاح سته کښې دې د دې حديث په ظاهره کښې مقتضي دا ده چه که د مازيګر د مونځ ترمينځه نمر پريوځي او هم دغه شان د سحر د مونځ دوران کښې نمر راوخيژي نو دواړه مونځونه صحيح کيدل پکار دي، پس د جمهور او ائمه ثلاثه مذهب هم دا دې،

② احناف د مازيګر په مانځه کښې خو د دې قائل دي چه هغه به خو صحيح شي خو د سحر د مونځ په باره کښې وائي چه هغه به صحيح نه وي

**په دويم فريق اعتراض:** اول فريق په دې وجه په دويم فريق د عمل ببعض الحديث الزام لګوي چه تاسو په بعض حديث باندې عمل کوئ او بعض ترک کوئ،

**د اعتراض جواب:** دا الزام په مونږ باندې هغه وخت صحيح کيدې شي چه هر کله د حديث مفهوم هم زمونږ په نزد هم هغه وي کوم چه ستاسو په نزد دې، زمونږ په نزد د حديث هغه مفهوم نه دې "واذليس فليس" د جمهورو په نزد خو د ادراک نه مراد ادراک من حيث الفعل دې يعنې مونځ کول مراد دي، او مونږ وايو چه د ادراک نه مراد ادراک من حيث الوقت والوجوب دې يعنې چا چه د يو رکعت په اندازه د مازيګر يا سحر وخت بيا موندلو هغه وجوب صلاة بيا موندلو د هغه په ذمه باندې دا دواړه مونځونه واجب شو،

**مثالونه:** ① کله چې صبي په داسې وخت کښې بالغ شي

② کافر په داسې وخت کښې اسلام قبول کړي

③ حائض په داسې وخت کښې د حيض نه فارغ کيدو سره طاهر شي چه د يو رکعت په اندازه وخت باقي وي نو په دې ټولو باندې به مونځ واجب وي په خپل خپل وخت کښې دې هغه ادا کړي، د احنافو د طرف نه دا توجيه مشهوره ده کومه چه امام طحاوي رحمه الله اختيار کړې ده.[1]

**دويم اعتراض:** که څوک د دويم فريق نه تپوس اوکړي چه اخر تاسو دا معنی ولې اخلئ

[1] ) او په کوم روايت کښې چه فقدادرك الصلاة په ځائې فليتم صلاة وارد دې لکه چه د بخاري په يو روايت کښې دي يعنې داسې سړي لره پکار دي چه هغه خپل مونځ پوره کړي نو دا روايت د احنافو د توجيه خلاف دې د دې جواب دا دې چه د دې نه مراد ﴿ فليودهاعلى وجه التام﴾ يعنې روستو دې خپل مونځ پوره ادا کړي او که هم دا مراد وي چه هم هغه وخت دې پوره کړي نو بيا به مونږ دا وايو چه دا حديث د احاديث منع عن الصلاة عند الطلوع خلاف دې په محرم او مبيح کښې چه کله تعارض راشي نو محرم ته ترجيح وي(

حدیث لره د هغې په متبادر معنی باندې ولې نه محمول کوئ؛

**دااعتراض جواب:** دا حدیث په خپل متبادر او ظاهري معنی باندې د چا په نزد هم محمول نه دې ځکه چه د حدیث د ظاهر تقاضه دا ده چه کوم سړی د سحر یا مازیګر د مونځ یو رکعت اوکړو او په مینځ کښې نمر راوختلو یا غروب شو نو بس هغه مونځ بیا موندلو وراندې ئې د باقي رکعتونو لوستلو ضرورت نشته، لهذا حدیث بالاجماع مؤول شو په دې وجه مونږ د حدیث هغه معنی واخستله کومه چه پورته ذکر شوه د دې دپاره چه دا حدیث د حدیث النهي عن الصلاة عند الطلوع خلاف نه شي او که مونږ هم هغه معنی واخلو کومه چه تاسو اخستلې ده نوپه دې صورت کښې به واقعي عمل ببعض الحدیث وی،

**په جواب باندې دااعتراض جواب:** پس د دې جواب زمونږ د طرف نه اهل اصولو دا ورکړې دې چه قاعده دا ده چه د آیات قرانیه د تعارض په وخت د حدیث طرف ته او د احادیثو د تعارض په وخت د قیاس طرف ته رجوع کولې شي اوس چونکه دا حدیث، د حدیث النهي عن الصلاة خلاف دې نو په دې وجه به مونږ د قیاس طرف ته رجوع کوو او د قیاس تقاضه دا ده چه د مازیګر مونځ خو دې صحیح شي او د سحر دې صحیح نه شي نو مونږ په قیاس عمل اوکړو، او قیاس دا دې چه د مونځ سبب د وخت وجوب دې خو وخت پوره نه دې بلکه جزء متصل بالتحریمه، او هم دغه شان د قاعدې خبره ده چه څنګه سبب وی هم دغه شان دې مسبب وی، که سبب کامل دې او څه ناقص، اخر وخت یعنی وخت اصفرار ناقص دې نو کوم سړې چه مازیګر لره د هغې په اخري وخت کښې شروع کړی ظاهره ده چه دلته سبب وجوب ناقص بیا موندلې شو لهذا په هغه سړی باندې مامور به ناقص واجب شو نو په داسې صورت کښې به په اداء ناقص سره بری الذمه شي

**د صبا په مونځ کښې د حدیث په ظاهر دعمل وجه:** د دې په مقابله کښې د فجر وخت کامل دې هلته چه کوم سړی د سحر مونځ په اخر وخت کښې شروع کړو نو کوم وخت چه متصل بالتحریمه دې هغه کامل دې لهذا مامور به د هغه په ذمه کامل واجب شو او ګویا هغه په خپل ځان باندې د ادا کامل التزام اولګولو حال دا چه په مینځ کښې د طلوع شمس د وجې نه په مامور به کښې نقصان پیدا شو، لهذا دا سړې به د دې اداء ناقص په ذریعه بری الذمه نه وی.

**په دویم فریق اصولی اعتراض:** دلته دا اشکال پیدا کیږی چه د دویم فریق په اصولو کښې دا خبره ده چه نهي فساد منهي عنه لره مستلزم نه ده، النهي عن الافعال الشرعية يقتضي تقريرها، لهذا صلاة عند الطلوع چه په کوم باندې نهي راغلې ده هغه ستاسو په نزد فاسد کیدل نه دی پکار، خو په پورته ذکر شوی تقریر او تعبیر کښې په تاسو دا اعتراض راځي.

**د اعتراض جواب:** دویم فریق وائی دا اعتراض په مونږ نه راځي. ځکه چه مونږ دې مونځ ته

فاسد نه وایو بلکه ناقص یا فاسد من حیث الفرض لا مطلقا، پس امام صاحب فرمائی چه د هغه فرض مونځ به نه ادا کیږی نفل مونځ کیدې شی او هم دا رائې د امام ابویوسف رحمه الله ده، البته د امام محمد رحمه الله په نزد مونځ فاسد کیږی کما في معارف السنن عن البدائع ومبسوط السرخسي، هم دغه شان په ایام منهیه کښې روژه اګر چه زمونږ د دې اصول پیش نظر صحیح کیږی خو که د مطلق نذر روژه په ایام منهیه کښې نیسی نو د هغې نه به نه بری کیږی، او که د ایام منهیه سره ئې نذر معلق وی نو په دې صورت کښې به ئې نذر پوره شی غرض ادا مامور به د التزام مطابق مکلف کیدل پکار دی.

**د اول فریق په دویم فریق بیا اعتراض:** په پورته ذکر شوی جواب باندې اول فریق دا وئیلې دی چه په حدیث الباب او حدیث النهی عن الصلاة کښې تعارض دې داسې نه ده، حدیث النهی عن الصلاة په نوافل باندې محمول دې او دا حدیث په ادراک فرض باندې، فلا تعارض بين الحديثين،

**دا اعتراض جواب:** حضرت سهارنپوری په بذل کښې د علامه عینی نه نقل کړی دی چه د لیلة التعریس واقعه چه په هغې کښې د رسول الله ﷺ فرض مونځ قضاء شوې وو په دې موقع باندې رسول الله ﷺ فرض مونځ هم په مکروه وخت کښې نه دې کړې بلکه د هغه ځائې نه تیریدو باندې ئې په ارتفاع شمس نه روستو ئې کړې وو، په روایت کښې راځی (حتى اذا تعالت الشمس الخ) او په یو روایت کښې دی (حتى استقلت الشمس) معلومه شوه چه فرض مونځ هم په اوقات منهیه کښې لوستل ممنوع دی،

**د اول فریق په دویم فریق بیا اعتراض:** اول فریق وائی چه د دې ځائې نه منتقل کیدو سره وړاندې د مونځ کولو وجه دا نه ده. کومه چه تاسو بیان کړه بلکه د دې علت هغه دې د کوم تصریح چه په حدیث مرفوع کښې ده (ان هذا وادحضر فيه الشيطان)

**د اعتراض جواب:** په دواړو علتونو کښې تضاد څه دې د یو فعل متعدد مصالح کیدې شی د یو ذکر ستاسو په کلام کښې دې او د یو ذکر د صحابی په کلام کښې.

**د تقریر ماخذ:** دا ټول تقریر حضرت سهارنپوری په بذل المجهود کښې د علامه عینی د کلام نه نقل کړې دې او په دې باندې حضرت هیڅ اشکال نه دې ظاهر کړې البته حضرت ګنګوهی په الکوکب الدری کښې د احنافو توجیهات نه دی قبول کړی خو د هغې په حاشیه کښې حضرت شیخ د فقهاء احنافو خبرې ته خپل میلان ظاهر فرمائیلې دې، اصل کښې زمونږ فقهاء کرامو تقبل الله مساعيهم د نظر، عقل او قیاس په مدد سره د دې احادیث مختلفه ترمینځه توجیه او تطبیق فرمائیلو سره د عمل بالحدیث محتاط شکل راویستلې دې نه دا چه د قیاس په مقابله کښې ئې یو حدیث ترک کړې دې زمونږ په مسلک کښې د احتیاط کیدل د مذهب جمهور په نسبت ظاهر دې،

**د يو ركعت نه د كم مقدار د ادراک حكم:** دلته يوه خبره پاتې شوه چه په حديث كښې دي چه ﴿من ادرك ركعة﴾ نوكه چاته ديو ركعت نه كم ملاؤ شي نو د هغه څه حكم دې، نو دا مسئله مختلف فيه ده احناف فرمائي چه د دې نه مراد بعض صلاة دې د پوره ركعت قيد نشته، پس كه د تكبير تحريمه په اندازه وخت بيا مومى نو هم معتبر دې په ذمه به ئې واجب شي، د امام شافعي رحمه الله په دې كښې دوه اقوال دي يو دا چه ما دون الركعة معتبر نه دې او هم د دې قائل دې امام مالک، او د امام شافعي رحمه الله اصح قول د احنافو په شان دې، گويا دا قيد د مالكيانو په نزد احترازي دې او د او د احنافو او شوافعو په نزد د مثال په طور دې.

**۶۰۲-د مازيگر او صبا په مانځه كښې يو ركعت را لاندې كولو په صورت كښې د مونځ پوره كول**

۶۰۲-( )[۱۵] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِذَا أَدْرَكَ أَحَدُكُمْ سَجْدَةً مِنْ صَلَاةِ الْعَصْرِ قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ، فَلْيُتِمَّ صَلَاتَهُ. [۳] وَإِذَا أَدْرَكَ سَجْدَةً مِنْ صَلَاةِ الصُّبْحِ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ، فَلْيُتِمَّ صَلَاتَهُ» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي [۲] چې نبي كريم ﷺ وفرمايل كه په تاسو كې يو سړي د نمر پريوتو څخه مخكې د مازيگر د لمانځه يو ركعت را لاندې كړو نو هغه له مونځ پوره كول پكار دي [۳] اوكه د نمر ختو څخه مخكې يې د سحر يو ركعت وموندلو نو هغه له پكار دي چې خپل مونځ پوره كړي. (بخاري)

**تسهيلات:**

**قوله: "سَجْدَةً"**

**د سجدې څخه مراد ركعت:** علامه خطابي رحمه الله فرمائي چه دَ سجدې نه مراد صرف هم سجده نه بلكه دَدې نه مراد پوره ركعت دې په كوم كښې چه ركوع اوسجده دواړه شوي وي. دَ سجدې اطلاق په يو ركعت باندې ښكه اوكړې شو چه سجده دَ ركعت دَ پوره كولودَپاره لوئى ركن دې يادا دَ تسمية الكل باسم الجزء دَ قبيل نه دې.

**۶۰۳-د مونځ هيريدو په صورت كښې د هغې قضا راوړل**

۶۰۳-( )[۱۶] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] مَنْ نَسِيَ صَلَاةً، أَوْ نَامَ عَنْهَا، [۳] فَكَفَّارَتُهُ أَنْ يُصَلِّيَهَا إِذَا ذَكَرَهَا». وَفِي رِوَايَةٍ: لَا كَفَّارَةَ لَهَا إِلَّا ذٰلِكَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

(۱) اخرجه البخارى كتاب مواقيت الصلوة باب من أدرک ركعة من العصر قبل الغروب(رقم-۵۵۶) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلوة باب من أدرک ركعة من الصلاة فقد أدرک تلک الصلاة (رقم) ۱۶۳ - (۶۰۸) والنسائى كتاب المواقيت/باب من أدرک ركعتين من العصر (رقم۵۱۷)

(۲) بخارى كتاب مواقيت الصلوة، باب من نسى صلاة فليصل إذا ذكر، ولا يعيد إلا تلک الصلاة(رقم-۵۹۷) وابن ماجة كتاب الصلاة ، باب من نام عن الصلاة أو نسيها(رقم-۶۹۶) وابوداود كتاب الصلاة،باب فى من نام عن الصلاة، أو نسيها (رقم-٤٤۲) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الرجل ينسى الصلاة (رقم-۱۷۸) والنسائى كتاب المواقيت/ باب فيمن نسى صلاة (رقم-۶۱۳)

**ترجمه:** [۱] انس رضي الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل [۲] د كوم سړي څخه چې مونځ كول هير شي يا د لمانځه په وخت كې (غافله) اوده پاتې شي (او مونځ ترې پاتې شي) [۳] نو د هغې بدل دا دي چې كوم وخت ورته ياد شي نو اودي كړي او د يو روايت الفاظ دا دي چې دغه مونځ د كولو څخه سوا د هغې بل څه بدل نشته. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① فَكَفَّارَتُهُ: مَاتُكَفِّرُ الْخَطِيئَةَ أَيْ: تَسْتُرُهَا وَتَمْحُوهُ: گناهونه رژوی يعنی گناهونه ختموی.

**تسهيلات:**

**قوله:** "أَنْ يُصَلِّيَهَا"

**د قضاء عمرى عدم جواز:** يعنی دَ مونځ پاتې كيدو كفاره صرف او صرف دَ هغه مونځ راگرځول دی او فوری كول دی هيڅ يوه حيله اوبهانه په كارنه شی راتلې. دَدې نه معلومه شوه چه دَ قضاء عمری هيڅ اصل نشته دې. اودا يو بدعت دې چه چا راپيدا كړې دې. دَدې نه داهم معلومه شوه چه څنگه دَ روژې پاتې كيدو فديه اداكولې شی دغه شان دَمونځ حكم نه دې دَمونځ دَپاره مالی كفاره نشته دې بلكه هم دغه مونځ راگرځول دی. بعضې علماؤ دَ مونځ دَ فديه خبره هم كړې ده چه دَ روژې نه مونځ افضل دې لهذا دَ هغه ځائی نه ئی دا قياس چلولې دې چه كله دَ روژې فديه شته نودَ مونځ فديه هم كيدل پكاردی. باقی قضاء عمری په دې وجه غلطه ده چه په دې كښې اتحاد مكان هم نشته اتحاد وقت صلوة هم نشته بلكه دَچا فرض مونځ دې اودَ چانفل. (ماخوذ ازتوضيحات)

**قوله:** "إِذَاذَكَرَهَا"

**په اوقات مكروهه كښې د ياد شوی مونځ په ادا كولو كښې مذاهب:**

① شوافع حضرات فرمائی چه كوم وخت هم يادشی هم هغه وخت كښې كوئی هم دغه دَدې مونځ اصل وخت دې كه هغه يومكروه وخت وی اوكه روستودَ مازيگرنه وی اويا روستودَ سحرنه وی.

② دَ احنافو ائمه حضرات فرمائی چه په ټولو احاديثوكښې په مكروه وختونوكښې دَمونځ كولو سخته منع راغلې ده لهذا "اذاذكرها" كښې به هم دا ياد ساتل وی چه كله وخت دَمونځ دَپاره صحيح وی اوكه چرې هغه وخت دَ مانځه دَپاره صحيح نه وی نوپه هغې كښې مونځ نه شی كولې بلكه دَ صالح وخت انتظاربه كولې شی

**د اول فريق دليل:** زيربحث حديث د دوی مستدل دې. ځكه چې په دې كښې مطلقاً د مونځ ادا كولو ذكر دې. د اوقات ممنوعه استثناء په كښې نشته.

**د اول فريق د دليل درې جوابونه:** (۱) اذاذكرها: په دې كښې اذا د ظرفيت دپاره نه ده بلكه د ان شرطيه په معنی كښې دې كه درته راياد شی نو اوئې كړه يعنی ياد راتلو سره مقيد

دي. (۲) دويم جواب حضرت گنگوهی رحمه الله ورکړي دي چي په فليصلها کي دوه خبري دی اداءصلاة د کوم دپاره چي کلام اوکړي شو، دا حديث په بيان د وخت کي ظاهر دي او د نهي عن الصلوة في الأوقات المكروهة والا روايات نص دی، کله چه په نص او ظاهر کي تعارض راشي نو نص ته ترجيح ورکولي شي. (۳) ستاسو حديث په اباحت باندي دلالت کوی اود نهي والا احاديث محرم دی نو د تعارض په وخت محرم والا احاديثو ته ترجيح ورکولي شي

**د دويم فريق دليل:** په "ليلة التعريس" په سحر کښي چه حضورپاك انتظار فرمائيلي وو ځکه چه دَنمر راختل او ډوبيدل اودَغرمي وختوونه دَمونځ دَپاره صحيح وختونه نه دی.

**د دويم فريق په استدلال اعتراض:** اول فريق وائی په دي دريووختونودَ منع کښي نفل کول منع دی. که چرې يو سړې په دي وختونو کښي فرض کول غواړی نوهغه جائز دی

**د اعتراض ځکه جواب:** په مکروه وختونوکښي دَ مونځ کولو چه کوم ممانعت راغلي دي په هغي کښي دَ يومونځ تخصيص نشته دي. لهذا دَدي ممانعت تقاضاداده چه په دي وختونوکښي دَ نفلونو په شان دَ فرائضودَ اداکولونه هم ځان اوساتلي شي. په ليلة التعريس کښي حضورپاك فرض دَ نمردَ راختونه مؤخرکولوسره کړي وو.

**٦٠٤—د خوب په وجه د مونځ قضا کيدو په صورت کښي عدم گناه**

٦٠٣—()[١٧] ⓵ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ⓶ «لَيْسَ فِي النَّوْمِ تَفْرِيطٌ، إِنَّمَا التَّفْرِيطُ فِي الْيَقَظَةِ. ⓷ فَإِذَا نَسِيَ أَحَدُكُمْ صَلَاةً أَوْ نَامَ عَنْهَا؛ فَلْيُصَلِّهَا إِذَا ذَكَرَهَا ⓸ فَإِنَّ اللَّهَ تَعَالَى قَالَ: "﴿وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي﴾ [طه: ١٤]». رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** ⓵ ابو قتاده ﷺ وايي چي نبي كريم ﷺ وفرمايل ⓶ په اوده كيدو (خوب) كي د لمانځه پاتي كيدل په قصور كي نه شمارل كيږي بلكه قصور خو په ويښه كي وي (چي هغه داسي ولي اوده شو) ⓷ نو هر كله چي په تاسو كي د چا ځخه لمونځ كول هير شي يا د لمانځه په وخت كي غافله اوده شي نو كوم وخت چي وريه ياد شي نو ودي كړي ⓸ ځكه چي الله تعالى جل جلاله فرمايي: وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي، يعني او زما د يادولو په وخت مونځ كوئ. (مسلم)

**حل اللغات:** ① تَفْرِيطٌ: أَيْ: تَقْصِيرٌ: كوتاهي او نقصان كولو ته وائی

**تسهيلات:**

**قوله:** لَيْسَ فِي النَّوْمِ تَفْرِيطٌ،

**دمونځ په قضاء کيدو صحابه کرامو ته تسلی:** دحديث بارك د اولي جملي نه د نبی کريم ﷺ

(1) ومسلم ک.ب المساجد ومواضع الصلوة،باب قضاء الصلاة الفائتة، واستحباب تعجيل قضائها (رقم) ٣١١ - (٦٨١)، وابن ماجة كتاب الصلاة ، باب من نام عن الصلاة أو نسيها(رقم-٦٩٨) وابوداود كتاب الصلاة،باب فى من نام عن الصلاة، أو نسيها (رقم-٤٣٧) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى النوم عن الصلاة (رقم-١٧٧) والنسائى كتاب المواقيت/ باب فيمن نام عن الصلاة (رقم-٦١٥)

څه مقصد دې؟ هرکله چې د ليلة التعريس په شپه نبی کريم ﷺ او صحابه کرامو نه مونځ قضاء شو نو صحابهٔ کرام ډير زيات خفه وو او سخت پريشانه وو. د مونځ په قضاء کيدو ورته نبی کريم ﷺ ددې جملې په ذريعه دا تسلی ورکړه چې ستاسو مونځ خو د خوب په وجه قضا شوې دې، څه په بيدارۍ کښې خو نه دې قضا شوې. د خوب په وجه څه کمی کوتاهي نشته دې. کمی کوتاهي داده چې کله انسان بيدار وی او هغه په لهو لعب کښې او په دنيا وی کارونو کښې مشغول وی او ددې په وجه ترې مونځ قضا شی. ستاسو مونځ خو د خوب په وجه قضاء شوې دې.

**قوله: وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي:**

**په حديث کښې اشکال:** دويمه حصه کښې د وړاندينی حديث مضمون دې او په دې باندې هم هغه سوال وجواب دی. په دې باندې نبی کريم ﷺ داستشهاد په طور دا آيت مبارك تلاوت کړو چې وَأَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرِىْ۞، اشکال دا دې چې شاهد او مشهود له کښې مطابقت نشته دې. استشهاد منطبق نه دی. ځکه چې په حديث کښې د ذکر نه مراد الصلوة دی. او آيت کريمه کښې د ذکر نه مراد د الله تعالی ذکر دې. يعنی د الله تعالی د ذکر دپاره مونځ قائم کړئی.

**د اشکال درې جوابونه:** ① اصل کښې قرائتونه دوه دی، يو خو دا مشهور دې او دويم قراءت وَأَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرىٰ۞، او دا استشهاد ددې قراءت ثانيه په اعتبار سره دې.

② مضاف محذوف دې. اصل داسې دی چې وقت ذکر صلوتی، لام يعنی د وخت دپاره دې، لام وقتيه کښې به اوس هم مطابقت وی. دواړه کښې ذکرنه صلوة مراد دې.

دريم جواب: ذکر الله او ذکر صلوة کښې اتحاد دې، مونځ هم ذکر الله دې او د ذکر الله راياديدل د دمونځ راياديدل دی. (خير المفاتيح صفحه ۲/۴۸)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## ۶۰۵—په دريو څيزونو کښې د عدم تاخير حکم

۶۰۵—(¹)[۱۸] [۱] عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] «يَا عَلِيُّ! ثَلَاثٌ لَا تُؤَخِّرْهَا: الصَّلَاةُ إِذَا أَتَتْ، [۳] وَالْجِنَازَةُ إِذَا حَضَرَتْ، [۴] وَالْأَيِّمُ إِذَا وَجَدْتَ لَهَا كُفُوًا.» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

**ترجمه:** [۱] حضرت علي کرم الله وجهه راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل [۲] اي علي (رضی الله عنه) د دريو خبرو په کولو کې تاخير مه کوه ① يو په لمانځه اداء کولو کې هر کله چې يې وخت شی [۳] ② دويم په جنازه کې هر کله چې تياره شی [۴] ③ او دريم د بي خاونده ښځي په

(¹) اخرجه الترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الوقت الأول من الفضل (رقم-۱۷۱)

نکاح کې هر کله چې د هغې کفو (یعني مناسب سړي، سیال) ملا شي. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① الْأَيِّمُ: أي: الْمَرْأَةُ الْعَزَبَةُ وَلَوْ بِكْرًا: الْأَيِّمُ مَنْ لَا زَوْجَ لَهُ: ایم بې خاونده ښځې ته وئیلې شوې دې که هغه پیغله وی او که کونډه وی او یا طلاقه شوې وی. ② كُفْؤًا: اى الْمِثْلُ: دا دَ کفایت نه دې دَبرابرۍ په معنی کښې دې.

**تسهیلات:**

**قوله: الصَّلَاةُ إِذَا أَتَتْ:**

**د اتت په صیغه کښې دوه اقوال:** ① دا صیغه دَاتیان نه ده دَ راتلو په معنی کښې ده.

② علامه توریشتی رحمه الله فرمائی دا صیغه په ټولو نسخو کښې هم داشان ده لیکن په دې کښې تصحیف شوې دې. اصل صیغه دَ همزه دَ مد سره "آنت" ده چه دَ کانت په وزن باندې ده دکوم معنی چه دَ حانث ده یعنی چه کله مونځ رانیزدې شی.

[ الکاشف: ۲۰۷/۲ المعات: ۳۱۷]

**د مذکوره جملې مطلب:** مطلب داچه کله مونځ رانیزدې شی نوبیا دې ټول کارونه روستو کړې شی او مونځ دې دَهغې په مستحب وخت کښې اوکړی لکه چه مسلمان ته حکم دې چه هغه دې دَالله تعالی کار په خپل کارباندې مقدم اوساتی او دَدې خلاف دې نه کوی گنی گناهگار به شی.

**قوله: وَالْجَنَازَةُ إِذَا حَضَرَتْ:**

**د جنازې د تلوار حکم:** یعنی چه کله جنازه حاضره شی نوبیا دې دَدې دَجنازې مونځ او تدفین کښې بالکل تاخیرنه کوی گنی که دَمړی بدن خراب شی نوخومره رسوائی به وی. علامه طیبی رحمه الله شافعی دَعلامه اشرف قول نقل کړې دې چه دَدې حدیث نه معلومه شوه چه دَ جنازې مونځ په مکره وختونو کښې کول مکروه نه دی. او که دَدغه وختونو نه مخکښې جنازه راشی نوبیا دغه وختونو پورې روستو کول او کول مکروه دی او هم دغه دَ سجده تلاوت حکم هم دې. دَ مازیگر او سحر نه پس جنازه کول مکروه نه دی او سجده دَتلاوت هم مکروه نه ده.

**قوله: وَالْأَيِّمُ إِذَا وَجَدَتْ لَهَا كُفُؤًا:**

**د پیغلې په نکاح کښې تلوار:** مطلب دا چه کله ښځه بالغه شی او په کفو کښې رشته ملاؤ شی نوبیا دَهغې په نکاح کښې تاخیرنه دی کول پکار گنی په دې سره به دَ بدکارئی او جرمونو دروازې کولاؤ شی او په معاشره کښې به فساد او فتنه خوره شی.

**قوله: "كُفُؤًا"**

**په کفاءت کښې ضروری څیزونه:** مطلب دا چه ښځه او سړې په دې صفتونو کښې برابر وی:

① نسب ② اسلام ③ حریت ④ دیانت ⑤ مال ⑥ پیشه.

**په نکاح کښې د آسانتیا ترغیب:** مسلمانانوله پکار دی چه دَهندوانو په رسمونو او رواجونو کښې اخته کیدو سره دَ هلکانواوجینکو په نکاح کولو کښې تاخیرنه کوی دَدې دیرې خرابې نتیجې راوتلې شي. اسلام دَ سړی په ذمه باندې دَ نکاح دَمهر طاقت لازم کړې دې ددې نه علاوه ئې هیڅ یو څیزنه دې لازم کړې او په ښځه باندې هم څه څیز نه دې لازم کړې. نوهیڅ بې هیڅه دَ رسم او رواج په مصیبتونوکښې اخته کیدو سره دَ جینکو ژوند سره لوئې کول نه دی پکار (ماخوذ ازتوضیحات)

### ٦٠٦- په اول وخت کښې د مونځ اداکولو فضیلت

٦٠٦-(١)[١٩] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «الْوَقْتُ الْأَوَّلُ مِنَ الصَّلَاةِ رِضْوَانُ اللّٰهِ، ③ وَالْوَقْتُ الْآخِرُ عَفْوُ اللّٰهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

**ترجمه:** ① ابن عمر رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② مونځ په اول وخت کې اداء کول دالله تعالی جل جلاله د رضا موجب دي ③ او په آخر وخت کې اداء کول دهغه دمعافئ سبب دي، (ترمذي)

**حل اللغات:** ① رِضْوَانُ اللّٰهِ: أَيْ: سَبَبُ رِضَاهِ كَامِلًا: یعنی دالله تعالی د کاملې رضا او خوشحالئ سبب دي. ② عَفْوُاللّٰهِ: د الله تعالی د معافئ سبب دي.

**تسهیلات: قوله:** "رِضْوَانُ اللّٰهِ"

**په عاموحالاتو کښې د مونځ په اول کښې وخت کښې افضلیت:** یعنی په اول وخت مختارکښې مونځ کول دَ الله تعالی خوشحالی حاصلول دی.

**د څه مقصد دپاره په مانځه کښې د تاخیر عدم کراهت:** خوچه په کوموختونوکښې تاخیرکول دَ څه خاص مقصددَپاره وی هغه دَدې نه مستثنٰی دی ځکه چه دَ دغه عارضی حالاتو دَ وجې نه دَهغې تاخیروخت مختاردې. مثلاً په ګرمئی کښې ماسپښین کښې دَ یخوالی په غرض سره تاخیر غوره دې په سحرکښې اسفار غوره دې. دغه شان دَ جمع په غرض سره تاخیرغوره دې.

قوله: "وَالْوَقْتُ الْآخِرُ"

**د آخری وخت نه مراد:** دې نه مراد مکروه وخت دې مثلاً په مازیګرکښې دَ اصفرار شمس پورې تاخیرکول مکروه دی او په ماسخوتن کښې دَ نیمې شپې نه زیات تاخیر کول مکروه دی. لیکن دَدې حدیث مطلب دانه دې چه په دې تاخیرسره به فرض ادانه شی فرض به اداشی البته کراهت به الله تعالی معاف کړی. [ اشعة المعات: ٣١٨]

---

(١) اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الوقت الأول من الفضل (رقم-١٧٢)

۶۰۷–په خپل وخت کښې د مونځ ادا کولو افضليت

۶۰۷ – ()[۲۰] [۱]وَعَنْ أُمِّ فَرْوَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲]«سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ؟ [۳]قَالَ: "الصَّلَاةُ لِأَوَّلِ وَقْتِهَا"» رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ[۴]وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: لَا يُرْوَى الْحَدِيثُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ الْعُمَرِيِّ، [۵]وَهُوَلَيْسَ بِالْقَوِيِّ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** [۱] بي بي ام فروه رضي الله عنها راويه ده (روايت کوي)[۲] چې د نبي کريم ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې (د ثواب د زيادت په اعتبارسره) کوم عمل افضل دي؟[۳] وي فرمايل مونځ په اول وخت کې کول، احمد ترمذي ابوداؤد، [۴] او امام ترمذي رحمه الله فرمايي چه دا حديث صرف د عبدالله بن عمر عمري څخه روايت کيږي[۵] او هغه د محدثينو په نيز قوي نه دي

**تسهيلات:**

**قوله: "الصَّلَاةُ لِأَوَّلِ وَقْتِهَا"**

**په مستحب وخت کښې د مونځ کول:** يعنى مستحب اوغوره وخت کښې مونځ کول دټولو عملونونه غوره عمل دي.

**د حديث تضعيف:** ترمذى دې حديث ته دَ عبدالله بن عمر رضي الله عنه دَوجې نه ضعيف وئيلې دې ليکن نورحضرات فرمائي چه دا حديث صحيح دي. کتاب العلم کښې دَ عبدالله بن عمر عمرى متعلق تفصيل موجود دي. شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې تفصيل کړې دي.[اشعة المعات: ۳۱۸]

۶۰۸–په آخر وخت کښې د مونځ کولو کراهت

۶۰۸–()[۲۱] [۱]وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲]«مَا صَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةً لِوَقْتِهَا الْآخِرِ مَرَّتَيْنِ[۳]حَتَّى قَبَضَهُ اللّٰهُ تَعَالَى»: رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي[۲] چې نبي کريم ﷺ هيڅ مونځ په آخر وخت کې دوه ځله هم نه دي کړي[۳] تر دي چې الله تعالى جل جلاله وفات کړو. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① قَبَضَهُ اللّٰهُ تَعَالَى: يعنى الله تعالى د نبى عليه الصلوة السلام روح قبض کړو (يعنى وفات شو).

**تسهيلات:**

**قوله: "لِوَقْتِهَا الْآخِرِ"**

**په آخر وخت کښې د مونځ کولو حکمت:** يعنى حضورپاك به مونځ په اول وخت مختار کښې کولو په مکروه وختونو کښې به ئې نه کولو. صرف دَ جوازدَ بيان دَپاره يوځل نيم حضورپاك

(۱) وابوداود كتاب الصلاة، باب فى المحافظة على وقت الصلوات(رقم-۴۲۶)

(۲) اخرجه الترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/بباب ما جاء فى الوقت الأول من الفضل (رقم-۱۷۴)

مونځ په آخروخت کښې کړې وو دې دپاره چه د مانځه د اول وخت او آخروخت تعين اوشي. [اشعة المعات:۳۱۸]

**د آخروخت نه مراد:** شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې ليکي چه داحديث اود حضرت عائشه رضي الله عنها داکلام هغه تاخيرسره متعلق دې دکوم نه پس چه اصل وخت نه پاتې کيږي ګنې په وخت د جواز کښې خوځوځل کړې وو په تبوك کښې د سحرپه مونځ کښې تاخيراوشو عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه مونځ ورکړو. دغه شان يوځل صديق اکبر رضي الله عنه مونځ کول شروع کړې وو روستو بيا حضورپاك تشريف راوړو. دغه شان يوځل هغوی رب العالمين په خوب کښې اوليدلو نو دماسخوتن په مونځ کښې تاخيراوشو. بل د امت دتعليم دپاره او د جواز د بيانولودپاره کله کله تاخيرشوې. خلاصه دا چه دلته د تاخيرنه مراد دهغه وخته پورې تاخيرمراد دې دکوم نه پس چه جائز وخت نه پاتې کيږي. [اشعة المعات ۳۱۸]

بهرحال دماښام په وخت د ټولو فقهاؤ اتفاق دې چه تعجيل يعنی تادی کول غوره دی.

### ۶۰۹-د ماښام په مانځه کښې د عدم تاخير حکم

۶۰۹-(۱)[۲۲] [۱] وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «لَا تَزَالُ أُمَّتِي بِخَيْرٍ أَوْقَالَ: عَلَى الْفِطْرَةِ [۳] مَالَمْ يُؤَخِّرُوا الْمَغْرِبَ إِلَى أَنْ تَشْتَبِكَ النُّجُومُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ

**ترجمه:** [۱] ابو ايوب رضي الله عنه راوي دې چې نبي کريم ﷺ وفرمايل [۲] زما د امت خلق به هميشه په خيروي يا وي فرمايل چې په فطرت (يعني د دين اسلام په طريقه) باندې به وي [۳] ترڅو چې د ماښام مونځ دومره وروسته نکړي چې ستوري وځليږي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْفِطْرَةِ: أَيْ: السُّنَّةِ الْمُسْتَمِرَّةِ: دفطرت نه ددين اسلام طريقه او جاري سنت مراد دی ② تَشْتَبِكَ: أَيْ: يَظْهَرُ جَمِيعُهَا وَيَخْتَلِطُ بَعْضُهَا بِبَعْضٍ: اشتباك د اختلاط په معنی کښې دې يعنی چه ستوری ګڼړ شی او رڼړا ئې زياته شی.

**تسهيلات:**

**قوله: "تَشْتَبِكَ النُّجُومُ"**

**صرف د ستورو په ښکاريدو د ماښام په مونځ کښې عدم کراهت:** دّدې حديث نه معلومه شوه چه ماښام کښې صرف د ستورو ښکاريدو سره وخت مکروه کيږي نه اوچه کله ستوری زيات شی بيا د ماښام وخت نه پاتې کيږي. شيعه شنيعه هغه وخته پورې اذانه کوی ترکومې چه ستوری ښکاره نه شی دغه شان هغوی د حديث هم مخالفت کوی اودامت محمديه د متفق عليه اعمال نه جدا لار اختياره وی لکه چه دهغوی کوشش وی چه په يوشرعی عمل کښې مسلمانانوسره پاتې نه شی. دالفطرة نه د دين اسلام نيغه لار مراد ده.

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة باب في وقت المغرب (رقم-۴۱۸) والدارمي کتاب الصلاة /باب کراهية تأخير وقت المغرب (رقم-۱۲۴۶)

۶۱۰-()[٥] [١]وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنِ الْعَبَّاسِ.

**ترجمه:** [١] او دا روايت دارمي د عباس ﷛ څخه نقل کړي دي

**۶۱۱-د ماخوستن په مونځ کښې د تاخير افضليت**

۶۱۱-()[٢٣] [١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢]«لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي لَأَمَرْتُهُمْ أَنْ يُؤَخِّرُوا الْعِشَاءَ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ أَوْ نِصْفِهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره ﷛ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] که زما سره د خپل امت د خلقو د تکليف ويره نه وې نو هغوئ ته به مې د (وجوب په طريقه) حکم ورکړې وو چې د ماسخوتن مونځ دريمې حصې د شپې پورې يا د نيمې شپې پورې په تاخير سره کوئ. (احمد، ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ: أَيْ: لَوْلَا كَرَاهَةُ الْمَشَقَّةِ عَلَيْهِمْ: که چرې ماسره د خپل امت د زيات مشقت اوتکليف ويره نه وې.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ يُؤَخِّرُوا الْعِشَاءَ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ

**د نبی علیه السلام په امت باندې شفقت:** که چرې ما سره ددې خبرې ويره نه وې چې زما امت به په مشقت کښې اخته شي نو ما به په ګرمئ کښې د ماخوستن مونځ تر د شپې دريمې حصې پورې د روسته کولو حکم کړې وې.

**قوله:** أَوْ نِصْفِهِ

**د او په کلمه کښې دوه احتمالات:** يعنی په يخنئ کښې به مې مونځ د نيمې پورې دمؤخر کولو حکم ورکړې وې. دلته او د نوع بيان دپاره دې يا شك بيانولو دپاره.

**اشكال:** ددې حديث پاك نه خو معلومه شوه چې وجوبی اعتبار سره د ماخوستن مونځ مؤخر کول افضل دی ، بيا يئ لولاولې ذکر کړو؟

**د اشكال جواب:** دا حکم استحبابی دې وجوبی نه دې، که د مشقت ويره نه وی نو ما به وجوبی حکم ورکړې وې چې دماسختن مونځ مؤخر کړئ. (خيرالتوضيح (۵۰۳/۱)

**۶۱۲-د ماخوستن مونځ دامت محمدی خصوصيت**

۶۱۲-()[٢٤] [١]وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢]«أَعْتِمُوا بِهَذِهِ الصَّلَاةِ; [٣]فَإِنَّكُمْ قَدْ فُضِّلْتُمْ بِهَا عَلَى سَائِرِ الْأُمَمِ، [٤]وَلَمْ تُصَلِّهَا أُمَّةٌ قَبْلَكُمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

(١) اخرجه ابن ما جة كتاب الصلاة ، باب وقت صلاة المغرب (رقم)- ٦٨٩

(٢) اخرجه الترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی تأخير العشاء الآخرة (رقم-١٦٧) وابن ماجة كتاب الصلاة ، باب وقتصلاةالعشاء (رقم٦٩١)

(٣) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب فی وقت العشاء الآخرة (رقم-٤٢١)

**ترجمه:** [۱] معاذ بن جبل رضی الله عنه راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل[۲] تاسو دا مونځ (يعني د ماسخوتن لمونځ) په تاخير سره کوئ[۳] ځکه چې تاسو ته په نورو امتونو د دې لمانځه په وجه فضليت درکړل شوې دي[۴] او ستاسو ځخه مخکې هيڅ يو امت دا مونځ نه دي کړي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① أَعْتِمُوا: د بَابِ إِفْعَال نه د امر صيغه ده. أي: ادْخُلُوهَا فِي الْعَتَمَةِ: "عتمة" تياري ته وائي دلته ياخو صرف تياره مراد ده اويا دَ ثلث الليل نه کنايه ده دَدې حديث نه هم دَ ماسخوتن دَتاخير پته لګي.

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِنَّكُمْ قَدْ فُضِّلْتُمْ:**

**د ماسخوتن د مانځه په تاخير کښې فوائد:** دې نه معلومه شوه چه دَ ماسخوتن وخت اودَماسخوتن مونځ صرف دې امت مرحومه ته ورکړې شوې دي. دَدې تفصيل دَ مواقيت په بحث کښې تيرشوې دي.

① په دې تاخيرکښې دَ جمع زياتوالې هم دي دَ انتظار مشقت هم دي

② اودَ ماسخوتن اهتمام هم دي داټول کارونه دَ ثواب دي.

③ کله چه دَ ډير وخت پورې يومسلمان انتظارکوى اوبيامونځ کيږى نودې نه پس به هغه زر دَ اوده کيدو تيارى کوى اودَ ماسخوتن دَ فضول ګپ شپ نه به محفوظ وى اووخت به نه ضائع کوى. [اشعة المعات: ۳۱۹.]

### ۶۱۳—د ماخوستن د مونځ وخت

۶۱۳—(۱)[۲۵] [۱] «وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا-قَالَ: [۲] أَنَا أَعْلَمُ بِوَقْتِ هَذِهِ الصَّلَاةِ؛ صَلَاةِ الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ: [۳] كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيهَا لِسُقُوطِ الْقَمَرِ لِثَالِثَةٍ.» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] نعمان بن بشير رضی الله عنه فرمايي[۲] ځه زه دا مونځ يعنی د دويم عشاء (ماسخوتن) وخت ښه پيژنم[۳] نبي کريم ﷺ به دا مونځ د دريم تاريخ د سپوږمۍ د پټيدو په وخت کولو. (ابوداؤد، دارمي)

**حل اللغات:** ① سُقُوطِ الْقَمَرِ: أَيْ: وَقْتَ غُرُوبِهِ: د سپوږمۍ د غروب کيدو په وخت.

**تسهيلات:** **قوله:** الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ:

**دعشاء وجه تسميه:** عشاء ته دَ مغرب دَ وجې نه دويمه عشاء وئيلى شى ځکه چه په مابنام باندې دَ عشاء اولى اطلاق کيږى.

---

[1] اخرجه ابوداود کتاب الصلاة باب في وقت العشاء الآخرة (رقم-۴۱۹) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ماجاء في وقت صلاة العشاء الآخرة رقم-۱۶۵) والنسائی کتاب المواقيت/ باب تعجيل العشاء (رقم-۵۲۹)

**قوله:** لِسُقُوطِ الْقَمَرِ:

**د ماسخوتن په مونځ کښې د تاخیر استحباب:** یعنی دَ دریمې شپې سپوږمئی چه کله ډوبیږی هغه وخت به حضورپاك دَ ماسخوتن مونځ کولو دَدې حدیث نه هم دَ ماسخوتن تاخیرطرف ته اشاره ملاویږی ځکه چه دَ دریمې شپې سپوږمئی ثلث اللیل په وخت کښې ډوبیږی دَ تجربه نه هم دغه ثابت دی. [اشعة المعات: ۴۱۹]

## ٦١٤ـــ د سحر د مانځه وخت

٦١٣ــ( )[٢٦] [١] وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «أَسْفِرُوا بِالْفَجْرِ، فَإِنَّهُ أَعْظَمُ لِلْأَجْرِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ، [٣] وَلَيْسَ عِنْدَ النَّسَائِيِّ: فَإِنَّهُ أَعْظَمُ لِلْأَجْرِ.

**ترجمه:** [١] رافع بن خدیج ﵁ راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [٢] د سحر مونځ په رڼا کې کوئ ځکه چې په رڼا کې په مونځ کولو سره ډیر زیات ثواب حاصلیږي، ترمذي ابوداؤد دارمي نسايي، [٣] او د نسايي په روایت کې دا الفاظ فانه اعظم للاجر نشته.

**حل اللغات:** ① أَسْفِرُوا: په رڼا کښې کوئ. ② أَعْظَمُ: ډیر لوئې، ډیر زیات.

**تسهیلات:** **قوله:** أَسْفِرُوا بِالْفَجْرِ،

**د صلاة الصبح په غلس کښې ادا کولو کښې څلور توجیهات:** ① ځینې علماء کرام و انی چې ددې مطلب دادې چې په تیارهٔ کښې دې مونځ شروع کړې شی ، او طول قرآءة سره دې اسفار کښې ختم کړی چې په دواړو احادیثو کښې تغلیس او اسفار کښې مطابقت راشی ② ځینو وئیلی دی چې دا په سخته تیاره باندې محمول دې. هرکله چې شپه بنه تیاره شی ،او کله چې بنه اسفارشی نو بیا دې سحر مونځ ادا کړی. په داسې شپه چې په هغې کښې تیاره کمیږی نوپه هغې تغلیس سره شروع کولې شی .

③ ځینو وئیلی دی چې دا دشپې په اوږدیدو او لنډیدو باندې محمول دی .

④ یخنۍ کښې دې په تیاره کښې شروع کړې شی ، ځکه خلق د خوب پورا کیدو نه پس زر رابیداریږی او په ګرمۍ کښې دې اسفار سره ادا کړې شی ځکه چې خلق د خوب نه پورا کیدو په وجه زر نه شی رابیداریدې، په دې وجې دې په تاخیر سره مونځ شروع کړې شی ، چې زیات نه زیات خلق په مونځ کښې شرکت اوکړی .

⑤ رمضان کښې په غلس په غیر رمضان کښې اسفار باندې محمودل دی.

---

(١) اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الإسفار بالفجر (رقم-١٥٤) وابوداود کتاب الصلاة،باب فی وقت الصبح (رقم-٤٢٤) وابن ماجة کتاب الصلاة ، باب وقت صلاة الفجر (رقم-٦٧٢) والنسائی کتاب المواقیت/ باب الإسفار (رقم-٥٤٨) والدارمی کتاب الصلاة /باب: الإسفار بالفجر (رقم-١٢٥٣)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## ۶۱۵- د مازیګر د مانځه وخت

۶۱۵-(۱)[۲۷] [۱] عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «كُنَّا نُصَلِّي الْعَصْرَ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ تُنْحَرُ الْجَزُورُ [۳] فَتُقْسَمُ عَشْرَ قِسَمٍ، ثُمَّ تُطْبَخُ [۴] فَنَأْكُلُ لَحْمًا نَضِيجًا قَبْلَ مَغِيبِ الشَّمْسِ.» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] رافع ابن خدیج رضی الله عنه فرمایي [۲] چې د نبي کریم ﷺ سره د مازیګر مونځ کولو نه پس به مونږ اوښان ذبح کړل [۳] او بیا به هغه په لس حصو کې تقسیم شول د هغه څخه وروسته به پاخه کړې شو [۴] اوبیا به مونږ د نمر پټیدو څخه مخکې پخ کړې غوښه خوړلو نه فارغ شو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① تُنْحَرُ: ذبح کولی به شو، ② اَلْجَزُورُ: جزور اوښ ته وائی که نر وی که ښخه. البته دَدې دَپاره صیغه دَ مؤنث استعمالولي شی. ③ تُطْبَخُ: د باب نصرنه، د پخولو په معنی کښې دي. ④ نَضِيجًا: أَيْ: مَشْوِيًّا: وریته کړې شوې.

**تسهیلات: قوله:** "عَشْرَ قِسَمٍ"

**د مذکوره جملې مطلب:** دَعام عادت مطابق دَعربوخلق به لس کسان په یواوښ کښې شریکیدل اوبیابه ئې غوښه لس حصو کښې تقسیمول دلته هم دغه مراد دي

**د مازیګرد مونځ په اول وخت کښې مذاهب:**

① دَدې حدیث نه په ظاهره هم دغه معلومیږی چه حضورپاك ﷺ دَمازیګر مونځ اول وخت یعنی دَمثل اول په راتلو باندې اداکولو. دَجمهور اوصاحبینو مسلك هم دا دې او یوقول دَامام ابوحنیفه رحمه الله هم دې چه په مثل اول باندې دَمازیګر وخت شروع کیږی

② دامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله مشهور مسلك دادې چه دَمازیګر وخت مثل ثانی نه شروع کیږی تفصیل مخکښې تیرشوې دې او دَ حضرت رافع بن خدیج رضی الله عنه دَدې روایت محمل ئی هم خودلې دې.

## ۶۱۶- د ماخوستن په مانځه کښې د تاخیر فضیلت

۶۱۶-(۲)[۲۸] [۱] «وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] مَكَثْنَا ذَاتَ لَيْلَةٍ نَنْتَظِرُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ. [۳] فَخَرَجَ إِلَيْنَا حِينَ ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ أَوْ بَعْدَهُ، [۴] فَلَا نَدْرِي: أَشَيْءٌ شَغَلَهُ فِي أَهْلِهِ أَوْ غَيْرُ ذٰلِكَ؟

---

(۱) بخاری کتاب الشرکة باب الشرکة فی الطعام والنهد والعروض (رقم-۲۴۸۵) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة باب استحباب التبکیر بالعصر(رقم) ۱۹۸ - (۶۲۵)

(۲) اخرجه مسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة باب وقت العشاء وتأخیرها (رقم) ۲۲۰ - (۶۳۹) وابوداود کتاب الصلاة باب فی وقت العشاء الآخرة (رقم-۴۲۰) والنسائی کتاب المواقیت/آخر وقت العشاء (رقم-۵۳۷)

**ترجمه:** [۱] عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمايي [۲] چه يوه شپه مونږ د ماسخوتن د لمانځه د پاره د نبي كريم ﷺ انتظار كولو [۳] رسول الله ﷺ دريمه حصه د شپې يا دې ځخه هم د زياتې شپې تيريدو ځخه وروسته تشريف راوړو [۴] او مونږ ته معلومه نه ده چې حضور ﷺ د كور په كار كې مشغوله وو (چې د عادت مطابق د وختي مونځ كولو د پاره يې تشريف رانه وړو) يا دې ځخه علاوه (حضور ﷺ ته څه عذر پيښ شوې وو)

**حل اللغات:** ① مَكُثْنَا: أَيْ: لَبِثْنَا: مونږ وخت تيركړو، ايسارشو.

> [۱] فَقَالَ حِينَ خَرَجَ: إِنَّكُمْ لَتَنْتَظِرُونَ صَلَاةً [۲] مَا يَنْتَظِرُهَا أَهْلُ دِينٍ غَيْرُكُمْ، [۳] وَلَوْلَا أَنْ يَثْقُلَ عَلَى أُمَّتِي لَصَلَّيْتُ بِهِمْ هَذِهِ السَّاعَةَ [۴] ثُمَّ أَمَرَ الْمُؤَذِّنَ فَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَصَلَّى». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ راتلوسره وفرمايل تاسو خلقو د لمانځه انتظار كوئ (او ستاسو د پاره دا مناسب هم وو ځكه چې) [۲] تاسو دداسې لمانځه انتظار كوئ چې ستاسو ځخه سوا هيڅ بل دين والا ددې مونځ انتظار نه دې كړې (يعني دا ستاسو دخصوصياتو ځخه دې)، [۳] او كه ماته په خپل امت باندې د بوج كيدو ويره نه وې نو ما به دا مونځ هميشه دا وخت كولې [۴] بيا حضور ﷺ مؤذن ته د (تكبير) حكم وكړو هغه تكبير (اقامت) اووئيلو او حضور ﷺ مونځ وركړو. (مسلم)

**حل اللغات:** ③ يَثْقُلَ: چه بوج به شي، تكليف به جوړشي.

**تسهيلات:**

**د حديث دبعضې جملو وضاحت:** ① "أَشَيْءٌ شَغَلَهُ فِي أَهْلِهِ" دَدې تاخيروجه نه په دې حديث كښې شته او نه حضورپاك څه خودلى دى. يوبل حديث مشكوة (ص ۷۱) باندې دې. په هغې كښې دى چه حضورپاك رب تعالى په خوب كښې اوليدلو. [الكاشف: ۲/ ۲۱۲]

② "أَهْلُ دِينٍ غَيْرُكُمْ" دائى ځكه اوفرمائيل چه دَماسخوتن مونځ په يهوديانو او نصارىٰ باندې يا په يوبل امت باندې فرض شوې نه وو.

③ "هَذِهِ السَّاعَةَ" يعنى دَ شپې دريمه حصه يا دَدې نه هم څه زيات روستوپورې دَماسخوتن مونځ روستوكول لازمولې ليكن په دې امت باندې دَ رحمت او شفقت دَ وجې نه دَ شپې دريمې حصې پورې تاخيرلازم نه كړوسره دَدې چه تاخيرغوره دې. دَ رسول الله ﷺ دَ مبارك عمل نه داهم ثابت دى چه كله دَ ماسخوتن په وخت ټول خلق راجمع كيدې نو حضورپاك به مونځ زر كولو اوكله چه به خلق كم وو نو حضورپاك به ناوخته مونځ وركولو.

**٦١٧- د نبي عليه السلام د مونځونو کيفيت**

٦١٧-()[۳۹] [۱] وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الصَّلَوَاتِ نَحْوًا مِنْ صَلَاتِكُمْ، [۳] وَكَانَ يُؤَخِّرُ الْعَتَمَةَ بَعْدَ صَلَاتِكُمْ شَيْئًا [۴] وَكَانَ يُخَفِّفُ الصَّلَاةَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] جابر بن سمره رضي الله عنه خلقو ته وفرمايل [۲] چې نبي کريم ﷺ به ستاسو لمونځونو ته نژدې (وختونو کې) مونځ کولو [۳] خو د ماسخوتن مونځ به يې ستاسو د لمانځه څخه لږ په تاخير سره کولو [۴] او مختصر مونځ به يې کولو. (مسلم)

**حل اللغات:** ① نَحْوًا: أي: قَرِيبًا: نژدې نژدې، ② الْعَتَمَةَ: أي: الْعِشَاءَ: ماسخوتن. ③ يُخَفِّفُ: مختصر، لنډ مونځ به ئې کولو.

**تسهيلات: قوله: الْعَتَمَةَ:**

**په حديث باندې اشکال:** عتمه عشاء ته وائي داد اسلام نه وړاندې په جاهليت کښې دَدې نوم وو رسول الله ﷺ دَدې استعمال منع کړو اوډ عشاء نوم ئې مقرر کړو. اوس سوال دادې چه حضرت جابر رضي الله عنه دَ ممانعت نه باوجود لفظ عتمة ولې استعمال کړې دې؟
[ اشعة المعات: ۳۲۲]

**داشکال جواب:** کيدې شي هغوی ته دغه وخته پورې دَ ممانعت حديث نه وی رسيدلې يا هغوی دَ شهرت دَ وجې اومخاطبينوته آسانه او مشهوره طريقه خودلو دَ وجې نه دا لفظ استعمال کړې وی په کوم کښې چه استمرار نه وو بلکه دَ يووخت ضرورت وو. دَدې حديث نه هم معلومه شوه چه حضورپاك دَ ماسخوتن په مونځ کښې تاخيرخوښ کړې دې.

**قوله: يُخَفِّفُ:**

**د نبي کريم ﷺ په مونځ کښې اختصار کول:** يعنې حضورپاك به په مونځونو کښې واړه واړه سورتونه لوستل په کوم سره چه به په مانځه کښې تخفيف کيدلو دَدې تعلق دې سره هم کيدې شي چه رسول الله ﷺ خلقوته لنډ مونځ ورکړې وی مګر خپل ځان له مونځ ئې ډير اوږد کړې وی. بل حضورپاك دَ ماښام په مانځه کښې سورت اعراف لوستلې نودَدې وجه داده چه دَ حضورپاك دَ مبارکې ژبې نه چه کوم قراءت راوتلو په هغې کښې به خلقوته کيفيت اوخوند محسوسيدو نوهغه اوږدمونځ به هم لنډ ګنړلې شو. اوس امت ته هم دغه تعليم دې کوم چه دې حديث کښې ذکردې. بل حديث کښې خو حضورپاك وجه هم بيان کړې ده چه بعض خلق بوډان ګان کيدې شي بعض مريضان او بعض اصحاب حوائج کيدې لهذا دَ تخفيف نه کار واخلئي.

---

[1] اخرجه مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة،باب وقت العشاء وتأخيرها (رقم) ۲۲۷ - (٦٤٣)

### ۶۱۸ – د ماخوستن مونځ نيمې شپې ته د روستو کولو اراده

۶۱۸ – ( ) [۳۰] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «صَلَّيْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْعَتَمَةِ، [۳] فَلَمْ يَخْرُجْ حَتَّى مَضَى نَحْوٌ مِنْ شَطْرِ اللَّيْلِ، [۴] فَقَالَ: "خُذُوا مَقَاعِدَكُمْ"، فَأَخَذْنَا مَقَاعِدَنَا

**ترجمه:** [۱] ابوسعيد خدري رضی الله عنه فرمايي [۲] چې مونږ يو ورځ د نبي کريم ﷺ سره په جماعت سره د لمانځه کولو د پاره ورغلو [۳] (اتفاقاً په هغه ورځ) حضور ﷺ تر نيمې شپې نزدې پورې تشريف رانه وړو [۴] (د هغې څخه وروسته چې راغې نو مونږ ته يې) ارشاد وفرمايلو چې تاسو خلق خپل خپل ځاي ناست اوسئ نو مونږ دخپلو ځايونوڅخه ولاړ نه شو بلکه هلته ناست وو.

**حل اللغات:** ① خُذُوا مَقَاعِدَكُمْ: أَيِ: الْزَمُوهَا: يعنى په خپل خپل ځاي ناست اوسئ،

[۱] فَقَالَ: إِنَّ النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا وَأَخَذُوا مَضَاجِعَهُمْ، [۲] وَإِنَّكُمْ لَنْ تَزَالُوا فِي صَلَاةٍ مَا انْتَظَرْتُمُ الصَّلَاةَ، [۳] وَلَوْلَا ضَعْفُ الضَّعِيفِ وَسَقَمُ السَّقِيمِ، [۴] لَأَخَّرْتُ هَذِهِ الصَّلَاةَ إِلَى شَطْرِ اللَّيْلِ.» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَالنَّسَائِيُّ

**ترجمه:** [۱] (د دې څخه وروسته) حضور ﷺ وفرمايل نورو خلقو مونځ کولو سره خپلې خپلې بسترې سنبال کړي دي [۲] او (تاسو ته معلوميدل پکار دي چې) تر څو پورې تاسو د لمانځه په انتظار کې يئ نو ستاسو دا ټول وخت په لمانځه کې شميرل کيږي (يعني تاسو ته به د دې انتظار په وجه د لمانځه کولو برابر ثواب حاصليږي) [۳] او که زما سره د ضعيفانو د کمزورئ او د بيمارانو د بيمارئ خيال نه وې [۴] نو ما به هميشه دا مونځ تر نيمې شپې پورې په تاخير سره کولې، (ابوداؤد، نسايي)

**حل اللغات:** ② مَضَاجِعَهُمْ: أَيْ: مَفَارِشَهُمْ أَوْ مَكَانَهُمْ لِلنَّوْمِ: خپلې بسترې يا خپل دخوب او څملاستلو ځايونه ③ ضَعْفُ: کمزورى، ④ سَقَمُ: بيمارى.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا:

**د ناس په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دې نه مسجدنبوى نه علاوه دَنورو محلو مسلمانان مراد دى چاچه په اول وخت کښې دَ ماسخوتن مونځ اداکړو اوده شو.

② يادَ نورو دينونو خلق يهود اونصارىٰ مراد دى چه هغوى دَماښام مونځ اوکړو اوده شو اوتاسوچه دَ کله نه دَ ماسخوتن په انتظار کښې وئى نواوګنړئى چه تاسو په مانځه کښې مشغول ئى اوتاسو ته به برابر دَ مونځ ثواب ملاويږى اوکه دَ بيمارانواومجبورو خلقو مجبورئى نه وې نودَې ثواب دَ ګټلودپاره به تاسو په لازمى توګه باندې دَ ماسخوتن دَ تاخيرحکم درکولو. [ اشعة المعات: ۳۲۲]

---

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب في وقت العشاء الآخرة (رقم-۴۲۲) وابن ماجة کتاب الصلاة ، باب وقت صلاة العشاء (رقم-۶۹۳) والنسائي باب کتاب المواقيت/آخر وقت العشاء (رقم-۵۳۸)

**٦١٩-د ماسپښين او مازيګر د مونځونو ادا کولو د پاره مسنون وختونه**

٦١٩-()[٣١] ١ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ٢ «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشَدَّ تَعْجِيلًا لِلظُّهْرِ مِنْكُمْ، ٣ وَأَنْتُمْ أَشَدُّ تَعْجِيلًا لِلْعَصْرِ مِنْهُ.» رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ

**ترجمه:** ١ بي بي ام سلمه رضي الله عنها (خلق مخاطب کولو سره) وفرمايل ٢ چې نبي کريم ﷺ به د ماسپښين مونځ (د ګرمۍ ځخه علاوه په نورو موسمونو کې) ستاسو ځخه ډير زيات زر کولو ٣ او تاسو د مازيګر په لمانځه کولو کې د حضور ﷺ ځخه زياته تادي کوئ، (احمد، ترمذي)

**حل اللغات:** ① تَعْجِيلًا: جلتي کول.

**تسهيلات:**

**دامام ابوحنيفه د قول تائيد:** داحديث په واضحه توګه دَ احنافو دليل دې چه دَ مازيګر مستحب وخت په ځه تاخير سره کيږي دومره زر نه لکه ځومره زر چه نن صباغير مقلدين ګڼري. په سعودي عرب کښې چه دَماسپښين نه ترمازيګرپورې کوم وخت وي، دَمازيګرنه دَماښام پورې وخت ياخودَدې برابر وي يا دَماسپښين وخت کم وي دومره زر دَ مازيګرمونځ چرته کيږي؟

**٦٢٠-په يخنۍ او ګرمۍ کښې د مونځونو ادا کولو مسنون طريقه**

٦٢٠-()[٣٢] ١ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ٢ «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ الْحَرُّ أَبْرَدَ بِالصَّلَاةِ، ٣ وَإِذَا كَانَ الْبَرْدُ عَجَّلَ» رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي ٢ چې نبي کريم ﷺ به (د ماسپښين) مونځ د ګرمي په موسم کې په يخ وخت کې کولو او د يخنۍ په موسم کې به يې تادي کوله، (نسايي)

**حل اللغات:** ① الْحَرُّ: ګرمي، د ګرمۍ موسم. ② أَبْرَدَ: په يخ وخت کښې به ئې کولو. ③ عَجَّلَ: جلتي به ئې کوله.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَبْرَدَ بِالصَّلَاةِ:

**په رواياتو کښې تطبيق:** دَ ماسپښين په وخت اودې په مونځ کښې چه کوم اختلاف دې او په رواياتو کښې چه کوم تعارض معلوميږي هغه ټول په دې حديث سره ختم شو ځکه چه دلته تعجيل په يخنيانو باندې حمل کړې شوې دې او دَ ماسپښين دَ تاخير تعلق دَ ګرمئ

---

(١) اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی تأخیر صلاة العصر(رقم-١٦١)
(٢) اخرجه النسائ کتاب المواقیت/باب تعجیل الظهر فی البرد (رقم-٤٩٩)

موسم سره دې. لهذا دَ تعجیل اوتاخیر حکم دَ جدا جدا موسمونو دپاره شو لهذا هیڅ تعارض نشته. [اشعة اللمعات: ۳۲۲]

۶۲۱–په خپل وخت کښې د مونځ کولو تاکید

۶۲۱–(۱)[۳۳] ① وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّهَا سَتَكُونُ عَلَيْكُمْ بَعْدِي أُمَرَاءُ يَشْغَلُهُمْ أَشْيَاءُ عَنِ الصَّلَاةِ لِوَقْتِهَا ③ حَتَّى يَذْهَبَ وَقْتُهَا، فَصَلُّوا الصَّلَاةَ لِوَقْتِهَا". ④ فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ أُصَلِّي مَعَهُمْ؟ قَالَ: "نَعَمْ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ

**ترجمه:** ① عباده بن صامت رضي الله عنه راوي دي چې نبي کریم ﷺ ماته وفرمایل ② زما څخه وروسته ډیر نژدې په تاسو به داسې (خلق) حاکمان شي چې هغوي به د دنیا څیزونه (یعنې خواهشات نفساني) وخت (مستحب) باندې د مونځ کولوڅخه منع کوي ③ تر دې چې د لمانځه وخت به وځي (یعني مکروه وخت به راشي) نو ته خپل لمونځونه په وخت کوه (اګر که هم خانله وې) ④ یو سړي عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ آیا بیا (دوباره) د هغوئ سره هم مونځ وکړم؟ حضور ﷺ وفرمایل هو، د هغوئ سره یې هم اوکړه (چې ثواب هم زیات حاصل کړي او د حکامو د مخالفت په وجه فتنه اوفساد هم پیدا نشي (ابوداؤد ۰۰)

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّهَا سَتَكُونُ عَلَيْكُمْ بَعْدِي أُمَرَاءُ يَشْغَلُهُمْ أَشْيَاءُ عَنِ الصَّلَاةِ لِوَقْتِهَا:

**د امراؤ مصداق:** دا ضمیر قصه ده "امراء" دې نه دَ سنت نبوی نه اخوا کیدونکی حکمرانان مراد دی لکه حجاج بن یوسف اودَ بنوامیه څه نور حکمرانان وو چه مونځ به ئی دَ هغې دَخپل مختار وخت نه روستوکولو کوم حکمرانان چه مونځ بالکل نه کوی لکه دا نن صبا نودا خلق خو په هیڅ حساب کښې نه دی.

**حدیث د بعضې جملو وضاحت:** ① لِوَقْتِهَا: دې نه مستحب وخت مراد دې.

② "نَعَمْ: یعنی کله چه دَ فتنې اوفساد خطره وی نوخپل مونځ خان له په خپل ځائی په مستحب وخت کوه اوظالمانو حکمرانانوسره دَ فتنې دَ لرې کولواو مجبورئی لاندې شامليږه. دَدې حدیث تشریح اول شوې ده.

۶۲۲–د فساد خوریدو په وجه په ظالما نو حاکما نو پسې د اقتداء جواز

۶۲۲–(۲)[۳۴] ① وَعَنْ قَبِيصَةَ بْنِ وَقَّاصٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«يَكُونُ عَلَيْكُمْ أُمَرَاءُ مِنْ بَعْدِي يُؤَخِّرُونَ الصَّلَاةَ ③ فَهِيَ لَكُمْ، وَهِيَ عَلَيْهِمْ، ④ فَصَلُّوا مَعَهُمْ مَا صَلَّوُا الْقِبْلَةَ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة باب إذا أخر الإمام الصلاة عن الوقت (رقم-۴۳۳)

(۲) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة باب إذا أخر الإمام الصلاة عن الوقت (رقم-۴۳۳)

**ترجمه:** [۱] قبیصه بن وقاص ﷺ راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل[۲] زما څخه وروسته به په تاسو داسې خلق حاکمان شي چې مونځ به (د مستحب وخت) څخه په تاخیر سره کوي[۳] او هغه مونځ به ستاسو د پاره خو فائده مند وي او د هغوئ د پاره به وبال وي [۴] نو تر څو پورې چې هغوي د قبلې (یعنې د کعبة الله) طرف ته مونځ کوي تاسو هم د هغوئ سره مونځ کوئ (ابوداود)

**تسهیلات:**

**قوله: فَهِيَ لَكُمْ:**

**د مذکوره جملې دوه مطلبونه:** ① که چرې تا خپل مونځ په مستحب وخت کښې اوکړو اوبیا دَ فتنې دَ لرې کولو په غرض دغه ظالمانانو حکمرانانوسره هم شریك شوې نودا دویم مونځ به ستادَ پاره دَ فائدې شی اودَدې به تاته جدا ثواب ملاوېږي.

② کله چه تادَ فتنې دَ لرې کولواو فساد دَ ویرې هغوی سره مونځ اوکړو نوستا مواخذه به نه کیږي دَ مجبورئی دَ وجې نه به ته نه شې راګیرولې لیکن دَ دغه ظالمانو حکمرانانو دَپاره به دا مونځ وبال جان وی ځکه چه هغوی دَ څه مجبورئی نه نه بلکه دَسستئی دَ وجې نه قصداً په مکروه وخت کښې کړې دې اودَ دنیاپه کارونوکښې مشغول شوی. داخو په تاخیرباندې حکمرانانوته وعیددې او څوك چه بالکل مونځ کوی نه بلکه منې نه نودوی واجب القتل دی. [اشعة المعات: ۳۲۳]

### ۶۲۳ــد حضرت عثمان غني رضی الله عنه عبیدالله بن عدی ته مشوره

۶۲۳ــ()[۳۵] [۱] وَعَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [۲] أَنَّهُ دَخَلَ عَلَى عُثْمَانَ وَهُوَ مَحْصُورٌ، [۳] فَقَالَ: إِنَّكَ إِمَامُ عَامَّةٍ، وَنَزَلَ بِكَ مَا تَرَى، [۴] وَيُصَلِّي لَنَا إِمَامُ فِتْنَةٍ، وَنَتَحَرَّجُ [۵] فَقَالَ: الصَّلَاةُ أَحْسَنُ مَا يَعْمَلُ النَّاسُ، فاذا احسن الناس فَأَحْسِنْ مَعَهُمْ، [۶] وَإِذَا أَسَاءُوا فَاجْتَنِبْ إِسَاءَتَهُمْ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] د عبید الله بن عدي بن خیار ﷺ په باره کې منقول دي[۲] چې هغه د حضرت عثمان ﷺ په خدمت کې هغه وخت حاضر شو (کله چې هغه د خپل شهادت څخه مخکې د بغاوت په ورځو کې په خپل کور کې دننه) محصور وو[۳] (نو عبیدالله ﷺ فرمایي چې حضرت عثمان ﷺ ته) ما عرض وکړو چې ته زمونږ د ټولو امام (او امیر) یې او په تا چې کوم څه (مصائب او پریشاني) نازلې شوې، دي هغه ته هم وینې[۴] او (زمونږ حال دا دي چې) مونږ ته د فتنې او فساد یو امام مونځ راکوي (چې په هغه پسې مونځ کول زمونږ ګناه ګڼو[۵] (په دې اوریدو سره) حضرت عثمان غني ﷺ وفرمایل مونځ کول د خلقو د ټول

(۱) اخرجه بخاری کتاب الاذان باب إمامة المفتون والمبتدع (رقم-۶۹۵)

اعمالو څخه بهتر او افضل عمل دي هرکله چې خلق نيکي کوي نو ته هم د هغوئ سره نيکي کوه[٦] اوکله چه هغوي بدي کوي نو ته د هغوئ د بدي څخه ځان ساته. (بخاري)

**حل اللغات:** ① مَحْصُورٌ: أَيْ: مَحْبُوسٌ فِي دَارِهِ: په خپل کور کښې بنديوان وو. ② نَتَحَرَّجُ: أَيْ: نَتَحَرَّزُ وَنَجْتَنِبُ: مونږ دا گناه گڼړو يعنی مونږ بچ کيږو او ډډه ترې کوو.

**تسهيلات:**

**قوله: "وَهُوَ مَحْصُورٌ"**

**د مذكوره حديث پس منظر:** دَحضرت عثمان بن عفان ﷺ خلاف دَعبدالله بن سبا په تحريك باندې دَمصر خلق ولاړوو اودَې خلقو يوه جنگی دسته په مدينه منوره کښې داخل شوې وه. اکثرصحابه ياخودَ دښمن دَ مقابلې دَپاره جهادته تلی وو يا دَحج دَ پاره دَمدينې منورې نه مکې مکرمې ته تلی وو. دغه بلوه کونکو حضرت عثمان ﷺ تقريبًا څلويښت ورځو پورې دَ هغوی په کور مدينه منوره کښې بند ساتلې وو دکوم په وجه چه هغوی مسجد نبوی ته نه شو راتلې.

په دغه زمانه کښې به دَ بلوه کونکو اوفسادیانو امام مونځونه ورکول دَچا نوم چه شارحينو کنانه ابن بشر خودلې دې. دَ حضرت عثمان ﷺ نه دې تپوس کونکی تپوس اوکړو چه دَ فسادیانو مشر څوك چه مونځ ورکوی نوآيا هغه پسې مونځ کيږی؟[االاشعة لمعات: ۳۱۸]

**قوله: "وَنَتَحَرَّجُ"**

**د نتحرج معنی او د حضرت عثمان صبر:** يعنی مونږ هغه پسې شاته مونځ کولو کښې حرج محسوس کوو اوگناه ئی گڼړو. دَحضرت عثمان ﷺ عدل اوانصاف، حلم اوعلم ته اوگورئی چه په دې سخته پريشانئی اوتکليف کښې هم دَ انتقام دَ وجې نه دَ انصاف نه اخوا کيدو سره خبره اونه کړه بلکه وئی فرمائيل چه تيك ده داخلق ماپسې لگيدلې دی ليکن مونځ نيك عمل او ښه کار دې اوکله چه يوسړې ښه کارکوی نوتاسو په هغې کښې شريکيږئی که هغه ستاسو سخت دښمن ولې نه وی اوکه يو سړې خراب کارکوی نو په بدئی کښې دَهغه ملگرتيا مه کوئی سره دَدې چه هغه سړې ستاسو خوښ ولې نه وی.

بهرحال په دغه بلوه کښې حضرت عثمان ﷺ ۳۵هجری ۱۸ذوالحجه شهيد کړې شو. دَ خپل ځان بازی اولگوله مگر دَ جانان ښار دَمدينې منورې احترام ئی دَ خپو لاندې نه کړو. تفصيل انشاء الله دَ تسهيلات آخره کښې راځی.

# [۳/۲۱] بَابُ فَضِيلَةِ الصَّلَوَاتِ

## د مانځه د فضائلو بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه خمسة عشرة حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① فضيلة صلوة الفجر والعصر: ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۱۵۔

② فضيلة صلوة الظهر والعشاء: ۵، ۶، ۷۔

③ النهي عن بعض تسمية بعض الصلوات بأسماء الجاهلية: ۸۔

④ كون صلاتي الفجر والعصر مشهودتان: ۹، ۱۰۔

⑤ إطلاق صلاة الوسطى على صلاة العصر: ۲، ۱۱۔

⑥ إطلاق صلاة الوسطى على صلاة الظهر: ۱۲، ۱۳۔

⑦ إطلاق صلاة الوسطى على صلوة الفجر: ۱۲۔

قال الله تعالى ﴿حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى﴾ [سورت بقره: ۲۳۸] وقال الله تعالى ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ كِتٰبَ اللّٰهِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً يَّرْجُوْنَ تِجَارَةً لَّنْ تَبُوْرَ﴾ [سورت فاطر: ]

# الْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## ۶۲۴-د مانځه د فضائلو بيان

۶۲۳-()[۱] ① عَنْ عُمَارَةَ بْنِ رُوَيْبَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ② «لَنْ يَلِجَ النَّارَ أَحَدٌ صَلَّى قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ، وَقَبْلَ غُرُوبِهَا» يَعْنِي الْفَجْرَ وَالْعَصْرَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① عماره بن رويبه رضي الله عنه وايي چه ما د نبي كريم ﷺ څخه اوريدلي دي ② چا چې د نمر راختو او پټيدو څخه مخکې (دوه لمونځونه) يعنی د سحر او مازيگر مونځ وکړلو هغه به هيڅ کله په دوزخ کې نه داخليږي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① لَنْ يَلِجَ: أَيْ: لَنْ يَدْخُلَ: يلج د ولوج نه دَ دخول په معنى كښې دې. يعنى هيچرې به داخل نه شي.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَنْ يَلِجَ النَّارَ أَحَدٌ صَلَّى قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ، وَقَبْلَ غُرُوبِهَا:

(۱) اخرجه مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب فضل صلاتى الصبح والعصر، والمحافظة عليهما (رقم-۲۱۳ - ۶۳۴) والنسائى كتاب الصلاة ،باب فضل صلاة العصر (رقم-۴۷۱)

**دولوج النار نه مراد:** یعنی دَ عذاب ورکولوپه غرض سره به دا سړي په دوزخ کښې نه شي داخلولې ګنی دَ تیریدو په غرض خوداخبره فیصله شوې ده چه ټول انسانان به په دوزخ باندې تیریږی دَ قرآن آیت دې: ﴿وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا ۚ كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا﴾ [اشعة المعات:۳۲۳]

**قوله: الْفَجْرَ وَالْعَصْرَ:**

دَ نمر راختلونه وړاندې چه کوم مونځ کیږی هغه دَ فجر یعنی سحر مونځ دې او دَ نمر ډوبیدونه وړاندې چه کوم مونځ کیږی هغه دَ مازیګر مونځ دې.

**اشکال:** که نور لوئې ګناهونه کړی وی نو صرف د دې دواړو مونځونو په کولو څنګه د جنت داخلیدو وعده ده. حالانکه داهل سنت والجماعت په نیز خو د کبائرو دپاره توبه ضروری ده.

**داشکال جواب:** علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه کوم سړې دَ سحردَ مونځ اهتمام کوی حالانکه دَ فجر وخت دَ ډیر زیات آرام وی دغه شان کوم سړې چه دَ مازیګردَ مانځه اهتمام او حفاظت کوی حالانکه دَمازیګروخت دَ ډیر مشغولیت او مصروفیت وی نوښکاره خو هم دغه ده چه کوم خلق دا دوه سخت مونځونه کوی هغه به دَدې نه علاوه مونځونه په طریقه اولی کوی او په هغې کښې به بالکل کوتاهی نه کوی.

**په جواب باندې اعتراض:** شیخ عبدالحق رحمه الله په دې توجیه باندې اشکال کړې دې که چرې دا اومنلې شی چه دا سړې به دَ نورو مونځونو حفاظت کوی نودَدې څه ضمانت دې چه دا سړې به دَ ترک صلوة نه علاوه بل څه ګناه نه کوی او دوزخ ته به هیڅ کله نه ځی. [الکاشف: ۲/۲۱۵ المرقات: ۲/۳۱۹ اشعة المعات: ۳۲۳.

**د اعتراض جواب:** شیخ عبدالحق رحمه الله بیا دا جواب ورکړې دې چه په دې حدیث کښې حقیقتًا دَ دغه دوو مونځونو دَ فضیلت اوعظمت بیان دې اودَدې دواړو دَ مقام په بیان کښې مبالغه ده چه دَ دغه دوو مونځونوډیر لوئی شان دې کوم سړې چه دَدې پابندی کوی الله تعالی به هغه په دوزخ کښې نه داخلوی اودَ هغه نور ګناهونه به په خپل فضل سره معاف کړی. [اشعة المعات: ۳۲۳]

### ٦٢٥ — د صبا او مازیګر د مانځه اهمیت

٦٢٥ — ()[۲] [۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] («مَنْ صَلَّى الْبَرْدَيْنِ دَخَلَ الْجَنَّةَ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

(۱) بخاری کتاب مواقیت الصلوة باب فضل صلاة الفجر(رقم-٥٧٤) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة،باب فضل صلاتی الصبح والعصر، والمحافظة علیهما (رقم) ۲۱٥ - (٦٣٥)

**ترجمه:** ① ابو موسي رضي الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل② كوم سړي چې د يخ وخت دواړه لمونځونه (يعني د سحر او مازيگر مونځ) كوي هغه به جنت ته ځي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① اَلْبَرْدَيْنِ: أَيِ: الْغَدْوَةَ وَالْعَشِيَّ لِبَرْدِ الْهَوَاءِ فِيهِمَا: د بردين نه مراد د سحر او د مازيگر مونځونه مراد دي، ځكه چه دې دواړو وختونو كښې هوا يخه وي په نسبت د ماسپخين د وخت.

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ صَلَّى الْبَرْدَيْنِ دَخَلَ الْجَنَّةَ:**

**د بردين په مراد كښې دوه اقوال:** ① په قاموس كښې ليكلي دي چه بردان دَ يخ وخت دوه مونځونه يعني دَ سحر اوماسخوتن ته وائي

② دَ اكثرعلماؤ په نيزدې نه دَ سحر اومازيگرمونځونه مراد دي ځكه چه دواړه مونځونه دَ ورځې په دوو طرفونو كښې هم واقع دي اودَدې په وختونوكښې هواهم يخه چليږي. دَدې نه وړاندې حديث هم دَدې حديث تائيد كوي په كوم كښې چه دَمازيگر اوسحر هم دغه فضيلت بيان كړې شوې دې. [ اشعة المعات: ۳۲۴]

**دحديثونو مذكورينو په مينځ كښې لږ فرق:** دَدې حديث فضيلت اودَدې نه دَوړاندې حديث فضيلت كښې معمولي شان فرق دې ځكه چه دَدې حديث مخې ته دَدې مونځ اداكونكې به جنت ته ځي مگر دائي نه دي خودلي چه دَنورو گناهونو دَ وجې نه به دَ سزا خوړلونه پس ځي يا بغيردَ سزا به ځي. اوس په دې كښې احتمال دې چه دَ سزا خوړلونه پس جنت ته لاړ شي نو په دې باندې "دخل الجنة" صادق راځي ليكن دې نه مخكښې حديث كښې په واضحه توگه باندې خودلي شوي دي چه هغه سړې به اور كښې په يوصورت كښې هم نه داخليږي.

**٦٢٦–دصبا اومازيگر په مانځه كښې د فرشتو بدليدل**

٦٢٦–(¹)[۳] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② ((يَتَعَاقَبُونَ فِيكُمْ مَلَائِكَةٌ بِاللَّيْلِ وَمَلَائِكَةٌ بِالنَّهَارِ، ③ وَيَجْتَمِعُونَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ، وَصَلَاةِ الْعَصْرِ،

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل② تاسو ته (د آسمان) فرشتي شپه او ورځ راځي (چې ستاسو اعمال ليكي او هغه بارگاه الوهيت ته رسوي) ③ او د سحر او مازيگر مونځ كې ټول جمع كيږي

**حل اللغات:** ① يَتَعَاقَبُونَ: أَيْ: يَجِيءُ أَحَدٌ عَقِبَ أَحَدٍ: دَباب تفاعل نه دَ تعاقب دَ يويل وراندې روستوتلو راتلوپه معنى كښې دې.

[1] اخرجه بخاري كتاب مواقيت الصلوة باب فضل صلاة العصر (رقم-٥٥٥) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب فضل صلاتي الصبح والعصر، والمحافظة عليهما (رقم) ٢١٠ - (٦٣٢)

۱ ثُمَّ يَعْرُجُ الَّذِينَ بَاتُوا فِيكُمْ، ۲ فَيَسْأَلُهُمْ رَبُّهُمْ - وَهُوَ أَعْلَمُ بِهِمْ: كَيْفَ تَرَكْتُمْ عِبَادِي؟ ۳ فَيَقُولُونَ: تَرَكْنَاهُمْ وَهُمْ يُصَلُّونَ، ۴ وَأَتَيْنَاهُمْ وَهُمْ يُصَلُّونَ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او کومي فرشتي چې تاسو سره وي ۲ هغه چې کوم وخت اسمان ته خي نو الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ د احوالو پيژندو باوجود دهغوئ څخه (د بنده ګانو د احوالو او اعمالو پوښتنه کوي چې تاسو زما بندګان په کوم حالت کې پريښي دي ؟ ۳ هغوي عرض کوي پرورد ګاره مونږ ستا بندګان په لمانځه کولو کي پريښي وو ۴ او کوم وخت چې مونږ ورته رسيدلي وو نو هغه وخت يي هم مونځ کولو ، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ۞ يَعْرُجُ: خيجي، بره ځی آسمان ته.

**تسهيلات:**

**قوله: "يَتَعَاقَبُونَ"**

**د مذ کوره لفظ لغوی معنی:** يعنی دَ فرښتو يوه ډله دَ انسانانو دَاعمالو ليکلو دَپاره چه کله راځی نويله ډله ليکلې شوې اعمال اوچتولوسره دَ آسمان طرف ته اوړی. په دې تګ راتګ کښې دواړه ډلې دَ مازيګراو سحر په مونځونوکښې يوځائی کيږی په کوم سره چه دَدې دواړو مونځونو فضيلت واضح کيږی. [ اشعة المعات: ۳۲۴]

**په يتعاقبون کښې نحوی اشکال:** دَ جمع صيغه ده اوروستو فاعل ملائکه اسم ظاهر دې دَ نحوې دَ قواعدو مطابق دا صيغه دَمفرد کيدل پکاروو داجمع ولې راوړلې شوه؟

**داشکال درې جوابونه:** ① "يتعاقبون"کښې چه کوم واؤ دې دادَ راتلونکی فاعل په جمع کيدو باندې دلالت کولودَپاره دې يعنی دا صرف دَ فاعل علامت دې ضميرفاعل نه دې.

② "يتعاقبون"خبرمقدم دې او "ملائکة" مبتداء مؤخردې. دَ قرآن کريم آيت ﴿ وَاَسَرُّوا النَّجْوَى الَّذِينَ ظَلَمُوا ﴾ کښې هم دغه شان توجيهات دی.

③ اسم ظاهر چه په ظاهر فاعل معلوميږی هغه په اصل کښې فاعل نه دې بلکه دَ "يتعاقبون"فاعل سره بدل دې.

**قوله: "فَيَسْأَلُهُمْ"**

**په ددو مونځونو کښې د فرشتو بدليدل:** په دې حديث کښې حضورپاك خپل امت ته دَدې دوو مونځونو ترغيب ورکوی چه دَدې ښه پابندی کوئی ځکه چه دَ انسان دَ عملونو ليکونکې فرښتودوه ډلې دی. يوه دَ ورځې دَپاره ده او يوه دَ شپې دَپاره ده. کله چه دَ ورځې والافرښتې خپله ډيوټی پوره کولوسره واپس آسماته ځی نودَ آسمان نه دَ شپې ډيوټی کونکې فرښتې دَهغوی نه سوال کوی.

**د شپې د فرشتو دَورځې په فرشتو فوقيت:** دادَدې خبرې دليل دې چه دَ شپې دَ ډيوټئی والا

فرښتې دَ ورځې دَ فرښتونه غوره دی دَ دې وجه داده چه دَعبادت په لحاظ سره دَ شپې درجه د ورځې نه غوره ده. ځکه چه دَ شپې سکون وی عبادت دَ ریاکارئی نه پاك وی اوعبادت دَ زړه په تسلئی سره کیږی. لهذا دَ شپې فرښتې دَ ورځې دَ فرښتونه غوره دی. په دې وجه الله تعالی دَ هغوی نه دَ بندیګانو متعلق سوال کوی (کذافی المعات)

**۶۲۷–د الله تعالی د ذمه داری احترام کول**

۶۲۷–(۱)[۳] [۱] وَعَنْ جُنْدَبٍ الْقَسْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲] «مَنْ صَلَّى صَلَاةَ الصُّبْحِ; فَهُوَ فِي ذِمَّةِ اللَّهِ، [۳] فَلَا يَطْلُبَنَّكُمُ اللَّهُ مِنْ ذِمَّتِهِ بِشَيْءٍ; [۴] فَإِنَّهُ مَنْ يَطْلُبْهُ مِنْ ذِمَّتِهِ بِشَيْءٍ يُدْرِكْهُ، [۵] ثُمَّ يَكُبُّهُ عَلَى وَجْهِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [۶] وَفِي بَعْضِ نُسَخِ (الْمَصَابِيحِ): الْقُشَيْرِيُّ بَدَلَ الْقَسْرِيِّ.

**ترجمه:** [۱] جندب قسري رضی الله عنه راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل [۲] چا چې د سحر مونځ وکړو هغه (په دنيا او آخرت کې) د الله تعالی جل جلاله په عهد اوامان کې دي [۳] نو داسې دي نه وي چې الله تعالی جل جلاله ستاسو څخه په خپل دي عهد کې څه مواخذه وکړي [۴] ځکه د چا څخه چې هغه په عهد وامان کې مواخذه وکړه (پوښتنه يي وکړه)، [۵] نو د هغه نتيجه به دا وي چې هغه نيولو سره د دوزخ په اورکې به يې پر مخې وغورځوي، مسلم، [۶] او د مصابيح په بعضې نسخوکې د قسري په ځاي قشيري راغلي دي.

**حل اللغات:** ① ذِمَّةِ اللَّهِ: أَيْ: فِي عَهْدِهِ وَأَمَانِهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ: دې نه دَالله تعالی عهد اوامان مراد دې، يعنی په دنيا او آخرت کښې به په امان کښې وی. ② يَكُبُّهُ: پرمخې به ئې اوغورځوی.

**تسهيلات:**

**قوله: فِي ذِمَّةِ اللَّهِ:**

**د ذمة الله دوه مطلبونه:** ① "ذمة الله" يعنی عهدوامان پخپله دَ سحر مونځ دې دَ سحر مونځ کولو سره الله تعالی پخپله په دنيااو آخرت کښې دَ امن وعده کړې ده لهذا عام مسلمانانو له پکاردی چه هغوی دې دَ سحردَ مانځه زيات اهتمام کوی اودَ سحرمونځ دې نه قضا کوی دې دَپاره چه دَالله تعالی کوم وعده ده هغه په ځائی وی او په مونځ قضاکولوسره هغه عهد مات نه شی ځکه دَدې په ماتيدو بالندې به الله تعالی رانيول کوی.

② چه کوم سړی دَ سحر مونځ اوکړو هغه دَالله تعالی په حفاظت اودَهغه په عهد اوامان کښې راغلو. نو دَ مسلمانانونه چه کوم سړی دې مونځ ګذار سره بدسلوك اوکړويا دَهغه مال ئې په زور واخستو يا هغه ئې اووهلو يا هغه تنګ کړو يادَهغه غيبت ئې اوکړو او په هغه باندې ظلم اوکړو نودَدې مطلب دا شو چه دغه سړی دَ الله تعالی په حفاظت او

(۱) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب فضل صلاة العشاء والصبح فى جماعة (رقم-۲۶۲ - (۶۵۷)

عهد وامان کښې خلل واچولو دَ الله تعالی حفاظت ته ئې نقصان اورسولو په دې وجه به الله تعالی یقینًا دغه بدبخت راګیره وی.

**۶۲۸ــ د اذان او د اول صف ثواب**

۶۲۸ــ()[۵] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] ( «لَوْ يَعْلَمُ النَّاسُ مَا فِي النِّدَاءِ وَالصَّفِّ الْأَوَّلِ، [۳] ثُمَّ لَمْ يَجِدُوا إِلَّا أَنْ يَسْتَهِمُوا عَلَيْهِ، لَاسْتَهَمُوا؛ [۴] وَلَوْ يَعْلَمُونَ مَا فِي التَّهْجِيرِ، لَاسْتَبَقُوا إِلَيْهِ؛ [۵] وَلَوْ يَعْلَمُونَ مَا فِي الْعَتَمَةِ وَالصُّبْحِ، لَأَتَوْهُمَا وَلَوْ حَبْوًا» ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [۲] که خلقو ته د آذان ویلو او (په لمانځه کې) د اولني صف کښې د وردیدو ثواب معلوم شي [۳] او بې قرعه اندازي هغوئ ته دا حاصل نشي نو هغوي به ضرور قرعه اندازي کوي [یعني که خلق اذان کولو او په اولني صف کې د وردیدو د پاره په خپلو کې په جګړه شي او قرعه اندازي سره وکوري چې د چا نوم راوخي نو دا به هم ضرور وکړي] [۴] او که د ماسپښين لمانځه د پاره په دوختي راتلو ثواب ورته معلوم شي نو لمانځه ته په منډه راشي [۵] او که د ماسخوتن او سحر د لمانځه فضلیت ورته معلوم شي (نو د طاقت د نه لرلو په حالت کې به هم دي لمونځونو د پاره) د کوناتو په زور یعنی په خړپوسو راځي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① النِّدَاءِ: أَيْ: التَّأْذِينِ وَالْإِقَامَةِ: اذان او اقامت، ② أَنْ يَسْتَهِمُوا: أَيْ: بِأَنْ يَقْتَرِعُوا: یعنی قرعه اندازی او خسنړې به اوباسی، ③ التَّهْجِيرِ: أَيْ: فِي الْمُسَارَعَةِ إِلَى الطَّاعَةِ: دَ هر خیز طرف ته وړاندې کیدو او تادی کولو په معنی کښې دې. ④ لَاسْتَبَقُوا: أَيْ: لَبَادَرُوا: استباق دَ یو بل نه واندې کیدو په معنی کښې دې یعنی که خلقو ته دَ مونځونو دَ پاره دَ زر وتلو فضیلت معلوم شی نو دا خلق به دَ یو بل نه وړاندې کیږی. ⑤ الْعَتَمَةِ: ماسخوتن ته عتمه وائی دَ اسلام نه مخکښې دَ ماسخوتن نوم عتمه وو خو اسلام ددې نوم ماسخوتن کیخودو او دَ عتمه په لفظ باندې پابندی اولګوله. کیدې شی چه دادلته کوم استعمال شوې دې دادَ حرمت او ممانعت نه مخکښې وی. ⑥ حَبْوًا: أَيْ: زَحْفًا وَهُوَ مَشْيُ الصَّبِيِّ عَلَى أَرْبَعٍ، أَوْ دَبِيبُهُ عَلَى اسْتِهِ: ماشوم چه کله په زنګونوسره راځی لاس اوسینه هم لګوی اوراځی دغه تګ راتګ ته "حبوا" وائی.

**تسهیلات: قوله:** "إِلَّا أَنْ يَسْتَهِمُوا عَلَيْهِ"

**د اول صف ثواب حاصلولو دپاره خسنړې اچول:** یعنې دَ اول صف فضیلت اودَ اذان وئیلو فضیلت که چرې خلقوته په صحیح توګه معلوم شي اوبیا دَ دغه فضیلت دَ

(۱) بخاری کتاب الاذان باب الاستهام فی الأذان (رقم-۶۱۵) ومسلمکتاب الصلاة، باب تسوية الصفوف، وإقامتها، وفضل الأول فالأول منها، والازدحام على الصف الأول، والمسابقة إليها، وتقديم أولى الفضل، وتقريبهم من الإمام (رقم) ۱۲۹ - (۴۳۷) ومالک کتاب وقوت الصلاة ، باب وقوت الصلاة رقم-۶) والنسائی باب کتاب المواقیت/الرخصة فی أن یقال للعشاء العتمة (رقم-۵۴۰).

حاصلولو دپاره پچه اچول وی نو په پچه ویستلو سره به خلق د دغه ثواب حاصلولو کوشش کوی لکه څنګه چه د څه خلقو په اذان کولو باندې جګړه اوشوه نو حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه د هغوی په مینځ کښې پچه واچوله.

**قوله: "التَّهْجِيرِ"**

**د تهجیر په معنی کښې درې اقوال:**

① بیا د ماسپښین د مونځ دپاره زر وتلو د پاره استعمالیدو.

② بعضې د جمعې دپاره زر وتلو مطلب اخستې دې

③ او بعضو د هر مونځ دپاره د زر وتلو معنی کښې اخستې دې.

**۶۲۹ — په منافقانو د ماخوستن او صبا د مونځونو سختوالې**

۶۲۹ — ()[۲] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «لَيْسَ صَلَاةٌ أَثْقَلَ عَلَى الْمُنَافِقِينَ مِنَ الْفَجْرِ وَالْعِشَاءِ، ③ وَلَوْ يَعْلَمُونَ مَا فِيهِمَا لَأَتَوْهُمَا وَلَوْ حَبْوًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② په منافقانو د ماسخوتن او د سحر څخه زیات دروند هیڅ مونځ نشته ③ که هغوي د دې دواړو ثواب وپیژني نو په زمکه په کوناټو راښکولو به ورته راځي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① أَثْقَلَ: دروند، بوج. ② حَبْوًا: أَيْ: زَحْفًا وَهُوَ مَشْيُ الصَّبِيِّ عَلَى أَرْبَعٍ، أَوْ دَبِيبُهُ عَلَى اسْتِهِ: ماشوم چه کله په زنګونو سره راځی لاس او سینه هم لګوی او راځی دغه تګ راتګ ته "حبوا" وائی.

**تسهیلات: قوله: "أَثْقَلَ"**

**د صلاتینو په منافقانو د ګرانوالی وجه:** د دین په معامله کښې خوهسې هم منافق غل وی د هغه په مزاج کښې د عبادت باره کښې سستی او ځان ددې ته کول وی. د ماسخوتن او سحر دواړه مونځونه په سخت وخت کښې دی کله ګرمئی او کله یخنئی د ماسخوتن د مونځ انتظار کول وی او د سحر خوب پریخودو سره وختې پاسیدل وی. په دې وجه د منافق دروند طبیعت او د ایمانی فتور د وجې نه دا دواړه مونځونه د هغه د پاره ډیر ګران وی. بل سحر او ماسخوتن کښې تیاره وی نو منافق ته د پټیدو او ځان ددې ته کولو ښه موقع وی. په دې وجه دا مونځونه په منافقانو باندې سخت وی او هغوی د پټیدو کوشش کوی.

**په مخلص مسلمان د صلاتینو آسانتیا:** د دې حدیث نه معلومه شوه چه مخلص او ایماندار سړې به په دې دواړو مونځونو کښې ښه تیاروی. د دې حدیث نه مونږ ته دا تعلیم ملاؤ شو چه یو مخلص مسلمان له دا مناسب نه دی چه د منافقانو مشابهت اختیار کړی او د سحر او ماسخوتن په مونځونو کښې سستی اوکړی. [اشعة المعات: ۳۲۵]

(۱) بخاری کتاب الاذان باب فضل العشاء فی الجماعة (رقم-۶۵۷) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب فضل صلاة الجماعة، وبیان التشدید فی التخلف عنها (رقم) ۲۵۲ - (۶۵۱) وابن ماجة باب صلاة العشاء والفجر فی جماعة (رقم ۷۹۷)

## ۶۳۰–په جماعت سره د سحر او ماخوستن مونځ فضیلت

۶۳۰–(¹)[۷] ۱ وَعَنْ عُثْمَانَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ («مَنْ صَلَّى الْعِشَاءَ فِي جَمَاعَةٍ ; فَكَأَنَّمَا قَامَ نِصْفَ اللَّيْلِ، ۳ وَمَنْ صَلَّى الصُّبْحَ فِي جَمَاعَةٍ، فَكَأَنَّمَا صَلَّى اللَّيْلَ كُلَّهُ» ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عثمان غني رضی الله عنه راوي دي ۲ چه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كوم سړي چې د ماسخوتن مونځ په جماعت سره وكړو نو لكه چې هغه نيمه شپه ودريدو سره مونځ وكړو ۳ او كوم سړي چې د سحر مونځ په جماعت سره وكړو نو لكه چې هغه ټوله شپه ودريدو سره په ولاړه مونځ وكړو. (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** اللَّيْلَ كُلَّهُ:

**د حديث دوه مطلبونه:** ① چاچه دَ ماسخوتن مونځ په جمع سره اوكړو نوهغه ته دَ نيمې شپې دَ مانځه ثواب حاصل شو اوچه كله هغه دَ سحرمونځ هم په جمع سره اوكړو نولكه چه هغه دَ باقي شپې هم مونځ اوكړو دغه شان ده ته دَ پوره شپې دَ تهجد دَ مونځ ثواب ملاؤشي دا مطلب زيات واضح دې.

② كوم سړى چې دَ ماسخوتن مونځ په جمع سره اوكړو لكه چه هغه دَ نيمې شپې پورې تهجد اوكړل اوچاچه دَ سحرمونځ په جمع سره اوكړو نولكه چه هغه مكمل پوره شپه تهجداوكړل په دې صورت كښې به دَ ماسخوتن په مانځه باندې دَ سحر دَ مونځ فوقيت او فضيلت ثابت شي.

## ۶۳۱–د ماښام د مونځ دپاره د مغرب انتخاب

۶۳۱–(²)[۸] ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ (لَا يَغْلِبَنَّكُمُ الْأَعْرَابُ عَلَى اسْمِ صَلَاتِكُمُ الْمَغْرِبِ) ۳ قَالَ: (تَقُولُ الْأَعْرَابُ: هِيَ الْعِشَاءُ)».

**ترجمه:** ۱ ابن عمر رضی الله عنه راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل ۲ د صحرا خلق دي د مغرب د لمانځه نوم اخستوكي په تاسو غالب رانشي ۳ راوي وايي چې د صحرا خلق (مغرب يعني ماښام ته) عشاء (ماسخوتن) وايي.

**حل اللغات.** ① الْأَعْرَابُ: سُكَّانُ الْبَوَادِي: دكلي اوسيدونكو ته وائي، دلته ترې د عربو د بانډو خلق مراد دي.

(¹) اخرجه مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب فضل صلاة العشاء والصبح فى جماعة (رقم) ۲۶۰ - (۶۵۶) و ابوداود كتاب الصلاة/باب فى فضل صلاة الجماعة (۵۵۵)

(²) اخرجه بخارى كتاب مواقيت الصلوة، باب من كره أن يقال للمغرب: العشاء،(رقم ۵۶۳) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب وقت العشاء وتأخيرها (رقم) ۲۲۹ - (۶۴۴)

۶۳۲ – ()[۵] ۱ وَقَالَ: ((لَا يَغْلِبَنَّكُمُ الْأَعْرَابُ عَلَى اسْمِ صَلَاتِكُمُ الْعِشَاءِ ۲ فَإِنَّهَا فِي كِتَابِ اللهِ الْعِشَاءُ. ۳ فَإِنَّهَا تُعْتِمُ بِحِلَابِ الْإِبِلِ)). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ بيا حضور ﷺ وفرمايل چې د ماسخوتن په نوم اخستو کې دې هم د صحرا خلق په تاسو غالب رانشي ۲ د دې مونځ نوم په کتاب الله کې عشاء (ماسخوتن) دي الکه چې ارشاد دي وَمِنْ بَعْدِ صَلٰوةِ الْعِشَاءِ] ۳ او هغه د صحرا خلق به د اوښو د شيدي (پې) لوشلو په وجه په دي لمانځه کې تاخير کولو نو ځکه ورته عتمه وايي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① لَايَغْلِبَنَّكُمْ: غالب دې رانه شي په تاسو. ② الْأَعْرَابُ: سُكَّانُ الْبَوَادِي: د کلي اوسيدونکي. ③ تُعْتِمُ: دا صيغه دَ باب افعال نه ده اعتام په معنى د دخول في العتمه دې يعنى په تياره کښې داخليدل. دا صيغه معروف اومجهول دواړه شان لوستلې شوې ده. ④ حِلَابِ: لوشل.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَايَغْلِبَنَّكُمُ الْأَعْرَابُ عَلَى اسْمِ صَلَاتِكُمُ الْمَغْرِبِ:

**د اعراب نه مراد:** اعراب په کلوکښې اوسيدونکوته وائي دا خلق دَ ښارنه دَ لرې کيدو دَ وجې نه دَعام تهذيب نه ناخبره وى. دلته دَ اعراب نوم هم دَ دغه شاړوالى دَ وجې نه اخستې شوې دې ځکه دَعربوخلقو به هم مابنام ته دَ عشاء نوم اخستلو او عشاء ته به ئې عتمه وئيل.

**دغلبې څخه مراد:** دلته دَ اعراب نه دَ جاهليت کلي وال خلق مراد دى چه شرعي اصطلاح به ئې بدلولوسره دَ مسخ کولوکوشش کولو. په دې وجه حضورپاك صحابه کرام دَ دې نه منع کړل چه تاسو دَ دغه کلي والو په شان مه کيږئى چه خپل شرعى اصطلاحات او شرعى اطلاقات بدلولوسره دَهغوى اطلاقات او اصطلاحات خپل کړئى په کوم سره چه به هغوى په تاسو باندې په ثقافتى او معاشرتى شناختونو کښې غالب راشى تاسو له پکار دى چه په قرآن اوحديث کښې کومو نوم اوکومه اصطلاح متعارف کړې شوې ده هم هغه استعمال کړئى.

**د خپل تهذيب او ثقافت د حفاظت لزوم:** دَدې حديث نه مونځ ته دا سبق ملاويږى چه په مسلمانانو باندې لازم دى چه هغوى دې خپله ژبه اوکلام دَ شريعت دَ اصطلاح مطابق صحيح کړى اودَ کافرانو او فاجرانو په تقليدکښې دې خپل شرعى او ثقافتى ورثه نه برباده وى. [الکاشف: ۲/۲۲۱]

**قوله:** فَإِنَّهَا تُعْتِمُ بِحِلَابِ الْإِبِلِ:

---

(۱) اخرجه بخارى كتاب مواقيت الصلوة، باب من كره أن يقال للمغرب: العشاء (رقم ۵۶۳) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب وقت العشاء وتأخيرها (رقم) ۲۲۹ - (۶۴۴)

**په زمانه جاهلیت کښې د عتمه وجه تسمیه:** په دې جمله سره حضورپاك دا اوخودل چه کلي والو به دَ جاهلیت په ورځو کښې عشاء ته عتمه ولې وئیله. فرمائي چه کلي والو به دَ اوښو پئي راویستلو کښې ناوخته کولو سره دَ ښه تیارې خوریدو نه پس پئي راویستل دَهغه وخت تیارې ته هغوی عتمه نوم ورکړو. خلاصه دا چه کله دَ اسلام دور شروع شو اودَمابنام مونځ ته صلوة المغرب او دَ ماسخوتن مونځ ته صلوة العشاء نوم ورکړې شو نودَ جاهلیت باقي پاتې کلي وال او په اسلام کښې داخلیدونکي مسلمانانو کلي والو ماسخوتن ته عتمه وئیل په ځائي اوساتل اوځه نورو مسلمانانو هم ماسخوتن ته عتمه وئیل په دې وجه حضورپاك په سختئي سره منع اوفرمائیل اودَ اهل جاهلیت دَ مشابهت دَ وجې نه ئې دا مکروه اوګرځول.

**په څه روایاتو کښې د عتمه د لفظ په استعمال باندې اعتراض:** په ډیرو روایتونو کښې ذکر دی چه حضورپاك پخپله او بعض صحابه کرامو لفظ عتمه استعمال کړې دې داسې ولې شوی؟

**دا اعتراض دوه جوابونه:** ① چرته چه په احادیثو کښې دا لفظ استعمال شوې دې نو هغه دَ ممانعت نه په وړاندې زمانه باندې محمول دی

② شیخ عبدالحق رحمه الله فرمائي چه ماسخوتن ته عتمه وئیل مکروه تنزیهي دی یعني خلاف اولی دی نوچاچه دَممانعت نه پس دالفظ استعمال کړو هغه خلاف اولی کاراوکړو. [اشعة المعات: ۳۲۶، ۳۲۸]

**قوله:** تُعْتِمُ:

**د تعتم په صیغه کښې دوه احتمالات:**

① که چرې دَ مجهول صیغه وی نو ضمیر صلوة طرف ته راګرځي او مطلب به داشي چه دَ اوښانو پئي لشلو دَ وجې مونځ روستوکول او په تیاره کښې کولې شو

② که دا صیغه دَمعلوم وی نوبیابه ضمیردَ اعراب طرف ته راګرځي مطلب به داشي چه هغه کلي والوخلقو به دَ اوښانو پئي لشلودَ وجې نه مونځ مؤخر کولوسره په تیاره کښې کولو.

**قوله:** رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**د روایة الباب مسلم ته په نسبت کولو اعتراض:** شیخ عبدالحق رحمه الله فرمائي چه دا روایت مطلقًا دَ مسلم روایت کښې شمیرل محل دَ بحث دې ځکه چه دَدې حدیث رومبې جمله صرف امام بخاری رحمه الله نقل کړې ده په مسلم کښې نشته. اودَدې دویمه جمله کومه چه "وقال لایغلبن" نه شروع کیږی صرف په مسلم کښې شته بخاری کښې نشته.

## ٦٣٢ – د مازيګر په مونځ د صلاة الوسطى اطلاق

۶۳۲ –(۱)[۹] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ: [۲] «حَبَسُونَا عَنْ صَلَاةِ الْوُسْطَى: صَلَاةِ الْعَصْرِ، [۳] مَلَأَ اللّٰهُ بُيُوتَهُمْ وَقُبُورَهُمْ نَارًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت علي كرم الله وجهه راوي دي چې رسول الله ﷺ د غزوه خندق په ورځ وفرمايل [۲] چې (كافرانو) مونږ د درمياني مونځ يعنى د مازيګر مونځ كولو څخه منع كړي يو [۳] الله جل جلاله دې د دوي كورونه اوقبرونه د اورڅخه ډك كړي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① حَبَسُونَا: مونږ مشغوله شوى وو. أَيْ: مَنَعَنَا الْكُفَّارُ بِاشْتِغَالِنَا بِحَفْرِ الْخَنْدَقِ: د كافرانو د وجې نه د خندق په كنستلوسره مونږ مشغوله شوى وو. ② صَلَاةِ الْوُسْطَى: مينځنې يعنى درميانه مونځ. ③ مَلَأَ: ډک به کړی.

**تسهيلات:**

**قوله: "صَلَاةِ الْوُسْطَى: صَلَاةِ الْعَصْرِ"** قرآن كريم كښې د مونځونو د حفاظت سره متعلق يو آيت دي ﴿حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى﴾

**د وسطى په مصداق كښې د اختلاف وجه:** اوس كه كله اوكتلې شى چه څليريش ګهنټو كښې پنځه مونځونه فرض دى اوكله چه دوه مونځونه د يوطرف ته اوشميرلې شى او د دويم طرف نه هم دوه مونځونه اوشميرلې شى په پنځو مونځونو كښې هر مونځ وسطىٰ يعنى د مينځ مونځ جوړيږي. په دې وجه د دې په تعين او مصداق كښې څه مشكل دې.

**د مازيګر د مونځ مؤيد روايات:** ديخوا په احاديثو كښې چه اوكتلې شى نو د حضرت على رضي الله عنه په روايت كښې د مينځمى مونځ مصداق د مازيګرمونځ خودلې شوې دې. فصل ثانى كښې د ابن مسعود روايت كښې هم د دې مصداق مازګيرګرخولې شوې دې.

**د ماسپښين د مونځ مؤيد روايات:** بيا فصل ثالث كښې د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه په روايت كښې دليل سره داخودلې شوى دى چه د صلوة وسطىٰ مصداق د ماسپښين مونځ دې. [الكاشف: ۲/۲۲۳ اشعة المعات: ۳۲۶]

**د سحر د مونځ مؤيد روايات:** بيا دې نه پس د موطا امام مالك رحمه الله روايت دې چه د صلوة وسطىٰ مصداق د سحر مونځ دې. د روايا تو د دې اختلاف د وجې نه د فقهاؤ په نيز هم د صلوة وسطىٰ په تعين كښې اختلاف دې. كه لوئى واړه اقوال راجمع كړې شى نو د شلو شميرته رسيږي.

(۱) بخارى كتاب التفسيرباب {حافظوا على الصلوات والصلاة الوسطى} [البقرة: ۲۳۸](رقم-۴۵۳۳) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة،باب الدليل لمن قال الصلاة الوسطى هى صلاة العصر (رقم۲۰۵ - (۶۲۷)) وابوداودكتاب الصلاة،باب فى وقت صلاة العصر (رقم-۴۰۹) وابن ماجة كتاب الصلاة . باب المحافظة على صلاة العصر(رقم-۶۸۴) والنسائى كتاب الصلاة ،باب المحافظة على صلاة العصر(رقم-۴۷۳)

**د صلاة الوسطی د مونځ په مصداق کښې اقوال:**

① بعضې فقهاؤ دَ صلوة الوسطیٰ مصداق دَماسپښین مونځ ګرځولې دې
② بعضو دَسحرمونځ مصداق جوړ کړې دې.
③ بعضې دَمازیګر نو بعضودَ جمعې مونځ صلوة الوسطیٰ ګرځولې دې.
④ بعضې په کښې دَ تهجد مونځ دَدې مصداق جوړکړې دې. لیکن مشهور اقوال صرف درې دی.

**د صلاة وسطی په مصداق کښې دائمه اربعه مذاهب:**

① امام مالک رحمه الله امام شافعی رحمه الله دَسحرمونځ صلوة وسطیٰ ګرځولې دې.
② امام ابوحنیفه رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله دَمازیګرمونځ صلوة وسطیٰ ګرځولې دې.
③ دَ حضرت ابوسعید خدری اوحضرت زیدبن ثابت او حضرت عائشه رضی الله عنهم په نیزدَ صلوة وسطیٰ مصداق دَماسپښین مونځ دې.

**د اول فریق دلیل:**

① دَ فصل ثالث په حواله دَموطا دَحضرت علی او ابن عباس رضی الله عنهم روایت د دوی مستدل دې. په کوم کښې چه په واضحه توګه باندې ذکردی چه" صلوة الوسطی صلوة الصبح" دې.

**د اول فریق د دلیل جواب:** د دریم فریق دلیل مرفوع حدیث دې او د اول فریق مستدل آثارصحابه دی کوم چه دَمرفوع حدیث مقابله نه شی کولې.

**د دویم فریق دلائل:** حضرت ابوسعیدخدری رضی الله عنه اوحضرت زید بن ثابت رضی الله عنه او یوڅو نوروصحابه کرامو په خپل اجتهادی روایاتو باندې خپل مسلک قائم کړې دې کوم چه دَمشکاة حدیث نمبر(۶۳۶) اوحدیث نمبر(۶۳۷)کښې دی کوم چه هم دَدې حضراتو نه نقل دی.

**د دویم فریق د دلیل جواب:** د دوی مستدل دَ صحابه کرامو آثاردی کوم چه دَمرفوع حدیث په مقابله کښې نه شی پیش کولې. دغه صحابه کرامو ته کیدې شی چه دَ حضورپاک مرفوع حدیث نه وی رسیدلې په دې وجه هغوی په اجتهادکولوسره څو اقوال خپل کړی دی.

**د دریم فریق دلائل:** ① زیر بحث دَ حضرت علی رضی الله عنه مرفوع حدیث د دوی مستدل دې حدیث کښې پخپله نبی کریم صلوة الوسطیٰ تفسیر دَمازیګر مونځ سره کړې دې.(متفق علیه) کوم چه ډیرمضبوط دلیل دې.
② په فصل ثانی کښې دَحضرت ابن مسعود صریح حدیث هم دَدې حضراتو دلیل دې.

**د شوافع په نیز راجح قول:** علامه نووی رحمه الله فرمائی چه دَ احادیث صحیحه صریحه تقاضا داده چه صلوة الوسطیٰ نه دَمازیګرمونځ مراد دې اوهم دغه مختاردی. علامه ماوردی شافعی رحمه الله فرمائی چه امام شافعی رحمه الله سره دَدې چه صلوة وسطیٰ مصداق دَ

سحر مونځ ګرځولي دي مګر دَهغوی دا قول دي چه کله صحیح اوصریح حدیث راشي نو هم هغه به زما مذهب وی هم هغه اخلئی اوزما قول کوم چه دَهغې مخالف وی دیوال سره اووهئی. [الکاشف: ۲/۲۲۳اشعة المعات: ۳۲۶]

**دحدیث پس منظر:** غزوه خندق ته غزوه احزاب هم وائی. دا غزوه ۵هجری کښې پېښه شوې وه. په دې غزوه کښې دَمکې نه دَ ابوسفیان په مشرئی کښې دَټولو قبیلونه دولس زره مشرکان دَ مکې نه مدینې منورې باندې حمله کړې وه. دَحضورپاك په حکم سره خندقونه کنستلې شوې وو په دې وجه دې ته جنګ خندق وائی. دَ عربو ټولې قبیلې ډلې ډلې رایوځائی شوې وې. په دې وجه دا غزوه دَغزوه احزاب په نوم سره هم مشهوره ده. خندقونو سره خواؤشا کښې دَ څوکئی سخت انتظام وو. په دې وجه حضورپاك ته یوه ورځ دَ ماسپښین مازیګر اوماسخوتن دَمونځ فراغت ملاؤ نه شو. په کوم چه حضورپاك دَمازیګر دَمونځ فوت کیدو باندې خصوصاً دَ افسوس اظهار اوکړو اودکافرانو دَپاره ئې بددعا اوکړه. دَخندق په موقع باندې صحابه کرام درې زره وو. دَ ۲۸ ورځو دَمحاصره نه پس کافران شاته شو او اوتختیدل.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## ۶۳۴-د صلوة وسطی مصداق

۶۳۳-(۱)[۱۰] [۱] عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَسَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «صَلَاةُ الْوُسْطَى صَلَاةُ الْعَصْرِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابن مسعود رضی الله عنه اوسمره ابن جندب رضی الله عنه راویان دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [۲] مینځنی مونځ (چې په قرآن مجید کې وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰي مذکور دي) هغه د مازیګر مونځ دي. (ترمذي)

**تسهیلات:**

د ماقبل اودې حدیث تشریح یوه ده. د دې وجې د تکرار ضرورت نشته.

## ۶۳۵-د سحر د مانځه فضیلت

۶۳۵-(۲)[۱۱] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -، «عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: [۲] ﴿إِنَّ قُرْآنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُودًا﴾ [الإسراء: ۷۸] [۳] قَالَ: (تَشْهَدُهُ مَلَائِكَةُ اللَّيْلِ وَمَلَائِكَةُ النَّهَارِ)» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

(۱) اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صلاة الوسطی أنها العصر (رقم-۱۸۲)
(۲) اخرجه الترمذی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة بنی إسرائیل (رقم -۳۱۳۵) وابن ماجة کتاب الصلاة، باب وقت صلاة الفجر (رقم-۶۷۰)

**ترجمه:** [۱] ابوهريره ﷺ د نبي كريم ﷺ څخه نقل كوي چې حضور ﷺ د الله تعالى جل جلاله د قول: [۲] إِنَّ قُرْآنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُودًا يعنى د سحر مونځ د فرشتو د حاضريدو وخت دي، په تفسير كې فرمايي [۳] چې دسحر په لمانځه كې د ورځي او د شپې فرشتي حاضريږي (يعني جمع كيږي. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① مَشْهُودًا: أي: محضورًا: حاضريږي ورته.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## ۶۳۶–د ماسپخين په مونځ د صلاة وسطى اطلاق

۶۳۶–(۱)[۱۲] [۱] عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَعَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَا: [۲] الصَّلَاةُ الْوُسْطَى صَلَاةُ الظُّهْرِ. [۳] رَوَاهُ مَالِكٌ عَنْ زَيْدٍ، وَالتِّرْمِذِيُّ عَنْهُمَا تَعْلِيقًا.

**ترجمه:** [۱] زيد بن ثابت ﷺ او بي بي عائشه ﷺ دواړه فرمايي [۲] چې صلوة وسطي (يعني مينځني لمونځ) د ماسپښين مونځ دي [۳] دا روايت خو امام مالك يوازي د حضرت زيد ﷺ څخه روايت كړي دې او امام ترمذي رحمه الله د دواړو (يعني حضرت زيد ﷺ او بي بي عائشي ﷺ) څخه په طريق تعليق يعنى بلا سند روايت كړي.

**تسهيلات:**

**قوله: الصَّلَاةُ الْوُسْطَى صَلَاةُ الظُّهْرِ**

**د ماسپخين په مونځ د صلاة وسطى اطلاق:** دا حديث دهغه چا مستدل دي چې د هغوى په نيز د صلاة وسطى څخه مراد د ماسپخين مونځ دي. دا قول د زيد بن ثابت ﷺ دي.

## ۶۳۷–د درمياني مونځ د محافظت تاكيد

۶۳۷–(۲)[۱۳] [۱] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-، قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الظُّهْرَ بِالْهَاجِرَةِ، [۳] وَلَمْ يَكُنْ يُصَلِّي صَلَاةً أَشَدَّ عَلَى أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهَا.

**ترجمه:** [۱] زيد ابن ثابت ﷺ وايي [۲] چه نبي كريم ﷺ به د ماسپښين مونځ د وخته (يعني د نمر د زوال كيدو سره) كولو [۳] او د حضور ﷺ په صحابه وُ ﷺ باندې په هغه تولو لمونځونو كې چې هغوى به كول د ماسپښين د لمانځه څخه زيات سخت بل هيڅ مونځ نه وو.

[۱] فَنَزَلَتْ: ﴿حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى﴾ [البقرة: ۲۳۸]. [۲] وَقَالَ إِنَّ قَبْلَهَا صَلَاتَيْنِ، وَبَعْدَهَا صَلَاتَيْنِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

(۱) اخرجه مالک کتاب صلاة الجماعة ، باب الصلاة الوسطى (رقم-۲۷) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی صلاة الوسطى أنها العصر (رقم-۱۸۲)

(۲) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب فی وقت صلاة العصر (رقم-۴۱۱)

**ترجمه:** [۱] نو دا آيت نازل شو حَافِظُوْا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطٰى، يعنى تاسو د ټولو لمونځونو خصوصًا د درمياني (مينځني) لمونځ محافظت کوئ، [۲] او زيد ابن ثابت رضي الله عنه به فرمايل چې د ماسپښين د لمانځه څخه مخکې هم دوه لمونځونه ذي او وروسته هم دوه لمونځونه دي. (احمد، ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْهَاجِرَةُ: أَيْ شِدَّةُ الْحَرِّ بَعْدَ نِصْفِ النَّهَارِ: د غرمې په وخت سختې ګرمۍ ته وائى، دې ته هَجير هم وائى.

**تسهيلات:**

**د صلاة وسطى مصداق:** د دې څخه هم د مازيګر مونځ مراد دي. ځکه چې د هغې څخه وړاندې هم دوه مونځونه دى يعنى د صبا او د ماسپخين او د هغې نه روسته هم دوه مونځونه دى يعنى د ماښام او د ماخوستن

**۶۲۸ - د صبا په مونځ د صلاة وسطى اطلاق**

۶۳۸ - ( ) [۴] [۱] وَعَنْ مَالِكٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [۲] بَلَغَهُ أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ وَعَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ كَانَا يَقُولَانِ: [۳] الصَّلَاةُ الْوُسْطٰى صَلَاةُ الصُّبْحِ. رَوَاهُ فِي الْمُوَطَّإِ.

**ترجمه:** [۱] امام مالك رحمه الله فرمايي [۲] ما ته دا خبره رسيدلي ده چې حضرت علي رضي الله عنه ابن ابي طالب او ابن عباس رضي الله عنه دواړو به ويل [۳] چې د درمياني لمانځه څخه مراد د سحر مونځ دي. (مؤطا امام مالك)

۶۳۹ - ( ) [۵] [۱] (وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ عُمَرَ تَعْلِيقًا).

**ترجمه:** [۱] او دا روايت امام ترمذي رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنه او حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه په طريق تعليق يعنى بلا سند نقل کړي دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** الصَّلَاةُ الْوُسْطٰى صَلَاةُ الصُّبْحِ

**د صبا په مانځه باندې د وسطى د اطلاق وجه:** د سحر مونځ ته ئې وسطى په دې وجه اووئيل چې په دې کښې د خوب غلبه وى، او مشقت په کښې زيات وى، ليکن دا هم د احتمال په درجه کښې دى ځکه چې د دې باره کښې څه نص نه دې راغلې. (خير التوضيح (۱/ ۵۱۴)

(۱) اخرجه مالک كتاب صلاة الجماعة ، باب الصلاة الوسطى (رقم-۲۸) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صلاة الوسطى أنها العصر(رقم-۱۸۲)

(۲) اخرجه مالک كتاب صلاة الجماعة ، باب الصلاة الوسطى (رقم-۲۸) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صلاة الوسطى أنها العصر(رقم-۱۸۲)

## ٦٤٠ـ د صبا مانځه له تلونکی په لاس کښې د ايمان جنډا

٦٣٠ــ(١)[١٥] [١] وَعَنْ سَلْمَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [٢] ((مَنْ غَدَا إِلَى صَلَاةِ الصُّبْحِ غَدَا بِرَايَةِ الْإِيمَانِ، [٣] وَمَنْ غَدَا إِلَى السُّوقِ غَدَا بِرَايَةِ إِبْلِيسَ)). رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] حضرت سلمان رضی الله عنه وايي چه ما د نبي کريم ﷺ څخه اوريدلي دي [٢] چې کوم سړي د سحر د لمانځه د پاره ځي نو لکه چې هغه د ايمان د بيرغ اخستو سره ځي [٣] او کوم سړي چې سحر وختي بازار ته ځي نولکه چې هغه دشيطان بيرغ اخستي وي اوځي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① غَدَا: أَيْ: ذَهَبَ فِي الْغُدْوَةِ: يعنی دسحر په وخت کښې لاړشی. ② بِرَايَةِ: أَيْ: بِعَلَمِهِ وَلِوَائِهِ: خاص نښه او جهنډا.

**تسهيلات:**

**قوله:** بِرَايَةِ الْإِيمَانِ:

**د شيطانی او رحمانی لښکر سره تشبيه:** يعنی کوم سړی چه د سحرد مانځه د پاره د کور نه روانيږی لکه چه هغه د ايمان جهنډا اوچتولو سره اوځی اوکوم سړی چه د سحرمونځ کولونه بغيربازارته اوځی دې د پاره چه تجارت اوکړی نوهغه لکه چه د شيطان جهنډا اوچتولوسره اوځی. [اشعة المعات:٣٣٨]

**د تشبيه تعريف:** تمثيل تشبيه الهيئة المركبة بالهيئة المركبة نوم دې يعنی يوطرف ته د ډيرو څيزونو مجموعه اده په کوم سره چه يوهيئت اوپس منظر مخې ته راځی. دغه شان بل طرف ته د ډيرو څيزونو يوه مجموعه وی د هغې هم پس منظر دې د دغه دواړو پس منظرونو د يوبل سره د تشبيه نوم تمثيل دې.

**په زيربحث حديث کښې د تشبيه استعمال:** په دې زيربحث حديث کښې هم دغه کيفيت دې چه يوسړې کله د سحرمانځه له ځی نوهغه لکه چه جنګی جهنډا اوچته کړې د خپل خان په شان علمبردار لښکرسره ملاؤ شود خپل دښمن فوج د مقابله د پاره داسې روان دې ځکه چه مجاهد د خپلو دښمنانوطرف ته د جنګ د پاره اوځی اود اسلام په شوکت کښې زياتوالي کوی. بل طرف ته کوم سړې چه د مونځ نه بغير په غفلت سره د بازار طرف ته ځی هغه لکه چه د شيطان جهنډا اوچتولوسره د خپلو ملګرو بازارته رسيدلې دې اود شيطان په شوکت کښې زياتوالي کوی. ياد ساتئی کوم سړې چه د سحر مونځ کولونه پس بازارته ځی اوحلال رزق ګټی هغه د دې وعيدنه بهر دې ځکه چه هغه د يوجائزکار د پاره ځی.

---

[١] اخرجه ابن ماجة كتاب التجارات/ باب الأسواق ودخولها (رقم-٢٢٣٤)باب الأسواق ودخولها (رقم-٢٢٣٤)

# [۴/۲۲]بَابُ الْأَذَانِ

## د اذان باب

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة عشر حديثاً مشتملة على عشر مسائل:**

① الإيتار في الإقامة والتشفيع في الأذان: ۱، ۳.

②الترجيع في الأذان: ۲، ۴، ۵.

③ عدد كلمات الأذان والإقامة: ۴.

④كيفية الأذان تفصيلاً: ۲، ۵.

⑤ التثويب الشرعي: ۵، ۶، ۱۲.

⑥ الفرق بين الأذان والاقامة في الترسل والحدر: ۷.

⑦ كون الإقامة هي وظيفة المؤذن: ۸.

⑧ إبتداء مشروعية الأذان: ۱، ۹، ۱۰.

⑨ النداء لإيقاظ النائم: ۱۳.

⑩ جعل الأصبعين في الأذنين عند الأذان: ۱۳.

**د اذان د مشروعيت ثبوت د قرآن نه:** ① قال الله تعالى ﴿وَإِذَا نَادَيْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ﴾ [سورة التوبة: ۲]

② وقال الله تعالى ﴿يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا إِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ [سورة الجمعة: ۱۰]

**دَاذان لغوی معنی:** په لغت کښې اذان دَ اعلام او اعلان په معنی کښې دې يعنی خبر ورکول او خبرول. اذان دَ باب تفعيل مصدر دې چه دَفعال په وزن باندې راغلې دې اودَ باب تفعيل نه داسې مصدر راځی لکه "كذبوا بآياتنا كذاباً وسلموا تسليماً وسلاماً".

**د اذان اصطلاحی تعريف:** او په شرعی اصطلاح کښې "هو اعلام بدخول وقت الصلوة بذكر مخصوص في وقت مخصوص" يعنی مخصوص وختونو کښې يوځو مخصوص الفاظو سره دَمونځ دَوخت په راتلو سره خبر ورکولو نوم اذان دې.

**د اذان د شروع په باره کښې دوه قسمه روايات:**

①ددې باب داحاديثو نه داخبره واضحه ده.چه دآذان مشروعيت په مدينه منوره کښې شوې دې لکه چه دجمهورو محدثينو او مؤرخينو په دې خبره اتفاق دې.

②البته حافظ ابن حجر رحمه الله دطبراني او دابن مردویه په حواله سره بعضې روایات نقل کړې دی.چه دهغې حاصل دادې چه دآذان تعلیم په مکه معظمه کښې شوې دې اوچه کله دوئ معراج ته تشریف یوړو نو هلته حضرت جبرئیل علیه السلام دوئ ته اذان اوښودلو.او دوئ ملائکه په آذان کولو لیدلې دې.

**د دواړه قسمه روایاتو په مینځ کښې تطبیق:** که دا تحقیق اومنلې شي نو علامه سهیلی په روض الانف کښې دا تطبیق کړې دې.چه لیلة الاسراء کښې دوی ته اذان صرف اورولې شوې وو.حکم نه وو کړې شوې او چه کله حضرت عبدالله بن زید رضي الله عنه ته دخوب په ذریعه دآذان تعلیم ورکړې شو.نو دغه وخت دوئ ته دا کلمات یاد شو.چه کوم ئې لیلة الاسراء کښې دملائکو څخه اوریدلې وو.لکه چه دوئ بلاتامل ارشاد اوکړو.((ان هذه لرؤيا حق)) بهر حال داذان ابتداء په مدینه منوره کښې اوشوله.

**د اذان دمشروعیت په کال کښې دوه اقوال:** بیا اختلاف دې چه دهجرت په کوم کال اذان ښودلې شوې وو.

① حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د اذان دتعلیم واقعه په دویم کال د هجرت راپیښه شوې ده.

② دعلامه عینی رحمه الله خیال دې چه سنه ۱ هـ کښې ولکل وجهة دامام بخاری رحمه الله د صنیع نه هم دا معلومیږی چه دآذان مشروعیت دهجرت نه فوراً پس شوې وو.څکه دوی دقرآنی آیت ((يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ)) [1] نه استدلال کړې دې.څکه چه جمعه دهجرت نه فوراً پس فرض شوې وو.

**په مکه کښې د اذان عدم مشروعیت:** په مکه مکرمه کښې حضورپاك معراج ته لاړو او په شپه دَ معراج کښې الله تعالی په مسلمانانو باندې مونځونه فرض کړل. په مکه مکرمه کښې خو په ښکاره دَ اسلام په احکاماتو باندې عمل نه شو کیدې په دې وجه دَ هغه مونځونودَ پاره دَ اذان انتظام اونه کړې شو. چونکه دا ورځې دَمکی دور آخری ورځې هم وې په دې وجه دَ مدینې منورې طرف ته دَ هجرت په رڼاکښې کیدې شی دَ اذان انتظام اونه کړې شو.

**په مدینه کښې د اذان د شروع کولو په مشوره کښې مختلف تجاویز:** کله چه حضورپاك دَمدینې منورې طرف ته هجرت اوکړو نودَ هجرت په اول کال حضورپاك صحابه کرامو سره په دې خبره باندې مشوره اوکړه چه دَ مونځونودَ جمع دَ راغوښتلو اودَمسلمانانودَ رایوځائی کولوڅه انتظام اوکړې شی نوپه دې موقع باندې څو رائې مخې ته شوې.

---

[1] سورة جمعه آیت نمبر۹ مدنی ۱۲_

① چه کله دَ مانځه وخت شی نو په محله کښې به یوه جهنډا اوچتولې شی چه دَهغې په کتو سره به خلق دَ جمع دَ مونځ دَپاره جمات ته راځی دا رائې خوښه نه کړې شوه ځکه چه دا اعلان هر سړی ته رسول ممکن نه وو. هرسړي ته جهنډا خودل څه آسان کار نه وو.

② دَ مانځه په وخت کښې به اور بلولې شی حضورپاك دا رد کړل او وئی فرمائیل چه په دې کښې خومجوسیانوسره مشابهت دې.

③ دَ ښکر او بګل غږولو مشوره ورکړې شوه حضورپاك داهم رد کړه چه داخودَ یهودیانودَعبادت طریقه ده.

④ د جرس اوټلئی غږولو مشوره ورکړې شوه حضورپاك داهم ردکړه چه دا خودَ نصاریٰ دَعبادت طریقه ده. آخر مجلس ختم شو او څه فیصله اونه شوه. په وقتی توګه په دې خبره اتفاق اوشو چه دَمونځ په وخت به یو سړې په زوره چغه وهی وائی به "الصلوة جامعة" په دې باندې به خلق مانځه له راځی.

**د مشورې مقام:** وئیلی شی چه دَدې مشوره حضرت عمر ﷺ ورکړې وه. یادلرئی چه دَهجرت نه پس په اول هجری کښې مسجدنبوی قائم شوې وو اوهم په دې اول هجری کښې دَاذان مشروعیت هم شوې. اذان سره دَدې چه دَ یو لوئی عبادت دَپاره اعلان دې مګر داپخپله هم په شعائراسلام کښې شمیرلې کیږی او په دې کښې په ډیر جامعیت سره دَ اسلام مهمات راجمع کړې شوی دی. دَالله تعالی لوئی اوعظمت په دې کښې درج دې اودَ توحید عظیم درس په دې کښې موجود دې. دکامیابئی او خلاصی دعوت په دې کښې ښکاره دې اودَ آخرت دَ تیارئی پوره انتظام دې سره تړلې دې. په دې شرط چه په اذان کښې دَدې دَ روح پوره خیال اوساتلې شی صرف په رسم دَاذان سره به څه حاصل شی.

**دعبدالله بن زید بن عبد ربه رضی الله عنه خوب لیدل:** الغرض رسول الله ﷺ سره په دغه مجلس کښې یومخلص صحابی ووَ چانوم چه عبد الله بن زیدبن عبدربه ووهغه سره ډیرزیات فکر ووچه حضورپاك دَخلقو په راجمع کولوباره کښې ډیرزیات فکرمند دې. اوهغوی ته یوقسم پریشانی اوغم مخې ته وو چخ داځنګه لرې کړې شی. په دې فکرکښې هغه اوده شو. هغه په خوب کښې یوښکلې انسان اولیدلو چه هغه جرس اوچت کړې وو. دَدې صحابی بیان دې چه ماهغه سړی ته اووئیل چه اې دَ خدائی بنده دا جرس خرڅوې نه؟ هغه جواب راکړو چه ته داواخلې نوڅه به کوې؟ ماورته عرض اوکړو دَدې په کړنګولوسره به خلق دَ مانځه دَ پاره راغواړو. هغه وئیل زه تاته دَدې نه ښه اوبهترڅیزاونه ښایم؟ماعرض اوکړو خامخااوښایه. هغه وئیل داسې وایه. دې وئیلوسره هغه دَ قبلې طرف ته مخ کړو په غوږونوکښې ګوتې ورکړې اومکمل اذان ئی اوکړو. دَصحابی بیان دې چه زه سحروختی دَحضورپاك خواته راغلم اوټوله قصه مې ورته واؤروله. حضورپاك اوفرمائیل چه انشاء الله

دا رښتوني خوب دي ته دا کلمات وښيلو سره بلال ﷺ ته واؤروه دَهغه آواز اوچت دي. هغه به دَدې کلماتو په ذريعه سره اذان ورکوی.

**دحضرت عمر رضي الله عنه خوب ليدل:** حضرت بلال ﷺ چه کله اذان ورکړو نوحضرت عمر ﷺ لنګ راښکلوسره حضور پاك له راغلواو وئې فرمائيل يارسول الله! په الله قسم چه ما په خوب کښې هم دغه کلمې کتلې دی. حضورپاك اوفرمائيل الحمد لله يعنی حضورپاك په دې باندې دَ الله تعالی شکراداکړو. بعضې رواياتو کښې دی چه عبدالله بن زيد ﷺ اوفرمائيل چه ما کله داخوب اوليدلو نو هغه وخت زه نه بالکل اوده شوې ووم اونه بالکل بيدار ووم بلکه دَ پرکالی په حالت کښې ووم. په يوروايت کښې هغوی اوفرمائيل که چرې دَخلقو دَ بدګمانئی ويره نه وې نوما به په ښکاره سره وئيلی وو چه هغه وخت زه بالکل بيدار ووم.

**د غيرنبی د خوب حکم:** دلته يوه مسئله داده.چه بعضې جاهل صوفياءُ داحديث په خوبونو داولياء حجت کيدو دپاره بطور استدلال راوړې دې ځکه چه دوئ او فرمائيل ((ان هذه لرؤيا حق)) خو استدلال بالکل باطل دې.

ځکه داذان مشروعيت ځمونږ دپاره په خوب نه دې بلکه دحضرت نبی کريم ﷺ په تصديق دې او ددې کلماتو په تقريردې چه دوی دبيدارئ په حالت کښې ددې کلماتو حکم اوکړی او داخوب ئې رښتوني اوګرځولونو که دوی ددې خوب تصديق او ددې مطابق دعمل کولو حکم ئې نه وې ورکړې نو په دې عمل نه کيدو.په هرحال ددوی نه پس ديوخوب درښتونوالې علم په يقينی طور سره نه شی کيدې دې وجې نه خوب په دين کښې حجت نه دې او په خپله دوی هم دحضرت عبدالله بن زيد دخوب تصديق ځکه اوکړو.چه دوی ته په ليلة الاسراء کښې د ملائکو نه اوريدلې شوې کلمات يادشول.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### ٦٤١ـــد اذان شروع

٦٤١ـــ(١)[١] ١ «عَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-، قَالَ: ٢ ذَكَرُوا النَّارَ وَالنَّاقُوسَ، فَذَكَرُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى، ٣ فَأُمِرَ بِلَالٌ أَنْ يَشْفَعَ الْأَذَانَ، ٤ وَأَنْ يُوتِرَ الْإِقَامَةَ. ٥ قَالَ إِسْمَاعِيلُ: فَذَكَرْتُهُ لِأَيُّوبَ فَقَالَ: إِلَّا الْإِقَامَةَ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** ١ حضرت انس ﷺ فرمايي ٢ چه صحابه و ﷺ (د اذان د مشروعيت څخه مخکې د لمانځه د وخت د اعلان کولو په سلسله کې) د اور او د ناقوس ذکر اوکړو، نو بعضو د

(١) اخرجه البخاری کتاب الأذان باب بدء الأذان(رقم-۶۰۳)ومسلم کتاب الصلوة باب الأمر بشفع الأذان وإيتار الإقامة(رقم) ۲ - (۳۷۸) ابوداود کتاب الصلوة باب فی الإقامة (رقم-۵۰۸) وابن ماجة کتاب الأذان. والسنة فيه . باب إفراد الإقامة (رقم-۷۲۹) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی إفراد الإقامة (رقم-۱۹۳)

یهودو اونصاراي ذکر وکړو (چې د هغوی سره مشابهت راځي) [۳] بیا رسول الله ﷺ حضرت بلال رضی الله عنه ته حکم ورکړو چې د اذان کلمات جفت اووائي (یعني د اذان په شروع کې دې الله اکبر څلور ځله اووائي او باقي کلمات سوا د آخري کلمې لااله الا الله چې یو ځل ویلي شي هغه دې دوه دوه ځله اووائي) [۴] او د تکبیر کلمات دې سوا (د الله اکبر څخه) یو یو ځل اووائي [۵] شیخ اسمعیل رحمه الله (چې د دې حدیث یو راوي دي او د بخاري رحمه الله او مسلم رحمه الله استاد دي) فرمايي چه ما د دې حدیث ذکر ایوب ته (چې د دې حدیث راوي دي او هغه حضرت انس رضی الله عنه لیدلي دي) وکړو نو هغه وفرمایل چې لفظ قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوۃ دوه ځله ویل پکار دي. (یعني د تکبیر په اول او آخر کښې د الله اکبر څخه علاوه باقي کلمات یو یو ځل او لفظ د قد قامت الصلاه دوه ځل دې) (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① النَّاقُوسَ: وَهُوَ خَشَبَةٌ طَوِيلَةٌ يَضْرِبُهَا النَّصَارَى بِأُخْرَى أَقْصَرَ مِنْهَا لِلإِعْلَامِ بِوَقْتِ الصَّلَاةِ: د لرګی نه جوړه شوې یوه باجه ده چه نصاراو به دخپل عبادت په وخت کښې د اعلان دپاره استعمالوله. بیګل ورته وائی. ② يَشْفَعَ: أَيْ: يَقُولَ كُلَّ كَلِمَةٍ مَرَّتَيْنِ سِوَى آخِرِهَا: د اذان هره جمله دوه دوه ځله ویلو ته شفع وائی یعنی مکرر ویل. ③ يُوتِرَ: أَيْ: يَقُولَ كَلِمَاتِ الإِقَامَةِ مَرَّةً مَرَّةً سِوَى التَّكْبِيرِ فِي أَوَّلِهَا وَآخِرِهَا: د اقامت کلمات یو یو ځل ویلو ته وتر وائی.

**تسهیلات:**

**قوله:** "أَنْ يَشْفَعَ الأَذَانَ":

### د اذان د کلماتو په تعداد کښې مذاهب:

① د شوافعو په نیز د اذان کلمات نورلس دی. په دې کښې څلورځل "اشهد ان لااله الا الله" دې او څلور ځل "اشهد ان محمد رسول الله" دې لکه چه په دې کښې اته ځل شهادتین دی. بل په دې کښې څلورځل "الله اکبر الله اکبر" دې او څلورځل "حی علی الصلوۃ" او "حی علی الفلاح" دې. داټول شپاړلس کلمات دی اودوه ځل په آخره کښې "الله اکبر" دې اوآخره کښې "لااله الاالله" دې داټول نورلس کلمات دی.

دَ شوافع په نیز په اذان کښې چه کومه دَ ترجیع مسئله ده هغه هم دغه ده چه شهادتین څلور څلور ځل وائی یوځل په زوره او یوځل په مزه اوهم دَدې نوم ترجیع دې اوعام شارحین چه دَ فقهاؤ کوم اختلاف نقل کوی نوهغوی هم دغه وائی چه شوافع دَ "ترجیع فی الاذان" قائل دی دَدې مطلب هم دغه دې چه دَهغوی په نیزدَ اذان کلمات نورلس دی.

② د مالکیانو په نیز د اذان کلمات اوولس دی. دَ یوقول مطابق اوولس دی او دَ بل قول مطابق دیارلس کلمات دی. اوولس کلمات داسې دی چه په شروع کښې دوه ځل الله اکبر دې او بیا اته ځل شهادتین او څلورځل حیعلتین او دوه ځل تکبیر دې اوبیا لااله الاالله دې.

دَ امام مالك رحمه الله نه دَ اذان دويم قول كوم چه دَ ديارلس كلماتودي هغه داسې دي چه الله اكبردوه ځل شهادتين څلورځل حيعلتين څلورځل دی او په آخره كښې دوه ځل الله اكبر اوبيا لااله الاالله دي.

③ د احنافو په نيز د اذان كلمات پنځلس دي. څلورځل تكبيرات دی څلورځل شهادتين اوڅلورځل حيعلتين دی اوآخره كښې دوه ځل الله اكبر او بيا لااله الاالله دي.

[اشعة المعات: ۳۲۹ الكاشف: ۲۲۸/۲]

**نوټ:** دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيزدَ اذان دا ټولې طريقې او ټول قسمونه دَ نبی كريم ﷺ نه ثابت دی دا اختلاف فی المباح دي. چاچه كوم يواوونيل جائز دي. په موقع اومحل باندې په هريو باندې عمل كيدې شی. بهرحال كلمات اذان او طريقه دَ اذان كښې دَ چه دَ فقهاؤ كوم ا ختلاف دي دَجواز اوعدم جواز اختلاف نه دي.

**داول فريق دلائل:** ① د مشكوة باب الاذان كښې دَ اول فصل دويم حديث د دوی مستدل دي كوم چه د حضرت ابومحذوره رضی الله عنه تفصيلی روايت دي.

② دَ مشكوة باب الاذان فصل ثانی دويم حديث هم د دوی مستدل دي. دا حديث هم دَ ابومحذوره رضی الله عنه نه نقل دی.

③ دَ مشكوة باب الاذان فصل ثانی دريم حديث هم د دوی مستدل دي. دا حديث هم دَ ابومحذوره رضی الله عنه نه نقل دی.

**داول فريق د درې واړه دلائلو مجموعی طور دوه جوابونه:** ① علامه ابن قدامه حنبلی رحمه الله په المغنی كښې فرمائی. دكوم حاصل چې دا دې حضرت ابومحذوره رضی الله عنه دغه وخت ماشوم وو.اوكافر وو.طائف نه د حضرت نبی كريم ﷺ په واپسئ كښې ددوئ دكلی سره نزدې د مسلمانانو پړاؤ وو.هلته مسلمانانو اذان اوكړو.نو حضرت ابومحذوره رضی الله عنه او دده ملګرو د ټوقو په طور د اذان نقل كولو.حضرت نبی كريم ﷺ دوئ راوبلل او ټپوس ئې ترې اوكړو.تاسو كښې اوچت آواز دكوم يو وو.معلومه شوله چه د حضرت ابومحذوره رضی الله عنه وو.دوئ حضرت ابومحذوره رضی الله عنه اوچت اوخوش اواز بياموندلو نو دده په سرئې لاس راښكلو دده زړه ته ايمان كوز شو.په دې موقع دوئ مشرف په اسلام كړو.او دينه پس ئې ورته داذان تعليم وركړو.دې وجې نه دړومبی شهادتينومقصد دده لره مسلمانول وو.او دويم ځل شهادتين دتعليم داذان په طور وو.بياچه كله نبی كريم ﷺ دې په مكه معظمه كښې مؤذن مقرركړو.نو ده په خپله په اذان كښې ترجيع شامل كړله.او څلور ځله شهادتين ئې باقی اوساتل.څكه چه ددې په وجې ده ته د ايمان دولت نصيب شوې وو ددې واقعه دیادساتلو دپاره ده ترجيع باقی اوساتله خو داددوئ خصوصيت وو.عام حكم نه وو.د دې دليل دادې چه ددې واقعه نه پس هم دوئ دحضرت بلال رضی الله عنه په اذان كښې څه

تغير اونه کړو.بلکه دا ثابته ده.چه حضرت بلال رضی الله عنه ترآخره پورې بلاترجيع اذان ورکولو.لکه چه دسويد بن عفله رضی الله عنه په روايت کښې تيرشو لکه چې د ابن قدامه دجواب حاصل دا دې.چه ترجيع د ابومحذوره رضی الله عنه خصوصيت وو.

② خو په مجموع رواياتو باندې دغور کولو نه پس دحضرت شاوه ولی الله صاحب رحمه الله توجيه او تحقيق زيات راجح معلوميږی.((ان الاختلاف فی کلمات الاذان کالاختلاف فی احرف القرآن کلها شاف)) يعنی په حقيقت کښې داذان ټولې صيغ دشروع نه منزل من الله تعالی وې.دحضرت بلال رضی الله عنه په اذان کښې ترجيع نه وه.خو دحضرت ابومحذوره رضی الله عنه په آذان کښې وه.ددې خبرې تائيد ددې نه هم کيږی.چه دحضرت سعدالقرظ رضی الله عنه مؤذن قباآذان په ترجيع مشتمل وو.(١)

((فدل علی انه لم يکن مخصوصًا بأبی محذورة)) او دحضرت سعدالقرظ رضی الله عنه خوی به دحضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنه په خلافت کښې بغير دترجيع آذان ورکولو.(٢)

**د دويم فريق دلائل:** ① په ترمذی کښې دحضرت انس رضی الله عنه روايت د دوی مستدل د.د کوم الفاظ چې دا دی. ((امر بلال ان يشفع الاذان ويوتر الاقامة)) دشفع معنی يوه کلمه دوه خله وئيل دی.او تکبير هم دې کښې داخل دې.

② په ترمذی کښې ((باب ماجاء فی ان الاقامة مثنی مثنی)) کښې دحضرت عبدالله بن زيد رضی الله عنه روايت هم ددې مستدل دې ((قال کان اذان رسول الله صلی الله عليه وسلم شفعًا شفعًا فی الاذان والاقامة))

**د دويم فريق د دلائل جواب:** د دوی دواړه دلائل دهغه صحيح احاديثو مقابله نشی کولی کوموکښې چې صراحةً تکبير څلور خله دې لکه چه دحضرت ابو محذور رضی الله عنه ، حضرت بلال رضی الله عنه ، حضرت عبدالله بن زيد رضی الله عنه ، او دحضرت سعدالقرظ رضی الله عنه آذان په دې رواياتو کښې اذان حرفًا حرفًا مروی دې.او دې ټولو کښې تکبيرڅلور خله راغلې دې.دا روايات ابوداؤد او ابن ماجه وغيره کښې شته په دې وجه د شفع آذان مطلب شهادتين او حيعلتين کښې شفع کول دی.خو چونکه الله اکبر دوه خله په يوه ساه کښې اداء کيږی.د دې وجې دوه تکبيرونه اوڅلورتکبيرونه شفع اوګرځولې شوه.ګويا دې خبرې ته اشاره مقصود ده.چه څلور تکبيرونه په يوساه اداء شی.

**د دريم فريق دلائل:** ① باب الاذان کښې دويم فصل حديث د دوی مستدل دې کوم چه عبدالله بن زيد بن عبدربه رضی الله عنه روايت دې چه دَ تسهيلات شرح مشکوة په ترتيب کښې حديث نمبر(۲۵۰) دې. په هغه روايت کښې په واضحه الفاظو پنځلس کلماتو ذکربنکاره

(١) سنن دارقطنی ۲۳۶\۱۱ باب ذکرسعدالقرظ_
(٢) انظرمصنف عبدالرزاق ۴۵۹\۲_

موجود دي. کوم چې دَ اذان دپاره اصل اوبنیاد هم دي.
④ دَحضرت بلال رضي الله عنه دټول عمر هغه اذانونه د دوی مستدلات دی چه هغوی دَ نبی کریم په حکم سره دَ حضورپاك او ټولو صحابه کرامو په موجودګئی کښې مدینه منوره کښې کړی دی. په کوم کښې چه دَ ترجیع نوم او نښه پورې نشته دې.
③ دَ حضرت عبدالله ابن ام مکتوم اذانونه هم د دوی مستدلات دی په کومو کښې چه چرته هم ترجیع نشته دې.
④ دَ زیاد بن حارث صدائی رضي الله عنه اذانونه د دوی مستدلات دی په هغې کښې په یوکښې هم د ترجیع نشته حالانکه دا دریواړه حضرات دَ حضورپاك په مخکښې اذانونه ورکول.
⑤ هغه ټول روایاتو هم د دوی مستدلات دی په کومو کښې چه "الاذان مثنی مثنی" الفاظ راغلی دی. ښکاره خبره ده چه کله دوه دوه کلمات دی نودَ څلورو څلورو نفی اوشوه دا یوجزوی دلیل دې چه دَ مدعا یوجزء ثابتوی.
**قوله**: "وَأَنْ يُوتِرَ الْإِقَامَةَ" اقامت دَ حاضرینو اذان دې په دې کښې دومره آواز اوچتول پکاردی چه په جمات کښې دننه خلق ئې واؤری او په جمع کښې شریك دی.

**د اقامت د کلماتو په تعداد کښې مذاهب:**

دَاذان دکلماتو دَ اختلاف په شان دَاقامت دَ کلماتو په تعداد کښې هم دَ فقهاؤ اختلاف دې.
① دَ امام شافعی رحمه الله اوامام احمد رحمه الله په نیز دَ اقامت په کلماتوکښې ایتاردې یعنی داکلمات جفت نه دی بلکه طاق دی یعنی "الله اکبر الله اکبر اشهد ان لااله الا الله اشهد ان محمد رسول الله حی علی الصلاة حی علی الفلاح قد قامت الصلوة قد قامت الصلوة الله اکبر الله اکبر لا اله الا الله"
داټول یولس کلمات دی.
② دَ امام مالك رحمه الله په نیز "قد قامت الصلوة" هم یوځل دې نوټول لس کلمات شو.
③ احناف فرمائی چه اقامت او اذان کښې هیڅ فرق نشته دې ټول کلمات دَ احنافو په نیز اوولس دی نودَ اقامت په مسئله کښې جمهور یوطرف ته او احناف بل طرف ته دی.
**داول فریق دلیل**: اول فریق دَاقامت په ایتار او طاق کیدو باندې دَاحادیثو دَدې الفاظونه استدلال کړې دې په کوم کښې چه "ان یوتر الاقامة" الفاظ راغلی دی اوزیر بحث دَحضرت انس حدیث کښې هم دا الفاظ موجود دی.

**داول فریق د دلیل دوه جوابونه:**

① که دَدې جملې هم دغه مطلب دې کوم چه جمهورو اخستې دې نودا دَ بیان جواز دَپاره دې چه په اقامت کښې ایتارهم جائز دې کله کله داسې هم شوی دی.
② دَاقامت کولو طریقه ئې خودلې ده چه اذان کولوکښې "تَرَسُّل تَمَهُّل" دې چه په مزه مزه

باندې اوونيلې شي او په ولاړه ولاړه ادا کړې شي او هم په دې باندې "ان يشفع الاذان" الفاظ دلالت کوي او په اقامت کښې انحدار او حدر دې چه زر زر يوه يوه کلمه په يوساکښې اوونيلې شي او هم په دې "وان يوتر الاقامة" الفاظ دليل دې. که دَ ونيلو انداز او طريقه خودل مراد نه دی نوبيا شفع خو جفت ته وائي يعني دوه دوه کلمې وی حالانکه جمهور دَ څلور وکلماتو ونيلو قائل دی چه تکبيرات دې څلور وی شهادتين څلور څلور وی نو په شفعه باندې چرته عمل اوشو؟ اوکه چرې دَ "ان يشفع الاذان" نه دَپوره اذان شفعه مراد ده نوآيا په دويم ځل به اذان ورکولې کيږی دې دَپاره چه شفعه متحقق شي؟ معلومه شوه چه "ايتار الالفاظ" مراد نه دی بلکه ايتار صوت مراد دې او "وان يوتر الاقامة" کښې دَ ايتار معنی چرته دا ده چه يويو ځل دې ونيلی شي نوبيا هم داشان ونيل پکاردی حالانکه جمهور "قدقامت الصلوة" دوه ځل او په اول او آخر کښې تکبير هم دوه دوه ځل ادا کولو فتویٰ ورکوی. که چرې په ايتار باندې عمل کول دی نوبيا ټول کلمات يويو ځل اداکونی چه په ټولو اتو کلماتو باندې عمل اوشی.

نواصل حقيقت دادې چه په حديث کښې دَ اذن او اقامت دَ ونيلو کيفيت بيان کړې شوې دې. دَ جفت اوطاق خبره نشته دې بلکه دَکلماتو دَ اداکولو کيفيت ئې خودلې دې. دَ "تَرَسُّل وَتَحَدُّر" خبره ئې بيان کړې ده په کوم باندې چه دَ حديث "ان يشفع الاذان" او "ان يوتر الاقامة" الفاظ دليل دې. اوراتلونکې دَحضرت جابر رضی الله عنه حديث نمبر (۳۷) کښې په واضحه توګه حضورپاك حضرت بلال رضی الله عنه ته دَترسل اوتحدر حکم ورکړې دې کوم چه دَدې توجيه تائيد کوی.

**د دويم فريق دلائل:**

① دَحضرت عبدالله بن زيد انصاری رضی الله عنه صاحب اذان روايت دې په کوم کښې چه "وکذا الاقامة" الفاظ راغلی دی اومشکوة ص ۶۴ باندې موجود دی يعنی دَ اذان په شان اقامت هم دې او "قدقامت الصلوة" دوه ځل کيدل خو په اقامت کښې مسلم دی. لهذا دَ اقامت ټول اوولس کلمات دَحديث نه ثابت شو.

② دَ حضرت ابومحذوره رضی الله عنه روايت هم د دوی مستدل دې کوم چه مشکوة ص ۶۳ باندې موجوددې په کوم کښې چه داالفاظ راغلی دی "والاقامة سبع عشرة کلمة" دا ډير واضحه دليل دې.

③ دَ حضرت ثوبان رضی الله عنه روايت دې

④ دَحضرت سلمه بن اکوع روايت دې

⑤ دَحضرت علی رضی الله عنه روايت دې.

**طريقه داستدلال:** دَدې حضراتو په ټولو روايتونوکښې دا الفاظ راغلی دی "الاذان مثنی مثنی

والاقامة مثنی مثنی" دَ استدلال طرز داسې دې چه کله اقامت دوه دوه ځل دې نو ایتار چرته دې؟

**دَ اذان په حکم کښې مذاهب:**

① بعضې احنافو لکه ابن الهمام اذان ته واجب وئیلی دی چه پنځه وخته مونځونودَپاره اذان کول واجب دی.

② دَ جمهورو فقهاؤ راجح مسلك دادې چه دَ پنځووختونودَ مونځونودَپاره اذان کول سنت دی. دَ احنافو دَ اکثرو فقهاؤ هم دغه فتویٰ ده. او

**د اول فریق دلیل:** دې حضراتو دَ امام محمد رحمه الله دَ یوې فتویٰ نه استدلال کړې دې چه امام محمد رحمه الله فرمائی چه کوم قوم اذان پریږدی په حکومت وخت باندې لازم دی چه دغه خلقو سره جنګ اوکړی. دَدې فتویٰ نه بعضې حضراتو دا مسئله اخذ کړې ده چه اذان واجب دې نوځکه خو دَدې په پریخودو باندې دَ جهاد اوقتال حکم دې.

**د دلیل تضعیف:** دا دلیل مکمل نه دې ځکه چه اذان دَسنت کیدوسره سره دَ اسلام دَ شان او شوکت یوه نښانی هم ده اودَ شعائر اسلام نه دې اودَحکومت ذمه واری ده چه هغه دې دَ شعائراسلام حفاظت اوکړی. دا جنګ دَ شعائراسلام دَ حفاظت په بنیاد باندې دې دَ وجوب اذان په بنیاد باندې نه دې.

**۶۴۲—دَاذان کلمات اوطریقه**

۶۴۲—(۱)[۲] ۱ وَعَنْ أَبِي مَحْذُورَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ -، قَالَ: ۲ «أَلْقَى عَلَيَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التَّأْذِينَ هُوَ بِنَفْسِهِ. ۳ فَقَالَ: "قُلِ: اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ، ۴ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، ۵ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابو محذوره رضی الله عنه راوي دي ۲ چې حضور صلی الله علیه وسلم ماته پخپله (بغیر د څه واسطي نه) اذان ښودلي دي ۳ حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل وایه الله ډیر لوي دي، الله ډیر لوي دي الله ډیر لوي دي الله ډیر لوي دي (څلور ځله) ۴ زه ګواهي ورکوم (یعني پوهیږم او بیان کوم) چې د الله څخه سوا بل معبود نشته زه ګواهي ورکوم چې د الله څخه سوا بل معبود نشته ۵ زه ګواهي ورکوم چې محمد صلی الله علیه وسلم د الله رسول دي زه ګواهي ورکوم چې محمد صلی الله علیه وسلم د الله رسول دي

۱ ثُمَّ تَعُودُ فَتَقُولُ: ۲ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، ۳ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ. ۴ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، ۵ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ. ۶ اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ. لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ)». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

(۱) اخرجه مسلم کتاب الصلوة باب صفة الأذان (رقم) ۶ - (۳۷۹) وابوداود کتاب الصلوة باب کیف الأذان (رقم-۵۰۳) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها باب الاستعاذة فی الصلاة (رقم-۸۰۷)

**ترجمه:** [۱] بیا یې وفرمایل دوباره اووایه[۲] زه ګواهي ورکوم چې د الله څخه سوا بل معبود نشته، زه ګواهي ورکوم چې د الله څخه سوا بل معبود نشته[۳] زه ګواهي ورکوم چې محمد ﷺ د الله رسول دي، زه ګواهي ورکوم چې محمد ﷺ د الله رسول دي[۴] د لمانځه طرف ته راشئ د لمانځه طرف ته راشئ[۵] د فلاح (خلاصي) طرف ته راشئ د فلاح (خلاصي) طرف ته راشئ[۶] الله ډیر لوي دي، الله ډیر لوي دي، د الله څخه سوا بل معبود نشته (مسلم)

**حل اللغات:** ① أَلْقَى: أَيْ: أَمْلَى: يعنی د اذان کلمات ئې اوښودل. ② التَّأْذِينَ: اذان کول ③ تَعُودَ: راګرځول به ئې، دوباره کول به ئې، دې ته ترجیع هم وائي.

**تسهیلات: قوله:** قُلِ: اَللّٰهُ أَكْبَرُ، اَللّٰهُ أَكْبَرُ.

**د الله اکبر وضاحت:** دا دَ اسم تفضیل صیغه نه ده بلکه دَ صفت مشبه صیغه ده دکوم ترجمه چه دا ده الله تعالی ډیر لوئی دې که چرې اسم تفضیل شی نومعنی به داشی الله تعالی دَټولو لویونه لوئی دې په کوم کښې چه دا نقصان دې چه دَ توحید په موقع باندې الله تعالی سره نور هم لوئی تسلیم کړې شو کوم چه دَ وحدانیت نه منافی دی. څلور ځل الله اکبر وئیلو نه دا اشاره مقصودده چه دَالله تعالی عظمت او لوئی څلورو واړو طرفو کښې جاری اوساری دې.

**قوله:** حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ:

**د حي على الفلاح وضاحت:** دَ دین اودنیا کامیابی اودَهرمصیبت نه دَ حفاظت نوم "فلاح" دې په دې کښې ټولې ښیګړې راغلې اودَ ټولو بدونه دَ خلاصی ضمانت ورکړې شو دا مسنون اومنقول جمله ده کومه چه نبی کریم ﷺ امت ته خودلې ده. اودَ فرښتې په تعلیم سره ملاؤشوې ده.

**د روافضو بدعت:** دَدې په پرېخودو سره شیعه روافض چه کوم "حي علي خیر العمل" جمله په اذان کښې وائی هغه دَ ځان نه ده اوبدعت دې. دَ روافض اذان دَ اهل حق دَ اذان نه ډیرمختلف دې په کوم کښې چه ګمراهی اونفاق او په امت کښې دَ تفرقه اچولو ډیر اعلانات دی.

**د حدیث نه د ترجیع ثبوت:** دَحضرت ابومحذوره ﷺ په دې روایت کښې ترجیع فی الاذان ذکر دې کوم چه شوافع او مالکیه اختیار کړې دې

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### ۶۴۳—د اذان او اقامت د کلماتو په شمار کښې اختلاف

۶۴۳—(۱) [۳] [۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «كَانَ الْأَذَانُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة، باب فی الإقامة (رقم-۵۱۰) والنسائی کتاب الأذان تثنیة الأذان (رقم-۶۲۸) والدارمی کتاب الصلاة /باب الأذان مثنی مثنی، والإقامة مرة (رقم-۱۲۲۹)

وَسَلَّمَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ، [۳] وَالْإِقَامَةُ مَرَّةً مَرَّةً، غَيْرَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: [۴] قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ.» رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر رضی الله عنهما راوي دي [۲] چې د رسول ﷺ په زمانه کښې د اذان کلمات دوه دوه خله [۳] او د تکبیر کلمات به یو یو خل ویل کیدل البته (په تکبیر کښې به) [۴] قد قامت الصلوة (بیشکه مونځ تیار دي) مؤذن دوه خله ویل.

(ابوداؤد، نسايي، دارمي)

**تسهیلات:**

**قوله:** مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ

**د دوه خله ویلو مطلب:** ددې نه مراد دادې چې په شروع کښې به ئې الله اکبر څلور خل ویل. او آخر کښې به ئې لا اله الا الله یو خل ویل. ددې دوارو کلماتو نه علاوه باقي کلمات به دوه دوه خل ویل کیدل. څنګه چې په اقامت کښې دقد قامت الصلوة استثناء کړې شوې ده ، هم داشان تکبیر یعنی الله اکبر لره مستثنی کول مناسب وو. څکه چې تکبیر هم بغیر د څه اختلاف نه بغیرېه اول او آخر کښې مکرر دي.

**[٦٤٤] د اذان او اقامت د کلماتو تعداد**

۶۴۳-(۳) [۱] وَعَنْ أَبِي مَحْذُورَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-، [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَّمَهُ الْأَذَانَ تِسْعَ عَشْرَةَ كَلِمَةً، [۳] وَالْإِقَامَةَ سَبْعَ عَشْرَةَ كَلِمَةً». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] ابومحذوره رضی الله عنه راوي دي چې [۲] رسول الله ﷺ هغه ته د اذان نولس کلمات ښودلي وو، [۳] او د تکبیر اوولس کلمات. (احمد، ترمذي، ابوداؤد، نسايي، دارمي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① تِسْعَ عَشْرَةَ: نورلس، ۱۹. ② سَبْعَ عَشْرَةَ: اوولس، ۱۷.

**تسهیلات:**

**قوله:** "سَبْعَ عَشْرَةَ كَلِمَةً"

**دحدیث نه د احنافو د مذهب تائید:** یعنی دَ اقامت کلمات اوولس دي. داحدیث په واضحه توګه دَاحنافو دلیل دې. دَ احنافو په نیز دا روایت دَهغه روایاتو دَپاره ناسخ دې په کوم کښې چه دَ اقامت یولس کلماتو ذکردې. دَدې روایت نه دَ شوافع دَمسلك مطابق دَ اذان ۱۹ کلمات ثابتیږي. دَاحنافو په نیزشهادتین کښې تکرار تعلیم باندې محمول دې دَ ترجیع دَپاره نه دی.

(۱) اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الترجیع فی الأذان (رقم-۱۹۲) وابوداود کتاب الصلاة باب کیف الأذان (رقم-۵۰۲) وابن ماجة کتاب الأذان، والسنة فیه، باب الترجیع فی الأذان (رقم-۷۰۹)

## ٦٤٥ـ په اذان كښې ترجيع

٦٣٥ ـ (١)[٥] وَعَنْهُ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! عَلِّمْنِي سُنَّةَ الْأَذَانِ، [٢] قَالَ: فَمَسَحَ مُقَدَّمَ رَأْسِهِ. قَالَ: (تَقُولُ: [٣] اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ، تَرْفَعُ بِهَا صَوْتَكَ. [٤] ثُمَّ تَقُولُ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ، تَخْفِضُ بِهَا صَوْتَكَ،

**ترجمه:** [١] ابو محذوره رضي الله عنه فرمايي چه ما نبي ﷺ ته عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ ماته د اذان طريقه راوښايه [٢] راوي وايي دي اوريدو سره حضور ﷺ د ابو محذوره رضي الله عنه د سر پرمخکني حصه لاس مبارک وګرځولو بيا يي وفرمايل چه اووايه: اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ (څلور خله) د دې سره آواز اوچت کړه [٣] بيا اووايه أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ د مخکې څخه دا په ښکته آواز سره اووايه.

[١] ثُمَّ تَرْفَعُ صَوْتَكَ بِالشَّهَادَةِ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ. [٢] أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ. [٣] حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ. [٤] فَإِنْ كَانَتْ صَلَاةُ الصُّبْحِ، قُلْتَ: الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ، الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ [٥] اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] بيا په اوچت آواز سره د شهادت کلمات اووايه أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ [٢] أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ [٣] حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ [٤] که د سحر د لمانځه د پاره اذان کول غواړې نو دي څخه وروسته دا کلمات اووايه الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ (لمونځ د خوب څخه بهتر دي مونځ د خوب څخه بهتر دي) [٥] اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① تَرْفَعُ: ته اوچت کړه آواز. ② تَخْفِضُ: ښکته کړه آواز.

**تسهيلات:**

**قوله: "تَخْفِضُ بِهَا صَوْتَكَ"**

**د احنافو د توجيه تضعيف:** په دې روايت کښې "تَرْفَعُ" او "تَخْفِضُ" چه کوم الفاظ دی دَدې په رڼا کښې دَ احنافو هغه توجيه صحيح نه معلوميږی چه په شهادتين کښې دَتکرار حکم دَ تعليم دَپاره وو ځکه چه داحديث دَ هغه توجيه اجازت نه ورکوی.

**د عدم ترجيع د رواياتو ترجيح:** لهذا دَ احنافو جواب به هم دغه وی چه نور زيات روايات اودَ عبدالله بن زيد رضي الله عنه دَ اذان قصه اودَ حضرت بلال رضي الله عنه وغيره مؤذنينو ترجيع نه کول

(١) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب كيف الأذان (رقم-٥٠٠) والنسائى كتاب الأذان ،الأذان فى السفر(رقم-٦٣٣)

دَدې تولو امورو دَوجې نه احنافو دَ ابومحذوره رضي الله عنه روايت مرجوح او نور روايتونه راجح ګرځولی دی.

**قوله: "مُقَدَّمَ رَأْسِهِ"**

بعضې رواياتو کښې "رأسي" الفاظ راغلی دی چه دَدې خبرې دليل دې چه حضورپاك د حضرت ابومحذوره رضي الله عنه په سرباندې لاس مبارك رابښکلې وو. هم دغه واضح اوراجح دی. بعضې حضراتو دَدې جملې مطلب دا اخستې دې چه حضورپاك په خپل سرمبارك باندې لاس رابښکلو دا مطلب واضحه نه دې

**٦٤٦ـ د تثويب ممانعت**

٦٤٦ـ(١)[٢٢] ① وَعَنْ بِلَالٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ لِي رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«لَا تُثَوِّبَنَّ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلَوَاتِ إِلَّا فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. ③ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: أَبُو إِسْرَائِيلَ الرَّاوِي لَيْسَ هُوَ بِذَاكَ الْقَوِيِّ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** ① حضرت بلال رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم ماته وفرمايل ② چې د سحر د لمانځه څخه علاوه په بل لمانځه کښې تثويب مه کوه، ترمذي ابن ماجه، ③ امام ترمذي رحمه الله د دې حديث راوي ابو اسرائيل د محدثينو په نيز د قوي (يعني د اعتبار وړ) نه دې

**حل اللغات:** ① لَاتُثَوِّبَنَّ: إِعْلَامٌ مَرَّةً بَعْدَ مَرَّةٍ أُخْرَى: تثويب دَ باب تفعيل نه ده. د يو اعلان نه پس بل اعلان کول

**تسهيلات: قوله: "لَاتُثَوِّبَنَّ"**

**د تثويب لغوی معنی:** لغت کښې تثويب رجوع او واپس کيدلو په معنی کښې دې هم دَدې نه ثيبه ښځه ده هم دَدې نه ثوب او ثواب دې اوهم په دې اعتبارسره بيت الله مثابة للناس فرمائيلې شوې دې. په دې ټولو څيزونو کښې دَ رجوع او واپس کيدلو معنی موجودده

**د تثويب شرعی معنی:** دلته په حديث کښې دَ تثويب نه اعلام پسې اعلام اودَ خبر نه پس خبر او اعلان نه پس اعلان مراد دې.

**د تثويب درې اصطلاحی معانی:** تثويب په دريو معنوکښې او درې مطلبونو اومقاصدودَپاره وئيلی شی.[اشعة المعات ۳۳۰]

① اقامت او تکبيروئيلوته تثويب وائی

② دَ سحرپه اذان کښې "الصلوٰة خير من النوم" وئيلوته هم تثويب وائی.

③ اعلام پس دَ اعلام يعنی دَ اذان کولونه پس دَ اقامت نه مخکښې يوسړې اعلان کوی اوخلق دَمونځ طرف ته دوباره په خپلو الفاظوکښې راغواړی دې ته هم تثويب وائی.

---

(١) اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی التثويب فی الفجر(رقم-١٩٨)

**د تثویب د دریمه معنی په حکم کښې دوه اقوال:**

**د تثویب د عدم جواز قائلین:** ① دَحضرت علی ﷜ نه نقل دی اودَهغوی متعلق مشهوره ده چه هغوی په یوجمات کښې یوسړې اولیدلو چه هغه به تثویب کولو یعنی دَ اذان نه پس به ئې دَ مونځ دَپاره اعلان کولو. نوحضرت علی ﷜ اوفرمائیل "اخرجوا هذا المبدع من المسجد"[اشعة المعات ۳۳۱]

② دَ حضرت ابن عمر ﷜ باره کښې نقل دی چه هغوی یوځل په جمات کښې مؤذن په تثویب کولوسره واؤریدو نوهغوی دَ جمات نه بهر لاړل او نورو ته ئې هم اوفرمائیل چه دَدې سړی مخکښې مه پاتې کیږئې بهرراؤځئې ځکه چه دا بدعتی دې.

③ حضرت امام محمد ﷫ به هم په دې قسم تثویب سره سخت خفه کیدلو اوفرمائیل به ئې تول مسلمانان دَمونځ په عبادت کښې یوشان دی. بهرحال دَ سحرپه اذان کښې "الصلوة خیرمن النوم" چه کوم تثویب دې دَ رسول الله ﷺ دَ زمانې نه جاری دې اوپه وجه دَغفلت او خوب سستی دَدې الفاظو وئیلو ته دَ سنت درجه حاصله ده. بیا خلقو په خپل خپل انداز سره دَدې نه علاوه څه نور اعلانونه هم دَ سحردَ مونځ دَپاره شروع کړه ځکه دَ سحروخت دَ خوب غفلت او سستئی وی.

**د تثویب دجواز قائلین:** ① په آخره کښې قاضی ابویوسف ﷫ په عامومونځونوکښې قاضیانواوحکامو اوشاغلینودَدین دَپاره په خاص توګه دَ اعلام او خبرداری نه پس دَ اذان نه په وجه دَمشغولتیا جائز اوګرځول چه مؤذن وغیره دې لاړشی هغوی ته دې اووائی "ایهاالامیرالصلوة جامعة".

② مګر متاخرینو دَ دغه شاغلینو دَدین دَ خبرداری دَپاره دا اعلان ښه اوګرځولو لکه چه په وجه دَ زمانې دَ بدلیدو او په وجه دَ بدلون دَخلقو دَ زمانې په دې حکم کښې بدلون راغلو لکه نن صبا دَ اذان نه پس په دینی مدارسو کښې طالبان په دویم ځل اعلان سره راپاسولې شی. دغه شان خصوصی خبرداری مؤذنینوحضورپاک ته هم ورکړې دې خلفاء راشدینوته ئې هم ورکړې دې دَدې نه انکارنه شی کیدلې.

**د تطبیق صورت:** لیکن په ښکاره جماتونوکښې دَ اذان نه پس په دویم ځل اعلان په هرحال کښې ناجائز دې. که چرې دَ یوخاص داعیه او خاص سبب دَ وجې نه چرته چا اعلان اوکړو نوهغه بله خبره ده مګر په مستقل توګه دَ اذان نه پس اعلان کول په هرحال کښې بدعت دې په کوم سره چه دَ اذان حیثیت اودَ دې مشروعیت اصل مقصد ته نقصان رسیږی.

## ٦٤٧ــ د اذان او اقامت په مینځ کښې وقفه

٦٤٧ــ(١)[٧] ① وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِبِلَالٍ: ② إِذَا أَذَّنْتَ فَتَرَسَّلْ، ③ وَإِذَا أَقَمْتَ فَاحْدُرْ، ④ وَاجْعَلْ مَا بَيْنَ أَذَانِكَ وَإِقَامَتِكَ قَدْرَ مَا ⑤ يَفْرُغُ الْآكِلُ مِنْ أَكْلِهِ، وَالشَّارِبُ مِنْ شُرْبِهِ، ⑥ وَالْمُعْتَصِرُ إِذَا دَخَلَ لِقَضَاءِ حَاجَتِهِ، ⑦ وَلَا تَقُومُوا حَتَّى تَرَوْنِي» ). ⑧ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الْمُنْعِمِ، وَهُوَ إِسْنَادٌ مَجْهُولٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ حضرت بلال رضی الله عنه ته وفرمایل ② هر کله چې ته اذان کوي نو په قلاره قلاره يي کوه ③ او هر کله چې تکبير وائي نو زر زر يي وايه ④ او د اذان او تکبير په مينځ کې دومره وقفه کوه چې خوړونکي د خپل خوراك څخه او څښونکي د خپل څښاك څخه فارغ شي ⑤ او قضايي حاجت ته تلونکي د خپل حاجت څخه فارغ شي ⑦ او تر هغه وخته پوري د لمانځه د پاره مه او دريږئ تر څو پوري چې ما (د لمانځه کولو د پاره راتلونکي) ونه وينئ، ⑧ دا حديث ترمذي نقل کړي دي او ويلي يې دي چې مونږ داحديث سوا د عبدالمنعم څخه بل چا څخه نه پيژنو او ددې سند مجهول دي.

**حل اللغات:** ① فَتَرَسَّلْ: أَيْ: تَمَهَّلْ، وَافْصِلِ الْكَلِمَاتِ بَعْضَهَا مِنْ بَعْضٍ بِسَكْتَةٍ خَفِيفَةٍ: په ولاړه ولاړه سا اخستوسره اذان کولو ته ترسل وائي يعنی په وقف وقف سره وئيل. ② أَقَمْتَ: اقامت کوه، (د جماعت اودريدلو په وخت تکبير وئيلو ته اقامت وائي). ③ فَاحْدُرْ: أَيْ: أَسْرِعْ فِي التَّلَفُّظِ بِهَا وَصِلْ بَيْنَ الْكَلِمَاتِ مِنْ غَيْرِ دَرْجٍ وَدَمْجٍ، وَلَا تَسْكُتْ بَيْنَهَا: تيز تيز تکبير وئيلو ته حدر وائي. ④ الْمُعْتَصِرُ: أَيْ: وَيَفْرُغُ الَّذِي يَحْتَاجُ إِلَى الْغَائِطِ وَيَعْصِرُ بَطْنَهُ وَفَرْجَهُ: قضائي حاجت يعنی ډک اودس ماتونکي.

**تسهيلات:**

**قوله: "فَتَرَسَّلْ"**

**د ايتار او شفع په مراده معنی کښې د احنافو تائيد:** دا حديث په دې خبره باندې واضحه دليل دې چه په اذان او اقامت کښې شفع او ايتار چه کومه معنی احنافو اخستې ده په دې حديث کښې هم دَ دغه طرز تعليم ورکړې شوې دې او هم هغه معنی دَدې احاديثو مطلبونو ته زياته نيزدې ده.

**د بعضې خلقو په اذان کښې غلطيانې:** دَدې حديث نه داخبره هم معلومه شوه چه په اذان او اقامت کښې دَ غلطئ نه دَ بچ کيدو کوشش کول پکاردی. ځکه چه په اذان کښې بعضې غلطياني کولوسره دَ ايمان دَ خرابيدو خطره هم کيدې شي

① مثلاً الله اکبر کښې که چرته يوسړې په الف باندې مد کولوسره راکاږی اودغه شان اکبر په ځائې اکبار وائی نو قصداً داسې کولوسره دکفر خطره ده ځکه چه دَ مد په صورت

---

(١) اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ باب ما جاء في الترسل في الأذان (رقم-١٩٥)

کښې استفهام کیږی چه آیا الله لوئی دې یا نه دې.
⑵ دغه شان اکبار دَ کبر جمع جوړیږی دکوم معنی چه دَ یوقسم دوړیئی راځی. دغه شان دَ اشهد په الف باندې مد کولوسره استفهام معنی پیدا کیږی چه ډیره خطرناکه ده لکه چه مؤذن داسې وائی چه آیا زه گواهی ورکړم؟
⑶ دغه شان دَ أَنَّ په ځائی باندې أَنَا وئیلو دَ خطرې سبب دې.
**په اذان کښې د وقف کولو مسنونیت:** علماؤ دا هم لیکلی دی چه دَ اذان او اقامت کلمات دَ وقف حالت سره نقل دی دَدې نه دَ یوې کلمې په آخره کښې اعراب ښکاره کول دَ سنت خلاف دی مثلاً حی علی الصلوة یا حی علی الفلاحِ په آخری کلمه باندې اعراب نه ظاهرول پکار ځکه چه دادَ وقف په حالت باندې نقل دی دغه شان قدقامت الصلوة دَ وقف په حالت کښې دې دَدې په آخره کښې پیښ وئیل غلط دی.
**قوله:** "قَدْرَمَايَفْرُغُ الْآكِلُ"
**د اذان او اقامت په مینځ کښې وقفه:** دادَ اذان او اقامت په مینځ کښې دَ وقفې کولودَمقدار بیان دې چه اذان پسې دومره وقفه کول پکاردی چه یوموننځ گذار که چرته دَ قضاء حاجت ضرورت محسوس کوی نوچه هغه په آسانئی سره پوره کړی یا څوك اوګې شوې وی نودغه وقفه دومره کیدل پکاردی چه هغه دَ خوراك ضرورت پوره کړې شی یا دغه شان بل څه مختصر ضرورت وی نوچه هغه پوره کړې شی. نن صبادَ ګهړو یومربوط نظام دې بعضې جماتونوکښې نیمه ګهنټه وقفه ورکولې شی بعضوکښې پنځلس مینټه ورکولې شی.
**د اذان مشروعیت د وخت د دخول دپاره:** دَ پاکستان دَمؤذنینو په اذانونوکښې یوه غټه کمزوری داده چه په دې ملك کښې اودغه شان آفغانستان او هندوستان او بنګله دیش کښې اذان دَتعیین وخت دَپاره نه شی کولې بلکه دَتعیین دَموننځ دَپاره کولې شی. که چرې اذان دَوخت دَتعیین دَپاره وې نودَ وخت دَ داخلیدو په رومبې مینټ کښې به اذان کیدلو مګر داسې نه کیږی. مثلاً دَ ماسپښین وخت دَ زوال نه پس شروع کیږی نومناسب اومسنون خوا وه چه هم په هغه وخت اذان کیدلو لیکن اذان کله دَوخت دَ داخلیدو نه نیمه ګهینټه پس کولې شی خو په سعودی عرب کښې اذان دَ وخت دَ تعیین دَپاره کیږی نودَ وخت بالکل په شروع کښې ورکولې شی کوم چه ډیر ښه عمل دې.
**قوله:** "وَلَا تَقُومُوا حَتَّى تَرَوْنِي"
**د نبی کریم ﷺ د حجرې څخه بهر د تشریف راوړلو وخت:** یعنی چه کله مؤذن دَتکبیر دَپاره اودریږی نوچه تاسو ترکومې پورې ما راتلوسره اونه وینئی دَ هغه وخته پورې کینئی دَ اودریدو کوشش مه کوئی ځکه چه دَوخت نه مخکښې دې اودریدو کښې مشقت هم دې اودَ انتشار اوتشویش سبب هم دې دَحدیث نه داسې معلومیږی چه حضورپاك به دَتکبیر

شروع کیدونه پس دَ حجرې مبارکې نه بهر تشریف راوړلو اوچه کله مؤذن حي علی الصلوة ونیل نوحضورپاك به محراب ته رسیدلو. [الکاشف: ۲/۲۴۳ اشعة المعات: ۳۳۱]

**د مقتدیانو مانځه دپاره د اودریدو په وخت کښې مذاهب:**

په دې کښې اختلاف دې چه مقتدي کوم وخت اُودریږي اوامام کوم وخت تکبیر اووائي.

① دَامام مالك رحمه الله اوجمهورو رائې داده چه په صفونو کښې دَمقتدیانو دَپاره هیڅ وخت مقرر نه دې کله چه خلق غواړي اودریږي دې.

② د سوید بن غفله، قیس بن حازم، حماد، سعیدبن مسیب اوحضرت عمر بن عبدالعزیز رحمهم الله قول نقل کړې دې چه کله مؤذن اقامت شروع کړي نو صفونو کښې اودریدل واجب دي چه په صفونو کښې اعتدال راشي. اوکله چه مؤذن اقامت ختم کړي نوامام له تکبیر ونیل پکاردي. (کذا في مصنف ابن ابی شیبه)

③ دَ امام احمد رحمه الله مسلك دادې چه کله مؤذن قدقامت الصلوة اووائي نوامام له تکبیر تحریمه ونیلوسره مونځ شروع کول پکاردي اودَ امام صاحب هم دغه قول دې.

④ دَ جمهور علماؤ په نیزترکومې چه مؤذن دَ اقامت نه فارغ شوې نه وی امام دې مونځ نه شروع کوی هم دغه دَ امام ابوحنیفه رحمه الله یوقول هم دې. فتوی هم په دې ده. دَامام شافعي رحمه الله په نیزدادی چه کله مؤذن دَتکبیر ونیلو نه فارغ شی هغه وخت دې مقتدیان قیام اوکړي.

**د یوې غلط فهمۍ ازاله:** دَ احنافودَ فقهاؤ په کتابونو کښې لیکلی دی چه "حي علی الفلاح" په وخت ولاړ اوسئی دَدې مطلب دادې چه که دَ څه مجبورئی دَ وجې نه مخکښې څوك اونه دریدې شونودَ "حي علی الفلاح" نه پس دَ کیناستو اجازت نشته دې. فقهاؤ چه کومه مسئله لیکلې ده هغه داده چه دَ کیناستو آخری حد "حي علی الصلوة" دې دې نه پس کیناستل جائز نه دی دامطلب نه دې چه دَدې نه مخکښې څوك اونه دریدو نوهغه به د طعن لائق وی

شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله دَدې حدیث لاندې لیکي:

"اي لاتقوموا للصلوة بمجرد الاقامة حتى تبصروني اخرج من البيت وفي الفقه يقوم عند حي على الصلاة ويحرم عند قدقامت الصلوة". [اشعة المعات: ۳۳۱]

په دې عبارت کښې هم هغه خبره ده چه دَ "حي علی الصلوة" نه پس کیناستل منع دی ځکه چه صف نیغول لازم دی. داخبره نه ده چه "حي علی الصلوة" دَ الصلوة نه مخکښې کیناستل لازم دی شیخ عبدالحق رحمه الله اشعة المعات کښې لیکلی دی چه کیدې شی حضورپاك دَ "حي علی الصلوة" په وخت دَحجرې نه دَمحراب پورې رسیدلو په دې وجه ئی اوفرمائیل چه زما راتلو او زما دَلیدلو نه مخکښې مه اودریږئی. [اشعة المعات: ۱/۳۳۱]

## ٦٤٨ – د اقامت کولو حقدار

۶۳۸–()[۸] ١ وَعَنْ زِيَادِ بْنِ الْحَارِثِ الصُّدَائِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-، قَالَ: ٢ «أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (أَنْ أُذِّنَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ) فَأَذَّنْتُ. ٣ فَأَرَادَ بِلَالٌ أَنْ يُقِيمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٤ (إِنَّ أَخَا صُدَاءٍ قَدْ أَذَّنَ، وَمَنْ أَذَّنَ فَهُوَ يُقِيمُ)». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ زیاد بن حارث صدائي رضی الله عنه وايي ٢ چي رسول الله ﷺ ما ته د سحر د لمانځه د پاره د اذان کولو حکم وکړو نو ما اذان وکړو ٣ بيا بلال رضی الله عنه تکبير وئيل وغوښتل نو حضور ﷺ ورته وفرمايل ٤ دي (۲) صدايي ورور اذان کړي دي او څوك چې اذان وکړي هغه لره تکبير وئيل هم پکار دي. (ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① يُقِيمَ: چه اقامت اوکړی، ② أَخَا صُدَاءٍ: دا صحابی دې. ددوی نوم حضرت زیادبن حارث صدائی رضی الله عنه دې.

**تسهیلات:**

**قوله:** "إِنَّ أَخَا صُدَاءٍ"

**زياد بن حارث ته د اخا صدائی وئيلو وجه:** حضرت زیادبن حارث صدائی رضی الله عنه ته په دې حدیث کښې حضورپاك اخاصداء فرمائيلې دې. دې صحابی دې. اودَ یمن اوسیدونکې دې. دَهغه دَ قبيلې نوم صداء وو دَ هغې طرف ته منسوب کيدوسره صدائی سره يادیدو. دَعربو دستور دې چه دَ يوې قبيلې دَ سړی کله ذکرکوی نوهغه ته دَ هغه قبيلې رور وائی هم دَدې قاعدې مطابق حضورپاك دې صحابی ته اخاصداء اوفرمائيل يعنی دَ صداء قبيلې رور. [اشعة المعات: ۱/ ۳۳۱]

**قوله:** "فَهُوَ يُقِيمُ" يعنی څوك چه اذان اووائی دَ هغه حق دې چه تکبير دې هم هغه اووائی.

### د مؤذن په استحقاق اقامت کښې مذاهب:

دَ استحقاق تقاضا خوداده چه څوك اذان اوکړی هغه دې اقامت هم اوکړی ليکن که دَمؤذن

(۱) اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن من أذن فهو يقيم (رقم-۱۹۹) وابوداود کتاب الصلاة باب فی الرجل یؤذن ویقیم آخر(رقم-۵۱٤) وابن ماجة کتاب الأذان. والسنة فيه باب السنة فی الأذان (رقم-۷۱۷)

(۲) (اخاء صداء يعني د صدايي د ورور څخه مراد زياد ابن حارث صدايي دي په عربو کې دا قاعده وه چې کوم سړي به د کومې قبيلې سره تعلق لرلې هغه ته به يې د هغه قبيلې ورور ويلې، د امام شافعي رحمه الله په نزد د دې حديث مطابق غير مؤذن له تکبير کول مکروه دي د امام اعظم رحمه الله په نزد مکروه نه دي څکه چې دا ثابته ده چې اکثر به ابن ام مکتوم رضی الله عنه اذان کولي او بلال رضی الله عنه به تکبير کولي د امام صاحب رحمه الله په نزد دا حديث په دې خبره محمول دي که غير مؤذن تکبير کول غواړي نو د مؤذن څخه دي اجازت واخلي که مؤذن ته د دې چا تکبير ويل خوښ نه وي نو بيا غير مؤذن ته تکبير ويل مناسب نه دي،

نه علاوه بل چا تکبیر اووئیلو نو دَهغې شرعي حیثیت څه دي.

① دَ شوافع اوحنابله مذهب دا دې چه داسې کول مطلقًا مکروه دی که دَمؤذن اجازت وی اوکه نه وی. البته اقامت به ئی اوشی واپس راګرځولو ضرورت نشته دې.

② امام مالك رحمه الله فرمائی چه دَغیرمؤذن اقامت مطلقًا جائز دې که مؤذن خوشحال وی اوکه خوشحال نه وی اجازت ورکړی یا ورنه کړی په هرحالت کښې جائز دې.

③ دَ احنافو ائمه حضرات فرمائی چه که چرې مؤذن په خوشحالئی سره اجازت ورکړی نوبیا جائز بلاکراهت دې اوکه چرې مؤذن ناخوښه وی اودَهغه اجازت هم نه وی نوبیا دَ غیراقامت مکروه دې.

**داول فریق دلیل:** زیربحث د زیادبن حارث رضي الله عنه روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت بلال رضي الله عنه دَ تکبیروئیلونه منع کړې او وجه ئی دا خودلې ده چه اذان بل چا کړې دې لهذا تکبیربه هم هغه وائی چاچه اذان کړې دې.

**د دویم فریق دلیل:** دَ حضرت عبدالله بن زید بن عبدربه رضي الله عنه حدیث د دوی مستدل دې چه هغه ته حضورپاك اوفرمائیل چه ته دَ اذان کلمات حضرت بلال رضي الله عنه ته بنایه هغه به اذان کوی. دَحضرت بلال رضي الله عنه د اذان کولونه پس کله چه دَ اقامت وخت راغلو نوحضورپاك حضرت عبدالله بن زید رضي الله عنه ته اوفرمائیل "قم انت" دلته په غیر مؤذن باندې اقامت کړې شوې دې. معلومه شوه چه جائز دې که مؤذن خوشحال وی اوکه خفه.

**د دریم فریق دلیل:** دریم فریق په دواړه قسم احادیثوکښې دَ تطبیق صورت پیداکړې دې چه که دَمؤذن ناخوښه وی نوبل سړې دې اقامت نه کوی لکه څنګه چه دَ زیاد صدائی رضي الله عنه دَ حدیث معامله ده کیدې شی چه صدائی رور ناخوښه کړې وی په دې وجه حضورپاك اوفرمائیل اوعبدالله بن زید رضي الله عنه ته ئی دَ اقامت کولو اجازت ورکړو ځکه چه کیدې شی حضرت بلال رضي الله عنه ته هډو ناخوښه شوې نه وی. دغه شان دَاحنافو دَ مذهب مطابق په تولواحادیثوکښې تطبیق اوشو.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## ٦٤٩–داذان د ضرورت احساس

۶۴۹ –(¹)[۹] ① عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ② «كَانَ الْمُسْلِمُونَ حِينَ قَدِمُوا الْمَدِينَةَ يَجْتَمِعُونَ ③ فَيَتَحَيَّنُونَ لِلصَّلَاةِ، وَلَيْسَ يُنَادِي بِهَا أَحَدٌ» ④ فَتَكَلَّمُوا يَوْمًا فِي ذَلِكَ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: ⑤ اتَّخِذُوا مِثْلَ نَاقُوسِ

(1) اخرجه البخاری کتاب الاذان باب بدء الأذان(رقم-٦٠٤) ومسلم کتاب الصلاة ، باب بدء الأذان (١-(٣٧٧) والنسائی کتاب الصلاة ، باب بدء الأذان رقم-(١ - (٣٧٧) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی بدء الأذان (١٩٠)

النَّصَارَى. ⑥ وَقَالَ بَعْضُهُمْ: قَرْنًا مِثْلَ قَرْنِ الْيَهُودِ. ⑦ فَقَالَ عُمَرُ: أَوَلَا تَبْعَثُونَ رَجُلًا يُنَادِي بِالصَّلَاةِ؟ ⑧ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا بِلَالُ! قُمْ فَنَادِ بِالصَّلَاةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابن عمر رضي الله عنه فرمايي ② چه مسلمانان چې مديني منورې ته راغلل نو جمع کيدل به ③ او د لمانځه د پاره به يې وخت او اندازه معين کوله (څکه چې) څوك د لمانځه د پاره بلونکي نه وو ④ (يوه ورځ) چې په دې مسئله باندې بحث کيدو نوبعضو اوويل ⑤ چې دنصارې پشان ناقوس (نغاره) وهل پکار دي ⑥ او بعضو اوويل چې د يهودو په شان (ښکر، تُولي) جوړول پکار دي ⑦ د اټول تجويزونه اوريدلو سره حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل يو سړې دې ولې مقرر نه کړې شي چې د لمانځه د پاره خلق رابلي ⑧ نو حضور ﷺ وفرمايل اې بلال پاسه د لمانځه د پاره اعلان کوه. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① فَيَتَحَيَّنُونَ: أَيْ: يُقَدِّرُونَ حِينَ الصَّلَاةِ، وَيُعَيِّنُونَ وَقْتَهَا بِالتَّقْدِيرِ وَالتَّخْمِينِ: يعنې د مانځه د پاره به يې وخت او اندازه معين کوله. ② نَاقُوس: وَهُوَ خَشَبَةٌ طَوِيلَةٌ يَضْرِبُهَا النَّصَارَى بِأُخْرَى أَقْصَرَ مِنْهَا لِإِعْلَامِ وَقْتِ الصَّلَاةِ: د لرګې نه جوړه شوې يوه باجه ده چه نصاراو به دخپل عبادت په وخت کښې د اعلان دپاره استعمالوله، بيګل ورته وائي. ③ قَرْنًا: ښکر.

## ۶۵۰- د اذان د شروع کيدو پس منظر

۶۵۰-() [۱۰] ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ ابْنِ عَبْدِ رَبِّهِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «لَمَّا أَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاقُوسِ ③ يُعْمَلُ؛ لِيُضْرَبَ بِهِ لِلنَّاسِ لِجَمْعِ الصَّلَاةِ، ④ طَافَ بِي وَأَنَا نَائِمٌ رَجُلٌ يَحْمِلُ نَاقُوسًا فِي يَدِهِ، ⑤ فَقُلْتُ: يَا عَبْدَ اللهِ! أَتَبِيعُ النَّاقُوسَ؟ ⑥ قَالَ: وَمَا تَصْنَعُ بِهِ؟ قُلْتُ: نَدْعُو بِهِ إِلَى الصَّلَاةِ. ⑦ قَالَ: أَفَلَا أَدُلُّكَ عَلَى مَا هُوَ خَيْرٌ مِنْ ذَلِكَ؟ ⑧ فَقُلْتُ لَهُ: بَلَى. قَالَ: فَقَالَ: تَقُولُ: اللهُ أَكْبَرُ، إِلَى آخِرِهِ، وَكَذَا الْإِقَامَةُ

**ترجمه:** ① عبدالله ابن زيد بن عبدربه رضي الله عنه فرمايي ② کوم وخت چې حضور ﷺ د ناقوس جوړولو حکم وکړلو ③ چې د لمانځه په جماعت کې د خلقو د حاضرولو د پاره هغه غږولې شي ④ نو ما خوب کې وليدل چې يو سړې په خپل لاس کې ناقوس اخستې روان دې ⑤ ما هغه سړې ته اوويل اې د الله جل جلاله بنده ايا دا ناقوس خرڅوې ؟ ⑥ هغه سړې اوويل ته به په دې څه کوې ما ورته اوويل مونږ به دا غږولو سره خلق د لمانځه د جماعت د پاره رابلو ⑦ هغه اوويل ايا زه تاته د دې څخه بهتر شې در ونه ښايم ؟ ⑧ ما ورته اوويل هو ضرور يې راوښايه نو هغه سړي اولويل وايه الله اکبر تر آخره پورې هغه اذان او ښودلو بيا ئې دغسې اقامت هم وښودلو.

**حل اللغات:** ① لِيُضْرَبَ: چه غږولې به شي.

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب كيف الأذان (رقم-۴۹۹) والدارمى كتاب الصلاة /باب: فى بدء الأذان (رقم-۱۲۲۴) ابن ماجة كتاب الأذان. والسنة فيه . باب بدء الأذان (رقم-۷۰۶)

۱ فَلَمَّا أَصْبَحْتُ، أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا رَأَيْتُ. ۲ فَقَالَ: (إِنَّهَا لَرُؤْيَا حَقٌّ إِنْ شَاءَ اللهُ، ۳ فَقُمْ مَعَ بِلَالٍ، فَأَلْقِ عَلَيْهِ مَا رَأَيْتَ فَلْيُؤَذِّنْ بِهِ، ۴ فَإِنَّهُ أَنْدَى صَوْتًا مِنْكَ). ۵ فَقُمْتُ مَعَ بِلَالٍ، فَجَعَلْتُ أُلْقِيهِ عَلَيْهِ وَيُؤَذِّنُ بِهِ. ۶ قَالَ فَسَمِعَ بِذَلِكَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، وَهُوَ فِي بَيْتِهِ، ۷ فَخَرَجَ يَجُرُّ رِدَاءَهُ يَقُولُ: يَا رَسُولَ اللهِ! ۸ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَقَدْ رَأَيْتُ مِثْلَ مَا أُرِي. ۹ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (فَلِلَّهِ الْحَمْدُ)» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ؛ ۱۰ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرِ الْإِقَامَةَ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ، لَكِنَّهُ لَمْ يُصَرِّحْ قِصَّةَ النَّاقُوسِ.

**ترجمه:** ۱ کوم وخت چې سحر شو نو زه د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او څه چې مې په خوب کښې ليدلي وو بيان مې کړه ۲ حضور ﷺ خوب اوريدو سره وفرمايل ان شاء الله تعالی خوب رشتيا دي (صحيح دي) ۳ اوس ته د بلال رضی الله عنه سره ودريږه هغه ته يې وروښايه او هغه دې اذان وکړي ۴ ځکه چې هغه ستا څخه د اوچت آواز خاوند دی ۵ نو زه د بلال رضی الله عنه سره ودريدم هغه ته به مې ښودلو او هغه به اذان کولو، ۶ راوي وايي چه حضرت عمر ابن الخطاب رضی الله عنه چې په خپل کور کې د اذان آواز واوريدلو ۷ نو په تادي خپل څادر رابښکلو سره د کور څخه بهر راووتلو او دي ويلو سره د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو چې يا رسول الله ﷺ ۸ قسم دي په هغه ذات چې ته ﷺ يې د حق سره راليږلي يې ما هم داسې خوب ليدلي دي ۹ (دي اوريدو سره) حضور ﷺ وفرمايل الحمد لله ټول تعريفونه الله تعالی جل جلاله لره دي دا حديث ابوداؤد، دارمي او ابن ماجه نقل کړي دي ۱۰ خو ابن ماجه رحمه الله د تکبير ذکر نه دي کړي او ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث صحيح دي ليکن هغه د ناقوس د قصې تصريح نه ده کړې.

**حل اللغات:** ② فَأَلْقِ: أَيْ: أَمْلِ: يعنی ورته ئې اوښايه. ③ أَنْدَى صَوْتًا: أَيْ: أَرْفَعُ صَوْتًا: اوچت آواز والا. ④ أُلْقِيهِ: أَيْ: أُلَقِّنُهُ لَهُ: ورته مې ښودل. ⑤ يَجُرُّ: راښکلو ئې.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّهَا لَرُؤْيَا حَقٌّ

**د عبدالله بن زيد بن عبد ربه خوب ته د حق ويلو توجيهات:** ① نبی کريم ﷺ د هغه کلماتو د قرائنو څخه معلومه کړه چې هغه القاء رحمانی وه شيطانی نه وه، په دې وجه يې ورته حق اووئيل.

② نبی کريم ﷺ دوحی په ذريعه دهغه خوب د حقانيت باره کښې اطلاع ورکړې شوې وه.

③ د مسلمانانو په دې باندې اجماع کول د حق کيدلو دليل دې.

④ نبی کريم ﷺ هغه الفاظ اووم آسمان کښې د معراج په شپه آوريدلی وو. درمختار کښې دی چې د معراج په شپه نبی کريم ﷺ د حضرت جبرائيل عليه السلام نه آذان آوريدلې وو. په دې وجه ئې دهغه خوب ته حق اووئيل.

**٦٥١ - د مانځه د پاره بیدارول**

٦٥١ - ( ) [۱۱] ① وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: ② «خَرَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصَلَاةِ الصُّبْحِ، ③ فَكَانَ لَا يَمُرُّ بِرَجُلٍ إِلَّا نَادَاهُ بِالصَّلَاةِ، ④ أَوْ حَرَّكَهُ بِرِجْلِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوبکره رضی الله عنه فرمايي ② چه زه د رسول الله ﷺ سره د سحر د لمانځه د پاره ووتم ③ حضور ﷺ چې به د کوم سړي سره تيريدلو نو د لمانځه دپاره به يې هغه ته آواز ورکولو ④ يا به ئې د هغه پښو ته حرکت ورکولو. (ابوداؤد)

**تسهیلات:**

**قوله:** نَادَاهُ بِالصَّلَاةِ:

**د مانځه دپاره په لاس سره د راويښولو جواز:** يعنی دَ سحردَاذان نه پس به کله دَحضورپاك تيريدل په يوسړی باندې کيدل اوهغه به اوده وو نوحضورپاك بـه آواز ورکولو سره مانځه دَپاره پاسولو اوکله به ئی په خپل مبارك قدم سره هغه اوده سړې خوزولو.
دَدې نه معلومه شوه چه اوده شوی خلق پـه آواز سره هـم او لاس خپـه خوزولوسره هم پاسول پکاردی. نن صبا په دينی مدارس کښې الحمد لله پـه دې سنت بانـدې عمـل کيـږی او مقـرر شوی استاذان طالبان دَ سحر اوماسپښين په وخت کښې راپاسوی.
**داوده سړی د راويښولو غوره طريقه:** دَ اوده شوی سړی دَ پاسـولودَ تيولـنـه ښـه طريقـه داده چه هغه دَ خپې دَ غټې ګوتې نه اونيسی وئی خوزه وی يادَ هغه پـه سر يـا تنـدی بانـدې لاس کيږدی اوخوزولې شی. ناڅاپی چغه وهلوسره پاسول دَخطرې سبب دې. ( توضيحات)

**٦٥٢ - د صبا په اذان کښې د الصلاة خير من النوم اضافه**

٦٥٢ - ( ) [۱۲] ① وَعَنْ مَالِكٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ② بَلَغَهُ أَنَّ الْمُؤَذِّنَ جَاءَ عُمَرَ يُؤْذِنُهُ لِصَلَاةِ الصُّبْحِ، ③ فَوَجَدَهُ نَائِمًا. فَقَالَ: الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ، ④ فَأَمَرَهُ عُمَرُ أَنْ يَجْعَلَهَا فِي نِدَاءِ الصُّبْحِ. رَوَاهُ فِي الْمُوَطَّإِ.

**ترجمه:** ① د امام مالك رحمه الله په باره کې منقول دي ② چې هغه ته دا حديث رسيدلي دي چې مؤذن به حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ته راتلو او د سحر د لمانځهَ د پاره به يې خبر دارولو ③ (يوه ورځ) مؤذن حضرت عمر رضی الله عنه اوده وليدلو نو هغه اوويل چې اَلصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ مونځ د خوب څخه بهتر دي ④ نو حضرت عمر رضی الله عنه مؤذن ته حکم ورکړو چې دا کلمه دي د سحر په آذان کې شامله کړي، (مؤطا)

**تسهیلات:**

**قوله:** فَأَمَرَهُ عُمَرُ أَنْ يَجْعَلَهَا: يعنی حضرت عمر فاروق رضی الله عنه مؤذن ته اوفرمائيل چه دا جمله دَ

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة باب الاضطجاع بعدها (رقم-۱۲۶۴)
(۲) اخرجه مالک کتاب وقوت الصلاة . باب وقوت الصلاة رقم-۸)

سحر په اذان کښې وايه.

**د نبي کريم نه د الصلاة خير من النوم د زيادت ثبوت :** د حديث د ظاهري الفاظونه داسې معلوميږي چې حضرت عمر رضی الله عنه دا جمله د صبا په اذان کښې شامله کړې ده خو داسې نه ده بلکه وړاندې په حديث نمبر (٦٣٥) کښې د ابومحذوره رضی الله عنه په روايت کښې واضح الفاظ موجود دي چه حضوراکرم هغه ته اوفرمائيل چه کله د سحر اذان وې نو په هغې کښې "الصلوة خير من النوم" وايه.

**د حضرت عمر په قول کښې درې احتمالات :** ① شيخ عبدالحق رحمه الله اشعة المعات کښې فرمائي په دې کښې يو احتمال دې چه د حضورپاك نه پس دا کلمه د سحر په اذان کښې متروك شوې وه نو حضرت عمر رضی الله عنه ورته ياده کړه دا د سحر د اذان د پاره وه اوس دا په دې کښې وايه.

② حضرت عمر رضی الله عنه د دغه مؤذن په دې جمله باندې خفګان ښکاره کړو چه دا جمله د سحر په اذان کښې ده هم هلته ئې وايه د چا د پاسولو د پاره [اشعة المعات: ٣٣٣]

د اذان نه بهر په يوځائې دامه استعمالوه. د دې نه د حضرت عمر رضی الله عنه د دې سخت موقف پته لګې کوم چه هغوی د اسلام په اصول او ضوابط او قواعد او د احکامو د حفاظت اونګرانئې د پاره اختيار کړې وه.

③ حضرت عمر رضی الله عنه د تاکيد او تذکير په توګه مؤذن ته اوفرمائيل چه دا د سحر په اذان کښې لازمي لوله. (کذا في التعليق الفصيح)

بهرحال د رافضه مرفوضه او شيعه اوړ شنيعه اعتراض بې ځايه دې دا کلمه پخپله حضورپاك په اذان کښې شامل کړې ده.

### ٦٥٣ — د اذان د پاره په غوږونو کښې ګوتې ورکول

٦٥٣ — (۱) [۱۳] ① وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَعْدِ بْنِ عَمَّارِ بْنِ سَعْدٍ، مُؤَذِّنِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: ② حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِلَالًا ③ أَنْ يَجْعَلَ أُصْبُعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ وَقَالَ: (إِنَّهُ أَرْفَعُ لِصَوْتِكَ)» رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① عبدالرحمن ابن سعد ابن عمار ابن سعد مؤذن د رسول الله ﷺ وايي ② ماته زما پلار سعد او هغه د خپل پلار عمار ښخه او هغه د سعد د نيکه ښخه چې د هغه نوم هم سعد وو واوريدل چې حضور ﷺ حضرت بلال رضی الله عنه ته حکم ورکړي وو ③ چې هغه دې د اذان کولو په وخت خپلې دواړه ګوتې په غوږونو کې ورکوي ښکه چې په دې سره آواز ډير بلند او اوچتيږي. (ابن ماجه)

---

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب الأذان، والسنة فيه . باب السنة في الأذان (رقم - ٧١٠)

**تسهیلات:**

**قوله:** أُصْبُعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ:

**په غوږونو کښې د ګوتو ورکولو فائده:** یعنی په دواړو غوږونوکښې دواړه ګوتې ورکولوسره اذان کوئی، په غوږونوکښې د ګوتو ورکولوحکمت پخپله په حدیث کښې ذکردې چه په دې سره د مؤذن آواز اوچت شي دې وجه داده چه کله مؤذن غوږونوکښې ګوتې ورکولوسره آذان کوی نوهغه خپل اواز کم اوری په دې وجه هم هغه د دې نه د نور زاتولو د پاره کوشش کوی دغه شان به یو په زوره آواز سره اذان مخې ته راځي نن صبالاؤډسپیکرې چلیږی مګر علماؤ هم دغه فتوی ورکړې ده چه په غوږونوکښې ګوتې کیخودل سنت دی دې د پاره چه دا سنت ختم نه شي

قوله "حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ أَبِيهِ"

**د حضرت سعد نه مراد:** په دې حدیث کښې د حضرت سعد رضي الله عنه نوم راغلې دې دا د حضورپاك په زمانه کښې د مسجد قباء مؤذن وو د حضور پاك په وفات باندې حضرت بلال شام ته لاړو هلته ئې اوسیدل اختیار کړل نو د هغوی په ځائې حضرت سعد رضي الله عنه په مسجد نبوی کښې ټول ژوندون کښې اذان ورکولو [الکاشف ۲/۲۳۶]

# [۵/۲۳] بَابُ فَضْلِ الْأَذَانِ وَإِجَابَةِ الْمُؤَذِّنِ]

**اذان او د هغې د جواب فضیلت**

**خلاصة الباب:**

**فيه ستة وعشرون حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

(۱) فضيلة المؤذن : ۱، ۳، ۷، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۲۵۔

(۲) فضيلة الأذان : ۲، ۷، ۲۱۔

(۳) إجابة الأذان والإقامة : ۴، ۵، ۱۷، ۲۰، ۲۲، ۲۳، ۲۴۔

(۴) الذكر بعد الأذان: ۴، ۶، ۸، ۱۶، ۲۶۔

(۵) الصلوة والدعاء بين الأذان والإقامة: ۹، ۱۸، ۱۹۔

(۶) عدم الأجرة على الأذان : ۱۵۔

**د اذان اهمیت:** اذان د دین اسلام د شعائرنه دې د الله تعالی د عظمت او د هغه د نوم د عزت اعلان دې. د اسلام د غلبې نښه ده. د توحید اورسالیت او پاکیزه ګواهئی اوچت عنوان دې. هم په دې وجه اذان ورکول اوجاری ساتلو لوئی فضیلت او غټ د ثواب کاردې.

په دې باب کښې به هغه احادیث ذکرکولې شي په کوم کښې چه دابیان وی چه اذان کول دَ دنیا او آخرت دَعظمتونو او نیك بختو دَحاصلولو ذریعه ده. چرته چه اذان په ښکاره کیږی نودادې خبرې نښانی ده چه اسلام ته دبدبه حاصله ده. هم دغه وجه ده چه دَ امام محمد رحمه الله قول دې چه په کومه علاقه کښې مسلمانان بالکیه اذان پریږدی نودَهغوی خلاف دې دَوخت بادشاه دَ جهاد اعلان اوکړی.

**د اذان او اقامت په افضلیت کښې غوره تطبیق:** راجح قول دادې چه که چرته یوسړی ته پوره یقین وی چه هغه دَ امامت ټول حقوق په ښه شان سره سرته رسولې شي نودَهغه دَپاره امامت کول غوره دی اوکوم سړې چه دَامامت فرائض په ځائی راوړلونه عاجزوی نودَهغه دَپاره اذان ورکول غوره دی.

**د نبی کریم ﷺ نه د اذان کولو عدم ثبوت:** اوس پاتې شو دا سوال چه نبی کریم ﷺ په خپل ژوند کښې چرته اذان کړې دې که نه؟ نو راجح قول دادې چه حضورپاك دَ اذان دعوت ورکړې دې اوفضیلت ئې هم بیان کړې دې لیکن حضورپاك پخپله اذان نه دې کړې اوامامت ئې همیشه پخپله کړې دی.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**٦٥٤- د مؤذن مرتبه**

٦٥٣ - ()[1] ① عَنْ مُعَاوِيَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ② «الْمُؤَذِّنُونَ أَطْوَلُ النَّاسِ أَعْنَاقًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت معاویه رضی الله عنه وايي چه ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي ② چې د قیامت په ورځ به خلقو کې د ټولو څخه زيات د لوړي (دنګي) غاړي والا مؤذن وي، (مسلم)

**حل اللغات:** ① أَطْوَلُ أَعْنَاقًا: یعنی په ټولوخلقوکښې به دَاذان کونکو ستونه دَ قیامت په ورځ اوچت وی.

**تسهیلات:**

**قوله:** أَطْوَلُ النَّاسِ أَعْنَاقًا: دَدې مختلف مطلبونه بیان کړې شوی دی.

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې مختلف اقوال:** ① ابن عربی رحمه الله فرمائی دې نه مراد دادې چه داخلق به دَ زیات اعمال او زیات ثواب والاوی.

② دَ قیامت په ورځ به اذان کونکوته لوئی شان حاصل وی دَ اذان په برکت به هغوی لوئی

---

[1] اخرجه مسلم كتاب الصلاة . باب فضل الأذان وهرب الشيطان عند سماعه (رقم) ١٤ - (٣٨٧) وابن ماجة كتاب الأذان. والسنة فيه . باب فضل الأذان. وثواب المؤذنين (رقم-٧٢٥)

اعزاز حاصل وی ستهونه به ئی اوچت وی جمله هم دَدې اعزازنه کنایه ده خکه چه عزت دار خلق سټ اوچت ساتی.

③ قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه لفظ اعناق دَ عنق جمع نه ده کوم چه دَ سټ په معنی کښې دې بلکه دا اعناق دَباب افعال مصدر دې چه دَ تیز تللو په معنی کښې دې یعنی داخلق به تیزتیز دَ جنت طرف ته په منډه ورځی رومبې معنی زیاته جامع او واضح ده.

④ دَدې نه مراد دادې چه اذان کونکی به دَ قیامت په ورځ سرداران وی خکه چه په دنیاکښې دَ سردارانو ستهونه اوچت وی.

## ۶۵۵-د اذان څخه د شیطان تښتیدل

۶۵۵-()[۲]① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②(«إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ أَدْبَرَ الشَّيْطَانُ③ لَهُ ضُرَاطٌ حَتَّى لَا يَسْمَعَ التَّأْذِينَ④ فَإِذَا قَضَى النِّدَاءَ أَقْبَلَ، ⑤حَتَّى إِذَا ثُوِّبَ بِالصَّلَاةِ أَدْبَرَ، حَتَّى إِذَا قَضَى التَّثْوِيبَ أَقْبَلَ⑥ حَتَّى يَخْطِرَ بَيْنَ الْمَرْءِ وَنَفْسِهِ ;⑦ يَقُولُ: اذْكُرْ كَذَا، اذْكُرْ كَذَا، لِمَا لَمْ يَكُنْ يَذْكُرُ،⑧ حَتَّى يَظَلَّ الرَّجُلُ لَا يَدْرِي كَمْ صَلَّى؟»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② هر كله چې د لمانځه د پاره اذان كيږي نو شيطان شا كړي③ گوزونه (تيزونه) اچولو سره تښتي چې اذان وانه وري④ كله چې اذان ختم شي نو واپس راشي⑤ او كوم وخت چې تكبير ونيلې كيږی نو بيا په شا تښتي چې تكبير ختم شي نو بيا راوگرځي⑥ چې انسان او د هغه د زړه په مينځ كې وسوسې پيدا كړي⑦ (نو مونځ گزار ته) وايي چې فلاني شي ياد كړه فلاني خبره ياده كړه⑧ (د غسي د لمانځه شروع كولو څخه مخكې د مال و اولاد حساب وكتاب اوخريد وفروخت په سلسله كې) چې كومې خبرې مونځ گزار ته يادې نه وې هغه ورته رايادوي تر دې چې مونځ گزار ته بيا دا هم ياد نه پاتې كيږي چې هغه څو ركعاته كړي دي، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① أَدْبَرَ: شا كړی يعنی تختی، ② ضُرَاطٌ: وَهُوَرِيحٌ مِنْ أَسْفَلِ الْإِنْسَانِ وَغَيْرِهِ: "ضراط وضريط" تيزونو اچولوته وائی. ③ النِّدَاءَ: أَيِ الْأَذَانَ: نداء آواز ته وائی دلته ترې اذان مراد دې. ④ ثُوِّبَ: مِنَ التَّثْوِيبِ: وَهُوَ الْإِعْلَامُ مَرَّةً بَعْدَ أُخْرَى وَالْمُرَادُ بِهِ الْإِقَامَةُ: يوخل نه پس بيا اعلان كول خو دلته ترې دمونځ دپاره تكبير مراد دې. ⑤ يَخْطِرَ: أَيْ يَحُولَ: حائل كيږی يعنی وسوسې اچوی. ⑥ حَتَّى يَظَلَّ: أَيْ: كَيْ يَصِيرَ: تردې چه شی، چه اوگرځی.

[1] اخرجه البخاری كتاب الاذان باب فضل التاذين (رقم-۶۰۸) ومسلم كتاب الصلاة ، باب فضل الأذان وهرب الشيطان عند سماعه (رقم) ۱۹ - (۳۸۹) والنسائی كتاب الأذان ،فضل التأذين رقم(۶۷۰) ومالک كتاب الصلاة باب ما جاء فی النداء للصلاة (رقم-۶) وابوداود كتاب الصلاة،باب رفع الصوت بالأذان (رقم-۵۱۶)

**تسهیلات:**

**قوله: "لَهُ ضُرَاطٌ"**

**د ضراط په مفهوم کښې اقوال:** ① علامه طیبی رحمه الله فرمائی دې نه مراد ادې چه کله اذان شروع کیږی نوشیطان دَ اذان دَ آواز نه خپل ځان لرې ساتلو ساتی اودَهغې نه دَ غافل جوړیدو کوشش کوی. [الکاشف: ۲۴۸/۲]

دَ شیطان دَدې غفلت تشبیه ئې یوداسې آواز سره ورکړې شوې ده په کوم سره چه غوږونه ډکیږی اودَ هغه آواز نه بغیر هیڅ هم نه اوری. بیا دَنورو سپکاوی دَپاره هم دغه آواز ضراط سره یاد کړې شو لکه چه دا یو تشبیهی کلام دې. بهرحال په احادیثوکښې صریح الفاظ دَ تیزونواچولوراغلې دې نودا کلام په تشبیه او مجازباندې حمل کول لرې خبره ده. ځکه چه حقیقی مراد اخستلو کښې هیڅ عذر نشته دې او شیطان دومره عزت والاهم نه دې چه مونږ دَهغه طرف ته دَ تیزونو اچولو نسبت اونه کړو.

② قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه دا کلام حقیقت دې ځکه چه شیطان هم بدن لری خوری څکی او تیزونه اچوی. یعنی دَ آذان آوازپه شیطان باندې داسې دروند وی لکه چه په خرباندې زیات وزن او سامان بارکړې شی نو خرتیزونه اچوی دغه شان شیطان هم په حقیقت کښې تیزونه اچوی اولکئی ځان کښې ورکولوسره تختی. اوداحتمال هم دې چه دې نه مراد دَسخت نفرت اظهارکول وی چه شیطان آواز اوریدوسره په سخت نفرت سره تختی.

**اشکال:** شیطان دَ تلاوت نه نه تختی دَمونځ نه نه تختی په مانځه کښې دننه شهادتین نه نه تختی، آخرڅه وجه ده چه هغه صرف دَ اذان نه تختی؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① په دې حدیث کښې دَ اذان فضیلت په مونځ باندې جزئی ذکردې په کوم سره چه دَ مونځ کلی فضیلت نه متاثرکیږی. بعضې علماؤ دا فرمائیلی دی چه مؤذن داعی الی الخیر دې او شیطان داعی الی الشر دې. داعی الی الشر دَ داعی الی الخیر دَ اذن نه سوزیدوسره تختی.

② اذان دَ شعائرالله نه دې اوچرته چه اذن په ښکاره سره په مینارو باندې وئیلې کیږی هلته اسلام ته غلبه حاصله وی. شیطان دَ اسلام دا شان اوشوکت اوعظمت اودَدې اوچتوالې او عزت نه شی برداشت کولې په دې وجه تیزونه اچولوسره تختی. معلومه شوه چه دَ جهاد او آزادئی په زمکه باندې اذان کول اودَ غلبه قدرت طاقت عظمت او په سوری کښې دَ اذان کولو شان څه بل رنګه وی او مغلوبیت او مظلومیت او مقهوریت اومسکنت په حالت کښې دَ اذان حیثیت بل شان وی.

## ٦٥٦ — د مؤذن دپاره د هر شي ګواهي ورکول

٦٥٦ — (١)[٣] [١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «لَا يَسْمَعُ مَدَى صَوْتِ الْمُؤَذِّنِ جِنٌّ وَلَا إِنْسٌ وَلَا شَيْءٌ، [٣] إِلَّا شَهِدَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د مؤذن انتهايي اواز چې څوك هم اوري كه هغه انسان وي كه پيرى او كه نور څه [٣] هغه ټول به د قيامت په ورځ د مؤذن د (ايمان) ګواهي وركوي. (بخاري)

**حل اللغات:** ① مَدَى: أَيْ: غَايَتَهُ وَهُوَ صَوْتٌ مُجَرَّدٌ مِنْ غَيْرِ فَهْمِ كَلِمَاتِ الْأَذَانِ: مدى مسافت اوفاصلې او بُعد اوانتهاء په معنى كښې دې. يعنى هغه آواز چه آوريدلې كيږى خو د اذان كلمات ئې په پوهه كښې نه راځى.

**تسهيلات:**

**قوله:** "مَدَى صَوْتِ الْمُؤَذِّنِ"

**په اذان كښې د آواز اوچتولو ترغيب:** دې حديث كښې مؤذنينوته دا ترغيب وركړې شوې دې چه دَ چا آواز څومره اوچتيدې شى هغه له پكاردى چه دَ آخرى درجې پورې دَ آواز اوچتولو كوشش دې كوى. هم دغه وجه ده چه اذان كونكې په غوږونو كښې ګوتې وركولو سره اذان كوى چه آواز ئې اوچت شي او هغه ته دَ زيات نه زيات ثواب ملاؤشي او هم دغه وجه ده چه اذان دَجمات نه بهر چرته په اوچته مناره باندې كيږى.

[اشعة المعات: ٣٣٥ والكاشف: ٢٣٩]

## ٦٥٧ — د اذان جواب وركول

٦٥٧ — (٢)[٤] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «إِذَا سَمِعْتُمُ الْمُؤَذِّنَ فَقُولُوا مِثْلَ مَا يَقُولُ، [٣] ثُمَّ صَلُّوا عَلَيَّ؛ فَإِنَّهُ مَنْ صَلَّى عَلَيَّ صَلَاةً، صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ بِهَا عَشْرًا، [٤] ثُمَّ سَلُوا اللّٰهَ لِيَ الْوَسِيلَةَ؛ [٥] فَإِنَّهَا مَنْزِلَةٌ فِي الْجَنَّةِ لَا تَنْبَغِي إِلَّا لِعَبْدٍ مِنْ عِبَادِ اللّٰهِ، [٦] وَأَرْجُو أَنْ أَكُونَ أَنَا هُوَ، [٧] فَمَنْ سَأَلَ لِيَ الْوَسِيلَةَ حَلَّتْ عَلَيْهِ الشَّفَاعَةُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] عبدالله ابن عمرو ابن عاص رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هر كله چې تاسو د مؤذن آواز واورئ نو د هغه په جواب كې د هغه الفاظ وائي [٣] بيا د اذان

---

(١) اخرجه البخارى كتاب الاذان باب رفع الصوت بالنداء (٦٠٩قم-٦٠٩) والنسائى كتاب الأذان .رفع الصوت بالأذان (رقم-٦٤٤) وابن ماجة كتاب الأذان. والسنة فيه . باب فضل الأذان. وثواب المؤذنين (رقم-٧٢٣) ومالک كتاب الصلاة باب ما جاء فى النداء للصلاة (رقم-٤)

(٢) اخرجه مسلم كتاب الصلاة .باب القول مثل قول المؤذن لمن سمعه. ثم يصلى على النبى صلى الله عليه وسلم ثم يسأل له الوسيلة (رقم) ١١ - (٣٨٤) وابوداود كتاب الصلاة.باب ما يقول إذا سمع المؤذن (رقم-٥٢٣) والترمذى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم ٣٦١٤) والنسائى كتاب الأذان .الصلاة على النبى صلى الله عليه وسلم بعد الأذان (٦٧٨قم-٦٧٨)

ځکه وروسته په ما باندې درود ولیږئ ځکه چې کوم سړي په ما باندې یو ځل درود ولیږي نو د هغې په بدله کې الله ﷻ په هغه لس ځله رحمت نازلوي ۴ بیا په ما درود لیږلو سره زما د پاره الله ﷻ ځخه دوسیلې دعا کوي ۵ وسیله د جنت یوه اعلی درجه ده چې د الله ﷻ په بنده ګانو کې به صرف یو بنده ته حاصلیږي ۶ او زه امید لرم چې هغه خاص بنده به زه یم ۷ نو کوم سړي چې زما د پاره د وسیلې دعا کوي د قیامت په ورځ به د هغه سفارش په ما ضروري وي، (مسلم)

**حل اللغات:** ① سَلُوا: د سَأَلَ يَسْأَلُ نه د امر صیغه ده، سوال کول، دعا کول یعنی د الله نه اوغواړئ. ② اَلْوَسِيلَةَ: ددې جمع وَسَائِل راځی، هِيَ مَا يُتَوَسَّلُ بِهِ إِلَى الشَّيْءِ وَيُتَقَرَّبُ بِهِ إِلَيْهِ: هرهغه څیز چه په هغې سره الله ته نزدیکت حاصلولې شی.

**تسهیلات:**

**قوله: فَقُولُوا مِثْلَ مَا يَقُولُ:** یعنی چه څنګه الفاظ مؤذن اداکوی تاسو هم په هغه شان الفاظوسره جواب ورکوئی.

**د مؤذن د اجابت دوه قسمونه:** ① اجابت مؤذن دوه قسمه دې یو اجابت فعلی دې هغه دا چه دَ مؤذن په راغوښتو سره جمات ته لاړشی.

② دویم اجابت قولی دې چه په ژبه سره جواب ورکړی.

**د اجابت اذان په حکم کښې مذاهب:**

① اهل ظواهر اوبعض احناف اوبعض مالکیه دَدې قائل دی چه هم دَمؤذن دَالفاظو په شان الفاظوسره جواب ورکول واجب دی.

② امام شافعی رحمه الله اوامام احمد رحمه الله او اکثر احناف دَدې قائل دی چه اجابت قولی مستحب دې واجب نه دې.

**داول فریق دلیل:** د اول فریق مستدل زیربحث حدیث دې په دې کښې دَامر صیغه ده کومه چه دَ وجوب دَپاره راځی لهذا اجابت قولی واجب دې.

**داول فریق د دلیل جواب:** امر صیغه په استحباب باندې محمول دې.

**د دویم فریق دلیل:** دَحضرت انس رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې په هغې کښې دی چه حضورپاک دَ یومؤذن اذان واؤریدو نو حضورپاک اوفرمائیل "علی الفطرة" په دې کښې حضورپاک دَ مؤذن دَ الفاظودَ جواب په ځائی په نورو الفاظوسره جواب ورکړې دې معلومه شوه چه واجب نه دی.

**د اذان په جوابی کلماتو کښې مذاهب:**

① امام شافعی رحمه الله اواهل ظواهر فرمائی پوره اذان دَ مؤذن دَ کلماتو په شان جواب کښې

سردوباره کول پکاردی تردې چه دَ حیعلتین په جواب کښې هم هغه کلمات وئیل پکاردی.
۲ دَ ائمه احناف او حنابله په نیز "حي علی الصلوة، حي علی الفلاح" په جواب کښې حوقله یعنی لاحوله ولاقوة الا بالله وئیل پکاردی

**داول فریق دلیل:** زیربحث حدیث د دوی مستدل دې. په دې حدیث کښې دَ یولفظ استثناء نشته دې بلکه ټول الفاظ هم هغه شان جواب کښې دَ اداکولوحکم ورکړې شوې دې څنګه چه مؤذن وئیلی دی.

**داول فریق د دلیل جواب:** دا روایت مجمل دې اواحنافوچه دکومو روایتونونه استدلال کړې دې هغه مفسردی اودَ مجمل اومفسر په تعارض کښې مفسرته ترجیح ورکولې شی بلکه په حقیقت کښې په دې دواړو کښې تعارض کیدې نه شی صرف دَ اجمال اوتفصیل فرق کیږی. اوس دا هم اوګورئی چه دَ اذان دکلمات په جواب کښې چرته چه دَ مؤذن اوسامع په الفاظ کښې فرق راځی هغه دَ حیعلتین الفاظ دی دَدې په جواب کښې اوریدونکی "لاحول ولاقوة الا بالله" وئیلوسره دَ خپلې عاجزئی اوبې بسئی اظهارکوی اودَالله تعالی نه دَ امداد اونصرت درخواست کوی

**د دویم فریق دلائل:** ۱ دَ مشکاة حدیث نمبر(۶۵۸) د دوی مستدل دې په دې کښې حضورپاك دَ "حي علی الصلوة" په جواب کښې "لاحول ولاقوة الا بالله" لوستلی دی دغه شان دَحضرت معاویه ﷺ روایت په بخاری کښې دې هغی کښې لاحول ولاقوة الا بالله ذکرموجوددې.

۲ یوعقلی دلیل هم د دوی مستدل دې چه کله مؤذن دَمانځه طرف ته یا دکامیابئی طرف ته خلق رابلی اوخلق هم مؤذن په جواب کښې مونځ اوکامیابئی طرف ته رابلی نودا واضحه توقې اومسخرې دی کوم چه په شریعت کښې جائزنه دی.

**دالصلاة خیر من النوم جواب:** اودَ سحر په اذان کښې چه کله مؤذن "الصلوة خیرمن النوم" اووائی نو اوریدونکې "صدقت وبررت وبالحق نطقت" سره جواب ورکولوسره دې دَ مؤذن دَ دعوی تصدیق اوکړی اودَهغه ذات او دَهغه دکلمات تعریف اوتوصیف دې اوکړی

**قوله:** الْوَسِيلَةَ.

**دوسیله تعریف:** دالفظ اردو فارسی او پښتو کښې یوشان په وسیله او ذریعه باندې وئیلې شی یعنی یو مطلوب ته دَ رسیدودَپاره چه کومې ذرائع استعمالیږی هم هغه وسیله.

**دوسیلې لغوی تحقیق:** په قاموس کښې لیکلی دی چه وسیله او واسله، بادشاه سره ډیر اوچت مقام اودَ اوچتو درجوحاصلولونوم دې. کله چه سړی ته دَ قرب اومنزلت دامقام ملاؤ شی نوده ته وسیله حاصله شوه اودَ دغه درجې دَ رسیدلوپورې نیك اعمال او دَ اوچتو

کارنامو ضرورت پېښیږي په دې وجه وسیله په خو اعمالو باندې هم یادولې شي.

**په حدیث کښې د وسیله په مفهوم کښې درې اقوال:**

① په دې حدیث کښې دَ وسیله مطلب پخپله حضورپاك بیـان فرمـائیلې دې چه دا یوخائی اودَ یومقام نوم دې کوم چه په جنت کښې دې.

② شیخ عبـدالحق رحمه الله لمعات کښې لیکلی دی چه په دې حدیث کښې دَ کومې وسیله ذکر دې دَهغې نه دَالله تعالی قـرب مراددې. دلتـه چه داکوم فرمـائیلې شوی دی چه دا په جنت کښې دَ یومقام نوم دې دَدې مطلب هم دغـه قـرب دې ځکـه چه جنت هم دَ قـرب الهی مقام دې اووسیله هم مقام قرب دې. [اشعة المعات: ۳۳۵.

③ دلته په حدیث کښې دَ جنت نه وړاندې په میدان محشرکښې دَ شفاعت کبری دَپاره کله حضورپاك مقام قـرب تـه ځی نـوهم دغـې تـه وسیله وئیلې شـوې ده اودغـه مقام تـه مقام محمودوائی دَ کوم تذکره چه په قرآن کریم کښې موجود ده. دَ وسیله دا مفهـوم دَدې حدیث دَپاره دَ ټولونه زیات موزون دې.

**قوله: وَأَرْجُو:**

**د ارجو وئیلو وجه:** دَدغـه درجې اومقـام محمـود اووسـیله دَ دې اعلی او ارفـع مقـام دَپاره حضورپاك متعین دې بیاهم حضورپاك دَ تواضع اوانکسارئی په توګه "أرجو" امیدلرم الفاظ فرمائیلی دی. بعض شارحینو "أرجوا" دَ "أتيقن" په معنی کښې اخستې دې زما یقین دې چه دا درجه به ماته ملاویږی.

**٦٥٨ــ د اذان د جواب ورکولو طریقه**

٦٥٨ــ( )[٥] ① وَعَنْ عُمَرَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② ((إِذَا قَالَ الْمُؤَذِّنُ: اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ; فَقَالَ أَحَدُكُمْ: اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ، ③ ثُمَّ قَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ; قَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ. ④ ثُمَّ قَالَ: أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ; قَالَ: أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ،

**ترجمه:** ① او حضرت عمر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل ② هر کله چې مؤذن الله اکبر الله اکبر اووائي نو په تاسو کې هم هر سړي الله اکبر الله اکبر او وایي ③ بیا چې مؤذن اشهد ان لا اله الاالله اووائي نو په تاسو کې دي هر سړي اشهدان لا اله الاالله اووائي ④ بیا چې مؤذن اشهد ان محمدا رسول الله اووائي نو په تاسو کې هم هر سړي اشهد ان محمدا رسول الله اووائي

① ثُمَّ قَالَ: حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ; قَالَ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ. ② ثُمَّ قَالَ: حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ; قَالَ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ. ③ ثُمَّ قَالَ: اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ; قَالَ: اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ ④ ثُمَّ قَالَ: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ; قَالَ: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ ⑤

[1] اخرجه مسلم كتاب الصلاة ، باب القول مثل قول المؤذن لمن سمعه، ثم يصلي على النبي صلى الله عليه وسلم ثم يسأل له الوسيلة (رقم) ١١ - (٣٨٥) وابوداود كتاب الصلاة،باب ما يقول إذا سمع المؤذن (رقم-٥٢٧)

مِنْ قَلْبِهِ، دَخَلَ الْجَنَّةَ»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** [۱] بیا چې مؤذن حي علي الصلوٰة اووائي نو په تاسو کې هم هر سړي لاحول ولاقوة الا بالله اووائي [۲] بیا چې مؤذن حي علي الفلاح اووائي نو په تاسو کې دي هر سړي لاحول ولاقوة الا بالله اووائي [۳] بیا چې مؤذن الله اکبر الله اکبر اووائي نو په تاسو کې هر سړي الله اکبر الله اووائي [۴] بیا چې مؤذن لا اله الا الله اووائي نو په تاسو کې هر سړي لا اله الا الله اووائي [۵] (چا چې د اذان په جواب کښې دا کلمات) د زړه په صدق سره اووئیل نو هغه به جنت کې داخلیږي. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ:

**په اذان کښې د تکبیراتو تعداد دوه ذکر کولو وجه:** دلته تکبیر دوه خل وئیلې شوې دې داد مکمل اذان حکایت نه دې اختصارسره دأذان د يو څو کلماتو ذکر دې کوم چه د اذان د باقی کلماتو طرف ته اشاره ده. ګنی تکبیرات خو څلور خل دی.

**قوله:** لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ.

**د مذکوره جملې معنی:** یعنی د ګناه نه بچ کیدو صرف دالله به مدد اوقدرت سره کیږی. او د الله تعالی تابعداری صرف د هغه به مدد اوتوفیق سره کیږی

قوله. مِنْ قَلْبِهِ:

**د مذکوره کلماتو په وئیلو جنت ته داخلیدل:** یعنی په صدق او پوخ ایمان سره دا کلمات اووائی نوهغه به خامخا جنت ته ځی که دهغه ګناهونه موجودوی او الله تعالی معاف کړي هم نه وی نود سزا تیرولونه پس دخول ثانوی په صورت کښې به جنت ته ځی اوکه چرې دهغه ګناه نه وی یا الله تعالی معاف کړې وی نو دخول اولی کښې به جنت ته ځی

**۶۵۹ – د اذان نه وروسته دعا**

۶۵۹–()[۱] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ -، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنْ قَالَ حِينَ يَسْمَعُ النِّدَاءَ: [۳] اللّٰهُمَّ رَبَّ هَذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ، وَالصَّلَاةِ الْقَائِمَةِ، [۴] آتِ مُحَمَّدًا الْوَسِيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ، [۵] وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا الَّذِي وَعَدْتَهُ - [۶] حَلَّتْ لَهُ شَفَاعَتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ»). رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې د اذان اوریدو سره (یعنې د اذان ختمیدو او د هغې د جواب ورکولو څخه وروسته) دا دعا

[۱] بخاری کتاب الاذان باب الدعاء عند النداء (رقم-۶۱۴) وابوداود کتاب الصلوٰة باب ما جاء فی الدعاء عند الأذان (رقم-۵۲۹) والنسائی کتاب الأذان .الدعاء عند الأذان (رقم-۶۸۰) وابن ماجة کتاب الأذان. والسنة فیه . باب ما یقال إذا أذن المؤذن (رقم-۷۲۲)

وکړه③ دعا دا ده اللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلَاةِ الْقَائِمَةِ آتِ مُحَمَّدَنِ الْوَسِيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُودَنِ الَّذِيْ وَعَدْتَّهُ، اې الله مالك د دې کامل دعا (اذان) او پروردګار د دې کیدونکي مونځ④ زمونږ سردار محمد رسول الله ﷺ ته وسیله (د جنت د ټولو څخه خاص او اعلي درجه) او بزرګي ور کړې⑤ او هغه ﷺ مقام محمود ته ورسوي چې د هغې ورسره تا وعده کړې ده،⑥ نو د قیامت په ورځ د هغه شفاعت په ما لازم دي، (بخاري)

**حل اللغات:** ① النِّدَاءَ: أَيِ الْأَذَانَ: نداء آواز ته وائی دلته ترې اذان مراد دې. ② الدَّعْوَةِ: اذان ته دعوت اووئیلې شو ځکه چه دا په توحید باندې مشتمل دې اودَ عبادت طرف ته دعوت هم دې. ③ التَّامَّةِ: أَيِ الْكَامِلَةِ الْفَاضِلَةِ: یعنی کامل اوفضیلت والاځکه چه دا دالله تعالی ذکردې چه په دې سره خلق دهغه عبادت طرف ته رابللې شی، ④ الْقَائِمَةِ: أَيِ الدَّائِمَةِ: همیشه (چه نه پکښې څه تبدیلی راځی او نه نسخ او ترقیامته پورې به قائم وی)، ⑤ آتِ: أَيْ أَعْطِ: ورکړه، ⑥ الْوَسِيلَةَ: أَيِ الْمَنْزِلَةَ الرَّفِيعَةَ: لویه مرتبه، ⑦ الْفَضِيلَةَ: أَيِ الزِّيَادَةَ: ډیر زیات بې انتها، ⑧ وَابْعَثْهُ: أَيْ: أَرْسِلْهُ، وَأَوْصِلْهُ: اوئې لیږه، اوئې رسوه، ⑨ مَقَامًا مَّحْمُودًا: أَيْ: مَقَامَ الشَّفَاعَةِ: هغه لوئې مقام چه صفت ئې شوې دې یعنی مقام دشفاعت کبری.

**تسهیلات:**

**قوله:** "اللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ،"

**د دعوت تامه نه مراد:** شیخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې لیکی چه دَدې دعوت نه مراد دَ توحید کلمات دی لکه دَ قرآن پاك آیت ﴿لَهٗ دَعْوَةُ الْحَقِّ ط﴾ کښې دعوت نه توحید مراد دې. دې سره دَ "التامة" لفظ لګولوسره اشاره اوکړې شوه چه دَ توحید کلمه کامل مکمل او دَ بدلون او تنسیخ قابله نه ده. بیا دغه کمال سره "محمد رسول الله" کلمه یوځائی کولوسره په توحید او رسالت کښې اوچت کمال پیدا شو هم دغه مجموعه دَ دعوة تامة په نوم سره یاد کړې شو. [اشعة المعات: ۳۳۶]

**قوله:** "وَالصَّلَاةِ الْقَائِمَةِ"

**د مذکوره جملې نه مراد:** په دې جمله سره دَ مانځه طرف ته اشاره ده دکوم طرف ته چه دعوت ورکولې شی الله تعالی په قرآن کریم کښې دَ مانځه دپاره ﴿ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ ﴾ الفاظوسره بار بار ارشاد کړې دې اودَ اقامة الصلوة طرفته په دې کلماتوسره اشاره کړې شوې ده.

**قوله:** "وَالْفَضِيلَةَ،"

**دفضیلت په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① ممکن ده چه دَدې فضیلت نه هم دغه وسیله مراد وی ② ممکن ده په ټول کائنات باندې دَ حضورپاك دَ پاره دَ فضیلت دعا وی

**د درجه رفیعه عدم صحت:** دلته بعضې خلق "والدرجة الرفيعة" الفاظ زیاتوی مګر دغه په

مستند طریقوسره ثابت نه دی په دې وجه دا نه دی ونیل پکار.

**قوله: "مَقَامًا مَّحْمُودًا"**

**د مقام محمود نه مراد:** دَمقام محمودنه دَ شفاعت کبریٰ هغه مقام مراد دې چرته چه به حضورپاك دَالله تعالی په وړاندې په سجده کیدوسره په عجیبه او حیرانونکی محامدسره دَالله تعالی تعریف کوی. بیا به الله تعالی اوفرمائی "ارفع رأسك يا محمد سل تعط" رسول الله ﷺ به اوفرمائی چه اې الله حساب کتاب شروع کړه بیابه حساب کتاب شروع شی.

**قوله: "حَلَّتْ"**

**د شفاعت وجوب:** بعضې روایاتوکښې دَ وجبت لفظ راغلې دې یعنی دَ دغه سړی دَپاره به زما شفاعت واجب شی. دَ حلت معنی دَ حلال کیدو ده اودَمستحق کیدو ده. "شفاعتي" په قیامت کښې به دَ شفاعت ډیر اوچت مقام وی اوهلته به دَدې دَ قیمت پته لګی. ۱

**د شفاعت د اهمیت مثال:** یوسړې په یوځائی کښې هیڅ هم نه پیژنی چه څه اوکړی. حیران ولاړدې دَاعمالودَ ضائع کیدو خطره هم ده څوك واقف هم نشته. په انتظارکښې په سخته ګرمئی کښې پریشان ولاړدې چه ناڅاپی یوسړې راځی اودَ قطار نه هغه بهر راویستو سره دَلاس نه نیسی او جنت طرف ته ئی بوځی او وائی چه دَ محمدعربی ﷺ سړې دې. دَدغه سړی دَپاره دغه وخت کښې دَ شفاعت او سفارش نه زیات بل هیڅ څیزنه شی کیدې لکه دَ بین الاقوامی پرواز په وخت سړې دَ امیګریشن سستیم لاندې خپل کاغذات چیك کولودَپاره پریشان ولاړ وی هرقسم خطرو سره مخ دې چه ناڅاپی دَ انیرپورټ لوئی مشر راځی. اودې وینا کولوسره هغه بوځی چه دا زما سړې دې دغه شان هغه مجبوره سړې دَهرقسم مصیبتونونه بهرشی. "اللهم ارزقنا شفاعة نبيك بجاه حبيبك محمد ﷺ" په مختلفو احادیثوکښې دَ اذان نه پس نورو دعاګانوئیلوهم ذکر دې. په راتلونکواحادیثوکښې دَ یوڅو دعاګانو بیان راځی.(ماخوذ از توضیحات) (؟)جاری

## ٦٦٠- په یو قوم باندې د حملې کولو نه وړاندې د اذان انتظار

٦٦٠-( )[٧] ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ②«كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُغِيرُ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ، ③وَكَانَ يَسْتَمِعُ الْأَذَانَ، فَإِنْ سَمِعَ أَذَانًا أَمْسَكَ، وَإِلَّا أَغَارَ; ④فَسَمِعَ رَجُلًا يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ. ⑤فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (عَلَى الْفِطْرَةِ). ⑥ثُمَّ قَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ ⑦فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (خَرَجْتَ مِنَ النَّارِ). ⑧فَنَظَرُوا إِلَيْهِ فَإِذَا هُوَ رَاعِي مِعْزًى». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

(١) اخرجه مسلم كتاب الصلاة . باب الإمساك عن الإغارة على قوم فى دار الكفر. إذا سمع فيهم الأذان (رقم) ٩ - (٣٨٢) وابوداود كتاب الجهاد اب فى دعاء المشركين (رقم-٢٦٣٤) والترمذى كتاب السير عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى وصيته صلى الله عليه وسلم فى القتال (رقم-١٦١٨)

**ترجمه**: ① حضرت انس رضي الله عنه وايي ② چې رسول الله ﷺ (چې به كله لښكر سره سره يو ځاي ته ورتلي نو) سحر (فجر) كيدو باندې به يي (په د ښمن) حمله كوله ③ او (په فجر كيدو باندې به يي) د اذان انتظار كولو د هغه ابادي ځخه (چې په هغه به د حملي اراده وه) كه د اذان اواز به راغي نو حضور ﷺ به د حملي كولو ځخه منع شو او كه داذان آوازبه رانغلي نو حمله به يي پرې كوله ④ يو ځل چې حضور ﷺ په دښمن د حملي كولو د پاره روان وو نو په يو مقام باندې حضور ﷺ د يو سړي ځخه الله اكبر الله اكبر ويل واوريدل ⑤ حضور ﷺ وفرمايل دا سړي د اسلام (په طريقه) دي (ځكه چې اذان خو مسلمان كوي) ⑥ بيا هغه سړي اوويل اشهد ان لا اله الا الله (زه ګواهي وركوم چې د الله جل جلاله ځخه سوا بل معبود نشته) ⑦ حضور ﷺ په دي اوريدو سره وفرمايل چې ته د شرك ځخه منع كيدو سره د دوزخ ځخه ووتلي ⑧ صحابه و رضي الله عنهم (ځلور طرفو ته په كتلو سره معلومات اوكړل چې اذان كونكي ځوك دي نو) وي ليدل چې هغه يو بزي (چيلي) ځرونكي سړي دي. (مسلم)

**حل اللغات**: ① يُغِيرُ: مِنَ الْإِغَارَةِ: حمله كولو ته وائي. ② أَمْسَكَ: أَيْ: عَنِ الْإِغَارَةِ وَتَرَكَهَا: منع به شو دحملې كولونه. ③ الْفِطْرَةِ: أَيْ: أَنْتَ أَوْ هُوَ عَلَى الدِّينِ أَوِ السُّنَّةِ أَوِ الْإِسْلَامِ: يعنى چه اذان كونكې د دين اود اسلام په طريقه باندې دي (ځكه چه اذان د مسلمانانو نښه ده. ④ رَاعِي: شپونكې، ځرونكې، ⑤ مِعْزًى: دا اسم جنس دې چيلوته وائي.

**تسهيلات:**

**قوله: يُغِيرُ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ:**

**په دشمن باندې د حملې كولو مسنون طريقه**: دَ حضوراكرم ﷺ عادت شريف ووچه كله به نى دَ دښمن خلاف كاروائى كوله نودَ سحر دَ راختلو په وخت كښې به نى كوله دادَ دښمن دَ غفلت وخت دې اودَمسلمان مجاهد دَ چستئى وخت دې بيا په دې وخت كښې حمله كولو كښې دَ رسول الله ﷺ مخې ته به دا حكمت هم ووچه په كوم كلى باندې حمله كيدونكې ده آيا په هغې كښې مسلمانان هم دى كه ټول په ټول كافردى كه چرته دَ يو مسلمان اندازه په كيدله نو بيابه نى كاروائى په احتياط سره كوله يابه ئى بندوله ګنى دَ احتياط ضرورت به نه وو هم دَدې مقصدد پاره حضورپاك دَ سحر دَ اذان انتظاركولو، په دې حديث كښې هم دَدې ذكردې. اسلامى لښكرته دلته هم دغه تعليم وركړې شوې دې مګرعامو مسلمانانوته هم ونيلى شوى دى چه هغوى دې په دارالحرب كښې اوستوګنه نه وى ګنى كه دَ اسلامى لښكر په مقابله كښې راغلل نو وينه به ئى بې ځايه تونى شى [اشعة اللمعات: ۳۳۷]

**اذان د شعائرالله په فهرس كښې**: دَدې حديث نه معلومه شوه چه اذان شعائراسلام نه دې ځكه چه حضور پاك اذان كيدوته دَ اسلام علامت او اذان نه كيدو ته دَ كفرعلامت فرمائيلى دې. هم دغه وجه ده چه دَ فقه په جزئيات كښې دا جزئيه موجود ده كه دَ

مسلمانانو څه خلق په يو علاقه کښې اذان ورکول پرېږدي نو دَوخت په حکومت باندې فرض دي چه دَهغوی خلاف دَ جهاد اعلان اوکړي ځکه چه اذان دَ شعائر اسلام نه دې دا جدا خبره ده چه اذان سنت دې.

### ٦٦١–د اذان نه پس مسنون دعا

٦٦١–( )[٨] ١ (وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ (مَنْ قَالَ حِينَ يَسْمَعُ الْمُؤَذِّنَ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، ٣ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، ٤ رَضِيتُ بِاللّٰهِ رَبًّا وَبِمُحَمَّدٍ رَسُولًا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا- غُفِرَ لَهُ ذَنْبُهُ»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ کوم سړي چې د مؤذن اذان اوريدو سره دا اووائي **أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ رَضِيتُ بِاللّٰهِ رَبًّا وَبِمُحَمَّدٍ رَسُولًا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا**، (زه ګواهي ورکوم چې د الله جل جلاله څخه سوا بل معبود نشته او نه د هغه څوك شريك شته ٣ او ګواهي ورکوم چې محمد ﷺ د الله بنده او د هغه رسول دې ٤ او زه د الله تعالی جل جلاله په رب کيدو، د محمد ﷺ په رسول کيدو او د اسلام په دين کيدو باندې راضي يم) نو د هغه (صغيره) ګناه بخښلي شي. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** رَضِيتُ بِاللّٰهِ رَبًّا:

**د ذان نه پس دعا کښې عدم تعيين:** دا دعا دَ اذان په ختميدو باندې لوستل زيات مناسب دي دې دَپاره چه دَ اذان په دوران کښې دَ اذان دَ کلماتو په جواب کښې خلل رانه شي. دَدې دعا لوستلو نه دا هم معلومه شوه چه دَاذان مختلف دعاګاني لوستل دَ رسول الله ﷺ سنت دي صرف يوه دعا متعين نه ده.

### ٦٦٢–د اذان او اقامت په مينځ کښې د نوافلو نو حکم

٦٦٢–( )[٩] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ ( «بَيْنَ كُلِّ أَذَانَيْنِ صَلَاةٌ، بَيْنَ كُلِّ أَذَانَيْنِ صَلَاةٌ» ، ٣ ثُمَّ قَالَ فِي الثَّالِثَةِ (لِمَنْ شَاءَ» ) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ عبدالله ابن مغفل رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د هر دوو اذانونو په مينځ کې مونځ دي، د هر دوو اذانونو په مينځ کې مونځ دي ٣ بيا په دريم ځل يې

---

(۱) اخرجه مسلم كتاب الصلاة ، كتاب الصلاة ، باب القول مثل قول المؤذن لمن سمعه، ثم يصلي على النبي صلى الله عليه وسلم ثم يسأل له الوسيلة (رقم) ۱۳ - (۳۸۶) والنسائی كتاب الأذان ،الدعاء عند الأذان (رقم-۶۷۹) وابوداودكتاب الصلاة،باب ما يقول إذا سمع المؤذن (رقم-۵۲۵) وابن ماجة كتاب الأذان، والسنة فيه . باب ما يقال إذا أذن المؤذن (رقم-۷۲۱) والترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما يقول إذا أذن المؤذن (رقم-۲۱۰)

(۲) اخرجه البخاری كتاب الاذان باب: بين كل أذانين صلاة لمن شاء،(رقم-۶۲۷) ومسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها باب بين كل أذانين صلاة (رقم ۳۰٤ - (۸۳۸)) وابوداود كتاب الصلاة،باب الصلاة قبل المغرب (رقم-۱۲۸۳)

دا وفرمايل چې (دا مونځ) د هغه سړي د پاره دې چې څوک يې کول غواړي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① أَذَانَيْنِ :دَ اذانين نه اذان اواقامت مراد دي. اول اذان الغائبين دي او دويم اذان الحاضرين دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** "بَيْنَ كُلِّ أَذَانَيْنِ صَلَاةٌ" دَ تكبير او اذان په مينځ كښې وخت ډيرد بركت والا دې. دَدعادَقبليدو وخت هم دې. په دې وجه حضورپاك بيا بيا ترغيب فرمائيلې دې چه په دې كښې نفل مونځ كوئى.

**د مابنام د اذان او مونځ په مينځ كښې د نفلو په حكم كښې مذاهب:**

اوس كه دغه مونځ نفل وى اوكه سنت وى باقي مونځونو كښې خواتفاق دې خو دَ مابنام دَ اذان اودَ اقامت په مينځ كښې نفل كولو كښې دَ فقهاء كرامو اختلاف دې.

① دَ امام شافعي رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله دَ يوقول مطابق دَمابنام دَاذان نه پس اودَ مابنام دَمونځ نه مخكښې دوه ركعته نفل كول مستحب دي.

② دَ امام ابوحنيفه رحمه الله او امام مالك رحمه الله په نيز دا ركعتونه په اصل كښې جائز دى ليكن دَ مابنام دَ مونځ دَ تاخير دَ وجې نه دامكروه لغيره جوړيږى.

③ دَامام شافعي رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله يوقول دادې چه دا نفل صرف مباح دى مستحب هم نه دى. دَامام مالك رحمه الله او امام ابو حنيفه رحمه الله يوقول دَاباحت دې. ابن همام رحمه الله اباحت راجح ګرځولې دې.

**داول فريق دلائل:** زير بحث د عبدالله بن مغفل رضي الله عنه حديث د دوى مستدل دې. چه حضورپاك فرمائيلى چه "صلوا قبل صلوة المغرب"

② د مشكوة ص: ١٠٥ باندې دَ حضرت مختار بن فلفل هم د دوى مستدل. په كوم كښې چه دَ دغه ركعتونو ذكر دې.

③ د مشكوة ص: ١٠٥ باندې د حضرت انس رضي الله عنه روايت هم د دوى مستدل دې. په كوم كښې چه دَ دغه ركعتونو دَ كولو واضحه ثبوت موجوددې.

**د دويم فريق دلائل:** ① دَحضرت بريده اسلمى رضي الله عنه روايت د دوى مستدل دې.د كوم چه دارقطنى په دې الفاظو سره نقل كړې دې. ((وعن بريدة عن عبدالله بن مغفل المزني قال قال رسول الله ﷺ إن عند كل أذانين ركعتين ما خلا المغرب)) [زجاجة المصابيح: ١/١٩٩]

په دې روايت كښې دَمابنام نه علاوه وختونوكښې دَ دوو اذانونو په مينځ كښې دَ ركعتونو ذكردې اودَمابنام استثناء ده.

② په زيربحث حديث كښې دَ "لمن شاء" الفاظونه دوى استدلال كوى په كوم كښې چه دَ

کولو اونه کولو اختیار ورکړې شوې دې. اوس کول نی جائز شو لیکن په دې سره دَ ماښام دَمونځ دَ تاخیرخطره ده په دې وجه دَ نه کولو اختیارهم شته اوپه دې کښې احتیاط هم دې.
۞ دَمشکوة ص: ۱۰۵ باندې د مختار بن فلفل ﷺ روایت هم د دوی مستدل دې ځکه چه دَهغوی نه کله تپوس اوکړې شو چه آیا حضورپاك دا رکعتونه کړی دی نوهغوی اوفرمائیل "کان یرانا نصلیهما فلم یأمرنا ولم ینهنا" (رواه مسلم) دَدې روایت نه هم اختیار معلومیږی ځکه چه پخپله حضورپاك نه دی کړی اونه نی چاته دَ کولو حکم ورکړې دې او نه نی څوك منع کړې دې. په دې کولودَ استحباب باندې یا په جواز باندې عمل کولو کښې دَماښام دَ مونځ په تاخیر کښې سرې واقع کیدې شی کوم چه مکروه دې. لهذا په احتیاط باندې عمل کولوسره احناف دَ نه کولوحکم ورکوی.
**په بعضې صورتونو کښې د دې استحباب**: خو که تاخیرنه کیږی نوبیا به داکراهت لغیره هم نه پاتې کیږی. بهرحال دا دومره لوئی اختلاف نه دې. په کومو ملکونوکښې عوام او ائمه حضرات دَدې دوو رکعتو پابندی کوی نوبیا احنافوله هم پکاردی چه دا رکعتونه دې کوی.لکه په حرمینو شریفینو کښې باقاعده داماښام د آذان څخه پس دوه نفلو دپاره وخت ورکولی شی نو هلته دا دوه کول پکار دی. دغه شان که په یوځائی کښې دَرمضان ماښام کښې په روژې ماتی کښې وخت لګی نوعواموله پکاردی چه دَخالی ناستې په ځائی باندې دا دوه رکعته مونځ اوکړی. ځکه چه دا اختلاف دَ طرفین نه دَ استحباب په حکم کښې دې نومعامله آسانه شوه. دَبعضې شارحینو خیال دې چه دا حکم اول وو بیا موقوف شو.

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## ۶۶۳–د امام او مؤذن دپاره د نبی علیه السلام دعا

۶۶۳–()[۱۰] [۱]عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «الْإِمَامُ ضَامِنٌ، وَالْمُؤَذِّنُ مُؤْتَمَنٌ، [۳]اللَّهُمَّ أَرْشِدِ الْأَئِمَّةَ، وَاغْفِرْ لِلْمُؤَذِّنِينَ» ). رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، [۴]وَالشَّافِعِيُّ، وَفِي أُخْرَى لَهُ بِلَفْظِ "الْمَصَابِيحِ"

**ترجمه**: [۱] ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] امام ضامن وي او مؤذن امانت دار وي [۳] (بیا حضور ﷺ دا دعا وکړله) اي الله امامانو ته هد ایت وکړي (یعني هغوئ ته د نیك علم، صالح عمل او د اصلاح اوتقوي توفیق ورکړي) او مؤذنین (که د هغوئ څخه په اذان ویلو کي څه کمي زیاتي وشي نو هغه) وبخښي، (احمد، ابوداؤد، ترمذي، نسایي) [۴]، او امام شافعي رحمه الله بل روایت د مصابیح د لفظ پشان نقل کړي دي.

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب ما یجب علی المؤذن من تعاهد الوقت(رقم-۵۱۷) والترمذی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أن الإمام ضامن، والمؤذن مؤتمن (رقم-۲۰۷)

**حل اللغات:** ① ضَامِنٌ: أَيْ: مُتَكَفِّلٌ: ذمه واردې (چه دمقتديانو دمونځونو به هم د قراءت وغيره د اتمام رعايت ساتي). ② مُؤْتَمَنٌ: أي أَمِينٌ: امانت دار دې (چه دمونځ دوختونو خيال به ساتي چه دخلقو مونځونه او روژې په صحيح وخت اداشي). ③ أَرْشِدْ: هدايت اوکړې (امامانو ته دعلم اوعمل).

**تسهيلات:**

**قوله:** "الْإِمَامُ ضَامِنٌ"

### د ضامن په مفهوم کښې مذاهب:

① شوافع دَ "ضامن" مفهوم نګران اورعايت کونکې اخستې دې ځکه چه دَهغوی په نيز دَامام مونځ جدا دې اودَ مقتديانو مونځ جدا دې. دَامام حيثيت صرف دَ منتظم مرتب اونګران دې. دَامام مونځ که فاسدشی نودَ مقتديانو به نه فاسد کيږی.

② دَ احنافو د ذوق مطابق د "ضامن" مفهوم دا دې. چې امام دَخپلو مقتديانودَ مونځونو ذمه وار اوکفيل دې چه دَهغوی مونځونه خراب نه شی. امام دَ قرأت ذمه وار دې دَتعديل ارکان ذمه وار دې دَمونځ دَ رکعتونو ذمه وار دې. دَمونځونودَ رکعتونو او ارکانو دَ تعداد اودَمونځونو دَافعالو اوحرکاتو ذمه واردې. هم دغه وجه ده چې دَ احنافو په نيزدَ امام دَمونځ دَ صحت اوفساد سره دَمقتديانومونځ تړلې دې. که چرې دَامام مونځ فاسد شو نودَمقتديانو به هم فاسد شی. [اشعة المعات: ۳۲۸]

**قوله:** "وَالْمُؤَذِّنُ مُؤْتَمَنٌ"

**دمؤذن د امانتدار کيدو مطلب:** دَمؤذن دَ امانت او دَ هغه دَ امانتدار کيدو مطلب دادې چه هغه دَ خلقو دَمونځوبه دَ صحيح وختونو خيال ساتی. خلق روژې ساتی سحراومانبام دواړو وختونو کښې په اذان کونکی باندې يقين وی اودَ هغه دَآواز انتظارکوی. بل مؤذن په چت ختلوسره اذان کوی په کوم کښې دَ خلقو په کورونوکښې دکتلو قوی امکان دې. په دې وجه حضورپاك اوفرمائيل چه مؤذن امانت داردې دې امين جوړکړې شوې دې. دَحديث په آخره کښې دَ امام دَ هدايت دَ هغه دَلارخودنې اودَ اذان کونکی دَ پاره دَ استغفاردعاغوښتلې شوې ده چه دَ دواړو دَاحوالومناسب دعاده.

### ٦٦٤- اووه کاله پورې داذان کولو فضيلت

٦٦٣-( )[۱] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنْ أَذَّنَ سَبْعَ سِنِينَ مُحْتَسِبًا؛ [۳] كُتِبَ لَهُ بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ

**ترجمه:** [۱] ابن عباس ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې (د

[۱] والترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضل الأذان(رقم-۲۰۶) وابن ماجة كتاب الأذان، والسنة فيه ، باب فضل الأذان، وثواب المؤذنين (رقم-۷۲۷)

مزدوري او اجرت (طمعي نه بغير) محض د ثواب حاصلولو د پاره تر اوه كاله پوري اذان وکړي ③ نو هغه د پاره د دوزخ څخه نجات (خلاصي) ليکل کيږي. (ترمذي، ابوداود، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① مُحْتَسِبًا: أَيْ: طَالِبًا لِلثَّوَابِ: دثواب اود الله تعالى د رضا نيت ئي وي. ② بَرَاءَةٌ: أَيْ: خَلَاصٌ: دَ آزاديدو او خلاصيدو دَپاره يوه پروانه ورکولې شي هم دغه پروانې ته براءة وئيلې شوې دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ أَذَّنَ سَبْعَ سِنِينَ مُحْتَسِبًا; كُتِبَ لَهُ بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ:

**داووه كالو په مدت كښې حكمت:** دَ اووه كالو دَخدمت دَمودې تعين او اذان كولو ياندې دَ اعزاز وركولو حكمت الله تعالى او دَ هغه رسول ﷺ ته حواله كوو.

**قوله:** "مُحْتَسِبًا"

**د احتساب تعريف:** يعنى دَ ثواب په نيت باندې اووه كالو پورې اذان كول چه خالص دَ الله تعالى دَپاره ئي اذان كړى دنياوى اغراض او مقاصد ئي په نظر كښې نه وو. په دې وجه الله تعالى ورته دَ جنت دَ تلو پروانه وركړه. "احتساب" يعنى دَ ثواب نيت او دَ ثواب په اراده چه كوم كار اوكړې شي هغې ته احتساب وئيلى كيږى. دَدې په مقابله كښې هغه كار كوم چه دثواب په نيت سره اونه كړې شي بلكه په قومى حميت او خپلو خپلوانو په خاطر او په معاشره كښې خپله پوزه اوچتولو په غرض سره يو عمل اوكړې شى نو هغه دَ الله تعالى په نيز قبول نه دې.

**٦٦٥—په اذان او اقامت باندې د الله تعالى خوشحاله كيدل**

٦٦٥—(١٢)[١] ① وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②« يَعْجَبُ رَبُّكَ مِنْ رَاعِي غَنَمٍ فِي رَأْسِ شَظِيَّةٍ لِلْجَبَلِ ③ يُؤَذِّنُ بِالصَّلَاةِ وَيُصَلِّي، فَيَقُولُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ -: ④ انْظُرُوا إِلَى عَبْدِي هَذَا، يُؤَذِّنُ وَيُقِيمُ الصَّلَاةَ، يَخَافُ مِنِّي، ⑤ قَدْ غَفَرْتُ لِعَبْدِي، وَأَدْخَلْتُهُ الْجَنَّةَ» ) . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ

**ترجمه:** ① عقبه ابن عامر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② ستا رب راضي كيږي د غره په څوكه د بزې (چيلې) څرونكي څخه ③ چې لمانځه د پاره اذان كوي او مونځ كوي نو الله بزرګ وبرتر (ملائكو او ارواح مقربينو ته) فرمايي ④ چه زما د بنده طرف ته وګورئ هغه اذان كوي او (په پابندي سره) مونځ كوي او زما څخه ويريږي ⑤ نو ما هم د دي بنده ګناهونه وبخښل او زه به دي جنت كې داخل كرم. (ابوداود، نسايي)

**حل اللغات:** ① يَعْجَبُ: أَيْ: يَرْضَى: راضي كيږي، خوشحاليږي. ② رَاعِي: شپونكي، ګډې بزې څرونكي، ③ شَظِيَّةٍ: أَيْ: قِطْعَةٍ مِنْ رَأْسِ الْجَبَلِ: د غره سر ته وائي.

[1] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة باب الأذان فى السفر (رقم-١٢٠٣) والنسائى كتاب الأذان باب الأذان لمن يصلى وحده (رقم-٦۶۶)

**تسهيلات:**

**قوله: يَعْجَبُ رَبُّكَ مِنْ رَاعِي غَنَمٍ:**

**د ربک په ضمير مخاطب کښې دوه احتماله:** ① "ك" سره خطاب دَالله تعالى دَ طرف نه حضورپاك ته وى نو بيابه دا حديث قدسى جوړشى

② که چرې خطاب عوام الناس سره خاص دې نوبيابه حديث قدسى نه وى. شيخ عبدالحق رحمه الله فرمائى اول توجيه زياته واضح ده. [اشعة اللمعات: ۳۲۹]

**قوله: "يَخَافُ مِنِّي"**

**په وحدت او تنهائى کښې د الله تعالى څخه د ويرې فضيلت:** يعنى دا ګډبه دَ دنيادَ ټولوعلاقو نه لاس په سر کيدوسره دَټولوخلقونه ځان له دَ غرپه څوکه استوګنه اختياركړې ده. او بيا مونځ کوى دَ غرپه څوکه باندې دَالله تعالى نوم اوچتـه وى اوبيـا مونځ کوى الله تعالى دَده نه خوشحاليږى اوفرښتوته وائى ګورئى زمابنده ته هغه زمادَ ويرې نه اذان اوكړو بيائى مونځ اوكړو مادې معاف كړو او په جنت کښې مې داخل كړو.

**په حديث کښې د اذان نه مراد:** علماء ليکلى دى چه دلتـه دَ اذان نه اذان اوتكبيـردواړه مراددى اوكله چه ځان لـه سړې داسې كوى نوبيافرښتې هغه سره اودريږى مـونځ كـوى نودې سړى ته دَ جمع ثواب ملاويږى. ددې حديث نـه داتعليم ملاؤشو چه ځـان لـه سـړې كـه چرتـه پـه سفر وى يـا دَځـه كاردَپـاره پـه صحراکښې وى نوهغـه لـه دَمانځـه دَپـاره اذان كـول پكاردى.

**٦٦٦ – درې قسمه خلق د مشکو په ډيرو**

٦٦٦ – (١) [١٣] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] (( ثَلَاثَةٌ عَلَى كُثْبَانِ الْمِسْكِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ: [٣] عَبْدٌ أَدَّى حَقَّ اللَّهِ تَعَالَى -، وَحَقَّ مَوْلَاهُ [٤] وَرَجُلٌ أَمَّ قَوْمًا وَهُمْ بِهِ رَاضُونَ، [٥] وَرَجُلٌ يُنَادِي بِالصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ كُلَّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ )). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] ابن عمر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] د قيامت په ورځ به درې سړي د مشك په غونډيو وي[٣] ① اول هغه غلام چې د الله تعالى جل جلاله حقوق اداء كولو سره د خپل مولى حقوق هم اداء كوي[٤] ② او دويم هغه سړي چې خلقو ته مونځ وركوي او خلق د هغه څخه خوشحاله وي[٥] ③ او دريم هغه سړي چې شپه او ورځ (يعني هميشه) پنځه لمونځونو د پاره اذان كوي امام ترمذي دا حديث نقل كړي دي او ويلي يې چې دا حديث غريب دي.

---

(۱) اخرجه الترمذى كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى فضل المملوك الصالح(رقم-١٩٨٦)

**حل اللغات:** ① كُثْبَانٍ: د كثيب جمع دہ، وَهُوَمَا ارْتَفَعَ مِنَ الرَّمْلِ كَالتَّلِّ الصَّغِيرِ: دَ شگي جمع كړي شوي ډيری ته وائی. ② الْمِسْكِ: مشکو ته وائی. ③ أَمَّ: امامت کوی.

**تسهیلات:**

**قوله:** "وَهُمْ بِهِ رَاضُونَ"

**د قوم نه مراد:** یعنی قوم دَخپل پیش امام نه خوشحاله او راضی وی. دَ هغه دَعلم اوتقوىٰ دَ وجې نه اودَ هغه دکردار او گفتاردَ وجې نه اودَ هغه دَ قرأت او خوږ آواز دَ وجې نه اودَ هغه حق وینا کولو او دَانصاف دَ وجې نه ټول دَ هغه نه راضی وی. داخبره یادلرئی چه په دې حدیث سره دَ محلې اکثر دیندراه او عقلمند خلقو رضامندی مراد ده . دَهرقسم چالاکوخلقو رضامندئی اعتبارنشته دې. هغوی خو په عام توگه ناراضه وی.

**قوله:** "وَرَجُلٌ يُنَادِي"

**د مستقل مؤذن فضیلت:** دَمضارع صیغې سره دې خبرې طرف ته اشاره ملاوېږی چه دا مؤذن دوام اواستمرارسره اذان ورکوی. (کذافی المعات)

**٦٦٧ـــ د مؤذن دپاره دوچ او لوند گواهی ورکول**

٦٦٧ــ( )[١٣] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ ( «الْمُؤَذِّنُ يُغْفَرُ لَهُ مَدَى صَوْتِهِ، ٣ وَيَشْهَدُ لَهُ كُلُّ رَطْبٍ وَيَابِسٍ. ٤ وَشَاهِدُ الصَّلَاةِ يُكْتَبُ لَهُ خَمْسٌ وَعِشْرُونَ صَلَاةً، ٥ وَيُكَفَّرُ عَنْهُ مَا بَيْنَهُمَا») . رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ ٦ وَرَوَى النَّسَائِيُّ إِلَى قَوْلِهِ: (كُلُّ رَطْبٍ وَيَابِسٍ)، ٧ وَقَالَ: (وَلَهُ مِثْلُ أَجْرِ مَنْ صَلَّى)

**ترجمه:** ١ ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ د اذان ورکونکي بخشش د هغه د آواز د انتهاء پورې کیږي ٣ هر وچ او لوند شيءدهغه دایمان گواهي ورکوي، ٤ او مونځ ته راتلونکي سړي دپاره د پنځه ویشت لمونځونو ثواب (د هغه په زائد اعمالو کې) لیکل کیږي ٥ او د لمونځونو په مینځ کې چې کومه گناه د هغه څخه شوې وي هغه معاف کیږي، احمد ابوداؤد ابن ماجه ٦ اونسایي دا روایت تر کل رطب ویابس پورې نقل کړي دي او دا الفاظ یې مزید نقل کړي دي چې وله مثل اجرمن صلی او هغه ته به د مونځ کونکي برابر ثواب حاصلیږي)

**حل اللغات:** ① رَطْبٍ: لوند څیز، ② يَابِسٍ: اوچ څیز. ③ شَاهِدُ الصَّلَاةِ: أَيْ: حَاضِرُهَا: مونځ ته حاضریدونکي (دې نه مراد په جمع کښې شریکیدونکی خلق دی دوی ته دَ جمع په وجه په یومونځ باندې ۲۵ مونځونو ثواب ملاویږی.). ④ يُكَفَّرُ: رجیگی، معاف کیږی.

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب رفع الصوت بالأذان (رقم-۵۱۵) وابن ماجة كتاب الأذان، والسنة فيه ، باب فضل الأذان، وثواب المؤذنين (رقم-۷۲٤) والنسائي كتاب الأذان ،رفع الصوت بالأذان (رقم-٦٤۵)

**تسهیلات: قوله:** مَدَى صَوْتِهِ:

**د ثواب په اعتبار سره د مؤذن د صرف مونځګذار څخه افضلیت:** یعنی ترکوم ځائی پورې چه دَ مؤذن اواز رسیږی دَهغه ځائی پورې چه دَ کائنات څومره څیزونه دی که هغه جمادات وی که نباتات، حیوانات وی که جنات اوکه ملائکه اوانسان وی. ټول په ټول به دَ قیامت په ورځ دمؤذن دَ ایمان ګواهی ورکوی لکه څنګه چه دَدې باب په حدیث نمبر(۶۵۲) کښې تیرشوی دی. [الکاشف: ۲/۲۲۸ اشعة المعات: ۳۳۹]

**قوله:** وَشَاهِدُ الصَّلَاةِ:

**د جماعت د شرکاؤ فضیلت:** د شري"وله اجر" یعنی څومره خلق چه په مانځه کښې شریك شوی مؤذن ته به دَهریو برابرثواب ورکولې شی ځکه چه مؤذن دَدې ټولو راغوښتلو اوهغوی ته دعوت ورکونکې دې. او "الدال علی الخیرکفاعله" مسلمه قاعده اوحدیث دې. دَدې حدیث نه معلومه شوه چه دَ ثواب په اعتبارسره مؤذن دَ مونځ ګذارونه غوره دې.

**۶۶۸—دامام دپاره د کمزورو او ضعیفو مقتدیانو خیال ساتل**

۶۶۸ —(^(۱))[۱۵] ۱ وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -، قَالَ: ۲ «قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ، اجْعَلْنِي إِمَامَ قَوْمِي. ۳ قَالَ: (أَنْتَ إِمَامُهُمْ، وَاقْتَدِ بِأَضْعَفِهِمْ، ۴ وَاتَّخِذْ مُؤَذِّنًا لَا يَأْخُذُ عَلَى أَذَانِهِ أَجْرًا»). رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ

**ترجمه:** ۱ عثمان بن ابي عاص رضي الله عنه فرمايي ۲ چې ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړو چې ما د خپل قوم امام مقرر کړې ۳ حضور ﷺ وفرمايل ته د هغوئ امام يي (يعني ما ته ستا د قوم امام مقرر کړي خو دا ياد ساته چې په لمانځه ورکولو کې) ته په هغوئ کې د ډير زيات ضعيف او ناتوان خيال ساته ۴ او داسې مؤذن مقرر کړه چې د اذان کولو مزدوري نه اخليږ (احمد، ابو داود، نسايي)

**حل اللغات:** ① اقْتَدِ: أَيْ: تَابِعْ: تابعداری او اقتداء کوه (د کمزورو خلقو خیال اولحاظ ساته، یعنی مختصر مونځ کوه او ډیره جلتی هم مه کوه).

**تسهیلات: قوله:** وَاقْتَدِ بِأَضْعَفِهِمْ:

**په جماعت کښې د کمزورو خیال ساتل:** یعنی مونځ دکمزور او ضعیفانو خلقو لحاظ کولوسره ورکول پکاردی چه نه قراءت دومره اوږدوی چه ضعیف اوکمزوری خلق اونه زغملې شی او نه په ارکان صلوة کښې دومره ثقل وی چه خلق تنګ او پریشانه شی او په جمع سره مونځ کول پریږدی. [الکاشف: ۲/۲۲۹ اشعة المعات: ۳۴۰]

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة، باب أخذ الأجر على التأذين(رقم-۵۳۱) وابن ماجة كتاب الأذان، والسنة فيه ، باب السنة في الأذان (رقم-۷۱٤)

**قوله**: لَا يَأْخُذُ عَلَى أَذَانِهِ أَجْرًا:

**په استیجار علی الطاعات کښې مذاهب:**

دَدې حدیث نه معلومیږی چه مؤذن له په خپل اذان باندې اجرت اخستل جائزنه دی په دې باندې قیاس کولوسره امام له په امامت باندې هم اجرت اخستل جائزنه دی بلکه دَدې نه هم وړاندې کیدو سره داسې وئیلې شی چه مطلقًا استیجار علی الطاعات منع دی استیجار علی الطاعات کښې دَ فقهاؤ څه اختلاف دې.

① دَامام مالك رحمه الله او شوافع حضراتو په نیز طاعات باندې اجرت اخستل یا ورکول مطلقًا جائزی دی.

② دَ حنابله په نیز طاعات یعنی اذان اقامت، تعلیم القرآن او امامت باندې اجرت اخستل جائزنه دی.

③ دَ احنافو دوه طبقې دی یوه طبقه دَ متقدمین ده اویوه دَمتاخرین ده. دَ احنافو په نیز استیجار علی الطاعات ناجائزدی. دَ احنافو ماخرین علماء فرمائی چه استیجار علی الطاعات په جواز باندې دَمتاخرین علماؤ فتویٰ خو نه ده البته دَ مجبورئی په وجه دَجواز قائل شوی دی لکه اصل مسئله دَعدم جواز ده اودَ جواز خبره عارضی ده. اودَ یوې مجبورئی نه دا قول کړې شوې دې دې دَپاره چه دَ شعائراسلام تحفظ اوکړې شی اودینی مناصب ختم نه شی.

**په طاعاتو دَ اجرت نه اخستلو مفاسد:** ځکه چه کله یوسړې امامت خطابت او تدریس او اذان باندې به اجرت نه اخلی نولامحاله هغه خپل ځان دَ شعائردین نه دَ یومنصب دَتحفظ ذمه وار نه شی ګنړلې نوهغه به دَ یوکار پابندی نه کوی. دغه شان به په مزه مزه دَ دین اسلام یویو منصب ختمیږی او دَ دین په کارونوکښې به تعطل پیداکیږی کوم چه دَنن صباملحدانو مقصددې. په دې وجه هغوی په اجرت علی الطاعات باندې اعتراض کوی. بل خوادَ بیت المال نه دَ سلف په زمانه کښې ائمه خطباء ومعلمین ومفتیین ته وظائف ملاویدل دکوم په وجه چه به دې حضراتو دَ دینی مناصب حفاظت کولو

**اجرت علی الطاعات په قدر دَ ضرورت:** اوس دغه مناصب بچ کول او باقی ساتلودَپاره په اندازه دَ کفاف معاوضه متاخرینودَجواز قول کړې دې ځکه چه دا ضرورت دې لیکن "والضرورة تتقدر بقدر الضرورة" کیږی. په دې وجه که نن صبا یوامام یا مؤذن دَ دین خدمت ته نه ګوری بلکه دنیا ګټهل او دنیا جوړول ئی مقصد وی نودَداسې امام اومؤذن دَپاره نن هم اجرت اخستل ناجائزدی. عقود رسم المفتی کښې ابن عابدین شامی رحمه الله لیکلی دی دکوم خلاصه چه داده دَ شریعت یومنصب بغیر دَ اجرت اخستلو باقی نه شی پاتې کیدلې مثلاً

په تراویح کښې په ختم قرآن باندې اجرت اخستل تیوشن کول دا داسې مناصب دی چه دَ شریعت هیڅ یو منصب دَدې دَ ختمیدو په وجه نه ختمیږی نو په داسې مناصب باندې اجرت نه شی اخستلې. هسې که اوکتلې شی نو دَ صحابه کرامو په دورکښې مجاهدینو ته په جهاد باندې معاوضه ورکړې شوې ده. قاضیانو ته په شرعی قضاء باندې تنخواه ورکړې شوې ده. خلفاء اوامراء دَ دینی خدماتو پوره کولو باندې تنخواه اخستې ده، دا دلائل دَجواز دَپاره کافی دی.

**د زیر بحث حدیث توجیه:** بهرحال په وجه دَمجبورئی چه کله معامله دَ جواز پیداشوه نودَزیر بحث حدیث توجیه به داشی چه دلته دَ اخلاص سره دَ اجرت نه بغیر دَ اذان ترغیب طرف ته اشاره کړې شوې ده. دَ اجرت اخستلو ورکول مسئله دلته بیانول مقصودنه دی. هم دغه وجه ده په مسلمانانوکښې اوس هم ډیرې علاقې داسې دی دکوم خائې خلق چه پخپله اذان ورکوی او اجرت نه اخلی اونه هلته دَاجرت تصور وی لهذا تردې ممکن دی چه په دې حدیث باندې عمل کولودَپاره داسې ماحول جوړول پکاردی. خلاصه دا چه په حدیث شریف کښې دَ اخلاص چه کوم ترغیب ورکړې شوې دې په هغې کښې هیڅ کلام نشته.

**٦٦٩–د ماښام اذان اوریدو په وخت کښې مسنون دعا**

٦٦٩–(١)[١٦] [١] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [٢] «عَلَّمَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَقُولَ عِنْدَ أَذَانِ الْمَغْرِبِ: [٣] (اللّٰهُمَّ هٰذَا إِقْبَالُ لَيْلِكَ، وَإِدْبَارُ نَهَارِكَ، [٤] وَأَصْوَاتُ دُعَاتِكَ؛ فَاغْفِرْ لِي» ). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ)

**ترجمه:** [١] بي بي ام سلمه رضی الله عنها فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ ماته ښودلي وو چې زه دې د ماښام د اذان په وخت دا دعا کوم [٣] اللّٰهُمَّ هٰذَا إِقْبَالُ لَيْلِكَ وَإِدْبَارُ نَهَارِكَ وَأَصْوَاتُ دُعَاتِكَ فَاغْفِرْ لِي (اې الله دا وخت دې ستا د شپې د راتلو او ستا د ورځ د واپس کیدو [٤] او ستا د یادونکو (یعني د مؤذنينو) د اوازونو نو ته زما مغفرت وکړې یعنی ما وبخښې) (ابوداؤد بيهقي).

**حل اللغات:** ① إِقْبَالُ: راتلو ته وائی. ② إِدْبَارُ: په شاه کیدو او روسته کیدو ته وائی.

**تسهیلات: قوله:** اللّٰهُمَّ هٰذَا:

**د اذان څخه پس د مختلفو دعاګانو ثبوت:** کله چه دَ اذان جواب مکمل شی دې نه پس مناسب ده چه دا دعاولوستلې شی او په دې دعاکښې چونکه دَ ورځې اوشپې دَ بدلیدو دَ انقلاب طرف ته اشاره ده په دې وجه دَماښام دَاذان نه پس دا لوستل پکاردی. په دې دعاسره داخبره هم واضح شوه چه دَ اذانونو نه پس دَمختلفو دعاګانو ثبوت شته. چونکه دَ

(١) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب ما يقول عند أذان المغرب(رقم-٥٣٠) والترمذي كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب دعاء أم سلمة (رقم-٣٥٨٩)

اذان او اقامت په مینځ چه کم وخت دې هغه دَ دعا دَقبلیدو یو بهترین وخت دې په دې وجه په دې کښې دَمختلفو دعاګانو اهتمام کړې شوې دې. [ الکاشف: ۲/۲۵۰]

**۶۷۰ ــ د اقامت جواب**

۶۷۰ــ(۱)[۱۷] [۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَوْ بَعْضِ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، [۲] قَالَ: «إِنَّ بِلَالًا أَخَذَ فِي الْإِقَامَةِ، [۳] فَلَمَّا أَنْ قَالَ: قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَقَامَهَا اللّٰهُ وَأَدَامَهَا» ". [۴] وَقَالَ فِي سَائِرِ الْإِقَامَةِ كَنَحْوِ حَدِيثِ عُمَرَ فِي الْأَذَانِ. رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ

**ترجمه:** [۱] ابو امامه رضي الله عنه یا دحضور ﷺ یو صحابي فرمایي [۲] چه حضرت بلال رضي الله عنه تکبیر شروع کړو [۳] کوم وخت چې هغه قد قامت الصلوٰۃ اووائیلو نو حضور ﷺ (د هغه په جواب کې) وفرمایل أَقَامَهَا اللّٰهُ وَأَدَامَهَا یعنی الله تعالی جل جلاله دې مونځ قائم او دائم لري [۴] او د تکبیر د بقیه کلماتو جوابات یې هغه شان وفرمایل چې د هغې ذکر د حضرت عمر رضي الله عنه د اذان په حدیث کې تیر شوې دي

**تسهیلات:**

**قوله:** "أَقَامَهَا اللّٰهُ وَأَدَامَهَا":

**د قدقامت الصلاة جواب:** دغه شان چه کله تکبیر کونکې په تکبیر کښې "قدقامت الصلوٰة" وائی نواوریدونکی له پکاردی چه دَدې په جواب کښې "أقامها الله وأدامها" الفاظوسره دَ نظام صلوة بقاء او شعائر الله دَ دوام دعااوکړی. دا الفاظ دَ ابوامامه رضي الله عنه حدیث نمبر (۶۷۰) کښې مذکوردی لهذا داهم مستند دی.

**په اهل ظواهرو باندې رد:** دې مذ کوره حدیث کښې صرف د اقامت د جواب ذکر دې ، چې د اقامت په جواب کښې دا وئیل پکار دي: اقامها الله وادامها : دا حدیث په اهل ظواهرو باندې رد دې چې د اذان او اقامت جواب بعینه ورکول پکار دی. حالانکه دې ځائې کښې د قدقامت الصلوٰة د جواب ذکر موجود دې.

**۶۷۱ ــ د اقامت او اذان په مینځ کښې دعا**

۶۷۱ــ(۲)[۱۸] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «لَا يُرَدُّ الدُّعَاءُ بَيْنَ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ» رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ

**ترجمه:** [۱] انس رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د اذان او تکبیر په مینځ کښې دعا نه رد کیږی. (ابوداؤد، ترمذي)

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب ما يقول إذا سمع الإقامة (رقم-۵۲۸)

(۲) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب ما جاء فى الدعاء بين الأذان والإقامة(رقم-۵۲۱) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى أن الدعاء لا يرد بين الأذان والإقامة(رقم-۲۱۲)

**تسهيلات:**

**قوله: "لَا يُرَدُّ الدُّعَاءُ":**

**د اذان او اقامت په مینځ کښې د دعا قبولیت:** دَمسلمان دعـاخو الله تعـالى پـه خپلـه مهربانئى او رحمت سره هروخت قبلوى مګر دَ اذان او اقامت چه کوم وخت دې هغـه دومره بختـور دې اودومـره دَ برکـت دې چـه پـه دې کـښې الله تعـالى دَ دعاغوښـتونکى دعـا نـه ردکوى. دَدې حدیث نه مسلمانانوته دا تعلیم ملاويږى چه مسلمان لـه پکاردى چه هغـوى دې خپل دنیاوى او اخروى حاجتونه هم په دې وختونوکښې دَ الله تعالى نه غوارى.

**د اذانینو پـه میـنځ کـښې د دعـا غوښتلو غـوره صـورت:** دَحـديث دَ ظـاهرى الفاظونـه دامعلوميږى چه دعاکه دَ اذان دَختميدو په وخت متـصل اوغوښـتې شـى يـا دَ څـه وخـت نـه پـس اوغوښـتې شـى پـه هرصـورت كـښې بـه قبليږى مګـر اولـى او بهتـر دادې چـه دَ اذان پـه ختميدو باندې متصل اوغوښتې شى. [ اشعة المعات: ۳۴۰]

**٦٧۲-د دعا د قبليدو وختونه**

٦٧٢ -()[۱۹] ۱ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «ثِنْتَانِ لَا تُرَدَّانِ - أَوْقَلَّمَا تُرَدَّانِ -: ۳ الدُّعَاءُ عِنْدَ النِّدَاءِ ۴ وَعِنْدَ الْبَأْسِ حِينَ يُلْحِمُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا». ۵ وَفِي رِوَايَةٍ: (وَتَحْتَ الْمَطَرِ). رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، ٦ وَالدَّارِمِيُّ; إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ: (وَتَحْتَ الْمَطَرِ)

**ترجمه:** ۱ سهل ابن سعد رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ دوه دعاوګانې نه رد کيږي يا وي فرمايل کم رد کيږي ۳ ① يوه هغه دعا چې د اذان (څخه وروسته يا د اذان د شروع کيدو) په وخت وغوښتل شي ۴ ② او دويمه هغه دعا چې (د کفارو سره) په جنګ کښې (خپلو کښې قتل وقتال) شروع کيدو په وخت وشي ۵ په يو بل روايت کښې (په جنګ کښې د قتل وقتال په ځاي) دا منقول دي چې دويمه هغه دعا چې په باران کښې (ودريدو سره) وغوښتل شي، ابوداؤد دارمي ٦ خو د دارمي په روايت کښې تحت المطر منقول نه دي.

**حل اللغات:** ① قَلَّمَا: ډير کم، کم کوز. ② النِّدَاءِ: أَيْ: الْأَذَانِ: اذان تـه وائـى. ③ الْبَأْسِ: أَيْ: الشِّدَّةِ وَالْمُحَارَبَةِ مَعَ الْكُفَّارِ: کافرانوسره سخت جنګ ته وائى. ④ يُلْحِمُ: أَيْ: يَقْتُلُ: په جنګ کښې د يوبـل سره قتل وقتال شروع وى.

**تسهيلات:**

**قوله: أَوْقَلَّمَا تُرَدَّانِ:**

**د کلمه ،،او،، په حيثيت کښې دوه احتمالات:** ① ممکن دى چه دا "او" دَ راوى دَ شك دَپاره

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الجهاد ، باب الدعاء عند اللقاء (رقم- ۲۵٤٠)

وی نو په دې صورت کښې راوی ته شك شوې چه لاتردان الفاظ ئې ارشاد فرمائیلی وو یا "قللاتردان" الفاظ وو.

② دا هم ممکن دی چه دا "او" دتنویع دپاره وی یعنی د دعا دوه انواع ذکر وی.
[اشعة اللمعات: ۳۴۰]

**قوله: عِنْدَ النِّدَاءِ:**

دې نه اذان مراددې اودااذان وخت ئې د دعاد قبلیدو په وختونو کښې شمیر کړې دې. "وعندالبأس" بأس سخت جنگ ته وائی مراد میدان جهاد کښې د کافرانو په مقابله کښې سخت جنگ دې داهم د دعاد قبلیدو وخت دې ځکه چه پوره توجه دالله تعالی د ذات طرف ته وی.

**د حدیث د بعضې الفاظو وضاحت:** ① يلحم: دباب سمع نه هم راځی چه جنگ ته وائی هم په دې سره د رسول الله ﷺ نوم رسول الملاحم مشهوردې. یعنی د سخت یالاس په لاس جنگونه کونکې رسول. دلته دا صیغه باب ا فعال او سمع دواړو نه لوستلې شوې ده سره ددې چه دسمع نه زیاته مستعمل ده.

② وتحت المطر: باران چونکه دآسمان نه راځی اولکه چه دالله تعالی دطرف نه راځی په دې وجه په دې کښې برکت اورحمت وی. په دې مبارك وخت کښې هم دعاقبلیږی که باران په ده باندې پریوځی یا صرف وریږی.

**٦٧٣ـ داذان نه وروسته د دعا قبلیدل**

٦٧٣ـ(١)[٣٠] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: ٢«قَالَ رَجُلٌ: يَارَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ الْمُؤَذِّنِينَ يَفْضُلُونَنَا. ٣فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (قُلْ كَمَا يَقُولُونَ، ٤فَإِذَا انْتَهَيْتَ فَسَلْ تُعْطَهْ»). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ عبدالله ابن عمرو رضی الله عنهما راوي دي ٢ چې یو صحابي رضی الله عنه عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ اذان ورکونکي خو په بزرګي کښې زمونږ ځخه زیاتیږي ٣ حضور ﷺ وفرمایل ځنګه چې هغه وایي (ورسره ورسره) ته هم هغسې وایه ٤ او کله چې د اذان د جواب ځخه فارغه شی نو ځه چې دې خوښه وي د الله جل جلاله ځخه یي وغواړه در به کړل شي، (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① يَفْضُلُونَنَا: أَيْ: يَحْصُلُ لَهُمْ فَضْلٌ وَمَزِيَّةٌ عَلَيْنَا فِي الثَّوَابِ: یعنی مؤذن خلقو اذان ورکولوسره زمونږ نه په ثواب کښې وړاندیوالي اوکړو. ② فَسَلْ: أَيْ: اُطْلُبْ مِنَ اللّٰهِ حِينَئِذٍ مَا تُرِيدُ: دالله نه اوغواړه ځه چه غواړي. ③ تُعْطَهْ: أَيْ: يَقْبَلُ اللّٰهُ دُعَاءَكَ وَيُعْطِيكَ سُؤَالَكَ: الله پاک به ستا سوال قبلوی او ځه چه غواړی دربه ئې کړی.

(١) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب ما يقول إذا سمع المؤذن (رقم-٥٢٤)

**تسهيلات: قوله: يَعْطُلُونَنَا:**

**د مؤذن د ثواب ګټلو طريقه:** يعنى مؤذن خلقو اذان وركولوسره زمونږ نه په ثواب كښې وړاندې والي اوكړو آيا مونږ څه داسې عمل كولي شو چه مونږ په ثواب كښې هغوى سره برابرشو. دا د صحابه كرامو ﷺ دور وو چه په نيكو اعمالو كښې تادى او وړاندې والي كيدلو اود هر ملګرى به خيال وو چه زه د نورو ملګرونه په نيكو اعمالو كښې او په ثواب كښې شاته پاتې نه شم لكه چه د نن صبا په دور كښې روپو پيسو اود دنيا ګټلو په حرص كښې منډه لګيدلې ده. هم دې د ثواب شوق منو خلقوته حضور پاك كم خرچ بالانشين والاعمل اوخودلو هغه دا چه كله چه مؤذن اذان وركوى نوتاسو جواب وركوئى اوكله چه اذان ختم شى نو دعا كوئى. په دې كښې به تاسو ته د مؤذن د اذان وركولو د اصل ثواب په شان ثواب ملاويږى. شيخ عبدالحق ﷫ اشعة اللمعات كښې ليكى كه څرې جواب وركونكي د جواب سره اذان سره دعاهم اولولى نوممكن ده چه د مؤذن نه په يواب كښې زيات شى په دې شرط چه مؤذن دعانه وى لوستلې. [اشعة اللمعات: ۳۴۱]

**د دعا مصداق:** ① دعانه كيدې شى هم هغه دعامراد وى كومه چه په حديث نمبر(۶۵۹) كښې ذكر ده او په عوامو كښې مشهوره ده. د دې حديث نه داهم معلومه شوه چه كوم سړې په اجابت فعلى باندې عمل كولوسره جمات ته راغلې دې نوهغه له هم پكار دى چه د چپ پاتې كيدو په ځائې اجابت قولى كولوسره دا دعا اولولى دې د پاره چه په ثواب كښې شريك شى.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### ۶۷۴- د اذان په آواز اوريدو د شيطان تيښته

۶۷۴ – ()[۲۱] ① عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ -، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ②( «إِنَّ الشَّيْطَانَ إِذَا سَمِعَ النِّدَاءَ بِالصَّلَاةِ ذَهَبَ ③حَتَّى يَكُونَ مَكَانَ الرَّوْحَاءِ») . ④قَالَ الرَّاوِي: وَالرَّوْحَاءُ مِنَ الْمَدِينَةِ: عَلَى سِتَّةٍ وَثَلَاثِينَ مِيلًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت جابر ﷺ فرمايي چه ما واوريدل چې رسول كريم ﷺ وفرمايل ② هر كله چې شيطان د اذان آواز اوري نو تښتي ③ تر دې چې مقام روحا ته ورسي ④ راوي وايي چې روحا د مديني څخه شپږ ديرش ميله فاصله باندې دي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① النِّدَاءَ: أَيِ الْأَذَانَ: نداء آواز ته وائى دلته ترې اذان مراد دي. ② الرَّوْحَاءِ: روحاء د يوكوهى نوم دې چه د مديني نه د مكې په طرف د بدر په لار په شارع قديم باندې واقع دې. د مديني نه ورته ۳۶ كلوميټره فاصله ده.

(۱) اخرجه مسلم كتاب الصلاة، باب فضل الأذان وهرب الشيطان عند سماعه (رقم) ۱۵ - (۳۸۸)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ الشَّيْطَانَ إِذَا سَمِعَ النِّدَاءَ بِالصَّلَاةِ:

**په شيطان كښې دوه احتمالات:** ① ممكن ده چه دې شيطان نه مراد دَ ټولوشيطانانو مشر شيطان مراد وی چه هغه اذان اوری نو تختي

② ممكن ده چه جنس شيطان مراد وی اول صورت زيات واضح دې.

**قوله:** حَتَّى يَكُونَ مَكَانَ الرَّوْحَاءِ:

**د بير روحاء موجوده محل وقوع:** دَمديني نه چه يوسړی دَ مكې طرف ته دَ بدر په لار راځی په ۳۶ كلوميټرپاندې دغه كوهې واقع دې. دَ سړك په غاړه باندې په يوه اوږده فاصله دَ "الروحاء" بورډونه لګيدلی دی. بيا په سړك باندې تللوسره په ښی لاس باندې ښكته په يوه لويه ناله كښې صحرائی علاقه كښې دا كوهې واقع دې اوس هم په دې كښې يخې اوبه موجود دی. دې سره نيزدې يو پخوانې جمات دې وائی چه په خپل دور كښې اوياؤ انبياء كرامو عليهم السلام دلته تشريف راوړې وو نو هم په دې مكان الروحاء كښې حضورپاك شپه تيره كړې وه.

**قوله:** قَالَ الرَّاوِي:

**د راوی نه مراد:** دَ راوی نه نافع بن طلحه رحمه الله مراد دې دَچا كنيت چه ابوسفيان دې.

**۶۷۵ ـ د حيعلتين په جواب كښې مسنون كلمات**

۶۷۵ ـ (۱)[۲۲] ۱ وَعَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ، قَالَ: ۲ «إِنِّي لَعِنْدَ مُعَاوِيَةَ، إِذْ أَذَّنَ مُؤَذِّنُهُ، فَقَالَ مُعَاوِيَةُ كَمَا قَالَ مُؤَذِّنُهُ ۳ حَتَّى إِذَا قَالَ: حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، قَالَ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ، ۴ فَلَمَّا قَالَ: حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، قَالَ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيمِ. ۵ وَقَالَ بَعْدَ ذَلِكَ مَا قَالَ الْمُؤَذِّنُ، ۶ ثُمَّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ذَلِكَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ۱ علقمه بن وقاص رضي الله عنه فرمايي ۲ چه زه يوه ورځ د حضرت امير معاويه رضي الله عنه په خدمت كښې حاضر ووم د هغه مؤذن اذان اوكړو مؤذن چې څنګه ويل معاويه رضي الله عنه هم هغسي د هغه سره سره ويل ۳ مؤذن چې حي علي الصلوٰة اوويل نو معاويه رضي الله عنه لاحول ولاقوة الا بالله اوويل ۴ بيا چې مؤذن حي علي الفلاح اوويل نو معاويه رضي الله عنه اوويل لاحول ولاقوة الا بالله العلي العظيم ۵ او د دې څخه وروسته چې مؤذن څه ويل معاويه رضي الله عنه هم هغه ويل ۶ بيا فارغيدو سره معاويه رضي الله عنه اوويل ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه دغسې اوريدلي دي، (احمد.)

(۱) اخرجه النسائي كتاب الأذان ،القول إذا قال المؤذن: حي على الصلاة , حي على الفلاح (رقم-۶۷۷)

**تسهيلات:**

**قوله:** الْعَلِيِّ الْعَظِيمِ

**په روایاتو کښې د مذکوره کلماتو عدم وجود:** علامه طیبي رحمه الله فرمائي چه لاحول ولاقوة الا بالله نه پس دَالعلی العظیم الفاظ په روایتونو کښې نه ملاویږي. علقمه بن وقاص رحمه الله دَ کبار تابعینونه دي. [الکاشف: ۲/۲۵۳]

**۶۷۶ – د اذان جواب ورکول سبب د دخول جنت**

۶۷۶ – (۱)[۲۳] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: ② «كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَامَ بِلَالٌ يُنَادِي، ③ فَلَمَّا سَكَتَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ④ (مَنْ قَالَ مِثْلَ هَذَا يَقِينًا دَخَلَ الْجَنَّةَ»). رَوَاهُ النَّسَائِيُّ

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه فرمایي ② چې مونږ د رسول الله ﷺ سره ملګري وو چې بلال رضی الله عنه ودریدلو او اذان کول یې شروع کړل ③ کوم وخت چې هغه د اذان ورکولو څخه وروسته چپ شو نو حضور ﷺ وفرمایل ④ کوم سړي چې دارنګه (د اذان په جواب کښې) یقیناً (یعني د زړه په اخلاص سره) اووائي نو هغه به جنت کښې داخلیږي، (نسایي)

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ قَالَ هَذَا يَقِينًا دَخَلَ الْجَنَّةَ

**د اذان جواب بعینه د اذان په الفاظو سره ورکول:** دا حدیث د هغه حضراتو دپاره مستدل دې کوم چې دا خبره کوي چې د آذان جواب بعینه هم هغه کلمات دی.

**دحدیث الباب څخه جوابونه:** داحدیث پاك د احنافو خلاف دې، ددې حدیث پاك جوابونه:

① د بیان دجواز دپاره داسې کول هم جائز دی چې په دواړو احادیثو باندې عمل راشي.

② یا دا حدیث منسوخ دې دهغه احادیثو په وجه کومو کښې چې د حیعلتین جواب لاحول ولاقوة الابالله راغلي دي.

**۶۷۷ – د شهادتینو جواب د نبی علیه السلام د طرفه**

۶۷۷ – (۲)[۲۴] ① وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: ② «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَمِعَ الْمُؤَذِّنَ يَتَشَهَّدُ قَالَ: (وَأَنَا وَأَنَا»). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ

**ترجمه:** ① بي بي عائشه رضی الله عنها فرمایي ② چې رسول کریم ﷺ به د مؤذن شهادتین ویل اوریدل نو فرمایل به یې او زه هم او زه هم. (ابوداؤد)

---

(۱) اخرجه النسائی کتاب الأذان ،ثواب ذلک (رقم-۶۷۴)

(۲) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب ما یقول إذا سمع المؤذن (رقم-۵۲۶)

**حل اللغات:** ① يَتَشَهَّدُ: چه شهادتین به ئي وئیل، (مؤذن به أشهد أن لا إله الا الله او اشهد ان محمد رسول الله وئیل). ② وَأَنَا وَأَنَا: أي: وَأَنَا شَاهِدٌ كَمَا تَشْهَدُ: دمؤذن د شهادت جواب به ئي ورکولو او فرمائیل به ئي چه: وأنا أشهد أن لا إله الا الله، وأنا أشهد انی رسول الله.

**تسهیلات:**

**قوله: قَالَ: (وَأَنَا وَأَنَا»):**

**د نبی کریم ﷺ د خپل رسالت گواهی ورکول:** یعنی کله چه مؤذن په اذان کښې شهادتین لولی نو حضورپاك به په جواب کښې دوه ځل فرمائیل چه زه هم دغه گواهی ورکوم دَتوحید اورسالت څنګه گواهی چه ته ورکوې زه هم دغه شان گواهی ورکوم. دَدې نه معلومه شوه چه نبی کریم ﷺ هم دَخپل امت په شان په خپل رسالت باندې گواهی ورکولو باندې مکلف وو.

**د نبی کریم ﷺ د خپل رسالت د شهادت کلمات:** اوس په دې کښې بحث اوتحقیق دې چه آیا حضورپاك دَخپل امت په شان "اشهد ان محمد رسول الله" الفاظ فرمائیل یا "اشهد انی رسول الله" الفاظ به ئی فرمائیل. [اشعة المعات: ۳۴۱]

عام علماء کرام هم دغه لیکی چه حضورپاك به دَخپل امت دَا لفاظو په شان دَ خپل رسالت گواهی ورکوله. اوس په حدیث نمبر(۶۷۳) کښې حضرت معاویه رضی الله عنه هم دغه فرمائیل چه ماکوم کلمات په جواب کښې وئیلی دی حضوراکرم به هم په دغه شان کلماتوسره جواب ورکولو. اوس دَ زیربحث حدیث سره په ظاهره تعارض راغلو ځکه چه په دې کښې "وأنا أنا" الفاظ دی نوعلماؤ جواب ورکړې دې چه حضورپاك کله دا الفاظ لوستلی اوکله هغه الفاظ لوستلی دی دَکوم تذکره چه معاویه رضی الله عنه کړې ده دواړه ثابت دی.

### ۶۷۸ – د اذان او تکبیر ثواب

۶۷۸–(١)[۲۵] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: ② ((مَنْ أَذَّنَ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً؛ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ، ③ وَكُتِبَ لَهُ بِتَأْذِينِهِ فِي كُلِّ يَوْمٍ سِتُّونَ حَسَنَةً، ④ وَلِكُلِّ إِقَامَةٍ ثَلَاثُونَ حَسَنَةً)). رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ

**ترجمه:** ① حضرت ابن عمر رضی الله عنهما راوي دي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ② کوم سړي چې تر دولس کاله پورې اذان وکړي د هغه د پاره جنت واجبیږی ③ او د هغه د اذان په بدله کښې (د هغه په نامه اعمال کښې) هر ه ورځ (یعني د هر اذان په عوض کښې) شپیته نیکي ④ او د هر تکبیر په بدله کښې دیرش نیکي لیکل کیږی. (ابن ماجه)

(۱) اخرجه ابن ماجة كتاب الأذان، والسنة فيه، باب فضل الأذان، وثواب المؤذنين (رقم-۷۲۸)

**حل اللغات:** ① لِثِنْتَيْ عَشْرَةَ: دولس ۱۲، ② سِتُّونَ: شپيته، ۶۰، ③ إِقَامَةِ: تكبير ونيل، ④ ثَلَاثُونَ: ديرش، ۳۰،

**تسهيلات:**

**قوله:** ثَلَاثُونَ حَسَنَةً:

**د اذان د ثواب په نسبت د اقامت د ثواب د کمی وجه:** اذان کونکی ته په اذان باندې روزانه شپيته زياتی نيکئی ملاويږی او اقامت او تکبير ويونکی ته دَدې نصف يعنی ديرش نيکئی ملاويږی اودَ اعداد مقرر کولو راز دَ الله تعالی اودَهغه دَ رسول ﷺ په حواله دې. دَ اذان په نسبت دَاقامت ثواب کيدې شی په دې وجه نيم دې چه په اذان کښې محنت زيات دې او اقامت کښې محنت کم دې. او شايدَ جمهورو په ذوق باندې دَ اقامت په کلماتو کښې ايتار دې په دې وجه په ثواب کښې کمې راغلو. [ اشعة المعات: ۳۴۲]

**د حديثونو په مينځ کښې د تعارض اشکال:** فصل ثانی حديث نمبر(۲۳) کښې اووه کاله اذان ورکولو باندې دَ جنت زيرې دې دلته په دولس کاله باندې زيرې دې دا په ظاهره تعارض دې دَ دې څه جواب دې؟

**د اشکال دوه جوابونه:** ① اووه کاله پورې اذان ورکولو ثواب دَ دوزخ نه دَ خلاصی پروانه ملاويدل دی. کوم چه په جنت کښې دَ داخليدودَ بشارت نه کنايه ده او دلته په زير بحث حديث کښې دَ دغه مؤذن دَ اذان موده دولس کاله ده ځکه چه هغه ته دَ جنت دَ زيری سره سره دَ هرې ورځې شپيته نيکئی زياتی هم ملاويږی.

② علامه کرمانی رحمه الله دَ ضابطه په توګه جواب ورکړې دې چه کوم ځائی هم په اعداداوحساب کښې الختلاف ښکاره شی نو په هغې کښې به تعارض نه وی ځکه چه عدد اکثردَ عدد اقل منافی نه وی. (کذا في لمعات)

**٦٧٩ – دماښام د اذان په وخت کښې د دعا حکم**

٦٧٩ – (۱) [۲٦] ۱ وَعَنْهُ، قَالَ: «كُنَّا نُؤْمَرُ بِالدُّعَاءِ عِنْدَ أَذَانِ الْمَغْرِبِ» رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ).

**ترجمه:** ۱ ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چه مونږ ته به د ماښام د اذان کولو په وخت د دعا غوښتلو حکم راکول کيدو. (بيهقي)

**تسهيلات: قوله:** نُؤْمَرُ:

**دحديث دوه فوائد:** يعنی مونږ ته حکم راکولې شی چه مونږ دَماښام دَ اذان په وخت دعا اوغواړو. ① دَ اذان په دوران کښې او پس دَ اذان نه دَدعا دَ قبليدو وخت دې.

② دې وخت کښې دعا غوښتل که چرې سنت يا واجب نه دی نو کم نه کم دَمستحب په

(۱) اخرجه البيهقی فی الدعوات الكبير / باب الذكر الدعا اذا سمعا اذان المغرب... رقم الحديث ۳۱۹

درجه کښې ضرور ده لهذا دَدې اهتمام کول پکاردی.

**د اذان نه پس په دعا کښې د لاسونو نه اوچتول:** یاد لرئی چه په دې دعاکښې دَ لاسونو اوچتولو معمول نه دَ سلف نه شته او نه دَخلف نه لهذا بغیردَ لاسونو اوچتولو دې دعا غوښتلې شی.[ اشعة المعات: ۳۴۲] علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه شاید داهغه دعاده دَ کوم ذکرچه په حدیث نمبر(۶۶۹) کښې دې. "یعنی: اللهم هذا اقبال لیلك وادبار نهارك واصوات دعاتك فاغفرلی"

**اشکال:** دعا خودَهراذان نه پس مستحب ده بیادَ ماښام دَ تصریح څه ضرورت وو؟

**داشکال جواب:** شایددَ ماښام دَ اذان نه پس دعادَ نورو اذانونو نه ډیره مؤکد اوزیات قابل اهتمام وی په دې وجه ئی دَدې ذکر اوکړو اوتصریح ئی اوکړه اوچونکه دَ ماښام په وخت دَ ورځې په ختمیدو باندې دَ شپې په راتلو باندې یو لوئی بدلون ښکاره کیږی. کیدې شی چه دَدې دَپاره دا وخت دَ ډیر اهتمام قابل وی. بل په ماښام کښې اذان او اقامت بالکل پیوست وی په دې وجه هم داوخت اهم شواودَدعاتاکیداوکړې شو.

# [۲۴/۶] بَاب (تأخیر الأذان)]

## دَاذان ورستووالی

**خلاصة الباب:**

**فیه تسعة أحادیث مشتملة علی ست مسائل:**

① الأذان فی الصبح الصادق : ۱، ۲.

② سنیة الأذان للجماعة: ۳، ۴.

③ الأذان للقضاء: ۵، ۸.

④ وقت قیام المامومین للصلاة: ۶

⑤ کراهیة السعي لإدراک الصلوة : ۷.

⑥ تعلق الصیام والصلوة بالأذان: ۹.

**بې عنوانه باب:** دې باب سره هیڅ عنوان نشته دې په دې وجه دا په تنوین سره لوستلې شی. شیخ عبدالحق رحمه الله دَدې عنوان داسې جوړکړې دې "باب فی متمات ولواحق الأذان" یعنی مخکینو بابونوسره متعلق دَ یوڅونورو احکامو بیان.

چنانچه په دې باب کښې دَ وخت نه مخکښې دَاذان مسئلې دی اودَ اذان روستو کولو مسئلې هم دی. دَ استحقاق اذان مسئله هم ده او په اذان باندې دَ جمات طرف ته دَ

راتلو د کیفیت ذکرهم دې او د مؤذن ذمه وارو ذکرهم دې. دا ټول متعلقات د اذان نه دی.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## ٦٨٠–د پیشمنی د وخت اذان

٦٨٠–(١)[١] ① عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② (« إِنَّ بِلَالًا يُنَادِي بِلَيْلٍ، فَكُلُوا وَاشْرَبُوا ③ حَتَّى يُنَادِيَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ » ). ④ قَالَ: وَكَانَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ رَجُلًا أَعْمَى، ⑤ لَا يُنَادِي حَتَّى يُقَالَ لَهُ: أَصْبَحْتَ أَصْبَحْتَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابن عمر رضی الله عنه راوي دي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② بلال رضی الله عنه (د سحر اذان خاص) دشپې کوي نو (په رمضان کښې) په پيشنلي کښې خوري اوڅکي ③ تر څو پورې چې تاسو ابن ام مکتوم رضی الله عنه اذان او نه کړي ④ ابن عمر رضی الله عنه فرمايي ابن ام مکتوم رضی الله عنه يو نا بينا سړي وو ⑤ کله چې به هغه ته چا ونه ويل چې تا صبا کړو تا صبا کړو نو هغه به اذان نه کولو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① أَصْبَحْتَ أَصْبَحْتَ: تکرار د تاکيد دپاره دي، أي: دَخَلْتَ أَوْقَارَبْتَ الدُّخُولَ فِي الصَّبَاحِ: يعنی ته په صبا وخت کښې داخل شوې يا دا معنی چه نزدې ده چه ته په صبا وخت کښې داخل شې.

**تسهيلات:**

**قوله:** "إِنَّ بِلَالًا يُنَادِي بِلَيْلٍ"

**د مذکوره جملې مطلب:** يعنی بلال رضی الله عنه د شپې په وخت اذان کوی. د سحر د راختونه مخکښې اذان کوی. تاسو خلق د هغه په اذان سره د پيشمنی خوراك مه بندوئی بلکه خوراك خورئی تردې چه عبدالله بن ام مکتوم رضی الله عنه اذان اوشی.

**اذان د وخت د داخليدو څخه پس کول:** داخبره ټولو ته معلومه ده چه د اذان مشروعيت د مونځونو د وختونو د پاره دې. په دې وجه په دې خبره باندې د ټولو فقهاؤ اتفاق دې چه د سحر نه علاوه په ټولو وختونو کښې مخکښې اذان کول جائز نه دی که چرې جا اوکړو نو واپس را ګرځول لازم دی.

### د سحر اذان د وخت څخه وړاندې کولو کښې مذاهب:

خو د سحر اذان کښې د فقهاؤ اختلاف دې چه آيا د سحر د راختونه مخکښې اذان جائز دې که نه. ① امام مالك رحمه الله شافعی رحمه الله امام احمد بن حنبل رحمه الله او امام ابو يوسف رحمه الله په نيزد

---

(١) بخاری کتاب الاذان باب أذان الأعمی إذا کان له من يخبره (رقم-٦١٧) ومسلم کتاب الصيام باب بيان أن الدخول فی الصوم يحصل بطلوع الفجر. (رقم) ٣٦ - (١٠٩٢) والنسائی کتاب الأذان ،المؤذنان للمسجد الواحد (رقم-٦٣٧) ومالک فی الموطا کتاب الصلاة باب قدر السحور من النداء (رقم-١٥)

سحر اذان مخکښې دَ سحرنه جائز دی دَ واپس راګرځولو ضرورت نشته دې.

② امام ابوحنیفه رحمه الله اوامام محمد رحمه الله فرمائی چه دَ نورو وختونو په شان دَ سحرپه وخت کښې هم اذان مخکښې دَ سحردَ راختونه جائز نه دې. که چرې چا اوکړو نوواپس به راګرځولې کیږی. دَ ډیرو زیات سلفو هم دغه مذهب دې.

**د اول فریق دلیل:** زیربحث د حضرت ابن عمر رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه "ان بلالا ینادی بلیل" الفاظ راغلی دی دکوم نه چه معلومیږی چه دَ سحر نه مخکښې به ئی اذان ورکولو.

**داول فریق د دلیل جواب:** دَ حضرت بلال رضی الله عنه اذان دَ پیشمنی اوتهجد دَپاره وو دَ سحردَ پاره نه وو. دَسحردَ پاره په مستقل توګه باندې حضرت ابن ام مکتوم رضی الله عنه اذان ورکولو او هغوی خو نابینا وو نوخلق به راتله ورته به ئی خودل چه "اصبحت اصبحت" یعنی حضرت سحر شو سحرشو تاسو زر اذان اوکړئی نوبیا به هغوی پاسیدل او اذان به ئی کولو.

**په مذکوره تاویل دوه قرائن:** ① دَ حضرت سمرة بن جندب رضی الله عنه روایت نه په دې باندې دلیل دې چه دَ بلال اذان دَ پیشمنی دَ خوړلودَپاره وو

② بخاری کښې دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه دَ روایت دا الفاظ دی حضورپاك فرمائیلی: ((لا یمنعن احدکم اواحدمنکم اذان بلال من سحوره فانه یؤذن اوینادی بلیل لیرجع قائمکم ولینبه نائمکم)) (بخاری: ۸۷/۱) یعنی دَ بلال اذان دې تاسو دَ پیشمنی دَخوراك نه منع نه کړی ځکه چه هغه دَ شپې مخکښې دَ سحردَ راختونه ځکه اذان ورکوی چه ستاسو تهجد کونکی کورته واپس شی او پیشمنې اوکړی یا اوده شوې راپاسی. هم دغه حدیث واضح دلیل دې چه دَ سحرمونځ اذان دَوخت نه مخکښې کله هم نه دې شوې. کوم اذان چه مخکښې شوې دې هغه به دَ پیشمنی په شان وو.

**د دویم فریق دلائل:** ① په بیهقی او ابوداؤد کښې دَحضرت ابن عمر رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې دې چه (مخکښې دَسحردَ راختو نه اذان ورکولوباندې) حضورپاك دَحضرت بلال رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه تاداسې ولې اوکړه؟ هغوی جواب ورکړو چه کله زه پاسیدم نوتردغه وخته په خوب کښې ووم نو ما داخیال اوکړو چه صبح صادق شوې دې (نوما اذان اوکړو) په دې باندې حضورپاك اوفرمائیل اوس لاړشه او دَخپل ځان باره کښې دا اعلان اوکړه خبردار بنده اوده شوې وو (اودَ خوب په حالت کښې مې په غلطئی سره اذان ورکړې دې).

② په ابوداؤد شریف کښې دَحضرت بلال رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې هغوی ته رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل "لاتؤذن حتی یستبین لك الفجر هکذا ومدیده عرضا" (رواه ابوداؤد)

③ په ترمذی کښې دَحضرت بلال رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې چه حضرت بلال رضی الله عنه یوه ورځ دَ سحر وخت نه مخکښې ورکړو نو حضورپاك هغه ته حکم ورکړو چه اذان واپس

او کړه.

④ دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما روایت د دوی مستدل دی دي "ان بلالا أذن قبل الفجر فغضب رسول الله ﷺ" (زجاجة المصابیح ۲۰۱/۱)

⑤ "والمؤذن مؤتمن" هم د دوی مستدل دي ځکه چه دوخت نه مخکښي خووخت سره خیانت دي او مؤذن امین وی هغه له داسې نه دی کول پکار.

⑥ دغه شان دحضرت عمر رضي الله عنه طرف ته منسوب دی چه هغوی خپل غلام ته مخکښي د سحرد راختونه اذان ورکولو باندې د دوباره کولو حکم ورکړو.

⑦ ائمه احناف سره عقلي دلیل هم شته. هغه داسې چه لکه څنګه باقی څلورو وختونوپه مونځونوکښي دچا په نیزد وخت نه مخکښې اذان کول معتبر نه دی. دغه شان اذان مخکښي دسحرد راختونه کول هم جائز نه دی ځکه چه په ټولو کښي علت مشترك دي اوهغه دا چه د اذان مقصد د وخت تعیین وی اود وخت نه مخکښې اذان کښي تجهیل دوخت دي تعیین د وخت نه دي.

## ٦٨١—د پیشمنی آخری وخت

٦٨١—(١)[٢] ① وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② ((«لَا يَمْنَعَنَّكُمْ مِنْ سُحُورِكُمْ أَذَانُ بِلَالٍ، ③ وَلَا الْفَجْرُ الْمُسْتَطِيلُ، ④ وَلَكِنِ الْفَجْرُ الْمُسْتَطِيرُ فِي الْأُفُقِ»)). رَوَاهُ مُسْلِمٌ، وَلَفْظُهُ لِلتِّرْمِذِيِّ.

**توجمه:** ① حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ اوفرمايل ② د بلال رضي الله عنه آواز دي تاسو د پيشنمي د خوراک او څښاک څخه منع نه کړي (ځکه چې هغه په شپه کښي اذان کوي) ③ او نه فجر اوږد (يعني صبح کاذب) ④ البته په افق باندې خور فجر (يعني صبح صادق چې ظاهر شي نو خوراک څښاک پريږدي) مسلم، الفاظ د ترمذي دي

**حل اللغات:** ① الْفَجْرُ الْمُسْتَطِيلُ: أَيْ: الصُّبْحُ الَّذِي يَصْعَدُ إِلَى السَّمَاءِ: د سحر رڼا چه آسمان طرف ته راوږده شي، دي ته صبا کاذب وائي، دا رڼا راوږده شي خو واپس ختمه شي ځکه ورته صبا کاذب وائي. ② الْفَجْرُ الْمُسْتَطِيرُ: أَيْ: الْمُنْتَشِرُ الْمُعْتَرِضُ: د صبا کاذب نه پس نوره رڼا رابښکاره کیږي چه هغه د آسمان په کنارو کښي په پلنوالي خوره وی دا اصل صبا دي ځکه ورته صبا صادق هم وائی. ③ الْأُفُقِ: أَيْ: أَطْرَافِ السَّمَاءِ: د آسمان غاړو ته وائی.

---

(١) اخرجه مسلم باب بيان أن الدخول في الصوم يحصل بطلوع الفجر، (رقم) ٤٣ - (١٠٩٤) وابوداود كتاب الصوم باب وقت السحور (رقم ٢٣٤٦) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في بيان الفجر (رقم-٧٠٦)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَمْنَعَنَّكُمْ مِنْ سُحُورِكُمْ أَذَانُ بِلَالٍ،

**د بلال په اذان د روژې نه بندولو وجه:** حضرت بلال ﷺ به گمان کولو چې گنی سحر شوې دې نو آذان به يې اوکړو، او دا به د تهجدو آذان وو. په دې وجه نبی کريم ﷺ صحابه کرامو ته اوفرمائيل چې تاسو د حضرت بلال ﷺ په آذان مه دهوکه کيږئی چې گنی دا دسحری آذان دې.بيا چې کله تاسو د ام مکتوم ﷺآذان واورئی نو د خوراك نه لاس اونيسی. ځکه ام مکتوم نابينا وو. او تر هغه وخته پورې به يې اذان نه کولو تر څو چې به ورته دصحابه کرامو جماعت نه وو وئيلی چې صبا شو اذان اوکړه.

**قوله:** وَلَا الْفَجْرُ الْمُسْتَطِيلُ

**د فجر تستطيل تعريف:** ابن ملك رحمة الله عليه فرمائی چې فجر مستطيل هغه وی کومې کښې چې سپينوالې مشرق نه آسمان طرف ته ځی ، او دې ته فجر کاذب هم وائی . او ددې د تلو نه پس تياره راخوره شی ، بيا دې نه پس مشرق طرف نه يوه مستطريه شان رنړا ظاهره شی ،هغې ته صبح صادق وائی.

**٦٨٢-په سفر کښې داذان حکم**

٦٨٢-()[٣] [١] وَعَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-،قَالَ: [٢]«أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَابْنُ عَمٍّ لِي،فَقَالَ: [٣]((إِذَا سَافَرْتُمَا فَأَذِّنَا وَأَقِيمَا، [۴] وَلْيَؤُمَّكُمَا أَكْبَرُكُمَا»).رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] مالک ابن حويريث ﷺ فرمايي [٢] چه زه او زما د ترۀ زوي (مونږ دواړه) د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو نو رسول الله ﷺ وفرمايل [٣] هر کله چې تاسو په سفر لاړ شی نو د لمانځه دپاره اذان اوتکبير وايئ [۴] او په تاسوکښې چې کوم مشر وي هغه دې امامت کوي. (بخاري)

**تسهيلات: قوله:** وَلْيَؤُمَّكُمَا أَكْبَرُكُمَا

**دحديث مفهوم:** مالك بن الحويرث وائی چې زه د خپل د ترۀ زوئې سره د نبی کريم ﷺ په خدمت حاضر شوم. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې کله تاسو دواړه په سفر کښې يئ نو اذان هم کونی او اقامت هم ، او په تاسو کښې دې امامت هغه څوك اوکړی څوك چې مشر وی. هم دامضمون هدايه کښې دابن ابی مليکه نه نقل کړې شوې دې. او د لته په مشکوة کښې د مالك بن الحويرث نه نقل کړې شوې دې. صحيح همدا دې.

(١) اخرجه البخاری کتاب الاذان باب من قال: ليؤذن فی السفر مؤذن واحد(رقم-۶۲۸) ومسلم کتاب المساجد و مواضع الصلاة باب من أحق بالإمامة (رقم) ۲۹۲ - (۶۷۴)، وابوداود کتاب الصلاة،باب من أحق بالإمامة (رقم-۵۸۹) والنسائی کتاب الأذان ،اجتزاء المرء بأذان غيره فی الحضر(رقم-۶۳۶)، والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الأذان فی السفر(رقم-۲۰۵) وابن ماجة باب من أحق بالإمامة (رقم-۹۷۹)

**قوله:** فَأَذِّنَا وَأَقِيمَا،

**اشكال:** ددې حديث نه معلوميږي چې دواړه اذان هم کوئی او دواړه اقامت هم کوئی ، حالانکه اصل کښې داسې نه ده؟

**دااشکال درې جوابونه:** ① دا د تثنيه تخيير دپاره دی ، مطلب دا دې چې په تاسو دواړو کښې د يو ذمه داری دا ده .داذان اواقامت په خلاف امامت دپاره دا شرط دې چې په تاسو کښې څوك مشر وی هغه دې امامت اوكړی .

② دواړه دې اذان اوكړی ، يو مشاورةً او بل مباشرةً.

③دواړه دې اووائی ، يو د مؤذن په حيثيت سره او بل د اجابت په حثيت سره .

مباشرة اجابة (الراجح هوالاول) يئ د امامت باره کښې اوفرمائيل چې تاسو کښې څوك مشر وی هغه دې امامت اوكړی .

**اشکال:** فقهاء کرامو ليکلی دی،چې اول دې اعلم امامت اوكړی بيا اقرأ اوبيا دې أسن، اوپه دې حديث کښې اول حقدار دامامت مشر گرځولې شوې دې.

**دااشکال جواب:** چونکه هغوئ دواړه د علم او قراءت لحاظ سره برابر وو ، په دې وجه يئ اسن ته ترجيح ورکړه ، او که باقی په ټولو مرجحاتوکښې برابر وی نوترجيح به د عمر اعتبار سره وی. ددې حديث پاك نه معلومه شوه چې مسافر ته پکار دی چې اذان او اقامت دواړه اوكړی .

**٦٨٣–په دوو کسانو کښې مشر امام جوړول**

٦٨٣–(١)[٣] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ لَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②(«صَلُّوا كَمَا رَأَيْتُمُونِي أُصَلِّي، ③وَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَلْيُؤَذِّنْ لَكُمْ أَحَدُكُمْ، ④ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمْ أَكْبَرُكُمْ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابن حويرث رضي الله عنه راوي دي چه رسول كريم ﷺ وفرمايل② تاسو چې ما څنګه په لمانځه كولو وينئ دغسې تاسو هم کوئ③ او هر كله چې د لمانځه وخت شی نو په تاسو کښې دي څوک اذان وکړي④ او څوک چې در په کښې مشر (لويې) وي هغه دي امامت درکړي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① أَكْبَرُكُمْ: أي عِلْمًا أَوْسِنًّا: د مشروالی نه مراد يا زياتوالي دعلم دې يا د عمر دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** "كَمَا رَأَيْتُمُونِي"

**په هر عمل کښې د سنت تابعداری:** يعنی اصل شريعت هغه دې د کوم چه نمونه حضرت

(١) اخرجه البخاری كتاب الاذان باب الأذان للمسافر، إذا كانوا جماعة، والإقامة، وكذلك بعرفة وجمع، وقول المؤذن: الصلاة فى الرحال، فى الليلة الباردة أو المطيرة (رقم–٦٣١)

شارع علیہ السلام پیش کړي ده. په دې وجه حضور پاك اوفرمائيل چه ما ته ګورئي زما په شان عمل کوئي زما نمونه خپله کړئي زما په نقش قدم باندې تګ کوئي دَخپل طرف نه دَ عبادتونو نقشې او ترتيب مه ورکوئي.

**قوله: "فَلْيُؤَذِّنْ لَكُمْ أَحَدُكُمْ"**

**په اذان کښې د مشر او کشر عدم فرق:** يعنی دَ مونځ وخت کښې تاسو نه دې څوك هم چه اذان ورکړی نو که تاسو په سفر کښې يئی يا په حضر کښې بيا دَامامت دَپاره تاسو نه دې دَتولو نه غوره سړې وراندې شی اوستاسو امامت دې اوکړی.

**د اکبر نه مراد:** "اکبرکم" دې نه مراد غوره سړې دې صرف په عمر کښې زيات مراد نه دې. يعنی دَ امامت مستحق به هم هغه سړې وی چه په علم اوفضل کښې دَ تولو نه وړاندې وی. که چرې په دې کښې دواړه برابر وی نوبيا چه کوم يو په عمر کښې زيات وی هغه به امام جوړيږی اودَ عمر نه هغه عمر مراد دې چه دَاسلام په حالت کښې تيرشوې وی دَجاهليت دَعمر اعتبار نشته دې.

**فائده:** دَدې کلام نه دامعلوميږی چه په معاشره او محله کښې دَ اذان دَپاره هرسړې مخکښې تلې شی. ليکن دَ امامت دَپاره به دَدې اهل سړې راوستلې شی.

**٦٨٤- دَ قضا شوی مونځ په جماعت سره قضا راوړل**

٦٨٤-(۵)[۵] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-، قَالَ: ② «إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَفَلَ مِنْ غَزْوَةِ خَيْبَرَ، سَارَ لَيْلَةً، ③ حَتَّى إِذَا أَدْرَكَهُ الْكَرَى عَرَّسَ، ④ وَقَالَ لِبِلَالٍ: (اكْلَأْ لَنَا اللَّيْلَ. فَصَلَّى بِلَالٌ مَا قُدِّرَ لَهُ، ⑤ وَنَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ. ⑥ فَلَمَّا تَقَارَبَ الْفَجْرُ اسْتَنَدَ بِلَالٌ إِلَى رَاحِلَتِهِ مُوَاجِهَ الْفَجْرِ، ⑦ فَغَلَبَتْ بِلَالًا عَيْنَاهُ، وَهُوَ مُسْتَنِدٌ إِلَى رَاحِلَتِهِ،

**ترجمه:** ① ابوهريره رضی الله عنه فرمايي ② چې رسول الله صلی الله علیه وسلم چې د غزوه خيبر څخه واپس شو نو توله شپه يي سفر وکړو ③ تر دي چې کوم وخت ورباندې غنودګي (د خوب جوټا) راغله نو حضور صلی الله علیه وسلم د آرام کولو د پاره په آخري شپه کښې يو ځاي ښکته شو ④ او بلال رضی الله عنه ته يې وفرمايل ته زمونږ خيال ساته (يعني چې سحر شی نو مونږ ويښ کړه) دي فرمايلو سره حضور صلی الله علیه وسلم او صحابه رضی الله عنهم اوده شوه نو بلال رضی الله عنه د تهجد مونځ چې څومره کيدي شو وي کړو ⑤ کله چې صبح صادق نزدې شو نو بلال رضی الله عنه د خپلي کجاوي سره تکيه لګولو سره د فجر (مشرق) طرف ته مخ کولو سره کيناستو ⑦ (چې صبح صادق شی نو حضور صلی الله علیه وسلم به راويښ کړي) بلال رضی الله عنه کجاوي سره تکيه لګولي ناست وو اتفاقًا هغه ته هم خوب ورغلي.

**حل اللغات:** ① قَفَلَ: أَيْ: رَجَعَ: چه راواپس شو. دَ ميدان جنګ نه واپس راتلونکی مجاهدينو

(۱) اخرجه المسلم كتاب المساجد و مواضع الصلاة باب قضاء الصلاة الفائتة، واستحباب تعجيل قضائها (رقم) ۳۰۹ - (۶۸۰) وابن ما جة كتاب الصلاة، باب من نام عن الصلاة أو نسيها (رقم-۶۹۷)

دپاره دَ قلل لفظ استعماليږی. ② سَارَ: روان وو، سفر ئې کولو. ③ الكَرَي: هُوَالنُّعَاسُ أوالنَّوْمُ: کری د خوب جوتو ته وائی، یا خوب ته وائی. ④ عَرَّسَ: دا د تعریس نه دې دَ باب تفعیل نه، أيْ: نَزَلَ آخِرَ اللَّيْلِ لِلاِسْتِرَاحَةِ: دَ شپې په آخری حصه کښې دَ آرام کولودپاره ډيره اچولو ته تعریس وائی. ⑤ اكْلاَ: أيْ: احْفَظْ وَاحْرُسْ: یعنی زمونږ دَ شپې څوکیداری کوه. "اكلا" دَ باب فتح یفتح نه دَامر صیغه ده دَ یوځیز نګرانی او حفاظت اوڅوکیدارئی ته کلأ وائی. ⑥ اسْتَنَدَ: تکیه او ډډه ئې لګولې وه. ⑦ رَاحِلَتِهِ: کیجاوه. ⑧ مُوَاجِهَ: أيْ مُتَوَجِّهَ: مخ کړې ئې وو.

١ فَلَمْ يَسْتَيْقِظْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَا بِلَالٌ، وَلَا أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِهِ ٢ حَتَّى ضَرَبَتْهُمُ الشَّمْسُ، ٣ فَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ وَسَلَّمَ أَوَّلَهُمُ اسْتِيقَاظًا، فَفَزِعَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: ٤ (أَيْ بِلَالُ!). فَقَالَ بِلَالٌ: أَخَذَ بِنَفْسِي الَّذِي أَخَذَ بِنَفْسِكَ. ٥ قَالَ (اقْتَادُوا) فَاقْتَادُوا رَوَاحِلَهُمْ شَيْئًا، ٦ ثُمَّ تَوَضَّأَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَمَرَ بِلَالًا فَأَقَامَ الصَّلَاةَ، ٧ فَصَلَّى بِهِمُ الصُّبْحَ. فَلَمَّا قَضَى الصَّلَاةَ، قَالَ: ٨ (مَنْ نَسِيَ الصَّلَاةَ فَلْيُصَلِّهَا إِذَا ذَكَرَهَا ; ٩ فَإِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى قَالَ: ﴿وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي﴾ [طه: ۱۴]). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ (نو د صبح صادق کیدو په وخت) حضور ﷺ، بلال رضي الله عنه او صحابو رضي الله عنهم کښې هیڅوک هم بیداره نه شو ٢ تر دې چې نمر پرې راغې (او دهغې ګرمي ورته ورسیده) ٣ نو د ټولو څخه مخکې د رسول الله ﷺ سترګې وغړیدلې او حضور ﷺ په ویرې سره وفرمایل ٤ بلاله دا څه وشو؟ بلال رضي الله عنه (هم په خوف سره اودریدو) عرض یې اوکړو یا رسول الله ﷺ زه هم هغه شي ونیولم کوم چې تاسو نیولي وئ (یعني خوب) ٥ رسول الله ﷺ وفرمایل د دې ځایه څخه روان شی نو ټول خلق تر لږ لرې پورې خپلې خپلې سورلې روانولو سره لاړل ٦ بیا حضور ﷺ اودس اوکړو او بلال رضي الله عنه ته یې د تکبیر وئیلو حکم اوکړو نو هغه د لمانځه د پاره تکبیر اوکړو ٧ او حضور ﷺ صحابه ؤ رضي الله عنهم ته د سحر مونځ ورکړو کوم وخت چې د لمانځه څخه فارغه شو نو حضور ﷺ وفرمایل ٨ چې کوم سړي نه (د خوب وغیره په بنا) مونځ کول هیر شی نو په یاد راتلو سره سم دستي دې مونځ وکړي ٩ څکه چې الله تعالی جل جلاله فرمایي أَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي یعنی زما د یادولو په وخت مونځ وکړي. (مسلم)

**حل اللغات:** ⑨ ضَرَبَتْهُمْ: أيْ: أَصَابَتْهُمْ، وَوَقَعَ عَلَيْهِمْ حَرُّهَا: نمر پرې راغې او ګرمی پرې اولګیده. ⑩ فَفَزِعَ: نو اوویریدو (چه دسحر مونځ رانه قضا شو). ⑪ اقْتَادُوا: أيْ: سُوقُوا رَوَاحِلَكُمْ: خپلې سورلۍ رواني کړئ.

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنْ غَزْوَةِ خَيْبَرَ:

**دحدیث پس منظر:** غزوه خیبر په کال ۵ هجری کښې پیښه شوې وه. دَ مدینې منورې دَ

اطرافو نه دَ بنونضیروغیره نه اکثر یهودیان دَ خیبر په علاقو کښې راجمع شوي وو. مدینه منوره چونکه دَ اسلام مرکز جوړشوي وو اودا یهودیان هروخت دَ اسلام دَ مرکز خلاف دَ بهرکافرانو سره رابطه ساتله. دَ عقل ودانش تدبیراو تدبر تقاضا وه چه مرکز اسلام دَدې خطرې نه اودَ یهودودَدغه ناپاکه فتنې نه پاك كړې شي. دَ صلح حدیبیه نه واپس کیدو باندې حضورپاك دَ څه تاخیرکولو نه بغیر په صلح حدیبیه کښې شریك دوه نیم زره صحابه کرامو سره دَ خیبرپه یهودو باندې حمله اوکړه. دَمدینې منورې نه دَخیبرطرف ته په شمال کښې ۹۶ میل فاصله باندې واقع ده. هغه وخت داعلاقه په اووه مضبوطو جنګی قلعه ګانو مشتمل وه. دَ خیبر په زمکه باندې کوزیدو سره نبی الملاحم ﷺ دا تاریخی جملې ارشاد اوفرمائیلې "الله اکبر خربت خیبر الله اکبر خربت خیبر الله اکبر خربت خیبر" تریوې میاشتې پورې اسلامی لښکردَ خیبرمحاصره جاری اوساتله اوبیاتولې قلعه ګانې فتح شوې. دَ کافرانو مشران ۹۲ یهودیان اووژلې شو او ۱۶ دَ اسلام سرفروشو دَ شهادت جام نوش کړو. په وره علاقه باندې دَ اسلام جهنډا اوچته شوه. حضرت علی رضی الله عنه قلعه قاموص فتح کړه اوباب خیبرئې مات کړو په دې وجه هغوی ته فاتح خیبرلقب ملاؤشو.

**قوله: الْكَرَى:**

**دخوب قسمونه:** دَ خوب ډیر قسمونه او درجات دی

① کله چه دَ خوب اثر په سترګو باندې وی هغې ته سنة وائی

② کله چه خفیف غوندې اثر په دماغو باندې وی هغې ته کریٰ وائی

③ کله چه اثر په زړه باندې وی هغې ته نعاس وائی. په دې الفاظو کښې دامعمولی شان فرق کولې شی مګردا الفاظ مترادفه دی ټول دَ خوب په شروع کیدو او پرکالی راتلو باندې ویلې شی اوکله چه په بدن باندې دَ خوب مکمل قبضه اوشی هغې ته النوم وائی.

**قوله: مُوَاجِهَ الْفَجْرِ:**

**دمذکوره جملې ترکیب:** دا جمله دَاستند دَ ضمیرنه حال واقع ده اوموجه دَباب تفعیل نه اسم فاعل صیغه ده چه دَتاوولوپه معنی کښې ده. اصل عبارت داسې دې "ای موجه راحلة الی الفجر"

**د مذکوره جملې په مطلب کښې دوه اقوال:** ① دَدې مطلب دا شوچه حضورپاك سورلی په داسې انداز سره کینوله چه هغې سره ئې ډډه اووهله اوحضورپاك جانب فجر یعنی مشرق طرف ته مخ کولوسره کیناستو.

② شیخ عبدالحق رحمه الله داهم لیکلی دی چه موجه دَمتوجه په معنی کښې اخستلې شی یعنی حضورپاك دَ مشرق طرف ته دَ سحردَ راختلودَ کتلودَپاره په خپله سورلئی باندې ډډه وهلوسره متوجه کیدو سره کیناستو. (کذافی اللمعات)

**قوله: اقْتَادُوا:**
دادَ باب افتعال نه دَامر صيغه ده په اصل کښې دادَ قود نه دې کوم چه دَ جلب نه اونيسي او اوښ وغيره رابښکلو ته وائي لکه څنګه چه سوق دَ شړلو په معنی کښې دې. فاقتادوا داهم دَدې باب نه دَماضي صيغه ده يعني ټولو خلقو دَهغه ځائي نه سورلئي واخستې لاړل.

**د بيداريدو څخه روسته سمدستي د مونځ قضاء نه راوړلو دوه وجوهات:** کله چې دَحضورپاك سترګې کولاؤشوې نوحضورپاك زر دَ سحرد مونځ کولو اهتمام اونه کړو؟ بلکه مخې روان شو د دې په حکمت کښې دوه اقوال دی.

① احناف فرمائي چونکه دَ نمرد راختلو مکروه وخت وو هغه وخت قضاشوې مونځ اداکول مکروه وو. په دې وجه حضورپاك صحابه کرامو ته څه وړاندې دَتللو حکم ورکړودې دَپاره چه مکروه وخت اوځي. دَمسلم شريف روايت کښې دی چه "فسرنا حتى اذا ارتفعت الشمس نزل (ص: ۲۳۹)" دادَ احنافو تائيد دې.

② شوافع فرمائي: داسې قضاشوې مونځ اداکول دَ سحروخت راختلوپه وخت جائزدې. حضورپاك صحابه کرامو ته دَدې وادئي نه دَتللو حکم په دې وجه ورکړو چه په وادئي کښې دَ شيطانانو مسکن او اثر وو. چنانچه بعض رواياتو کښې دې طرف ته اشاره هم موجودده.

**اشکال:** دَ احاديثو نه ثابته ده چې د خوب په حالت کښې د نبی کريم صلی الله عليه وسلم سترګې اوده کيږې ليکن زړه نه اوده کيږې بلکه بيدار اوسيږي نودَ زړه دَ بيدار پاتې کيدو نه باوجود څه وجه ده چه حضورپاك ته دَ سحرد راختلو اودَ صبح صادق دَ کيدلوپته اونه لګيدله او مونځ قضاشو؟

**د اشکال جواب:** په انساني بدن کښې دَ هريو اندام جدا جدا کار او ځان ځانله ذمه واری وی. دَ سحر پيژندګلو کول اودَهغې معلومول دَ زړه وظيفه نه ده بلکه دادَسترګو ذمه واری اودَدې وظيفه ده. هم دغه وجه ده که يوسړې سترګې بالکل بندې کړی نودَ وينيدو په حالت کښې هم هغه دَ صبح صادق وغيره مرئي څيزونو پيژندګلونه شي کولې. حالانکه زړه بيداردې او سړې وينې دې صرف سترګې بندې دی. پخپله حضرت عبدالله ابن ام مکتوم ﷺ په وينيه حالت کښې به دَ صبح صادق پيژندګلونه شوه کولې ځکه چه هغه نابينا وو حالانکه زړه به ئی بيداروو. دلته هم دَ حضورپاك معامله هم داسې وه چه دَ صبح صادق دَ پيژندګلو وظيفه چونکه دَ سترګو وه او سترګې بندې وې نودَ زړه دَ بيداريدو سره حضورپاك په سحرباندې پوهه نه شو او مونځ قضاشو خو چه دَ نمرلګيدوسره دَ حضورپاك بدن متاثر شو نوهله حضورپاك ته دَ سحرد راختلو او نمر دَ راختلو احساس اوشو.

**د مونځ په قضاء کيدو کښې حکمت:** دَ حضورپاك مونځ قضاکيدل اودَ وحی يا کشف په ذريعه دَالله تعالی دَطرف نه دَ بيداريدو انتظام نه کول دَ الله تعالی مرضی او حکمت وو

دې دَپاره چه دَحضورپاك په دې فعل سره امت ته په داسې قسم حالاتو كښې يوه نمونه او مسنون طريقه ملاؤشي. تسهيلات جلداول كښې دَدې مسئلې تفصيل تيرشوې دې هلته اوګورئ:

**قوله: فَأَقَامَ الصَّلَاةَ:**

**د قضاء شوې مونځ دپاره د اذان په كولو كښې مذاهب:**

① يعنې حضرت بلال ﷺ ته حضورپاك ﷺ دَتكبيرونيلوحكم وركړو نوهغوى دَ مانځه دَپاره تكبير اوونيل او رسول الله ﷺ قضامونځ په جمع سره اداكړو. دَدې لفظ نه په ظاهره داسې معلوميږي چه دَ قضا مونځ دَپاره صرف تكبيرونيل كافي دى دَ اذان كولوضرورت نشته. دَامام شافعي رحمه الله جديد قول هم دغه شان دې ليكن دَ شوافع علماؤ قديم قول اومعتمد مسلك هم دغه دې چه دَ قضا مونځونودَپاره اذان كول ضروري دى.

② دَ احنافو مسلك هم دغه دې چه اذان اواقامت دواړه ضروري دى. صاحب دَ هدايه په هدايه كښې ليكلي دى چه رسول الله ﷺ "ليلة التعريس" په سحر دَ سحر قضا مونځ اذان او اقامت سره اداكړې وو. شيخ ابن همام رحمه الله فتح القدير كښې دَ مسلم شريف يو اوږد حديث حواله وركړې ده په كوم كښې چه دَ ليلة التعريس قصه ده په دغه حديث كښې دا الفاظ "ثم اذن بلال بالصلوة فصلى رسول الله ﷺ ركعتين" (مسلم ج ۱ ص ۲۳۹) دَ ابوداؤد په يوروايت كښې دا الفاظ راغلي دى "انه ﷺ امر بلالا بالاذان والاقامة حين نامواعن الصبح وصلوها بعد ارتفاع الشمس" [اشعة المعات: ۳۴۴] (كذا في اللمعات)

دَدې تفصيلي احاديثو نه پس به هم دغه وئيلى شي چه دَ زير بحث حديث كوم الفاظ دى "واقام الصلوة" دا مجمل دى تفصيل به نظرانداز كولې نه شي.

**مسئله : د صبا د سنت قضاء كيدو د مختلفو صورتونو حكمونه :**

① كه دَ يوسړى دَ سحرمونځ قضاشى نوهغه به فرض مونځ سره سنت هم كوى په دې شرط چه دَ زوال نه وړاندې قضااوكړى

② كه چرې هغه دَ زوال نه پس قضاكوى نوبيادَ سحر سنت نه شى كولې.

③ كه دَ يوسړى نه دَ سحرسنت پاتې شى اوفرض ئې اوكړل نواوس به هغه دَ نمردَ راختو نه پس دَدې سنتو قضانه شى كولې اودَ ثواب دَ حاصلولودَپاره دې هغه دوه ركعته نفل اداكړى دا مسئله آئنده په تفصيل سره راروانه ده.

٦٨٥ – دامام د راوتلو نه وړاندې د اودريدو ممانعت

٦٨٥ – ()[۲] [١] وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] ((إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَلَا تَقُومُوا حَتَّى تَرَوْنِي قَدْ خَرَجْتُ)) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابو قتاده رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هر کله چې د لمانځه د پاره تکبير وشي نو تر څو پورې چې تاسو ما د حجرې څخه وتونکي ونه وينې د لمانځه د پاره مه درېږي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① أُقِيمَتِ: أَيْ: نَادَى الْمُؤَذِّنُ بِالْإِقَامَةِ: يعنى مؤذن اقامت (تکبير) اوکړی.

**تسهيلات:**

**قوله: فَلَا تَقُومُوا حَتَّى تَرَوْنِي قَدْ خَرَجْتُ**

اشکال: په ظاهره خو حديث پاك نه معلومېږی چې د نبی کريم ﷺ راتلو نه وړاندې به اقامت کيدو او بيا ددې نه روستو مقتديان اودريدل؟ نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې تاسو تر هغه وخته پورې مه اودرېږی ترڅوتاسو ماووينې چې زه د حجره شريف نه راوتلم نو بيا اودرېږئ. اصل مسئله داده چې اقامت دې دامام د راتلو نه پس شروع کړې شی . ددې حديث پاك نه معلومېږی چې د نبی کريم ﷺ راتګ نه وړاندې به اقامت کيدو؟

**داشکال جوابونه:** ① داسې کول هم جائز دی،او که متعد به فصل نه وی نو ددې د اعادې کولو هم ضرورت نشته دې. ليکن افضل دادې چې کله امام مسجد ته دننه راشی نو بيا دې تکبير اووئيلې شی. او د نبی کريم ﷺ په شروع کښې دا عمل دبيان دجواز دپاره وو.

② چونکه حضرت بلال رضي الله عنه به هر وخت تيار وو چې کله به نبی کريم ﷺ دحجرې مبارکې نه رااوتل نو زر به يې تکبير شروع کولو، خو نورو خلقوته دنبی کريم ﷺ د راتلو روستو علم کيدو ، نو دې صحابی چې څنګه اوليدل نو هغه شان يې بيان اوکړو. حقيقت کښې به تکبير اول نه کيدو ، او حضرت بلال رضي الله عنه چې مکبر وو ، د هغوئ اعتبار سره به اول نه کيدو، د عامو خلقو اعتبار سره اول کيدو. بهر حال مسئله داده که چرې امام ته انتظار کول وی نو په ناسته دې انتظار اوکړی ، په ولاړه دې اونه کړې شی ، او ممکن ده چې په ولاړه وقفه طويله شی نو خلق به مشقت کښې اخته شی . په دې وجه نبی کريم ﷺ خپلو صحابه کرامو ته اوفرمائيل چې زما په انتظار کښې مه اودرېږئ ترڅوچې ما په راتګ اونه وينئ.

[١] اخرجه البخاری کتاب الاذان باب: متى يقوم الناس، إذا رأوا الإمام عند الإقامة(رقم-٦٣٧) وابوداود کتاب الصلاة،باب السعى إلى الصلاة(رقم-٥٧٢)ومسلم کتاب المساجدومواضع الصلاة اب متى يقوم الناس للصلاة(رقم)١٥٦ - (٦٠٤) والترمذی کتاب العيدين/باب فى خروج النساء فى العيدين (رقم-٥٣٩) والنسائى کتاب الإمامة/باب قيام الناس إذا رأوا الإمام (رقم-٧٩٠)

**په ناسته دامام انتظار کول:** هرکله چې امام نه وی نو دهغه انتظار په ناسته پکار دې په ولاړه نه دې پکار ، ددې حدیث پاك مدلول هم دادې.

**په جمات کښې د امام په موجودګی کښې دمقتدیانو دپاره په اودریدو کښې مذاهب:**
هرکله چې امام په مسجد کښې موجودی نو مقتدیانو لره کله اودریدل پکار دی؟

① مالکیان وائی چې په دې کښې څه تحدید نشته دې چې کله اودریدې نو اودریدلې شی.

② د طرفینو طرفته منسوب دی چې کله مکبر حیعلتین ته اورسی نو هغه وخت کښې پکار ده چې مقتدیان اودریږی. او کله چې مکبر قدقامت الصلوة ته اورسی نو امام ته پکار دی چې تکبیر تحریمه اووائی ددې جوابات لاندې درج دی.

**دطرفینو د قول څخه جوابونه:** ① د طرفینو دا قول مؤول دې. مطلب دادې که مقتدیانو نه په اودریدو کښې تاخیر اوشی کوم مباح تاخیر دې نو زیات نه زیات حیعلتین پورې اودریدل پکار دی. ددې نه زیات نه دی پکار. دا د تاخیر نه احتراز دې د تقدیم څخه نه دې. لکه څنګه چې بۀ دحضرت عمر فاروق ﷺ په زمانه کښې په دې باندې عمل کیدو. باقی پاتې شوه دا خبره چې د طرفینو دا تاویل منقولی دی اوکه جعلی ؟ د درمختار حاشیه چې د طحاوی په نوم مشهوره ده ، په هغې کښې دا وضاحت موجود دې چې دا د تاخیر څخه احتراز دې ، تقدیم څخه د احتراز نه دې، خو دا نسخه عامه نه ده .

② داشان دا مسئله په متون کښې لیکلې شوې ده ، هلته هم دا لیکلی شوی دی دا د مستحباتو نه دی ( باب استحباب نه پس لیکلې شوی دی) او قاعده او ضابطه داده چې کله په یو مستحب باندې عمل سره د سنت مؤکده ترك یا په دې کښې خلل لازم راشی نو داسې مستحب پریښودلې کیږی. او ظاهره ده که مقتدیان په حیعلتین باندې اودریږی نو تسویة صفوف به نه وی ، حالانکه تسویة صفوف خو قریب الی الواجب دی.

③ هرکله چې یو مستحب سره یو واجب والا معامله اوشی نو دمستحب ترك به واجب او پریښودل به ضروری وی. او نن موجوده زمانه کښې خو دا یوه طریقه جوړه شوې ده. لهذا ددې ترك ضروری دې. (خیر المفتاتیح (۱/ ۸۹ - ۹۰)

### ٦٨٦ – د مانځه دپاره د منډې وهلو مما نعت

٦٨٦ – (۱) [۷] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② (« إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ، فَلَا تَأْتُوهَا تَسْعَوْنَ، ③ وَأْتُوهَا - تَمْشُونَ وَعَلَيْكُمُ السَّكِينَةُ. ④ فَمَا أَدْرَكْتُمْ فَصَلُّوا، وَمَا فَاتَكُمْ فَأَتِمُّوا» ).

---

(۱) اخرجه البخاری کتاب الجمعة باب المشی إلی الجمعة (رقم-۹۰۸) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة باب استحباب إتیان الصلاة بوقار وسکینة، والنهی عن إتیانها سعیا (رقم-۱۵۱ - (۶۰۲)) وابوداود کتاب الصلاة،باب السعی إلی الصلاة (رقم-۵۷۲) و ابن ماجة کتاب المساجد والجماعات ،باب المشی إلی الصلاة(رقم-۷۷۵) و مالک فی الموطا کتاب الصلاة باب ما جاء فی النداء للصلاة (رقم-۴) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ باب ما جاء فی المشی إلی المسجد (۳۲۷رقم) والنسائی کتاب الإمامة/ باب السعی إلی الصلاة (رقم۸۶۱)

مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ۵ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: ((فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا كَانَ يَعْمِدُ إِلَى الصَّلَاةِ فَهُوَ فِي صَلَاةٍ)). ۶ وَهٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّانِي.

**ترجمه:** ۱ ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ هر كله چې د لمانځه تكبير وشي نو تاسو په جماعت كې د شامليدو د پاره په منډه مه راځئ ۳ بلكه په وقار او طمانيت سره په خپل تګ راځئ ۴ څومره مونځ چې تاسو د امام سره لاتدې كړي هغه وكړي او كوم چې فوت شي (د امام د سلام ګرځولو څخه وروسته ودريدو سره) هغه پوره كړي، (بخاري، مسلم) ۵ او د مسلم په روايت كې دا الفاظ هم دي څكه چې په تاسو كې څوك د لمانځه اراده كوي نو هغه (حكمًا) په لمانځه كې شامل ګڼلي شي. ۶ او په دي باب كې دويم فصل نشته

**حل اللغات:** ① تَسْعَوْنَ: لَاتَأْتُوا إِلَى الصَّلَاةِ مُسْرِعِينَ فِي الْمَشْيِ: يعنى په عزت او آرام او عظمت سره په مانځه كښې دَ شامليدو دَپاره راځئ بې طريقې او په منډه لګولو سره دَ مونځ طرف ته مه راځئ؛ ② تَمْشُونَ: أَيْ: بِالسَّكِينَةِ وَالطَّمَأْنِينَةِ: په خپل تګ سره راځئ يعنى په قلار او آرام سره راځئ. ③ السَّكِينَةَ: په آرام آرام راځئ (يعنى منډې مه وهئ جلتى مه كوئ).

**تسهيلات:**

**قوله:** "فَلَا تَأْتُوهَا تَسْعَوْنَ"

**يو ظاهري تعارض:** په قرآن پاك كښې آيت ﴿فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ﴾ [سورة البقرة الايه: ۱۴۷] او ﴿وَسَارِعُوا إِلَى مَغْفِرَةٍ﴾ [سورة آل عمران الايه: ۱۳۳] نه معلوميږى چه دَ نيكو طرف ته په منډه تلل مطلوب او مقصود دى بيا په دې حديث كښې دَ نيكئ طرف ته په منډه راتلونه ولې منع كړې شوې ده؟

**د تعارض حل:** دَ قرآن پاك دَ آياتونو مطلب دادې چه تاسو په وخت باندې دَ نيكو دَ حاصلولو تيارى كوئ او بنه ډيرې دا حاصلې كړئ. دَدې آياتونو مطلب دانه دې چه په هغه وخت كښې تاسو كوتاهى اوكړئ او بيا په آخروخت كښې په منډو وهلو سره هغه نيكى حاصله كړئ. (كذافى المعات)

**دغلتو د منډو وهلو وجوهات:** ① اصل حقيقت دادې چه په مانځه كښې دَ شامليدلو دَپاره كوم حضرات منډه وهى په هغوى كښې زيات تر دَ ثواب په نيت منډه نه وهى بلكه هغوى څكه منډې وهى چه ركعتونه ترې لاړشى نو هغه به خان له محنت كوى او دَ خان له كولو تكليف به كوى.

② بعضې حضراتو كيدې شى داخيال وى چه ركعت تلوسره به خلق ماته ګورى چه صاحب نه ركعت لاړو. عام خلق هم دَ دغه حياء اوحرص دَ وجې نه منډې وهى ګنى كه دَ ثواب

معامله وي نو هغه له دَ كور نه مخكښې تياري كولو سره راتلل پكاروو او اوس چه كله هغه راروان دي نو دَدي حديث په رڼا كښې هغه په مونځ كښې دي هغه ته ثواب حاصليږي بيا په منډه وهلو سره دَ شامليدلو څه مطلب دي؟ اوخدائي دي نه كړي كه دغه صاحب خپلې جبې او پټكي سره په فرش باندې راپريوتلو نوبيابه څه كيږي او كه چرې پرينوځي نودې سپينو وينتو اوسپينو جامو سره منډه وهل ځ، مره بدې لګي دَدې به څه علاج وي؟

**په اطمينان سره د عبادت ادا كول:** لنډه دا چه اسلام مونږ ته په عبادت كښې هم وقار ښائي چه يو مذهبي فريضه دَ خندا اومسخرو سبب جوړنه شي. كه څوك دَ تكبير اولى دَ ثواب حاصلولو دَپاره يا دَ جمعې دَ ثواب حاصلولو په غرض سره تيز تيز قدم سره راځي نو هغه جدا صورت دي دَهغې ګنجائش شته ځكه چه په هغې كښې بې طريقې منډې نشته دي.

**قوله: "فَهُوَفِي صَلَاةٍ"**

**د صلاة په انتظار باندې د صلاة د اطلاق وجه:** په صلوة كښې تنوين دَتنكيردَپاره دي يعنى دا سړې په يوقسم مونځ كښې دي اوهغه حكمي مونځ دي چه ده ته دَمونځ ثواب حاصليږي. ځكه چه دي دَ ثواب په نيت سره روان دي سره دَدې چه په حقيقي مونځ كښې تردغه وخته پورې شامل نه دي.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## ۶۸۷–د صحابو نه د خوب په وجه د مونځ قضا كيدل

۶۸۷–()[۸] [۱] عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: [۲] «عَرَّسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً بِطَرِيقِ مَكَّةَ، [۳] وَوَكَّلَ بِلَالًا أَنْ يُوقِظَهُمْ لِلصَّلَاةِ، [۴] فَرَقَدَ بِلَالٌ وَرَقَدُوا [۵] حَتَّى اسْتَيْقَظُوا وَقَدْ طَلَعَتْ عَلَيْهِمُ الشَّمْسُ، [۶] فَاسْتَيْقَظَ الْقَوْمُ، وَقَدْ فَزِعُوا، [۷] فَأَمَرَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَرْكَبُوا حَتَّى يَخْرُجُوا مِنْ ذَلِكَ الْوَادِي،

**ترجمه:** [۱] زيد بن اسلم رضي الله عنه فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ د مكې معظمې په لار كې (د آرام كولو د پاره) په آخر شپه كې پړاؤوا چولو [۳] او بلال رضي الله عنه ته يې حكم وكړو چې (د سحر) د لمانځه د پاره ټول وينس كړي [۴] (لږ ساعت وروسته د خوب د غلبې په وجه) د بلال رضي الله عنه ستركي هم سره ورغلې او نور ټول خلق هم اوده شوي وو [۵] تر دې چه [مخكې خو حضور ﷺ بيدار شو او د هغوي څخه وروسته] ټول خلق رابيدار شو او نمر راختلې وو، [۶] نو قوم راويخ شو (دلمانځه د قضاء كيدو په سبب) ويريدلي وو، [۷] حضور ﷺ خلقو ته حكم وكړو چې سوريدو سره د دې ځاى څخه بهر ووځي.

(۱) اخرجه مالک فی الموطا كتاب وقوت الصلاة ،باب النوم عن الصلاة (رقم-۲۶)

۱ وَقَالَ: (إِنَّ هٰذَا وَادٍ بِهِ شَيْطَانٌ). ۲ فَرَكِبُوا حَتّٰى خَرَجُوا مِنْ ذٰلِكَ الْوَادِي، ۳ ثُمَّ أَمَرَهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنْزِلُوا، وَأَنْ يَتَوَضَّئُوا، ۴ وَأَمَرَ بِلَالًا أَنْ يُنَادِيَ لِلصَّلَاةِ - أَوْ يُقِيمَ -، ۵ فَصَلّٰى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاسِ، ۶ ثُمَّ انْصَرَفَ وَقَدْ رَأَى مِنْ فَزَعِهِمْ،

**ترجمه:** ۱ او وي فرمایل دا یو داسې دره ده چې شیطان پرې مسلط دي ۲ نو ټول سوریدو سره د هغه ځنګل ځخه ووتل ۳ (یو ځای ته په رسیدو سره) رسول الله ﷺ وفرمایل چې دلته ښکته شی او اودس وکړي ۴ او بلال رضی الله عنه ته ئې د لمانځه د پاره د اذان او تکبیر وئیلو حکم اوکړو ۵ بیا حضور ﷺ خلقو ته (د سحر) مونځ (قضاء باجماعت) ورکړو ۶ د لمانځه ځخه فارغیدو سره خلق یې په ویره کې ولیدل.

۱ فَقَالَ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّ اللّٰهَ قَبَضَ أَرْوَاحَنَا، ۲ وَلَوْ شَاءَ لَرَدَّهَا إِلَيْنَا فِي حِينٍ غَيْرِ هٰذَا، ۳ فَإِذَا رَقَدَ أَحَدُكُمْ عَنِ الصَّلَاةِ أَوْ نَسِيَهَا، ۴ ثُمَّ فَزِعَ إِلَيْهَا، فَلْيُصَلِّهَا كَمَا كَانَ يُصَلِّيهَا فِي وَقْتِهَا)، ۵ ثُمَّ الْتَفَتَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، فَقَالَ: ۶ (إِنَّ الشَّيْطَانَ أَتٰى بِلَالًا وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي فَأَضْجَعَهُ، ۷ ثُمَّ لَمْ يَزَلْ يُهَدِّئُهُ كَمَا يُهَدَّأُ الصَّبِيُّ حَتّٰى نَامَ)).

**ترجمه:** ۱ (نود تسلي ورکولو د پاره یې) وفرمایل ای خلقو الله تعالی جل جلاله (د اوده کیدو په وخت) زمونږ روحونه قبض کړي وو ۲ که هغه غوښتي نو زمونږ روحونه به یې بل وخت (یعني د نمر ختو ځخه مخکې) واپس کړي وو ۳ نو په تاسو کې که څوك د لمانځه په وخت کې اوده شي یا مونځ کول ځیني هیر شي ۴ او بیا لمانځه ته بیدارسي نو هغه له پکار دي چې هغه مونځ داسې (یعني د اذان او تکبیر او جماعت سره او د لمانځه ټول شرائط او ادابو لره ملحوظ ساتلو سره) وکړي ځنګه چې هغه یې په خپل وخت کولو ۵ بیا حضور ﷺ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته متوجه کیدو سره وفرمایل ۶ بلال رضی الله عنه ولاړ وو مونځ یې کولو چې شیطان هغه لره راغې او هغه یې (په کجاوه باندې) تکیه لګولو باندې مجبوره کړو ۷ او ځنګه چې بچې اوده کولو د پاره ټپولي شی شیطان هغه ټپولو تر دې چې په بلال رضی الله عنه باندې خوب غالب شو

۱ ثُمَّ دَعَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ بِلَالًا ۲ فَأَخْبَرَ بِلَالٌ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ الَّذِي أَخْبَرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ أَبَا بَكْرٍ ۳ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ اللّٰهِ. رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** ۱ بیا حضور ﷺ بلال رضی الله عنه راوغوښتو ۲ بلال رضی الله عنه راتلو سره حضور ﷺ ته هغه بیان اوکړو ځنګه چې حضور ﷺ ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته بیان کړي وو ۳ ابوبکر صدیق رضی الله عنه د بلال رضی الله عنه حال اوریدو سره وفرمایل زه د دې خبرې په پوره یقین سره ګواهي ورکوم چې ته د الله رسول یې دا روایت امام مالك رحمه الله مرسلاً نقل کړي دي.

**حل اللغات:** ① عَرَّسَ: دا د تَعرِیس نه دې دَ باب تفعیل نه، أيْ: نَزَلَ آخِرَ اللَّیْلِ لِلِاسْتِرَاحَةِ: دَ شپې په آخرې حصه کښې دَ آرام کولو دَپاره ډیره اچولو ته تعریس وائی. ② وَكَّلَ: أيْ: أمَرَهُ: ذمه واری ئې ورته اوسپارله (یعنی حکم ئې ورته اوکړو)، ③ فَرَقَدَ: اوده شو، ④ فَزِعُوا: اویریدل (چه دسحر مونځ فوت شو) ⑤ حِینَ: وخت، ⑥ اِلْتَفَتَ: متوجه شو، ⑦ یُهْدِئُهُ: دا د الْإِهْدَاءِ نه دې، أيْ: یُسَكِّنُهُ وَیُنَوِّمُهُ: تپولو ئې چه اوده شی.

**تسهیلات:**

**قوله:** بِطَرِیقِ مَكَّةَ:

**د واقعاتو د تعدد احتمال:** داسې معلومیږی چه دا واقعه بله ده او په حدیث نمبر (۶۸۳) کښې چه کومه واقعه تیره شوې ده هغه بله ده ځکه چه دلته بطریق مکة لفظ دې اوهلته دَخیبر ذکردې کوم چه په طریق مدینه کښې واقع دې.

شیخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې لیکی کیدې شی چه واقعې دوه وی یاراوی ته وهم شوې وی اودَ طریق مکه لفظ ئی وئیلی "أن ینادی للصلوة اویقیم"

**د کلمه او په حیثیت کښې دوه احتماله:** ① دلته دَ "او" لفظ دَ شك دَپاره دې راوی ته شك پیداشوې چه حضورپاك دَ ینادی لفظ ارشاد فرمائیلې وو یا یقیم لفظ وو یعنی دَ اذان اوکړه حکم ئی ورکړو یا تکبیر اووایه حکم ئی ورکړې وو.

② "او" دَ شك دَپاره نه وو بلکه دادَ واؤ په معنی کښې دې دَ کوم معنی چه جمع کولوده، یعنی حضورپاك اوفرمائیل چه اذان او اقامت په یوځائی دواړه اوکړه. [اشعة المعات: ۳۴۵] په دې سره دَاحنافو دَمسلك تائید کیږی.

**قوله:** وَقَدْ رَأَى مِنْ فَزَعِهِمْ:

**صحابؓ ته تسلی ورکول:** صحابه کراموته په دې خبره سخته ویره اوشوه چه دَهغوی مونځ ولې قضاشو نودَ غه ویرې ختمولو دَپاره رسول اکرم ﷺ هغوی ته تسلی ورکړه چه دَ الله تعالی یوتکوینی فیصله وه هغه اوکړه که چرې هغه نه غوښتل نوداسې به نه کیدل نوتاسو پریشانه کیږئی مه ځکه چه تاسو ته په قضاشوی مونځونوکښې دَخپل نبی نمونه او سنت طریقه هم حاصله شوه.

**قوله:** "یُهَدِّئُهُ"

**د اهداء لغوی تحقیق:** بیا رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته اصل قصه بیان کړه چه شیطان بلال رضی الله عنه سره څه اوکړل "یهدئه" دلته دا لفظ دَ باب افعال نه دې مونځ چه کله بچې دَ اوده کولو دَپاره په غیږ کښې تپه وی هغې ته اهداء وائی دادَ سکون په معنی کښې هم دې اودا دَ صیغه فتح یفتح نه هم راځی کوم چه دَ سکون او حصاریدو په معنی کښې

دي. "اشهد انك رسول الله" رسول الله ﷺ چه کله دَحضرت بلال رضی الله عنه سره دَ شیطان دَ اوده کولو معامله واؤروله اوحضرت بلال رضی الله عنه دَدې تصدیق هم اوکړو نودې وخت کښې دا دَ رسول الله ﷺ معجزه شوه کومه چه دَ نبوت دَ اثبات دپاره وی هم په دې باندې صدیق اکبر رضی الله عنه ګواهی ورکړه چه تاسو بیشکه دَالله تعالی په حق سره نبی ئی. دې واقعه ته لیلة التعریس وائی.

### ۶۸۸ - د مؤذن په غاړه دوه ذمه واریانې

۶۸۸ - (۱) [۹] ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ وَسَلَّمَ: ۲ ((«خَصْلَتَانِ مُعَلَّقَتَانِ فِي أَعْنَاقِ الْمُؤَذِّنِينَ لِلْمُسْلِمِينَ: ۳ صِيَامُهُمْ وَصَلَاتُهُمْ»)). رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ ابن عمر رضی الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ د مسلمانانو دوه څیزونه د مؤذنینو په غاړه دي ۳ ① یو خو د هغوی روژې ② او دویم د هغوی لمونځونه. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① خَصْلَتَانِ: دخصلة تثنیه ده، دوه خویونه یعنی ذمه وارئ ② مُعَلَّقَتَانِ: أَيْ: ثَابِتَتَانِ فِي ذِمَّتِهِمْ: په غاړه کښې د کیدو نه مراد دا چه دهغوی په ذمه لازم دی.

**تسهیلات:**

**قوله: خَصْلَتَانِ مُعَلَّقَتَانِ:**

**د مذکوره جملې نحوی تحقیق:** شیخ عبدالحق رحمه الله په لمعات کښې لیکی چه متبادر دادی چه خصلتان مبتداء دې او معلقتان دَدې خبر دې. اودا اعتراض چه مبتدا نکره څنګه واقع شو نو ما ډیر خل لیکلی دی چه اصل دارومدار په فائده ورکولو باندې ده که چرې دَمبتداء نه فائده استفاده حاصلیږی نو په نکره کیدو کښې څه حرج نشته لکه چه رضی لیکلی دی. (لمعات)

**د مؤذن دوه ذمه واریانې:** یعنی دَ مسلمانانو دوه اهم امانتونه او بنیادی ذمه وارئی دی چه دَ مؤذن سټ سره زوړند دی او مؤذن دَدې دَحفاظت ذمه وار دې.

① روژه یوه ذمه واری ده ځکه چه ټول مسلمانان دَ پیشمنی په وخت هم دَ مؤذن په اذان باندې یقین کوی اودَهغه په اذان باندې روژه بنده وی اوهم په دې باندې کولاوی.

② مونځ دویمه ذمه واری ده ځکه چه دَ مونځ دَ وخت دَ راتلو پته دَ اذان نه لګی که مؤذن په خپل اذان کښې وړاندې روستوالې کوی اوبې وخته اذان ورکوی نو دادَعامو مسلمانانو سره دَهغوی په اعمالو کښې خیانت دې. په دې وجه مؤذن له پکاردی چه هغه دې دَ اذان په وختونو کښې ډیر احتیاط کوی. [اشعة المعات. ۲۴۶]

---

(۱) کتاب الأذان. والسنة فیه. باب السنة فی الأذان (رقم-۷۱۲)

# [۲۴/۷] بَابُ الْمَسَاجِدِ وَمَوَاضِعِ الصَّلَاةِ

## دَمساجدو او دَمونځ لوډ ځايو لوبيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ستون أحاديث مشتملة على عشرة مسائل:**

① الصلوة والدعاء في داخل الكعبة: ۱، ۲.

② فضيلة المساجد الثلاثة. ۳، ۴، ۵۹، ۶۰.

③ فضيلة جزء من المسجد النبوی: ۵.

④ فضيلة مسجد قباء: ۶.

⑤ فضيلة سائر المساجد والصلاة فيها: ۷، ۸، ۱۳، ۴۸.

⑥ فضيلة المشي إلى المساجد والتعلق بها: ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۳۱، ۳۳، ۳۴، ۳۵، ۳۶، ۵۵.

⑦ آداب دخول المسجد والخروج منه والغرض من دخولها: ۱۴، ۱۵، ۳۷، ۳۷، ۳۸، ۳۹، ۴۹، ۵۶.

⑧ البداية بالمسجد وقت القدوم من السفر: ۱۶.

⑨ الأمور الممنوعة في المسجد وللمسجد: ، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۸، ۲۹، ۴۰، ۴۱، ۴۲، ۴۳، ۵۰، ۵۱، ۵۲، ۵۳، ۵۴.

⑩ النهي عن إتخاذ القبور مساجد: ۲۲، ۲۳، ۴۷، ۵۷.

⑪ فضيلة إتخاذ موضع الصلاة في البيوت: ۲۴، ۲۷.

⑫ تعيين موضع القبلة: ۱، ۲۵.

⑬ الأمر بإتخاذ المساجد: ۴۶.

⑭ تعظيم المساجد: ۲۷، ۳۰، ۳۲.

⑮ جواز الصلوة في جميع الأرض: ۴۴، ۴۶، ۵۸، ۶۰.

⑯ المواضع التي لا تجوز فيها الصلوة : ۴۴، ۴۵، ۴۶.

**د قرآن نه د جماتونو د عظمت ثبوت:** ① الله تعالى فرمائيلي دى. ﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكًا﴾ [سورت آل عمران الايه: ۹۶] يعنى بيشکه اولنې کور په مخ د زمکې چې د عبادت د خلقو دپاره جوړ شوې دې هغه دې کوم چې په مکه کښې دې. او مبارک دې.

② الله تعالی فرمائیلی دی. ﴿إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾ [سورة التوبة الایه:۱۸] یعنی بیشکه آبادوی جماتونه د الله تعالی هغه څوک چې ایمان راوړی په الله تعالی او په ورځ د آخرت باندې،

③ وقال الله تعالی ﴿وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَدًا﴾ [سورة الجن الایه:۱۸] یعنی جماتونه د الله تعالی دی.نو تاسو د الله تعالی سره (په جماتونو کښې) د بل چا عبادت نه کوئ.

**دمسجد لغوی تحقیق:** مساجد جمع ده دَ دې مفرد دې مسجد دَجیم کسره سره ونیلو خلاف قیاس دی. دَ قیاس مطابق په جیم باندې زبر ونیلو پکاردی. سره دَدې چه په اوریدو کښې نه ده راغلې بهرحال کوم مکان چه دَ مونځ کولو په غرض سره جوړ کړې شی اوعاموخلقوته په هغې کښې دَ مونځ کولو اجازت ورکړې شی هغه مسجد یعنی جمات وی.

**په مخ د زمکې اولنې جمات:** دَ دنیا په تاریخ کښې دَ ټولو اولنې جمات بیت الله او مسجدالحرام دَ عبادت دَپاره مقررشو اوبیا څلویښت کاله پس بیت المقدس هم دَعبادت دَپاره مقررشو.

په اسلامی دنیاکښې دَ هجرت نه پس دَټولو نه مخکښې دَ مسجد قباء بنیاد کیخودې شوې دې اوبیا مسجد نبوی جوړ کړې شوې دې. دَفضیلت په اعتبارسره دَټولو نه غوره مسجدالحرام دې بیا مسجد نبوی دې او بیابیت المقدس دې او په څلورم نمبر باندې مسجد قباء دې.

**قوله: "مواضع الصلوة"**

**د مواضع نه مراد:** یعنی دَ مونځ دَمقاماتونه مراد هغه ځایونه دی په کوم کښې چه مونځ کول مکروه یا غیرمکروه دی. دَدې تفصیل راتلونکو احادیثوکښې راځی لکه چه په دې لفظ سره په دې مقاماتو کښې دَ مونځ کولوطرف ته اشاره ده کوم چه جمات نه دې.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### ٦٨٩-د خانه کعبې ته مخامخ مونځ کول

٦٨٩-(١)[١] ① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ② «لَمَّا دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيْتَ، دَعَا فِي نَوَاحِيهِ كُلِّهَا ③ وَلَمْ يُصَلِّ حَتَّى خَرَجَ مِنْهُ، ④ فَلَمَّا خَرَجَ رَكَعَ رَكْعَتَيْنِ فِي قُبُلِ الْكَعْبَةِ، ⑤ وَقَالَ: (هَذِهِ الْقِبْلَةُ)». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① ابن عباس رضی الله عنهما فرمایي ② چه (د مکي د فتح په ورځ) رسول الله ﷺ چې په بیت الله شریف کې داخل شو نو څلور کنجانو (ګوټونو) ته ورتلو سره دعا یې وکړله ③ او بغیر

[١] بخاری کتاب الصلوة باب قول الله تعالی: {واتخذوا من مقام إبراهيم مصلى} [البقرة: ۱۲۵] (رقم-۳۹۸)

مونځ کولو بهر راووتليو[۴] بيا بهر راتلو سره د کعبې شريفې په مخې ته يې دوه رکعاته (نفل) مونځ وکړو[۵] او وې فرمايل دا قبله ده (بخاري)

**حل اللغات:** ① نَوَاحِيهِ: د ناحية جمع ده، اطرف او ګوټونه (د بيت الله شريف).

**تسهيلات:**

**قوله: "هَذِهِ الْقِبْلَةُ"**

**د مذکوره جملې مفهوم:** رسول الله ﷺ چه کله دَ مکې دَ فتحې په موقع باندې دکعبې دَ دننه نه بهر تشريف راوړو نو دکعبې دَ دروازې مخامخ حضورپاك دوه رکعته مونځ اوکړو اووئې فرمائيل هم دا قبله ده. دَدې ارشاد مطلب دا دې چه اوس به ترقيامته پورې هم بيت الله قبله وي. اوس به دا هيڅ کله نه منسوخ کيږي. دَدې ارشاد مطلب دانه دې چه دَ دروازې طرف ته قبله ده اوباقي طرفونه قبله نه دی ځکه چه دَ بيت الله څلور واړه طرفونه قبله ده. دَ پاکستان قبله هم دغه طرف ته ده دکوم طرف ته چه حضورپاك ارشاد فرمائيلې دې اوهغه دَ بيت الله دروازه ده کومه چه مشرق طرف ته واقع ده. [اشعة المعات: ۳۴۴]

**د تعارض بين الحديثين اشکال:** په دې کښې اختلاف دې چه حضورپاك په کعبه کښې دننه مونځ کړې که بهر. دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوحضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه دَ روايت نه معلوميږي چه حضورپاك په کعبه کښې دننه مونځ نه دې کړې. ليکن دَحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه اوحضرت بلال رضي الله عنه دَ روايت نه معلوميږي چه حضورپاك په کعبه کښې دننه مونځ کړې دې. (اشعة اللمعات)

**دتعارض د لرې کولو درې جوابونه:**

① دَحضرت اسامه رضي الله عنه په کتلوکښې خلل واقع شوې دې هغه پخپله په دعاکښې مشغول وو اولرې هم وو په دې وجه هغوی رسول الله ﷺ په مونځ کولونه دې ليدلې اوحضرت بلال رضي الله عنه نيزدې هم وو اوحضورپاك ته ئې کتل هم په دې وجه دَهغوی روايت راجح دې

② دَ کعبې داخليدل دوه ځل واقع وی يوځل ئې مونځ کړې بل ځل ئې نه دې کړې. دَدې تعارض دريم جواب دادې چه حضرت اسامه رضي الله عنه رسول الله ﷺ دَ تصويرانو دَ ورانولو په غرض دَ اوبو راوړلودَپاره بهر ليګلې وو. کيدې شی هم دغه وخت کښې حضورپاك مونځ کړې وی. بهرحال هريو خپله خپله مشاهده بيان کړې ده مګر په دې کښې شك نشته دې چه حضورپاك په کعبه کښې دننه نفل مونځ کړې دې. دَحضرت ابن عمر رضي الله عنه حديث نمبر(۶۹۱) په دې باندې واضحه دلالت کوی.

③ شيخ عبدالحق رحمه الله فرمائی چه دَ بلال رضي الله عنه والا روايت ته ترجيح ورکړې شوې ده ځکه چه هغه مثبت دې اودَ ابن عباس رضي الله عنهما روايت منفی دې. اومثبت اومنفی کښې چه کله تعارض راشی نومثبت په منفی باندې مقدم وی ځکه چه اثبات کښې اصل خبرسره څه

علمي اضافه هم وی لکه څنګه چه دَ فقهې په اصولو کښې ذکردي.

**په کعبه کښې دننه د نفلو جواز:** په دې خبره خودَ ټولو فقهاؤ اتفاق دې چه حضورپاك ﷺ په بیت الله کښې دننه نفل مونځ کړې دې اوبغیردَ څه اختلاف نه ئې کول جائز دی.

**په کعبه کښې دننه د فرض مونځ په جواز کښې مذاهب:**

① امام احمدبن حنبل رحمه الله کعبه کښې دننه فرض مونځ کول منع کوی چه دا جائز نه دی. او نفل کول جائز دی.

② اکثر فقهاء فرض او نفل دواړه په کعبه کښې دننه کول جائز ګنړی.

**داول فریق دلیل:** دَقرآن کریم دَا آیت د دوی مستدل دې. ﴿ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ ﴾ [سورت بقره: ۱۴۴] دَ استدلال طرز ئې داسې دې چه دَالله تعالی حکم دادې چه بیت الله ته مخ واړوئې اوکوم سړې چه په کعبه کښې دننه مونځ کوی هغه دَ بیت الله دَ یوې حصې طرف ته متوجه دې اودَ یوې حصې طرف ته د هغه شا ده په دې وجه فرض مونځ کول جائز نه دی او په نوافل چونکه وسعت اونرمی ده په دې وجه هغه جائز دی.

**ددویم فریق دلیل:** دَ قرآن کریم دَا آیت د دوی مستدل دې. ﴿ أَنْ طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ ﴾ [سورت بقره: ۱۲۵] دلته په بیت الله کښې دَ مونځ کولو مطلق ذکردې که هغه فرض وی اوکه نفل وی هیڅ فرق نشته دې. دغه شان استقبال کولوکښې دَ استیعاب کعبه شرط هم نشته لهذا دَبعضې حصې استقبال کافی دې.

| |
|---|
| ٦٩٠-[٥] ① وَرَوَاهُ مُسْلِمٌ عَنْهُ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ. |

**ترجمه:** ① مسلم دا روایت د ابن عباس رضی الله عنه څخه او هغه د اسامه بن زید رضی الله عنه څخه روایت کړې دې.

**[٦٩١] په بیت الله کښې دننه د مونځ حکم**

| |
|---|
| ٦٩١ - (¹)[٦] ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، ② «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ الْكَعْبَةَ هُوَ وَأُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ الْحَجَبِيُّ، وَبِلَالُ بْنُ رَبَاحٍ، ③ فَأَغْلَقَهَا عَلَيْهِ وَمَكَثَ فِيهَا، ④ فَسَأَلْتُ بِلَالًا حِينَ خَرَجَ: مَاذَا صَنَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ ⑤ فَقَالَ: جَعَلَ عَمُودًا عَنْ يَسَارِهِ، وَعَمُودَيْنِ عَنْ يَمِينِهِ، وَثَلَاثَةَ أَعْمِدَةٍ وَرَاءَهُ، ⑥ وَكَانَ الْبَيْتُ يَوْمَئِذٍ عَلَى سِتَّةِ أَعْمِدَةٍ، ثُمَّ صَلَّى». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه:** ① عبدالله ابن عمر رضی الله عنه فرمایي ② چې (د مکې د فتح په ورځ) رسول الله ﷺ، اسامه بن زید رضی الله عنه، عثمان ابن طلحه حجبي رضی الله عنه او بلال ابن رباح رضی الله عنه په خانه

(¹) بخاری کتاب الصلوة باب الصلاة بین السواری فی غیر جماعة (رقم-۵۰۵) ومسلم کتاب الصلوة باب استحباب دخول الکعبة للحاج وغیره، والصلاة فیها، والدعاء فی نواحیها کلها (رقم) ۳۸۸ - (۱۳۲۹) وابوداود کتاب المناسک ، باب الصلاة فی الکعبة (رقم-۲۰۲۳) والنسائی کتاب الطهارة/باب الصلاة فی البیت وقصر الصلاة وتعجیل الخطبة بعرفة (رقم-۱۹۳)

کعبه کې دننه داخل شو۞ او بلال رضي الله عنه یا عثمان رضي الله عنه دننه څخه دروازه بنده کړله [چې د خلقو رش جوړ نشي] رسول الله ﷺ تر لږ وخت پورې دننه (په دعا وغیره کې مشغول) وو۞ عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمايي چه ما د بلال رضي الله عنه څخه هر کله چې هغه یا (رسول الله ﷺ) د خانهٔ کعبي څخه بهر راغي پوښتنه اوکړه چې رسول الله ﷺ په خانه کعبه کې دننه څه کول۞ بلال رضي الله عنه اوویل رسول الله ﷺ په ولاړه مونځ وکړو چې یوه ستن یې ګس طرف ته وه، دوه ښي طرف ته وي او دري وروسته وي۞ په هغه ورځو کې په خانه کعبه کې شپږ ستني وي (او اوس دري ستني دي) (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① فَأَغْلَقَهَا: أَيِ الْكَعْبَةَ يَعْنِي بَابَهَا: یعنی د کعبې دروازه ئې بنده کړه. ② مَكَثَ: أَيْ: تَوَقَّفَ فِيهَا: لږ پکښې ایسار شو. ③ عُمُودًا: أَعْمِدَةٌ ددې جمع ده، ستن.

**تسهیلات:**

**قوله: "وَعُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ الْحَجَبِيُّ"**

**د عثمان بن طلحه په عمرة القضاء کښې د کعبې چابیانو ورکولو نه انکار:** حجبی دَ حاجب طرف ته منسوب دې څوکیدار او کنجی لرونکی معنی کښې دې. دَ بیت الله کنجانې هغه سړی سره وې. دَ صلح حدیبیه نه پس په دویم کال کله چه حضورپاك دَعمرة القضاء دَپاره راغلو اودَ عثمان بن طلحه نه ئی کنجیانې اوغوښتلې دې دَپاره چه بیت الله کښې داخل شی نوهغه سړی بالکل انکاراوکړو. حضورپاك اوفرمائیل عثمان واوره یووخت به داسې راځی چه کنجیانې به زما په لاس کښې وی اوزه چه ئی چاله ورکول غواړم هغه ته به ئی ورکړم. هغه وئیل هغه وخت به دَ قریشو بدې ورځې وی او قریش به ذلیل اوخوار وی. حضورپاك اوفرمائیل نه په هغه ورځ به قریش کامیاب وی. نوچه کله مکه مکرمه فتحه شوه نوحضورپاك حضرت علی رضي الله عنه ورا اولیګلو چه دَ عثمان بن طلحه نه کنجیانې راوړه. عثمان پټ شو اوکنجیانې ئې نه ورکولې.

**په فتح مکه کښې د عثمان بن طلحه نه چابیانې اخستل:** نوبیا حضرت علی رضي الله عنه د هرکه ورکړه او چابیانې ئی راوړلې حضورپاك ته ئی ورکړې. حضورپاك دَروازه کولاؤ کړه او بیت الله ئی اوونځلو اوبیائی دننه تشریف یوړلوپه دې موقع عثمان بن طلحه هم ورسره وو.

**عثمان بن طلحه ته د چابیانو ورکولو حکم:** بیا دَ حضرت علی رضي الله عنه خیال پیدا شو او دَحضرت عباس رضي الله عنهما هم خیال شو چه دَ کعبې کنجیانې دې هغوی ته ورکړې شی. په دې کښې دَقرآن پاك آیت نازل شو چه ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا﴾ [سورت نساء: ۵۸] په دې باندې حضورپاك عثمان بن طلحه راؤغوښتلو او وئی فرمائیل چه زه دَ الله تعالی په حکم باندې دا کنجیانې تاته درکوم "خذها خالدة تالدة" یعنی همیشه به تاسره وی که څوک ظالم بادشاه تانه واخستلې ګنی څوك به ئی نه اخلی

**دعثمان بن طلحه اسلام قبلول:** عثمان بن طلحه مسلمان شو بیا دَهغه وارث نه کیدو دَ وجې نه دَ هغه رور ته دا کنجیانې ورکړې شوې. هغه خپل رور شیبه ته کنجیانې ورکړې چه ترننه پورې بنوشیبه سره دی.

**په موجوده وخت کښې د بیت الله دننه نقشه:** دَ بیت الله دَ دروازې نه چه کافی دننه لاړشې مخامخ دیوال نه یوڅوګزه فاصله باندې حضورپاك مونځ کړې دې. دَ بخاری په دې روایت کښې دا الفاظ دی چه درې ستنې دَ حضورپاك شاتې وې او یوه ګس طرف ته او دوه ښی طرف ته وې او هغه وخت بیت الله په شپږو ستنو باندې ولاړ وو. دَ بیت الله چت نن هم دَ لرګونه جوړشوې دې. شیخ عبدالحق رحمه الله په لمعات کښې لیکلی دی نن صبا دا ستنې صرف درې پاتې دی. [اشعة المعات: ۳۴۷]

**۶۹۲—په مسجد نبوی کښې د مونځ د ثواب زیادت**

۶۹۲—(¹)[۳] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② («صَلَاةٌ فِي مَسْجِدِي هَذَا خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ صَلَاةٍ فِيمَا سِوَاهُ، ③ إِلَّا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② زما په دې مسجد (یعنې مسجد نبوي) کې مونځ ادا کول په نورو مسجدونو کې د زرو لمونځونو څخه بهتر دي ③ سوا د مسجد حرام څخه. (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:** ① مَسْجِدِي هَذَا: أَيْ: مَسْجِدِ الْمَدِينَةِ: یعنی مسجد نبوی ﷺ. ② مَسْجِدَ الْحَرَامَ: بیت الله شریف.

**تسهیلات:**

**قوله: "خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ صَلَاةٍ"**

**په مسجد حرام کښې د مونځ ثواب:** دَ تضعیف ثواب په اعتبارسره مسجدحرام دَ ټولو نه افضل دې په کوم کښې چه یومونځ دَ یولاکھ برابر دې لیکن دا تضعیف او دوه چنده کیدل دَ ثواب په اعتبارسره دی دَمونځونو په اعتبارسره نه دی. یعنی تضعیف فی الثواب دې تضعیف فی الاجزاء نه دې لکه چه په عوامو کښې مشهوره ده که چا یومونځ اوکړو نوهغه ته یولاکھ مونځونه حاصل شو. داسې دَ ټولو قضاء مونځونو کفاره اوشوه داغلطه ده. بلکه دلته صرف دَ ثواب دَ دوه چند کیدوخبره کړې شوې ده مونځ خو به هم یو شمیرلې کیږی څکه چه هم یوئی کړې دې.

---

(¹) اخرجه البخاری کتاب الجمعة باب فضل الصلاة فی مسجد مکة والمدینة (رقم-۱۱۹۰) ومسلم کتاب الحج باب فضل الصلاة بمسجدی مکة والمدینة (رقم-۵۰۵ - (۱۳۹٤)) وابن ماجة کتاب القبلة باب ما جاء فی مسجد النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۹) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أی المساجد أفضل (رقم-۳۲۵) والنسائی کتاب المساجد/باب فضل مسجد النبی صلی الله علیه وسلم والصلاة فیه رقم (٦۹٤) ومالک کتاب القبلة باب ما جاء فی مسجد النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۹)

**په مسجد نبوي کښې د مونځ ثواب:** مسجد نبوی کښې یو مونځ دَ زرو مونځونو برابر دي. او په مسجد اقصیٰ کښې یو مونځ دَ پنځوسو زرو برابر دي. دَ ابن ماجه بعضې روایتونو کښې راغلي دي چه دَ مسجد نبوی یو مونځ دَ پنځوسو زرو برابر دي. (مشکوة ص: ۷۲) مګر دا روایت ضعیف دي. بعضې روایاتو کښې راغلي دي چه یو مونځ دَ لسو زرو مونځونو برابر دي. ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي چه دا تضعیف داسې دې چه یوه نیکي دَ دې امت دَ لسو برابر ده لهذا زر مونځونه به لس زره شمیرلې کیږي.

**د زیادت فی الثواب په مصداق کښې مذاهب:**

① شوافع حضرات فرمائي دَ ثواب زیاتیدو داحکم دَ فرضو مونځونو سره خاص دې په سنن او نوافل کښې دا زیاتوالي نشته دې.

② ملاعلي قاري رحمه الله مرقات کښې لیکي چه دا تضعیف او ثواب په ټولو نیکو کارونو کښې دې مونځ سره خاص نه دي. بل دَ علماؤ دا فیصله راجح ګرځولې شوې ده چه دا تضعیف او ثواب دَ حرم دَ زمکې دپاره عام دې صرف مسجد حرام سره خاص نه دي.

**په مسجد نبوی کښې د ثواب په تعداد کښې تعارض:** په دې حدیث کښې او دَمشکوة شریف ص ۷۲ باندې دَحضرت انس رضي الله عنه روایت دې په دواړو کښې په ظاهره تعارض دي. ځکه چه دلته دَ مسجد نبوی فضیلت یو مونځ دَ زرو برابر خودلې شوې دې اوهلته دَ پنځوسو زرو ذکردي؟

**د تعارض جواب:** دَوحی په شروع کښې دَ زرو فضیلت وو بیا پنځوس زرو پورې فضیلت زیات شو. دویم جواب دادې چه دا په اعداد کښې تعارض نه دې ځکه چه کم عدد دَ اکثر په ضمن کښې وی دَهغې مخالف نه وی. بعضې علماؤ دَ پنځوسو زرو والا روایت ضعیف ګرځولې دې.

**په مسجد نبوی کښې د زیادت فی الثواب په محل کښې مذاهب:**

① د علامه تاج الدین سبکی رحمه الله دا رائې ده. چې مسجد نبوی په کومه وخت کښې دَ حضورپاك په زمانه کښې وو دَمونځونو او نیکودا فضیلت هم دغه مسجدسره خاص دې دې نه پس چه دا په جمات کښې کومه اضافه کړې شوې ده دا فضیلت دَ جمات په دغه حصه کښې نه حاصلیږي.

علامه نووی رحمه الله فرمائي چه دَدې فضیلت دَ حاصلولو دپاره مناسب دی چه سړې دې دَ مسجد نبوی په هغه حصو کښې مونځ کوی کومې چه دَ حضورپاك په زمانه کښې موجود وې.

② ابن تیمیه رحمه الله اوعلامه محب طبری رحمه الله په خپل اوږد کلام کښې دا وئیلي دی چه دَ ثواب دَ تضعیف دا فضیلت دَ حضورپاك دَ زمانې دَ جمات دَ حدودو پورې محدود نه دې بلکه په زیاتی شوې حصو کښې به هم دا ثواب ملاویږي.

**داول فریق دلیل:** په زیر بحث حدیث کښې یو لفظ "مسجدی هذا" ذکر دې دکوم نه چه په ظاهره معلومیږی چه دا فضیلت صرف په حصو کښې ملاویږی کومې چې د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې وو

**د دویم فریق دلائل:** ① دَ امام مالك رحمه الله نه چه کله تپوس اوکړې شو نوهغوی اوفرمائیل دا تخصیص نه دې ځکه که چرې دا تخصیص دَ حضورپاك دَ زمانې والاجمات سره خاص وې نوخلفاء راشدین رضی الله عنهم به هیڅ کله په جمات کښې توسیع نه قبلوله.

② کتاب تاریخ مدینه کښې لیکلی دی چه کله حضرت عمر رضی الله عنه دَ مسجد نبوی دَ اضافې نه فارغ شو نوهغوی اوفرمائیل چه که مسجد نبوی دَ ذوالحلیفه پورې وسیع کړې شی نوبیا به هم ټول مسجدنبوی وی اودَ رسول الله ﷺ دَ جمات په نوم به یادیږی.

**په مکه کښې د گناه د سزا په تضعیف کښې یو قول:** داخبره هم دَ یاد ساتلوده چه دَ علماؤ یوجماعت دې طرف ته تلې دې چه په مکه کښې څنګه یوه نیکی دَ کیفیت په اعتبارسره تریو لاکهـ پورې زیاتیږی دغه شان دَمکې په حرم کښې یوه گناه تریو لاکهـ گناهونوپورې زیاتیږی. دا قول دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله دې او هم دغه قول دَحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما اوحضرت ابن مسعود رضی الله عنه اومجاهد رحمه الله هم دې. بل دا تضعیف دَ راجح قول مطابق دَ حضورپاك زمانې سره خاص نه دې بلکه دَ ټولو زمانودَپاره دې.

## ٦٩٣–دریې جماتونوته د سفر کولو حکم

٦٩٣–()[۳] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② ((لَا تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلَّا إِلَى ثَلَاثَةِ مَسَاجِدَ: ③ مَسْجِدِ الْحَرَامِ، وَالْمَسْجِدِ الْأَقْصَى، وَمَسْجِدِي هَذَا)). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابو سعید خدري رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② د دري مسجدونو څخه علاوه (یو بل ځاي د پاره) تاسو خپلي کجاوي مه تړي (یعني سفر مه کوي) ③ مسجد حرام، مسجد اقصٰي (یعني بیت المقدس) او زما مسجد (یعني مسجدنبوي) (بخاري مسلم.)

**حل اللغات:** ① لَاتُشَدُّ: شد یشد د نصر ینصرنه دَ تړلوپه معنی کښې دې یعنی مه تړئ، سفر مه کوئ. ② الرِّحَالُ: ددې نه کجاوه مراد ده.

[1] اخرجه البخاری کتاب الجمعة باب مسجد بیت المقدس (رقم-۱۱۹۷) ومسلم کتاب الحج باب سفر المرأة مع محرم إلى حج وغیره (رقم) ۴۱۵ - (۸۲۷) وابو داود کتاب المناسک .باب فی مال الکعبة (رقم-۲۰۳۲) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أی المساجد أفضل(رقم-۳۲۶) والنسائی کتاب المساجد/باب ما تشد الرحال الیه من المساجد رقم (۷۰۰) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء فی الصلاة فی مسجد بیت المقدس(رقم-۱۴۰۹)

**تسهیلات:**

**قوله:** "لَاتُشَدُّ الرِّحَالُ"

**نفی په معنی د نهی:** دا پوره جمله دَسفر نه کنایه ده اودَ نفی صیغه دَ نهی په معنی کښې ده.مطلب دا شو چه دَ دریو جماتونونه علاوه دَیوجمات دَپاره کجاوه تړلوسره سفرمه کوئ.

**قوله:** إِلَّا إِلَى ثَلَاثَةِ مَسَاجِدَ

**دحدیث په محذوف او په تعیین کښې اختلاف:** ① دلته مستثنٰی مفرغ ده اودَمستثنٰی مفرغ دَپاره مستثنٰی منه محذوف ویستل ضروری کیږی.نوحافظ ابن تیمیه رحمه الله دلته مستثنٰی منه عام منی او وائی چه دلته د مکان یا موضع الفاظ راو ویستلې شی نو عبارت به داسې شی "لاتشدالرحال إلی موضع إلا إلی ثلاثة مساجد" یعنی دَ دریو جماتونودَ سفرنه علاوه هیڅ قسم سفرکول جائز نه دی. په دې عموم امکنه کښې حافظ ابن تیمیه رحمه الله دَ جماتونونه علاوه مقدس مقامات او ټول مزارونوله تلل ناجائزګرځولی دی. تردې چه هغه دَ روضۀ رسول دَ زیارت دَ غرض سره مستقل سفرکولوته هم ناجائز وئیلی دی دَهغه مقصد دَ رسول الله ﷺ دَ زیارت نه منع کول نه دی بلکه هغه فرمائی چه په سفرکښې نیت دَمسجد نبوی اوکړې شی اودَدې په ضمن کښې دَ رسول الله ﷺ زیارت اوکړې شی په دې صورت کښې زیارت مستحب دې. دَدې مسئلې په وجه په هغوی باندې ډیرتکالیف او امتحانونه راغله اودَ هغوی شاګرد رشید علامه ابن قیم رحمه الله هم دَدې مصیبتونو ښکار شو. حافظ ابن تیمیه رحمه الله خو ګرفتارشوې هم وو اودَ جیل نه دَهغوی جنازه اوچته شوه . نن صبا دَ سعودی د حکومت هم دغه عقیده ده لیکن په ښکاره خلق نه شی بندولې.

② دَ جمهور امت په نیز دلته مستثنٰی منه عموم امکنه نه ده بلکه عموم مساجد دی. او تقدیری عبارت داسې دې "لاتشدالرحال الی مسجد الا الی ثلاثة مساجد" یعنی دَدې دریو مساجدونه علاوه دَ یوجمات دَپاره خاص سفرنه دی کول پکار ځکه چه باقی ټول مساجد په فضیلت اوثواب کښې یوشان دی.خلاصه دا راووتله چه په دې حدیث کښې دَ سفرممانعت تعلق صرف مساجدسره دې دَنورو سفرونوسره دابحثونه نه دی. هغه سفرونه دَدې حدیث دَ مفهوم نه خارج دی ځکه چه مستثنٰی جنس دَ مستثنٰی منه نه وی نوچه کله استثناء دَ مساجدو ده نومستثنٰی منه به هم مساجدوی.

**په حدیث کښې دریې توجیهات:** ① حضرت شاه ولی الله رحمه الله خپل مشهور تصنیف حجة الله البالغه کښې په دې حدیث باندې تحقیقی کلام کړې دې. فرمائی چه زما خیال خودادې چه دَ جاهلیت په زمانه کښې به خلقو یوڅومقامات معتبرګنړلوسره دَهغې دَ عظمت دَ وجې نه دَ هغې دَپاره سفرې کولې اوهغه سفربه ئې دَبرکت سبب ګنړلو. ښکاره خبره ده چه داسې

عقیده لرل یو مقام معتبر گنړلو سره دهغې دعظمت د وجې نه د هغه سفر کول نه یوازې دا چه د حقیقت نه ځان ساتل او ذهنی اوفکری کمزوری وه گنې د فتنې او فساد ذریعه هم وه. په دې وجه په حدیث کښې د داسې سفرونو نه منع اوکړې شوه دې د پاره چه شعائرالله سره د غیرشعائرالله التباس رانه شی اوسړې دغیرالله په عبادت کښې پرینوځی. لهذا زما په نیز صحیح خبره داده چه د اولیاؤالله مزارونه او د هغه حضراتو د عبادت مقاماتو طرف، تردې چه د کوه طور طرف ته سفر کول داټولو دې ممانعت کښې برابرم دی چه په خاص توګه د دې طرف ته سفر کول مناسب نه دی. (حجة البالغه)

د شاه ولی الله رحمه الله د تحقیق خلاصه دا راوځی چه په دې حدیث کښې د مستثنٰی منه تعلق د اهل عرب وغیره هغه مقامات دی چرته چه د پخوانی جاهلیت او د اوسنی جاهلیت میلې لګی. هلته د شرکیاتو او بدعاتو ارتکاب کیږی. عرسونه کیږی او په خاص خاص موسمونو کښې د خاص خاص مقاماتو طرف ته د لرې لرې علاقونه د قافلو په شکل کښې سفر کولې شی.

② شیخ عبدالحق رحمه الله په لمعات کښې فرمائی په دې حدیث کښې د دغه دریو جماتونو شان زیاتول مقصود وی او عظمت، برکت، فضیلت او مرتبت کښې دا جماتونه د نورو جماتونو په نسبت دې ته امتیازی شان ورکول مطلوب وی. که چرې یو سړې د سفر مشقت برداشت کول غواړی نو هغه له پکار دی چه هم د دغه دریو جماتونو طرف ته د سفر کولو اهتمام دې اوکړی ځکه چه د دې جماتونو ډیرلوئی شان دې (لمعات: ۴۲/۲) د دې توجیه مقصد او خلاصه دا شوه چه په د حدیث کښې هم د دغه دریو جماتونو طرف ته د سفر کولو ترغیب دې د نورو سفرونو سره څه بحث نشته دې.

③ د دې دریو جماتونو او مقاماتو نه علاوه د یوځائی سفر د تقرب په توګه او د عبادت په توګه جائز نه دی. لکه چه د حدیث د دې نهی تعلق صرف د هغه سفر سره دې کوم چه د تقرب او عبادت د پاره کولې شی. د دې نه علاوه نور سفرونه په خپل ځائی په درجه د جواز کښې دی یا د مزارونو د پاره د لرې لرې د سفر اهتمام سره سفر کول مختلف فیه دې. بعضې علماؤ دا مباح ګرځولی او بعضو دا حرام ګرځولی دی. چنانچه قاضی عیاض مالکی، قاضی حسین او ابومحمد الجوزی معتبر مقامات او د نیکانو د قبرونو زیارتونو طرف ته سفر کول حرام ګرځوی. (کذا فی مجمع البحار)

د حضرت شاه ولی الله رحمه الله د کلام نه هم عدم جواز معلومیږی او د احمد علی لاهوری رحمه الله په کلام کښې هم د عدم جواز بیان دې. شاه انورشاه کاشمیری رحمه الله هم فرمائی چه د اولیاؤ د قبرونو د زیارت د پاره سفر جائز نه دې. بهرحال چه کله د اباحت او حرمت اختلاف راغلې دې نو لامحاله به حرمت ته ترجیح کیږی لکه چه مشهوره قاعده هم دغه ده. حدیث کښې د

مسجد اقصیٰ لفظ راغلې دې اقصیٰ دَ لرې په معنی کښې دې او دا جمات هم دَ مکې مکرمې او مدینې منورې نه ډیر لرې دې په دې وجه ئې ورته اقصیٰ او وئیل دا دَ تسمیې یوه وجه ده.

## رياض الجنة

**د نبی کریم ﷺ د روضې دپاره مستقل د سفر په کولو کښې اختلاف:** ① حافظ ابن تیمیه رحمه الله دَ حدیث ممانعت عام ساتلې دې او دَ هغوی په نیز دَ روضهٔ رسول دَ پاره په قصد او اراده سره سفر کول جائز نه دی. دَ دې مسئلې دَ وجې نه دَ امت علماؤ دَدې خلاف قلم اوچت کړې دې او ډیر څه ئې لیکلی دی او پخپله دَ شام حاکم هغه په جیل کښې بند کړو.

② دَجمهور امت مسلك دا دې چه دَ روضهٔ رسول دَ حاضرئی دَپاره سفر کول دَ اعلی قربات نه دی او دَدې ذکر شوی حدیث دَ ممانعت تعلق دغه خاص زیارت سره نه دې. امام غزالی رحمه الله هم دا اختیار کړی دی هغوی فرمائی چه په حدیث کښې مستثنیٰ منه صرف جماتونه دی.

**داول فریق دلیل:** شیخ الاسلام حافظ ابن تیمیه رحمه الله دَ خپل موقف دَپاره زیر بحث حدیث نه استدلال کړې دې او لکه څنګه چه مخکښې لیکلې شوی دی چه هغه مستثنیٰ منه عموم امکنه ګرځوی او په عام امکنه کښې روضهٔ رسول هم داخل منی. هغه دَ روضهٔ رسول زیارت ته مستحب وائی لیکن فرمائی چه دَدې دَپاره دې مستقل سفر نه کوی. سفر دَ مسجد نبوی په نیت سره کول پکار دی.

**د اول فریق د دلیل دوه جوابونه:** دَ حافظ ابن تیمیه رحمه الله جلالت شان او علمی دبدبه په خپل ځائی مسلم ده. مګر دَ زیربحث حدیث نه زیارت قبر النبی ﷺ په عدم جواز باندې استدلال کول ډیره لرې خبره ده بلکه ابعد بلکه غیراصوب ده ځکه چه په دې حدیث کښې مستثنیٰ مه دَ عام مواضع او عام امکنه واخستې شی نو بیا به دَ روضهٔ رسول طرف ته سفر ممنوع شی. دغه شان دَ تجارت سفر، دَ علم دَ طلب سفر، دَ جهاد سفر او نور سفرونه ټول په ټول منع شی دَ کوم چه څوك هم قائل نه دی. پخپله رسول الله ﷺ دَ خپل پلار قبر له تلې دې او دَ احد دَ شهداؤ په قبرونو باندې مسلسل حاضری کړې ده.

② دَ مسند احمد په حدیث کښې په واضحه توګه باندې مستثنیٰ منه ذکر او خاص ده او هغه لفظ مسجد دې نو بیا زیر بحث حدیث کښې دَ مستثنیٰ منه عام اخستلو څه جواز باقی پاتې کیږی.

**د دویم فریق دلائل:** ① حضرت امام غزالی رحمه الله دَدې حدیث نه استدلال کړې دې «كنت نهيتكم عن زيارة القبور فزوروها فانها تزهد في الدنيا وتذكر الآخرة» (ابن ماجه مشکوة ص: ۱۵۴) دَ مشکوة شریف هم په دې صفحه باندې دَ مسلم شریف روایت هم دې دکوم الفاظ چه دا دی:

«عن بريدة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ نهيتكم عن زيارة القبور فزوروها»

② هغه ټول احاديث د دوی مستدلات دی په کومو کښې چه دَ نبی کريم ﷺ دَ وفات نه پس دَ حضورپاک دَ قبردَ زيارت کولو بيان دې لکه «وعن ابن عمر ﷺ مرفوعا من حج فزار قبري بعد موتي كان كمن زارني في حياتي» (بيهقی مشکوة ص ۲۴۱). وفاء الوفاء کتاب کښې دَدې قسم ډير روايات دی

③ دَ مسند احمد هم دغه شد الرحال والاحديث دې په کوم کښې چه مستثنی منه ذکردې چه خاص دې عام نه دې او هغه لفظ مسجد دې الفاظ دادی: «لا ينبغى للمطى أن يشد رحله الى مسجد تبتغى فيه الصلوة إلا المسجد الحرام والمسجد الاقصى ومسجدي هذا» (رواه احمد فی مسنده)

«حدثنا هاشم قال حدثنا عبد الحميد قال حدثنى شهر (بن حوشب) قال سمعت ابا سعيد الخدري ذكر عنده صلوة فى الطور قال رسول الله ﷺ لا ينبغى للمطى أن يشد رحله إلى مسجد يبتغى فيه الصلوة غير المسجد الحرام والمسجد الاقصى ومسجدي هذا» (واسناده حسن بحواله التعليق الفصيح ص: ۱۰۰ نقلا عن عمدة القاری ۶۸۷/۳)

④ ابن حجر عسقلانی رحمه الله فتح البارى شرح بخاری کښې دَ زيارت روضهٔ رسول باره کښې فرمائی "فإنها من أفضل الأعمال وأجل القربات الموصلة إلى ذي الجلال وإن شرعيتها محل اجماع بلا نزاع". يعنی دَ روضهٔ رسول زيارت بهترين اعمالونه دې او الله تعالی ته رسونکې اولويو نيکونه دې. اودَدې په مشروعيت باندې اجماع ده هيڅ جګړه نشته. (۱)

**د ابن تيمه تفرد:** بهرحال دَ زيارت قبر النبی ﷺ نه دَمنع کولو قول چه حافظ ابن تيميه رحمه الله کړې دې دادَ هغه دَتفردات نه يو تفرد دې اوتفردات خودَ علماؤ وی مګر دَ چا تفرد سره دَهغه ټول علم ناقابل اعتماد نه وی حضرت قاسم الخيرات قاسم نانوتوی رحمه الله په نبی اکرم ﷺ باندې دَ متعارف مرګ راتلو قائل نه وو بلکه دَ يو بل قسم مرګ قائل وو مګر په دغه تفردات سره دَ دې حضراتو علمی مقام په خپل ځائی باندې قائم دې والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

[۲۹۳] د نبی عليه السلام منبر په حوض باندې

۲۹۳ - (۲) [۵] ① وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ ② مَا بَيْنَ

---

(۱) (فتح البخاری ۶۶/۳ بحواله اشرف التوضيح) هم دا خبره ارشاد الساری شرح بخاری کښې هم ليکلې شوې ده. المصفى شرح الموطاء کښې ليکی "سنت است زيارت قبر شريف آنحضرت ﷺ بعد فراغ حج باتفاق اهل علم" (المصفى ۳۳۹/۱ بحواله بالا). کوکب الدری په حاشيه کښې شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی "قلت وكذا حكى الاجماع عليه النووى وابن الهمام وغيرهما" (الكوكب الدرى ۳۳۹/۱ بحواله بالا) شاه ولی الله رحمه الله

(۲) اخرجه البخاری كتاب الجمعة باب فضل ما بين القبر والمنبر (رقم-۱۱۹۶) ومسلم كتاب الحج باب فی المدينة حين يتركها أهلها (رقم) ۵۰۲ - (۱۳۹۱) والترمذی كتاب الجمعة باب ما جاء فی فضل المدينة (رقم-۳۹۱۵)

بَيْتِيْ وَمِنْبَرِيْ رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ ۳ وَمِنْبَرِيْ عَلَى حَوْضِيْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** ۱ ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ زما د مكان او زما د منبر په مينځ كښې د جنت د باغاتو څخه يو باغ دي ۳ او زما منبر زما د حوض (يعني د حوض كوثر) د پاسه دي، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ①رَوْضَةٌ: باغيچه.

**تسهيلات:**

**قوله:** "مَا بَيْنَ بَيْتِي"

**د حجرې مباركې محل وقوع:** رسول الله ﷺ دَ خپل دغه كور طرف ته اشاره اوكړه كوم چه دَحضرت عائشه رضي الله عنها دَپاره خاص وو. كوم سرې چه قبلې ته مخ كولو سره اودريږي نو كورى به نودَ منبر نه گس طرف ته دَحضرت عائشې رضي الله عنها كوټه ده او هم په دې مقام باندې دَ حضورپاك وصال اوشو او هم په دغه ځائى دَ حضورپاك قبر مبارك دې. دَ دغه كور او منبر په مينځ كښې سپين قالين خورشوې دې هم دغه رياض الجنة دې او هم په دغه ځائى كښې استوانه توبه، اسطوانه عائشه او اسطوانه الحرس وغيره يوڅو مباركې او تاريخى ستنې دى.

**قوله:** "وَمِنْبَرِي"

## په اول كښې د نبى كريم ﷺ دپاره د منبر جوړول:

دَ عربو بادشاهانو سردارانو او بزرگانو كښې رواج وو چه دَهغوى دَ اعلانونو او خطبودَپاره خاص منبر به وو رسول الله ﷺ چه كله مدينې ته هجرت كولو سره تشريف راوړو نو په مسجد نبوى كښې منبرنه وو. حضورپاك به دَ كهجورې يوې تنې سره ډډه لګوله اوخطبه به ئې ارشاد فرمائيله. دَ دغه تنې نوم استن حنانه وو.

**دنبى كريم ﷺ دپاره د منبر جوړول:** دَ جنگ بدر نه لږشان مخكښې په دويمه هجرى كښې حضورپاك ته يوې انصارى ښځې درخواست پيش كړو زما يو غلام دَ لرگى په كار باندې ښه پوهيږى كه چرې تاسو غواړئى نو زه به تاسو له يو منبر تيار كړم. حضورپاك هغې ته اجازت وركړو دَ هغې ښځې نوم عائشه انصاريه وه دَ هغې دَ غلام نوم باقوم رومى وو. باقوم رومى دَ جهاؤدَ ونې نه (دا يو قسم ونه ده دَ كومې نه چه پچنى وغيره هم جوړولې شى) نه يو منبر تيار كړو دكومې چه درې پاؤړئى وې. حضورپاك به په دې باندې خطبه وركوله بيا دَدې پاؤړئى زياتيدلې دې وخت كښې دَدې تقريبًا اووه پاؤړئى دى او يوه اوچته مناره پورته چت ته نيزدې رسيږى. دَ حضورپاك اصل منبر په يوه حادثه كښې سوزيدلې وو اوس دا منبر هم په هغه مقام باندې دې اودَ لرگى جوړدې. [اشعة المعات:۲۴۸]

**د مسجد نبوي مخصوصي حصي ته د رياض الجنة په وئيلو كښې توجيهات:**

① دا مقام به دَ قيامت په ورځ دَ جنت طرف ته منتقل كړې شي حالانكه دا دَزمكې يوه ټكړه ده ليكن دَزمكې او آسمانونو په ماتيدو اودَ قيامت دَ هيبت كښې به داحصه محفوظ وي اوبيابه جنت ته منتقل شي. په دې وجه په دې حديث كښې داد جنت دَ باغيچونه يوه باغيچه اوګرځولې شوه. علامه ابن حجر رحمه الله داقول راجح ګرځولې دې اودَ اكثرمحدثينو هم دغه رائې ده. ابن جوزي رحمه الله او ابن فرحون رحمه الله فرمائي چه دَ امام مالك رحمه الله هم دغه رائې ده.[اشعة المعات: ۳۴۸]

② دَمالكيانو يو لوئې فقيه ابوجمرة رحمه الله فرمائيلي دي ممكن ده دَ زمكې داحصه بعينه دَ جنت يوه ټكړه وي چه دَهغه ځائې نه راكوزه شوې ده اودَ قيامت په ورځ به واپس خپل اصلي مقام ته لاړشي.

**په رياض الجنة كښې د جنت د خصوصياتو عدم وجود توجيه:** كله چه دا حصه دنياته راوړلې شوه نودَې نه دَ جنت خصوصيات جدا كړې شو يا هغه خصوصيات په پرده اوحجاب كښې اوساتلې شو.

**اشكال:** كه چرې دا روضة الجنة دَ جنت حصه ده نو په دې كښې دَ جنت خصوصيات ولې نشته؟ مثلاً پرق پروق په كښې ولې نشته په كوم سره چه نمر سپوږمئ بې نوره شي اوكوم سرې چه په دې كښې كيني نوچه هغه ته اولګه تنده نه لګي لكه څنګه چه به جنت كښې وي. مطلب دادې چه په دې كښې دَ جنت خصوصيات ولې ښكاره نه دي؟

**داشكال جواب:** كله چه دا حصه دنياته راوړلې شوه نودَې نه دَ جنت خصوصيات جدا كړې شو يا هغه خصوصيات په پرده اوحجاب كښې اوساتلې شو.

**قوله: عَلٰى حَوْضِيْ**

**دمذكوره جملې مطلب:** دَدې آسان او بې غباره مطلب دادې چه ميدان محشر كښې به زما منبر زما په حوض باندې وي. دَ حوض نه حوض كوثرمرا دې.

**۶۹۵–د خيالي په ورځ مسجد قباء ته دتلو مسنونيت**

۶۹۵–(¹)[۶] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَأْتِي مَسْجِدَ قُبَاءٍ كُلَّ سَبْتٍ مَاشِيًا وَرَاكِبًا، [۳] فَيُصَلِّي فِيهِ رَكْعَتَيْنِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر رضي الله عنه فرمايي [۲] چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به هره هفته پياده يا په سوارلئ مسجد قباء ته تشريف راوړو [۳] او هلته به يې دوركعاته مونځ كولو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① سَبْتٍ: دخيالي ورځ، يک شنبه.

---

(¹) اخرجه البخاری کتاب الجمعة باب من أتى مسجد قباء كل سبت (رقم-۱۱۹۳) ابوداود کتاب المناسک باب فی تحريم المدينة (رقم-۲۰۴۰) والنسائی کتاب المساجد/باب فضل مسجد قباء والصلاة فيه رقم (۶۹۸)

**تسهیلات:**

**قوله:** "مَسْجِدَ قُبَاءٍ"

**د مسجد قبا تعارف:** حضورپاك چه كله دَمكې مكرمې نه مدينې منورې ته هجرت اوكړو نو په محله عمروبن عوف كښې كوز شوهم دغه ځائى كښې حضورپاك ديارلس يا څوارلس ورځې قيام اوكړو. هم دَدې قيام په دوران كښې حضورپاك دَمسجد قباء بنياد كيخودو. په اسلام كښې فضيلت په اعتبارسره مسجد قباء په څلورم نمبر دې اودَ تعمير په اعتبارسره دَهجرت نه پس دا دَ اسلام رومبې جمات دې چه دَمسجد نبوى نه تقريبًا په درې ميله فاصله باندې دې.

علامه ابن حجرؒ فرمائى چه په صحيح حديث كښې دى چه په دې جمات كښې دَ هفتې په ورځ دوه ركعته مونځ كولوسره دَعمرې ثواب ملاويږى. دَ حضورپاك معمول وو چه دَهفتې په ورځ به حضورپاك دې جمات ته تشريف راوړلو اودوه ركعته مونځ به ئې كولو. اوس هم دَدې امت خلق په دې سنت باندې عمل كوى. پيدل تلل دَ سوريدونه افضل دى.

**قوله:** "فَيُصَلِّي فِيهِ رَكْعَتَيْنِ"

**د تحية المسجد په حكم كښې مذاهب:**

① دَ اهل ظواهر په نيزدوه ركعته تحية المسجد واجب دې. ② دَ شوافع په نيزدَ كيناستو نه مخكښې كول دى ورستو ثواب نه ملاويږى دَ احنافو په نيز به ملاويږى.

③ جمهور علماؤ په نيز دانفل دى دَ ثواب كار دې.

**۶۹۶- جماتونه الله تعالى ته خوښ ځايونه**

| |
|---|
| ۶۹۶-(۱) [۷] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «أَحَبُّ الْبِلَادِ إِلَى اللّٰهِ مَسَاجِدُهَا، ③ وَأَبْغَضُ الْبِلَادِ إِلَى اللّٰهِ أَسْوَاقُهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د الله جل جلاله په نيز په ټولو ښارونو كې محبوب او خوښ مقامات مسجدونه دي ③ او بدترين او ناخوښه مقامات بازارونه دي، (بخاري، مسلم.)

**تسهیلات:**

**قوله:** أَحَبُّ الْبِلَادِ:

**د أحب البلاد كيدو وجه:** ښكاره خبره ده چه په كومومقاماتوكښې دَالله تعالى عبادت كيږى هغه دَټولومقاماتونه الله تعالى ته محبوب دى او په مساجدكښې چه كوم بنيادى

(۱) اخرجه مسلم كتاب المساجد مواضع باب فضل الجلوس فى مصلاه بعد الصبح. وفضل المساجد(رقم-۲۸۶ - (۶۷۰)

عمل کیږی نو هغه خو هم دَالله تعالی عبادت دې. مونځونه تهجد نوافل سنت تلاوت ذکر دَ الله تعالی اذانونه اقامتونه او اعتکافونه وغيره ټول عبادات په مسجد کښې کیږی په دې وجه دا الله تعالی ته محبوب دی. [اشعة اللمعات: ۳۲۹]

**قوله: وَأَبْغَضُ الْبِلَادِ إِلَى اللهِ أَسْوَاقُهَا**

**د بازارونو د ابغض البلاد کیدو وجه:** اوبازارونه دَالله تعالی دَ نافرمانونه ډك وی. جګړې دروغ خیانت کنځلې دهوکې فراډونه اوشور ژوګ او بې حیائې په بازارونوکښې وی په دې وجه الله تعالی ته دا مقامات مبغوض دی. دَدې نه معلومه شوه چه جنت ته دَ تلو لاز په جمات ده ترکومې چه یومسلمان جمات ته نه راځی هغه دَ مارکیټ نه جنت ته نه شی تلې. هم دَدې جماتونودَ ګوټونونه بې شمیره انسانان جنت ته تلی دی لهذا دا کمزوری خلق او په جماتونوکښې اوسیدونکی خلق سپك مه ګنړئی او په بازارونوکښې ګرځیدونکو خلقو ته معزز مه وایئې.

**اشکال:** دَ بازارونونه زیات خو دګناه ادې شراب خانې دَ جوارئی ادې اودَ فحاشئی ادې او سنیماګانې وغیره دی هغې ته ولې دَ بازارونونه زیات مبغوض اونه وئیلې شو؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① دا پورته دکومو ادو او بدو ذکر اوشو نودامقامات خو هم دَبازارونو یوه حصه ده دادَ بازارونونه څه جدا ځیزنه دې.

② بازارونه قائم کول او آبادولوحکم دَ شارع دَ طرف نه دې اودَ غه ادو تیارول دَ شریعت دَ طرف نه نه دی. نودَحدیث مطلب داشو چه شارع دکوموځیزونواجازت ورکړې دې په هغې کښې خراب ځایونه بازارونه دی.

**٦٩٧ــد جمات جوړولو ثواب**

٦٩٧ – ()[٨] وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] («مَنْ بَنَى لِلّٰهِ مَسْجِدًا، [٣] بَنَى اللهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت عثمان رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] کوم سړي چې د الله جل جلاله د پاره مسجد جوړوي [٣] نو الله تعالی جل جلاله د هغه د پاره په جنت کې مکان جوړوي. (بخاري مسلم.)

**تسهیلات:**

**قوله: "مَنْ بَنَى لِلّٰهِ"**

(۱) اخرجه البخاری کتاب الصلوة باب من بنی مسجدا (رقم-٤٥٠) ومسلم کتاب المساجد مواضع باب فضل بناء المساجد والحث علیها (رقم) ٢٤ - (٥٣٣) وابن ماجة کتاب المساجد والجماعات ،باب من بنی لله مسجدا (رقم-٧٣٦) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل بنیان المسجد(رقم-٣١٨) والنسائی کتاب المساجد/باب الفضل فی بناء المساجد رقم (٦٨٨)

**دجمات جوړولو فضیلت:** یعنی دَ الله تعالی دَ رضا او خوشحالئی اودَ دین دَ خورولوپه نیت سره جمات جوړوی نه دا چه دَ ریاکارئی په غرض سره یا دَ خان خودلو اودنیاوی اغراضو مقاصدو دَپاره جوړوی. دَدې ثواب نه ملاویږی. بعضې علماؤ لیکلی دی چه کوم سرې دَ مشهورتیا په غرض سره جمات په خپل نوم باندې ساتی دادَ هغه دَ عدم اخلاص دلیل دې.[ اشعة المعات: ۴۲۹]

**قوله:** "مَسْجِدًا،"

**د مسجد د تنکیر فائده:** نکره دَ تقلیل دَپاره دې یعنی وړوکې شان جمات دې ولې نه وی داثواب به ملاویږی. یو روایت کښې دی چه دَ مرز دَ جالې برابر ولې نه وی. په دې کښې داهم ممکن دی چه یوسرې په جمات کښې معمولی شان حصه واچوی پوره جمات جوړنه کړی هغه ته به هم دَ جمات ثواب ملاویږی.

**قوله:** "فِي الْجَنَّةِ"

**د جمات د جوړونکی جنت ته تلل:** په جنت کښې اوچت محل ملاویدل خان لـه دَ الله تعالی کرام اواحسان دې لیکن دَدې زیری نه دامعلومه شوه چه داسې سرې بـه جنت تـه ځی. دا یولـوئی زیـرې دې کـه محـل ملاویـږی اوکـه نـه ملاویـږی هغـه روسـتنئی خبـره ده جنت خوملاؤشو.

**۶۹۸—صبا بیگاه جمات ته د تلو ثواب**

۶۹۸—(۱)[۹] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] («مَنْ غَدَا إِلَى الْمَسْجِدِ أَوْرَاحَ، [۳] أَعَدَّ اللهُ لَهُ نُزُلَهُ مِنَ الْجَنَّةِ كُلَّمَا غَدَا أَوْرَاحَ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] کوم کس چې د ورځې په اوله حصه کې یا په آخري حصه کې مسجد ته ځي[۳] نو الله تعالی جل جلاله په جنت کې د هغه د میلمستیا سامان تیـاروي خـواه کـه هغـه پـه سـحر کـې لاړشـي اوکـه مابنـام کـې، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① غَدَا: أَيْ: ذَهَبَ فِي الْغُدْوَةِ: یعنی دسحر په وخت کښې لاړشی. ② رَاحَ: ذَهَبَ إِلَيْهِ فِي الرَّوَاحِ: د زوال نه پس تلو ته رواح وائی. ③ أَعَدَّ: أَيْ: هَيَّأَ: تیاروی، ④ نُزُلَهُ: وَهُوَ مَا يُقَدَّمُ إِلَى الضَّيْفِ مِنَ الطَّعَامِ: دمیلمه دپاره چه کوم خوراک تیارولې شی هغې ته وائی یعنی میلمستیا.

(۱) اخرجه بخاری کتاب الاذان باب فضل من غدا إلى المسجد ومن راح (رقم-۶۶۲) ومسلم کتاب المساجد مواضع باب المشی إلى الصلاة تمحی به الخطايا، وترفع به الدرجات ر قم(۲۸۵ - (۶۶۹)

## ۶۹۹- جماعت ته د زیاتو قدمونو اخستلو ثواب

۶۹۹-(۱)[۱۰] ① وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②(«أَعْظَمُ النَّاسِ أَجْرًا فِي الصَّلَاةِ، أَبْعَدُهُمْ فَأَبْعَدُهُمْ مَمْشًى، ③وَالَّذِي يَنْتَظِرُ الصَّلَاةَ حَتَّى يُصَلِّيَهَا مَعَ الْإِمَامِ ④ أَعْظَمُ أَجْرًا مِنَ الَّذِي يُصَلِّي ثُمَّ يَنَامُ») مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابو موسی رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② د لمانځه د ټولو څخه زیات اجر هغه سړي ته رسیږي چې په اعتبار د مسافت (فاصله) د ټولو څخه زیات لرې وي [یعني د کوم سړي کور چې د مسجد څخه څومره لرې وي او هغه د کور څخه روانیدو سره مسجد ته ځي هغه ته هغومره زیات ثواب حاصلیږي] ③ او کوم سړي چې د لمانځه په انتظار کې په مسجد کې دننه (ناست) وي چې د امام سره مونځ وکړي ④ نو د هغه ثواب د هغه سړي څخه زیات دي چې تنها خپل مونځ او کړي او اوده شي. (بخاري مسلم.)

**حل اللغات:** ① أَبْعَدُهُمْ: چه لرې وی په مسافت کښې ② مَمْشًى: مصدر میمی دې، پیدل تلو ته وائی.

**تسهیلات:**

**قوله:** "فَأَبْعَدُهُمْ مَمْشًى،"

**لرې جماعت ته د تلو فضیلت:** یعنی کوم سړې چه دَ لرې نه جماعت ته راځی اوجمعې سره مونځ کوی دغه دَ هغه سړی نه په ثواب کښې زیات دې څوک چه جماعت ته نیزدې راځی. ځکه چه دَ هغه اقدام لیکلې کیږی مګر دا یاد لرئی چه که په لاره کښې یو جماعت دې اوهغه پریخودوسره بل جماعت له ځکه ځی چه فضیلت ئی زیات شی نودا صحیح نه دې. خاص کرچه نیزدې جماعت ته نقصان هم کیږی بیا به دا دګناه کار جوړشی. [اشعة المعات: ۳۹۹]

**قوله:** "ثُمَّ يَنَامُ"

**په جمعې سره د مونځ کولو فضیلت:** یعنی یوسړې مثلاً دَماسخوتن مونځ ځان له اوکړی اوده شی سره دَدې چه هغه په ډیر افضل وخت کښې ادا کړو مګر دَ جمعې انتظارئی اونه کړو او یوسړې هغه دې چاچه تاخیرسره مونځ اوکړو مګر دَ جمعې انتظارئی اوکړو نودَ دغه انتظار او په جمع کښې شاملیدو دَ وجې نه دَ ده اجر ډیر زیات دې.

## ۷۰۰- د هر قدم په بدله کښې یوه نیکی

۷۰۰-(۲)[۱۱] ① «وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② خَلَتِ الْبِقَاعُ حَوْلَ الْمَسْجِدِ، فَأَرَادَ بَنُو سَلِمَةَ أَنْ يَنْتَقِلُوا قُرْبَ الْمَسْجِدِ، ③ فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُمْ: ④ (بَلَغَنِي أَنَّكُمْ تُرِيدُونَ أَنْ تَنْتَقِلُوا قُرْبَ

---

(۱) اخرجه بخاری کتاب الاذان باب فضل صلاة الفجر فی جماعة (رقم-۶۵۱) ومسلم کتاب المساجد مواضع باب فضل کثرة الخطا إلی المساجد(رقم) ۲۷۷ - (۶۶۲)

(۲) اخرجه مسلم کتاب المساجد مواضع باب فضل کثرة الخطا إلی المساجد(رقم) ۲۸۰ - (۶۶۵)

الْمَسْجِدِ). [۵] قَالُوا: نَعَمْ يَا رَسُولَ اللهِ! قَدْ أَرَدْنَا ذٰلِكَ. [۶] فَقَالَ: (يَا بَنِي سَلِمَةَ! دِيَارَكُمْ، تُكْتَبْ آثَارُكُمْ، دِيَارَكُمْ، تُكْتَبْ آثَارُكُمْ»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر رضی الله عنه فرمايي [۲] چه مسجد نبوي ته نژدې ځه کورونه خالي شو نو بني سلمه دا اراده وکړه چې هغوي مسجد ته نژدې راشي [۳] رسول الله ﷺ چې د هغوئ د دې ارادي ځخه خبر شو نو هغوئ ته يې وفرمايل [۴] ماته دا معلومه شوې ده چې تاسو مسجد ته نژدې د منتقل کيدو اراده لرئ [۵] هغوئ عرض وکړو چې هو يا رسول الله ﷺ مونږ دا اراده کړې ده [۶] حضور ﷺ ورته وفرمايل اي بنو سلمه تاسو په خپلو مکانونو کې اوسي ستاسو د قدمونو نښاني نشانات ليکل کيږي تاسو په خپلو مکانونو کې اوسي ستاسو قدمونو نښاني ليکل کيږي يعني د هرقدم په برابرکښې يواجر ليکل کيږي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① الْبِقَاعُ: بقاع د بقعة جمع ده کولاؤ ميدان ته وائي دلته مکانات مراد دي. ② آثَارُكُمْ: آثار د أثر جمع ده. أي حُصُولُ مَا يَدُلُّ عَلَىٰ وُجُودِهِ: اثر هغه ځيز ته وائي چه د يو ځيز په وجود باندې دلالت کوي.

**تسهيلات: قوله:** بَنُو سَلِمَةَ:

**د بنو سلمه تعارف:** دا د انصار يو خاندان دې د دې خلق به د مسجد نبوی نه لرې اوسيدل. کله چه مسجد نبوی سره ځه مکانات د ځه وجې نه خالی شو نو هغوی اراده اوکړه چه جمات ته نيزدې راشي. رسول الله ﷺ ته معلومه شوه نو هغوی ئی منع کړل.

**قوله:** دِيَارَكُمْ:

**په حديث کښې آيت ته اشاره:** دا الزموا د پاره مفعول به دې يعنی خپل مکانات لازمی گيرکړئ هم هلته اوسيږئ ځکه چه ستاسو د تگ راتگ قدمونه ليکلې کيږي کوم چه به ستاسو د اعمالو په تله کښې شامليږي. لکه چه د دې آيت طرف ته اشاره ده. ﴿وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوا وَآثَارَهُمْ﴾ او مونږ ليکو کوم ځه چه هغوی وړاندې ليګلی دی او ځه چه هغوی پسې دی.

### ۷۰۱ــ د عرش د سيوری لاندې اووه قسمه خلق

۷۰۱ – ()[۱۲] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] («سَبْعَةٌ يُظِلُّهُمُ اللهُ فِي ظِلِّهِ يَوْمَ لَا ظِلَّ إِلَّا ظِلُّهُ: [۳] إِمَامٌ عَادِلٌ، وَشَابٌّ نَشَأَ فِي عِبَادَةِ اللهِ، [۴] وَرَجُلٌ قَلْبُهُ مُعَلَّقٌ بِالْمَسْجِدِ إِذَا خَرَجَ مِنْهُ حَتَّى يَعُودَ إِلَيْهِ،

[۱] بخاری کتاب الاذان باب من جلس فی المسجد ينتظر الصلاة وفضل المساجد (رقم-۶۶۰) ومسلم کتاب الزکاة باب فضل إخفاء الصدقة (رقم) ۹۱ - (۱۰۳۱) ومالک فی الموطا کتاب الشعر باب ما جاء فی المتحابين فی الله (رقم-۱۴) والترمذی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الحب فی الله (رقم-۲۳۹۱) والنسائی کتاب الزينة/باب ذکر النهی عن المشی فی نعل واحدة رقم(۵۳۷۰)

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] اوه کسان داسې دي چې هغوي به الله تعالی جل جلاله په هغه ورځ (یعني د قیامت په ورځ) په خپل سایه (سوري) کې وساتي په کومه ورځ چې د الله تعالی جل جلاله د سایه (سوري) څخه سوا بل سایه (سوري) نه وي[۳] ① انصاف کونکي حاکم ② هغه ځوان چې خپله ځواني د الله تعالی جل جلاله په عبادت کې صرف کړي[۴] ③ هغه سړي چې د مسجد څخه وځي نو تر څو پورې چې په مسجد کې داخل نشي د هغه زړه د مسجد سره لګیدلی وي.

**حل اللغات:** ① يُظِلُّهُمْ: أَيْ: يُدْخِلُهُمْ: یعنی په سوری (سایه) کښې به ئې داخل کړی. ② نَشَأَ: أَيْ: نَمَا وَتَرَبَّى: ځوانی تیره کړی یعنی لوئې شی. ③ مُعَلَّقٌ: رازوړند وی یعنی تړلې شوې وی، (یعنی زړه ئې هروخت جمات ته متوجه وی مینه او محبت ئې د جمات سره وی).

> [۱] وَرَجُلَانِ تَحَابَّا فِي اللهِ اجْتَمَعَا عَلَيْهِ وَتَفَرَّقَا عَلَيْهِ، [۲] وَرَجُلٌ ذَكَرَ اللهَ خَالِيًا فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ، [۳] وَرَجُلٌ دَعَتْهُ امْرَأَةٌ ذَاتُ حَسَبٍ وَجَمَالٍ فَقَالَ: إِنِّي أَخَافُ اللهَ، [۴] وَرَجُلٌ تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ فَأَخْفَاهَا [۵] حَتَّى لَا تَعْلَمَ شِمَالُهُ مَا تُنْفِقُ يَمِينُهُ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ④ او هغه دوه سړي چې محض د الله جل جلاله د پاره په خپلو کې محبت ساتي که یو ځای کیږي نو هم د الله جل جلاله په محبت کې او که جدا کیږي نو هم د الله جل جلاله په محبت کې (یعنی حاضر او غائب خالص لوجه الله محبت ساتي) [۲] ⑤ هغه سړي چې په تنهایي کښې الله تعالی جل جلاله یادوي او (د الله دویرې څخه) د هغه د سترګو څخه اوښکې جاري شی[۳] ⑥ هغه سړي چې یوي شریف النسب او حسیني ښځي (په خرابي ارادي سره) رابللي وي او هغه (د هغې د خواهش په جواب کې) ویلي وي چې زه د الله تعالی جل جلاله څخه ویریږم (دا کار نشم کولی)[۴] ⑦ هغه سړي چې هغه په داسې طریقه پټه صدقه ورکړله [۵] چې د هغه ګس لاس ته هم معلومه نه وي چې ښي لاس څه خرچ کړي دي، (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:** ④ فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ: أَيْ: سَالَتْ وَجَرَتْ دُمُوعُ عَيْنَيْهِ: یعنی د سترګو نه ئې اوښکې جاری وی، ⑤ دَعَتْهُ: طلب کوی او راغواړی ئې.

**تسهیلات:**

**قوله: "فِي ظِلِّهِ"**

**د سوری نه په مراد کښې دري اقوال:** ① ظل په اصل کښې سوری ته وائی دلته دَ نمر سوري مراد نه دي بلکه دَ الله تعالی دَ طرف نه دَ عزت، عظمت، رحمت او بزرګئی سوري مراد دي.

② د سوری نه راحت او نعمت مراد دي.

③ دَ عرش سوري تري مراد دي.

**په میدان حشر کښې د اووه قسمه خلقو په سورې سره اعزاز:** بهرحال مقصد دادې چه داخوش نصیبه اووه قسم خلق به په میدانِ محشر کښې دَ الله تعالی په رحمت کښې وی او دوی ته به دَ محشردَ هیڅ قسم پریشانوسره مخ کیدل نه وی. دا خصوصی امتیازی شان هغوی ته په دې وجه ملاؤ شو.

① **عادل بادشاه:** مثلاً دَ عادل بادشاه دَ عدالت اثر دَ هغه دَ ذات نه علاوه په ټول مخلوق باندې پریوځی. نودَ الله تعالی دَ مخلوق دَپاره دَ عادل امام عدالت عمومی رحمت دې.

② **ځوان عابد:** ځوان چونکه هغه خپل راؤچت شوی جذبات عین دَ ځوانئی او لیونتوب په زمانه کښې دَ الله تعالی دَ عبادت حق اداکړو په دې وجه هغه ته دا اعزاز ملاؤ شوې دې.

③ **جمات سره زړه لګونکې:** هروخت هم جمات سره محبت اوتعلق ساتی. ښکاره خبره ده چه هغه به دَ جمات خدمت کونکې هم وی اوهروخت به عبادت کونکې هم وی.

④ **دوه مخلص دوستان:** هغه دوه کسان دَ چاپوځائی کیدل او بیلیدل چه صرف دَ الله تعالی دَ رضا دَپاره وی. ښکاره خبره ده په دې صورت حال کښې به هغوی دَ الله تعالی تابعداری هروخت په خیال کښې ساتی لکه چه دَ خداوندقدوس دَ قدوسی هره مراقبه به هروخت هغوی ته حاصله وی.

⑤ **دالله تعالی د ویرې نه ژړا کونکې:** پنځم هغه سړې چه بالکل په خالی مقام کښې دَ الله تعالی په عظمت کښې ډوبیدوسره دَ الله تعالی دَ ویرې نه ښه ژاړی. ښکاره خبره ده چه دا ژړا دَ هرقسم ریاکارئی او هرقسم دنیاوی اغراضونه پاکه ده په دې وجه هغوی ته دامقام ملاؤ شوې دې.

⑥ **د زنا نه ځان ساتونکې:** هغه سړې چه یوې عامې ښځې نه بلکه ښائسته او دَ اوچت خاندان سره تعلق لرونکې مالداره خپل ځانِ پخپله پیش کړو. اوس دَدې ګناه نه دَ بچ کیدو وجه صرف دَ الله تعالی ویره وه په دې وجه دَ دغه سړی قدردانی اوکړې شوه.

⑦ **دالله دپاره په اخلاص سره خرچ کونکې:** هغه سړې چه دَ الله تعالی په محبت کښې دومره ورډوب دې اودَ ریاکارئی نه دومره لرې دې چه دَمال خرچ کولوپه وخت دَ الله تعالی نه علاوه چاته خبر قدرې نه ورکوی بلکه داکوشش کوی چه د دغه واجبی صدقې خبرئی خپل ګس لاس ته هم اونه شی. لنډه دا چه دا صرف اووه سړی نه بلکه اووه قسمه خلق مراد دی.

## ۷۰۲ــپه جماعت سره د مونځ کولوثواب

۷۰۲ــ()[۱۳] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② ((صَلَاةُ الرَّجُلِ فِي الْجَمَاعَةِ تُضَعَّفُ

(۱) اخرجه البخاری کتاب الصلوة باب فضل صلاة الجماعة وکان الأسود:(رقم-۶۴۷) ومسلم کتاب المساجد مواضع باب فضل صلاة الجماعة وانتظار الصلاة (رقم) ۲۷۲ - (۶۴۹) وابو داود کتاب الصلاة،باب ما جاء فیفضل المشی إلی الصلاة(رقم-۵۵۹) وابن ماجة فی الموطا کتاب المساجد والجماعات ،باب المشی إلی الصلاة(رقم-۷۷۴) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل الجماعة (رقم -۲۱۶)

عَلَى صَلَاتِهِ فِي بَيْتِهِ ۳ وَفِي سُوقِهِ خَمْسًا وَعِشْرِينَ ضِعْفًا ; ۴ وَذٰلِكَ أَنَّهُ إِذَا تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ ۵ ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الْمَسْجِدِ لَا يُخْرِجُهُ إِلَّا الصَّلَاةُ، ٦ لَمْ يَخْطُ خُطْوَةً إِلَّا رُفِعَتْ لَهُ بِهَا دَرَجَةٌ ۷ وَحُطَّ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةٌ ;

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ په جماعت سره د سړي مونځ د هغه لمانځه څخه چې په کور کې ۳ (یا تجارت وغیره د مشغولیت په بناء) په بازار کې وشي پنځه ویشت درجې فضیلت لري ۴ او د دې وجه دا ده چې هر کله یو سړی په ښه شان (یعني د ادابو او شرائطو لحاظ ساتلو سره) اودس کوي ۵ (او په بل څه غرض سره نه بلکه) صرف د لمانځه د پاره مسجد ته راځي ۶ نو هغه چې کوم قدم پورته کوي د هغه د هر قدم په عوض کې د هغه په ثواب کې یوه درجه بلندیږي ۷ او یوه ګناه یې کمیږي (تر دې چې هغه په مسجد کې داخل شي.)

۱ فَإِذَا صَلَّى، لَمْ تَزَلِ الْمَلَائِكَةُ تُصَلِّي عَلَيْهِ مَا دَامَ فِي مُصَلَّاهُ: ۲ اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ، اللّٰهُمَّ ارْحَمْهُ. ۳ وَلَا يَزَالُ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاةٍ مَا انْتَظَرَ الصَّلَاةَ» ). ۴ وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: («إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ كَانَتِ الصَّلَاةُ تَحْبِسُهُ»). ۵ وَزَادَ فِي دُعَاءِ الْمَلَائِكَةِ: ( ٦ «اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهُ، اللّٰهُمَّ تُبْ عَلَيْهِ. ۷ مَا لَمْ يُؤْذِ فِيهِ، مَا لَمْ يُحْدِثْ فِيهِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او تر څو پورې چې هغه مونځ کولو نه پس په خپله مصلٰی ناست وي فرښتي برابر د هغه د پاره دا دعا کوي ۲ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْهُ (اې الله دې وبخښي اې الله په ده رحم وکړي) ۳ او تر څو پورې چې په تاسو کې څوک د لمانځه په انتظار کې وي نو هغه هغه وخت په لمانځه کې شامل ګڼل کیږي ۴ او د یو روایت الفاظ دا دي چې هر کله څوک مسجد ته لاړشي او د لمانځه په وجه هلته پاتې شو (نو لکه چې هغه په لمانځه کې دې) ۵ او د فرشتو په دعا کې دا الفاظ زیات دي ٦ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهُ اَللّٰهُمَّ تُبْ عَلَيْهِ، یعنی اې الله دا بنده وبخښي اې الله د ده توبه قبوله کړي ۷ (او دا د هغه وخته پورې کیږي) تر څو پورې چې هغه یو مسلمان ته په خپلې ژبې یا لاس سره تکلیف ونه رسوي او په اوداسه وي. (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:** ① تُضَعَّفُ: أَيْ:تُزَادُ: زیاتیږي، ② خُطْوَةٌ: قدم ،وَهِيَ مَا بَيْنَ الْقَدَمَيْنِ: (د دوه قدمونو په مینځ کښې مقدار ته خطوة وائی). ③ حُطَّ: صیغه د مجهول ده، رجیږي، معاف کیږي. ④ تَحْبِسُهُ: ایسار کړې وی ده لره (یعنی دبل مونځ په انتظار کښې ناست وی). ⑤ لَمْ يُؤْذِ: چاته تکلیف اونه رسوی (که هر قسم تکلیف وی په ژبه وی او که په لاس وغیره سره وی). ⑥ لَمْ يُحْدِثْ: چه بې اودسه نه شی.

**تسهیلات:**

**قوله: "خَمْسًا وَعِشْرِينَ ضِعْفًا"**

**د جمعې مونځ یو په اوویشت درجه:** وړاندې باب الجماعت کښې به دَدې قسم احادیث راځی هم هلته به بحث کیږی چه کله پنځه ویش او کله اووه ویش درجې ثواب ولې

ملاويږي. دَدې کمې زياتي وجه څه ده؟ دلته خوصرف دا خودلې شي چه دَ جمع نه بغير مونځ کول دَ جمع سره مونځ والا درجه نه شي حاصلولې. ۲۵ يا ۲۷ درجو ثواب صرف په هغه صورت کښې ملاويږي کله چه مونځ په جمع سره وي.

**قوله: "فِي مُصَلَّاهُ"**

**د مصلى د قيد فائده:** شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې دَدې حديث لاندې ليکلي دي چه دا دوچند ثواب به هغه وخت ملاويږي چه مونځ ګذار دَ مونځ په ځائې باندې کينې اخوا ديخوا لاړنه شي. که چرې مونځ ګذار په جمات کښې اخوا ديخوا لاړو بيابه دا ثواب نه ملاويږي.[اشعة المعات: ۳۵۱]

**قوله: "مَا لَمْ يُؤْذِ فِيهِ"**

**د مضاعف ثواب ملاويدو شرط:** چې يو انسان يا مونځ ګذار ته درد اوتکليف نه رسوني يعنى په خپل فعل اوخپل قول سره چاته تکليف اونه رسوي.

**قوله: "مَا لَمْ يُحْدِثْ فِيهِ"**

**په مذکوره جمله کښې دوه احتمالات:** ① داجمله وړاندې جملې "مالم يؤذ" څخه بدل واقعې ده يعنى دَ فرښتو دعابه ترهغه وخته پورې وى ترکومې چه مونځ ګذار په اودس کښې وى. که چرې په جمات کښې اودس مات شي نو فرښتې دعانه کوي.

② شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې ليکلي دي داصيغه دَ يحدث تحديث نه په معنى دَ کلام هم کيدې شي يعنى فضيلت دَ هغه وخته پورې دې ترکومې چه مونځ ګذار په جمات کښې فضول دنياوى خبرې شروع نه کړى کوم وخت چه فضول خبرې شروع شي نوفرښتې خپله دعاموقوف کوي. هرمونځ ګذار له پکاردي چه په جمات کښې په اودس کښې کينې اوترکومې پورې چه ناست وى دَ دنياوى خبرونه دې ځان اوساتي.[اشعة المعات: ۳۵۱]

## ۷۰۳—د جمات ته داخليدو اووتلو دعاګانې

> ۷۰۳—(۱)[۱۳] ① وَعَنْ أَبِي أُسَيْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ② ( «إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيَقُلْ: ③ اللَّهُمَّ افْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ. ④ وَإِذَا خَرَجَ فَلْيَقُلْ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ» ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابو اسيد رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر کله چې په تاسو کې يو سړي په مسجد کې داخليږي نو هغه له دا دعا کول پکاردي ③ اللَّهُمَّ افْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ،

(۱) اخرجه مسلم كتاب صلاة المسافر وقصرها باب ما يقول إذا دخل المسجد (رقم) ۶۸ - (۷۱۳) وابن ماجة فى الموطا كتاب المساجد والجماعات ،باب الدعاء عند دخول المسجد(رقم-۷۷۲) والنسائى كتاب المساجد /باب القول عند دخول المسجد وعند الخروج منه (رقم-۷۲۹)

(اي الله ته د خپل رحمت دروازې زما د پاره خلاصې کړې) [۲] او هر کله چې د مسجد څخه وځي نو دا دعا دې کوي اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ (اي الله زه ستا څخه ستا فضل غواړم) (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلْيَقُلِ: اللّٰهُمَّ:

**جمات ته د داخليدو او وتلو دوه آداب:** ① په جمات کښې دَ داخليدو په وخت ښۍ خپه اول داخله کړئی او دَ جمات نه دَ وتلو په وخت ګسه خپه وړاندې راوُباسئی. داځکه چه جمات سره دَ بيت الخلاء والا معامله اونه شی ځکه چه بيت الخلاء ته دَ داخليدو په وخت دَ شريعت حکم دې چه اول ګسه خپه وړاندې کړه بيا ښې خپه او دَ وتلو په وخت اول ښې خپه راوُباسئی او ګسه دې نه پس. که يوسړې دَ دې تعليم اوتربيت نه خلاف ځي نو هغه په لاشعوری کښې جمات سره دَ بيت الخلاء والا معامله کوی اوبيت الخلاء سره دَ جمات والا معامله کوی.

② هر مسلمان له پکار دی چه دَالله تعالی په کورکښې قدم ايږدلو سره دَ خپل ځان دَپاره دَ الله تعالی دَ رحمت دَ وسعت دعا اوغواړی اوکله چه دَ جمات نه بهر قدم کيږدی نو دَ روحانياتو نه پوره ډ کيدونه پس دې دَ ماديات او حلال رزق دعا اوغواړی ځکه چه دَ جمات نه بهر زيات تر هم دنيا سره واسطه کيږی. بعض رواياتو کښې دَ جمات دَ داخيدلو په وخت مذکوره دعا سره دَدې الفاظو هم اضافه ده. "بسم الله والسلام علی رسول الله" [اخرجه البخاری: ۱/۴۲۱، ۲/۷۰] که يوسړې دا هم اولولی نو هيڅ مضائقه نشته بلکه ډير ښه دی.

## ۷۰۴ــ دَ تحية المسجد حکم

۷۰۴ــ ()[۱۵] [۱] وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] (« إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ، فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يَجْلِسَ »). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابو قتاده ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر کله چې په تاسو کې يو سړي په مسجد کې داخل شی نو هغه ته پکار دي چې د ناستي څخه مخکې دوه رکعاته مونځ وکړي (بخاري، مسلم.)

(۱) اخرجه البخاری كتاب الصلوة باب إذا دخل أحدكم المسجد فليركع ركعتين قبل أن يجلس (رقم-٤٤٤) ومسلم كتاب صلاة المسافر وقصرها باب استحباب تحية المسجد بركعتين، وكراهة الجلوس قبل صلاتهما، وأنها مشروعة فى جميع الأوقات (رقم) ٦٩ - (٧١٤) وابوداود كتاب الصلاة، باب ما جاء فى الصلاة عند دخول المسجد (رقم-٤٦٧) ومالك فى الموطا كتاب قصر الصلاة فى السفر . باب انتظار الصلاة والمشى إليها (رقم-٥٧) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إذا دخل أحدكم المسجد فليركع ركعتين (رقم-٣١٦) والنسائى كتاب المساجد/باب الأمر بالصلاة قبل الجلوس فيه (رقم-٧٣٠) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة/باب من دخل المسجد فلا يجلس حتى يركع (رقم-١٠١٣)

**تسهیلات:**

**قوله: "فَلْيَرْكَعْ"**

**د تحیة المسجد په حکم کښې مذاهب:**

دا دوه رکعته دَ تحیة المسجد په نوم باندې مشهوردی. که چرې په دې کښې دَ تحیة الوضوء نیت هم اوکړې شی نودَهغې ثواب به هم انشاء الله حاصل شی. اوس دَدغه دوو رکعتو دَ کولوحیثیت څه دې.

① دَ اهل ظواهر اوشوافع حضراتو په نیزجمات ته داخلیدوسره دوه رکعته مونځ اداکول واجب دی که هغه هروخت وی ثواب به ملاویږی.

② البته شوافع حضرات فرمائی چه دا ثواب به مخکښې دَ کیناستونه حاصلیږی که چرته مونځ ګذار په جمات کښې کیناستو نودا ثواب به نه ملاویږی.

③ دَجمهور فقهاؤ په نیز تحیة المسجد دوه رکعته مونځ واجب نه دې بلکه دانفل دی کوم چه مستحب دی.

**د اول او دویم فریق دلیل:** زیر بحث حدیث د دوی مستدل دې. دوی په دې کښې دَ امر صیغې ته ګوری چه دادَ وجوب دَپاره ده.

**داول او دریم فریق د دلیل جواب:** دَ امردا صیغه دَ وجوب دَپاره نه بلکه په استحباب باندې محمول ده.

**په مکروه وخت کښې د تحیة المسجد متبادل عمل:** ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات کښې دَدې حدیث لاندې لیکی که جمات ته دَ داخلیدو په وخت سړې بې اودسه وی یا وخت مکروه وی نوڅلور ځل دې "سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر ولا حول ولا قوة الا بالله العلی العظیم" اووائی په دې سره به ورته دَ دوو رکعتو ثواب حاصل شی.

**۷۰۵-د سفر نه په راتلو سره د نبی علیه السلام اول جمات ته د داخلیدو عادت**

۷۰۵-()[۱۶] ① وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقْدَمُ مِنْ سَفَرٍ إِلَّا نَهَارًا فِي الضُّحَى، ③ فَإِذَا قَدِمَ بَدَأَ بِالْمَسْجِدِ، ④ فَصَلَّى فِيهِ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ جَلَسَ فِيهِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① کعب ابن مالك رضی الله عنه فرمایې ② چه د رسول الله ﷺ (عادت وو چې) کله به یې د سفرڅخه واپس تشریف راوړلو نو د چاښت په وخت به راتلو ③ او د ټولو څخه مخکې به یې مسجد ته تشریف وړو ④ هلته به یې دوه رکعاته وکړل (تر لږ وخت پورې) به ناست وو (بیا به

(۱) اخرجه بخاری کتاب الجهاد باب الصلاة إذا قدم من سفر(رقم-۳۰۸۸) ومسلم صلاة المسافر وقصرها باب استحباب الركعتین فی المسجد لمن قدم من سفر أول قدومه (رقم) ۷۴ - (۷۱۶) والنسائی کتاب المساجد/باب صلاة الذی یمر علی المسجد رقم (۷۳۲)

يي كور ته تشريف وړلو (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:** ① لَا يَقْدَمُ: أَيْ: لَا يَرْجِعُ: نه به واپس كيدلو (د سفر نه)، ② الضُّحَى: وَهُوَ وَقْتُ تَشْرُقُ الشَّمْسُ: دڅاښت وخت يعنى كله چه نمر ښه راوخيژى.

**تسهيلات:**

**قوله: "بَدَأَ بِالْمَسْجِدِ"**

**د سفر نه په واپسۍ كښې مسنون عمل:** يعنى دَ رسول الله ﷺ عام معمول داوو چه دَخپل سفرنه دَ واپسئى په وخت دَ شپې په ځائى دَ ورځې مدينې منورې ته تشريف راوړلو. اوچه كله به دَ ورځې تشريف راوړو نوحضورپاك به دكور په ځائى څه ساعت دَپاره په مسجد نبوى كښې تشريف كيخودلو.

**د سفر نه په واپسۍ كښې اول جمات ته د تلو فائدې:** ① په مدينه منوره كښې كومو صحابه كرامو دَ جدائيئى وخت تيركړې وو هغوى ته هم په جمات كښې دَ يوساعت زيارت موقع ملاؤ شى اودَ يو بل دَ احوالو علم به كيدلو.

② په كورونوكښې ښځې او ازواج مطهرات دَ خپل ځان اوخپلو كورونودَ صفائيئى انتظام كولو. په دې حديث كښې دَ امت دَپاره دَ ډير ښه معاشرتي تعليم دې.

③ كه دَ چاشت وخت به وو نودَ چاشت مونځ به ئې كولو يا به ئې دَ تحية المسجد ثواب حاصلولو.

**۷۰۶—جمات كښې د ورك شوى څيزد اعلان كولو ممانعت**

۷۰۶—( )[۱۷] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] (( مَنْ سَمِعَ رَجُلًا يَنْشُدُ ضَالَّةً فِي الْمَسْجِدِ، فَلْيَقُلْ: [۳] لَا رَدَّهَا اللَّهُ عَلَيْكَ، [۴] فَإِنَّ الْمَسَاجِدَ لَمْ تُبْنَ لِهَذَا )). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چې دا واوري (يا ووينې) چې يو سړي په مسجد كې خپل ورك شوي شي تلاش كوي نو هغه ته پكار دي چې د هغه په جواب كې دا اووائي [۳] الله تعالىٰ دې وكړي چې ستا ورك شوي شي درته ملاؤ نشي [۴] ځكه چې مسجدونه د دې د پاره نه دي جوړ شوي (چې هلته دې د ورك شوي شي تلاش او اعلان وشي) (مسلم.)

**حل اللغات:** ① يَنْشُدُ: أَيْ: يَطْلُبُهَا بِرَفْعِ الصَّوْتِ: د ورك شوى څيز اعلان كول، يعنى په اوچت آواز سره ئې تلاش كوى (او داسې وائى چه زما نه فلانې څيز ورك شوې دې وغيره)، ② ضَالَّةً: ورك شوې څيز.

---

[۱] اخرجه مسلم كتاب المساجد ومواضع باب النهى عن نشد الضالة فى المسجد وما يقوله من سمع الناشد (رقم) ۷۹ - (۵۶۸) وابوداود كتاب الصلاة، باب فى كراهية إنشاد الضالة فى المسجد (رقم -۴۷۳) وابن ماجة كتاب المساجد والجماعات باب النهى عن إنشاد الضوال فى المساجد(رقم-۷۶۷)

③ لَارَدَّهَا: واپس دې ملاؤ نه شي دغه ورک څيز، ④ لَمْ تُبْنَ: تُبن د مجهول صيغه ده، نه دی جوړشوی دا جماتونه ددې دپاره چه خلق دې پکښې خپلو ورک شوو څيزونو وغيره دپاره اعلانونه کوی (بلکه دا جماتونه خو د وعظ او نصيحت اود ذکر اوتلاوت وغيره عباداتو دپاره جوړشوی دی).

**تسهيلات:**

**قوله: لَارَدَّهَا اللّٰهُ عَلَيْكَ:**

**د مذکوره جملې وئيلو مختلف صورتونه:** ① دَدې حديث په ظاهری الفاظو باندې عمل کولودَپاره که يوسړې داسې بددعااوکړی نودا جائزدی مګر چه دَ زړه نه ئې دَ بددعانيت نه وی ② که چرته يوسړې دا سوچ کوی چه داسې بددعاکولوسره به َهغه سړی ته او نورو خلقوته عبرت حاصل شي اوهغوی به آئنده په جماتونوکښې داسې اعلانونه نه کوی نوبيا دَزړه نه هم بددعاکولوګنجائش وی.

**په جماتونو کښې د اعلاناتو حکم:** نن صبا په جماتونوکښې آئمه حضراتو سره دَعوامو اکثر جګړې هم په دې اعلانونوکولوسره پيدا کيږی. دَ ورك شوو ماشومانو اعلانونه دَ جنازو دَ ختونو اعلانونه دَ مړو اعلانونه هم په جماتونوکښې کيږی. بلکه دَ پنجاب په اطرافو کښې اوريدلی شوی دی چه دَ چرګو او چيلو دَ ورکيدو اعلانونه هم کيږی. دا ډيره خرابه خبره ده اودَ جماتونو منتظمينوله پکاردی چه دَاعلانونودَپاره دې دَ جماتونونه بهر دَ لاؤډسپيکر انتظام اوکړی. دلته داخبره هم ياد لرئی چه صرف دَ ورك شوو څيزونودَعلانونو خبره نه ده بلکه هرهغه عمل چه دَجمات دَ تعمير دَ مقاصدو منافی وی دَهغې شور په جمات کښې کول جائزنه دی. دَ سلف صالحينو په نيزخو په جمات کښې يوسوال کونکی ته صدقه ورکول هم منع وو. دَحديث شريف آخری جمله "فَانَّ الْمَسَاجِدَ لَمْ تُبْنَ لِهٰذَا" هم دَدې عموم طرف ته اشاره کوی. (ماخوذ ازتوضيحات)

**[٧٠٧] د بدبوئي داره څيز خوړلو نه پس جمات ته د داخليدو ممانعت**

٧٠٧ –(١)[١٨] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] (( مَنْ أَكَلَ مِنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ الْمُنْتِنَةِ، فَلَا يَقْرَبَنَّ مَسْجِدَنَا، [٣] فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ تَتَأَذّٰى مِمَّا يَتَأَذّٰى مِنْهُ الْإِنْسُ )). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر ﷛ راوي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړي چې د دې بدبودار بوټي (يعني پياز اووږه وغيره) څخه څه وخوري نو زمونږ مسجد ته دې نزدې هم نه راځي [٣] ځکه چې په کوم (بدبويي) سره انسان ته تکليف رسيږي په هغې سره فرشتو ته هم تکليف رسيږي. (بخاري، مسلم.)

(١) اخرجه بخاری کتاب الاذان باب ما جاء فی الثوم النی والبصل والکراث (رقم-٨٥٤) ومسلم کتاب المساجد ومواضع باب نهی من أکل ثوما أو بصلا أو کراثا أو نحوها (رقم-٧٢ - (٥٦٣)

**حل اللغات:** ① الْمُنْتِنَةِ: بد بوئی داره وونه، ددې نه مراد هريو بدبويه سبزی وغيره مثلاً پياز، اوګه، ګندانه وغيره. ② تَتَأَذَّي: په تکليف کيږی يعنی تکليف محسوسوی.

**تسهیلات: قوله:** مَنْ أَكَلَ مِنْ هَذِهِ الشَّجَرَةِ الْمُنْتِنَةِ:

**د بدبوئی داره څيز سره جمات ته د داخليدو ممانعت:** مطلب دادې چه څنګه بدبوئی داره څيز سره انسان ته تکليف کيږی دغه شان فرښتې هم په تکليف کښې کيږی. په دې وجه مسلمان له پکاردی چه اوګه پياز خوړلوسره دې جماتونوته نه راځی څکه چه جماتونوته مسلمانانو سره فرښتې هم راځی هغوی ته به تکليف اورسيږی. په دې حکم کښې هرهغه څيزداخل دې کوم چه بدبوئی داروی که هغه دَ خوراك څښاك څيزونه وی مثلاً ګندنه مولئی نسوار سيګريټ دَ تمباکووالاپان يا نور بدبوئی داره څيزونه ټول په دې حکم کښې شامل دی. بل که دَ چا دَ ترخ نه يا دَخلې يادَ بدن دَ څه زخم نه بدبوئی راځيږی دَهغې هم دغه حکم دې چه داسې خلق دې جمات ته نه راځی. که چرې هغوی نه منع کيږی نوپه حکومت باندې لازم دی چه هغوی دې منع کړی دې دَپاره چه مونځ ګذارو اوفرښتو ته تکليف نه رسی. دَ بدبوئی داره څيز دَ استعمال نه پس کاږه يا ګړه استعمالول پکاردی چه هغه بدبوئی ختمه شی داعلاج دې.

**د اجتماعی مجالسو حکم:** دَ جماتونوقيد څه احترازی نه دې بلکه علماء ليکی چه داسې خلقوله دَ وعظ مجلسونو او دَ ذکر اذکارمحفلونو اودَ قرآن اوحديث درسونوته هم تلل نه دی پکار. شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې ليکی دی په عامو مجلسونو مثلاً دعوت وليمه وغيره ته هم نه دی تلل پکار. [اشعة المعات: ۳۵۲]

**قوله:** "مَسْجِدَنَا"

**د مساجد جمع راوړلو فائده:** په دې لفظ سره حضورپاك دَعموم طرف ته اشاره اوفرمائيله چه دا حکم صرف مسجدنبوی سره خاص نه دې بلکه دَمسلمانانودَ ټولو جماتونوهم دغه حکم دې. په دې وجه "مسجدنا" نه علاوه "مساجدنا" الفاظ هم راغلی دی. اوچرته چه دَ مسجدی الفاظ راغلی دی نوهغه دَ نور تشديد او تغليظ دَ وجې نه دی چه دَ نورو جماتونو په نسبت په مسجد نبوی کښې دَدغه بدبوئی نه سخت احتراز کول پکاردی.

**۷۰۸ــ په جمات کښې دليارو توکلو کفاره**

۷۰۸ – (¹)[۱۹] ① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «الْبُزَاقُ فِي

[1] اخرجه البخاری كتاب الصلوة باب كفارة البزاق فی المسجد(رقم-٤١٥) ومسلم باب المساجد ومواضع - باب النهی عن البصاق فی المسجد فی الصلاة وغيرها (رقم-٥٥ - (٥٥٢) ابو داود كتاب الصلاة،باب فی كراهية البزاق فی المسجد (رقم-٤٧٥) والترمذی كتاب السفر / باب فی كراهية البزاق فی المسجد (رقم-٥٧٢)

الْمَسْجِدِ خَطِيئَةٌ، [۳] وَكَفَّارَتُهَا دَفْنُهَا»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په مسجد کې تهوکل گناه ده [۳] او د هغې کفاره دا ده چې هغه لاړې دې په زمکه کې پټې کړې شي. (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:** ① الْبُزَاقُ: يعنې په جمات کښې توکانړې توکل يو قسم گناه ده دَدې گناه کفاره داده چه هغه ختم کړې شي. ② خَطِيئَةٌ: أَيْ: إِثْمٌ: گناه، ③ دَفْنُهَا: دَ دفن کولو نه مراد ختمول دی يعنی چه په پاکه کپړه وغيره سره دغه توکانړی پاک کړې شي.

**تسهيلات: قوله:** الْبُزَاقُ فِي الْمَسْجِدِ خَطِيئَةٌ، وَكَفَّارَتُهَا دَفْنُهَا:

**د دفن البزاق نه مراد:** دا مطلب نه دې چه په جمات کښې توکانړې توکئی او ورخښوئی. اوکه چرې دَجمات حصه داسې وی چه په هغې کښې دَ خاورې او شگې ډيرې دی نو په هغې کښې ورخښول ډير مناسب دی مگر قصداً توکانړې توکل مراد نه دی دا ټول دَ اضطرار په صورت کښې دی.

**د بزاق هم معنی الفاظ:** دلته يو څو الفاظو کښې فرق کول ضروری دی. بزاق او بصاق اوبساق او تفل دَ خلې توکانړو ته وائی خوچه ترکومې پورې په خله کښې وی هغې ته "ريق" وائی.

### ۷۰۹—د جمات آداب

۷۰۹—(۲۰) [۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «عُرِضَتْ عَلَيَّ أَعْمَالُ أُمَّتِي حَسَنُهَا وَسَيِّئُهَا، [۳] فَوَجَدْتُ فِي مَحَاسِنِ أَعْمَالِهَا الْأَذَى يُمَاطُ عَنِ الطَّرِيقِ، [۴] وَوَجَدْتُ فِي مَسَاوِءِ أَعْمَالِهَا النُّخَاعَةَ، [۵] تَكُونُ فِي الْمَسْجِدِ لَا تُدْفَنُ»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** [۱] ابو ذر رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] زما په مخکې زما د امت ښه او بد اعمال پيش کړې شو [۳] ما د هغوئ په نيک اعمالو کښې خو د لارې څخه تکليف ورکونکې شي لرې کول ومونددل [۴] او په بدو اعمالو کې په مسجد کې دننه تهوکل مې ومونددل چې هغه پټ کړې شوې نه وي. (مسلم.)

**حل اللغات:** ① الْأَذَى: تکليف ورکونکې څيز، ② يُمَاطُ: أَيْ: يُزَالُ: چه لرې کړې شی. ③ النُّخَاعَةَ: أَيِ: الْبُزَاقَةُ الَّتِي تَخْرُجُ مِنْ أَصْلِ الْفَمِ: دا دَ بلغم نوم دې چه دَ سينې نه پورته خلې ته راشی هغې ته نخامه هم وائی. النخاع داد هغه بلغم نوم دې چه دَدماغونه ښکته خلې ته راشی. بهرحال دا باريک فرق دې مگر دا الفاظ دَ يو بل په ځائی باندې ونيلی شی.

---

(۱) اخرجه مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة باب النهى عن البصاق فى المسجد فى الصلاة وغيرها (رقم-۵۷ - (۵۵۳) وابن ماجة باب إماطة الأذى عن الطريق (رقم-۳۶۸۳)

**تسهیلات:**

**قوله:** عُرِضَتْ عَلَيَّ

**د اعمالو د پیش کیدو موقع:** د اعمالو پیش کیدل د معراج په شپه اوشو ،

**۷۱۰-په مانځه کښې د ضرورت په وخت د لیاړو توکلو طریقه**

۷۱۰-(۱)[۲۱] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَلَا يَبْصُقْ أَمَامَهُ ، ۳ فَإِنَّمَا يُنَاجِي اللّٰهَ مَا دَامَ فِي مُصَلَّاهُ، ۴ وَلَا عَنْ يَمِينِهِ، فَإِنَّ عَنْ يَمِينِهِ مَلَكًا ۵ وَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ فَيَدْفِنُهَا» ).

**ترجمه:** ۱ ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ هر کله چې په تاسو کې يو سړي د لمانځه کولو د پاره ودريږي نو هغه ته پکار دي چې خپل مخې ته نه تهوکي ۳ ځکه چې تر څو پورې هغه د لمانځه په حالت کې وي نو هغه خپل پروردگار سره مناجات (سرگوشي) کوي ۴ او هغه ته د خپل ښي طرف ته هم تهوکل نه دي پکار ځکه چې ښي طرف ته يوه فرشته وي ۵ هو گس طرف ته يا د قدمونو لاندي دي تهو کړي او بيا دي هغه په زمکه کې پټ کړي

**حل اللغات:** ① فَلَا يَبْصُقْ أَمَامَهُ: نه دې توکی، أَيْ: لَا يُسْقِطِ الْبُزَاقَ أَمَامَهُ نَحْوَ الْقِبْلَةِ: يعنى خپلې مخې ته قبلې طرف ته دې نه توکی. ② يُنَاجِي: غوږ کښې خبرو ته وائی، يعنى سرگوشی کوی.

**تسهیلات:**

**قوله:** "فَإِنَّمَا يُنَاجِي اللّٰهَ"

**مونځ او الله تعالی سره مناجات:** په دې حديث کښې دَ مونځ گذار تشبيه داسې سړی سره ورکړې شوې ده چه دَ خپل واجب الاحترام مالك په مخکښې ولاړ وی اوهغه سره غوږ کښې خبرې کوی. په دې حالت اوکيفيت کښې هغه سړې دَخپل مالك دَعزت اواحترام دَ ټولو آدابو خيال ساتی اودَ هغه طرف ته توکانړې توکل بالکل نه برداشت کوی. دغه شان دَ مونځ گذار دَپاره هم واجب دی چه کله هغه دَخپل حقيقی مالك په مخکښې مونځ کښې ولاړ وی نودَ ټولو آدابو خيال دې اوساتی اودَ حضورئی دَ شرائطو پابندی دې کوی. هغه دې دا کوشش کوی چه دَخپل حقيقی مالك په مخکښې دې توکانړې نه توکی خوکه په توکلوباندې مجبوره شي نوبيا هغه له پکاردی چه مخامخ دې نه توکی دَ الله تعالی ذات مبارك سره دَدې چه دَ جهتونو او سمتونو دَ قيوداتو نه پاك دې مگر اسلام آداب دَ حضورپاك په طريقوسره مسلمانانوته اوخودل چه دَ رب ذوالجلال په دربارکښې دَ

(۱) بخاری کتاب الصلوة باب دفن النخامة فی المسجد(رقم-۴۱۶) ومسلم باب النهی عن البصاق فی المسجد فی الصلاة وغيرها (رقم-۵۳ - (۵۵۰) و ابن ماجة باب المصلی يتنخم (رقم-۱۰۲۲)

حاضرئ په وخت صورةً هم څه داسې طريقه اختيار نه کړئ کومه چه دَ الله تعالی دَ اوچت شان منافی وی. [الكاشف: ۲۷۸/۲]

**قوله: "عَنْ يَمِينِهِ مَلَكًا"**

**په ملک کښې دوه احتمالات:** ① دَ فرښتې نه کراماً کاتبين مراد دی دَ هغوی احترام هم لازم دې دا غوره دی دَ هغه فرښتې نه کومه چه ګس طرف ته وی اودَ انسان بدی ليکی. دَ ښی طرف فرښته امير دې دَ ګس طرف والا مامور ده په دې وجه ښی طرف ته دَ توکلو نه ئی منع اوفرمائيله.

② دَ دې فرښتونه دکراماً کاتبين نه علاوه څه بله فرښته مراد ده چه خاص توګه باندې دَ مونځ په وخت راځی اوښی طرف ته اودريږی اودَ مونځ ګذار لارخونه اودَ هغه دپاره دعاکوی. لکه چه دا يوميلمه دې بيا فرښته ده دَهغې احترام په مونځ ګذار باندې واجب دې لهذا دَ دې طرف ته توکل منع دی.

٧١١-(١)[٢١] ① وَفِي رِوَايَةِ أَبِي سَعِيدٍ: (تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرَى). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او د ابو سعيد ﷛ په روايت کې دا الفاظ دي چې بلکه د خپل قدم لاندې دي تهوك کړي، (بخاري، مسلم.)

**٧١٢–د پيغمبرانو عليهم السلام قبرونو ته د سجدې حرمت**

٧١٢-(٢)[٢٢] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ فِي مَرَضِهِ الَّذِي لَمْ يَقُمْ مِنْهُ: ② «لَعَنَ اللهُ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى; ③ اتَّخَذُوا قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه ﷝ وايي چې سرور کائنات ﷺ په هغه بيماري کې چې د هغه څخه ندي جوړ شوې (يعني په مرض موت کې) وفرمايل ② په عيسايانو او يهوديانو دي د الله ﷻ لعنت وي ③ هغوی د خپلو انبياؤ قبرونه سجده ګاه جوړ کړي وو. (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:** ① لَمْ يَقُمْ: پانه څيدلو (يعنی جوړنه شواوهم په هغې مرض کښې وفات شو).

(۱) اخرجه البخاری کتاب الصلوة باب: ليبزق عن يساره، أو تحت قدمه اليسرى (رقم-٤١٤) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة باب النهي عن البصاق في المسجد في الصلاة وغيرها (رقم-٥٢ - (٥٤٨) وابوداود كتاب الصلاة، باب في كراهية البزاق في المسجد (رقم-٤٨٠) وابن ماجة كتاب المساجد والجماعات ،باب كراهية النخامة في المسجد (رقم-٧٦١) والنسائی كتاب المساجد/باب ذكر نهي النبي صلى الله عليه وسلم عن أن يبصق الرجل بين يديه أو عن يمينه وهو في صلاته رقم (٧٢٥)

(۲) اخرجه البخاری كتاب الجنائز باب ما يكره من اتخاذ المساجد على القبور (رقم-١٣٣٠) ومسلم كتاب المساجد و مواضع الصلاة باب النهي عن بناء المساجد، على القبور واتخاذ الصور فيها والنهي عن اتخاذ القبور مساجد (رقم-١٩ - (٥٢٩)

**تسهيلات: قوله: "لَعَنَ اللّٰهُ الْيَهُوْدَ"**

**د حديث پس منظر:** كله چه حضورپاك ته د الله تعالى د طرف نه دا معلومه شوه چه حضورپاك د دنيا نه زر تشريف اوړونكې دې نو حضورپاك ته ويره پيدا شوه چه چرته د امت بعضې خلق د حضورپاك د فوات نه پس قبرمبارك سره هغه معامله اونه كړى كومه معامله چه يهوديانو اونصاراؤ د خپلو پيغمبرانو د قبرونو سره كړې. په دې وجه حضورپاك خپل امت ته خبردارې وركړو چه يهوديان او نصارىٰ چه په كوموكارونو باندې ملعون ګرځولې شوى دى تاسو د هغې نه بچ اوسيږئ. [اشعة المعات: ۳۵۳]

**د قبر نه قبله جوړولو دوه صورتونه:**

علامه توريشتي رحمه الله ليكلى دى چه قبرونه د سجدو ځايونه په دوو طريقوسره وى. يو طريقه داده چه ① د عبادت په نيت سره قبرونو ته سجده اوكړې شى دا طريقه خو خالص شرك اوكفردې (لكه چه دا نن صبا په بعضې ځايونو كښې عامه ده)

② عبادت خود الله تعالى د پاره وى ليكن د سجدې ځائى د يونبى قبرجوړكړى نوداسې عبادت به قبول وى ځكه چه په دې كښې د الله تعالى عبادت هم دې اود انبياء كرامو او د هغوى د قبرونو تعظيم هم دې. دا دواړه طريقې غيرمشروع دى اود الله تعالى او د هغه د رسول صلى الله عليه وسلم په نيزناخوښه دى.

دا طريقه هم حرامه ده. ځكه چه سره د دې چه شرك جلى نه دې ليكن خفى اومعنوى شرك دې.

حضورپاك فرمائى ((اللهم لا تجعل قبري وثنا يعبد اشتد غضب الله على قوم اتخذوا قبور انبياءهم مساجد)).

**د قبرپه خوا كښې د تبرك په غرض د عبادت كولو حرمت:** علامه توريشتي رحمه الله نوره تشريح كولوسره ليكى د دې نه معلومه شوه چه د يونبى يا ولى د قبرطرف ته په توګه د تبرك اوتعظيم مونځ كول حرام دى. [اشعة المعات: ۳۵۳]

علامه نووى رحمه الله هم ليكلى دى د يوقبرطرف ته يا د هغې په خواكې په توګه د تبرك اوتعظيم مونځ اونه كړې شى ځكه چه د دې په ممانعت كښې صحيح احاديث موجود دى. او په دې حرمت كښې د څه شك شبې ګنجائش نشته دې اوماته نه ده معلومه چه په توګه د تعظيم اوتبرك د يو ولى يا نبى د قبر طرف ته د مونځ كولو كښې د چا اختلاف وى.

**قبرونو سره خوا كښې جمات كښې د عبادت كولو جواز:** علامه توريشتي رحمه الله ليكى كه قبرونوسره خواكې چرته جمات وى يا چرته داسې ځائى وى چه د مونځ كولو په وخت قبرونه ښكارى نه نو په داسې ځائىٰ كښې د مونځ كولو ګنجائش شته. بل په داسې ځائى كښې هم د مونځ كولو ګنجائش دې چرته چه د مخكښې نه د انبياء كرامو قبرونه وى مګر روستو بيا د هغې څه نخښنه وغيره باقى پاتې نه وى لكه چه مشهوره ده په حطيم كښې د حضرت اسماعيل عليه السلام قبردې حالانكه خلق هلته مونځ كوى. [اشعة المعات: ۳۵۴]

۷۱۳-د اولنوامتونو د ګمراهۍ سبب

۷۱۳-()[۲۳] ۱ وَعَنْ جُنْدَبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ۲ (« أَلَا وَإِنَّ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ كَانُوا يَتَّخِذُونَ قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ وَصَالِحِيهِمْ مَسَاجِدَ، ۳ أَلَا فَلَا تَتَّخِذُوا الْقُبُورَ مَسَاجِدَ، ۴ إِنِّي أَنْهَاكُمْ عَنْ ذٰلِكَ »)، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت جندب رضی الله عنه راوي دي چې سرور كائنات ﷺ وفرمايل ۲ اګاه شئ ستاسو څخه مخكې (يعني د نورو امتونو) خلقو د خپلو انبياء او اولياؤ قبرونه سجده ګاه جوړ كړي وو ۳ نو خبردار تاسو خلق قبرونه سجده ګاه جوړنه كړئ ۴ زه تاسو دي څخه منع كوم. (مسلم.)

**حل اللغات:** ① أَلَا: لِلتَّنْبِيهِ: اَلا د تنبيه دپاره ده يعنی خبردار، پوهه شئ.

**تسهيلات:** **نوټ:** د دې حديث شرح په حديث نمبر ۷۱۲ كښې اوګورئ.

۷۱٤-د سنتو او نوافلو په كورنو كښې د ادا كولو فضيلت

۷۱٤-()[۲۴] ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ (« اجْعَلُوا فِي بُيُوتِكُمْ مِنْ صَلَاتِكُمْ، ۳ وَلَا تَتَّخِذُوهَا قُبُورًا »)، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما راوي دي چې سرور كائنات ﷺ وفرمايل ۲ تاسو څه لمونځونه (تهجد او نوافل) په خپلو كورونو كې هم كوئ ۳ او كورو نو څخه قبرونه مه جوړوئ. (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** "مِنْ صَلَاتِكُمْ"

**په كورونو كښې د نوافلو ادا كولو افضليت:** يعنی خپل نوافل او سنت كوم كښې چه جمع نه وی هغه په كورونو كښې كوئی او په دې سره به ستاسو په كورونو كښې بركت راځی او دَ عبادت په وجه به په كورونو كښې دَ هدايت رڼا راځی.

**قوله:** "وَلَا تَتَّخِذُوهَا قُبُورًا"

**د كورونو نه قبرونو نه جوړولو دوه مطلبونه:** ① يعنی كورونه دَ عبادت نه داسې خالی مه

---

(۱) اخرجه مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة باب النهی عن بناء المساجد، علی القبور واتخاذ الصور فيها والنهی عن اتخاذ القبور مساجد (رقم-۲۳ - (۵۳۲)

(۲) اخرجه البخاری كتاب الصلوة باب كراهية الصلاة فی المقابر(رقم-۴۳۲) ومسلم كتاب صلاة المسافر و قصرها باب استحباب صلاة النافلة فی بيته، وجوازها فی المسجد (رقم) ۲۰۸ - (۷۷۷) وابوداود كتاب الصلاة، باب صلاة الرجل التطوع فی بيته (رقم-۱۰۴۳) والنسائی كتاب قيام الليل وتطوع النهار ،باب الحث علی الصلاة فی البيوت والفضل فی ذلک (رقم-۱۵۹۸) والترمذی كتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی فضل صلاة التطوع فی البيت (رقم-۴۵۱) والنسائی كتاب قيام الليل وتطوع النهار /باب الحث علی الصلاة فی البيوت والفضل فی ذلک رقم (۱۵۹۸)

پرېږدئ لکه چه قبرونه دَ عبادت نه خالي وي. بلکه دَ سنتو او نوافلو یوه حصه په کور کښې هم کوئ. هم دغه وجه ده چه فقهاؤ سنت او نوافل په کور کښې کول غوره ګرځولي دي. دا معنی زیاته واضحه ده.

⑦ دا مطلب هم کیدې شي چه خپل مړي په کورونو کښې مه خښوئ کورونه ادیرې مه جوړوئ دا مطلب بعید دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### ۷۱۵–دَ اهل مدینې قبله

۷۱۵–(¹)[۲۵] ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ قِبْلَةٌ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې سرور کائنات ﷺ وفرمایل ② د مشرق او مغرب په مینځ کې قبله ده. (ترمذي)

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ قِبْلَةٌ:

**په مدینه منوره کښې د قبلې طرف:** دَدې حدیث تعلق مدینې منورې سره دې دَ نورو ملکونو حکم داسې نه دې او په شریعت کښې ډیرې مسئلې دی دکوم چه خصوصي تعلق دَ یو مکان یا زمان سره وي. نوچه مدینه منوره کوم ځائې واقع ده دَدې په شمال طرف کښې شام واقع دې او دَ جنوب طرف ته مکه واقع ده دَ مشرق طرف ته خراسان دې اودَ مغرب طرف ته مغربي علاقې دي. نودَدې حدیث مطلب دا شو چه کوم خلق په مدینه کښې اوسیږي یا دَ مدینې په اطرافو کښې اوسیږي دَهغوی دَ مونځ دَپاره قبله دَمشرق اومغرب په مینځ کښې ده یعنی نه مشرق دَهغوی قبله ده اونه مغرب دَهغوی قبله ده بلکه دَدې دواړو په مینځ کښې جنوب دَهغوی قبله ده. مشرق او مغرب په اوړی او ژمی کښې بدلیږی لیکن دَ مینځ په لفظ کښې ډیر وسعت دې. لهذا په هرموسم کښې قبله هم په مینځ کښې وي. [اشعة اللمعات: ۳۵۴]

### ۷۱٦–د ګرجې په ځائې د جمات جوړولو حکم

۷۱٦–(²)[۲٦] ① «وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② خَرَجْنَا وَفْدًا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، فَبَايَعْنَاهُ، وَصَلَّيْنَا مَعَهُ، ③ وَأَخْبَرْنَاهُ أَنَّ بِأَرْضِنَا بِيعَةً لَنَا، ④ فَاسْتَوْهَبْنَاهُ مِنْ فَضْلِ طَهُورِهِ، ⑤ فَدَعَا بِمَاءٍ،

---

(¹) اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أن ما بین المشرق والمغرب قبلة (رقم-۳٤٤) وابن ما جة کتاب إقامة الصلاة، باب من دخل المسجد فلا یجلس حتی یرکع (رقم-۱۰۱۳)

(²) اخرجه النسائی کتاب المساجد/باب اتخاذ البیع مساجد رقم (۷۰۱)

فَتَوَضَّأَ وَتَمَضْمَضَ، ⑥ثُمَّ صَبَّهُ لَنَا فِي إِدَاوَةٍ.

**ترجمه:** ① او حضرت طلق ابن علي ﷺ فرمايي ② چه مونږ د يو جماعت په شكل كې د سرور كائنات ﷺ په خدمت كې حاضر شو او مونږ ټولو د حضور ﷺ څخه په اسلام بيعت وكړي او د حضور ﷺ سره مو مونځ وكړو ③ او بيا مونږ دا عرض وكړو چې زمونږ په وطن كې زمونږ يوه ګرجا ده (د هغې سره څه وكړو) ؟ ④ د دې څخه وروسته زمونږ د حضور ﷺ د اودس څخه پاتې شوي اوبه وغوښتلې ⑤ نو حضور ﷺ اوبه راوغوښتلي او اودس يې وكړو او (دې څخه وروسته بقيه اوبو سره) خله يې وينځله ⑥ او هغه د خلې اوبه يې زمونږ په مشكيزه كې واچولې.

**حل اللغات:** ① وفد: ضرب يضرب نه وفدًا ووفودًا ووفادةً دَهغه معززجرګې نوم دې چه دَ يوقوم دَ طرف نه دَ يوامير لـه خپلـه معامله اوړلوسره ځي دَدې مفرد وافد دې. ① فَبَايَعْنَاهُ: مونږ ورسره بيعت اوكړو په توحيد، رسالت او اطاعت باندې. ② بِيعَةٌ: وَهِيَ مَعْبَدُ النَّصَارَى: د نصاراؤ عبادت خانه يعنى ګرجه، ② كنيسة دَ يهوديانو دَ عبادت ګاه نوم دې ③ فَاسْتَوْهَبْنَاهُ: د باب استفعال نه د متكلم صيغه ده، مونږ ترې دهبه په طور اوغوښتلې. ④ إِدَاوَةٍ: دَ څرمن هغه لوښى ته وائى په كوم كښې چه اوبه ډكيږى او په سفر كښې خان سره اوړلې شى. دې ته په اردو كښې چهاګل وائى يعنى وړوكې مشكيزه، ⑤ تَمَضْمَضَ: خوله ئې اووينځله، ⑥ صَبَّهُ: وائې چولې.

① وَأَمَرَنَا، فَقَالَ: (اخْرُجُوا فَإِذَا أَتَيْتُمْ أَرْضَكُمْ، ② فَاكْسِرُوا بِيعَتَكُمْ، وَانْضَحُوا مَكَانَهَا بِهَذَا الْمَاءِ، ③ وَاتَّخِذُوهَا مَسْجِدًا) ④ قُلْنَا: إِنَّ الْبَلَدَ بَعِيدٌ، وَالْحَرَّ شَدِيدٌ، وَالْمَاءَ يُنْشَفُ، ⑤ فَقَالَ: (مُدُّوهُ مِنَ الْمَاءِ، فَإِنَّهُ لَا يَزِيدُهُ إِلَّا طِيبًا») رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او وي فرمايل لاړ شئ او هر كله چې تاسو خپل ملك ته ورسيږئ ② نو هغه ګرجا ماته (ورانه) د هغې په ځاي دا اوبه وپاشي (چړكاؤ كړئ) (چې د دين او اسلام انوار او بركات هلته خواره شي) ③ او بيا هلته مسجد جوړ كړئ ④ مونږ عرض وكړو چې زمونږ ښار خو ډير لرې دې او ګرمي سخته ده نو دا اوبه به (هلته رسيدو سره) وچې شي ⑤ حضور ﷺ وفرمايل په دې كې نوري اوبه واچوئ په دې سره به د دې په پاكيزګي او بركت كې اضافه وشي. (نسايي)

**حل اللغات:** ⑦ فَاكْسِرُوا: أَيْ: غَيِّرُوا: ماته ئې كړئ، خرابه ئې كړئ او دهغې محراب قبلې طرف ته راوګرځوئ. ⑧ انْضَحُوا: أَيْ: رُشُّوا: اوشيندئ، چړكاؤ كړئ. ⑨ يُنْشَفُ: دا دَ مجهول صيغه ده دَ اوچيدلو په معنى كښې دې. ⑩ مُدُّوهُ: أَيْ: زِيدُوا: يعنى نورې اوبه پكښې واچوئ نو پاكوالئ او بركت به ئې نورهم زيات شى.

**تسهيلات:**

**قوله:** غَرَجْنَا وَفْدًا إِلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**دحديث پس منظر:** په ۹ هجرئ سنة الوفود په نوم سره يادولې شي په مسجد نبوى كښې به دَ دې وافدينو قيام كيدلو. په دې كښې دَ يوې ستن نوم اسطوانة الوفود دې دَ وفد عبدالقيس قصه مشهوره ده هلته تشريح هم شوې ده.

**د تبرک ثبوت:** شارحينو حضراتو ليكلي دى چه دَ وفد داخلق اول عيسايان وو بيا چه كله مسلمانان شو نو هغوى خپلې گرجې راغورزول غوښتل دې دَپاره چه دَ دې په ځائې دَ مسلمانانو په شان جمات جوړ كړى ليكن هغوى غوښتل چه په گرجا كښې دَ غير الله دَ عبادت اثرات پراته دى دَدې دَ زائل كولودَپاره دا ځائې وينځل پكاردى اوبيا په دې ځائې باندې دَ رسول الله ﷺ مبارك دَ تبرك اوبه په دې كښې اچول. دَدې مقصد دَ پاره هغوى دَ حضورپاك دَ چار اندام نه بچ شوې اوبه اوغوښتلې نوحضورپاك ورکړې.

**قوله:** لَا يَزِيدُهُ إِلَّا طِيبًا:

**د مذكوره جملې دوه مطلبونه:** ① يعني داخيال مه كوه چه په دې زياتى اوبوملاوولوسره به دَ اصل بركت والااوبو بركت كم شي بلكه چه كومې نوې اوبه راوړلې شي هغه به دَ اصل اوبوبركت زياتوى. ② چه كومې نوې اوبه دې متبرك اوبو سره ملاوولې شى اصل متبرك اوبه به دَ دې بركت زياتوى. دَدې جملې نه دواړه مطلبونه اخستلې شى.

## ۷۱۷-په كورونو كښې د جمات جوړولو حكم

٧١٧ -()[٢٧] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② «أَمَرَرَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِبِنَاءِ الْمَسْجِدِ فِي الدُّورِ ③ وَأَنْ يُنَظَّفَ وَيُطَيَّبَ»، رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي ② چې سرور كائنات ﷺ په محلو كښې د جماتونو جوړولو حكم كړي دي ③ او دا چې (دا مسجدونه) دې پاک او صاف وساتل شى او په هغې دې كښې خوشبو كيښودل شي. (ابوداؤد، ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① بِنَاءِ: د جوړولو، ② الدُّورِ: د دَارِ جمع ده، او دار كور ته وائى اومحلې ته هم وائى. دلته محله مراد ده. ③ يُنَظَّفَ: چه پاک صفا اوساتلې شى (د بدبوئ او گندگئ وغيره نه).

**تسهيلات:**

**قوله:** بِبِنَاءِ الْمَسْجِدِ فِي الدُّورِ

**د مسجد په مفهوم كښې دوه احتمالات:** ① ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى دَدې حديث نه هغه

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب اتخاذ المساجد فى الدور(رقم-٤٥٥) والترمذى كتاب السفر/باب ما ذكر فى تطييب المساجد(رقم-٥٩٤) وابن ماجة كتاب المساجد والجماعات ،باب تطهير المساجد وتطييبها (رقم-٧٥٨)

جماتونه مراد کيدې شي چه په کورونو کښې دَمانځه په غرض سره يوځائې مختص کولې شي ⑦ دَدې نه محله هم مراد اخستې شي چه په هره محله کښې جدا جدا جمات کيدل پکاردی چه خلقو ته آسانی وی اودَ جمعې ثواب حاصلول آسان شي. مګر دا هغه وخت بهتر ده کله چه نورو جماتونو ته نقصان نه رسيږي. که چرې نقصان رسيږي نوبيا جائز نه دی. ابن ملك رحمه الله هم دَدې حديث نه په کورونو کښې دَ جماتونو جوړولو مطلب اخستې دې سره دَدې چه ملاعلي قاري رحمه الله دا مطلب مرجوح ګرځولې دې.

**دجماتونو جوړول او قومی فريضه:** دَ جماتونو قيام دَمسلمانانو دينی، مذهبی، قومی اوملی بيدارئی علامت دې. دَ جماتونو قيام دَ رحمت او برکت سبب دې. په کومه محله کښې چه دَاهل حق جمات وی دَهغه محلې خلق اهل حق سره تړلې کيږی اوچرته چه دَ اهل باطل جمات وی خلق په باطل باندې راځی. په دې وجه مسلمانانو له دَ جماتونو جوړولو ډير خيال ساتل پکاردی. دينِ اسلام دَ جهاد په ذريعه په ټوله دنيا کښې خورشوې دې اودَ علماؤ او جماتونو په ذريعه محفوظ او برقرار راروان دې. په کوم ملك کښې چه دَ جماتو او علماؤ وجود ختميږی دَخلقو نه دين ختميږی اوهغوی مرتد کيدوسره خوانيږی اوبيا هم مرتد کيدوسره مړه کيږی.

**د جماتونو جوړولو په باره کښې دحضرت عمر فرمان:** حضرت عمرفاروق رضي الله عنه په خپل دوردَخلافت کښې حکم جاری کړې ووچه کومه علاقه فتحه شی دَټولو نه مخکښې هلته جمات جوړوئی ليکن په يوجمات سره بل ته نقصان نه دی رسيدل پکار. يعنی چه مسجد ضرار جوړنه شي. دَ حضرت عمرفاروق رضي الله عنه په دور کښې دَهغوی په حکم سره څلور زره عام جماتونه او نهه سوه غټ اوجامع مسجدونه قائم شو.

**په کور کښې د جمات جوړولو فائدې:** ليکن حقيقت دادې چه په کورونو کښې دننه دَ جماتونو قيام ډير فائده مند دی.

① دَ کور خلق هروخت په هغې کښې مونځ او نور عبادتونه په ځائې راوړلې شي.

② يخنئی او بارانونو او ويرې اوخطرې په وخت دکور خلق په هغې کښې جمع کولې شي.

③ ماشومانو ته تعليم ملاويږی چه مونځ څه څيزدې.

④ دکورخلقو ته شوق پيدا کيږی چه مونږ مسلمانان يو مونږ کره جمات دې په مونږ باندې دَدې صفائی لازم ده.

⑤ دکور والو دَدې څيزونو احساس سره سره دَ الله تعالی دَ طرف نه دَ جمات په وجه رحمت او برکت جدا حاصليږی.

## ۷۱۸ــد جماتونو د زيب او زينت حكم

۷۱۸ــ(۱)[۲۸] ⓵ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⓶ (( مَا أُمِرْتُ بِتَشْيِيدِ الْمَسَاجِدِ)) ⓷ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: لَتُزَخْرِفُنَّهَا كَمَا زَخْرَفَتِ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ⓵ او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې سرور كائنات ﷺ وفرمايل ⓶ ماته د مسجدونو د بلند كولو او ښائسته كولو حكم نه دې شوې ⓷ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وفرمايل څنګه چې يهود او نصارې د خپلو عبادت خانو زينت كوي دغسې به تاسو هم (د خپلو مسجدونو) زينت كوي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ⓵ بِتَشْيِيدِ: أَيْ: بِرَفْعِهَا وَإِعْلَاءِ بِنَائِهَا أَوْ تَجْصِيصِهَا: دجماتونو اوچت اوچت او پاخه جوړول. ⓶ لَتُزَخْرِفُنَّهَا: په دې كښې لام تعليل دنفى د ماقبل دپاره دې، او زخرف سرو زرو ته وائي خو د هر قسم زينت دپاره استعماليږي، دلته مراد ښائست او نقش ونګار دې.

**تسهيلات:**

**د جماتونو ښائسته كولو حكم:** په حل اللغات كښې اخستې معنى په اعتبار سره مطلب داشو چه ماته د اوچت لوړ او عاليشان او مضبوط پلسترشوى جماتونو حكم نه دې شوې.
مسجدنبوى د حضورپاك په مبارك زمانه كښې ساده اوكچه وو. ديوالونه د خښتو او چت د كهجورو د ښاخونو نه جوړشوې وو اوستنې يا دكهجورو د تنو او يا د كهجورو د لرګو وو. په عهدصديقى كښې هم دغه حالت وو.
**وخت په وخت په مسجد نبوى كښې توسيع:** د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه كښې مسجدنبوى دوباره تعميركړې شوې وو ليكن دا هم هغه شان ساده ساتلې شوې وو څنګه چه اول وو البته څه توسيع اوشوه. بيا چه د حضرت عثمان رضي الله عنه په دورخلافت كښې هغوى اوكتل چه د خلقو كورونه عاليشان شو او جمات هم په هغه زوړ طرز باندې پاتې دې نو هغوى مسجدنبوى په نوى طرز باندې تعميركړو هغوى په جمات كښې توسيع هم اوكړه او ښه ئى ښكلې هم كړو. په ديوالونو كښې منقش كانړى او په چت كښې اعلى قسم لرګى استعمال كړل. متاخرين فقهاؤ هم دې په رنګ كښې دا اجازت وركړې دې چه د جمات آبادې هم دغه شان ښائسته كول پكاردى څنګه چه د خلقو كورونه وى دې دپاره چه د جماتونو توهين او تحقيراونه شى.

**قوله: لَتُزَخْرِفُنَّهَا:**

**د جماتونو د نقش ونګار حكم:** صاحب د هدايه وغيره ليكلى دى چه تر كومې د جمات د مضبوطيا تعلق دې نوهغه جائز دې كه د چا په ذاتى مالونوسره وى يا د مسلمانانو په وقف

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب فى بناء المساجد (رقم-۴۴۸) والبخارى باب بنيان المسجد

مالونوسره وی. پاتې شو ښائست اونقش ونګار نوهغه په وقف مال باندې کول جائزنه دی. که یوسړې نقش ونګار کول غواړی نوهغه دَ دغه حد پورې جائز دې چه دا ښائست او نقش ونګا دَ مونځ ګذارو دَغفلت سبب جوړنه شی. که دَمونځ ګذارو دَغفلت او لهولعب سبب جوړیږی نوهغه په ذاتی مال سره جوړول هم ناجائز یعنی مکروه دی.

**د حدیث مصداق:** دَ حدیث مطلب هم دغه شو چه راتلونکی وخت کښې به داسې خلق پیدا کیږی چه جماتونه به ښائسته کوی او ښکلې کوی به ئې اودَهغې په دیوالونو باندې به سره زر لګوی خودا طریقه سنت نبوی نه ده ځکه چه اسلام سادګی ښائی اودَ نقش ونګار په ځائې دَعمل او کردار سبق ورکوی. دَ نن صبا بریلوی حضراتو جماتونه هم په دغه طرز دی اودَ هدایت نه خالی دی ځکه چه هغه دَ شرك اوبدعاتو مراکز جوړشوی دی حالانکه دَ مساجدو دَ پاره دَالله تعالی حکم دادې ﴿وَأَنَّ الْمَسٰجِدَ لِلّٰهِ فَلَا تَدْعُوْا مَعَ اللّٰهِ أَحَدًا﴾.

### ۷۱۹-دَ جماتونو په ښائسته کولو فخر کول

۷۱۹-(۱)[۲۹] ①وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②(«مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يَتَبَاهَى النَّاسُ فِي الْمَسَاجِدِ»)، رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضی الله عنه راوي دي چې سرور کائنات ﷺ وفرمايل ② د قيامت د علامو څخه يوه دا هم ده چې خلق به د مسجدونو په باره کښې په يو بل باندې فخر کوي. (ابوداؤد، نسايي، دارمي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① أَشْرَاطِ: د شَرَطِ جمع ده، نښې او علامت ته وائی. ② يَتَبَاهَى: د باب تفاعل نه د مضارع صيغه ده، أَيْ: يَتَفَاخَرُ: په يو بل باندې فخر کول.

**تسهیلات:**

**قوله: يَتَبَاهَى:** یعنی دَ قیامت په یوڅو علاماتوکښې داهم یودې چه خلق به لوئی لوئی جماتونه جوړه وی اوهغه به ښائسته او ښکلې کوی خلقوته به ئې ښائی دَ الله تعالی رضا به مقصودنه وی بلکه دَفخر اومباهات اراده به ئې وی اودَ دنیاوالونه به شاباش حاصلول وی.

مسجد تو بنادی شب بھر میں ایمان کی حرارت والوں نے ... من اپنا پرانا پاپی ہے برسوں میں نمازی بن نہ سکا

### ۷۲۰-دَ مسجد صفا کول

۷۲۰-(۱)[۳۰] ①وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②(«عُرِضَتْ عَلَيَّ أُجُوْرُ أُمَّتِي ③حَتَّى الْقَذَاةُ يُخْرِجُهَا الرَّجُلُ مِنَ الْمَسْجِدِ، ④وَعُرِضَتْ عَلَيَّ ذُنُوْبُ أُمَّتِي، ⑤فَلَمْ أَرَ ذَنْبًا أَعْظَمَ مِنْ سُوْرَةٍ مِنَ الْقُرْآنِ، أَوْ

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة، باب فی بناء المساجد (رقم-۴۴۹) والنسائی کتاب المساجد باب المباهاة فی المساجد (رقم-۶۸۹) وابن ماجة کتاب المساجد والجماعات، باب تشیید المساجد (رقم-۷۳۹)

(۲) اخرجه الترمذی باب (رقم-۲۹۱۶) وابوداود کتاب الصلاة، باب فی کنس المسجد (رقم-۴۶۱)

آيَةٍ أُوتِيهَا رَجُلٌ ثُمَّ نَسِيَهَا»). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه راوي دي چې سرور كائنات ﷺ وفرمايل [۲] زما د امت ثواب زما په مخكې پيش كړې شو [۳] تر دې چې د هغه خځلو او خاورو ثواب هم (پيش كړې شو) چې يو سړې د مسجد نه (جارو كولو) سره وېستلې وي [۴] او زما په مخكې زما د امت گناهونه هم پيش كړل شو [۵] په هغه گناهونو كښې ماته د دې څخه لويه هيڅ گناه په نظر رانغله چې چاته د قرآن يو سورت يا آيت ياد وي بيا هغه يې هير كړي وي. (ترمذي ،ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① أُجُورُ: أَيْ: ثَوَابُ أَعْمَالِهِمْ: د أمت د نيكو عملونو ثوابونه، ② الْقَذَاةُ: هِيَ مَا يَقَعُ فِي الْعَيْنِ مِنْ تُرَابٍ أَوْتِبْنٍ أَوْوَسَخٍ: دَ قذاة جمع قذى ده په ستركه كښې پريوتونكې خاوره، ډكې يا خيرى ته قذاف وائى. ③ أُوتِيهَا: أَيْ: تَعَلَّمَهَا: چه زده ئې كړى، ياد ئې كړى.

**تسهيلات:**

**قوله:** حَتَّى الْقَذَاةُ يُخْرِجُهَا الرَّجُلُ مِنَ الْمَسْجِدِ:

**دجمات مثال د انسانى سترگې پشان:** په دې حديث سره دې طرف ته اشاره كيږى چه دَ جمات مثال دَ انسان دَ سترگې په شان دې لكه څنگه چه دَانسان په ستركه كښې پروتونكى څيزسره تكليف كيږى اوهغه دَ ټولو نه اول دَ هغې دَ لرې كولو كوشش كوى دغه شان دَجمات روح هم دَ ډكو خيرو سره تكليف كيږى. نوچه كوم سړى دغه ډكى دَ جمات نه لرې كړل په هغه باندې به دَ الله تعالى رحمت نازليږى.

**قوله:** "ثُمَّ نَسِيَهَا"

**د قرآن دهيرولو مطلب:** يعنى الله تعالى يوسړى ته دَ قرآن عظيم دولت وركوى اوهغه قرآن حفظ كړو يائى دَ هغې څه حصه ياده كړه بيا دغه سړى دَ دې عظيم دولت ناقدرى اوكړه او غفلت كولوسره دا هيركړو نودا ډيره لويه گناه ده. دَ حديث دَ ظاهر نه معلوميږى چه دَ قرآن كريم دَ يادولونه پس هيرشو او اوس ئى په ياد سره نه شي وئيلې. بعضې علماؤ دَدې گناه تعلق په دې صورت كښې خودلې دې چه كله سړې قرآن داسې هيركړى چه په مصحف كښې كتلوسره ئى هم نه شي وئيلې.

**۷۲۱—جماتولو ته په تياره كښې د تلو فضيلت**

۷۲۱—()[۳۱] [۱] وَعَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] (بَشِّرِ الْمَشَّائِينَ فِي الظُّلَمِ إِلَى الْمَسَاجِدِ [۳] بِالنُّورِ التَّامِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ)، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب ما جاء فى المشى إلى الصلاة فى الظلام (رقم-٥٦١) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى فضل العشاء والفجر فى الجماعة (رقم-٢٢٣)

**ترجمه:** ١ او حضرت بريده رضي الله عنه راوي دي چې سرور کائنات صلی الله علیه وسلم وفرمایل ٢ کوم خلق چې په تيارو کښې د مسجدونو طرف ته ځي هغوئ ته دا زيري ورسوئ ٣ چې د قيامت په ورځ به د دې په سبب هغوئ ته کامله رڼا نصيب کيږي. (ترمذي، ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْمَشَّائِينَ: د مَشَّاءِ جمع ده. وَهُوَكَثِيرُالْمَشْيِ: ډير ګرځيدلو ته وائی. ② الظُّلَمِ: د ظلمة جمع ده، تياره، ③ النُّورِالتَّامِّ: کامل نُور (رڼا).

٧٢٢—()[٠] ١ وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَأَنَسٍ.

**ترجمه:** ١ او ابن ماجه د دې حديث روايت د حضرت سهل بن سعد او انس رضي الله عنهما نه هم کړې دې.

**تسهيلات:**

**قوله: بَشِّرِ الْمَشَّائِينَ فِي الظُّلَمِ**

**په تياره کښې جمات ته د تلو فضيلت:** دا د مشاء جمع ده. دشپې په وخت کښې په تياره کښې چې کوم خلق مونځ دپاره ځی هغوئ دپاره دا مستعمل دې. يعنی کوم خلق چې شپې مونځ دپاره ځی نو د شپې تياره هغوئ لره مانع نه ده .ځينې حضرات وائی چې د شپې په وخت کښې مونځ دپاره تلل او ځان سره څه رڼا اخستل چې د آفتونو او نقصان نه بچ شی. نو ددې اجر به په آخرت کښې ملاويږی دا نور خاص مؤمنانو دپاره دې .

لقوله تعالی: نورهم يسعی بين ايديهم وبايمانهم :

**په پل صراط د مسلمانانو سره د رڼا بقا:** حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چې کله په پل صراط باندې د منافقانو رڼا ختمه شی نو مؤمنان بهٔ وائی ((رَبَّنَا أَتْمِمْ لَنَا نُورَنَا وَاغْفِرْ لَنَا))

**٧٢٣—جمات سره تعلق ساتل د ايمان نښه**

٧٢٣—()[٣٢] ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢ ((إِذَا رَأَيْتُمُ الرَّجُلَ يَتَعَاهَدُ الْمَسْجِدَ، فَاشْهَدُوا لَهُ بِالْإِيمَانِ. ٣ فَإِنَّ اللَّهَ يَقُولُ: ﴿إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾ [التوبة: ١٨])). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ٢ کله چې مو يو کس د مسجد خدمت کونکي آبادونکي ووينئ نو تاسو د هغه د ايمان ګواهي ورکړئ ٣ ځکه چې د الله تعالی جل جلاله ارشاد دي إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

(١) اخرجه ابن ماجة كتاب المساجد والجماعات ،باب المشى إلى الصلاة(رقم-٧٨٠) و عن انس اخرجه كتاب المساجد والجماعات ،باب المشى إلى الصلاة(رقم-٧٨١)

(٢) اخرجه الترمذی كتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى حرمة الصلاة (رقم-٢٦١٧)وابن ماجة كتاب المساجد والجماعات باب لزوم المساجد وانتظار الصلاة (رقم-٨٠٢)

د الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ مسجدونه هغه سړي آباد وي چا چې په الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ او د قيامت په ورځ ايمان راوړي وي. (ترمذي، ابن ماجه، ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① يَتَعَاهَدُ: أي: يَخْدِمُهُ: تعاهد دَ باب تفاعل نه د خدمت او نگرانۍ په معنی کښې دي.
② يَعْمُرُ: آبادوی جماتونه (يعنی تعمير او انتظام ئې کوی يا ئې په ذکر اوعبادت او درس وغيره سره آباد ساتی).

**تسهيلات:**

**قوله: "يَتَعَاهَدُ الْمَسْجِدَ"**

**د تعاهد المسجد نه مراد:** مطلب دا دې چه کله تاسو څوك سړې اووينئ چه هغه دَ الله تعالی دَ کورجمات نگرانی او خيال ساتی دَهغې حفاظت کوی دَهغې دَمرمت خيال ساتی دَهغې دَ صفائی اوخوشبوئی خيال ساتی په هغې کښې دَ رڼړا انتظام کوی په هغې کښې جارو وهی په هغې کښې کينی او عبادت کوی. دَ الله تعالی په ذکرکښې مشغول وی نوتاسو گواهی ورکړئی چه دغه سړې مؤمن اودَ ايمان والا دې اودَ الله تعالی اودَ هغه دَ رسول ﷺ تابعدار او فرمانبردار دې. ځکه چه دَ قرآن پاك هم دغه گواهی ده دَدې برعکس چه کوم سړې جمات سره تعلق نه ساتی دَهغې طرف ته گوری نه نه مونځ کوی نودَ هغه دَ مؤمن کيدو گواهی نه شی ورکيدې.

**۷۲۴-په جماتونوکښې د مانځه دا انتظار ثواب**

۷۲۴-()[۳۳] ①«وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ مَظْعُونٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! ② أَئْذَنْ لَنَا فِي الْاِخْتِصَاءِ؟ ③ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (لَيْسَ مِنَّا مَنْ خَصَى وَلَا اخْتَصَى، ④ إِنَّ خِصَاءَ أُمَّتِي الصِّيَامُ)، ⑤ فَقَالَ: ائْذَنْ لَنَا فِي السِّيَاحَةِ،

**ترجمه:** ① او د حضرت عثمان ابن مظعون رضی الله عنه په باره کې روايت دي چه هغه عرض وکړو يا رسول الله ﷺ ② ماته د خصي (نامرد) کيدو اجازت راکړه [چې ماته په زنا کې د مبتلا کيدو انديشه پاتې نشي] ③ حضور ﷺ ورته وفرمايل هغه سړي زمونږ څخه نه دي (يعني زمونږ د سنت د لاري څخه لرې شوې دي) چې څوك خصي کړي يا خپله خصي شی ④ بلکه زما امت د پاره خصي کيدل روژه نيول دي (ځکه چې روژه نيولو سره شهوت ځي) ⑤ حضرت عثمان رضی الله عنه عرض وکړو بيا ما ته د سير وسياحت اجازت راکړه

① فَقَالَ: (إِنَّ سِيَاحَةَ أُمَّتِي الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ)، ② فَقَالَ: ائْذَنْ لَنَا فِي التَّرَهُّبِ، ③ فَقَالَ: (إِنَّ تَرَهُّبَ أُمَّتِي الْجُلُوسُ فِي الْمَسَاجِدِ انْتِظَارَ الصَّلَاةِ)»، رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** ① حضور ﷺ ورته وفرمايل زما د امت سياحت دا دي چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لار کې

[1]) رواه في شرح السنة

جهاد وکړي شی، هغه بیا عرض وکړو ښه نو ما ته د راهب جوړیدو اجازت راکړئ حضور ﷺ ورته وفرمایل زما د امت راهب جوړیدل دا دي چې په مسجدنو کې د لمونځونو په انتظار کې کینې. (شرح السنة)

**حل اللغات**: ① الإِخْتِصَاءِ: اختصاء نزع الخصيتين یعنی خپل ځان دَخصی کولو په معنی کښې دی. ② خَصَى: أَيْ: سَلَّ خُصْيَةَ غَيْرِهِ: چه بل څوک خصی کړی هګۍ ورله اوټکوی یا ئې ترې اوباسی. ③ اخْتَصَى: چه خپل ځان خصی کړی. ④ خِصَاءً: خصی کیدل. ⑤ السِّيَاحَةِ: مُفَارَقَةُ الْأَمْصَارِ، وَالذَّهَابُ فِي الْأَرْضِ: یوښار نه بل ښار ته تلل او په ملکونو کښې ګرځیدو ته سیاحت وائی. ⑥ التَّرَهُّبِ: په معنی د ویرې او خوف کښې دی، دنیاوی تعلقاتو نه ځان ډډې ته کول او په ګوټ کښې کیناستلو ته رهبانیت وائی.

**تسهیلات:**

**د راوي مختصر تعارف:** حضرت عثمان بن مظعون ﷺ جلیل القدر صحابی دې په مکه مکرمه کښې اسلام قبلونکو نه څوارلسم نمبریاندې مسلمان سړې دې حبشه ته ئې هجرت کړې او بیائې دَ مدینې هجرت اوکړو. دَحضورپاك هغوی سره ډَېره مینه وه. دَ مهاجرینو نه رومبې مسلمان دې دَ چا چه په مدینه منوره کښې په کال ۲ هجری کښې انتقال شوې. په جنت البقیع کښې دَتولونه رومبې هم دَهغوی تدفین شوې دَهغوی دَ انتقال نه پس حضورپاك دَهغوی تندې ښکل کړو اودَ حضورپاك اوښکې مبارکې دَهغوی په مخ باندې پریوتلې دَهغوی په قبرباندې یو لوئی کاڼړې حضورپاك پخپله دَ نښانې په توګه راوړو وئی لګولو او وئی فرمائیل زما خاندان والابه ده سره خښه وئی. "فرضی الله عنه وعن جمیع الصحابة"

**قوله: فِي الإِخْتِصَاءِ؟:**

**نفسانی خواهشات اودهغې علاج:** دَانسانی شهوت مرکز خصیتین دی. کله چه داختم کړې شی نودَ شهوتونو او خواهشاتو جرړه کټ شی دَدَغه صحابی هم دامطلب وو. چه هغه داسې طریقې اختیارکړی په کوم سره چه دَ دنیاوی خوندونو اونفسانی خواهشاتو نه جداشی اودَخپل رب په عبادت او خوشحالولوکښې مشغول شی. په دې وجه دَ ټولونه اول هغه دَ حضورپاك نه اجازت اوغوښتلو چه هغه دَ خپل سړی کیدوطاقت بالکل ختمول غواړی. رسول الله ﷺ هغه دَدې غیرفطری فعل کولونه منع کړو اودَهغه دَخطراتو او نفسانی خواهشاتوئی آسان علاج اوخودلو. هغه داچه یا ته په کثرت سره روژې ساته ځکه چه روژه شهوت قابوکوی اوشیطانی وسوسې او خواهشات لرې کوی اودَالله تعالی سره دَ تعلق ښه جذبات راپیداکوی.

**قوله: لَيْسَ مِنَّا مَنْ خَصَى:**

**د لیس منا په تاویل کښې دوه اقوال:** ① دَ رسول الله ﷺ دَ فرمان مطلب دادې چه داسې

سړي د دې خاص فعل په ارتکاب کښې دَمسلمانانو په طریقه نه دې. دَ حضوراکرم ﷺ په طریقه نه دې دَدې مطلب دانه دې چه هغه دَاسلام نه خارج شو

② دا کلام اسلوب دَحکیم په توګه باندې دې چه کله حضورپاك فرمائیلی چه داسې سړې زمونږ نه نه دې نوهغه به دومره متاثر شي چه کله به هم دې عمل اوفعل ته نیزدې نه شي.

**دانسانانو د خصی کولو حرمت:** دَ بنی آدم اولاد کـه هغـه ورو کـې وی او کـه لـوئی خصی جوړیدل حرام دی. دَ انسانانو نـه عـلاوه دَ خناورو متعلـق علامـه قرطبی رحمه الله فرمائی "انه ممنوع في الحيوان الالمنفعة حاصلة في ذالك كتطيب اللحم اوقطع ضررعنه" علامه نووی شافعی رحمه الله فرمائی چه حیوان غیرماکول اللحم خصی کول مطلقًا حرام دی اوکوم حیـوان چه مـاکول اللحـم دی په هغې کښې واړه خصی کول جائزدی او لوئی جائزنه دی. (فتح الملهم)

**دحیواناتو د خصی کولو مقید اجازت:** ائمه احناف حیـوان خصی جـوړول جـائز لیکلی دی لیکن نور تفصیلات نشته. حضرت مولانا رشیداحمد ګنګوهی رحمه الله فتاویٰ رشیدیه ص ۴۹۱ کښې لیکی خصی کول دَټولو بهائم دَ نفع دَ پاره دَ ضرر لرې کولو دَ وجې نه صحیح دی بغیرد سړی نه چه حرام دی.

**قوله:** اِئْذَنْ لَنَا فِي السِّيَاحَةِ:

**د امت محمدی سیاحت:** حضرت عثمان بن مظعون رضی الله عنه دَ رسول الله ﷺ نه دَ سیل اوتفریح اجـازت اوغوښـتلو دې دَپـاره چـه پـه دې مـشغله سـره دَنفـسانی خواهـشاتو کمـې راشـی اودَمقامی علاقونه لرېوالې راشی.

دَدې په جواب کښې حضورپاك اوفرمائیل چه زمادَامت سیل او تفریح او سیاحت جهادفی سبیل الله عمل دې ځکه چه په دې کښې مختلف ملکونوکښې دَ جهاد دَپاره تللوکښې سیل تفریح او سیاحت مقصد هم په اعلی پیمانه باندې پوره کېږی اوبې مقصده سفرهم نه بلکه اوچت عبادت دې او اعلی کلمة الله او دَ اشاعة الدین دَ ټولونه لویه ذریعه هم ده.

**جهاد په صحت کښې کردار:** په یوحدیث کښې راغلی دی "اغزوا تصحوا" تاسو جهاد کوئی صـحت منـد بـه اوسـېږئی. دا هـم دې طـرف تـه اشـاره ده چـه غرونـو درو او وادیـانو او صحراګانوکښې صحت مند آب وهوا او په بدنی ورزش سره کامل صحت حاصلیږی.

**قوله:** إِنَّ تَرَهُّبَ أُمَّتِيَ الْجُلُوسُ فِي الْمَسَاجِدِ انْتِظَارِ الصَّلَاةِ:

**په اسلام کښې د رهبانیت ممانعت:** اسلام یو همه ګیرمذهب دې هغه خلوت او جلوت دواړو ته حق ورکوی ځکه چه دا دین فطرت دې په دې کښې رهبانیت نشته. دلته دَ مانځه په انتظارکښې کیناستل رهبانیت ګرځولې شوی دی او په یوبل حدیث کښې جهادفی سبیل الله ته دَدې امت رهبانیت ګرځولې شوې دې.

## ۷۲۵ـ د فرشتو خپل مینځ کښې بحث مباحثه

۷۲۵ـ (۱) [۳۳] ۱ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَائِشٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ: ۲ (رَأَيْتُ رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ فِي أَحْسَنِ صُورَةٍ، ۳ قَالَ: فِيمَ يَخْتَصِمُ الْمَلَأُ الْأَعْلَى؟ قُلْتُ: أَنْتَ أَعْلَمُ) ۴ قَالَ: فَوَضَعَ كَفَّهُ بَيْنَ كَتِفَيَّ فَوَجَدْتُ بَرْدَهَا بَيْنَ ثَدْيَيَّ، ۵ فَعَلِمْتُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ،

**ترجمه:** ۱ او حضرت عبدالرحمٰن بن عائش ﷛ راوي دي چې سرور کائنات ﷺ وفرمایل ۲ ما خپل پروردګار بزرګ وبرتر (په خوب کې) په ډیر ښه صورت کې ولیدلو ۳ الله تعالی ﷻ زما ځخه پوښتنه وکړه چه مقربي فرشتي په کومه معامله کې بحث کوي؟ ما عرض وکړو پروردګاره ته بهتر پوهیږې ۴ حضور ﷺ فرمایي دي اوریدو سره الله تعالی ﷻ زما د دواړو اوږو په مینځ کې خپل لاس کینبودلو چې د هغې یخ والي ماته په خپله سینه باندې محسوس شو ۵ (او د هغې په وجه) ما د زمکې او آسمان ټول څیزونه وپیژندل

**حل اللغات:** ① يَخْتَصِمُ: أَيْ: يَبْحَثُ: جګړه کوی، بحث مباحثه کوی. ② الْمَلَأُ: أَيِ: الْأَشْرَافُ: مقرّب، عزت مند، ③ الْأَعْلَى: يَعْنِي: الْمَلَائِكَةَ الْمُقَرَّبِينَ: مقرّبي فرشتي، سرداراني فرشتي، ④ بَرْدَهَا: أَيْ: رَاحَةَ الْكَفِّ: دلاس یخ والی (یعنی د هغې نرم والي او راحت والاکیدل).

۱ وَتَلَا: ﴿وَكَذَٰلِكَ نُرِي إِبْرَاهِيمَ مَلَكُوتَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۲ وَلِيَكُونَ مِنَ الْمُوقِنِينَ﴾ [الأنعام: ۷۵] » رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ مُرْسَلًا، وَلِلتِّرْمِذِيِّ نَحْوُهُ عَنْهُ.

**ترجمه:** ۱ بیا حضور ﷺ دا آیت اولوستلو وَكَذَٰلِكَ نُرِي إِبْرَاهِيمَ مَلَكُوتَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلِيَكُونَ مِنَ الْمُوقِنِينَ او د غسې مونږ ابراهیم ﷤ ته د زمکې او آسمانونو بادشاهي وښودله ۲ چې هغه د پر یقین کونکو خلقو کې شامل شی (دارمي مرسلاً)
او ترمذي هم دا روایت د بعضې الفاظو د اختلاف سره د عبدالرحمٰن ابن عائشه ﷛

**حل اللغات:** ⑤ مَلَكُوتَ: بادشاهی او عظمت (یعنی د الله عظمت دهغه الوهیت او ربوبیت مراد دي). ⑥ الْمُوقِنِينَ: د اسم فاعل صیغه ده، یقین لرونکی.

**تسهیلات: قوله:** رَأَيْتُ رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ:

**په رؤیت کښې دوه احتمالات:** ① ملاعلي قاري ﷫ فرمائی که چرې دا کتل دَ خوب واقعه ده چه حضورپاك الله تعالی په خوب کښې اولیدلو نو په دې کښې هیڅ اشکال نشته اودَ طبراني یوروایت په دې باندې دلالت کوی او ښکاره هم دغه ده چه دادَ خوب واقعه ده.
② که چرې دا دَ بیدارئی واقعه ده لکه چه دَمسنداحمد دَ یوروایت نه معلومیږی نوبیا به

(۱) اخرجه الدارمی باب فی رؤیة الرب تعالی فی النوم (رقم-)

په دې کښې تاویل کیږی او هغه داسې چه مونږ د حدیث په ظاهری الفاظو باندې ایمان لرو او ذدې په حقیقی ادراك کښې نه پرېوځو الله تعالی چه خپل رسول ﷺ ته څه ښائی مونږ په صرف دا وایو چه کوم دَ الله تعالی شان سره لائق وی مونږ په هغې باندې ایمان راوړو او کیفیات ته نه ځو لکه څنګه چه امام مالك رحمه الله دَ استواء عرش متعلق فرمائیلی "الاستواء معلوم والکیفیة مجهولة والسوال عنها بدعة".

**قوله: فِي أَحْسَنِ صُورَةٍ:**

**د احسن صورة تاویل:** دَدې متعلق هم دَسلف صالحین رائې خپله کول دی یعنی "مایلیق بشانه" دا بهتر ده او که چرې "احسن صورة رأیت" فاعل نه حال وی نو بیا دَ هیڅ تاویل ضرورت نشته یعنی حضورپاك اوفرمائیل چه ما خپل رب اولیدلو او زه په داسې حال کښې ووم چه ښکلې منظر ښکلې طبع او بهترین حالت او صورت کښې ووم.

**قوله: فَوَضَعَ كَفَّهُ:**

**د وضع کف تاویل:** په دې لفظ کښې هم بغیر دَ تاویل نه داسې وئیلی شی "مایلیق بشانه" یعنی چه دَ الله تعالی دَ شان سره لائق وی هغه شان الله تعالی دَ رسول الله ﷺ دَ اوږو په مینځ لاس کیخودو چه په دې سره دَ ملا اعلی انکشاف تام راشی. چنانچه دَ فیض ربانی یخوالی حضورپاك په خپل زړه مبارك او سینه منور کښې محسوس کړواو انکشاف تام اوشو.

**قوله: فَعَلِمْتُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ:**

**د حدیث نه غلط استدلال:** هم دَدغه فیض ربانی دَ انکشاف تام دَ وجې نه ما دَ زمکې او آسمان ټول څیزونه اوپیژندل اودَ عالم بالا دَبحث جواب مې ورکړو. داخبره یاد ساتل ضروری دی چه دا انکشاف تام په دائمی توګه باندې حاصل نه شو دَ کوم نه چه دا مسئله راوویستې شی چه حضورپاك ته دَماکان ومایکون دَ ذرې ذرې علم حاصل شو داسې عقیده لرلوسره به ډیر زیات مشکلات پیداشی او دَ قرآن کریم په سوونو آیاتونه به منسوخ کرخولی شی په کوم کښې چه په واضح توګه دَ علم غیب دَنفی بیان دې دَ الله تعالی فرمان دې ﴿ قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ ﴾ [نمل الایة: ۶۵] ﴿ وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوءُ ﴾ [اعراف الایة: ۱۸۸]

**د حدیث په سند بانډې کلام:** بل دې حدیث ته محدثین حضرات مرسل وئیلې دي څکه چه عبدالرحمن بن عائش صحابی نه دې اودا روایت دَ حضورپاك نه نقل کوی اودَ ده نه صرف هم دغه یوروایت نقل دې. "البخاری عبدالرحمن حضرمی له حدیث واحد الا انهم یضطربون فیه" (کذافی التعلیق الصبیح) "وقال البیهقی قدروی بطرق کلها ضعاف (کذافی التعلیق الصبیح) دا روایت په دې سند سره هم دا شان دې لیکن هم دغه روایت حضرت معاذ رضی الله عنه په ډیر تفصیل سره نقل کړې دې

کوم چه امام احمد رحمه الله په مسند احمد کښې نقل کړې دې. بل امام ترمذی رحمه الله هم نقل کړې دې او وئیلی دی چه دا حدیث حسن صحیح دې. بیائې اوفرمائیل چه ماد امام بخاری رحمه الله نه دَدې حدیث باره کښې پوښتنه اوکړه نو هغوی اوفرمائیل چه دا حدیث صحیح دې (کذا فی زجاجة المصابیح ج۱ ص ۲۱۲) خلاصه دا چه دا حدیث صحیح دې مګر دانکشاف یووختی وو دائمی نه وو دې دپاره چه په قرآن او حدیث کښې تعارض رانه شی.

**قوله:** وَكَذٰلِكَ نُرِيْ إِبْرَاهِيْمَ مَلَكُوْتَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ:

**په ضمیر کښې دوه احتمالات او دهر احتمال مطلب:** ① دَدې فعل په ضمیر فاعل کښې دوه احتمال دی که چرې ضمیر دَ لفظ الله طرف ته راجع دې نو دَ دلیل په توګه الله تعالی اوخودل لکه څنګه چه مونږ حضرت ابراهیم علیه السلام ته دَزمکې اوآسمان دَ بادشاهت مشاهده اوکړه دغه شان اې محمد ﷺ تا ته به هم دَ آسمانی عجائبات او احکامات مشاهده کوو.
② که چرې ضمیر فاعل دَ حضور اکرم طرف ته راګرځی نو حضور پاك دَ استشهاد په توګه دا آیت تلاوت کړې. دَعلامه طیبی رحمه الله مطابق دا احتمال ډیر راجح دې.

**قوله:** وَلِيَكُوْنَ مِنَ الْمُوْقِنِيْنَ:

**دمذکوره جملې مفهوم:** دَدې جمله معطوف علیه محذوف دې. دَ اصل عبارت ترجمه داسې ده چه مونږ حضرت ابراهیم علیه السلام ته دَعالم ربوبیت والوهیت خودلې وې دې دپاره چه هغه ددې په ذریعه زمونږ دَ ذات دَ وجود باره کښې دلیل اونیولې شی او دَ یقین کونکونه شی.

**پیغمبران په خوب کښې دلیدل:** انبیاء کرام علیهم السلام په خوب کښې لیدل دَ احادیثونه ثابت دی او دَدې نه انکار کول صرف دَحدیث نه انکار کول دی.

**د الله تعالی په خوب کښې لیدل:** البته دَ الله تعالی په خوب کښې لیدلو متعلق دَ علماؤ وینا ده چه دا صرف دَ خیال او تسلئی حصول وی ځکه چه الله تعالی چالیدلې نه دې چه هغه په خوب کښې اووینی. دَ انبیاء کرامو دَحلیه ذکر په احادیثو کښې موجود دې نو خوب هم په حقیقت باندې محمول دې،

الله تعالی په خوب کښې لیدلو متعلق علامه نووی رحمه الله په شرح مسلم کښې داسې لیکلی دی. "قال القاضی واتفق العلماء علی جواز رؤیة الله تعالی فی المنام وصحتها" قاضی عیاض مالکی رحمه الله فرمائی چه دَټولو علماؤ په دې باندې اتفاق دې چه په خوب کښې الله تعالی لیدل جائز او صحیح دی. "وقال ابن الباقلانی رؤیة الله تعالی فی المنام خواطر فی القلب وهی دلالات للرائی علی امور کان اویکون کسائر المرئیات والله اعلم" (حاشیه نووی بر مسلم ج۲ ص۲۴۳) یعنی علامه ابن الباقلانی رحمه الله فرمائی چه الله تعالی په خوب کښې لیدل دَ قلبی تخلیات نه یو تخیل او خیال دې په کوم سره چه لیدونکی ته تیرشوی یا راتلونکی امور طرف ته اشاره ملاویږی لکه چه په باقی خوبونو کښې کیږی.

## ۷۲۶- گناهونو لره معاف کونکي اعمال

۷۲۶-(۱)[۰] ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ، وَزَادَ فِيهِ: ۲ (قَالَ: «يَا مُحَمَّدُ! هَلْ تَدْرِي فِيمَ يَخْتَصِمُ الْمَلَأُ الْأَعْلَى؟ ۳ قُلْتُ: نَعَمْ، فِي الْكَفَّارَاتِ)، ۴ وَالْكَفَّارَاتُ: الْمُكْثُ فِي الْمَسَاجِدِ بَعْدَ الصَّلَوَاتِ، ۵ وَالْمَشْيُ عَلَى الْأَقْدَامِ إِلَى الْجَمَاعَاتِ، ۶ وَإِبْلَاغُ الْوَضُوءِ فِي الْمَكَارِهِ ۷ فَمَنْ فَعَلَ ذٰلِكَ عَاشَ بِخَيْرٍ، وَمَاتَ بِخَيْرٍ، ۸ وَكَانَ مِنْ خَطِيئَتِهِ كَيَوْمِ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ،

ترجمه: ۱ ابن عباس رضي الله عنهما او معاذ ابن جبل رضي الله عنه څخه نقل کړي دي او په هغې کې نې دا الفاظ زائد نقل کړي دي ۲ چې الله تعالی جل جلاله وفرمایل [یعنی حضور ﷺ ته د زمکې او آسمانونو د علم ورکولو څخه وروسته خپني پوښتنه وکړه] اي محمد (ﷺ) تاته معلومه ده چې مقربین فرشتي په څه معامله کې بحث کوي؟ ۳ حضور ﷺ فرمایي چه ما عرض وکړو هو زه پوهیږم د کفارات (یعني د ګناهونو ختمونکو څیزونو) په باره کې بحث کوي ۴ او هغه کفارات دا دي چې د لمونځونو څخه وروسته په مسجدونو کې (د دویم وخت د لمانځه په انتظار کې یا ذکر و تسبیحاتو د پاره) کیني ۵ او په جماعت سره د لمانځه کولو د پاره پیاده لاړ شي ۶ او د سختي په وخت (مثلًا بیمارۍ یا په یخنۍ کې په اعضاو داودس باندي) د اودس اوبه په ښه شان ورسوي ۷ نو چا چې دا وکړل (یعني مذکوره اعمال یې وکړل) هغه به په خیر ژوندي وي او په خیر به مري ۸ او د ګناهونو څخه به داسې پاک شي لکه چې د هغه مور هغه نن راوړي دي

۱ وَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ! إِذَا صَلَّيْتَ فَقُلْ: ۲ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ، فِعْلَ الْخَيْرَاتِ، وَتَرْكَ الْمُنْكَرَاتِ، وَحُبَّ الْمَسَاكِينِ ۳ فَإِذَا أَرَدْتَ بِعِبَادِكَ فِتْنَةً فَاقْبِضْنِي إِلَيْكَ غَيْرَ مَفْتُونٍ) ۴ قَالَ: وَالدَّرَجَاتُ: ۵ إِفْشَاءُ السَّلَامِ، وَإِطْعَامُ الطَّعَامِ، ۶ وَالصَّلَاةُ بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ» ۷ وَلَفْظُ هٰذَا الْحَدِيثِ كَمَا فِي الْمَصَابِيحِ لَمْ أَجِدْهُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ إِلَّا فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

ترجمه: ۱ او الله تعالی جل جلاله وفرمایل اي محمد (ﷺ) هر کله چې د لمانځه څخه فارغ شې نو دا دعا کوه: ۲ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَتَرْكَ الْمُنْكَرَاتِ وَحُبَّ الْمَسَاكِينِ فَإِذَا أَرَدْتَ بِعِبَادِكَ فِتْنَةً فَاقْبِضْنِي إِلَيْكَ غَيْرَ مَفْتُونٍ) الله زه ستا څخه سوال کوم د نیکیو کولو او د بدو د پریښودلو او د مسکینانو د دوستۍ ۳ او هر کله چې ته په بنده ګانو کې د ګمراهۍ اچولو (یا هغوي ته د سزا ورکولو) اراده وکړي نو ما په فتنه کښې اخته کیدو څخه بغیر وفات کړې. ۴ او الله تعالی جل جلاله [د حضور ﷺ په تعلیم کې د زیاتي د پاره] فرمایي [یا خپله حضور ﷺ فرمایي] چې درجات [یعني هغه اعمال چې که هغې سره د بنده درجات د الله په دربار کې بلندیږي] دا دي ۵ چې هر مسلمان خواه هغه اشنا وي او که نا اشنا هغه ته سلام

(۱) اخرجه الترمذی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة ص (رقم-۳۲۳۵)

اوکړې شي (د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لار کي) په مسکینانو باندې طعام وخوړلي شي[۶] او د شپې هغه وخت چې خلق اوده وي مونځ وکړي شي[۷] (صاحب مشکوة) فرمايي چې ما دا حديث د دې الفاظو سره څنګه چې په مصابيح کې د عبدالرحمن څخه منقول دي سوا د شرح السنة څخه بل يو کتاب کې نه دي ليدلي.

**حل اللغات:** ① الْكَفَّارَاتِ:لِأَنَّهَا تُكَفِّرُ مَا قَبْلَهَا مِنَ الذُّنُوبِ: يعنى دغه اعمالو ته ئې كفارات ځكه اووئيل چه دا هم مخكينى، شوى ګناهونه رجوى. ② الْمُكْثُ: أَيْ: اللُّبْثُ: وخت تيرول يعنى ايساريدل او انتظاركول، ③ الْمَشْيُ عَلَى الْأَقْدَامِ: پيدل تلل. ④ إِبْلَاغُ: په ښه طريقې سره (اودس) كول. ⑤ الْمَكَارِهِ: أَيْ: فِي شِدَّةِ الْبَرْدِ: مكاره مكروه او ناخوښه ته وائى دلته ترې مراد يخنې يا بيمارئ كښې اوبو سره اودس كول دى چه دا په انسان بد لګى. ⑥ عَاشَ: ژوندې به اوسى يعنى ژوند به تيروى. ⑦ بِخَيْرٍ: د خير نه مراد د الله تعالى د تابعدارئ ژوند، دنيكو اعمالو توفيق ملاويدل او حلاله روزى وغيره ملاويدل او په خپل قسمت باندې اطمينان او خوشحاليدل دى. ⑧ فَاقْبِضْنِي: أَيْ: تَوَفَّنِي: دقبض كولو نه مراد وفات كول دى. ⑨ غَيْرَ مَفْتُونٍ: أَيْ: غَيْرَ ضَالٍّ: چه د ګمراهئ د فتنې نه بچ يم.

**۷۲۷ – درې قسمه خلق د الله په ذمه وارئ كښې**

٧٢٧ – ()[٣٥] [۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] ((«ثَلَاثَةٌ كُلُّهُمْ ضَامِنٌ عَلَى اللَّهِ: [۳] رَجُلٌ خَرَجَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ، فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللَّهِ [۴] حَتَّى يَتَوَفَّاهُ فَيُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ، [۵] أَوْ يَرُدَّهُ بِمَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ وَغَنِيمَةٍ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو امامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دي چې سرور كائنات ﷺ وفرمايل [۲] درې سړي داسې دي چې د هغوي الله تعالى جَلَّ جَلَالُهُ (د دې خبرې د پاره) ذمه واره دي (چې هغه د دنيا او آخرت د آفاتو اومصيبتونو څخه محفوظ وساتي) [۳] يو خو هغه سړي چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لار كې د جهاد د پاره ووځي نو هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په ذمه واري كې دي [۴] چې يا خو به مرګ (شهادت) وركولو سره جنت ته يي ورسوي [۵] يا هغه ته ثواب او مال غنيمت وركولو سره كور ته يي ورسوي (نو اولني او دويم صورت يعنى د شهادت او په ثواب كي خو هغه ته د دين سعادت حاصليږي او دريم صورت يعنى په مال غنيمت كې د دنيا سعادت او خير حاصليږي)

**حل اللغات:** ① ضَامِنٌ: أَيْ: حِفْظٍ وَرِعَايَةٍ: حفاظت كونكي او رعايت كونكي. ② نَالَ: أَيْ: مَعَ مَا وَجَدَهُ: يعنى دهغه هرڅه سره كوم ئې چه بياموندل (چه هغه ثواب اومال غنيمت دي).

[۱] وَرَجُلٌ رَاحَ إِلَى الْمَسْجِدِ، فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللَّهِ [۲] وَرَجُلٌ دَخَلَ بَيْتَهُ بِسَلَامٍ، فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللَّهِ»))، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

[1] اخرجه ابوداود كتاب الجهاد ، باب فضل الغزو فى البحر (رقم-۲۴۹۴)

**ترجمه:** [۱] او دويم هغه سړي دي چې (د لمانځه د پاره) مسجد ته لاړ شي نو الله جل جلاله د هغه هم ضامن دي [چې د عبادت د پاره د هغه کوشش او د هغه ثواب ضائع نه کړي] [۲] او دريم هغه سړي دي چې په خپل کور کې سلام کولو سره داخل شي نو هغه هم د الله تعالى جل جلاله په ذمه واري کې دي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ⑦رَاحَ: أَيْ: مَشَى: راح د تلو په معنى كښې دې.

**تسهيلات: قوله:** ضَامِنٌ عَلَى اللهِ:

**په ضامن کښې دوه احتمالات:**

① شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې ليکی چه "ضامن" دَمضمون په معنى کښې دې لکه چه دا فق دَمدفوق په معنى کښې دې او عاصم دَمعصوم په معنى کښې دې او دَ مضمون په مفهوم کښې دَ وجوب او حفاظت معنى پرته ده. مطلب دا شوچه په دې دريواړو کښې دَ هريو دَ حفاظت ذمه واری الله تعالى دَخپلې رښتوني وعدې لاندې په خپل ځان باندې واجب کړې ده چه دا دريواړه به دَ ضائع کيدو او ضرر اونقصان نه بچ کوی.

② شيخ رحمه الله دا هم وائی چه دَ ضامن صيغه دَ نسبت دَپاره هم کيدې شي يعنى "ذوضمان" لکه دَ لابن او تامر صيغې ذولبن او ذوتمر په معنى کښې دی مطلب هم هغه دې کوم چه پورته بيان شوی دی.

**دالله تعالى د درې قسمه خلقو ذمه واری احستل:** په دې حديث کښې درې قسم خلق مراددی درې کسان مراد نه دی بيادَ دريواړو قسمونو نه رومبی قسم ذمه واری په تفصيل سره بيان کړې شو چه هغه خلق شهيدان شی الله تعالى به هغوی په جنت کښې داخل کړی اويابه هغوی غازيان جوړولوسره مال ا ومتاع او اجر اوثواب سره واپس کړی. دَ دويم او دريم قسم خلقو تفصيل په دې وجه بيان نه کړې شو چه دَهغوی حالت اوفضيلت واضح او ښکاره وو اوهغه داچه دَهغوی دَحيثيت مطابق به هغوی ته ثواب ورکړې کيدې شي.

**قوله:** دَخَلَ بَيْتَهُ بِسَلَامٍ:

**کورته په سلام سره د داخليدو دوه مطلبه:** ① کله چه هغه سړې په کورکښې داخل شی نوکور والاته دَ سنت مطابق سلام اوکړی دَدې په بدله کښې به الله تعالى دَهغوی اودَهغوی دَ کوروالو حفاظت اوکړی او په هغوی باندې به برکتونه نازل کړی.

② کله چه هغه سړې کور کښې داخل شی نودَخلقو صحبت اودَ هغوی تعلق پريخودوسره په سلامتياسره هم په کورکښې پاتې کيدل په خپل ځان باندې لازم کوی اودَ کور نه بهر نه اوځی دې دَپاره چه چاته دَهغه نه څه تکليف اونه رسی. دا مطلب لړ شان لرې معلوميږی په لمعات کښې دواړه مفهوم مذکوردی.

## ۷۲۸ ـ د مانځه د پاره د کورله د وتونکی ثواب د محرم پشان

۷۲۸ ـ (۱) [۳۶] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَنْ خَرَجَ مِنْ بَيْتِهِ مُتَطَهِّرًا إِلَى صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ؛ [۳] فَأَجْرُهُ كَأَجْرِ الْحَاجِّ الْمُحْرِمِ، [۴] وَمَنْ خَرَجَ إِلَى تَسْبِيحِ الضُّحَى لَا يُنْصِبُهُ إِلَّا إِيَّاهُ؛ [۵] فَأَجْرُهُ كَأَجْرِ الْمُعْتَمِرِ، [۶] وَصَلَاةٌ عَلَى إِثْرِ صَلَاةٍ لَا لَغْوَ بَيْنَهُمَا كِتَابٌ فِي عِلِّيِّينَ»)، رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابو امامه رضی الله عنه راوي دي چې سرور کائنات ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې د اودس کولو سره د کورڅخه اووځي او د فرض مونځ اداء کولو د پاره مسجد ته لاړ شی [۳] نو هغه ته دومره ثواب حاصليږي څومره چې احرام تړلو سره حج کونکي ته حاصليږي [۴] او کوم سړي چې د څاښت نفل لمانځه د پاره تکليف پورته کولو سره د کور څخه ووځي (يعني بغير د څه غرض او ريا نه محض د څاښت لمونځ د پاره د مونځ کولو په قصد د کور څخه ووځي) [۵] نو د هغه ثواب د عمره کونکي د ثواب برابر دي [۶] او د (يو) لمانځه څخه وروسته (دويم) مونځ کول او د دې دواړو لمونځونو په درمياني وخت کښې لغو او بې هوده خبري نه کول داسې عمل دي چې په عليين کې ليکل کيږي.
(احمد، ابوداؤد)

**حل اللغات**: ② مُتَطَهِّرًا: په اودس کښې، ⑤ الْمُحْرِمِ: احرام تړونکي يعنی حاجی. ⑥ تَسْبِيحِ الضُّحَى: أَيْ: صَلَاةِ الضُّحَى: دساخت مونځ، تسبيح ذکر او اذکار ته وائی دلته تري دساخت مونځ مراد دي، ځکه چه: وَكُلُّ صَلَاةِ تَطَوُّعٍ تَسْبِيحَةٌ: هر نفل مونځ ته تسبيح وائی. ⑦ لَا يُنْصِبُهُ: دا د نَصِبَ ماخوذ دي، وَهُوَ الْإِتْعَابُ: ستړی والی او تکليف پورته کولو ته وائی. ⑧ الْمُعْتَمِرِ: عمره کونکي، ⑨ إِثْرِ: أَيْ: عَقِبَهُ: روسته، وريسې، ⑩ لَغْوَ: أَيْ: بِكَلَامِ الدُّنْيَا: عبث يعنی دنياوی خبرې، ⑪ عِلِّيِّينَ: وَهُوَ عِلْمُ الدِّيوَانِ الْخَيْرِ: د نيکو ليکلو رجستر دي.

**تسهيلات:**

**قوله: فَأَجْرُهُ كَأَجْرِ الْمُحْرِمِ**

**دمتوضی د ثواب د حاجی د ثواب سره تشبيه**: يعنی يو مسلمان چه په ښه شان سره اودس جوړ کړي او دَ فرض مونځ دَپاره جمات ته لاړشي او فرض کوی نودَه ثواب دومره زيات دې لکه دَحاجی دَ حج کولوثواب چه کيږی او که هم دغه مونځ گذار صرف دَ چاشت دَمونځ دَپاره جمات ته ځی نوده ته دَ يوعمرې برابر ثواب ملاويږی. فرض مونځ مشبه دې اوحج مشبه به دې. دغه شان نفل مونځ دَ عمرې دَ پاره مشبه دې او عمره مشبه به ده لکه چه فرض مونځ دَحج په شان دې او نفل مونځ دَ عمرې په شان دې او طهارت دَاحرام په شان دې.

**د تشبيه په تاويل کښې څلور اقوال**: ① علامه طيبی رحمه الله په خپله شرح کښې د دې يو توجيه

---

[1] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب ما جاء فيفضل المشى إلى الصلاة (رقم-۵۵۸)

دا ذکر کړي ده چې د یو عبادت اصل ثواب وی او یو اضافی ثواب وی تشبیه په اصل ثواب کښې وی په اضافی ثواب کښې نه وی.

② علامه توربشتی رحمه الله فرمائی د دې تشبیه مطلب دادې چه مشبه یعنی د مونځ ثواب چه کله ډیر چندې "مضاعف" یعنی ډبل کیږی نو هغه د حج د ثواب برابر کیږی کوم چه غیر مضاعف وی یعنی ډبل نه وی.

③ علامه توربشتی رحمه الله دویم جواب داورکړې دې چه دا تشبیه په مخصوص څیز کښې ده په عمومی احوال کښې نه ده مطلب دا چه څنګه د کور نه د مانځه د پاره کله مونځ ګذار اوځی نو د کور د واپس کیدو پورې ده ته ثواب ملاویږی. دغه شان چه کله یو حاجی د کور نه اوځی نو واپس د کور راتلو پورې هغه ته ثواب ملاویږی لکه چه دا صرف په امتداد ثواب کښې تشبیه ده مساوات کښې نه ده.

④ شیخ عبدالحق رحمه الله په لمعات کښې فرمائی "هذا من باب الحاق الناقص بالکامل مبالغة فی الترغیب ولیس المراد التسویة من کل الوجوه" یعنی په دې تشبیه کښې مکمل مساوات نشته دې صرف په ترغیب کښې تشبیه ده چه فرض مونځ د حج په شان لوئی عبادت دې.

**قوله:** تَسْبِيحِ الضُّحَى:

**نفلو باندې د تسبیح د اطلاق وجه:** لفظ تسبیح د نوافل د پاره استعمالیږی د دې د تسمیه وجه داده لکه څنګه چه په فرض مونځ کښې تسبیحات د نوافلو په درجه کښې دی دغه شان د مونځ څخه علاوه په نورو مونځونو کښې د نوافل په درجه کښې دی. په دې وجه دا د تسبیح په نوم سره یادکړې شو. "الضحی" د چاشت یعنی ساختی مونځ ته صلوة الضحی وائی د دې فضیلت او جواز یا عدم جواز باندې بحث روستو ان شاء الله راځی

**قوله:** كِتَابٌ فِي عِلِّيِّينَ:

**د علیین په مصداق کښې دوه اقوال:** ① د کراماً کاتبین په خاص دفتر کښې به د دې ثواب لیکلې کیږی.

① علامه توربشتی رحمه الله فرمائی چه د تولونه راجح قول دادې چه علیین د خیراوبرکت د هغه دفتر نوم دې په کوم کښې چه د صالحانو اونیکانو خلقو اعمال درج کیږی.

② علیین د تولو نه د بنکلی جنت نوم دې لکه څنګه چه سجیین د تولونه د خراب دوزخ نوم دې.

③ علیین د اووم آسمان د پاسه د یو مقام نوم دې.

## ۷۲۹—په جماتونو د ریاض الجنة اطلاق

۷۲۹—(۱)[۳۷] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ (إِذَا مَرَرْتُمْ بِرِيَاضِ الْجَنَّةِ فَارْتَعُوا) ۳، قِيلَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! وَمَا رِيَاضُ الْجَنَّةِ؟ قَالَ: (الْمَسَاجِدُ) ۴ قِيلَ وَمَا الرَّتْعُ؟ يَا رَسُولَ اللّٰهِ! قَالَ: ۵ (سُبْحَانَ اللّٰهِ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ، وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَاللّٰهُ أَكْبَرُ»)، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل ۲ هر کله چې تاسو د جنت باغونو سره تیریږي نو هلته میوي خورئ ۳ د حضور ﷺ څخه پوښتنه وشوه یا رسول الله ﷺ په دنیا کښې د جنت باغونه چیرته دي؟ حضور ﷺ وفرمایل مسجدونه (د جنت باغونه دي) ۴ بیا څیني پوښتنه وشوه یا رسول الله ﷺ میوه خوړل څه دي (یعني په هغه کې میوي څنګه او خورو)؟ حضور ﷺ وفرمایل ۵ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ (په مسجدونو کې د دې کلماتو ورد کول میوه خوړل دي) (ترمذي)

**حل اللغات:** ① مَرَرْتُمْ: چه تاسو تیریږئ. ② رِيَاض: روضه باغ ته وائی دې نه مراد جماتونه دی. ③ فَارْتَعُوا: باغونو ته تلل او د خو مقاماتو سیل او تفریح کول او ښکلې میوې دانې حاصلولو او د هغې خوړلو ته رتع وائی.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَا مَرَرْتُمْ بِرِيَاضِ الْجَنَّةِ فَارْتَعُوا:

**جماتونه د جنت حاصلولو ذریعه:** بهرحال په دې حدیث کښې مسلمانانو ته ترغیب ورکولې شی چه جماتونو کښې په کثرت سره د الله تعالی ذکر کوئی. څوك چه په دنیا کښې په جماتونو کښې اوسیږی هغه به قیامت کښې په جنت کښې ځائی حاصلوی. وخت مه ضائع کوئی او ښه فائده حاصله کړئی. ځکه چه لږ ساعت پس به دا موقع د لاس نه اوځی.

## ۷۳۰—جمات ته د تلو مقصد

۷۳۰—(۲)[۳۸] ۱ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ: ۲ («مَنْ أَتَى الْمَسْجِدَ لِشَيْءٍ، فَهُوَ حَظُّهُ»)، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل ۲ کوم سړي چې (د دین یا دنیا) د کوم کار د پاره مسجد ته راشي نو هغه ته به د هغې څخه حصه حاصلیږي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① حَظُّهُ: أَيْ نَصِيبُهُ: حصه.

**تسهیلات: قوله:** فَهُوَ حَظُّهُ:

**دحدیث مفهوم:** یعنی کوم سړی چه د کوم مقصد د پاره جمات ته راځی هغه ته به هم هغه مقصد ملاویږی. که د عباداتو ښه اعمالو او ښه مقاصدو د پاره راغلو نو د هغې ثواب به

---

(۱) اخرجه الترمذی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب (رقم-۳۵۰۹)

(۲) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة باب فیفضل القعود فی المسجد (رقم-۴۷۲)

ورته ملاوېږي اوکه د خان خودلو ګرېږ او غلطو مقاصدو د خوړولواو دنیاوي اغراض د پاره راغلو نو د هغې نقصان به اوچته وي که جمات هرڅومره مقدس ځائي ولې نه وي د چا يو غلط عمل په دې کښې په نيك عمل سره بدليدې نه شي. داحديث لکه چه "انما الاعمال بالنيات" والاحديث د مضمون حصه ده.

**۷۳۱—جمات ته د داخليدو او راوتلو دعا**

٧٣١—(١)[٣٩] ١ وَعَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْحُسَيْنِ، عَنْ جَدَّتِهَا فَاطِمَةَ الْكُبْرَى، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ٢ «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ صَلَّى عَلَى مُحَمَّدٍ وَسَلَّمَ، ٣ وَقَالَ: (رَبِّ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي، وَافْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ)، ٤ وَإِذَا خَرَجَ صَلَّى عَلَى مُحَمَّدٍ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: ٥ (رَبِّ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي، وَافْتَحْ لِي أَبْوَابَ فَضْلِكَ») ، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَابْنُ مَاجَهْ

**ترجمه:** ١ بي بي فاطمه بنت حسين د خپلې انا فاطمة الكبرى (زهرا) رضي الله عنها څخه روايت کوي ٢ چې حضور ﷺ به چې کله مسجد ته تشريف راوړو نو محمد ﷺ باندې به يې درود او سلام ليږلو يعنې دا الفاظ به يې فرمايل صَلَّى اللهُ عَلَى مُحَمَّدٍ وَسَلَّمَ ٣ يا به يې فرمايل: رَبِّ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي وَافْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ، يعنې اې زما پروردګاره زما ګناه وبخښې او زما د پاره د خپل رحمت دروازې خلاصې کړې ٤ او کله به چې د مسجد څخه وتلو دا الفاظ به يې فرمايل صَلَّى اللهُ عَلَى مُحَمَّدٍ وَسَلَّمَ ٥ او فرمايل به يې چه: رَبِّ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي وَافْتَحْ لِي أَبْوَابَ فَضْلِكَ يعنې اې زما پروردګاره زما ګناه وبخښې او زما د پاره د خپل فضل دروازې خلاصې کړې دا روايت ترمذي، احمد، ابن ماجه نقل کړې دي

١ وَفِي رِوَايَتِهِمَا، قَالَتْ ٢ «إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ، وَكَذَا إِذَا خَرَجَ، قَالَ ٣ (بِسْمِ اللَّهِ، وَالسَّلَامُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ)، بَدَلَ: صَلَّى عَلَى مُحَمَّدٍ وَسَلَّمَ.» ٤ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ، ٥ وَفَاطِمَةُ بِنْتُ الْحُسَيْنِ لَمْ تُدْرِكْ فَاطِمَةَ الْكُبْرَى. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ او د احمد او ابن ماجه په روايت کې دا الفاظ دي چې بي بي فاطمه فرمايي ٢ چې حضور ﷺ چې به کله په مسجد کې داخليدو او دغسې چې کله به بهر راوتلو ٣ نو صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وسَلِّمَ په ځاې به يې دا الفاظ فرمايل بِسْمِ اللهِ وَسَلَامٌ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ، يعنې زه د الله جل جلاله په نوم سره داخليږم او وځم او په رسول الله دې سلامتي وي، ٤ امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې د دې حديث سند متصل نه دی ٥ ځکه چې د حضرت حسين رضي الله عنه لور فاطمه د بي بي فاطمه زهرا رضي الله عنها بنت رسول الله ﷺ زمانه نه ده موندلې او د هغې سره نه ده يو ځاې شوې.

(۱) اخرجه الترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما يقول عند دخوله المسجد (رقم-٣١٤) وابن ماجة كتاب المساجد والجماعات ،باب الدعاء عند دخول المسجد(رقم-٧٧١)

**تسهيلات:**

**قوله:** "أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ"

**جمات ته د داخليدو جامع دعا:** چونکه په جمات کښې داخليدونکي مسلمان دَ څه دنياوي اغرض اومقاصدو دپاره دننه نه خي بلکه صرف دَ عبادت او الله تعالى دَ رضا دپاره خي. په دې وجه دَدې موقع دپاره ډيرمناسب دی چه سړې دَ الله تعالى نه دَهغه دَ رحمتونو او برکتونو دَ فيضان سوال اوکړی.

**قوله:** (رَبِّ اغْفِرْلِي ذُنُوبِي،

**جمات نه د وتلو دعا:** کله چه سړې دَ جمات نه بهر خی نو په عام توګه بازارونو او دکانونو کښې دَ رزق دَ حاصلولو اوحلالې ګټې کوشش کوی نو په داسې موقع باندې موزون دی چه سړې دا اووائی "اللهم افتح لی ابواب فضلك" ځکه چه دَ فضل نه دلته حلاله ګټه مراده ده.

**قوله:** لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ.

**د حديث انقطاع:** په دې حديث کښې دَ جمات داخليدو او بهر وتو ټول آداب او په جامع انداز سره دَ ټولو دعاګانو بيان کړې شوې دې. اګرچه په دې حديث کښې انقطاع ده اوحديث متصل دې ځکه چه دَ حضرت حسين ﷺ لور فاطمه هغه وخت پيدا شوې هم نه وه کوم وخت چه دَ حضرت فاطمة الزهرئ ﷺ انتقال شوې وو بلکه دَحضرت فاطمة الزهرئ ﷺ دَ انتقال په وخت خوحضرت امام حسين ﷺ دَ اتو کالو وو.

**[۷۳۲] په جمات کښې ناجائز کارونه**

۷۳۲ [۳۰] (۱) ⓵ وَعَنْ عَمْرِوبْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ ⓶ نَهَى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ عَنْ تَنَاشُدِ الْأَشْعَارِ فِي الْمَسْجِدِ ⓷ وَعَنِ الْبَيْعِ وَالْاِشْتِرَاءِ فِيْهِ ⓸ وَأَنْ يَتَحَلَّقَ النَّاسُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قَبْلَ الصَّلَاةِ فِي الْمَسْجِدِ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِي

**ترجمه:** ⓵ عمرو بن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل نيکه څخه روايت کوي ⓶ چې رسول الله ﷺ منع کړي ده په مسجد کې د اشعار ويلوڅخه ⓷ او د خريدو فروخت کولو (اخستلو اوخرڅولو) څخه ⓸ او د جمعې په ورځ د لمانځه څخه مخکې د خلقو حلقه جوړولو سره د ناستې څخه (اګرچه حلقه جوړولو سره ناسته مذاکره دعلم او ذکر و تسبيح د پاره ولې نه وي) (ابوداؤد ،ترمذي)

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب التَّحَلُّق يَوْمَ الْجمعَة قبل الصلاة (رقم-۱۰۷۹) والترمذی كتاب الصَّلَاة عَنْ رَسول الله صَلَّى الله عليه وسلمَ/بَاب مَا جَاءَ في كَرَاهيَة البيع وَالشَراء وَإنشادَ الضالة وَالشعر فى المَسْجد (رقم-۳۲۲) وابن مَاجة كتَاب المَسَاجد وَالجَمَاعَات ،بَاب مَا يكرَه في المَسَاجد حَدَّثنَا (رقم-۷۴۹) والنسائی كتاب المسَاجد /بَاب النَّهْي عَنِ الْبَيْع وَالشِّرَاء فى الْمَسْجد وَعَنِ التَّحَلُّق قَبْلَ صَلَاة الجمعَة رقم (۷۱۴)

**حل اللغات** ①تَنَاشُدِ الْأَشْعَار: اشعار وئیل②يَتَحَلَّقَ: چه خلق حلقه جوړولو سره کینی

**قوله:** تَنَاشُدِ الْأَشْعَارِ

**په جماتونو کښې د اشعارو وئیلو د ممانعت وجه:** اشعار وئیل ددې نه مراد مذموم اشعار دی کوم کښې چه په یوبل د فخر او لوئي والی یا د وخت پاس کولو او د نفس دخوشحالولو دپاره وی نو دا مذموم دی اوکه دحق تعریف او د باطل رد وی نو دا ممدوح دی جائز دی.

**قوله:** وَعَنِ الْبَيْعِ وَالْاِشْتِرَاءِ فِيْهِ

**په جمات کښې د دنیاوی خبرو حرمت:** په جمات کښې چې څنګه خرڅول او اخستل منوع او حرامت دی دغه شان په جمات کښې دنیاوی خبرې اوبې مقصده قصې وغیره کول هم حرام دی. فقهاؤ لیکلی دی چې کوم کس د سنتو نه پس اوفرض مونځ ادا کولو نه مخکې په جمات کښې دنیاوی خبرې اوکړی نو د ده سنت ضائع شوبعضې عالمانو لیکلی دی چې دوباره به سنت کوی البته بعضې عالمانودا فرمائیلی دی. چې د سنتو دوباره کول پرې نشته خو کوم ثواب چې وو هغه ختم شواو ضائع شو.

**قوله:** وَأَنْ يَتَحَلَّقَ النَّاسُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قَبْلَ الصَّلَاةِ فِي الْمَسْجِدِ.

**په جمات کښې د حلقې جوړولو د ممانعت وجوهات:** ① په جمات کښې د حلقو جوړولو څخه منع راغلې ده اګرچې د درس او تدریس یا تعلیم او تعلم دپاره وی. څکه چې جمات د مونځونو دپاره جوړشوی دی. نو چې کوم مونځګذار جمات ته راشی. هغوی لره پکاروی چې په اول صف کښې کینی اودغه شان د صفونو د ترتیب خیال اوساتی. اوچې په جمات کښې حلقه جوړه شوې وی نوبیا صفونه نشی برابریدې. البته که مانځه وخت نه وی نو بیا په کښې څه حرج نشته.

② دجمعې مونځ پخپله یو ډیر لوئې عمل دې. ترڅوپورې چې د دې څخه فراغت نه وی شوې نو په بل عمل کښې مشغوله کیدل نه دی پکارڅکه چې دا د جمعې د مونځ په ادا کولو کښې رکاوټ راولی.

③ دخطبې په وخت کښې صرف خطبه اوریدل پکار دی حلقه جوړول د خطبې په استماع کښې مخل ګرځی. خودا دریمه وجه صرف دخطبې سره خاص کیږی. چې د خطبې په دوران کښې حلقه جوړول نه دی پکار خو په یو روایت کښې مطلقاً د حلقې جوړولو څخه منع راغلې ده. په دې صورت کښې صرف د جمعې د ورځې او دخطبې تخصیص نشته بلکه په عامو مونځونو کښې هم حلقه نه دی جوړول پکار.

## ۷۳۳-په مسجد کې سوداګري وغيره

۷۳۳-()[۴۱] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِذَا رَأَيْتُمْ مَنْ يَبِيعُ أَوْ يَبْتَاعُ فِي الْمَسْجِدِ، [۳] فَقُولُوا: لَا أَرْبَحَ اللّٰهُ تِجَارَتَكَ، [۴] وَإِذَا رَأَيْتُمْ مَنْ يَنْشُدُ فِيهِ ضَالَّةً، [۵] فَقُولُوا: لَا رَدَّ اللّٰهُ عَلَيْكَ»)، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر کله چې تاسو يو سړي په مسجد کې په خرڅولو اغستلو ووينئ [۳] نو ورته اووايئ: الله دي وکړي چې ستا په سوداګرئ کې درته هيڅ نفع ونه شي [۴] او هر کله چې تاسو (په مسجد کې) بلند (او اوچت) آواز سره ورك شوې شي لټونکي (تلاش کونکي) ووينئ [۵] نو اووايئ الله دي وکړي چې ستا شي درته حاصل نه شي. (ترمذي، دارمي)

**حل اللغات:** ① لَا أَرْبَحَ اللّٰهُ: ګټه او نفع دې درنکړي الله پاک، ② ضَالَّةً: أَيْ: سَاقِطَةً: ورک شوې څيز.

**تسهيلات:**

**دجماتونود جوړولو مقصد:** جماتونه دَ مونځونو تلاوتونو اودَ الله تعالى دَ ذکرونو دَپاره جوړ شوی دی. کوم سړې چه په دې کښې دنياوی معاملات اوتجارتونه کوی هغه دَ جمات جوړولو مقاصد اودَ جماتونو تقدس دَ خپو لاندې کوی. په دې وجه شريعت په جمات کښې دَدې قسم کارونو اجازت نه ورکوی اودَ دې حوصله شکنی کوی. هم په دې سلسله کښې حضورپاک ﷺ دَ زجر اوتشديد دا فرمائيلی چه په جماتونوکښې داقسم معاملات کونکې سړی ته وايه چه الله تعالى دې ستا په تجارت کښې تاله کاميابی درنه کړی.[المرات: ۲/۴۴۰]

**قوله:** "لَا أَرْبَحَ اللّٰهُ تِجَارَتَكَ"

**د خيرو په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① علماؤ ليکلی دی چه دا الفاظ په حديث باندې عمل کولو سره صرف په ژبه سره اداکول پکاردی. مګر په زړه سره دَ بددعا اراده نه دی کول پکار. او ممکن ده چه حقيقی بددعا مراد وی دې دَپاره چه په تجارت کښې دګټې نه کيدو دَ وجې نه دا سړې راتلونکی وخت کښې جماتونه دَ دغه دنياوی کارونونه پاك اوساتی.

## ۷۳۴-په جمات کښې د حدودو قائمول

۷۳۴-()[۴۲] [۱] وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يُسْتَقَادَ فِي الْمَسْجِدِ [۳] وَأَنْ يُنْشَدَ فِيهِ الْأَشْعَارُ، [۴] وَأَنْ تُقَامَ فِيهِ الْحُدُودُ» [۵] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ فِي (سُنَنِهِ)، وَصَاحِبُ (جَامِعِ الْأُصُولِ)، فِيهِ عَنْ حَكِيمٍ.

(۱) اخرجه الترمذی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب النهی عن البیع فی المسجد (رقم-۱۳۲۱)

(۲) اخرجه ابوداود کتاب الحدود/باب فی إقامة الحد فی المسجد (رقم-۴۴۹۰)

**ترجمه:** [۱] حکیم بن حزام رضي الله عنه فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ منع فرمايلي ده په مسجد کې د قصاص اخستو (يعني د قاتل د وينې بيولو) څخه [۳] د اشعارو ويلو څخه [۴] او (زنا کولو او شراب څکلو وغيره) باندې حدود قائمولو څخه. [۵] ابوداؤد او دا روايت صاحب جامع الاصول په خپل کتاب جامع الاصول کې د حکيم څخه (يعني بغير د لفظ ابن حزام) روايت کړي دي.

**حل اللغات:** ① يُسْتَقَادَ: په استعفاد کښې سين اوتاء دَ طلب دَپاره دی. أيْ: يُطْلَبَ القَوَدُ: قود قصاص ته وائی يعنی قصاص اخستل او څوك جمات کښې دَ قصاص په توګه قتل کول منع دی ځکه چه په دې سره به په جمات کښې وينه تونيږي په کوم سره چه دَجمات دَ ناپاك او خرابيدو خطره ده. ② تُقَامَ: قائم کول، نافذ کول. ③ الحُدُودُ: د حد جمع ده، شرعی سزاګانو ته وائی لکه حد قذف، حد زنا، حد خمر، حد سرقه وغيره.

**تسهيلات: قوله:** أَنْ يُسْتَقَادَ:

**په جماتونو کښې د حدودو د نفاذ ممانعت:** دَ حديث مطلب دانه دې چه په زبانی توګه باندې دَ قصاص مطالبه جمات کښې نه دی کول پکار او "ان تقام فيه الحدود" الفاظ په دې باندې دلالت کوی چه په عملی توګه باندې دا افعال په جمات کښې نه دی نافذ کول پکار. بل دا آخری جمله دَ حديث اولې حصې نه پس تعميم بعدالتخصيص په توګه ذکر کړې شوې دې. دَ حدودنه مراد ټول حدوددی که هغه حقوق الله سره متعلق وی اوکه حقوق العباد سره متعلق وی

**په جمات کښې د حدودو د نفاذ د ممانعت وجوهات:**

① ځکه چه په دې کښې دَ جمات بې حرمتی هم ده

② داخطره هم ده چه دَ حدود په نافذ کولو جمات خراب شي.

**په حديث باندې د خلفاء راشدينو عمل:** په شرح السنه کښې ليکلی دی چه حضرت عمر رضي الله عنه واجب الحد سړی باره کښې فرمائيلی چه دې دَ جمات نه بهر اوباسئی دغه شان حضرت علی رضي الله عنه وئيلی دی.

**قوله:** فِيهِ عَنْ حَكِيمٍ:

**دحکيم بن حزام تعارف:** دَ مشکوة شريف په دې روايت کښې حکيم بن حزام ذکردې دَ حزام په حاء باندې کسره ده داد حکيم دَ پلارنوم دې. صاحب دَ جامع الاصول صرف حکيم ذکرکړې دې اودَ ابن حزام لفظ ئې نه دې لګولې ممکن ده چه هغه حکيم بل څوك وی سره دَدې چه ښکاره هم دغه دې چه دَحکيم نه هم ابن حزام مراد دې ځکه چه هم دغه صحابی دې. دَدوی نه علاوه حکيم بن معاويه دې دَ کوم په صحابی کيدو کښې چه اختلاف دې. (كذا في المرقات)

**دحکیم بن حزام دوه تاریخی عجائبات:** امام مسلم رحمه الله صحیح مسلم ج۲ص۶ باندي لیکلي دي: "قال مسلم بن حجاج ولد حکیم بن حزام في جوف الکعبة وعاش مائة وعشرین سنة" یعنی دغه صحابي ته هغه تاریخي عجوبې حاصلې دي.

① یودا چه دَ کعبه په مینځ کښې پیدا شوي. معلومه شوه چه مولود کعبه صرف حضرت علي رضي الله عنه نه دي. په هغه زمانه کښې چه به کومې ښځې ته دَبچي پیدا کیدو کښې پریشاني وه نو هغه به دَ کعبه پناه کښې راتلله نو په ولادت کښې به آساني راتلله. شیعه ګان هسې جشن مولود کعبه کوي.

② دَدې صحابي دویمه عجوبه دَهغه عمر شپږ شلې کاله وو دا ډیر اوږد عمر دې دَ کوم ذکر چه دَ تعجب نه خالي نه دي. [اخرجه مسلم: ۲/۶]

| |
|---|
| ۷۳۵-()[*] [۱] وَفِي (الْمَصَابِيحِ)، عَنْ جَابِرٍ |

**ترجمه:** [۱] او دا روایت په مصابیح کې د جابر رضي الله عنه ځخه منقول دي (او دا په اصول کې موجود نه دي.)

**۷۳۶- د مانځه په وخت کښې د پیاز او اوږې د خوړلو کراهت**

| |
|---|
| ۷۳۶-()[۳۳] [۱] وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ، عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- نَهَى عَنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ - يَعْنِي الْبَصَلَ وَالثُّومَ - [۳] وَقَالَ: (مَنْ أَكَلَهُمَا فَلَا يَقْرَبَنَّ مَسْجِدَنَا)، [۴] وَقَالَ: (إِنْ كُنْتُمْ لَابُدَّ آكِلِيهِمَا; فَأَمِيتُوهُمَا طَبْخًا»)، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. |

**ترجمه:** [۱] معاویه بن قرة رضي الله عنه د خپل پلار ځخه روایت کوي [۲] چې رسول الله ﷺ په دوو بوټو یعنی پیاز او اوږه خوړلو ځخه منع کړي ده [۳] او وي فرمایل کوم سړي چې دا خوري هغه دي زمونږ (یعني د مسلمانانو) مسجدونو ته نږدې نه راځي [۴] او وي فرمایل که تاسو د دې خوراك ضروري ګڼې نو په پخولو سره د دې بدبوي لرې کړي (او وي خوري) (ابوداود)

**حل اللغات:** ① الْبَصَلَ: پیاز، ② وَالثُّومَ: اوږه، ③ فَأَمِيتُوهَا: أَيْ: أَزِيلُوا رَائِحَتَهُمَا بِالطَّبْخِ: یعني پخولو سره د دې بدبوئي ختمه کړئ ④ لَابُدَّ: أَيْ: لَا فِرَاقَ وَلَا مَحَالَةَ: بَدَّدَ باب تفعیل نه تبدیدًا دَتفریق او جدا کولو په معنی کښې دي، یعني که ډیر ضروري وي او پرینبودې ئې نه شئ ⑤ طَبْخًا: پخول.

**دابن قره مختصر تعارف:** معاویه تابعي دي او دَهغه پلار قره رضي الله عنه دي. قاف مضموم او راء مشدده ده. قره بن ایاس بن هلال مزني صحابي دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** نَهَى عَنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ - يَعْنِي الْبَصَلَ وَالثُّومَ:

---

[۱] ) اخرجه المصابیح السنة

[۲] اخرجه ابوداود کتاب الأطعمة /باب فی أکل الثوم (رقم-۳۸۲۷)

**اشکال:** په عام عرف کښې شجره ونې ته وائی حالانکه دَ پیاز او اوګې بوټې وی ونه نه وی. کیدې شی

**داشکال جواب:** شیخ عبدالحق رحمه الله لیکلی دی چه فی الصراح "شجره بر چه ساق دار درخت ونبات" یعنی دَ شجرې اطلاق په هر هغه بوټی باندې کیږی چه په پنډئی باندې ولاړ وی که دَ ونې په شکل وی او که دَ بوټی په شکل وی لهذا دَ پیاز او اوګې په بوټو باندې دَ شجره اطلاق صحیح شو.

**قوله:** "هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ"

**په اشاره کښې دوه احتمالات:** ① په هاتین کښې دې دواړو بوټو طرف ته اشاره ذهنیه ده ② ممکن ده چه دا دواړه بوټی دَخبرو اترو په وخت مجلس کښې موجود وو په دې صورت کښې به دا اشاره حسیه وی.

**په پیاز په حکم کښې نور څیزونه:** ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی دَ پیاز او اوګې په حکم کښې مولئی اوګندنه هم دی. یعنی هر هغه څیزچې بدبوئې داره وی. هغه د دې په حکم کښې شامل دې.

**قوله:** -فَلَا يَقْرَبَنَّ مَسْجِدَنَا:

**په عدم قربت إلى المساجد کښې مبالغه:** جمات ته دَ نیزدې کیدو ممانعت دَ مبالغه په توګه دې چه جمات ته دننه تلل خوڅه چه جمات نیزدې کیدل هم منع دی ترکومې چه دَدې دواړو څیزونو بدبوئی موجود وی کله چه بدبوئی په څه شان سره ختمه شی بیا تلل جائزدی

**جمات ته د نه نژدې کیدو وجه:** دَ ممانعت وجه داده چه په جمات کښې فرښتوته تکلیف رسی، معلومه شوه چه فرښتې هروخت په جمات کښې وی که انسان وی او که نه وی.

"مسجدنا" اشاره دَ دې ملت دَ هرجمات طرف ته ده په حدیث کښې دې طرف ته هم اشاره ده چه دَدې دواړو څیزونوخوراك هغه وخت منع دې کوم وخت چه سړې جمات ته تلل غواړی. که چرې جمات ته تلل نه وی نو په نورو وختونوکښې دَدې څیزونو خوړل جائزدی.

**حدیث د بعضې جملو وضاحت:** ① إِنْ كُنْتُمْ لَابُدَّ: لابد په معنی لافراق اولامحالة شو اودَ "لا" خبر محذوف دې یعنی اکلهما اودا جمله دکان اسم اودَدې دَ خبر په مینځ کښې جمله معترضه ده اودَ کان خبر اکلیهما دې.

② فَأَمِيتُوهَا طَبْخًا: اماتت نه ازاله رائحه کریهه مراد ده که دَ پخولوسره وی یا په بل څه طریقه باندې وی دَ پخولوذکر استعمال غالب په توګه باندې دې.

**۷۳۷- د مقبرې او حمام څخه علاوه ټوله زمکه باندې د مونځ کولو جواز**

۷۳۷ -(۱)[۲۳] ۱ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «الْأَرْضُ كُلُّهَا مَسْجِدٌ إِلَّا الْمَقْبَرَةَ وَالْحَمَّامَ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ ابوسعيد رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ د مقبرې او حمام څخه علاوه ټوله زمکه مسجد دي (چې په هر ځاي کې مونځ کيدي شي). (ترمذي، دارمي.)

**حل اللغات:** ① مَسْجِدٌ: أي: يَجُوزُ السُّجُودُ فِيهَا: مسجد کيدونه مراد دادی چه په زمکه باندې بغير د کراهت نه مونځ کول جائزدی سوا دبعضې ځايونونه چه دهغې استثناء په احاديثو کښې موجود ده. ② الْحَمَّامَ: دا دحميم نه ماخوذ دې، ګرمو اوبو ته وائي، غسل خانه ترې مراد ده.

**تسهيلات:**

**قوله:** "الْأَرْضُ كُلُّهَا مَسْجِدٌ"

**د ټولې زمکې جمات ګرځولو خصوصيت:** دادَ دې امت خصوصيت دې چه په هره پاکه زمکه باندې مونځ کول جائزدی خودَ بنی اسرائيلو مونځ بغيردَ جمات نه په بله زمکه باندې جائزنه وو او په جمات کښې بغيردَ جمع نه جائز نه وو. په دې حديث کښې اوخودلې شو چه بغيردَ کراهت نه دَ زمکې په هره پاکه حصه باندې مونځ کول جائز دی.

[اشعة المعات: ۳۶۲]

**قوله:** الْمَقْبَرَةَ"

**دمقبره د لفظ لغوی تحقيق:** په دې لفظ کښې په حرف باء باندې زبر زير او پيش دريواړه حرکتونه وئيلې کيدې شی چرته چه مړی خښيږی دَهغوی دَ قبرونو مقام ته مقبره وائی کوم ته چه قبرستان يعنی اديره وئيلی شی.

**په مقبره کښې د مونځ د کراهت وجه:** قبرستان کښې مونځ ځکه مکروه دې چه هلته عموماً ګندګی وغيره وی ځکه چه دَ مړو دَ بدنونو خاوره هلته خوره شوې وی. که چرې په يو ايره کښې دا قسم ناپاکی نه وی او دَ قبرونو نه چرته په غاړه پاك ځائی موجود وی نوهلته په مونځ کولو کښې هيڅ حرج نشته. ليکن بعضې علماء دې طرف ته تلی دی چه دَ ظاهرحديث په رڼا کښې په قبرستان کښې مطلقاً مونځ کول مکروه دی اودَ قبرطرف ته مخ کولوسره مونځ کول خوحرام دی. تفصيل حديث نمبر (۷۱۳) کښې اول تيرشوې دې.

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب في المواضع التى لا تجوز فيها الصلاة (رقم-۴۹۲) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن الأرض كلها مسجد إلا المقبرة والحمام (رقم-۳۱۷) وابن ماجة كتاب المساجد والجماعات ،باب المواضع التى تكره فيها الصلاة (رقم-۷۴۵)

**قوله: "وَالْحَمَّامِ"**

**په حمام کښې د مونځ د کراهت دوه وجوهات:** ① حمام ته د ګرمو اوبو د وجې نه حمام وائی په دې کښې مونځ ځکه مکروه دې چه په هغې کښې خلق بدن بربندوی.

② په دې حمامونو کښې شيطانانو ډيرې اچولې وی.

**۷۳۸-په اووه ځايونو کښې د مونځ کولو کراهت**

۷۳۸-(۱) [۳۵] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يُصَلَّى فِي سَبْعَةِ مَوَاطِنَ: [۳] فِي الْمَزْبَلَةِ، [۴] وَالْمَجْزَرَةِ، [۵] وَالْمَقْبَرَةِ، وَقَارِعَةِ الطَّرِيقِ، وَفِي الْحَمَّامِ، [۶] وَفِي مَعَاطِنِ الْإِبِلِ، [۷] وَفَوْقَ ظَهْرِ بَيْتِ اللّٰهِ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر رضی الله عنهما فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ په اوه مقاماتو باندې مونځ کولو ځخه منع فرمايلې ده [۳] ① اول چيرته چې ناپاك شي غورځول شوې وي (يعنې ډيران) [۴] ② دويم چېرته چې حيوانات ذبح کيږي (يعنې قصاب خانه) [۵] ③ دريم مقبره ④ څلورم د لار په مينځ کښې ⑤ پنځم په حمام کې [۶] ⑥ شپږم د اوښانو د تړلو په ځاي کې [۷] ⑦ او اوم د خانۀ کعبې په چهت. (ترمذي، ابن ماجة)

**حل اللغات:** ① اَلْمَزْبَلَةِ: د ګند غورځولو ځاۍ يعنی ډيران، ② اَلْمَجْزَرَةِ: وَهِيَ الْمَوْضِعُ الَّذِي تُنْحَرُ فِيهِ الْإِبِلُ وَتُذْبَحُ الْبَقَرُ وَالشَّاءُ: چرته چه ځاروی ذبح کولې شی يعنی ذبح خانه، قصابخانه، ③ اَلْمَقْبَرَةِ: قبرستان، ④ قَارِعَةِ الطَّرِيقِ: قارعه ټکولو اووهلو په معنی کښې دې چونکه د عام خلقو په تګ راتګ سره عام لاره د خپو لاندې کولې اووهلې شی. په دې وجه ارتې عام او درميانه لارې ته قارعه اووئيلې شو. په دې اعتبارسره د الطريق طرف ته دا اضافت دې. ⑤ مَعَاطِنِ الْإِبِلِ: معاطن د عطن يا د معطن جمع ده، وَهُوَ مَبْرَكُ الْإِبِلِ حَوْلَ الْمَاءِ: دا هغه ځائی ته وائی چرته چه اوښ اوبه څکی او آرام کوی اودا هغه مقام ته هم وائی چرته چه د شپې په وخت اوښ تړلې شی يعنی د اوښانو غوجل.

**تسهيلات:**

**په مذکوره ځايونو کښې د مانځه د ممانعت په حکم کښې مذاهب:**

چرته چه حضورپاك د مونځ کولونه امت منع کړې دې علماؤ دغه ممانعت په کراهت باندې حمل کړې دې. خود کراهت په نوعيت کښې اختلاف دې.

① د بعضې علماؤ په نيز کراهت تنزيهی دې کوم چې اقرب الی الحلال وی. او د خلاف اولی په معنی کښې هم مستعمل دې

② د بعضو علماؤ په نيز کراهت تحريمی دې مکروه تحريمی اقرب الی الحرام وی. علماؤ

(۱) اخرجه الترمذي كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية ما يصلى إليه وفيه (رقم-۳۴۶) وابن ماجة كتاب المساجد والجماعات ،باب المواضع التي تكره فيها الصلاة (رقم-۷۴۶)

داقاعده هم لیکلې ده چه چرته مکروه مطلق راشي نودَهغې نه مکروه تحریمي مراد وي.

**قوله:** "وَقَارِعَةِ الطَّرِيقِ"

**د لارې په مینځ کښې د مونځ کولو د ممانعت وجوهات:** ملاعلي قاري لیکلي دي

① عامو خلقو دَ تګ راتګ دَ وجې نه په مونځ کښې خیال او فکر پوشان باقي نه پاتې کیږي.

② عامو خلقو ته په دې سره تکلیف هم کیږي

③ داسې بې محل اودریدو سره به خلق دَمونځ ګذار مخې ته تیریږي نوهغوی به هم ګناهګار کیږي او بې ځایه اودریدونکې دا مونځ ګذار به هم ګناهګاریږي هم دغه وجه ده چه که څوك مونځ ګذار دَ صحراء دَ لارې په مینځ کښې مونځ کول شروع کړي نودَ بعضې علماؤ په نیز هلته منع نه دې ځکه چه هلته دَخلقو تګ راتګ نه کیږي (كذا في المرقات)

④ په مونځ کښې خشوع خضوع او توجه الی الله پکار وي او په لار کښې مونځ کولو کښې دا صفات په مشکله راځي.

**قوله:** "وَفِي مَعَاطِنِ الْإِبِلِ"

**د اوښانو په غوجل کښې د مونځ د کراهت وجه:** په دغه ځائې کښې مونځ کول ځکه مکروه دي چه په دې کښې عموماً نجاست وي. که چرې دَ ځائې نماز او مصلې نه بغیرچا داسې ځائې کښې مونځ اوکړو نومونځ ئې فاسد کیږي اوکه چرې ګدئې خوره کړي نوبیا هم مونځ مکروه کیږي ځکه چه په داسې مقام کښې بدبوئې لازمې وي. دا بحث دَ هغه وخت دې چه په غوجل کښې اوښ موجود نه وي اوکه چرې موجود وي نومطلقًا مکروه دې. ځکه چه اوښ یو وحشي ځناور دې ورانیدې شي او په توپونو کیدې شي بل هغه دَ آسمان نه متیازې راپریږدي لهذا دَ مونځ ګذار کپړې پاکې پاتې کیدل اودَ ځائې پاك پاتیکیدل ممکن نه دي لکه څنګه چه ورانډې حکم راروان دې.

**قوله:** "وَفَوْقَ ظَهْرِ بَيْتِ اللهِ"

**د خانه کعبې دپاسه د مونځ کولو د کراهت وجه:** دَ ظهر لفظ راوړلوسره ئې اشاره اوکړه چه که دَبیت الله نه یوځائې اوچت وي نوهلته مونځ مکروه نه دې لهذا کراهت خاص دې. دَ بیت الله دَ پاسه اودریدوسره اودا کراهت دَ احترام بیت الله او ادب بیت الله دَ وجې نه دې. معلومه شوه دَ بیت الله نه تعمیرات بنکته ساتل دَ شریعت منشا ده. په دې کښې ادب دې "الدین کله ادب" اودَ بیت الله نه دَ عمارتونو اوچت ساتل عرفاً بې ادبي ده.

**د نبي کریم ﷺ د نهي د الفاظو په حیثیت کښې څلور اقوال:** ① دَ علماؤ یوه طبقه وائي چه دې لفظ سره مطلقًا فساد او ناجائز کیدو طرف ته اشاره کیږي.

② په نهي کښې فساد طرف ته اشاره نه ده بلکه دَ فسادنه دکمې درجې طرف ته اشاره ده.

③ په عبادتونو کښې کله نهی رسول الله راشی هغه دَعدم جواز طرف ته اشاره ده او په معاملات کښې که چرې دا لفظ راشی نودَعدم جواز طرف ته اشاره نه ده.

④ که چرې د نهی متعلق دَ نفس فعل وی لکه دَ اخترونو په ورځ روژه ساتل نودَ عدم جواز طرف ته اشاره ده او که چرې نهی دَ نفس فعل سره متعلق نه وی بلکه په څه واسطه سره وی لکه په غصب شوې زمکه باندې مونځ نو په داسې صورت کښې به عدم جواز مراد نه وی بلکه دَدې نه به کمه درجه مراد اخستې شی چه دکراهت درجه ده. ملاعلی قاری رحمه الله مرقات شرح مشکوة کښې دا قسم بحث کړې دې. خلاصه دا چه په احادیثو کښې دَنهی تعلق کله حرام سره وی کله مکروه تحریمی سره وی کله مکروه تنزیهی او خلاف اولی سره وی.

## ٧٣٩- د ګډو او اوښانو په غوجل کښې د مونځ حکم

٧٣٩-()[٣٦]① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (②«صَلُّوا فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ، ③وَلَا تُصَلُّوا فِي أَعْطَانِ الْإِبِلِ»)، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل② د بزو ترلو په خاي کې مونځ کوئ③ البته د اوښانو د ترلو په خاي کې مونځ مه کوئ. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① مَرَابِضِ الْغَنَمِ: دا دَ مربض جمع ده، وَهُوَ مَأْوَى الْغَنَمِ: دَ چیلو دَ ترلو خائی ته وائی. ② أَعْطَانِ الْإِبِلِ: أعطان او معاطن یو څیز دې، د عطن یا د معطن جمع ده، وَهُوَ مَبْرَكُ الْإِبِلِ حَوْلَ الْمَاءِ: دا هغه خائی ته وائی چرته چه اوښ اوبه څکی او آرام کوی او دا هغه مقام ته هم وائی چرته چه دَ شپې په وخت اوښ ترلې شی یعنی د اوښانو غوجل.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَلَا تُصَلُّوا فِي أَعْطَانِ الْإِبِلِ:

**د چیلو او اوښانو په غوجل کښې د مونځ کولو په حکم کښې فرق:** ① دَ چیلو او اوښانو دَ ترلو خائی کښې دَمونځ کولو اونه کولوشرعی حکم کښې په دې وجه فرق دې چه دَ اوښانو باړه په عام توګه نرمه زمکه باندې وی. په کوم کښې چه متیازې خوریږی او جذب کیږی. او دچیلو باړه په سخته زمکه باندې وی په هغې کښې متیازې خوریږی نه څه خائی پاک پاتې کیږی په کوم کښې چه مونځ کولې شی.

② اوښ ډیر زر اودریدوسره متیازې راپریږدی په کوم سره چه دَ مونځ ګذار کپړې او بدن ناپاکه کیدې شی خو په چیلو کښې داسې نه وی.

③ اوښ یو وحشی څناور دې ډیر لوئی هم دې ده سره نیزدې خائی مونځ کولوسره به

(۱) اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ باب ما جاء فی الصلاة فی مرابض الغنم. وأعطان الإبل (رقم-٣٤٨) وابن ماجة کتاب المساجد والجماعات ،باب الصلاة فی أعطان الإبل، ومراح الغنم(رقم-٧٦٨)

تشويش كيږي خشوع او خضوع كښې به فرق راځي. ځكه چه بعضې روايتونو كښې راغلى دى چه اوښ د شيطانانو نه دي. په يو روايت كښې دى چه اوښ د پيريانو د ذات نه پيدا شوي دي. د دې برعكس چيلئى يو مسكين ځناوردي په هغې كښې د تشويش او پريشانئى څه خبره نشته دي.

ملاعلي قاري رحمه الله او شيخ عبدالحق رحمه الله د دې بحث نه پس ليكلى دى چه په دې حديث كښې د ممانعت كوم علت دې هغه د نجاست موجود كيدل او د هغې نيزدې كيدل دى نو مونږ په هرهغه ځائى كښې كول منع دى چرته چه نجاست وى او ځائى پاك نه وى. په داسې ځائى كښې كه چرته جائې نماز هم خوركړې شى بياهم مونږ منع دې. د مرابض او معاطن تخصيص په توګه د مثال دې مقصود د عام ناپاكو او پاكو ځايونو بيانول دى.

**۷۳۰- د قبرونو څخه د جماتونو جوړولو ممانعت**

۷۳۰-()[۷۴۷] ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ۲ «لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- زَائِرَاتِ الْقُبُورِ ۳ وَالْمُتَّخِذِينَ عَلَيْهَا الْمَسَاجِدَ وَالسُّرُجَ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ۱ ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي ۲ چې رسول الله ﷺ لعنت فرمايلي دي د قبرونو زيارت كونكو ښځو باندې ۳ او په قبرونو باندې مسجد جوړونكو (يعني په قبرونو باندې سجده كونكو) او په هغې څراغونه (ډيوې) بلونكو باندې. (ابوداؤد، ترمذي، نسايي.)

**حل اللغات:** ① زَائِرَاتِ: زائرة زيارت كونكي ښځې ته وائى ② الْقُبُورِ: قبور د قبر جمع ده مراد قبرستان يعنى اديره ده ③ الْمُتَّخِذِينَ: جوړونكى، ④ السُّرُجَ: د سراج جمع ده، چراغ او ډيوې ته وائى.

**تسهيلات:**

**قوله:** "زَائِرَاتِ الْقُبُورِ"

**قبرستان ته د تلو ممانعت او بيا اجازت:** په دې حديث كښې رسول الله ﷺ په هغه ښځو باندې لعنت وئيلي دې چه قبرستان ته ځى او د قبرونو زيارت كوى. حضورپاك ﷺ د اسلام په شروع كښې د قبرونو د زيارت نه منع فرمائيلي وه دې د پاره چه د دې طرف نه د شرك دروازه كولاؤ نه شى. كله چه د اسلامى عقائدو پوخوالې راغلو او د توحيد او شرك د مواقعو فرق معلوم شونو حضورپاك ﷺ د قبرونو د زيارت اجازت په دې ارشاد سره اوفرمائيلو «كنت نهيتكم عن زيارة القبور فزوروها فانها تذكر الآخرة»

اوس بحث په دې كښې دې چه د دې عام ممانعت نه پس چه كوم اجازت راغلي دې آيا دا

[1] اخرجه ابوداود كتاب الجنائز، باب فى زيارة النساء القبور (رقم-۳۲۳۶) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية أن يتخذ على القبر مسجدا (رقم-۳۲۰) والنسائى كتاب الجنائز/التغليظ فى اتخاذ السرج على القبور رقم (۲۰۴۳) وابن ماجة باب ما جاء فى النهى عن زيارة النساء القبور (رقم-۱۵۷۵)

اجازت صرف دَ سړو دَپاره دې که ښځې هم په دې کښې شريك دی.

**دزيارة القبور د اجازت په مخاطبينو کښې اختلاف:** ① بعضې علماء فرمائی چه دا اجازت دَ سړو او ښځو دواړو په حق کښې دی. لهذا اوس چه څنګه دَ سړو دَپاره قبرستان ته تلل جائز دی ښځوله هم په دې عام اجازت کښې تلل صحيح دی.

② بعضو نورو علماؤ فرمائيلی دی چه دَدې اجازت تعلق صرف سړو سره دې. دَ ښځو په حق کښې دَ حديث سابقه نهی او ممانعت اوس هم په ځائی دې. دَدې وجه داده چه ښځې دَ قبرونو دَ آدابو پابندی نه شی کولې او نه ادب پيژنی. هغوی دَعقيدې دکمزورنی دَ وجې نه قبرونو ته تللو سره شرك اوبدعاتو کښې اخته کيږی په دې وجه دَ هغوی دَپاره قبرونو او مزارونو له تلل مناسب نه دی. زير بحث حديث په واضحه توګه دَ دغه علماؤ تائيد کوی.

**د ښځو دپاره دزيارة القبور د عدم جواز حواله جات:** ① په دې سلسله کښې څه نور تفصيل داسې دې چه شاه محمد اسحاق محدث دهلوی رحمه الله تحقيق داشان دې چه دَ صحيح او معتمد قول مطابق دَ ښځو دَ قبرونو زيارت کول مکروه تحريمی دی.

② دَ فقهاء احنافو کتاب مستملی کښې ليکی دی چه دَ قبرونو زيارت دَ سړو دَپاره مستحب اودَ ښځو دَپاره مکروه دی. يوکتاب مجالس واعظيه کښې ذکر دی چه دَ ښځو دَپاره حلال نه دی چه هغوی دې قبرونوله ځی ځکه چه حضورپاك ﷺ قبرونوته تلونکو ښځو باندې لعنت وئيلې دې.

③ "نصاب الاحتساب" کتاب کښې ذکر دی چه دَښځو قبرونوله دَتلوجواز او عدم جواز باره کښې چادَ قاضی ابوزيد رحمه الله نه تپوس اوك و نوهغوی جواب ورکړو چه دَدې جواز اوعدم جواز تپوس مه کوه چه په هغوی باندې کوم لعنت وريږی دَ هغې مقدار څومره دې. يادلرئی چه کله ښځې قبر له دَ تلو اراده کوی نودَ الله تعالی اوفرښتو په لعنت کښې راګيريږی اوکله چه هغه قبر له لاړه شی نوهغه شيطانان دَ هرطرف نه راګيره کړی او چه کله قبر ته اورسی نودَ مړی روح په هغې باندې لعنت وائی اوکله چه دَ قبر نه واپس راځی نودَ الله تعالی په لعنت کښې راګيره وی.

④ يوحديث کښې راغلی دی چه کومه ښځه مقبرې ته ځی نودَ اووه واړو زمکو او اووه واړو آسمانونو فرښتې په هغې باندې لعنت وائی. نوهغه دَ الله تعالی په لعنت کښې دَ قبرستان په لاره تيريږی. اوکومه ښځه چه کور ناسته دَ مړی دَپاره دعاکوی نوالله تعالی هغې ته دَ حج اوعمرې ثواب ورکوی.

⑤ حضرت قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله خپل کتاب مالابدمنه کښې ليکلی دی "که زيارت قبور مرداں را جائز است نه زناں را" يعنی قبرونوله تلل دَ نارينه دَپاره جائز او دَ زنانه دَپاره جائز نه دی. (بحواله مظاهرحق جديد)

⑨ دَ حضرت سلمان احضرت ابوهريره رضي الله عنه نه يوحديث نقل دي چه يوخل حضورپاك دَ خپل كور په دروازه كښې ولاړ وو دَ بهرنه فاطمة الزهرئ رضي الله عنها راغله. حضورپاك دَهغې نه تپوس اوكړو دَ چرته نه راغلې؟ حضرت فاطمه رضي الله عنها جواب وركړو چه فلانكې ښخه وفات شوې ده دَهغې كورته ورغلې ووم. حضورپاك تپوس اوكړو آيا دَهغې قبر له تلې وې؟ حضرت فاطمه رضي الله عنها فرمائي چه معاذ الله آيا زه هغه كاركولې شم دكوم دَممانعت باره كښې چه ماتاسو نه پخپله اوريدلى دى. حضورپاك اوفرمائيل تا داډير ښه كار اوكړو چه دَهغې قبرته لاړه نه شوې ځكه چه كه ته دَهغې قبر له تللې وې نو تاته به دَ جنت بوئى هم نه ملاويدو.

**خلاصه دبحث:** دَدې تولو تصريحاتو او ظاهرد حديث نه هم داخبره واضحه كيږى چه قبرونوله دَ ښځوتلل منع دى. په دې كښې لوئى مفاسد دى كوم چه ښكاره دى. هلته چراغونه لګوى په كوم كښې چه اسراف هم دې اومجوسو سره مشابهت هم اومړى اور له نيزدې كول هم دى. داخود عامو قبرستانونو خبره ده نن صباچه كوم مزارونه جوړشوى دى هلته دَښځود تګ دَ اسلام دَ اجازت څه چه دَ شريف سړى دَتلو تصور هم نه شى كيدې. الله تعالى دې دَمسلمانانو سړو او ښځو دَ عقيدو حفاظت اوكړى. آمين.

**زنانوّ دپاره دزيارة قبر النبى ﷺ حكم:** دلته داخبره ذهن كښې ساتل پكاردى چه دَجمهورو علماؤ په نيز قبرونو له دَتللو دامما نعت نه دَ حضورپاك قبر مبارك له تلل او زيارت كول مستثنى دى هغه دَ تولو دَپاره دَ بركت او ثواب سبب دې.

### ۱۷۰ـ بدترين او بهترين ځايونه

۱۷۰ ــ (۱)[۳۸] ۱ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ «إِنَّ حَبْرًا مِنَ الْيَهُودِ سَأَلَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، أَيُّ الْبِقَاعِ خَيْرٌ؟ ۳ فَسَكَتَ عَنْهُ، وَقَالَ: (أَسْكُتُ حَتَّى يَجِيءَ جِبْرِيلُ)، ۴ فَسَكَتَ وَجَاءَ جِبْرِيلُ - عَلَيْهِ السَّلَامُ -، فَسَأَلَ ۵ فَقَالَ: مَا الْمَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ. ۶ وَلَكِنْ أَسْأَلُ رَبِّي تَبَارَكَ وَتَعَالَى،

**ترجمه:** ۱ ابو امامه رضي الله عنه فرمايي ۲ چه يو ورځ يو يهودي عالم د حضور ﷺ څخه پوښتنه اوكړه چي بهتر ځاي كوم يو دي؟ ۳ حضور ﷺ د دې جواب كې چپ شو او وي فرمايل تر څو پورې چې جبرائيل عليه السلام رانشي زه به چپ يم ۴ نو حضور ﷺ چپ وو تر دي چې جبرائيل عليه السلام راغي نو حضور ﷺ ورڅخه د يهودي عالم د سوال جواب پوښتنه وكړله ۵ جبرائيل عليه السلام اوويل د دې په باره كې ستاسو څخه زيات زه هم نه پوهيږم ۶ البته زه به د خپل پروردګار بزرګ وبرتر څخه په دې باره كې پوښتنه وكړم

**حل اللغات:** ① الْبِقَاعِ: د بقعة جمع ده، د زمكې حصې ته وائى.

[1]) صحيح ابن حبان كتاب الصلوة / باب المساجد... رقم الحديث ۱۶۲۴

۱ ثُمَّ قَالَ جِبْرِيلُ: يَا مُحَمَّدُ! إِنِّي دَنَوْتُ مِنَ اللهِ دُنُوًّا مَا دَنَوْتُ مِنْهُ قَطُّ ۲ قَالَ: (وَكَيْفَ كَانَ يَا جِبْرِيلُ؟)، قَالَ: كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ سَبْعُونَ أَلْفَ حِجَابٍ مِنْ نُورٍ ۳ فَقَالَ: شَرُّ الْبِقَاعِ أَسْوَاقُهَا، ۴ وَخَيْرُ الْبِقَاعِ مَسَاجِدُهَا»، ۵ رَوَاهُ ابْنُ حِبَّانَ فِي صَحِيحِهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ.

**ترجمه:** ۱ بيا جبرائيل علیه السلام (راغي) او وي فرمايل اي محمد ﷺ نن زه الله تعالی جل جلاله ته دومره نژدې شوې ووم چې هيڅ کله دومره نژدې شوې نه يم ۲ حضور ﷺ پوښتنه وکړه اي جبرائيل علیه السلام څومره (فاصله د دواړو په مينځ کې پاتې شوې وه)؟ جبرائيل علیه السلام وفرمايل زما او د الله جل جلاله په مينځ کې اويا زره د نور پردې باقي پاتې شوې وې ۳ او الله تعالی جل جلاله د دې سوال په جواب کې وفرمايل چې بدترين ځايونه بازارونه دي ۴ او بهترين مقامات مسجدونه دي، ۵ دا روايت ابن حبان په خپل صحيح کې د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه نقل کړي دي.

**حل اللغات:** ۲ دَنَوْتُ: أَيْ: قَرُبْتُ: نژدې شوم زه، ۳ سَبْعُونَ أَلْفَ: اويا زره.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَيُّ الْبِقَاعِ خَيْرٌ؟ فَسَكَتَ عَنْهُ:

**د نبي كريم د رسالت دليل:** يعنې دَيهودي عالم دَ سوال په جواب کښې حضورپاك ﷺ خاموش پاتې شو اودَ خپل طرف نه ئې هيڅ جواب ورنه کړو. دادَدې خبرې ډيرلوئی دليل دې چه رسول الله ﷺ دَ الله تعالی رښتوني رسول دې اوهغوی دَخپل طرف نه يوه خبره هم نه کوی ﴿ وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ۝ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحٰى ۝ ﴾ گنې په داسې موقعويانديې خاموش پاتې کيدل ډيره سخته خبره وی خاص کر چه که يوغيرمسلم دَاسلام متعلق څه خبرې پوښتنه کوی.

**قوله:** وَقَالَ: أَسْكُتُ"

**د مذکوره دوه مطلبونه:** ۱ يعنې رسول الله ﷺ په زره کښې اوفرمائيل چه دَ جبرائيل دَ راتلوپورې به خاموش يم. "فسكت" نوبس خاموش شو. علامه طيبی رحمه الله دَدې کلام هم دغه مطلب بيان کړې دې. ۲ شيخ عبدالحق رحمه الله دا کلام دَ سائل دَ سوال جواب جوړکړې دې هغه داسې چه کله حضورپاك خاموش شو نولکه چه يوسائل سوال اوکړو يارسول الله ﷺ تاسو ولې خاموش پاتې شوئی؟ نوحضورپاك لکه چه جواب ورکړو "اسكت" يعنې زه دَدې دَپاره خاموش شوم دې دَپاره چه جبرائيل راشی او وحی راوړی. بعض نسخوکښې "اسكت" دَ امر صيغه سره دې لکه چه حضورپاك خپل خان ته حکم ورکړو چه خاموش اوسيږه او په جواب ورکولوکښې تادی مه کوه تردې چه جبرائيل راشی.

**قوله:** سَبْعُونَ أَلْفَ حِجَابٍ مِنْ نُورٍ:

**دحجاب من نور په مفهوم کښې درې اقوال:** ① دا حجاب او پردې دمخلوق په اعتبارسره دی دالله تعالی جل جلاله په نسبت سره نه دی ځکه چه الله تعالی په پردو کښې راګیرنه دې مخلوق په پردو کښې دې په مخلوق کښې چه د فرښتو دپاره کومې پردې دی هغه دنور پردې دی اود انسانانو دپاره چه کومې پردې دی هغه جسمانی او د تیارو پردې دی. ددې مثال داسې دې لکه چه د نمر مخې ته د ړوند په سترګو باندې پرده پرته وی د کوم په وجه چه هغه نمر نه وینی لیکن نمر خو په څه پرده کښې نه دې.

لکه چه شیخ سعدی رحمه الله فرمائی: -

ګرنه بیند بروز شپره چشم چشمۀ آفتاب راچه ګناه

② شیخ عبدالحق رحمه الله لیکی چه د "نور" لفظ سره دې طرف ته اشاره ده چه د فرښتو حجاب نورانی دې او هغه دالله تعالی عظمت اوجلال اود الله تعالی صفات تقدس او جمال او دکمال حجاب دې. [اشعة المعات: ۳۴۳] او په انسانانو کښې د بعضو دپاره هم دغه نورانی حجاب وی اود بعض دپاره ظلمانی اونفسانی حجاب وی اود هر قسم حجاب څه انتهاء نشته. دلته د ستر ذکر دتحدید دپاره نه بلکه دتکثیر دپاره دې.

③ بعض شارحینو ددې حجاب تفصیل داسې بیان کړې دې چه د حجاب نه مراد څه حسی یا مادی پرده نه ده ځکه چه په الله تعالی باندې هیڅ یوه پرده محیط کیدې نه شی بلکه حجاب کنایه ده د یوداسې مانع نه د کوم په موجودګئی کښې هیڅ مخلوق الله تعالی نه شی لیدلې. دا نوری حجاب د مادی اوحسی حجاب په شان د رؤیت باری تعالی دپاره مانع دې دمثال په توګه دالله تعالی د انواراتو یوه پرده په نمبر باندې پرته ده نواوس په نمر کښې څومره زور دې یوسړې دې اوګوری ازمیښت خو دې اوکړی چه پته اولګی څه کیفیت دې.

**قوله:** شَرُّ الْبِقَاعِ:

**په زیادت في الجواب کښې نکته:** سائل صرف د خیرالبقاع متعلق سوال کړې وولیکن جواب کښې بهترین او بدترین دواړو مقاماتو ذکر اوکړې شو دې دپاره چه د رحمان نظام او شیطان نظام دواړو نشاندهی اوشی په یو کښې دخیر او په بل کښې د شر اعمال دی. په دې حدیث سره مسلمانانو ته دا تعلیم ملاؤ شو چه کوم سړی ته پخپله مسئله معلومه نه وی نو هغه دې د هغه سړی نه پوښتنه اوکړی چاته چه مسئله ښه معلومه وی او په دې کښې دې شرم نه محسوس کوی. ګورئی دلته حضورپاك مسئله په جبرائیل علیه السلام باندې پریخوده اوحضرت جبرائیل علیه السلام مسئله په الله تعالی باندې پریخوده اود هغه ځائی نه جواب راغلو.

**قوله:** رَوَاهُ:

**د حدیث حواله نه ذکر کولو مقام:** صاحب مشکوة په مقدمه مشکوة کښې بیان کړې دې

چه په دې کتاب کښې بعض مقامات ماڈ حواله نه بغير پريخودى دى څکه چه ماته ډاصل کتاب حواله معلومه نه وه. چاته چه دا حواله ملاؤشى هغه دې اوليکى په دې خالى کښې بياض او خالى ځائې پريخودې شوې دې. روستو علماؤ حواله ليکلې ده دلته ډهغه مقاماتونه رومبې مقام دې نو رواه ابن حبان دې شارحينو دلته ډ بياض ذکرکړې دې سره ډدې چه په مشکوة کښې دلته بياض نشته چا کاتب ډك کړې دې.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## ۷۴۲- مسجد نبوي ته د تلو مقصد

۷۴۲-(۲۹)[۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ:[۲] ((مَنْ جَاءَ مَسْجِدِي هَذَا لَمْ يَأْتِ إِلَّا لِخَيْرٍ[۳] يَتَعَلَّمُهُ أَوْ يُعَلِّمُهُ، فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ،[۴] وَمَنْ جَاءَ لِغَيْرِ ذَلِكَ، فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الرَّجُلِ يَنْظُرُ إِلَى مَتَاعِ غَيْرِهِ))، رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي [شُعَبِ الْإِيمَانِ]

**ترجمه:**[۱] ابوهريره رضي الله عنه وايي چه ما د حضور ﷺ څخه اوريدلي دي[۲] چې کوم سړي زما دې مسجد ته محض د يو نيک کار په غرض سره راشي[۳] چې نيك کار زده کړي او وې ښايي (بل ته) نو هغه د الله په لار کې د جهاد کونکي په مرتبه کې دي[۴] او کوم سړي چې په دي غرض سره رانشي (يعني څه بد کار مثلًا د لهو لعب په نيت راشي) نو هغه د هغه سړي په شان دي چې د نورو اسبابو (ته د حسرت په نظر سره) ګوري (ابن ماجه، بيهقي.)

**حل اللغات** ① مَتَاع: مَا يُنْتَفَعُ بِهِ النَّاسُ: اسباب هغې ته وائى کوم نه چه خلق فائده اخلى (يا په دنيا کښې مثلا علم، عمل وغيره او يا په آخرت کښې مثلا لوئې درجات اومرتبې او ثوابونه).

**تسهيلات: قوله:** مَسْجِدِي هَذَا:

**د مسجد نبوى عدم تخصيص:** دا اشاره ډمسجدنبوى طرف ته ده ډ مسجد ذکر ډمثال په توګه دې څه تخصيص مقصود نه دې بلکه ډټولو مساجدوهم دغه حکم دې او په مسجد نبوى کښې داحکم او فضيلت بدرجه اتم واکمل دې اوباقى مساجدډدې تابع دى.

**قوله:** يَتَعَلَّمُهُ:

**دتعليم او تعلم دتخصيص وجه:** ډتعليم اوتعلم يعنى ډ خودلو اوزده کولو تخصيص په دې وجه دې چه داعمل اعلى او افضل دې ګنى په دې کښې هيڅ حصرنشته بلکه هرنيك عمل مثلاً مونځ تلاوت اعتکاف اوډالله تعالى ذکر ټولوحکم دغه شان دې چه ډ مجاهد فى سبيل الله ثواب هغه سړى ته ملاويږى سره ډدې چه هغه مجاهدنه جوړيږى ليکن ډمجاهد ثواب هغه ته ملاويږى.

[۱] اخرجه ابن ماجة باب فضل العلماء والحث على طلب العلم(رقم-۲۲۷)

**قوله:** لِغَيْرِ ذَٰلِكَ:

**د غير مصداق:** په دې کښې عموم دې يعنى لغير الخير مطلقًا نه دَتعليم او تعلم دَپاره راغلې دې او نه دَ ذکر الله دَپاره بلکه دَخير ښيګړې نه علاوه لوبوټوقو او عبث ګرځيدو او تماشه کتو په غرض راغلې.

**قوله:** فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الرَّجُلِ يَنْظُرُ إِلَى مَتَاعِ غَيْرِهِ:

**دمتاع غيره دوه مطلبونه:** ① دَقيامت په ورځ به دا محروم سړې ثواب ګټونکوته دَ حسرت اوارمان نه په ډك نظر سره ګورې اوافسوس لاسونه به مروړې. اوبغيرد غم دردنه به ورته هيڅ په لاس نه ورځي. "الان قد ندمت ولم ينفع الندم"

② يا دَدې نه افسوس اوتحسر خپيمانتيا او ملامتيا بيانول مقصود دى لکه چه دا محروم سړې دَ خپل دولت نه خوخالى لاس ناست دې مګر دَنورو دولت ته دَ حسرت اوارمان په نظر نه ډير په حرص سره سترګې په يوځائى اودرولې ګورى اوصرف ورته ګورى په لاس هيڅ هم نه ورځي. لکه چه ډېل غم زغمى نه ئى دَ صبر کولو طاقت شته او نه ئى په زور دَاخستلو طاقت شته.

### ۷۴۳- په مسجد کښې د نياوي خبرې

۷۴۳- ()[۵۰] [۱] وَعَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلًا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]( «يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ يَكُونُ حَدِيثُهُمْ فِي مَسَاجِدِهِمْ فِي أَمْرِ دُنْيَاهُمْ، [۳] فَلَا تُجَالِسُوهُمْ، فَلَيْسَ لِلّٰهِ فِيهِمْ حَاجَةٌ» ) رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** [۱] د حسن بصري رحمه الله ځخه مرسلاً روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په خلقو به ډير نزدې يو داسې وخت راشي چې هغوئ به د خپلې دنيا دارئ خبرې په خپلو مسجدونو کې کوي [۳] نو تاسو د هغوئ سره مه کينئ (اګر که تاسو د هغوئ په خبرو اترو کې شريك نه يئ چې د هغوئ سره شريك ونه ګڼل شي) ځکه چې الله تعالى جل جلاله ته د داسې خلقو ضرورت نشته. (بيهقي.)

**حل اللغات:** ① حَدِيثُهُمْ: أَيْ: كَلَامُهُمْ: خپل مينځ کښې خبرې اترې. ② حَاجَةٌ: حاجت او ضرورت.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ:

**دقيامت نښه په جماتونو کښې خبرې:** دَدې جملې نه اندازه کيږى چه په مساجد کښې داعمل کول دَ قيامت دَ علاماتونه دي او په دې حديث کښې پيشنګوئى هم شوې ده چه

---

[1]) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان/ باب فضل المشى الا المساجد... رقم الحديث ۲۸۶۲

داسې زمانه به راځي نو دا نن صباهم دغه زمانه راغلې ده چه دَخلقو عام فضول خبرې په جماتونو کښې کيږي. دنياوی معاملات او بې فائدې تبصرې ټولې په جماتونو کښې کيږي. صوبه سرحد گلگت او کشمير او ټولو يخو علاقو کښې دا منکرات زيات ليدلې شي. فتح القدير کښې ابن همام رحمه الله ليکلی دی "الکلام المباح في المسجد مکروه ياکل الحسنات" يعني مباح خبرې هم په جمات کښې مکروه دی دَ انسان نيکئی خوری. (کله چه دَ حدنه زياتې شی)

**قوله: حَاجَةٌ:**

**جماتونو کښې خبرې کونکې دالله تعالی د حفاظت نه محرومه:** دا جمله دَدې خبرې نه کنايه ده چه الله تعالی دَداسې خلقو نه ويزاره دې او داسې خلق دَالله تعالی دَ رحمت او دَهغه دَ حفاظت نه خارج دی. الله تعالی ته دَ هغوی هيڅ ضرورت نشته سره دَدې چه هغوی دَعبادت دَپاره حاضر شوې وی. دا حديث په دې خبره باندې دلالت کوی چه په جمات کښې دَدنياوی کارونو خبرې کول مکروه دی او په دې باندې ډيرزيات احاديث دلالت کوی. دَ دنياوی خبرونه مراد داسې خبرې دی چه عبث بې فائدې اودَ حد نه زياتې وی. فقهاؤ ليکلی دی که دَ سنتونه پس چا دنياوی خبرې اوړې نودَ دغه سړی دَ سنتو ثواب ختميږی که چرې دنياوی خبرې صرف دَ يوې يا دوو کلمويورې وی زياتې نه وی نو هغه په دې وعيد کښې داخل نه دې.

### ۷۴۳- په جمات کښې د خبرو کولو ممانعت

| |
|---|
| ۷۴۳-(۱)[۵۱] [۱] وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] كُنْتُ نَائِمًا فِي الْمَسْجِدِ، فَحَصَبَنِي رَجُلٌ، [۳] فَنَظَرْتُ، فَإِذَا هُوَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، [۴] فَقَالَ: اذْهَبْ فَأْتِنِي بِهَذَيْنِ فَجِئْتُهُ بِهِمَا [۵] فَقَالَ مِمَّنْ أَنْتُمَا- أَوْمِنْ أَيْنَ أَنْتُمَا-؟ قَالَا: مِنْ أَهْلِ الطَّائِفِ، |

**ترجمه:** [۱] سائب بن يزيد فرمايي [۲] چه زه يوه ورځ په مسجد کې اوده ووم يو سړي زه په وړوکي کانړي وويشتم [۳] ما چې وکتل نو هغه حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه دي [۴] هغه ماته وفرمايل چې ته ورشه دغه دواړه سړي ماته راوله (چي په مسجد کې په اوچت آواز سره خبري کوي) [۵] ما هغه راوغوښتل حضرت عمر رضی الله عنه پوښتنه ورځخه وکړه چې تاسو څوک يئ يادا چې تاسو د کوم ځاي اوسيدونکي يئ؟ هغوئ اوويل مونږ د طائف اوسيدونکي يو.

**حل اللغات:** ① فَحَصَبَنِي: أَيْ: رَمَانِي بِالْحَصْبَاءِ: يعنی په نرو کانړو ئې اوويشتم.

| |
|---|
| [۱] قَالَ: لَوْ كُنْتُمَا مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ لَأَوْجَعْتُكُمَا؛ [۲] تَرْفَعَانِ أَصْوَاتَكُمَا فِي مَسْجِدِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟ رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |

**ترجمه:** [۱] حضرت عمر رضی الله عنه ورته وفرمايل که تاسو د مديني اوسيدونکي وې نو ما به سزا

---

(۱) اخرجه البخاری کتاب الصلوة باب رفع الصوت فی المساجد(رقم-۴۷۰)

درکړي وه [يعني وهلي به مي وئ ليکن تاسو د دې ځاي اوسيدونکي نه يئ او د مسجد د آدابو څخه واقف نه يئ يا دا چې مسافر يئ ځکه د عفو اوشفقت مستحق يئ او دا ډيره د افسوس خبره ده چې] ۲ تاسو د رسول الله ﷺ په مسجد کې په زوره په زوره خبري کوي. (بخاري.)

**حل اللغات:** ۞ لَأَوْجَعْتُكُمَا: مابه وهلوسره دواړه بنه زخمي کړي وئ. ۞ تَرْفَعَانِ: تاسو پورته کوئ (خپل آواز).

**تسهيلات:**

**قوله: "مِمَّنْ أَنْتُمَا"**

**په جمات کښې خبرو کولو باندې د حضرت عمر غصه:** راوی ته شك دې چه حضرت عمر رضی الله عنه کومه يوه جمله استعمال کړې وه. "من اهل الطائف" دَ حضرت عمر رضی الله عنه دَ دواړوجملوجواب په دې کلام کښې موجود دې. "لاوجعتكما" يعنی که ته دَ بهرميلمه نه وې اودَ مسجدنبوی دَ آدابو نه خبر نه وې نومابه وهلوسره بنه زخمی کړې وې. حضرت عمر رضی الله عنه دغه دواړه دَمسافرکيدودَ وجې نه دَ شفقت اورحمت دَ وجې نه معاف کړل او صرف زبانی وعيدئی ورته واؤرولو.

**قوله: "تَرْفَعَانِ أَصْوَاتَكُمَا"**

**په مسجد نبوی کښې د آواز اوچتولو ممانعت:** دا جمله مستانفه ده دَ حضرت عمر رضی الله عنه دَ طرف نه نوې کلام دې. "فی المسجد رسول الله ﷺ" حضرت عمر په دې کلام سره دَمسجد نبوی دَ نور شرافت، منزلت، عظمت او رفعت طرف ته اشاره کړې ده. خصوصاً چه هلته حضورپاك آرام فرمادې او حضورپاك پخپله روضه کښې ژوندې دې اودَ الله تعالی فرمان دې ﴿لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ﴾ (كذا فی المرقات)[سورة الحجرات: ۲]

**په جمات کښې اسلامی درس په اوچت آواز سره ور کولو کښې کراهت:** علامه نووی رحمه الله فرمائی "يكره رفع الصوت فی المسجد بالعلم وغيره" يعنی که علمی مشغله وی اوياځه بل محفل وی په جمات کښې په اوچت آواز سره خبرې کول مکروه دی. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه "سئل مالك عن رفع الصوت فی المسجد بالعلم فقال لا خير فيه بعلم ولا بغيره ولقد ادركت الناس قديما يعيبون ذلك على من يكون بمجلسه وانا أكره ذلك ولا ادري فيه خيرا" (كذا فی المرقات)

**د ملا علی قاری قول:** ملاعلی قاری رحمه الله مرقات کښې ليکی دَ امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب هم دغه دې چه په جمات کښې آواز اوچتول مکروه دی که په ذکر الله سره ولې نه وی. او په جمات کښې درس او تدريس جائز دې په دې شرط چه مونځ گذاروته بدې نه لګی. "اذ مذهبه كراهة رفع الصوت فی المسجد ولو بالذكر الخ". (مرقات) بهرحال په جمات کښې په اوچت آواز

سره خبرې کول مکروه دی سره ددې چه څه علمی مکالمه ولې نه وی هم په حد کښې پاتې کیدل بهتر دی.

## ۵۲۷-د مسجد څخه بهر د خبرو دپاره ځائي جوړول

۵۲۷-()[۵۲] ① وَعَنْ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ② بَنَى عُمَرُ رَحَبَةً فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ تُسَمَّى الْبُطَيْحَاءَ، ③ وَقَالَ: مَنْ كَانَ- يُرِيدُ أَنْ يَلْغَطَ، ④ أَوْيُنْشِدَ شِعْرًا أَوْيَرْفَعَ صَوْتَهُ، ⑤ فَلْيَخْرُجْ إِلَى هَذِهِ الرَّحَبَةِ، رَوَاهُ فِي الْمُوَطَّأِ.

**ترجمه:** ① امام مالك رحمه الله فرمايي ② چې حضرت عمرفاروق رضي الله عنه د مسجد په يوه كونج كې يو طرف ته يوه كوډل (چبوتره) جوړه كړي وه چې د هغې نوم بطيحا وه ③ او خلقو ته يې ويلي وو چې كوم سړي لغو خبري كوي ④ يا اشعار ويل غواړي يا (په څه وجه) په بلند آواز سره خبر ي كول غواړي ⑤ نو هغه ته پكار دي چې هغه (د مسجد څخه ووځي) او دي كوډل ته دې راشي. (مؤطا.)

**حل اللغات:** ① رَحَبَةً: سَاحَتُهُ وَمُتَّسَعُهُ: رحبه عام كولاؤ ځائى او صحرا ته ونيلې شى. ② نَاحِيَةِ: طرف، گوټ. ③ الْبُطَيْحَاءَ: دغې رحبه ته به ئې بطيحاء ونيلې. وَلَعَلَّهَا فُرِشَ فِيهَا الْبَطْحَاءُ: بطيحاء به ئې ورته څكه ونيل چه كيدې شى په هغې كښې بطيحاء يعنى واړه واړه كانړى خواره كړې شوى وو. ④ يَلْغَطَ: صَوْتٌ وَضَجَّةٌ لَا يُفْهَمُ مَعْنَاهُ: داسې كلام ته وائى د كوم آواز چه اوريدې شى مگر د هغې مطلب معلوم نه وى. ⑤ يُنْشِدَ: شعر ونيل.

**تسهیلات:**

**قوله:** بَنَى عُمَرُ رَحَبَةً فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ تُسَمَّى الْبُطَيْحَاءَ:

**په جمات كښې د خبرو نه بچ كيدو دپاره بهر د ځائې انتظام:** مسجد نبوى سره يو كولاؤ ځائى ته رحبه ونيلې شوې ده. هسې رحبه عام كولاؤ ځائى او صحرا ته وئيلې شى په دې وجه دا "فى ناحية المسجد" سره مقيد كړې شو. د حضرت عمر رضي الله عنه دې ترتيب سره امت ته دا تعليم ملاويږى كله چه د يومنكرنه بچ كيدل گران وى [الكاشف: ۲/۳۰۸]

نود هغې متبادل انتظام كول پكاردى. چونكه خلق خبرې كوى او د مانځه په وخت په جمات كښې د خلقو د راجمع كيدو د وجې نه د خبروكولو نوره موقع پيدا كيږى په دې وجه د دې اصلاح د پاره حضرت عمر رضي الله عنه متبادل نظام اوكړو. د جمات نه بهر ئې يو كولاؤ ځائى جوړ كړو چه هلته دنياوى خبرې كوئى بيا د مانځه د پاره دننه راځئى. نن صباد صوبه سرحد په يخو علاقو كښې اكثر جماتونو سره نيزدې مسافرخانې جوړې وى د دې مقصد هم دغه وى چه په جمات كښې خبرې نه وى اودې سره ډيره فائده شوې ده.

---

(۱) اخرجه مالک کتاب قصر الصلاة فى السفر، باب جامع الصلاة (رقم-۹۳)

**قوله: "أَوْيُنْشِدَ شِعْرًا"**

**په جمات کښې د اشعارو وئیلو حکم:** خپل څه شعر وائی یا دَ بل چا هغه اوره وی دواړو ته انشاد شعر وئیلې شی دَ اشعارنه مراد څه خاص شعر نه دې مطلقًا اشعار مراددی. اګرچه حافظ ابن حجر رحمه الله خراب اشعار مراد اخستې دې مګر ملاعلی قاری رحمه الله په دې باندې رد کړې دې. "اویرفع صوته" ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی "ولوبالذکر" یعنی آواز اوچتولوسره په جمات کښې ذکرکول هم مکروه دی.

**۴۳٦- قبلي طرف ته د ګرنګ غورځولو کراهت**

۴۳٦-()[٥٣] [١] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «رَأَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نُخَامَةً فِي الْقِبْلَةِ، [٣] فَشَقَّ ذَلِكَ عَلَيْهِ حَتَّى رُئِيَ فِي وَجْهِهِ، [٤] فَقَامَ فَحَكَّهَا بِيَدِهِ، فَقَالَ: [٥] (إِنَّ أَحَدَكُمْ، إِذَا قَامَ فِي الصَّلَاةِ فَإِنَّمَا يُنَاجِي رَبَّهُ، [٦] وَإِنَّ رَبَّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ؛

**ترجمه:** [١] انس رضي الله عنه فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ په مسجد کې د قبلې طرف ته ګرنګ پراته وليدل [٣] نو ورته ډير ګران شو تر دې چې هغه د ناګوارۍ اثر يې په مخ مبارك ظاهر شو [٤] نو حضور ﷺ ودريدلو او هغه يې په خپل لاس مبارك سره ګرولو سره وغرځول او وي فرمايل [٥] هر کله چې په تاسو کې څوك د لمانځه د پاره ودريږي نو هغه دخپل پروردګار سره سرګوشي (پټې خبرې) کوي [٦] او هغه وخت د هغه پروردګار د هغه او د قبلې په مينځ کې وي.

**حل اللغات:** ① نُخَامَةً: أَيْ: الْبُزَاقَةِ الَّتِي تَخْرُجُ مِنْ أَصْلِ الْفَمِ: دا دَ بلغم نوم دې چه دَ سينې نه پورته خلې ته راشی هغې ته نخامه هم وائی. النخاع دادَ هغه بلغم نوم دې چه دَدماغونه بنکته خلې ته راشی. (کذافي المعات) بهرحال دا باريك فرق دې مګر دا الفاظ دَ يو بل په ځائی باندې وئيلې شی. ② فَشَقَّ: أَيْ: صَعُبَ: ګران شو، تکليف او خفګان ته وائی. ③ فَحَكَّهَا: نو اوئې ګرول، پاک ئې کړل. ④ يُنَاجِي: سرګوشی کوی، پټې خبرې کوی.

[١] فَلَا يَبْزُقَنَّ أَحَدُكُمْ قِبَلَ قِبْلَتِهِ، [٢] وَلَكِنْ عَنْ يَسَارِهِ، أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ)، [٣] ثُمَّ أَخَذَ طَرَفَ رِدَائِهِ فَبَصَقَ فِيهِ، [٤] ثُمَّ رَدَّ بَعْضَهُ عَلَى بَعْضٍ، فَقَالَ: (أَوْيَفْعَلُ هَكَذَا»)، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] نو هر چالره پکار دي چې د قبلې طرف ته هيڅ ونه تهوکی [٢] ليکن خپل ګس طرفته يا د قد مونو لاندې دې تهوکي [٣] بيا حضور ﷺ د خپل څادر مبارك يو اړخ ونيولو او په هغه کې يې څه او تُوکل [٤] او بيا يې کپړه په خپلو کې مږلو سره وفرمايل چې داسې دې کوي. (بخاري.)

**حل اللغات:** ⑤ فَلَا يَبْزُقَنَّ: نو لاړې دې نه تهوکی، ⑥ فَبَصَقَ: أَيْ: بَزَقَ: لاړې ئې پکښې اوتهوکلې.

(۱) بخاری کتاب الصلوة باب حک البزاق باليد من المسجد(رقم-٤٠٥)

**تسهیلات:**

**قوله: "نُخَامَةً"**

**دنخامه لغوی تحقیق:**

① دَ پوزې دننه نه چه کومه ګندګی دَ پوزې په ذریعه بهر راځی هغې ته قنړی وائی
② کله چه هم دغه څیزدَ معدې نه دَ حلق په لاره پورته راځی نوهغې ته بلغم وائی
③ کوم څیزچه په خله کښې دننه پیدا کیدوسره بهر راځی هغې ته لاړې یا توکانړې وائی.

نونخاعه اونخامه دَ بلغم په معنی کښې دې که په سپیږمو سره لاندې حلق ته راشی یا دَ معدې نه پورته حلق ته لاړ شی دَ لاړو خراچکو او قنړو مصداق او فرق واضح دې.

**دحدیث مصداق:** تجربه بنائی چه لاړې او قنړی اختیاری څیزدې اوبلغم غیراختیاری کیدو سره راځی اوهم دا په دیوالونو وغیره باندې ورغورزولې شی. دَ حدیث مصداق لکه چه هم بلغم دې.

**قوله: "فَحَكَّهَا بِيَدِهِ"**

**فحکها بیده کښې دوه احتمالات:** ① حضوریا خویا پخپله په توګه دَ سید القوم خادمهم او په توګه دَ جمات دَ اکرام هغه ګندګی په خپل لاس مبارك سره پاکه کړه. که چرې بلغم اوچ وی یا په لاس کښې څه څیز اخستو سره صفا کړو اوکه چرې لوندوی
② داهم ممکن ده چه حضوریاك چاته حکم ورکړې وی چه صفا کړه مګردا معنی بعیدده. "یناجی ربه" یا په ژبه سره قرأت کوی یا په زبان حال سره په مناجات کښې مشغول دې. هم دغه وجه ده چه مونځ ته دَ مؤمن معراج وئیلې شوې دې.

**قوله: بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ**

**قبلې طرف ته د توکانړی توکلو ممانعت:** یعنی دَ الله تعالی په مخکښې چه کوم سړې دَمانځه دَپاره اودریږی نوهغه دَ قبلې طرف ته مخ کوی خو هغه عبادت دَ خپل رب کوی او رب راضی کوی. په دې وجه دَ دغه بنده مقصود دَ هغې اودَ قبلې په مینځ کښې دې نوداحکم ورکړې شو چه دَ قبلې طرف ته مه توکه دَدې نه دَ رب دَ بې ادبئی صورت پیدا کیږی. لهذا ګس طرف ته توکل کوه یا دَخپې لاندې توکه په دې شرط چه مونځ په جمات کښې نه وی ځکه چه په جمات کښې چرته هم توکل جائز نه دی. دا دَ صحراء او دَ جمات نه بهردَ توکلو مسئله ده نو

**په جمات کښې د توکانړی توکلو ضرورت پیښیدلو کښې طریقه:** دَدې نه دا خبره ثابته شوه چه که چرې په جمات کښې دَ توکلو نوبت راشی نو صرف په خپله کپړا باندې اوتوکه اوبیا هغه مږلو سره صفا کړه. دَدې ادب او احترام نه دا خبره ثابته شوه چه دَ بیت الله ډیر زیات

احترام دې. كله چه په زړګونو ميله لرې ددې طرف ته توكل منع دى نو ورې متيازې يا غټې متيازې كولو كښې خودَ چاله اختلاف نه دى كول پكار بل دَ بيت الله طرف ته خپې اوږدول اوسملاستل هم مناسب نه دى دَ ادب خلاف دى ځكه چه حضورپاك ټول عمر داسې اوده شوې دې چه كله ئې خپې دَ بيت الله طرف ته نه دى راغلې. مسلمان دَ مرګ نه پس هم دَ قبلې طرف ته مخ كولوسره خښولې شى دَ چا خپې دَ بيت الله طرف ته نه وى.

**۷۴۷-قبلې طرف ته د توكلو ممانعت**

۷۴۷-()[۵۴] ① وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ خَلَّادٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، -وَهُوَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ-، فَقَالَ ② «إِنَّ رَجُلًا أَمَّ قَوْمًا، ③ فَبَصَقَ فِي الْقِبْلَةِ، وَرَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَنْظُرُ، ④ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لِقَوْمِهِ حِينَ فَرَغَ: (لَا يُصَلِّي لَكُمْ)،

**ترجمه:** ① سائب ابن خلاد چې د رسول الله ﷺ صحابي دي فرمايي ② چه يو سړي جماعت ته د لمونځ وركولو (امامتي ئي كوله) ③ او هغه د قبلې طرف ته تهوك كړل (په اتفاقي طور سره) حضور ﷺ هغه طرف ته كتل ④ كوم وخت چې هغه د لمانځه ځخه فارغ شو نو حضور ﷺ د هغه مقتديانو ته وفرمايل چې (آئنده د پاره دي) دا سړي تاسو ته مونځ نه دركوي

**حل اللغات** ① أَمَّ: أَيْ: صَلَّى بِهِمْ إِمَامًا: امام جوړشو او مونځ ئې وركړو. ② فَبَصَقَ: أَيْ: بَزَقَ: لاړې ئې پكښې اوتهوكلې.

① فَأَرَادَ بَعْدَ ذَلِكَ أَنْ يُصَلِّيَ لَهُمْ، فَمَنَعُوهُ ② فَأَخْبَرُوهُ بِقَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، ③ فَذَكَرَ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَ: نَعَمْ، ④ وَحَسِبْتُ أَنَّهُ قَالَ: (إِنَّكَ قَدْ آذَيْتَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ»)، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① د دې ځخه وروسته چې هغه سړي هغوئ ته مونځ وركول وغوښتل نو هغه خلقو هغه د امامت ځخه منع كړو ② او هغه ته يې د رسول الله ﷺ ارشاد بيان كړو ③ هغه سړي د حضور ﷺ په خدمت كې حاضر شو او د دې واقعې ذكر يې وكړو حضور ﷺ ورته وفرمايل هو [ما خلقو ته ستا دَ امام نه جوړلو د پاره ويلي وو] ④ او راوي وايي (چې زما خيال دي) چې حضور ﷺ هغه سړي ته (د امامت ځخه د منع كولو سبب بيانولو سره دا هم) فرمايلي وو چې تا (دا ممنوع فعل كولوسره) الله جل جلاله اوده غه رسول ته تكليف رسولي دي.(ابوداؤد)

**حل اللغات:** ③ حَسِبْتُ: أَيْ: ظَنَنْتُ: زما ګمان دې، ④ آذَيْتَ: تكليف دې اورسولو.

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب فى كراهية البزاق فى المسجد (رقم-۴۸۱)

**تسهیلات:**

**قوله:** رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ:

**قبلې طرف ته توکلو باندې دامامت نه معزوله کول:** دَدې تصریح ضرورت دَدې دَپاره پیښ شو چه دا صحابی غیر مشهورو یادَ ده په صحابی کیدو کښې اختلاف وو. "فذکر ذلك" یعنی کله چه دَ دغه سړی دَبې ادبئی دَ وجې نه حضورپاك خفه شونو بخپله نی هغه سره خبره هم اونه کړه. دَهغه مقتدیانو ته نی اوفرمائیل چه داسړې دې بیا ستاسو امامت نه کوی ځکه چه دا دَامام جوړیدو اهل نه دې. بیاچه کله هغه مونځ ورکولو نوخلقو هغه منع کړو هغه دَ وجې تپوس اوکړو نوهغه خلقو اوونیل چه دَحضورپاك دغه حکم دې. دا سړې حضورپاك له لاړو او تپوس نی اوکړو تاسو واقعی زه دَ مونځ ورکولونه منع کړې یم حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو او ما منع کړې نی. په دې باندې هغه پوښتنه اوکړه دَدې څه وجه ده نو رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه تا الله تعالی اودَ هغه رسول ته تکلیف رسولې دې دغه شان هغه امام دَ امامت نه فارغ کړې شو.

**قوله:** وَحَسِبْتُ:

**قبلې ته دَ توکانړو توکلو حرمت:** دادَ راوی خلاد بن سائب کلام دې یعنی زما خیال دې چه حضورپاك دَ نعم نه پس دا سخت کلمات هم ارشاد فرمائیلې وو. دَدې سخت وعید نه پس دَ یو مسلمان دَپاره مناسب او جائزنه دی چه هغه دې دَقبلې طرف ته توکانړې اوتوکی، په دې حدیث کښې دَ قبلې لفظ دې دَدې نه دَ قبلې طرف ته دیوال مراد دې محراب مراد نه دې ځکه چه دَمحراب ایجاد حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله هغه وخت کړې کله چه دَ مسجد نبوی تعمیرنو اوشو محراب ته موقف الامام هم وائی ځکه چه په دې کښې امام اودریږی اودادَ ټولونه ښکلې ځائی وی. هم دغه وجه ده چه دَ بادشاه محل ته هم محراب وائی ځکه چه هغه هم ښکلې ځائی وی اوبادشاه ځان له په هغې کښې اوسیږی. محراب ته دَدې دَ پاره محراب وائی چه امام په دې ځائی کښې شیطان سره جنګیږی.

**۷۳۸- دَ بعضې اعمالو په فضیلت کښې دَ فرشتو مباحثه**

۷۳۸- (¹) [۵۵] ۱ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ «احْتَبَسَ عَنَّا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ذَاتَ غَدَاةٍ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ، ۳ حَتَّى كِدْنَا نَتَرَاءَى عَيْنَ الشَّمْسِ، ۴ فَخَرَجَ سَرِيعًا فَثُوِّبَ بِالصَّلَاةِ ۵ فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَتَجَوَّزَ فِي صَلَاتِهِ، ۶ فَلَمَّا سَلَّمَ دَعَا بِصَوْتِهِ، فَقَالَ لَنَا: ۷ (عَلَى مَصَافِّكُمْ كَمَا أَنْتُمْ)،

**ترجمه:** ۱ معاذ بن جبل رضی الله عنه فرمایي ۲ چې یو ورځ رسول الله ﷺ دَ سحر لمانځه لره په تشریف راوړلو کې (خلاف عادت دومره) تاخیر وکړي ۳ چې نزدې وه چې نمر راوخیژي ۴

(¹) اخرجه الترمذی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة ص (رقم-۳۲۳۵)

بیا رسول الله ﷺ په تیزئ سره تشریف راوړو نو د لمانځه د پاره تکبیر اووئیلي [۵] او حضور ﷺ د صحابه ؤ سره مونځ وکړو (داسې چې) په لمانځه کې یې تخفیف وکړو (یعني واړه واړه سورتونه یې پکې ووېل) [۶] او د سلام ګرځولو څخه وروسته یې په اوچت آواز سره وفرمایل [۷] څنګه چې تاسو خلق ناست یئ دغسې په خپل خپل ځای ناست اوسئ.

**حل اللغات**: ① احْتُبِسَ: دَ مجهول صیغه ده یعني منع کړو اودَ معلوم هم ده یعني پخپله منع شو. ② ذَاتَ غَدَاةٍ: أَيْ يَوْمًا: یعني یوه ورځ د سحر، ③ كِدْنَا: أَيْ: قَارَبْنَا: نزدې شو مونږ. ④ نَتَرَاءَى: یعني دومره ناوخته شو چه مونږ کتل چرته نمر خونه دې راختلې ⑤ فَثُوِّبَ: مِنَ التَّثْوِيبِ، وَهُوَ الْإِعْلَامُ مَرَّةً بَعْدَ أُخْرَى وَالْمُرَادُ بِهِ الْإِقَامَةُ: یوځل نه پس بیا اعلان کول خو دلته ترې دمونځ دپاره تکبیر مراد دې. ⑥ تَجَوَّزَ: أَيْ: خَفَّفَ: یعني حضورپاك مختصر مونځ ورکړو. ⑦ مَصَافِّكُمْ: مصاف مَصَفٌ جمع ده، صف ته وائی یعني تاسو په خپلو خپلو صفونو کښې په خپل صف کښې کینئ.

> [۱] ثُمَّ انْفَتَلَ إِلَيْنَا ثُمَّ قَالَ: [۲] (أَمَا إِنِّي سَأُحَدِّثُكُمْ مَا حَبَسَنِي عَنْكُمُ الْغَدَاةَ: [۳] إِنِّي قُمْتُ مِنَ اللَّيْلِ، فَتَوَضَّأْتُ وَصَلَّيْتُ مَا قُدِّرَ لِي، [۴] فَنَعَسْتُ فِي صَلَاتِي حَتَّى اسْتَثْقَلْتُ، [۵] فَإِذَا أَنَا بِرَبِّي تَبَارَكَ وَتَعَالَى فِي أَحْسَنِ صُورَةٍ، فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ! قُلْتُ لَبَّيْكَ رَبِّ! [۶] قَالَ: فِيمَ يَخْتَصِمُ الْمَلَأُ الْأَعْلَى؟ قُلْتُ: لَا أَدْرِي، قَالَهَا ثَلَاثًا)، [۷] قَالَ: (فَرَأَيْتُهُ وَضَعَ كَفَّهُ بَيْنَ كَتِفَيَّ [۸] حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَ أَنَامِلِهِ بَيْنَ ثَدْيَيَّ، [۹] فَتَجَلَّى لِي كُلُّ شَيْءٍ وَعَرَفْتُ،

**ترجمه**: [۱] بیا حضور ﷺ زمونږ طرف ته متوجه شو او وې فرمایل [۲] خبر شئ زه نن د سحر په لمانځه کې تاخیر سره د راتلو وجه تاسو ته بیانوم [۳] (او هغه دا ده چې) زه نن شپه د تهجد د لمانځه د پاره راپورته شوم اودس مې وکړو او څومره چې زما په مقدر کې مونځ وو هغه مې وکړو [۴] او په لمانځه کې ماته خوب راغې تر دې چې په ما خوب غالب شو [۵] (هغه وخت) ناګهانه ما خپل پروردګار بزرګ وبرتر په ښه صورت کې (یعني د ښه صفت سره) ولیدلو، الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ ماته وفرمایل ای محمد (ﷺ) ما عرض وکړو ای پروردګاره زه حاضر یم [۶] الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ وفرمایل تاته معلومه ده چې مقربې فرشتې په کومه خبره کې بحث کوي؟ ما عرض وکړو پروردګاره ماته نه ده معلومه، الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ درې ځله دغسې پوښتنه وکړه (او ما دغسې جواب عرض کولو) [۷] حضور ﷺ فرمایي چه ما ولیدل چې الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ زما د اوږو په مینځ کې خپل لاس مبارك کېښودلو [۸] تر دې چې ما د الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ د ګوتو یخ والي په خپله سینه کې محسوس کړو [۹] (د هغې اثر داسې شو چې) زما په مخکې هر شي ظاهر شو او زه په ټولو خبرو پوهه شوم.

**حل اللغات**: ⑧ انْفَتَلَ: أَيْ: انْصَرَفَ: راوګرځیدو (دمونځ نه) ⑨ فَنَعَسْتُ: دا د نُعاس نه دې، وَهُوَ النَّوْمُ الْقَلِيلُ: لږشان خوب یا دخوب جوتو ته وائی ⑩ اسْتَثْقَلْتُ: أَيْ: غَلَبَ عَلَيَّ: زه درونډ شوم یعني خوب راباندې غالب شو.

۱] فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ! قُلْتُ: لَبَّيْكَ رَبِّ! [۲] قَالَ فِيمَ يَخْتَصِمُ الْمَلَأُ الْأَعْلَى: قُلْتُ: فِي الْكَفَّارَاتِ [۳] قَالَ: وَمَا هُنَّ؟ قُلْتُ: مَشْيُ الْأَقْدَامِ إِلَى الْجَمَاعَاتِ، [۴] وَالْجُلُوسُ فِي الْمَسْجِدِ بَعْدَ الصَّلَوَاتِ، [۵] وَإِسْبَاغُ الْوُضُوءِ حِينَ الْكَرِيهَاتِ، [۶] قَالَ: ثُمَّ فِيمَ قُلْتُ: فِي الدَّرَجَاتِ [۷] قَالَ: وَمَا هُنَّ؟ قُلْتُ: إِطْعَامُ الطَّعَامِ، وَلِينُ الْكَلَامِ، [۸] وَالصَّلَاةُ بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ،

**ترجمه:** [۱] بيا الله تعالى ﷻ وفرمايل اې محمد (ﷺ)! ما عرض وکړو پروردګاره زه حاضر يم [۲] وې فرمايل او وايه چه مقربې فرشتې په څه خبره کې بحث کوي؟ ما عرض وکړو د ګناهونو د ختمونکو څيزونو په باره کې [۳] الله تعالى ﷻ وفرمايل هغه کوم څيزونه دي؟ ما عرض وکړو د جمعې د پاره (مسجدونو ته) راتلل [۴] او د لمانځه کولو نه پس (د دعا وغيره د پاره) په مسجد کې کيناستل [۵] او د سختې سره (کوم وخت چې د يخنۍ يا د بيمارۍ په وجه اوبه استعمالول تکليف رسونکي وي) په ښه شان اودس کول [۶] الله تعالى ﷻ وفرمايل بل په کوم شي کې بحث کوي؟ ما عرض وکړو د درجاتو باره کې [۷] وې فرمايل هغه څه دي؟ ما عرض وکړو په غريبانو او مسکينانو باندې طعام خوړل په نرمه لهجه کې خبرې کول [۸] او دشپې هغه وخت (يعني د تهجد) مونځ کول هر کله چې خلق اوده وي.

[۱] قَالَ: سَلْ، قَالَ: قُلْتُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ، [۲] وَتَرْكَ الْمُنْكَرَاتِ، وَحُبَّ الْمَسَاكِينِ [۳] وَأَنْ تَغْفِرَ لِي. وَتَرْحَمَنِي، [۴] وَإِذَا أَرَدْتَ فِتْنَةً فِي قَوْمٍ فَتَوَفَّنِي غَيْرَ مَفْتُونٍ، [۵] وَأَسْأَلُكَ حُبَّكَ وَحُبَّ مَنْ يُحِبُّكَ [۶] وَحُبَّ عَمَلٍ يُقَرِّبُنِي إِلَى حُبِّكَ) [۷] فَـ قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (إِنَّهَا حَقٌّ فَادْرُسُوهَا ثُمَّ تَعَلَّمُوهَا»)، رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، [۸] وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: هَذَا الْحَدِيثُ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [۱] بيا الله تعالى ﷻ وفرمايل ښه اوس د خان د پاره چې څه غوارې دعا وکړه نو ما دعا وکړه اې الله زه ستا څخه سوال کوم د نيکيو کولو [۲] او د بدئ پريښودلو او د مسکينانو د دوستۍ [۳] او د خپل بخښش او ستا د رحمت [۴] او هر کله چې ته يو قوم په ګمراهۍ کې اچول غوارې نو ما بغير د ګمراهۍ نه پورته کړې [۵] او زه ستا څخه ستا د محبت (يعني دا چې زه تا دوست ولرم يا ته ما دوست ولرې) او د هغه سړي محبت چې تا سره محبت کوي (يعني دا چې زه هغه دوست ولرم يا هغه ما دوست لرې) [۶] او د داسې عمل محبت چې ستا محبت ته مې نزدې کړي (سوال کوم)، [۷] بيا حضور ﷺ (ومونږ ته) وفرمايل دا خوب بالکل رښتيا دې خو تاسو دا ياد اوساتئ او بيا يې خلقو ته وښايئ، احمد، ترمذي [۸] او امام ترمذي فرمايي چه ما د محمد بن اسمٰعيل څخه د دې حديث په باره کې پوښتنه وکړه نو هغه اوويل دا حديث صحيح دې.

**حل اللغات:** (۱) الْمَلَأُ: أَيِ: الْأَشْرَافُ: مقرّب، عزت مند، (۲) الْأَعْلَى: يَعْنِي: الْمَلَائِكَةَ الْمُقَرَّبِينَ: مقربې فرشتې، سردارانې فرشتې، (۳) بَرْدَ: أَيْ: رَاحَةَ الْكَفِّ: دلاس يخ والى (يعنى دهغې لذت، نرم والې او

راحت والا کيدل. ⑬ إِسْبَاغُ: أَيْ: إِكْمَالُهُ: کامل طريقې سره اودس کولوته وائي ⑮ الْكَرِيهَاتِ: أَيْ: فِي شِدَّةِ الْبَرْدِ: مکاره مکروه او ناخوښه ته وائي دلته ترې مراد يخني يا بيمارئ کښې اوبو سره اودس کول دي چه دا په انسان بد لګي. ⑯ لِينُ الْكَلَامِ: خلقوسره نرمې خبرې کول (د الله درضا دپاره). ⑰ فَادْرُسُوهَا: أَيْ: اقْرَءُوهَا ثُمَّ تَعَلَّمُوهَا: يعني دا زده کړئ او ښه خان پوهه کړئ او بيا نورخلق پوهه کړئ. ⑱ "تعلموها" دلته په دې صيغه کښې لام امرمحذوف دې. "اي لتعلموها" يعني نور خلق پوهه کړه.

**تسهيلات:**

**دحديث واقعه د خوب وه:** دَ دې حديث تشريح دې نه مخکښې حديث نمبر (۷۳۵) کښې تيره شوې ده. البته دهغه ځائي په حديث کښې دا احتمال وو چه دا واقعه په بيدارئ کښې پيښه شوې وه ليکن دلته په دې حديث کښې وضاحت دې چه دا واقعه دَ خوب وه. کله چه واقعه دَ خوب وی نوبيا بريليان په دې روايت سره خپلو غلطو عقيدوته رواج نه شي ورکولې. يوځل دَ بريليانو محمد شفيع اوکاړوی صاحب اووئيل چه زه نن دَ دې حديث معامله حل کوم چه حضورپاك په وتلو کښې ولې ناوخته کړو. بيا ئې اووئيل حضورپاك له الله تعالی راغلې وو حضورپاك دَ مانځه دپاره تللو اوالله تعالی حضورپاك منع کولو چه دځا مونځ کولو له روان ئې هغه پخپله تاسره دې. استغفرالله، دَ بيمار سوچ څنګه بيماره تشريح ده.

**۷۳۹- جمات ته د داخليدو دعا**

۷۳۹-(١)[٥٦] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ٢ «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ: ٣ (أَعُوذُ بِاللهِ الْعَظِيمِ، وَبِوَجْهِهِ الْكَرِيمِ، ٤ وَسُلْطَانِهِ الْقَدِيمِ، مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ) ٥ قَالَ [فَإِذَا قَالَ ذَلِكَ، ٦ قَالَ الشَّيْطَانُ: حُفِظَ سَائِرَ الْيَوْمِ»)، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ عبدالله ابن عمرو بن العاص رضي الله عنهما فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ چې به په مسجد کې داخليدلو نو دا دعا به يې کوله ٣ أَعُوْذُ بِاللهِ الْعَظِيْمِ وَبِوَجْهِهِ الْكَرِيْمِ وَسُلْطَانِهِ الْقَدِيْمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ يعنى زه د الله پناه غوارم چې عزت والا، بزرګ ذات دې ٤ او د هميشه سلطنت والا دې د شيطان مردود څخه، ٥ حضور ﷺ وفرمايل هر کله چې يو سړي په مسجد کې د داخليدو په وخت دا دعا غواړي ٦ نو شيطان د هغه سړي په باره کې وايي چې دا بنده ټوله ورځ زما د شر څخه محفوظ شو. (ابوداؤد.)

**حل اللغات:** ① بِوَجْهِهِ: أَيْ: ذَاتِهِ: يعني په ذات د الله تعالى. ② الْكَرِيمِ: أَيِ الْمُحْسِنِ: احسان کونکي، مهربان ③ سُلْطَانِهِ الْقَدِيمِ: د هميشه بادشاهت والا.

(١) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب فيما يقوله الرجل عند دخوله المسجد (رقم-٤٦٦)

**تسهیلات:**

**قوله: حُفِظَ سَائِرَ الْيَوْمِ**

**د شیطان څخه د حفاظت باوجود ګناهونه ولې؟:** د دې حدیث پاك نه دا معلومیږي چې د دې دعا لوستلو سره انسان ټوله ورځ د شیطان د شر نه محفوظ کیږي ، حالانکه کله کله داسې هم اوشي چې د دې دعا لوستونکې په معصیت او ګناه کښې اخته شي.

**جوابونه:** ① شیطان نه مراد غټ ابلیس دې. د هغه نه محفوظ شي. د هغه د کارندګانو نه هیڅ کله نه محفوظ کیږي.

② د شیطان نه په حفاظت کښې شی خو د خرابو عادتونو څخه نه منع کیږي. څکه چې دغه ګناهونه دې د خپل عادت څخه مجبوره کوی ئې.

③ دده په ذهن کښې د ماحول اثر باقي وي. لکه څنګه چې په رمضان مبارك کښې شیطانان قید وي. او د دې باوجود بیا هم جنګ جګړې کیږي. نو دا د ماحول اثر وي.

**د شیطان څخه د حفاظت ضرورت:**

دې حدیث پاك څخه معلومه شوه چې دالله تعالی صفات وسیله جوړول پکار دی. او هر چا ته پکار دی چې شیطان نه دالله تعالی په ذات سره پناه طلب کړي .هیڅ یوکس هم خپل خان د شیطان د حملې څخه نشی بچ کولې مګر هغه څوک چې الله تعالی ئې حفاظت اوکړي اوګورئ حضرت آدم علیه السلام معصوم وو او جنت هم محفوظ وو ، بیا هم دشیطان چال کامیاب شو په دې وجه د شیطان د حفاظت نه ډیره زیاته دعا کول پکار دی.

**۷۵۰-د نبی علیه السلام د خپل قبر مبارک په باره کښې دعا**

۷۵۰-(^)[۷۵۴] ① وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② (اللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْ قَبْرِي وَثَنًا يُعْبَدُ، ③ اشْتَدَّ غَضَبُ اللّٰهِ عَلَى قَوْمٍ اتَّخَذُوا قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ» )، رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** ① عطاء ابن یسار رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② (یعنې دا دعا یې وفرمایله) اللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْ قَبْرِي وَثَنًا يُعْبَدُ یعنی اي الله زما قبر بت جوړ مه کړي چې خلق د هغې عبادت کول شروع کړي ③ او حضور ﷺ وفرمایل کومو خلقو چې د خپلو انبیاؤ قبرونه سجده ګاه جوړ کړل په هغوئ د الله تعالی جل جلاله شدید غضب نازل شو ، (مالك،مرسلاً)

**حل اللغات:** ① وَثَنًا: بُت. ② يُعْبَدُ: دعبادت کولو په معنی کښې دي.

(۱) اخرجه مالک فی الموطا کتاب قصر الصلاة فی السفر . باب جامع الصلاة (رقم-۸۵)

**تسهیلات:**

**قوله:** وَثَنًا يُعْبَدُ:

**د نبی کریم ﷺ د دعا قبولیت:** یعنی زما قبر داسې د بت خانې په شان مه جوړه ونې چه خلق د دې عبادت کول شروع کړی او د لرې لرې نه راشی او د لته سجدې کول شروع کړی او طوافونه کوی او د شریعت نه خلاف تعظیم شروع کړی. که دې حدیث ته او کتلې شی نو د حضور پاك تول ارشادات نن په عملی توګه باندې موجود دی. یو طرف ته خو د قبوریین دومره زور دې چه هغوی د سید الانبیاء قبر خو څه د چاپیره قبرونو عبادت شروع کړې نو دا پیشنګونی پوره شوه. بل طرف ته الله تعالی د رسول اکرم ﷺ دعا داسې قبوله کړه چه نن د قبرونو عبادت کونکی هر طرف ته قبرونو کښې په سجدو پراته دی لیکن مجال نشته چه د سید الانبیاء د قبر مخې ته لړشان تیټ شی.

**قوله:** اشْتَدَّ غَضَبُ اللّٰهِ:

**د سوال مقدر جواب:** دا جمله لکه د سائل په جواب کښې راغلې ده، لکه چاچه سوال کړې وی یارسول الله ﷺ تاسو دا دعا په دومره اهتمام سره ولې غواړئ. رسول الله ﷺ جواب ورکړې په خپل امت باندې شفقت او مهربانی مقصود او مطلوب ده څکه چه په یهودو او نصاری باندې کله د الله تعالی غضب او قهر نازل شو نو هغوی د خپلو نبیانو قبرونه د سجدو ځایونه جوړ کړل.

### ۱۵۷- په باغونو کښې د مونځ استحباب

۱۵۷-(۱)[۵۸] ① وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ ② «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَسْتَحِبُّ الصَّلَاةَ فِي الْحِيطَانِ». ③ قَالَ بَعْضُ رُوَاتِهِ - يَعْنِي الْبَسَاتِينَ -: رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: ④ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ الْحَسَنِ بْنِ أَبِي جَعْفَرٍ، أو الْحَسَنِ ⑤ قَدْ ضَعَّفَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ وَغَيْرُهُ.

**ترجمه:** ① معاذ ابن جبل رضی الله عنه فرمایي ② چې رسول الله ﷺ به په حیطان کې مونځ کول خوښول ③ د دې حدیث بعضې راویانو ویلي دي چې د حیطان څخه مراد بساتین (یعني باغات) دي. ترمذي دا روایت نقل کولو نه پس ویلي دي چې ④ دا حدیث غریب دي دا روایت ماسیوا د حسن بن ابي جعفر د سند څخه د بل چا د سند سره منقول نه دي ⑤ او هغه هم یحیي ابن سعید وغیره ضعیف ګرځولي دي.

**حل اللغات:** ① الحِيطَانِ: دا د حائط جمع ده، أي: فِي جَلَبِ الْجُدْرَانِ: د دیوال یو طرف ته، بعضې وائی چه حیطان باغ ته وائی. ② البَسَاتِينَ: د بستان جمع ده، باغونه.

(۱) اخرجه الترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی الصلاة فی الحیطان (رقم-۳۳۴)

**تسهيلات:**

**قوله: يَسْتَحِبُّ الصَّلَاةَ فِي الْحِيطَانِ**

**د حيطان په معنی کښې دوه اقوال:** ① ځينې حضراتو د حيطان ترجمه ديوال کړې ده، چې نبی اکرم صلی الله عليه وسلم به ديوال ته نزدې مونځ کولو چې تيريدونکی ته تکليف نه وی. اونه مونځګزار ته څه تکليف وی.

② دحديث راويانو د حيطان ترجمه بساتين کړې ده . ځکه چې په هغه زمانه کښې به خلقو د باغونو دحفاظت دپاره دهغې نه ګر چاپيره ديوال وهلو. نو دې دواړو کښې مطابقت راغلو.

**۷۵۲– په مختلف جماتونو کښې د مانځه ثواب**

۷۵۳–(¹)[۵۹] [۱] وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] «صَلَاةُ الرَّجُلِ فِي بَيْتِهِ بِصَلَاةٍ، [۳] وَصَلَاتُهُ فِي مَسْجِدِ الْقَبَائِلِ بِخَمْسٍ وَعِشْرِينَ صَلَاةً، [۴] وَصَلَاتُهُ فِي الْمَسْجِدِ الَّذِي يُجَمَّعُ فِيهِ بِخَمْسِمِائَةِ صَلَاةٍ، [۵] وَصَلَاتُهُ فِي الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى بِخَمْسِينَ أَلْفِ صَلَاةٍ، [٦] وَصَلَاتُهُ فِي مَسْجِدِي بِخَمْسِينَ أَلْفِ صَلَاةٍ، [۷] وَصَلَاتُهُ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ بِمِائَةِ أَلْفِ صَلَاةٍ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] انس ابن مالك رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د سړي مونځ په خپل کورکي د يو لمانځه برابر دي [۳] او د محلې په مسجد کې د هغه مونځ د پنځه ويشت لمونځونو برابر دي [۴] او په هغه مسجد کې چيرته چې جمع کيږي (يعني په جامع مسجد کې) د هغه مونځ د پنځه سوو لمونځونو برابر دي [۵] او په مسجد اقصي (يعني په بيت المقدس کې) د هغه مونځ د پنځوس زرو لمونځونو برابر دي [٦] او زما په مسجد (يعني په مسجد نبوي کې) د هغه مونځ د پنځوس زرو لمونځونو برابر دي [۷] او په مسجد حرام کې د هغه مونځ د يو لاکهه لمونځونو برابر دي. (ابن ماجه.)

**حل اللغات** ① الْقَبَائِلِ: أَيْ: الْحَيّ: محله، ② يُجَمَّعُ فِيهِ: أَيْ: يُصَلِّي فِيهِ الْجُمُعَةَ: چه دجمعې مونځ پکښې کيږی. ③ مَسْجِدِي: دې نه مراد مسجد نبوی عليه السلام دی

**تسهيلات: قوله: فِي بَيْتِهِ:**

**دمونځ د ثواب درجات:** په دې حديث کښې دَ مونځونودَ ځان لـه ځان لـه درجاتو وضاحت کړې شوې دې. دې دپاره چه دَدې فضيلت اوريدوسره هرسړې په دې عمل اوکړي. چنانچه په دې پرکشش او باعث ترغيب حديث کښې رومبې فضيلت دَهغه سړی دې ځوك چه په کورکښې مونځ کوی. مونځ خوئی پريخودې نه دې کړې دې مګر ځان لـه ئی کړې لهذا ده ته دَ يومونځ هم يوثواب ملاويږی دادَتولونه کمه درجه ده

(¹) اخرجه ابن ماجة كتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء في الصلاة في المسجد الجامع (رقم-١٤١٣)

**قوله: مَسْجِدِ الْقَبَائِلِ:** يعنى كه دَمحلي په جمات كښي دې مونځ اوكړو نويومونځ دَ پنځه ويشتو مونځونوبرابر دې.

**قوله: يُجَمَّعُ فِيهِ:**

**دجامع مسجد مصداق:** دې نه هغه جامع مسجد مراد دې په كوم كښې چه خلق دَ جمعه او اخترونو مونځونوكولودَپاره يوځائى كيږى حضرت عمر رضي الله عنه نهه سوه جامع مسجدونه جوړكړل او څلور زره ئى عام جماتونه جوړكړل يعنى كوم سړې چه په جامع مسجد كښې په جمع سره مونځ اداكوى نو هغه ته دَ پنځوسوو مونځونو ثواب ملاويږى او په بيت المقدس او مسجدنبوى كښې كه يوسړې مونځ كوى نوهغه ته دَ پنځوسو زرو مونځونو ثواب ملاويږى اوكه يوسړې په يووخت كښې مسجدحرام (بيت الله) كښې مونځ كوى نوهغه ته دَ دې په بدله كښې دَ يولاكهو مونځونو ثواب ملاويږى.

**په مسجد نبوى كښې دثواب په تعداد كښې تعارض:** دلته دَ مونځونودَ تعداد ترتيب داسې دې بعض رواياتوكښې دَ مسجد نبوى ثواب دَ زرو برابر خودلې شوې دې په دواړو روايتونوكښې په ظاهره كافى تعارض ښكارى

**دتعارض حل:** مگر دا داسې دفع كولې شى چه په اعداد مكښې تعارض نه وى ځكه چه يوعدد دَ بل عدد نفى نه كوى دويم جواب دا چه دا فضائل اودرجات زياتيږى لهذا دا تضاد اوتعارض نه دې اول هم په دې ابواب كښې دَدې قسم حديث اودَدې تشريح تيره شوې هم هلته تفصيل اوگورئى.

## ۷۵۳–تړوله زمكه جمات كرځول

۷۵۳–(۱)[۲۰] ١ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ «قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ مَسْجِدٍ وُضِعَ فِي الْأَرْضِ أَوَّلُ؟ ٣ قَالَ: (الْمَسْجِدُ الْحَرَامُ)، ٤ قَالَ: قُلْتُ: ثُمَّ أَيُّ؟ قَالَ: (ثُمَّ الْمَسْجِدُ الْأَقْصَى)، ٥ قُلْتُ: كَمْ بَيْنَهُمَا؟ قَالَ: (أَرْبَعُونَ عَامًا)؟. ٦ ثُمَّ الْأَرْضُ لَكَ مَسْجِدٌ، فَحَيْثُمَا أَدْرَكَتْكَ الصَّلَاةُ فَصَلِّ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابي ذر رضي الله عنه فرمايي ٢ چې ما رسول الله ﷺ ته عرض وكړو يا رسول الله ﷺ د زمكې په سر د ټولو څخه مخكې كوم مسجد جوړ شوې دې؟ ٣ حضور ﷺ وفرمايل مسجد حرام ٤ ما عرض وكړو بيا د دې څخه وروسته؟ وې فرمايل مسجد اقصى (يعني بيت المقدس) ٥ بيا ما پوښتنه وكړه چې د دې دواړو مسجدونو (د بناء) په مينځ كې څومره زمانه وه؟ حضور ﷺ وفرمايل څلويښت كاله ٦ بيا د دې څخه وروسته يې

(۱) اخرجه البخارى كتاب احاديث الانبيا باب قول الله تعالى: {واتخذ الله إبراهيم خليلا} [النساء: ۱۲۵](رقم-۳۳۶۶) ومسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة(رقم-۲ - (۵۲۰) وابن ماجة كتاب المساجد والجماعات ،باب أى مسجد وضع أول(رقم-۷۵۳) والنسائى كتاب المساجد /باب ذكر أى مسجد وضع أولا رقم (۶۹۰)

وفرمايل اوس خو ټوله زمکه ستا د پاره مسجد دي (يعني د دې هره حصه د مسجد حکم لري) چېرته چې د لمانځه وخت په تا راشي هلته مونځ کوه. (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:** ① وُضِعَ: أَيْ: جُعِلَ مُتَعَبَّدًا: چه دعبادت دپاره مقرر شوې وی. يعنی دَ وضع لفظ دَ عبادت په توګه مقرر کولو دپاره استعمال شوې دې. دَ ظاهری تعميردَ پاره دَ بنا او بنيان الفاظ راځی.

**تسهيلات:**

**قوله: "وُضِعَ فِي الْأَرْضِ أَوَّلُ؟"**

**د کائنات د تخليق مراحل:** وقائع الدهور يوګمنام شان کتاب دې په هغې کښې دَتخليق کائنات سره متعلق ډير څه ليکلی دی. په هغې کښې دا هم ليکلی دی

① چه الله تعالی دَټولو نه مخکښې يوشينه مرغلره پيدا کړه. هغه مرغلرې ته الله تعالی دَ رعب او هيبت په نظرسره اوکتل نوهغه ونيلي شوه او اوبه شوې.

② اوس په کائنات کښې صرف اوبه وې. په قرآن کريم کښې دَدې نقشې طرف ته دا شان اشاره موجود ده. ﴿وَّكَانَ عَرْشُهٗ عَلَى الْمَآءِ﴾ [سورت هود: ۱]

③ بيا الله تعالی په اوبوباندې دَ رعب نظر واچولو نودَ هيبت دَ وجې نه اوبه په خوټکيدو شوې او خوټکيدو خوټکيدو سره اوچې شوې لاندې يوقسم بيخ پاتې شو او پورته ترې نه لوګی اوچت شو هم دَ دغه لوګی نه الله تعالی آسمان جوړکړو. دکوم طرف ته چه په قرآن کريم کښې دا شان اشاره موجود ده. ﴿ثُمَّ اسْتَوٰٓى اِلَى السَّمَآءِ وَهِيَ دُخَانٌ﴾ [سورت حٰم سجده: ۱۱]

④ لاندې چه کوم بيخ پاتې شوې وو هم دَهغې نه الله تعالی زمکه جوړه کړه دَ کوم طرف ته چه په قرآن پاك کښې دا ارشاد موجود دي ﴿وَالْاَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ دَحٰىهَا﴾ [سورت نازعات: ۳۰] دَ کوم ځائی نه چه زمکه خوره کړې شوې وه هم هغه ځائی وسط الدنيا او سرة الدنيا وو او هم هغه ځائی په ټوله دنيا کښې لکه دَ غونډۍ په شان وو

**د خانه کعبې د تعمير مختلف مراحل:** ① او هم هغه ځائی الله تعالی دَخپل کوردَ پاره خوښ کړو او هغه ئی حرم مکه اوګرځولو اوهم په دغه ځائی ئی بيت الله قائم کړو. لکه چه دَ ټولو نه مخکښې فرښتو دَ بيت الله بنياد کيخودو اودَ دنيا دَمختلف مقدس غرونونه ئی لوئی لوئی کانړی راوړل اودَ بيت الله په لاندې بنيادونو کښې کيخودل.

② کله چه حضرت آدم عليه السلام دَ جنت نه راکوزکړې شو او دنياته ئی تشريف راوړو نوهغه دَ ځان له کيدونه ويريدلو. بل فرښتوسره يوځائی دَ بيت المعمور دَ طواف نظاره هغوی ته ياديدله نو الله تعالی هغوی ته دَ سرانديپ نه مکې ته دَتلو حکم ورکړو. جبرائيل امين به ورته لار خودنه کوله تردې چه حضرت آدم عليه السلام مکه مکرمه کښې هغه ځائی ته اورسيدو چرته چه فرښتودَ بيت الله بنيادونه کيخودې وو. دَ الله تعالی په حکم سره بيت المعمور دَ

آسمانونو نه لاندې راوړلې شو او هم په دغه بنیادونو باندې کیخودې شو. حضرت آدم علیه السلام او فرښتې یوځائې عبادت او طواف کښې مشغول شوې.
③ بیا چه کله طوفان نوح راغلو نو الله تعالی بیت المعمور اووم آسمان ته واپس اوچت کړو او په زمکه باندې دَ بیت الله نشانات او بنیادونه دَ خاورې لاندې راغله خښ شو.
④ هم دغه قواعد ښکاره کول او په هغې باندې بیت الله قائم کولو حکم حضرت ابراهیم علیه السلام ته اوشو هغوی حضرت اسماعیل علیه السلام سره یوځائې دا کار اوکړو او دَبیت الله تعمیر ئې اوکړو چت ئې نه وو. دَ دروازو ځائې موجود وو مگر دروازې نه وې. دَ یوې دروازې ځائې هم دغه ځائې کښې چرته چه نن صبا ده او دویم ځائې دَدې مقابل رکن یمانی طرف ته وو. بیا تبع بادشاه دروازې اولګولې او بیت الله ته ئې پردې واغوستلې.
⑤ بیا عمالقه دَ بیت الله په تعمیر او تجدید کښې کار اوکړو. بیا قریشو بیت الله دَ نړولو نه پس جوړ کړو په کوم کښې چه حضور پاك هم دَ ۳۵ کالو په عمر کښې حصه واخستله. قریشو په بیت الله کښې ردوبدل اوکړو دَحطیم حصه ئې بهر پریخوده او دَ دوو په ځائې یوه دروازه کیخوده او هغه ئې هم دَ انسان دَ قد برابر دَ زمکې دَپاسه کیخوده.
⑥ بیا عبدالله بن زبیر رضی الله عنهما په خپل دور خلافت کښې بیت الله راغوزار کړو او دَ حضور پاك دَ خواهش مطابق ئې جوړ کړو حطیم ئې دننه کړو او دروازې په زمکه جوړې کړې.
⑦ حجاج بن یوسف چه کله غالب راغلو نو هغه بیت الله راغوزار کړو او دَ قریشو په طرز ئې جوړ کړو چه ترننه پورې هم هغه شان دې. هارون الرشید دَ حضرت امام مالك رحمه الله نه اجازت اوغوښتلو چه که اجازت وی نو بیت الله په دې طرز باندې جوړ کړم د کوم چه حضور پاك خواهش کړې وو. حضرت امام مالك رحمه الله فتوی ورکړه چه اوس په بیت الله کښې تغیر او تبدل حرام دې هسې نه چه دا دَ بادشاهانو دَتعمیر فن یوه کهلونا جوړه شي
⑧ بیا ترك بادشاه سلطان مراد څه تعمیر او مرمت اوکړو مگر بدلون ئې اونه کړو او ترننه پورې هغه شان قائم دې. بیا به دَ قیامت نه مخکښې دَ یو حبشي په لاس بیت الله شهید کیږی او مسلمانان به بې وسه وی. بیا به قیامت سره نیزدې دَ بیت الله حقیقت الله تعالی دَ دنیا نه اوچت کړی او قیامت به قائم شي شاه عبدالعزیز رحمه الله په خپل تفسیر کښې دَ بیت الله مرحله وار تعمیر بیان کړې دې دَ سورت بقره په تفسیر کښې اوګورئ.

**قوله: "الْمَسْجِدُ الْحَرَامُ"**

**دمسجد حرام وجه تسمیه:** دې ته حرام ځکه وائی چه په دې کښې ښکار حرام دې او دا هم دی چه په دې کښې دَ بعضې حلالو څیزونو ارتکاب حرام دې او دا هم چه دا محترم او واجب الاحترام دې.

**قوله: أَرْبَعُونَ عَامًا"**
یعنی دَ بیت الله او مسجد اقصیٰ آبادی او تعمیر په مینځ دَ څلوېښتو کالو فاصله ده.
**د مسجدینو د تعمیر په موده کښې تعارض:** دکعبة الله جوړونکې حضرت ابراهیم علیه السلام او بیت المقدس کښې مسجد اقصیٰ جوړونکې حضرت سلیمان علیه السلام دي او ددې دواړو پیغمبرانو په مینځ کښې دَ زرو کالو فاصله ده نو دا څنګه ممکن شو چه ددې دواړو په مینځ کښې دَ څلوېښتو کالو فاصله ده؟
**د تعارض جواب:** علامه طیبی رحمه الله او علامه بیضاوی رحمه الله ددې اشکال دا جواب ورکړې دې چه دَ باقی شارحینو دَ جوابونه زیات واضح دې هغه دا چه دلته تعمیر او ترقی او عمارتی بنیاد کیخودو خبره نشته بلکه دَالله تعالی دَ عبادت دَپاره په توګه دَ عبادت دَ خائی کله چه په مخ دَزمکه بیت الله مقرر شو نو دَ هغې نه څلوېښت کاله پس بیت المقدس په توګه دَ عبادت دَ خائی مقرر شو. په دې جواب باندې دَ حدیث لفظ وضع په واضحه توګه دلالت کوی ځکه چه دَ وضع لفظ دَ تعمیر په ځائی دَتقرر دَپاره زیات واضح دې. بل دَ قرآن پاك آیت ﴿اِنَّ اَوَّلَ بَیْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ﴾ [سورت آل عمران: ۹۶] کښې هم دَ وضع لفظ دې کوم چه دَ عبادت په توګه مقرر کولو دَپاره استعمال شوې دې. دَ ظاهری تعمیر دَ پاره دَ بنا او بنیان الفاظ راځی.

## [۸/۲۵] بَابُ السَّتْرِ

**په مانځه کښې دَ ستر پټولو مسائل**

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على ثماني مسائل:**

① حكم الصلوة في الثوب الواحد: ۱، ۲، ۳، ۷، ۱۵، ۱۷، ۱۸.
② حكم وضع طرفي الثوب على عاتقيه: ۱، ۲، ۳، ۱۵.
③ الاحترازعن لباس فيه التصاويروالأعلام: ۴، ۵.
④ الاحتراز عن لباس الحرير: ۶.
⑤ النهي عن إسبال الإزار: ۸.
⑥ وجوب تغطية الرأس للمرأة: ۹، ۱۰.
⑦ النهي عن السدل في الصلاة: ۱۱.
⑧ الصلوة متنعلاً وحافياً: ۱۲، ۱۳،۱۴، ۱۶.

**دمانځه دپاره د عورت پټولو ثبوت د قرآن نه:** ① الله تعالی فرمائیلی دی. ﴿ يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ ﴾ [سورت اعراف]

② دغه شان الله تعالی فرمائیلی دی. ﴿ يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ قَدْ اَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُّوَارِيْ سَوْاٰتِكُمْ وَرِيْشًا ﴾ [سورت اعراف]

**د عورت پټولو شرطیت:** دَ مونځ صحیح کیدودَپاره که یوطرف ته ډیر زیات شرائط دی نو په هغې کښې یو شرط "ستر" دې یعنی شرمګاه او مستور اندامونه پټول فرض دی صاحب مشکوة په دې مذکوره باب کښې هم دَدې سلسلې احادیث راجمع کړی دی اودَدې نه علاوه ئې دَ هغه لباسونوهم ذکرکړې دې دَ کومو په اغوستلوسره چه صحابه کرامو ﷺ مونځونه کړی دی. په دې باب کښې صاحب مشکوة په مجموعی توګه اتلس احادیث ذکرکړی دی

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## ۷۵٤-په یوه کپړه کښې د مونځ کولوحکم

٧٥٤-()[1] ① عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُصَلِّي فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ ③ مُشْتَمِلًا بِهِ، فِي بَيْتِ أُمِّ سَلَمَةَ، ④ وَاضِعًا طَرَفَيْهِ عَلَى عَاتِقَيْهِ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت عمر ابن ابي سلمه رضی الله عنه فرمایي ② چې ما رسول الله ﷺ په یوه کپړه کې په لمانځه کولو لیدلي دي د بي بي ام سلمه رضی الله عنها په مکان کې، حضور ﷺ هغه کپړه د جسم څخه داسې راچاپیره کړې وه ④ چې د هغې دواړه غاړې د حضور ﷺ په اوږو مبارکو وې (بخاري، مسلم.)

**حل اللغات:** ① مُشْتَمِلًا: أَيْ: بِأَنْ لَفَّهُ بِبَدَنِهِ: یعنی د بدن نه ئې راچاپیره کړې وه ② وَاضِعًا: اچولې ئې وه. دا جمله مشتملاً دَ ضمیرنه حال ده اودَ اشتمال دَ صورت تفصیل او وضاحت دې ③ عَاتِقَيْهِ: عَاتِقٌ: مَا بَيْنَ الْمَنْكِبِ إِلَى أَصْلِ الْعُنُقِ: د دواړواوږو دمینځ څخه واخله تر د څټ وینه پورې دې ته عاتق وائی

**تسهیلات: قوله: "فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ"**

**د مانځه دپاره د جامو اغستلو درې صورتونه:** ① په حالت دَ وسعت او طاقت کښې په مانځه کښې درې کپړې یعنی پرتوګ قمیص او پټکې استعمالول مستحب دی.

---

[1] اخرجه البخاری کتاب الصلوة باب الصلاة فی الثوب الواحد ملتحفا به (رقم-۳۵۶) ومسلم کتاب الصلاة باب الصلاة فی ثوب واحد وصفة لبسه (رقم-۲۷۸ - (۵۱۷) ومالک کتاب صلاة الجماعة . باب الرخصة فی الصلاة فی الثوب الواحد(رقم-۲۹) والترمذی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الصلاة فی الثوب الواحد(رقم-۳۳۹)

④ دَ وسعت او طاقت باوجود په داسې کپړو کښې مونځ کول په اتفاق سره مکروه دي چه ثياب بذله او ثياب مهنه وي يعني چه داسې کپړې وي چه دَ شرم سبب وي دکوم په اغوستو سره چه سړې يو دَ عزت والا مجلس ته تلل نه خوښوي لکه پرتوګ او يو بنيان وي. يا ګريس او تيلو کښې ککړې شوې کپړې وي يا شليدلې او زړې کپړې وي.

⑤ که چرې دَ وسعت او طاقت حالت نه وي نو دَ ضرورت په وخت په مجبورنې په يوه کپړا کښې مونځ کول دَ څه کراهت نه بغير په اتفاق سره جائز دي. البته دا به کتلې کيږي که چرې هغه يوه کپړا پلنه وي او په هغې کښې څه ګنجائش وي نو بيا دَ اشتمال صورت محمود او خوښ کړې شوې دي.

**داشتمال صورت او طريقه:** دَ اشتمال صورت او طريقه شيخ عبدالحق رحمه الله [اشعة المعات] کښې داسې ليکلې ده چه دَ څادر ګس طرف دَ ګسې اوګې لاندې رابنکلوسره په ښې اوګه باندې واچولې شي. بيا دَ څادر ښې طرف دَ ښې اوګې لاندې رابنکلوسره په ګسه اوګه باندې واچولې شي اوس دَ څادر دواړه غاړې دَ اوګو شاته لاړې دَ هغه ځائې نه دواړه دَ سينې طرف ته راوړو سره غوټه ورکولو ته اشتمال وائي اوهم دا په توشح او فليخالف وغيره نومونو سره يادکړې شوې دي. غوټه ورکول دَ اشتمال حصه نه ده صرف دَ مضبوطيا دَپاره ده اوکه څادر اوږد وي نو دَ غوټې ورکولو ضرورت نشته دي.

**۷۵۵- په اوږو دَ کپړې نه اچولو حکم**

۷۵۵-(۱)[۲] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② «لَا يُصَلِّيَنَّ أَحَدُكُمْ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ ③ لَيْسَ عَلَى عَاتِقَيْهِ مِنْهُ شَيْءٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضی الله عنه راوي دي چې سرور کائنات ﷺ وفرمايل ② په تاسو کې دې يو سړې په يوه کپړه کې داسې مونځ نه کوي ③ چې د هغه کپړې څه حصه د هغه په اوږو نه وي. (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: "لَيْسَ عَلَى عَاتِقَيْهِ"**

**د سدل د کراهت وجه:** باوجود دَدې چه په کپړو کښې ګنجائش شته اوبيا هم دَهغې څه حصه په اوګو باندې وانچولې شي نو په دې صورت کښې به دَ مونځ کولو اجازت نه وي دَمذکوره حديث دَ ظاهرې الفاظو هم دغه مطلب دي په دې کښې علماؤ داحکمت بيان کړې دي که چرې کپړا په اوګو باندې وانچولې شي اوهم هغه کپړا لنګ هم دې يعنی د

(۱) اخرجه البخاری کتاب الصلوٰۃ /باب: إذا صلی فی الثوب الواحد فليجعل علی عاتقيه (رقم-۳۵۹) ومسلم کتاب الصلوٰۃ باب الصلاۃ فی ثوب واحد وصفة لبسه (رقم-۲۷۷(۵۱۶) وابوداود کتاب الصلاۃ،باب جماع أثواب ما يصلی فيه (رقم۶۲۶)

ښکته پورته تړلو حصو دَپاره هم دغه کپړا ده نو په دې صورت کښې دَ کپړې دَ غورزیدو خطره ده او ستر ښکاره کیدې شی. بل دَ رب ذوالجلال په حضور کښې یو قسم بې ادابی هم ده. اوس په حدیث کښې چه کوم ممانعت دې دَهغې په حیثیت کښې دَ فقهاء کرامو معمولی شان اختلاف هم دې. [الکاشف: ۲/۳۱۵]

**د سدل في الصلاة په حکم کښې مذاهب:**

① دَ امام احمد بن حنبل رحمه الله او څه دَ سلفو علماؤ په نیز که چرې کپړا وی او بیا هم دَهغې څه حصه په اوګو باندې وانچولې شی نو په ښکاره اوګو سره مونځ کول جائز نه بلکه مکروه تحریمی دی.

② جمهور فرمائی چه کله ستر پوره پټ وی نو مونځ به کیږی لیکن دَ اوګودَ ښکاره پاتې کیدو دَ وجې جائز مع الکراهة دې او دا کراهت تنزیهی دې تحریمی نه دې.

**داول فریق دلیل:** زیر بحث حدیث د دوی مستدل دې او حدیث ئی په عدم جواز باندې حمل کړې دې.

**د دویم فریق دلیل:** دویم فریق دا حدیث په عدم جواز باندې نه بلکه خلاف اولی باندې حمل کړې.

**طریقه د استدلال:** فرمائی چه په دې حدیث کښې دَ اوګو دَ پټولو حکم دَ یو حکمت لاندې دې هغه دا چه که په اوګو باندې کپړا نه وی نودَ یو خادر په صورت کښې دَ ستر ښکاره کیدو خطره ده او که په لاس ئی نیولې وی نو په نامه باندې دَ لاس کیخودو سنت به فوت شی. بهرحال که کپړا دَدې نه هم کمه ده اودَ استمال صورت نه جوړیږی نو بیا مرئی سره تړل پکاردی او که دَدې نه هم کمه ده بیا ښکته ملاسره تړل پکاردی دې دَ پاره چه ستر پټ شی. حالت غیر ضرورت کښې دَ سر بربنډ پاتې کیدل دکراهت نه خالی نه دې. خاص کر که فیشن وی او ویښته انګریزی وی نو بیا په دغه کراهت کښې نور سختوالې راځی.

**۷۵۲- په یوه کپړه کښې مونځ کول**

۷۵۲-(۳)[۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] ((مَنْ صَلَّى فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ، [۳] فَلْيُخَالِفْ بَيْنَ طَرَفَيْهِ))، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې یوازي په یوه کپړه کې مونځ کوي نو هغه ته پکار دي چې د هغه کپړې په دواړو طرفونو کې مخالفت وکړي [یعني د اشتمال چې کوم صورت بیان شوې دي هغه دي اختیار

[۱] اخرجه البخاری کتاب الصلوة باب: إذا صلى في الثوب الواحد فليجعل على عاتقيه (رقم-۳۶۰) وابوداود کتاب الصلاة،باب جماع أثواب ما يصلى فيه (رقم-۶۲۷)

کړي چې د کپړې دواړه طرفونه دې په وږوواچوي او پرخان دې راتاؤکړي. (بخاري)

**حل اللغات:** ① فَلْيُخَالِفْ: یعنی اشتمال دې اوکړی دکپړې دواړه طرفونه دې په اوږو واچوی او په خان دې راتاؤکړی.

**تسهیلات: قوله:** فَلْيُخَالِفْ بَيْنَ طَرَفَيْهِ

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① یعنی یوطرف سره دې خپل ستر پټ کړی او بل طرف دې په اوګه واچوی.

② د ښی طرف حصه دې په ګس طرف او د ګس طرف حصه دې په ښی طرف واچوی.

**۷۵۷- په مانځه کښې خیال بل طرف ته کګرځیدل**

۷۵۷-()[۴] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «صَلَّى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي خَمِيصَةٍ لَهَا أَعْلَامٌ، [۳] فَنَظَرَ إِلَى أَعْلَامِهَا نَظْرَةً، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَالَ: [۴] (اذْهَبُوا بِخَمِيصَتِي هَذِهِ إِلَى أَبِي جَهْمٍ، [۵] وَأْتُونِي بِأَنْبِجَانِيَّةِ أَبِي جَهْمٍ، [۶] فَإِنَّهَا أَلْهَتْنِي آنِفًا عَنْ صَلَاتِي»)، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷞ فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ په يو داسې ځادر کې مونځ کوي چې د هغه غاړې د بل رنګ وې [يا د هغه په غاړو څه کار شوې وو] [۳] حضور ﷺ په هغه شوې کار وليدلو نو د لمانځه څخه فارغيدو سره يې وفرمايل [۴] چې دا ځادر ابو جهم ته يو سئ [۵] (او هغه ته حواله کولو سره) د ابوجهم انبجانيه ځادر راوړئ [۶] ځکه چې دې ځادر زه په لمانځه کې د حضور قلب څخه منع کړم.

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ، قَالَ: [۲] «كُنْتُ أَنْظُرُ إِلَى عَلَمِهَا [۳] وَأَنَا فِي الصَّلَاةِ فَأَخَافُ أَنْ تَفْتِنَنِي»)

**ترجمه:** [۱] او د بخاري په يو بل روايت کې دا هم منقول دي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] ما د لمانځه په دوران کې د دې ځادر د نقش ونګار طرف ته کتل [۳] او زما سره دا ويره پيدا شوه چې چېرته دا زما مونځ خراب نه کړي.

**حل اللغات:** ① خَمِيصَةٍ: ثَوْبٌ مِنْ صُوفٍ أَوْ خَزٍّ مُعَلَّمَةٌ سَوْدَاءُ: دا يوداسې ځادر ته وائی چه دَ ريښمو يا وړئی نه جوړشوې وی دکوم رنګ چه تور وی او په هغې کښې پټې وی. په عام توګه دَ يمن ښائسته ځادر ته خميصه وئيلی شی. ② أَعْلَامٌ: د ځادر رنګدارو غاړو ته وائی يا د ځادر په غاړو چه کوم ګلونه وی هغې ته وائی. ③ بِأَنْبِجَانِيَّةِ: كِسَاءٌ لَا عَلَمَ لَهُ: دا داسې ځادر ته وائی چه څه نښې پکښې نه وی. وَهُوَ مَنْسُوبٌ إِلَى "مَنْبِجَ" بَلْدَةٌ مَعْرُوفَةٌ بِالشَّامِ: دا منبج طرف ته منسوب دې چه په شام کښې يو ښار دې، ④ أَلْهَتْنِي: أَيْ: شَغَلَتْنِي: مشغوله ئې کړم. ⑤ آنِفًا: أَيْ: فِي هَذِهِ السَّاعَةِ: هم په دې ساعت، هم اُوس.

(۱) اخرجه البخاری کتاب الصلوة باب إذا صلی فی ثوب له أعلام ونظر إلی علمها (رقم-۳۷۳) ومسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة باب کراهة الصلاة فی ثوب له أعلام (رقم-۶۲ - (۵۵۶) وابن ماجة کتاب اللباس. باب لباس رسول الله صلی الله علیه وسلم (رقم-۳۵۵۰) ومالک فی الموطا کتاب الصلاة باب النظر فی الصلاة إلی ما یشغلک عنها (رقم-۶۷) والنسائی کتاب القبلة /باب الرخصة فی الصلاة فی خمیصة لها أعلام (رقم) ۷۷۱

**تسهيلات:**

**قوله:** "إِلَى أَبِي جَهْمٍ"

**دابو جهم تعارف:** داد يو صحابى رضي الله عنه نوم دي. ونيلى شى حضورپاك سره دخميصه د قسم دوه څادرونه وو. حضورپاك يو پخپله واچولو او يو ئى ابوجهم رضي الله عنه ته حواله کړو د مونځ کولو نه پس حضورپاك هغه څادر کوز کړو اوهغه دويم ئى د ابوجهم رضي الله عنه نه واپس راؤغوښتلو کوم چه ساده وو. د بعضې رواياتونه معلوميږى چه هم ابوجهم رضي الله عنه دا څادرې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورکړې وې. حضورپاك دهغه د خاطرساتلودپاره د څه وخت دپاره هغه واغوستلو اوبيائى په هغه باندې ساده راؤغوښتلو ځکه چه د ګلونو والاسره د حضورپاك توجه الى الله کښې فرق راغلې وو.

**قوله:** أَلْهَتْنِي"

**ددنيا په زيب وزينت د پاکو زړونو متاثر کيدل:** يعنى زما مخې ته چه کله دهغې نقش اونګار راغلو نو په هغې سره زما توجه تقسيم شوه اوزما توجه الى الله کښې فرق راغلو علماؤ ليکلى دى چه د دنيا نقش اونګار صفا زړونه هم متاثر کوى. امام بخارى رحمه الله ددې حديث نه استدلال کړې دې په مونځ ددې قسم خيال راتلل د مونځ دپاره مضر نه دې بهرحال په صفا زړه باندې معمولى شان څيزهم لوئى اثر کوى اود تور زړه والاته ددې څه خبر دې. شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې ليکى چه دا په حقيقت کښې د امت دپاره تعليم وو او حضورپاك امت ته خبرداري ورکړو چه ددنيا نقش اونګار نه احتياط کوئى ځکه چه داخطرناك څيز دې هريوسړې متاثر کيدې شى.[اشعة المعات: ۳۷۰]

**قوله:** "أَنْ تَفْتِنَنِيَ"

**د اهل الله دپاره معمولى څيزخطرناک کيدل:** چه کله زړه د شيشې په شان صفا وى اود آئينې په شان روښانه وى نو په هغې باندې د معمولى خيرى هم اثر وى. کپړا چه څومره سپينه وى په هغې باندې تور داغ هم دومره زيات ښکارى. د اهل الله اواهل دل زړونو تعلق د مع الله د وجې هم داسې روښانه وى ددې په مقابله کښې هغه ګناهګار اوبدکاره خلق دى دچا په زړونوباندې چه د لوئى نه لوئى ګناه هم اثر نه کوى.

**۷۵۸- د مونځ کونکي د مخ څخه تصويرونه ليرې کول**

۷۵۸-()[۵] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ [۲] «كَانَ قِرَامٌ لِعَائِشَةَ سَتَرَتْ بِهِ جَانِبَ بَيْتِهَا، [۳] فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - (أَمِيطِي عَنَّا قِرَامَكِ هَذَا ; [۴] فَإِنَّهُ لَا يَزَالُ تَصَاوِيرُهُ تَعْرِضُ لِي فِي صَلَاتِي» ) رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[1] بخاري كتاب الصلوة باب إن صلى فى ثوب مصلب أو تصاوير، هل تفسد صلاته؟ وما ينهى عن ذلک؟(رقم-۳۷۴)

**ترجمه:** [١] او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي[٢] چې بي بي عائشي رضي الله عنها د خپل مكان په يوه حصه كښې پرده اچولې وه[٣] حضور ﷺ بي بي عائشي رضي الله عنها ته اوويل دا پرده زما د مخې څخه لرې كړه[٤] څكه چې د دې تصويرونه په لمانځه كې برابر زما مخې ته وي. (بخاري)

**حل اللغات:** ① قِرَامٌ: وَهُوَسِتْرٌرَقِيقٌ فِيهِ نُقُوشٌ: هغه نرئی كپړې ته وائی په كومه كښې چه مختلف رنگونه وی. ② سَتَرَتْ: پرده ئې اچولې وه، ③ أَمِيطِي: أَيْ: أَزِيلِي: دَ اخوا كولو او لرې كولو په معنى كښې دې. ④ تَعْرِضُ: أَيْ: تَظْهَرُ: يعنی راته ښكاری، مخې مخې ته مې كيږی

**تسهيلات: قوله: أَمِيطِي عَنَّا قِرَامَكِ**

**دقرام په معنی كښې دوه اقوال:**

① دَ قاف كسرې سره بعضې اهل لغت وائی قرام هرې نرئی پردې ته وائی

② علامه توربشتی رحمه الله فرمائی چه قرام هغه پردې ته وائی په كومه كښې چه گلونه، نقش اونگار وی [اشعة المعات ۳۷۱]

**قوله: "تَصَاوِيرُهُ"**

**د تصويرونو نه مراد:** دې دَ ساه والاخناورو تصويرونه مراد نه دی بلكه هم دغه نقش اونگار ته تصويرونه ونيلی شوی دی او ممكن دی چه دَ ساه والاخيز تصويرونه وی حضرت عائشه رضي الله عنها ته تر دغه وخته پورې دَ ممانعت علم اونه شو كله چه حضورپاك اوفرمائيل نو حضرت عائشه رضي الله عنها اخوا كړل.

**۷۵۷- ريښمينه قبا اغوستل**

۷۵۷-()[۲] [١] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: [٢] «أُهْدِيَ لِرَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَرُّوجُ حَرِيرٍ، [٣] فَلَبِسَهُ ثُمَّ صَلَّى فِيهِ، [٤] ثُمَّ انْصَرَفَ فَنَزَعَهُ نَزْعًا شَدِيدًا كَالْكَارِهِ لَهُ، [٥] ثُمَّ قَالَ: (لَا يَنْبَغِي هَذَا لِلْمُتَّقِينَ»)، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه فرمايي[٢] چه د حضور ﷺ په خدمت كې چا يوه ريښمينه قباء د تحفې په طور وليږله[٣] حضور ﷺ هغه واغوسته مونځ يې پكښې وكړو [٤] د لمانځه كولو څخه وروسته حضور ﷺ هغه قباء داسې وغورځوله لكه چې څوك څه شي ډير بد گڼي[٥] بيا يې وفرمايل چې دا د متقيانو جامه نده (بخاري مسلم)

**حل اللغات** ① أُهْدِيَ: تحفه اوليږلې شوه، ② فَرُّوجٌ: هُوَالْقَبَاءُ الَّذِي شُقَّ مِنْ خَلْفِهِ: هغه قبا ته وئيلى شى دَ كومې گريوان چه شاته طرف ته وى ③ كَالْكَارِهِ: په شان د بد گڼرونكى.

---

(۱) اخرجه البخاری كتاب الصلوة باب من صلى فى فروج حرير ثم نزعه(رقم-۳۷۵) ومسلم كتاب اللباس والزينة باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال والنساء. وخاتم الذهب والحرير على الرجل. وإباحته للنساء. وإباحة العلم ونحوه للرجل مالم يزد على أربع أصابع (رقم) ۲۳(۲۰۷۵) والنسائى كتاب القبلة /باب الصلاة فى الحرير (رقم) ۷۷۰

**تسهيلات:**

**قوله**. "أُهْدِيَ"

**دحديث پس منظر**: اكيدر شاه دومة الجندل دَ غزوه تبوك په موقع دَصلح نه پس دَ حضورپاك په خدمت كښې يو ريښمي قبا دَ تحفې په توګه پيش كړې وه يا دَ مصربادشاه مقوقس هديه راليږلې وه حضورپاك هغه واغوستله او بيائي كوزه كړه وئې غوززوله [اشعة المعات ۳۷۱]

**قوله**: لِلْمُتَّقِينَ"

**دنبى كريم ﷺ د ريښمو قبا اغستلو كښې درې تاويلات:**

① حضورپاك به هغه قبا هغه وخت اچولې وى كوم وخت چه دَ ريښمو حرمت نه وو راغلې په دې وجه حضورپاك په هغې كښې مونځ اوكړو اوكيدې شى چه هم دغه وخت دَ ريښمو دَ حرمت حكم راغلې وى نوحضورپاك په ډيره تيزئى سره هغه اوويستله او بيائى اوفرمائيل چه دَ متقى او پرهيزګار دَپاره دا مناسب نه دى.

② كيدې شى دَ څه بل څه مصلحت دَ وجې نه ئى اچولې وى او بيائى ويستلې وى اوكيدې شى چه دامت دَ تعليم دَپاره ئى اغوستې وى او په عملى توګه باندې دَدې نه دَ نفرت اظهار اوكړې شو په كوم سره چه په ليدونكو كښې هم نفرت پيدا شو.

③ دَمتقين نه مراد دَ شرك اوكفرنه بچ كيدونكى خلق دى يعنى دَ يو مسلمان دَپاره دا مناسب نه دى چه هغه دې ريښم واغوندى

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## ۷٦۰ـ په يو قميص كښې د مونځ كولو حكم

٧٦٠ــ( )[٤] [١] عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «قُلْتُ: يَارَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي رَجُلٌ أَصِيدُ؟ [٣] أَفَأُصَلِّي فِي الْقَمِيصِ الْوَاحِدِ؟ [٤] قَالَ: (نَعَمْ، وَازْرُرْهُ وَلَوْ بِشَوْكَةٍ»)، رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَرَوَى النَّسَائِيُّ نَحْوَهُ.

**ترجمه**: [١] سلمه بن اكوع ﷺ وايي [٢] چه ما عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ زه يو ښكاري سړي يم [٣] زه په يو كرتا (قميص) كې مونځ وكړم؟ [٤] حضور ﷺ وفرمايل هو كوه يې ليكن هغه تړه خواه كه په ازغي سره ولې نه وي (ابوداؤد، نسايي)

**حل اللغات** ① أَصِيدُ: أَي: أَصْطَادُ: دَ متكلم صيغه ده يعنى زه يوښكاري سړې يم اكثر ښكار كوم. ② وَازْرُرْهُ: أَي: اشْدُدْهُ: تړه ئې. ③ شَوْكَةٍ: ازغى.

---

(١) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب فى الرجل يصلى فى قميص واحد (رقم-٦٣٢) والنسائى كتاب القبلة/باب الصلاة فى قميص واحد (رقم) ٧٦٥

**تسهیلات:**

**قوله:** أَفَأُصَلِّي فِي الْقَمِيصِ الْوَاحِدِ؟:

**د سلمه بن اکوع د تپوس کولو وجه:** چونکه ښکاری خلق اکثر په ښکاریسې منډې وهی او تهه بندسره سړې تیزه منډه نه شی وهلې ځکه چه دَ لنګ غاړې جاړو سره دَ ښکاری ځپو کښې انخلی په دې وجه دغه وخت ښکاری صرف یوقمیص کښې دَښکار دَ پاره وتل بیابه دَ مانځه وخت راتلو هم په دې وجه دَ مسئله په لحاظ سره حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه پریشانه شو ځکه چه دَ قمیص ګریوان کولاؤ وو نودَ رکوع اوسجدې په حالت کښې به ستر ښکاره کیدو. په دې وجه نې دَ حضور پاك نه تپوس اوکړو رسول الله ﷺ په جواب کښې اوفرمائیل چه ته په یوقمیص کښې مونځ کولې شې. که چرې په ګریوان سره دَ ستر ښکاره کیدو خطره وی نوبټن اولګوه که بټن نه ملاویږی نو دَ بټن کار دَ ځنګلی ونې دَ ازغونه اخله.

**د عورت غلیظه په لیدو سره د مونځ نه فاسد کیدو صورتونه:** ① که یوسړې دَ چت یا ونې دپاسه دَدې قسم مونځ ګذار ستر وینی په دې سره هم مونځ نه فاسد کیږی.

② که یومونځ ګذار په خپل ګریوان کښې پخپله غلیظ ستر وینی نو په دې سره مونځ نه فاسدکیږی. ③ که یومونځ ګذار په لنګ کښې مونځ کوی اولاندې نه څوك دَهغه ستر وینی نو په دې سره هم دَ هغه په مونځ کښې نقصان نه راځی. ستر ښکاره کیدل هغه وی چه مخامخ وړاندې روستو ښی اوګس طرف ته برابر ښکاری

## ۷۴۱- په مانځه کښې د لنګ ښکته ساتلو کراهت

۷۴۱-(۸)[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲]«بَيْنَمَا رَجُلٌ يُصَلِّي مُسْبِلٌ إِزَارَهُ، [۳] قَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - (اذْهَبْ فَتَوَضَّأْ) [۴] فَذَهَبَ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ جَاءَ [۵] فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ! مَا لَكَ أَمَرْتَهُ أَنْ يَتَوَضَّأَ؟ [۶] قَالَ: إِنَّهُ كَانَ يُصَلِّي وَهُوَ مُسْبِلٌ إِزَارَهُ [۷] (وَإِنَّ اللهَ لَا يَقْبَلُ صَلَاةَ رَجُلٍ مُسْبِلٍ إِزَارَهُ»)، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضي الله عنه فرمایي [۲] چې یو سړي ازار (لنګ) اوېزانده کړي وو او مونځ یې کولو [۳] حضور ﷺ دې لیدو سره وفرمایل لاړشه اودس اوکړه [۴] هغه سړي لاړلو اودس یې وکړو اودس کولو سره راغې [۵] یو سړي حضور ﷺ ته عرض وکړو یا رسول الله ﷺ تا هغه سړي ته د اودس کولو د پاره ولې وفرمایل (حالانکه هغه په اودس وو) ؟ [۶] حضور ﷺ ورته وفرمایل هغه سړي لنګ اوېزاند کړي وو او مونځ یې کولو [۷] او کښې څوک چې لنګ آویزانده کونکي وي نو الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ د هغه مونځ نه قبلوي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① مُسْبِلٌ: هوارسال الثوب واطالته زيادة على الحد المشروع تكبرًا واختيالاً: یعنی دَ نازاوتکبر په توګه شلوار پرتوګ وغیره کپړې دَ شرعی حدنه ښکته زوړندولونوم اسبال دې.

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب الإسبال فى الصلاة (رقم-٦٣٨)

**تسهيلات:**

**قوله:** مُسْبِلٌ إِزَارَهُ:

**د اسبال په معنی کښې عموم:** اسبال صرف ازار بندسره خاص نه دې بلکه پرتوګ پاجامه قمیص هره یوه کپړه دَ ګیټونه ښکته زوړندول مکروه تحریمي دي اودا اسبال دې. په لستوڼو کښې دَ لاس په ګوتو باندې دَ لستوڼې راتلل اسبال دې دَ پټکي شمله که چرې دَ ملانه لاندې لاړه شي نو دا هم اسبال دې.

په حدیث شریف کښې دَ ازار ذکر ځکه شوې دې چه هغه وخت دَ پرتوګ رواج نه وو. بل په بعض روایاتو کښې دَ اسبال ثوب لفظ راغلې دې او "ثوب" کښې هرقسم کپړه شامل ده اودا اسبال مکروه تحریمي دې په داسې حالت کښې اصل مونځ خو کیږي مګر کامل مونځ نه کیږي اودَ ثواب نه سړې محروم کیږي په دې کښې سخت وعید او ښه سخت تغلیظ دې

**په مانځه کښې د اسبال الازار په حکم کښې مذاهب:**

① پرتوګ دَ ګیټونه ښکته زوړندول دَ احنافو او شوافع په نیز په مانځه کښې هم اوبغیردَ مانځه نه هم مکروه تحریمي دي.

② امام مالک رحمه الله اسبال په مانځه کښې جائز مني لیکن دَمانځه نه بهر په عامو وختونو کښې ناجائز وائي هغه فرمائي چه تکبر غرور اونازنخرې ښکاره کیدل دَ مانځه نه علاوه وختونو کښې کیږي په مانځه کښې نه کیږي. دَ حضرت امام مالک رحمه الله دا قول شاذ دې

**د تکبر نه بغیر هم داسبال الازار حرمت:** د لنګ او پرتوګ د ګیټو نه ښکته ساتل که د تکبر نه بغیر هم وي. نودا ګناه ده اوکه څوک دا وائي چې مونږ د تکبر په نیت باندې اسبال الازار نه ساتود دې وجې په کښې ګناه نشته نو دادَ شیطان دهوکه ده چه انسان ته ئې ورکوي حقیقت دادې چه دا پاجامه ښکته کول هم پخپله متکبرانه وضع ده په دې کښې دَتکبرنه کولو هډو سوال نه پیدا کیږي.

حضوراکرم دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم په جماعت کښې بغیردَ صدیق اکبر رضي الله عنه نه چاته اجازت نه دې ورکړې او صدیق اکبر رضي الله عنه عذر اوکړو چه زه پوره پوره خیال ساتم لیکن دَخیټې غټیدو دَ وجې نه کله کله ازار ښکته شي. حضوراکرم اوفرمائیل چه تاکښې تکبرنشته. دا یقین ورکول صرف صدیق اکبر رضي الله عنه ته حاصل دې دَ امت بل یوکس ته حاصل نه دې.

**قوله:** اِذْهَبْ فَتَوَضَّأْ:

**داسبال الازار په وجه د اودس کولو حکمت:** دَاسبال مرتکب هغه سړې مونځ که چرې غیرمقبول وي نودا معقوله خبره ده خود اودس کولو حکم خلاف القیاس دې. خو کیدې شي سړي ته دَ اودس دَتازه کولوحکم په دې وجه ورکړې شوې دې دې دَپاره چه هغه پخپله

سوچ او کړی چه واقعی هغه د شنیع او قبیح فعل ارتکاب کړې دې د کوم په وجه چه هغه ته داودس ز اګر خولو حکم ورکړې شو او د هغه په دماغو کښې چه هم دا خبره راشي چه د حضور پاك په حکم باندې په دې ظاهری پاکوالی سره کیدې باطنی پاکوالې حاصل شي او د هغه باطن د تکبر او عجب په شان د بیمارو نه پاك شي

۷۶۳- بغیر د پړونی د مونځ کولو حکم

۷۶۳-(۱)[۹] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ حَائِضٍ إِلَّا بِخِمَارٍ»)، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د بالغې ښځې مونځ بغیر د پړوني (یعني د سرپټولو بغیر) نه کیږي (ابوداؤد ترمذي.)

**حل اللغات** ① خِمَار: أَيْ: مَا يُخَمَّرُ بِهِ مِنْ سَتْرِ رَأْسٍ: څه سره چه سر پټولې شي هغې ته خمار وائی یعنی لوپټه، پړوني وغیره.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ حَائِضٍ إِلَّا بِخِمَارٍ:

**د حائضې مصداق:** دې نه بالغه ښځه مراد ده څکه چه حیض په نابالغه جینئی باندې نه راځی کله چه ښځه د بلوغ عمر ته اورسیږی نوچه بیا په هغې باندې حیض راشي او که رانه شي حکم هم دغه دې چه بغیر د سرپټول د هغې مونځ جائز نه دې شیخ عبدالحق ﷺ لمعات کښې لیکلی دی چې په سرباندې لوپټه نه کیخودود وجې د سپکاوی په توګه هغه وخت ښځه د حائض په نوم سره یاده کړې شوه څکه چه حیض یو ګندګی ده. (د تعارف او تعریف څیزنه دې).

**د عورت په لحاظ سره د ښځې د سر د ویختو حکم:** د دې حدیث نه معلومه شوه چه د ښځې د سرو ښته او د هغې سر په سترکښې داخل دی لهذا که یوه ښځه بغیر د سرپټولو په بربنډ سر مونځ کوی نو د هغې مونځ نه کیږی. دغه که ښځه دومره نرئی کپړا استعمالولو سره مونځ کوی په کوم کښې چه ویښته یا د بدن رنګ ښکاری نو د هغې مونځ نه کیږی. البته دا حکم د آزادو ښځو د پاره د وینځو د پاره نه دې څکه چه د وینځې سر په سترکښې داخل نه دې. د هغې د زنګونو نه پورته د نامه لاندې حصه د سرو په شان سترکښې شامله ده. او د هغې خیټه، شا او اړخ هم په سترکښې داخل دې (د نن صبا آزادې ښځې د وینځو ښځو د حدنه وتلې دی).

---

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة باب المرأة تصلی بغیر خمار (رقم-۶۴۱) وابن ماجة باب إذا حاضت الجارية لم تصل إلا بخمار (رقم-۶۵۵)

### ۷۶۳- د ښځې د پاره يوازې په پروني کښې د مونځ کولو حکم

۷۶۳-(۱)[۱۰] ۞ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، ۞ «أَنَّهَا سَأَلَتْ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَتُصَلِّي الْمَرْأَةُ فِي دِرْعٍ وَخِمَارٍ لَيْسَ عَلَيْهَا إِزَارٌ؟ ۞ قَالَ: (إِذَا كَانَ الدِّرْعُ سَابِغًا يُغَطِّي ظُهُورَ قَدَمَيْهَا» ) رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، ۞ وَذَكَرَ جَمَاعَةٌ وَقَفُوهُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ.

**ترجمه:** ۞ او بي بي ام سلمه رضي الله عنها وايي ۞ چه ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه او کړه چه که د ښځي سره تهبند (لنگ يعني پائجامه وغيره) نه وي او هغه يوازي په پروني او قميص کي مونځ وکړي نو د هغي مونځ کيږي يا نه؟ ۞ حضور ﷺ وفرمايل هو کيږي په شرط د دي چي قميص دومره اوږد وي چي په هغې سره د هغي د پښې مخ حصه پټيږي. ابوداؤد ۞ او ابوداؤد ويلي دي چي يو جماعت دا روايت په ام سلمه رضي الله عنها موقوف کړي دي يعني هغوئ ويلي دي چي دا د رسول الله ﷺ ارشاد نه دي بلکه پخپله د ام سلمه رضي الله عنها قول دي.

**حل اللغات:** ① دِرْعٍ: أَيْ: قَمِيصٍ: دَ ښځولوئي قميص ته وائي. ② خِمَارٍ: أَيْ: مَا يُغَطَّى بِهِ مِنْ سَتْرِ رَأْسٍ: څه سره چه سر پټولي شي هغې ته خمار وائي يعني لوپټه، پروني وغيره. ③ سَابِغًا: أَيْ: كَامِلًا وَاسِعًا: يعني چه بدن ورسره ښه پټيږي. ④ يُغَطِّي: چه پټوي، ⑤ ظُهُورَ: د ظهر نه دې، شا ته وائي (دخپو پورته طرف مراد دې)

**تسهيلات:**

**قوله: سَابِغًا:**

**د ښځې د پښو شاته حصه عورت کيدل:** کاملاواسعا يعني دَ سرپټولو دَپاره لوپټه وی او ارت قميص وی کوم چه خپو پورې رسيږی. بيا که شلوار او ازار نه هم وی مونځ به کيږی. "ظهور قدميها" دَدې جمله نه معلومه شوه چه دَ ښځې دَ پښو شاته حصه په سترکښې داخل ده دَ دې پټول په مونځ کښې واجب دی.

### ۷۶۴- په مانځه کښې د خُلې پټولو کراهت

۷۶۴-(۲)[۱۱] ۞ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ۞ «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنِ السَّدْلِ فِي الصَّلَاةِ. ۞ وَأَنْ يُغَطِّيَ الرَّجُلُ فَاهُ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۞ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي ۞ چي حضور ﷺ منع فرمايلي ده په لمانځه کي د سدل (۳) کولو څخه، ۞ او د سړي خُلې لره د پټولو څخه، (ابوداؤد، ترمذي.)

---

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب فی كم تصلی المرأة (رقم-۶۴۰) ومالک فی الموطا كتاب صلاة الجماعة ، باب الرخصة فی صلاة المرأة فی الدرع والخمار (رقم-۳۸)

(۲) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب ما جاء فی السدل فی الصلاة (رقم-۶۴۳) والترمذی باب ما جاء فی كراهية السدل فی الصلاة (رقم-۳۷۸)

(۳) سدل په دا شان جامه اغوستلو ته وايي چي دهغه دواړي کناري (غاړي) په اوږو آويزانده وي.

**حل اللغات:** ① السَّدْلِ: في اللغة الارخاء وفي الشرع الارسال بدون المعتاد: يعني سدل په لغت کښې زوړندولو ته وائي او په شريعت کښې غيرمعتاد او دَ عادت نه په خلاف طريقه باندې کپړا زوړندولو ته سدل وائي. ② يُغَطِّيَ: پټول (په کپړه وغيره).

**تسهيلات:**

**قوله:** السَّدْلِ"

**د سدل لغوي معنى:** سدل په لغت کښې زوړندولو ته وائي.

**د سدل په تعريف کښې اقوال:** ① امام خطابي فرمائي سدل دې ته وائې چې په ځآن باندې جامه راواچوي ترديې چې زمکې ته اورسيږي.

② "قال ابوعبيد، السدل ارسال الرجل ثوبه من غيران يضم جانبيه بين يديه فان ضم فليس بسدل يعني چې سرې په خپل ځان باندې کپړه راواچوي. اوبغير د يوځائې کولو نه ئې پريږدي.

③ حضرت شاه ولي الله رحمه الله فرمائي چه شريعت په لباس کښې دَ ښکلې شکل اختيارولو حکم ورکړې دې چه کتونکي ته بدرنګه نه ښکاري. دَدې نه خلاف کپړا استعمالو سدل دې. لکه چه سدل دادې په حالت دَ مونځ کښې کپړا دَ وضع اصلي خلاف پريخودې شي کومه چه دَ وقار خلاف وي.

④ فتاویٰ قاضي خان په دې خاص طريقه باندې رومال اچول دَ سدل په تعريف کښې داخل کړي دی فرمائي: "هوان يجعل الثوب على رأسه وعلى عاتقه ويجعل جانبيه امامه على صدره يعني سدل دې ت وائي چې په خپل سر باندې کپړه راواچوي. او دهغې دواړو طرفونه مخامخ په سينه باندې رازوړند کړي.

⑤ قال صاحب الهداية هوان يجعل ثوبه على رأسه وكتفيه ثم يرسل اطرفه من جوانبه.

⑥ صاحب هدايه چه دَ سدل کوم تعريف کړې دې په هغې باندې علامه ابن همام رحمه الله تبصره کولوسره ليکي چه دا تعريف په هغه رومال باندې هم صادق راځي کوم چه اکثر خلق په اوګوباندې واچوي او زوړندئي ساتي. هغه خلقو له پکاردي چه مونځ کولووخت کښې رومال په زمکه باندې کيږدي مونځ اوکړي.

**د سدل د کراهت وجوهات:** ① دَ سدل بعضې صورتونو کښې يهودوسره مشابهت راځي او بعضو صورتونو کښې استمال الصماء په سدل کښې داخليږي اودا ټول منع دي.

② حضورپاك دَدې نه منع فرمائيلې ده.

**قوله:** "يُغَطِّيَ الرَّجُلُ فَاهُ"

**په مانځه کښې د خُلې پټولو کراهت:** په مونځ کښې خله پټول هم منع دی. په عربو کښې دَ پټکي استعمال عام وو هغه خلقو دَدې په يو ګوټ په خپله خله باندې اچولو په کوم سره چه

په دَ خلي دا سوره پټيدله دَدي نه په دې وجه منع اوفرمائيلې شوه چه دې سره نه قرأت صحيح کولې شي اونه سجده په ښه شان سره کيدې شي. اوکه دَ چا دَ خلې نه بدبوئي راځي يا اوږدې ورځي نودَ هغه په لاس سره خله پټول جائز بلکه مستحب دي

**۷۶۵- دَ کمراهانو په مخالفت کښې په مباح شي عمل کول**

۷۶۵ – ()[۱۳] ① وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② («خَالِفُوا الْيَهُودَ، ③ فَإِنَّهُمْ لَا يُصَلُّونَ فِي نِعَالِهِمْ وَلَا خِفَافِهِمْ»)، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت شداد ابن اوس رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② (چپلي او موزي په پښو کولو سره په لمانځه کي) د يهوديانو مخالفت کوئ ③ ځکه چې هغه خلق چپلي او موزي په پښوکولو سره مونځ نه کوي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① نِعَالِهِمْ: دَ نعل جمع ده څپلئ، پيزار ته وائي. ② خِفَافِهِمْ: خفاف د خف جمع ده، موزو ته وائي.

**تسهيلات:**

**قوله: فِي نِعَالِهِمْ:**

**په څپلئ کښې د مونځ کولو د جواز شرطونه:** چپلئ چه کله نوې وي يا صفاوي نو دې سره مونځ کول مباح دي په کومو علاقو کښې چه خلق دا ناجائزګڼړي نوهلته دا اباحت او مؤکد کيږي ليکن څپلئ اچولوسره دَمونځ کولودَپاره څه شرائط هم دي.

① چه څپلئ نرمه وي چه خپه په زمکه لګی که څپلئ داسې سخته وي چه په سجده کښې خپله هم زوړنده وي نوداسې څپلئ کښې مونځ کول جائزنه دی لکه څنګه چه نن صبا بوټ او پيښاورئ څپلئ دي.

② چه څپلئ موجب تلويث مسجدنه وي دَدې مطلب دادې چه دَ جمات نه ګيرچاپيره علاقه صفاوي شګلن کولاؤ ميدان وي په کوم کښې تګ سره چه څپلئ نوره هم صفا کيږي. که جمات سره چاپيره علاقه صفا نه وي سخا نالئي وغيره وي نو په داسې ګنده علاقه کښې استعمال شوې څپلوسره جمات ته راتلل د جماتونود ګنده ګيدو سبب دی. لکه څنګه چې دَ حضرات مالکيه په مساجد کښې تلويث صفا ښکاری. بل دَ نن صبا مساجد اوماحول په اول دور او ماحول باندې قياس کول دَخطرې سبب او قياس مع الفارق دې.

**په څپلو کښې د مونځ کولو وجه:** بهرحال په زير بحث حديث کښې حضورپاک ﷺ امت ته داتعليم ورکړې دې چه يهود څپلو سره مونځ کول جائزنه ګڼړی بل هغه خلق موزه هم نه استعمالوی تاسو خلق دَهغوی مخالفت اوکړئ او په مانځه کښې دا دواړه څيزونه

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب الصلاة في النعل (رقم-۶۵۲)

استعمالونې معلومه شوه چه د ګمراه خلقو په مخالفت کښې يو امر مباح هم ماموربه جوړيږي او دَمخالفت په نيت باندې په دغه مباح عمل باندې هم ثواب ملاويږي دَحديث نه داهم معلومه شوه چرته چه دَمخالفت فضا نه وي هلته به دا حکم دَماموربه په درجه کښې نه راځي

**په څپلو کښې د مونځ کولو په مفهوم کښې درې اقوال:** ① ملاعلي قاري رحمه الله مرقات کښې ليکي دَدې حديث مطلب زما په ذهن کښې دا راځي چه يهود څپلوسره مونځ کول جائزنه ګڼړي تاسو دَ هغوی مخالفت کوئې اوڅپلوسره مونځ کول جائزاوګڼړئې دا مطلب نه دې چه تاسو داکار شروع کړئې

② امام شافعي رحمه الله فرمائي دَ ادب تقاضا داده چه څپلوسره دې مونځ اونه کړې شي بلکه څپلئې دې کوزې کړې او مونځ دې اوکړي دَدې مطلب هم دغه دې چه زمونږ په زمانه کښې هم دغه ادب دې چه څپلئې کوزولوسره دې مونځ اوکړې شي.

③ دَ رسول الله ﷺ آخري عمل په دې باندې وو چه هغوی څپلئې کوزولو سره مونځ کړې اوهم دغه ادب دې دَ نن صبا غيرمقلدين کله څپلو سره دَ مونځ کولو اعلان کوي. او يوځل ګرين ټاؤن محمدی مسجد کښې هغوی اعلان اوکړوچه نن به دَجمعه مبارکې مونځ هم دَ څپلوسره کوو دا ناپوهي ده چرته دَ ګرين ټاؤن کراچئې ګنده نالې اوچرته دَ مدينې پاکه زمکه؟

### ۷۲۲—په پنړو کښې د مونځ کولو حکم

۷۲۲—(١)[١٣] ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رِضَى اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ «بَيْنَمَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُصَلِّي بِأَصْحَابِهِ إِذْ خَلَعَ نَعْلَيْهِ فَوَضَعَهُمَا عَنْ يَسَارِهِ، ٣ فَلَمَّا رَأَى ذَلِكَ الْقَوْمُ، أَلْقَوْا نِعَالَهُمْ، ٤ فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، قَالَ: ٥ (مَا حَمَلَكُمْ عَلَى إِلْقَائِكُمْ نِعَالَكُمْ؟)،

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمايي ٢ چې يو ځل رسول الله ﷺ خپلو اصحابو ته مونځ ورکولو چې ناڅاپه ئې خپلې چپلې وښکلو سره ګس طرف ته (ليرې) کېښودلې ٣ خلقو چې دا وليدل نو هغوئ هم خپلې چپلې کېښودلې ٤ حضور ﷺ چې د لمانځه څخه فارغ شو نو وي فرمايل ٥ چې تاسو په چپلو وښکلو باندې څه شي مجبور کړي يئ؟

**حل اللغات** ① خَلَعَ: أي: نَزَعَ: اوني ويستلې، ② قَضَى: پوره ئې کړو (مونځ)، ③

١ قَالُوا: رَأَيْنَاكَ أَلْقَيْتَ نَعْلَكَ، فَأَلْقَيْنَا نِعَالَنَا، ٢ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (إِنَّ جِبْرِيلَ أَتَانِي فَأَخْبَرَنِي أَنَّ فِيهِمَا قَذَرًا، ٣ إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ، فَلْيَنْظُرْ، ٤ فَإِنْ رَأَى فِي نَعْلَيْهِ قَذَرًا، فَلْيَمْسَحْهُ، وَلْيُصَلِّ فِيهِمَا»)، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ.

(١) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب الصلاة في النعل (رقم-۶۵۰)

**ترجمه:** ۱ هغوئ عرض وکړو مونږ ولیدل چې تا خپلې چپلئ وښکلې نو مونږ هم خپلې چپلې وښکلې ۲ حضور ﷺ ورته وفرمایل (ما خو چپلې ځکه وښکلې چې) ماته جبرائیل علیه السلام راغي او هغه خبر کړم چې زما چپلو ته نجاست لګیدلي دي (ځکه ما چپلي وښکلې) ۳ په تاسو کې چې کوم سړي مسجد ته راشي نو مخکې دي خپلې چپلي (وغيره) وګوري ۴ که په هغه کې څه نجاست لګیدلي معلوم شي نو هغه دي صفا کړي (او هغه په پښو شوې چپلو کي) دي مونځ کوي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** قَذَرًا: أي خُبْثًا: ګندګی، پلیتی، ۳ فَلْيَمْسَحْهُ: اودې مږي يعنی صفا دې کړی.

**تسهيلات:**

**قوله:** عَنْ يَسَارِهِ:

**په مانځه کښې ګس طرف ته د پیزار کیخودلو حکم:** په دې صورت کښې جائزدې کله چه ګس طرف ته څوك مونځ ګذارنه وی ګنی راتلونکی حدیث کښې دَدې ممانعت موجود دې.
چونکه رسول الله ﷺ امام وو په دې وجه دَحضورپاك په يسار کښې څوك نه وو باقی حضورپاك په مانځه کښې څپلئ ويستې دی نوداعمل قليل دې د مانځه سره منافی نه دې.

**قوله:** فَأَخْبَرَنِي جِبْرِيلُ:

**د حدیث مطلب:** جبرائیل امین دَ رسول الله ﷺ دَطبعی نظافت او ډيرزيات احتياط دَ وجې نه خبر ورکړو چه په څپلو کښې ګندګی ده دَدې مطلب دانه دې چه نجاست سره حضورپاك دَ مانځه څه حصه اداکړه

**د حدیث نه مستنبط مسائل:** ۱ دَنبی کریم ﷺ هريوفعل واجب اتباع دې لکه څنګه چه صحابه کرامو کتلوسره اتباع اوکړه، اوکه يوعمل دَرسول الله ﷺ دَ خصوصيات نه وی نو په هغې کښې اتباع نشته.
۲ څپلئ سره نجاست لګيدلې وی نو مونځ نه کيږی او دَ ګندګئ نه دَ استعمال پيزار صفا ساتل آسان نه دی لهذا پيزار سره مونځ نه کول ضروری دی
۳ نبی علیه السلام ته عمل غيب نه وو ګنی دَ جبرائيل علیه السلام دَ خودلونه وړاندې به حضورپاك پخپله څپلئ ويستلې وې

**قوله:** فَلْيَمْسَحْهُ:

**د څپلی نه د ګندګی لرې کولو حکم:** که چرې ګندګی اوچه شوې وی نو په ګرولوسره به صفاشی اوکه ګندګی لمده وی نو په وينځلوبه صفا کيږی شايد دلته طين شارع وو چه هسې هم معاف دی لهذا دَدې بحث چيرلو هډو ضرورت نشته چه رسول الله ﷺ دَ مانځه بعض حصه په تحمل دَ نجاست سره اوکړه نوبيامونځ څنګه صحيح شو؟

۷۶۷-د بل مونځ ګذار خيال ساتل

۷۶۷-(¹)[۱۴] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② («إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَلَا يَضَعْ نَعْلَيْهِ عَنْ يَمِينِهِ، ③ وَلَا عَنْ يَسَارِهِ، فَتَكُونَ عَنْ يَمِينِ غَيْرِهِ، ④ إِلَّا أَنْ لَا يَكُونَ عَنْ يَسَارِهِ أَحَدٌ، وَلْيَضَعْهُمَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ») ⑤ وَفِي رِوَايَةٍ: (أَوْ لِيُصَلِّ فِيهِمَا)، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** ① او ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر کله چې په تاسو کې يو سړي لمانځه کولو ته ودريږي نو خپلي چپلۍ دي نه ښي طرف ته ايږدي ③ او نه ګس طرف ته ځکه چې هغه به د بل سړي ښي طرف وي ④ خو که ګس طرف ته څوك نه وي نو هلته دي ايږدي (ګيني) هغه ته پکار دي چې هغه د خپلو دواړو پښو په مينځ کې (يعني د خپل مخې ته د پښو سره دې) کيږدي ⑤ او په يو روايت کې دا الفاظ هم دي چې يا (که چپلي پاکي وي نو د هغه د وښکلو ضرورت نشته بلکه) هغه په پښو کولو سره دي مونځ وکړي. (ابوداؤد، ابن ماجه)

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دې حديث تفصيل په حديث نمبر ۷۶۶ کښې تيرشوې دې.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

۷٦۸-په يوه جامه کښې د مونځ کولو حکم

۷۶۸-(²)[۱۵] ① عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، فَرَأَيْتُهُ يُصَلِّي عَلَى حَصِيرٍ يَسْجُدُ عَلَيْهِ، ③ قَالَ: وَرَأَيْتُهُ يُصَلِّي فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ ④ مُتَوَشِّحًا بِهِ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دي ② چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم نو ومې ليدل چې حضور ﷺ په يو بوريا (چټايي) باندې مونځ کوي او په هغې سجده کوي ③ ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمايي چې ما وليدل چه حضور ﷺ يوه کپړه اغوستي وه ④ چې د بدن مبارك نه يي راتاؤوه او مونځ يي کولو. (مسلم)

**حل اللغات:** ① حَصِير: دکهجوروډ پانړونه جوړشوی پوزکی ته وائی، ② مُتَوَشِّحًا: أَيْ: وَاضِعًا طَرَفَيْهِ عَلَى عَاتِقَيْهِ: يعنی په په اوږو نې راچولې وه، بدن نې پرې پټ کړې وو.

**تسهيلات: قوله:** عَلَى حَصِيرٍ:

**په حصير او خمره کښې فرق:** بعض خلق دَدې ترجمه بورئی سره هم کوی په حديث کښې د "الخمرة" لفظ راغلي دې هغه هم دغه پوزکي دې البته حصير لوئی وې او الخمرة وړوکې پوزکې وی

(¹) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب المصلى إذا خلع نعليه أين يضعهما (رقم-۶۵۴ و ۶۵۵) ) وابن ماجة باب ما جاء فى توطين المكان فى المسجد يصلى فيه (رقم-۱۴۳۲)

(²) اخرجه مسلم كتاب الصلوة باب الصلاة فى ثوب واحد وصفة لبسه (رقم-۲۸۴ - (۵۱۹)

**په قالین وغیره باندې د مونځ کولو صحت:** دا حدیث په دې باندې دلالت کوی چه دَ مونځ گذار دَ تندی او زمکې په مینځ کښې که چرې څه څیز راشی نو په هغې باندې مونځ کول جائزدی لکه دلته چه حضورپاك په پوزکی باندې مونځ کړې دې. دَدې نه داخبره هم ثابتیږی چه دَ پوزکی نه علاوه کپړه قالین باندې هم مونځ کول جائزدې سره دَدې چه دَدې دَپاره علماؤ سره جدا دلائل هم دی لیکن دَدې خائی اشاره هم دلیل دې.

**بغیر حائله په زمکه د مونځ کولو د افضلیت قول:** دَحضرات مالکیه یومشر قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه په زمکه باندې دَ څه خورولونه بغیر مونځ کول افضل دی خکه چه په خالص خاوره باندې سر اوتندې کیخودل دَاوچتې درجې خشوع او خصوع حاصلیږی کوم چه دَ مونځ اصل روح دې اوکه چرې مجبوری وی دَ یخنئی گرمئی نه دَ بچ کیدو ضرورت وی نو بیا پوزکې کپړه وغیره خورول بهتردی.

**قاعده:** دَبعض حضراتو وینا ده چه کوم څیزونه دَزمکې نه راټوکیدلی وی په هغې باندې مونځ کول جائزدی مگر کوم چه راټوکیدلې نه وی لکه کپړه وغیره نو په هغې باندې مونځ کول بهترنه دی.

## ۷۶۹- خپې ابله خپې اوپه پڼرو کښې د مونځ کولو حکم

۷۶۹-(١)[١٦] ① وَعَنْ عَمْرِوبْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: ② «رَأَيْتُ رَسُولَ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُصَلِّي حَافِيًا وَمُنْتَعِلًا»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① عمرو ابن شعیب د خپل پلار څخه او هغه د خپل نیکه څخه روایت کوي ② چې ما رسول الله ﷺ کله په خپې آبله پښو او کله چپلئ په پښو کړې په لمانځه کولو لیدلي دي. (ابوداؤد.)

**حل اللغات:** ① حَافِيًا: خپې آبلې خپې، ② مُنْتَعِلًا: چه پیزار ئې په خپو کړې وی.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د دې حدیث تفصیل په حدیث نمبر ۷۶۶ کښې تیرشوې دي.

## ۷۷۰- یوازې په تهبند (لنګ) کښې د مونځ حکم

۷۷۰-(٢)[١٧] ① وَعَنْ مُحَمَّدِبْنِ الْمُنْكَدِرِ، قَالَ: ② صَلَّى جَابِرٌ فِي إِزَارٍ قَدْ عَقَدَهُ مِنْ قِبَلِ قَفَاهُ، ③ وَثِيَابُهُ مَوْضُوعَةٌ عَلَى الْمِشْجَبِ، ④ فَقَالَ لَهُ قَائِلٌ: تُصَلِّي فِي إِزَارٍ وَاحِدٍ؟ ⑤ فَقَالَ: إِنَّمَا صَنَعْتُ ذَلِكَ لِيَرَانِي أَحْمَقُ مِثْلُكَ، ⑥ وَأَيُّنَا كَانَ لَهُ ثَوْبَانِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-؟ رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① محمد ابن منکدر فرمایي ② چې حضرت جابر رضي الله عنه تهبند (لنګ) سره چې د خپل

(١) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة، باب الصلاة فی النعل (رقم-۶۵۳)
(٢) بخاری کتاب الصلوة باب عقد الازار علی القفا فی الصلاة (رقم-۳۵۲)

څټ طرف ته يې تړلې وو مونځ وکړو[۳] حالانکه د هغه کپړې په موړې (ميخ) باندې زوړندې وې[۴] هغه ته چا اوويل چې تا يوازې په تهبند (لنګ) کې مونځ کړې دې؟[۵] هغه جواب ورکړو چه ما دا ئې ځکه وکړل چې ستا په شان احمق (نادان، کم عقل) ما ووينې [٦] د رسول الله ﷺ په زمانه کې په زمونږ کښې داسې څوك وو چې د هغه سره دوه کپړې وې. (بخاري)

**حل اللغات:** ① عَقَدَهُ: تړلې ئې وو ② قَفَاهُ: خپل څټ سره، ③ الْمِشْجَبِ: عِيدَانٌ يُضَمُّ رُءُوسُهَا وَيُفَرَّجُ بَيْنَ قَوَائِمِهَا، وَتُوضَعُ عَلَيْهَا الثِّيَابُ: دا يو داسې څيزدې کوم چه په کورونو کښې لګولې شي. دا درې ګوتيز غوندې شئ وي دَدې لاندې کله يوه خپه وي اوکه درې خپې وي. دَدې پورته حصه کښې ډيرې کونتينې جوړې شوې وي کوم سره چه دَ ضرورت مطابق کپړې زوړندولې شي (نن صبا ددې په ځاې هينګر او ديوالګير وي چه په ديوال باندې يوه اوږده تخته لګولې وي او په هغې کښې په قطار ډيرې کونډې يا ميخونه وي جامې، توليه وغيره پکښې رازوړندولې شي). ④ أَحْمَقُ: أي الْجَاهِلُ. ناپوهه

**تسهيلات:**

**قوله:** "الْمِشْجَبِ":

**د جابر رضى الله عنه په يوه جامه کښې د مونځ کولو غرض:** حضرت جابر ﷛ دَ شريعت مطهره دَحدودو وسعت ښکاره کولودَپاره داسې اوکړه چه د کپړو په موجودګئ کښې ئې صرف په يوه کپړا کښې مونځ اوکړو. يوتابعى هغه اوليدلو او خيال ئې اوکړو چه دې خلاف سنت عمل کوى نوفورى ئې پرې اعتراض اوکړو. حضرت جابر ﷛ په سختئ سره جواب ورکړو چه سنت طريقه ته خلاف سنت ولې ګڼې؟ته احمق ئې. دَ حضورپاك په زمانه کښې خلقو سره دَ يوې کپړې نه زياتى کپړې چرته وې هم په دغه يوه کښې به ئې مونځ کولو داجائز دى. غرض دا چه حضرت جابر ﷛ دَدغه سړى دَعدم جواز نظريه رد کوى اوکله چه ستر پټ وى نو په يوه کپړا کښې دَمونځ جواز او صحيح کيدل هغه ښائى او په شريعت کښې دَ جواز دَ يوحده تعين کوى.

**په يوه جامه کښې د مونځ کولو د افضليت د راپې ترديد:** په دې سره دا نه دى ګڼړل پکار چه داسې کول افضل دى. افضل خوهغه دې چه په دريو کپړو کښې مونځ وى لکه څنګه چه راتلونکى دَ حضرت ابن مسعود ﷛ په روايت کښې وضاحت دې اودَ دوو صحابه کرامو مکالمه ذکرده. دَ جواز، افضل او ادب مقامات جدا جدا دى.

**په اهل الله بې ځايه اعتراض کولو نه پرهيز:** دَدې حديث نه دا معلومه شوه چه الله والوباندې بې ځايه اعتراض نه دى کول پکار کيدې شى چه دا قابل اعتراض صورت دَهغوى په نيز په يومعقول وجه سره وى.

### ۷۷۱ — په دوو کپړو کښې د مونځ کولو افضليت

۷۷۱ — (۱) [۱۸] [۱] وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «الصَّلَاةُ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ سُنَّةٌ، [۳] كُنَّا نَفْعَلُهُ مَعَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَلَا يُعَابُ عَلَيْنَا، [۴] فَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ: إِنَّمَا كَانَ ذَاكَ إِذْ كَانَ فِي الثِّيَابِ قِلَّةٌ، [۵] فَأَمَّا إِذَا وَسَّعَ اللهُ، فَالصَّلَاةُ فِي الثَّوْبَيْنِ أَزْكَى»، رَوَاهُ أَحْمَدُ

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابي ابن كعب رضي الله عنه فرمايي [۲] چه په يوه کپړه کې مونځ کول سنت دي [۳] ځکه چې د حضور ﷺ په زمانه کې به مونږ دغسې مونځ کولو او مونږ ته به هیچا بد نه ویل [۴] په دې مسئله کښې ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې دا (یعني په یوه کپړه کې مونځ کول) هغه وخت وو هر کله چې د کپړو قلت (کمي) وو [۵] اوس چې الله تعالی جل جلاله د کپړو په باره کې وسعت (پیرزونه) کړي ده نو په دوو کپړو کې مونځ کول بهتر دي. (احمد)

**حل اللغات:** ① سُنَّةٌ: أَيْ: جَائِزٌ بِالسُّنَّةِ: جواز ئې ثابت دې په حدیث سره، ② لَا يُعَابُ: أَيْ: وَمَا نَهَانَا: نبی علیه السلام په مونږ باندې پیغور نه ووکړې یعنی مونږ ئې نه یو منع کړی نو دا سنت تقریری شو او دې سره جواز بالسنة ثابت شو ځکه چه عدم انکار دلیل د جواز دې دلیل د ندب نه دې ③ قِلَّةٌ: أَيْ: فِي وَقْتِ كَوْنِ الثِّيَابِ قَلِيلَةً: یعنی کله چه کپړې کمې وی. ④ أَزْكَى: أَيْ أَطْهَرُ أَوْ أَفْضَلُ: زیات پاکونکې او افضل (یعنی بدن ئې ورسره پاک صفا او ښائسته ښکاری او مونځ هم ورسره غوره کیږی)

**تسهيلات:**

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:** ① سُنَّةٌ: یعنی په یوه کپړه کښې مونځ کول جائزدی مونږ به کولو چاهم څه پیغور نه ووکړې حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه د مانځه د جواز خبره کوی، چه کله هم یوه کپړه وی نوپه هغې کښې مونځ جائزدې.

② فَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ: رضي الله عنه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په اول دورکښې د کپړودتنګوالی طرف ته اشاره اوکړه اوهم دذغه تنګوالی د وجې نه په یوه کپړه کښې د مانځه دجواز خبره فرمائی.

③ ازکې: یعنی کله چه الله تعالی وسعت ورکړی اوکپړې موجود وی نو بیا د جواز دحدنه وتلوسره د افضل په حدباندې راتلل پکاردی اوهغه داچه په دوو کپړوکښې مونځ کول غوره اوپاکیزه دی.

(الحمد لله ! دويم جلد ختم شو)

(۱) اخرجه احمد فی المسند رقم (۱٤۱/۵)

# مرقاة المفاتيح

للعلّامة الشيخ علي بن سُلطان محمّد القاري المتوفى سنة ۱۰۱۴ھ

## شرح

# مشكاة المصابيح

للإمام العلامة محمّد بن عبدالله الخطيب التبريزي المتوفى سنة ۷۴۱ ھ

## الأمور المسهلة

للأحقر شاه فيصل خريج وفاق المدارس العربية باكستان

① تعريب المتن والشرح

② وضع العناوين المناسبة للعبارات المهمة

③ تخريج الأحاديث بالعزو إلى الكتب والأبواب والأرقام

④ بيان نهج العلامة الملا علي القاري في مرقات

⑤ ترقيم الأقوال والروايات والتوجيهات والإحتمالات والمذاهب.

دارالنشر

فيصل كتب خانه بمدينة بشاور (باكستان)

رقم الجوال: ۰۳۲۱،۹۰۹۱۸۳۵